محقق جدید ایډیشن

# معارف القرآن

جلد ۶ — پښتو

تالیف

مفتی اعظم پاکستان مولانا محمد شفیع رحمۃ اللہ علیہ

مع

# آسان ترجمہ قرآن

حضرت مولانا مفتی محمد تقی عثمانی صاحب مدظلہ

مترجم

## حضرت مولانا شاہ فیصل صاحب

فاضل وفاق المدارس امداد العلوم وجامعہ اسلامیہ چارسدہ

### خصوصیات مع تسهیلات و اضافات

① هر عبارت ته په حاشیه کښې حواله ورکول ② آسان ترجمه قرآن از مفتی محمد تقی عثمانی مدظله ③ تکی په ټکی او روانه ترجمه ④ د خلاصه تفسیر په مینځ کښې قرآنی آیاتونه لیکل ⑤ په حاشیه کښې د غیر تفسیر شده آیاتونو تفسیر ⑥ د عربی او فارسی د اشعارو په پښتو کښې ترجمه ⑦ د اختلاف په صورت کښې یوسفزئ پښتو سره قندهاری الفاظ لیکل

فیصل کتب خانه (مدینه مارکیټ)

محله جنګی قصه خوانی بازار پیښور {۰۳۲۱-۹۰۹۱۸۳۵}

دکتاب نوم : معارف القرآن پښتو محقق ایډیشن

مؤلف : حضرت مولانا مفتی محمد شفیع صاحب رحمة الله علیه
مفتی اعظم پاکستان

خورونکی : فیصل کتب خانه محله جنګی

موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

د ملاویدو پتې :- د فیصل کتب خانې نه سوا

- مکتبه روغانیول جلال آباد
- مکتبه رحیمی خوست
- نعمت کتب خانه کابل
- صداقت کتب خانه قندهار وکابل
- علمی کتب خانه ګردیز
- مکتبه علمیه اکوړه ختک
- دینی کتب خانه تیمرګره
- شیخ الهند کتب خانه خوست
- فلاح کتب خانه جلال آباد
- مکتبه فریدیه خوست
- دیوبند کتب خانه خوست
- جدید رشیدیه کتب خانه کابل
- مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
- مکتبه نعمانیه غزنی
- مکتبه رحمانیه قندهار
- دعوت کتب خانه جلال آباد
- تقوی کتب خانه جلال آباد

# فهرست مضامين

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## پاره نمبر [۱۴]

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## پاره نمبر [۱۵]

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## د اضافي تشریحاتو فهرست [ از مترجم]

وَمَآ اُبَرِّئُ نَفۡسِيۡ ۚ اِنَّ النَّفۡسَ لَاَمَّارَةٌۢ بِالسُّوۡٓءِ اِلَّا

اونه پاکوم زهٔ | نفس خپل | بیشکه نفس چې دې | اخامخا ډېر حکم کونکې دې | په بدئ سره | ماسوا

او خپل ځان ته پاک نهٔ وایم | ځکه چې نفس خو بنده ته بدې لارې چارې ښائی | خو په کوم [نفس]

مَا رَحِمَ رَبِّيۡ ؕ اِنَّ رَبِّيۡ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ ۝ وَقَالَ الۡمَلِكُ

د هغه نفس نه | چې رحم اوکړو | رب زما | بیشکه | رب زما | ښنونکې | مهربانه دې | او اووئیل | بادشاه

چې زما رب رحم اوکړی [نو هغه محفوظ وی] | بیشکه زما رب ښنونکې مهربان دې || او بادشاه اووئیل

ائۡتُوۡنِيۡ بِهٖۤ اَسۡتَخۡلِصۡهُ لِنَفۡسِيۡ ۚ فَلَمَّا كَلَّمَهٗ

راولئ ماته | هغهٔ | چې مخصوص کړم زهٔ هغهٔ | د پاره د ځان خپل | نو هر کله چې | خبرې اوکړې بادشاه د هغهٔ سره

هغهٔ ماته راولئ | چې زهٔ ئې خپلو خاصو کارونو د پاره اوساتم | کله چې ئې ورسره خبرې اوکړې

قَالَ اِنَّكَ الۡيَوۡمَ لَدَيۡنَا مَكِيۡنٌ اَمِيۡنٌ ۝ قَالَ اجۡعَلۡنِيۡ

وې وئیل | بیشکه ته | نن ورځ | زمونږ سره | عزت والا | امانت دار یې | او وئیل یوسف | مقرر کړه ما

نو ورته ئې اووئیل چې تهٔ د نن نه زما په دربار یانو کښې عزتمند او معتبر شوې | یوسف ورته اووئیل چې ما د وطن

عَلٰى خَزَآئِنِ الۡاَرۡضِ ۚ اِنِّيۡ حَفِيۡظٌ عَلِيۡمٌ ۝ وَكَذٰلِكَ مَكَّنَّا

په خزانو | د زمکې | بیشکه زهٔ | حفاظت کونکې یم | ښهٔ پوهه یم | او په دې طریقه | ځائې ورکړو مونږ

په خزانو باندې مقرر کړه | بیشکه زهٔ ډېر محافظ یم || او [د دې کارنه] پوره واقف یم | او دغه شان مونږ

لِيُوۡسُفَ فِي الۡاَرۡضِ ۚ يَتَبَوَّاُ مِنۡهَا حَيۡثُ يَشَآءُ ؕ

یوسف ته | په زمکه کښې | دې به اوسیدو | هغه ځائې | کوم ځائې چې | دهٔ غوښتل

یوسف ﷺ د [مصر] اختیارمند کړو | چې کوم ځائې ئې زړهٔ غوارې | نو هلته دې اوسیږی

نُصِيۡبُ بِرَحۡمَتِنَا مَنۡ نَّشَآءُ وَلَا نُضِيۡعُ اَجۡرَ الۡمُحۡسِنِيۡنَ ۝

رسوو مونږ | رحمت خپل | هغه چاته | چې اوغواړو مونږ | او نهٔ ضائع کوو مونږ | اجر دنیکانو خلقو

مونږ چې څوک او غواړو نو خپل رحمت ورته رسوو | او مونږ د نیکانو بدله هیچرې نهٔ ضائع کوو

وَلَاَجۡرُ الۡاٰخِرَةِ خَيۡرٌ لِّلَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَكَانُوۡا يَتَّقُوۡنَ ۝

او خامخا اجر د آخرت | بهتر دې | د پاره د هغه کسانو | چې ایمان ئې راوړو || او وو هغوئ | چې ویریدل د الله نه

او د هغه کسانو د پاره د آخرت بدله ډیره ښهٔ ده چې ایمان ئې راوړې دې | او پرهیزګاران دی

## آسان ترجمه قرآن

او څهٔ دا دعوئ نهٔ کوم چې ځما نفس ډېر پاک دې — واقعه دا ده چې نفس خو بدئ طرف ته تلقین کوی، خو چې ځما رب رحم وکړي نو هغه جدا خبره ده (چې په هغه صورت کښې د نفس نهٔ چلیږي) بې شکه ځما رب ډېر بخونکې، ډېر مهربان دې او بادشاه اوئیل چې: دې ما ته راولئ، څهٔ دهٔ لره خپل خاص (معاون) جوړوم. نو چې کله (یوسف بادشاه ته لاړو، او) بادشاه دهٔ سره خبرې وکړې نو هغه اوئیل: نن په مونږ څخه ستا لوئه مرتبه وي، او په تا به پوره پوره اعتماد کولې شي یوسف اوئیل چې: ته ما لره د ملک په

خزانو (په انتظام) باندې مقرر کړه، يقين وکړه چه زه په حفاظت کولو ښه پوهيږم (او زه (ددې کار) پوره علم لرم او دغه شان مونږ يوسف ته ملك کښې داسې اقتدار ورکړو چه هغه دې کښې کوم ځائ غواړي نو ځان ته دې ځائې ونيسي، مونږ خپل رحمت چه چاته وغواړو نو رسوو. او د نيکانو خلقو اجر نه ضايع کوو او د آخرت چه کوم اجر دې، هغه د هغه خلقو دپاره ډير بهتر دې چه ايمان راوړي او متقيان وي.

### خلاصه تفسير

﴿وَمَآ أُبَرِّئُ نَفْسِيٓ ۚ إِنَّ ٱلنَّفْسَ لَأَمَّارَةٌۢ بِٱلسُّوٓءِ إِلَّا مَا رَحِمَ رَبِّيٓ ۚ إِنَّ رَبِّى غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ اوزه خپل ځان ته [هم بالذات] بري[اوپاك]نه وايم[ځکه چه]نفس خو[دهرچا]بده خبره ښائي په غير دهغهٔ [نفس]نه چه په چا خمارب رحم وکړي [اودبدی ماده په کښی کيدي،لکه دانبياء ﷺ نفسونه چه وي مطمئنه، چه د يوسف [ﷺ ]نفس پکښې هم داخل دی خلاصه ئی دا شوه چه ځما پاکي او عصمت زما دنفس ذاتي کمال ندی بلکه دالله تعالى دعنايت او رحمت اثردی، په دی وجه ځما نفس دبدی،حکم نه کوي لکه څنګه چی دنورونفسونه دي دغسی به زمادا هم وی ] بی شکه زما رب لوی مغفرت او لوی رحمت والا دی [يعنی مخکښې چه کوم دوه قسمونه دنفس معلوم شول اماره او مطمئنه نو اماره که توبه وکړي نو مغفرت به ئی کولی شي او په مرتبه دتوبه کی دهٔ ته لوامه وائی او کوم چی مطمئنه دی کمال دده دذات سره لازم ندی بلکه دعنايت او رحمت اثر دی پس اماره چه لوامه شي په دهٔ کی صفت دغفور ظاهر کيږي او په مطمئنه کی صفت د رحيم دا تول مضمون شو ديوسف ﷺ دتقرير باقي دا کار چه دپاکئ ثابتول خودازادئ نه پس هم ممکن وو بيا ئی په ازادئ داولی وړاندې کړو ددی وجه دا کيدی شي چه څومره يقين په دی کيدی شي ددی په خلاف کی نشي کيدی ځکه چی د دليلونو دلالت خومشترك دي ليکن په دی تجويزشوي صورت کی دا کار زياتي دی چه بادشاه اوعزيزپه دی پوهيدی شي چه کله به غيردبري کيدونه دی ازادي نه غواړي،حال دادی چی په داسی حالت کی دقيدي دازادئ خواهش زيات وي نو معلوميږي چه ددهٔ په خپله پاکئ او بري کيدو پوره يقين دی په دی وجه ددی دڅا بتيدو پوره اطمينان دی،او ظاهره ده چه دا سی کامل يقين دبري کيدی شي نه چی د ملوث،

﴿وَقَالَ ٱلْمَلِكُ ٱئْتُونِى بِهِۦٓ أَسْتَخْلِصْهُ لِنَفْسِى ۖ فَلَمَّا كَلَّمَهُۥ قَالَ إِنَّكَ ٱلْيَوْمَ لَدَيْنَا مَكِينٌ أَمِينٌ﴾ دا ټولی خبری باد شاه واوريدی]او[چه دا ئی واو ريدی نو دی]بادشاه اووئيل چه دی ماته راولئ زه دی خاص دخپل [کاردپاره] ساتم [اودعزيزنه به ئی واخلم چه دهغه ماتحت نه وي نوخلقوبادشاه ته راوستلو]نوهرکله چه بادشاه ورسره خبري وکړي[اوپه خبروکی ورته دده زيات فضل اوکمال ښکاره شو]نوبادشاه[ده ته ] اووئيل چه ته ځماپه نزدنن[نه]لوی معززاومعتبرشوی.

﴿قَالَ ٱجْعَلْنِى عَلَىٰ خَزَآئِنِ ٱلْأَرْضِ ۖ إِنِّى حَفِيظٌ عَلِيمٌ﴾ [بيادد‌غی خوب ذکرراغی اوبادشاه اووئيل چه ددومره لوی قحط انتظام خوګران کاردی دا انتظام چاته وسپارلی شي] يوسف [ﷺ ] ورته اوفرمائل چه دملك په خزانوماماموره کړه زه[ددوی]حفاظت [هم]کولی شم او[دآمد اوخرچ انتظام اوددی دحساب کتاب په طريقوهم]ښه پوهيږم [چنانچه ددی په ځای چه ده ته ئی څه خاص منصب ورکړی وی. دځان په شان ئی ورته پوره اختيارات ورکړوګوياپه حقيقت کښی بادشاه دی شو،اګرچه په نوم هغه بادشاه وو اوددی دعزيزپه عهدی سره مشهورشوځنګه چه ارشاددی].

﴿وَكَذٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الْأَرْضِ ۚ يَتَبَوَّأُ مِنْهَا حَيْثُ يَشَاءُ ۚ نُصِيبُ بِرَحْمَتِنَا مَنْ نَشَاءُ ۖ وَلَا نُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ﴾ او مونږ په داسې [عجيبه] طورسره يوسف [عليه السلام] په ملك [دمصر] كښې بااختياره جوړكړوپه دې كښې چه كوم خائې كښې غواړي دې په كښې اوسيږي [لكه چه بادشاهانوته آزادي وي، يعنې ياهغه وخت ووچه په كوهي كښې قيد وو، بيادعزيزپه ماتحتئ كښې قيد وو اوياورته نن داخودمختاري اوآزادي وركړې شوه، خبره داده چه] مونږچه په چاغواړوخپل عنايت ورته متوجه كوواومونږدنيكوكاروا جرنه ضائع كوو [په دنياكښې هم دنيكئ اجرميلاويږي چه پاك ژوندورته وركړې شي خواه مالدارجوړشي لكه چه ديوسف [عليه السلام] دپاره وه اوخوابغيردمالدارئ قناعت اورضا ورته وركړې شي چه ژوندئې پري خوندورشي داخونن په دنياكښې شو].

﴿وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ خَيْرٌ لِلَّذِينَ آمَنُوا وَكَانُوا يَتَّقُونَ﴾ اودآخرت اجرډيرزيات دې دايماندارواومتقيانودپاره]

## معارف او مسائل

**خپل ځان پاك بيانول صحيح نه دي خو په خاصو حالاتو كښې صحيح دي** :: دې نه مخكښې تير شوې آيت مبارك كښې د يوسف ﷺ دا وينا مباركه بيان شوې وه چې په ما باندې دپورې كړې شوې تور صفائې او د معاملې تحقيق نه وې شوې نو د قيد نه خلاصيدل ځكه نه خوښوم چې عزيز او دمصر بادشاه ته زما د خيانت نه كولو پوره يقين اوشي او دا ثابته شي چې دا تور پورې كول سراسرې په دروغو باندې اړه اډانړه وو. په دې موقعه خپله بې ګناهي او پاكبازي د يو ضرورت او مجبورئ په وجه وه خو بيا هم دخپل ځان صفائې او پاكي بيانول دې كوم چې د الله ﷻ خوښ نه دي لكه قرآن عظيم الشان فرمائې چې : ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُزَكُّونَ أَنْفُسَهُمْ ۚ بَلِ اللَّهُ يُزَكِّي مَنْ يَشَاءُ﴾ [آيا تاسو اونه ليدل هغه خلق چې خپل ځان ته پاكيزه وائي بلكه هم د الله ﷻ حق دې چالره چې اوغواړي پاك ئې بولي]

دسورة نجم يو آيت مبارك هم دا بيان فرمائي چې :﴿فَلَا تُزَكُّوا أَنْفُسَكُمْ ۖ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ اتَّقَىٰ﴾ [تاسو دخپل ځان د پاكئ دعويدار مه جوړيږئ هم الله ﷻ ښه پوهيږي چې څوك واقعي پرهيزګار او متقي دې].

هم دغه وجه ده چې د خپلې بې ګناهئ ښكاره كولو په موقعه يوسف ﷺ دا حقيقت هم ښكاره كړو چې زما مطلب صرف خپله تقوى او پاكوالې ضباطول نه دې بلكه زما خمبير هم لكه د ټولو بنيادمو پشان دځلورو عنصرونو نه جوړ دې لكه اور ، اوبه ، خاوړې ، او هوا. چې هر انسان لره د بدو كارونو ته مخه را اړوي سوا دهغه انسان نه چې زما رب پرې خپل رحمت كولو سره د هغه نفس لره د بدو تقاضو نه پاك كړي ځنګه چې د پيغمبرانو عليهم السلام نفسونه دي كوموته چې قرآن عظيم الشان كښې د نفس مطمئنه لقب وركړې شوې دې حاصل دادې چې دداسې لوې امتحان په موقعه باندې دګناه نه زما بچ كيدل زما ذاتي كمال نه وو بلكه هم د الله ﷻ د رحمت او امداد نتيجه وه ،.كه هغه زما دنفس نه رذيل خواهشات نه وې اوښكلې نو زه به هم لكه د عامو انسانانو پشان اووم كوم چې دنفساني خواهشاتو نه مغلوب وي.

ځينو روايتونو كښې راغلي دي چې يوسف ﷺ داجمله ځكه اوفرمائيله چې يوقسم خيال خو په هر حال د هغوئ ﷺ په زړه كښې پيدا شوې وو. ګو چې هغه د بې اختيارئ د وسوسې تر حده پورې وو مګر دپيغمبرئ د شان سره ئې سمون نه خوړلو بلكه هغه هم يو لغزش او بدي وه ، ځكه ئې دا خبره ښكاره كړه چې زه خپل نفس لره بالكل بې ګناه او پاك نه ګڼړم.

**د انسان درې حالتونه**: دې آيت مبارك كښې دې مسئله باندې غور كول غواړي چې په دې كښې هر انساني نفس ته ﴿لَاَمَّارَةٌۢ بِالسُّوْٓءِ﴾ [د بدو كارونو حكم كوؤنكې] فرمائيلې دې كله چې نبى كريم ﷺ صحابه كرامو ﷺ نه يو تپوس اوكړو چې داسې ملګرى باره كښې ستاسو څه خيال دې چې تاسو ئې قدر، عزت كوئ، خوراك وركوئ، جامې ورته اغوستوئ، اوهغه تاسو ته تكليف او نقصان در رسوى، كه تاسو ئې سپكاوې كوئى اوږې بربنډ ئې ساتئ نو تاسو سره ښيګړه كوى؟ صحابه كرامو ﷺ عرض اوكړو چې نبى كريم ﷺ په دنيا كښې خو ددې نه زيات خراب بل ملګرې نشي كيدې. نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې په هغه ذات مې دې قسم وى چې دچا په قبضه كښې زما ساه ده، دا ملګرې ستاسو هغه نفس دې كوم چې تاسو سره دې. [قرطبى] (١)

يو بل حديث پاك كښې راغلى دى چې ستاسو دټولو نه لوئې دشمن پخپله ستاسو نفس دې چې تاسولره په بدو كارونو كښې اخته كولو سره ذليل او خوار ګرځوى او په قسا قسم مصيبتونو كښې مو راګيره وى.

بهر حال په دې آيت مبارك كښې او د حديث پاك دبيان كړى روايتونو نه معلوميږى چې انساني نفس هم د بدو كارونو تقاضا كوى، ليكن په سورة قيامه كښې الله ﷻ دې ته د لوامه په لقب وركولو سره د اعزت وربخښلې دى چې په دې ئې قسم داسې خوړلې دې چې: ﴿لَآ اُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ ۙ وَلَآ اُقْسِمُ بِالنَّفْسِ اللَّوَّامَةِ ۙ﴾ (٢) او په سورة فجر كښې ورته د نفس مطمئنه لقب وركولو سره دجنت زيرې وركړې شوې دې، فرمائى چې: ﴿يٰٓاَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ ۙ ارْجِعِيْٓ اِلٰى رَبِّكِ﴾ (٣) په دې شان نفس ته په يو ځائې كښې قرآن عظيم الشان دنفس اماره، بل ځائې كښې دلوامه، او دريم ځائې كښې مطمئنة وئيلى دى.

ددې وضاحت دادې چې د هر انسان نفس پخپل ذات كښې ﴿اَمَّارَةٌۢ بِالسُّوْٓءِ﴾ [ دبدو كارونو تقاضه كوؤنكې] دې ليكن كله چې انسان د الله ﷻ اود آخرت د ويرې نه ددې تقاضې پوره نكړى، نو نفس لوامه ترې جوړ شى، دامت نيكان خلق چې توبه اوباسى اوپه خوارئ محنت سره خپل نفس داسې حالت ته اورسوى چې د بدو خبرو تقاضا پدې كښې پاتې نشى، خو پدې حالت كښې ئې هميشه قائم پاتې كيدل يقينى نه وى البته پيغمبران ﷺ په دې حالت باندې يقينى ځكه پاتې كيږى چې دا هغوئ پخپل محنت او خوارئ سره نه دى حاصل كړى بلكه الله ﷻ ورته همدغسې وربخښلې دى. نو ددې درې حالتونو په اعتبار سره ورته درې قسمه افعال منسوب كړى شوى دى.

﴿اِنَّ رَبِّيْ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ د آيت مبارك په آخر كښې فرمائى چې زما رب لوې بخښونكې او رحمت كوؤنكې دې. په لفظ د غفور كښې دې ته اشاره ده چې هر كله نفس ﴿اَمَّارَةٌۢ بِالسُّوْٓءِ﴾ پخپلې غلطئ باندې پښيمانه كيدو سره توبه اوكړى او نفس لوامه جوړ شى نو د الله ﷻ بخښنه لويه

---

(١) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:٩ ص:٢١٠]

(٢) ترجمه:- زه قسم كوم د قيامت په ورځ او قسم كوم په داسې نفس باندې چې پخپل ځان ملامته وائى.

(٣) ترجمه: اې اطمينان والا روحه، ته خپل پروردګار طرفته راوګرزه.

ده ، هغه به ئې معاف کړی او په لفظ د رحیم کښې دا اشاره مونديږي شي چې چاته نفس مطمئنه په نصیب شي هغه هم د الله ﷻ د رحمت نتیجه ده .

﴿وَقَالَ الْمَلِكُ ائْتُونِي بِهِ﴾ کله چې بادشاه د یوسف ﷺ د فرمائيلو مطابق ښځو نه دا واقعې تحقیق اوفرمائیلو او زلیخې اونورو ټولو ښځو د واقعې د حقیقت اقرار اوکړو . نوبادشاه حکم ورکړو چې یوسف ﷺ دې ماته راوستې شي چې زه ئې د خپل ځان دپاره خاص مشیر جوړ کړم ، د هغه د حکم په جوړ یوسف ﷺ ښه په عزت سره د جیل خانې نه دربار ته راوستې شو چې ورسره ئې خبرې اترې اوکړې نو دیوسف ﷺ صلاحیتونو او استعدادونه ورته ښکاره شو ، ځکه بادشاه اووئیل چې نن تاسو ﷺ زمونږ په نزد لوئې عزتمند اواعتباری یئ .

امام بغوی رحمه الله نقل کړی دی چې کله دباشاه قاصد دوبادره جیل خانې ته راغلو او د بادشاه دعوت او پیغام ئې یوسف ﷺ ته اورسولونو په جیل کښې یوسف ﷺ د ټولو بندیانو دپاره دعا اوکړه ، غسل ئې اوکړو ، نوې جامې ئې واغوستې او کله چې د بادشاه دربار ته اورسیدو نو داسې دعا ئې اوفرمائیله :

﴿حسبي ربي من دنياي وحسبي ربي من خلقه عز جاره وجل ثناءه ولا اله غيره﴾[زما دنیا دپاره زما رب کافی دې او د ټول مخلوق په بدل کښې زما رب مالره کافی دې ځوك چې دهغه په پناه کښې راغلو هغه بالکل محفوظ دې ، دهغه نه سوا بل معبود نشته ].

کله چې دربار ته اورسیدو نو بیا ئې الله ﷻ ته رجوع اوکړه او دعا ئې اوکړه چې په عربی ژبه کښې ئې داسې سلام واچولو: ﴿السلام عليكم ورحمة الله﴾ او بادشاه دپاره ئې په عبرانئ ژبه کښې دعا اوکړه :

بادشاه اګر چې په ډیرو ژبو پوهیدونکې وو مګرعربی او عبرانی ژبه نه واقف نه وو ځکه ورته یوسف ﷺ اوفرمائیل چې سلام مې په عربی ژبه کښې اودعا مې په عبرانئ ژبه کښې وئیلې ده.

دې روایت کښې دا هم دی چې یوسف ﷺ نه بادشاه چې په کومه ژبه کښې تپوس کړې وو ، هم په هغه ژبه کښې ورته هغوئ ﷺ جواب ورکړو خو هرکله چې یوسف ﷺ په عربی او عبرانی ژبو کښې خبرې اوکړې نو بادشاه ترې نه نور هم زیات متاثر شو او په زړه کښې ئې دهغوئ ﷺ قدر او عزت نور هم زیات شو.[1]

بیا ورته د مصر بادشاه اووئیل چې زه تاسو ﷺ نه دخپل خوب تعبیر مخامخ هم ستاسو دخلې مبارکې نه آؤریدل غواړم. یوسف ﷺ ورته مخکښې ددغې خوب داسې تفصیلات بیان کړل چې تر اوسه پورې بادشاه هم چاته نه وو بیان کړی . د هغې نه پس ئې ورته تعبیر اوخودلو. دمصر بادشاه اووئیل چې ماته دتعبیر نه زیات په دې خبره ډیر تعجب دې چې تاسو ﷺ ته دا تفصیلات څنګه معلوم شو؟ ورپسې د مصر بادشاه مشوره ترې اوغوښته چې اوس مالره څه کول پکار دی نو یوسف ﷺ ورته مشوره ورکړه چې په رومبو اوؤ د ځوکالئ په کلونو کښې چې ښه بارانونه به په کښې کیږی . په هغې کښې په ښه شان ډیره ډیره کرونده کوئی او د غلې پیدا کولو انتظام کوئی ، دغه شان نورو خلقو ته هم په دغې کلونو کښې د زیاتې غلې د

[1] ) تفسير البغوي تحت هذه الآية [ج: ٤ ص: ٢٤٩، ٢٥٠].

پیدا اکولو حکم ورکړئ . دغې حاصلاتو نه پنځمه حصه دغلې څان سره ایساره کړئی یا ذخیره کړئی. په دې شان بۀ مصریانو سره د قاطئ د اوؤ کالو دپاره هم ذخیره جمع شی اوتاسو بۀ دهغوئ د طرفنه بې غمه شئ. په سرکاری ذریعو او د سرکاری زمکو نه حاصله شوې غله دبهرنو خلقو دپاره جمع اوساتئ. ولې چې دغه قاطی به تر لرې لرې پورې خورېږی ، بهرنی خلق به دغه وخت تاسو ته حاجت مند وی ، دغه وخت به تاسو مخلوق خدا سره د غلې مدد کوئی ، او قیمت به ترې هم کم اخلئ. په دې شان به سرکاری خزانه کښې دومره مال جمع شی چې دې نه مخکښې به هیچرې نه وی جمع شوې ، دمصر بادشاه دغې مشورې سره بې حده خوشحاله او په تسلئ شو خو وې وئیل چې ددې لوئې منصوبې انتظام به څنګه اوکړې شی او څوك به ئې کوی ؟ یوسف ﷺ اوفرمائیل چې :

﴿اجْعَلْنِي عَلَىٰ خَزَائِنِ الْأَرْضِ ۖ إِنِّي حَفِيظٌ عَلِيمٌ﴾: [یوسف ورته اووئیل چې ما دوطن په خزانو باندې مقرر کړه بیشکه څه ډېر محافظ یم او[ددې کارنه] پوره واقف یم ] د خرچ کولو په اندازه هم پوره واقف یم(١) په دې دوؤ لفظونو کښې یوسف ﷺ هغه ټول صفتونه راجمع کړل چې وزیر خزانه دپاره ضروری وی ولې چې رومبې ضرورت دادې چې هغه نه سرکاری مالونه ضائع نشی ، بلکه په پوره حفاظت سره جمع کوی. بیا ئې داسې خلقوته ورنکړی چې حقدار نه وی ،په غلطو ځایونو کښې ئې خرچ نکړی ، بل ضرورت دادې چې د ضرورت نه زیات خرچ ترې اونه کړی اود ضرورت په ځائې کښې په خرچ کولو ئې شومتوب اونه کړی نو لفظ دحفیظ د رومبی ضرورت پوره ضمانت دې او لفظ د علیم دبل ضرورت پوره ضمانت دې . دمصر بادشاه اګر چې د یوسف ﷺ په کمالاتو مئین شوې وو ، دهغوئ ﷺ ددینداری اود کامل عقل هم معتقد وو خو بالفعل د خزانې د وزارت منصب ئې ورته نه وو سپارلې بلکه د یو عزت مند میلمه په ډول ئې یو کال پورې هم داسې اوساتلو.

دکال د پوره کیدو نه پس یوازې د خزانې وزارت نه بلکه د بادشاهئ ټول کارونه ئې ورته اوسپارل ، ددې مطلب دا هم کیدې شی چې په کور کښې د ساتلو په وجه د دوئ اخلاق او عادات پوره پوره معلومول غوښتل څنګه چې سعدی شیرازی رحمه الله هم فرمائیلی دی چې :

چو یوسف کسے درصلاح و تمیز　　بیك سال باید که گردد عزیز

[لکه یوسف ﷺ پشان به په کال کښې په غورې کاروایئ او عقل مندئ سره عزیز ګرځیدل پکار دی].

ځینو مفسرینو لیکلی دی چې په دغې زمانه کښې د زلیخې بی بی د خاوند قطفیر انتقال اوشو نو بادشاه هغې لره یوسف ﷺ ته په نکاح ورکړه ، دغه وخت یوسف ﷺ اوفرمائیل چې آیا دا صورت دهغې نه ښه نه دې چې تا رومبې غوښتلې وو، زلیخې بی بی د خپل قصور اقرار اوکړو او خپل عذر ئې بیان کړو.

الله ﷻ په ډېر عزت او شان سره دهغې مراد پورته کړو ، او ښۀ په مزو کښې ئې عمر تیر شو. د تاریخی روایتونو مطابق دوه هلکان ئې هم پیدا شو چې نومونه ئې افرائم او منشا وو.

---

١) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة [ ج:۹ص:۲۱۲]

ځينو روايتونو كښې راغلي دي چې الله ﷻ دوا ده نه پس د يوسف ﷺ مينه زليخې بي بي سره نوره هم زياته كړه ځومره چې د زليخې بي بي ورسره ړومبې نه وه. تردې پورې چې يو ځل يوسف ﷺ شكايت اوكړو چې څه وجه ده چې اوس ماسره هغه هومره محبت نه لرې ځومره چې دې ړومبې لرلو؟ نو زليخې بي بي اوفرمائيل چې ستاسو په وسيله راته د الله ﷻ مينه حاصله شوه چې دهغې په مخكښې ټول تعلقات او خيالات ختم شو ، دا واقعه څه نورو تفصيلاتو سره په تفسير قرطبي او مظهرى كښې بيان شوې ده.(١)

د يوسف ﷺ د قيصې په ترخ كښې چې دعامو انسانانو د خير ښيګړې كوم ډير هدايتونه او تعليمات راغلي دى دهغې څه بيان ړومبې شوې دې اوس دې آيتونو سره تړلې نورې مسئلې او هدايتونه دادى.

**ړومبۍ مسئله** :: د يوسف ﷺ په دې قول مبارك : ﴿وَمَآ أُبَرِّئُ نَفۡسِيٓۚ﴾ كښې دنيكانو اومتقيانو خلقو دپاره دا هدايت موجود دې چې كله هغوئ ته د ګناه نه دبچ كيدو توفيق حاصل شى نو په هغې دې فخر نه كوى او بل خوا دې ګناهګار سپك او ذليل نه ګنړي بلكه د يوسف ﷺ د ارشاد مطابق دې په خپل زړه كښې داخبره كينوى چې دا زمونږ ذاتي كمال نه دې بلكه د الله ﷻ فضل دې ګنړې چې هغه په مونږ باندې نفس اماره غالب نه كړو ، ګني نو دهر انسان نفس هغه لره په طبعي ډول ، بدكارونو ته راكاږى.

**د حكومت څه مرتبه پخپله طلب كول جائز نه دى خو سره د څو شرطونو ددې اجازت شته دې:**

**دوئمه مسئله**:: د ﴿ٱجۡعَلۡنِي عَلَىٰ خَزَآئِنِ ٱلۡأَرۡضِۖ﴾ نه معلومه شوه چې يو سركارى مرتبه او عهده طلب كول په خاص صورتونو كښې روا دى ځنګه چې يوسف ﷺ دملك د خزانو انتظام او ذمه دارى طلب كړه. تفصيل ئې دا دې چې كله د يو خاص مرتبې باره كښې دا معلومه شى چې بل څوك به ددې ښه انتظام نشى كولې او پخپل ځان باندې ئې دا باروى چې زۀ به په ښه شان سره دغه ذمه دارى ادا كړې شم او په څه ګناه كښې د اختـه كيدو خطره ئې نه وى نو په دغسې حالت كښې پخپله مرتبه طلب كول هم جائزدى خو په شرط ددې چې د مرتبې او مال محبت ئې مراد نه وى بلكه مقصد ئې د الله ﷻ د مخلوق صحيح خدمت او په انصاف سره هغوئ ته حقونه رسول وى ، ځنګه چې د يوسف ﷺ په مخكښې همدغه مقصد وو او چرته چې داصورت نه وى نو په حديث پاك كښې نبى كريم ﷺ د حكومت نه د څۀ مرتبې پخپله طلب كول منع كړى دى او چا چې پخپله څه مرتبه طلب كړې ده هغه ئې نه ده وركړې.

د صحيح مسلم په يو حديث پاك كښې راغلي دى چې نبى كريم ﷺ عبد الرحمان بن سمره رضی اللہ عنہ ته اوفرمائيل چې چرې څۀ امارت مه طلب كوه ولې چې په داسې شان حاصله كړې مرتبه كښې به درسره الله ﷻ مدد نه كوى چې په نتيجه كښې به ئې دلغزشونو او خطاګانو نه بچ نشى او كه بې درخواسته او بې طلبه درته څه مرتبه دركړې شى نو د الله ﷻ تائيد او امداد به درسره وى(٢) چې د هغې په وجه به تاسو ددغې مرتبې پوره حقوق ادا كړې شې.

---

(١) تفصيل دپاره اوګورئ: تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:٩ص:٢١٤-٢١٥]

(٢) صحيح مسلم كتاب الإمارة، باب النهى عن طلب الإمارة والحرص عليها [ج:٢ص:٢٠]

دغه شان د صحیح مسلم یو بل حدیث پاك کښې راغلی دی چې یو سړی نبی کریم ﷺ نه د څه عهدې خواست اوکړو ، نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې : ﴿انا لن نستعمل على عملنا من اراده﴾[ مونږ چا ته د هغه پخپله غوښتلې عهده نه ورکوؤ] ([1])

**د یوسف ﷺ عهده طلب کول په یو خاص حکمت باندې بنا وو::** د یوسف ﷺ معامله دې نه څکه مختلفه وه چې هغوئ ﷺ په دې پوهه وو چې د مصر بادشاه کافر دې . د هغه کار کوؤنکی هم دغسې دی ، په ملك باندې کله چې طوفانی قاطی راشی نو دغه وخت به خود غرضه خلق د الله ﷻ په عام مخلوق باندې ترس نه کوی چې دهغې په وجه به په لکونو خلق د لوږې نه مړهٔ شی . دغلته داسې بل څوك بنده یا انسان نه وو چې د غریبانانو په حقونو کښې به ئې انصاف کولې شو ، څکه ئې ددغې عهدې دپاره پخپله خواست اوکړو ، دضرورت په وجه ئې خپل څه کمالات دې دپاره ښکاره کړل چې دبادشاه تسلی اوشی او دغه عهده ورته اوسپاری .

که نن م داسې څه ضرورت راپیښ شی او یو کس داسې اوګنړی چې د حکومت په فلانئ عهده باندې کار کولو دپاره هیڅوك جوګه نه دې اوپخپل ځان باندې ددې د پوره کولو او په صحیح ډول د چلولو دپاره ئې د جوګه توب یقین وی نو ددهٔ دپاره جائز خو لاڅه بلکه کول یعنی طلب کول واجب دی. چې ددغې عهدې دپاره پخپله خواست اوکړی خو دخپل ځان او مال دپاره نه بلکه دخلقو د خدمت دپاره چې تړون ئې د زړهٔ نیت او ارادې سره دې او الله ﷻ ته ښه ښکاره دی. [قرطبی].([2])

خلفاء راشدینو رضی الله عنهم دخلافت ذمه دارئ څکه قبولې کړې وې چې د هغوئ رضی الله عنهم نه سوا بل څوك په صحیح طریقه باندې ددې د ذمه دارئ پوره کولو جوګه نه وو دصحابه کرامو رضی الله عنهم ،علی رضی الله عنه ، معاویه رضی الله عنه ، حسین رضی الله عنه اوعبدالله بن زبیر رضی الله عنه وغیره هم تر مینځه چې کوم اختلافات راغلی وو دهغې بنیاد هم دا وو چې د هر چا په خیال کښې دا راتلل چې د خلافت ذمه دارئ به دبل په نسبت په زیات حکمت او قوت سره پوره کړې شم ، پدې کښې د هیڅ یو دا مقصد نه وو چې مال دولت دې اوګټم یا څه رعب ، دبدبهٔ او داب زور طاقت حاصل کړم .

## آیا د یو کافر حکومت عهده قبلول روا دی ؟

**دریمه مسئله::** داده چې هر کله یوسف ﷺ د مصر دبادشاه ملازمت قبول کړو ، سره ددې چې هغه کافر وو ، دې نه معلومه شوه چې دکافر یا فاسق حکمران دحکومت عهده قبلول په خاص حالتونو کښې روا وی . لیکن امام جصاص رحمه الله په ﴿فَلَنْ أَكُونَ ظَهِيرًا لِّلْمُجْرِمِينَ﴾ آیت مبارك سره دلیل نیولې دې چې ددې دمخه ظالمانو او کافرانو سره مدد کول جائز نه دی . او ښکاره خبره ده چې د دوئ دحکومت عهده د دوئ په کار کښې شریکیدل او ورسره مدد کول دی کوم چې د قرآن عظیم الشان د ډیرو آیتونو ترمخه حرام ګرځولې شوی دی .

یوسف ﷺ دا ملازمت یوازې قبول نه کړو بلکه ددې دپاره ئې خواست اوکړو ،ددې خاص وجه د تفسیر امام مجاهد رحمه الله دا ګرځولې ده چې د مصر بادشاه دغه وخت مسلمان شوې وو خو هر کله چې په قرآن عظیم الشان او حدیث کښې ددې څه دلیل موجود نه دې څکه عامو

[1]) صحيح مسلم كتاب الإمارة، باب النهي عن طلب الإمارة والحرص عليها [ج:۲ص:۲۰]

[2]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۹ص:۲۱۵، ۲۱۶]

مفسرينو ددې وجه دا ګرځولې ده چې يوسف ﷺ د مصر د بادشاه په معامله کښې دا معلوم کړې وو چې هغه به د دوئ په کار کښې دخل نه ورکوی . او د شريعت نه خلاف په قانون جاری کولو به مې نه مجبوره کوی ، بلکه مکمل اختيارات به راکوی د کومو په ذريعه به چې هغوئ ﷺ پخپله خوښه پخپلې رائې او په حق قانون باندې عمل کولې شی ، داسې مکمل اختياراتو سره چې څوک په خلاف شرع قانون چلولو باندې مجبور هم نه وی په داسې حالاتو کښې دکافر يا ظالم ملازمت که اختيار کړی نو اګر چې دغه کافر يا ظالم سره د مدد کولو خرابی بيا هم موجوده ده مګر په کومو حالاتو کښې چې د اقتدار نه لرې کول ئې په وس کښې نه وی ، که دغه عهده قبوله نه کړی نو په دغه صورت کښې دخلقو دحقونو ضائع کيدو يا د زور ظلم قوی انديښنه وی نو په مجبورئ سره د دومره مدد ګنجائش د يوسف ﷺ دعمل نه ثابتيدې شی په کوم کښې چې پخپله څه خلاف شرع کار کول رانشی . ولې چې په حقيقت کښې دا په ګناه کښې مدد کول نه دی . اګر چې دلرې سبب په ډول دې نه هم د مدد فائده حاصله شی ، د مدد د داسې لرې اسبابو باره کښې ددغې بيان شوؤ حالاتو د مخې شرعی ګنجائش شته دې چې تفصيل ئې فقهاء کرامورحمهم الله بيان کړيدې . نو د پخوانو بزرګانو صحابه کرامو ﷺ او تابعينو ﷺ نه دا ثابت دی چې هغوئ په داسې حالاتو کښې دظالم ، جابر حکمرانانو عهدې قبولې کړی دی [ قرطبی ، مظهری] .([1])

علامه ماوردی ﷺ شرعی سياست سره تعلق په خپل کتاب کښې نقل کړی دی چې څينې حضراتو د يوسف ﷺ ددې عمل په بنا باندې د کافرانو او ظالمانانو حکمرانانو عهده قبلول په دې شرط سره جائز منلی دی چې پخپله پرې د شريعت نه خلاف کار کول نه راځی او څينې حضراتو سره ددغې شرط نه هم دې لره څکه روا نه دی بللی چې دې کښې هم دظالمانو جابرانو زور ظلم ته تقويت او تائيد حاصليږی . دا حضرات د يوسف ﷺ د فعل مختلف توجيهات بيانوی . حاصل ئې دا دې چې دا عمل د يوسف ﷺ ذات يا د يوسف ﷺ شريعت سره مخصوص وو ، اوس نورو دپاره جائزنه دې مګر جمهورو علماء کرامو او فقهاء کرامو هم رومبې قول اختيار کړې دې او جائز ئې ګرځولې دی . [ قرطبی ] .([2])

تفسير بحر محيط کښې راغلی دی چې چرته دا معلومه شی چې که عالمانو او نيکانو خلقو عهده قبوله نکړه نو دخلقو حقونه به ضائع شی ،انصاف به نه کيږی ، هلته دغسې عهده قبلول جائز بلکه ثواب دې خوشرط دادې چې په دغه عهده کښې پخپله ده ته دشريعت نه خلاف کار کولو مجبوری راپيښه نشی .

**څلورمه مسئله** :: د يوسف ﷺ د قول ﴿إِنِّي حَفِيظٌ عَلِيمٌ﴾ نه دا ثابته شوه چې د ضرورت په موقعه خپل څه کمال يا فضيلت بيانول د خپل نفس په صفايئ بيانولو او خپلې پاکيزګئ ضباطولو کښې داخل نه دی کوم نه چې په قرآن عظيم الشان کښې منع راغلې ده ، خوشرط دادې چې د کبر ، غرور . د فخر او لويئ په غرض نه وی .

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۹ص:۲۱۵]
[2]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۹ص:۲۱۵]

﴿وَكَذَٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الْأَرْضِ ۚ يَتَبَوَّأُ مِنْهَا حَيْثُ يَشَاءُ ۚ نُصِيبُ بِرَحْمَتِنَا مَن نَّشَاءُ ۖ وَلَا نُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ﴾
[يعني څنګه چې مونږ يوسف ﷺ لره د بادشاه مصر په دربار کښې عزت او منزلت مرتبه عطاء کړه هم دغه شان مونږ يوسف ﷺ د ټول [مصر] اختيارمند کړو چې د هغه په زمکه کښې کوم ځائې ئې زړه غواړی نوهلته دې اوسيږی مونږ چې څوک اوغواړو نو خپل رحمت ورته رسوو او مونږ د نيکانو بدله هيچرې نه ضائع کوو].
تفصيل ددې دادې چې د مصر بادشاه د يو کال د تجربې نه پس په دربار کښې د يو جشن انتظام اوکړو او پدې کښې ئې د حکومت ټول غټ خلق په اعتبار د دولت او مرتبې سره راجمع کړل. يوسف ﷺ ته ئې تاج په سر کړو او دغې مجلس ته راوستې شو. يوازې د خزانې ذمه دارئ نه بلکه د حکومت ټولې ذمه دارئ ئې ورته اوسپارلې. او پخپله يو طرفته کيناستو. [قرطبی ،مظهری وغيره].
يوسف ﷺ د حکومت کارونه په داسې شان کول چې هيچا ته شکايت نه وو ، د ټول ملك د خلقو اعتباری اوکرځيدو او په ټول ملك کښې امن او خوشحالی زياته شوه. يوسف ﷺ ته هم د حکومت پدغې ټولې ذمه دارئ کښې هيڅ څه سختی ، غم او تکليف راپيښ نشو.
د تفسير امام مجاهد رحمه الله فرمائيلی دی چې د يوسف ﷺ د نظر په مخکښې هر کله چې ددې ټولې مرتبې ، رعب داب نه مطلب صرف د الله ﷻ احکامو ته رواج ورکول او د هغه دين قائمول وو ، څکه هغوئ ﷺ هم ددې نه غافله نه شو چې د مصر بادشاه ته د اسلام او ايمان بلنه ورکړی ، تر دې پورې چې ددغې جاری بلنې او کوشش دا نتيجه ښکاره شوه چې د مصر بادشاه هم مسلمان شو.
﴿وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ آمَنُوا وَكَانُوا يَتَّقُونَ﴾ [او د هغه کسانو دپاره د آخرت بدله ډيره ښه ده چې ايمان ئې راوړې دې او پرهيزګاران دی].
مطلب دادې چې ددنيا دولت ، سلطنت او مثالی حکومت خو ورکړې شوې وو ، دې سره د آخرت اوچتې درجې هم هغوئ دپاره تيارې دی ، دې سره ئې دا هم اوخودل چې ددنيا او آخرت دا درجات خاص يوسف ﷺ دپاره نه دی بلکه دا هغې ټولو خلقو دپاره عام دی چې ايمان او تقوی او پرهيزګاری اختيار کړی.
يوسف ﷺ دخپل حکومت په زمانه کښې عوامو ته د آرام رسولو هغه کارونه اوکړل چې نظير ملاويدل ئې مشکل دی ، کله چې د خوب د تعبير مطابق اووه کاله دخوشحالئ او څوکالئ تير شو ، او قاطی شروع شوه ، نو يوسف ﷺ په مړه خيټه روټئ خوړل هم پريخودل خلقو ورته اووئيل چې دټول ملك يعنی مصر خزانې ستاسو ﷺ په قبضه کښې دی او بيا هم تاسو اوږې پاتې کيږئ ؟ وې فرمائيل چې داسې څکه کوم چې د عامو خلقو د لوږې احساس زما د زړه نه غائب نشی. او بادشاهی باورچيانو ته ئې حکم ورکړو چې د ورځې دې صرف يو ځل دغرمې روټئ پخوی دې دپاره چې د شاهی محل ټول خلق هم د عوامو په لوږه کښې څه حصه واخستې شی.

وَجَآءَ اِخْوَةُ يُوْسُفَ فَدَخَلُوْا عَلَيْهِ فَعَرَفَهُمْ وَهُمْ لَهٗ

اوراغلل | رونړه | د يوسف | نو ورداخل شو | په هغه باندې | نو اوپيژندل هغهٔ هغوئ | اوهغوئ | هغهٔ

اوديوسف ﷺ رونړه هم [مصر] ته راغلل | اوهغهٔ ته ورغلل | نوهغهٔ اوپيژندل | او هغوئ دې اونهٔ

مُنْكِرُوْنَ ۝ وَلَمَّا جَهَّزَهُمْ بِجَهَازِهِمْ قَالَ ائْتُوْنِیْ

نهٔ پيژندونکی وو | او هرکله چې | تيارکړو يوسف هغوئ د پاره | سامان د هغوئ | نووې ونيل | راولئ ما ته

پيژندې شو | اوهرکله چې يوسف ﷺ هغوئ ته سامان تيار کړو | نو ورته ئې اووئيل | چې تاسو

بِاَخٍ لَّكُمْ مِّنْ اَبِيْكُمْ اَلَا تَرَوْنَ اَنِّیْٓ اُوْفِی الْكَيْلَ وَاَنَا

رورا | ستاسو | چې دپلاره ستاسو نه دې | آيا نهٔ وينئ تاسو | چې بيشکه زهٔ | پوره ورکوم | پيمانه | او زهٔ

د خپل پلار نه [ميرنې] رور هم راوالئ | آيا تاسو نهٔ گورئ چې زهٔ پوره پيمانه ورکوم

خَيْرُ الْمُنْزِلِيْنَ ۝ فَاِنْ لَّمْ تَاْتُوْنِیْ بِهٖ فَلَا كَيْلَ لَكُمْ

بهتره | دميلمستيا ورکونکو نه يم | نوکه | رانهٔ وستوتاسوماته | هغه | نونشته پيمانه | ستاسو د پاره

او ښهٔ ميلمستيا ورکوم | که چرې تاسو هغهٔ ماله رانهٔ وستو | نو تاسو ته به زما دطرفنه غله نهٔ ملاويږي

عِنْدِیْ وَلَا تَقْرَبُوْنِ ۝ قَالُوْا سَنُرَاوِدُ عَنْهُ اَبَاهُ

زماسره | اومهٔ راځئ نزدې ماته | اووئيل هغوئ | مونږبه کوشش اوکړودغوښتلود هغهٔ | د پلار د هغهٔ نه

اونهٔ به زما خوا ته رانزدې کيږئ | هغوئ اووئيل چې مونږ به ئې د پلار نه ضرور اوغواړو

وَاِنَّا لَفٰعِلُوْنَ ۝ وَقَالَ لِفِتْيٰنِهِ اجْعَلُوْا

او بيشکه مونږ | خامخا کونکي يو ددې کار | او اووئيل يوسف | غلامانو خپلو ته | چې کيږدئ

اوداکار به ضرور کوؤ | يوسف ﷺ خپلو خادمانو ته اووئيل | چې د دوئ ادا کړې قيمت

بِضَاعَتَهُمْ فِیْ رِحَالِهِمْ لَعَلَّهُمْ يَعْرِفُوْنَهَآ اِذَا

قيمت دسامان دهغوئ | په بارونو دهغوئ کښې | دپاره ددې چې هغوئ | او پيژني هغه | کله چې

د دوئ په سامان کښې پټ کيږدئ | کيدې شي چې خپلو خپلوانو ته واپس اورسی | نو

انْقَلَبُوْٓا اِلٰٓى اَهْلِهِمْ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ۝

واپس لاړشي هغوئ | کور خپل ته | شايد چې هغوئ | واپس راشي |

وې پيژني | اوکيدې شي چې په دې وجه واپس راشي |

## آسان ترجمه قرآن

او(کله چه قحط شروع شو) د يوسف عليه السلام ورونړه راغلل، اوهغه ته ورغلل نو يوسف دوی وپيژندل او هغوی يوسف لره نه پيژندلو اوکله چه يوسف د دوی سامان تيار کړو نو دوی ته ئې اوئيل چه (آئنده) خپل پلار شريکې ورور هم ماته راولئ آيا تاسو نه گورئ چه څه پيمانه پوره پوره ورکوم، او څه بهترين ميلمه دوست هم يم؟ او که تاسو هغه لره ماته رانه وستو نو ما څخه به تاسو دپاره څه غله هم نه

وي ، او ما ته نزدې مه راځئ. هغوی اوئيل چه مونږ به دهغه د پلار سره د هغه په باره کښې د چل کولو کوشش وکړو (چه هغه مونږ سره اوليږی) او مونږ به دا سې خوامخواه کوؤ او يوسف (عليه السلام) خپلو نوکرانو ته اوئيل چه دوی د هغوی (وروڼړو) مال (چه دهغې په بدله کښې دوی غله اخستې ده) د دوی په بارونو کښې کيږدئ ، دې دپاره چه دوی خپل کور والو ته واپس شي نو خپل مال اوپيژني کيدې شی (ددې احسان د وجې نه) دوی دوباره راشی.

## خلاصه تفسير

﴿وَجَآءَ اِخْوَةُ يُوْسُفَ فَدَخَلُوْا عَلَيْهِ فَعَرَفَهُمْ وَهُمْ لَهٗ مُنْكِرُوْنَ۝﴾ [ غرض يوسف [عليه السلام] چه بااختياره شوغله کرل اوجمع کول ئی شروع کړل اواوه کاله بعدقحط شروع شوتردي چه داخبره ترلرې لرې پورې ورسيده چه دمصردحکومت دطرف نه غله خرڅيږي،ډلي ډلي خلق راتلل شروع شو] او [په کنعان کښې هم قحط اولګيدو]د يوسف [عليه السلام ]ورنه[هم]بغيردبنيامين نه دغلي اخيستلولپاره مصرته]راغلل بياد يوسف [عليه السلام ] خواته ورسيدل پس يوسف [عليه السلام ] خودوی لره وپيژندل اودوی يوسف عليه السلام او نه پيژندو[ځکه چه په دوی کښې لږبدلون راغلی وو اودغسې يوسف [عليه السلام ته] ددوی دراتلوخيال اوقوي احتمال وو،بيادراتلونکونه ئی هم تپوس کولو چه تاسوڅوك ئی دکوم ځای نه راغلی ئی اوبلدآواشناخلق خوپه لږه پته سره پيژندلی شي ،په خلاف د يوسف [عليه السلام ] نه چه په ده کښې[چونکه دجدائی په وخت کښې ډيرکم عمره وو]بدلون هم پکښې زيات راغلی وو اوددوی داګمان هم نه راتلوچه دابه يوسف [عليه السلام ] وي اوبيادحاکمانونه خوڅوك تپوس هم نشي کولي چه ته څوك ئی؟.

﴿وَلَمَّا جَهَّزَهُمْ بِجَهَازِهِمْ قَالَ ائْتُوْنِيْ بِاَخٍ لَّكُمْ مِّنْ اَبِيْكُمْ ۚ اَلَا تَرَوْنَ اَنِّيْۤ اُوْفِي الْكَيْلَ وَاَنَا خَيْرُ الْمُنْزِلِيْنَ۝ فَاِنْ لَّمْ تَاْتُوْنِيْ بِهٖ فَلَا كَيْلَ لَكُمْ عِنْدِيْ وَلَا تَقْرَبُوْنِ۝﴾ د يوسف [عليه السلام ] معمول وو چه په هرسړي به ئی غله د حاجت په قدر خرڅوله نودوی ته هم چه کله هريوتن ته يويوبارغله داوښ ميلاوشوه نودوی وويل چه څمونږ يو پلار راوړی وروريل هم شته،چه هغه پلارپدي وجه چه دهغه يوبيل خوی ورك شوی دی حصارکړی دی ځان سره دخپلی تسلی لپاره دهغه حصه غله دی هم يواوښ باررا کړی شي، يوسف [عليه السلام ] اووئيل چه دادقانون نه خلاف ده که دهغه حصه پکاروي هغه دی راشي، خپله حصه دی واخلي،غرض ددوی حصه غله ئی دوی ته ورکړه]اوهرکله چه يوسف [عليه السلام ] ددوی سامان [دغلې] تيار کړو نو د تلوپه وخت کښې ورته وويل چه [که داغله خرڅ شی اودوباره دراتلواراده وکړئ نو]خپل پلارراوړی وروړهم[دځان سره]راولئ[چه هغه ته هم حصه ورکړی شي]تاسونه ګورئ چه څه پوره ناپ ورکوم اوزه دټولونه زيات ميلمه دوست يم [نوکه ستاسوهغه وروړراغی نوهغه ته به هم پوره برخه ورکړم اودهغه به هم ستاسوپه شان ښه خاطرداری او عزت اوکړم،غرض په راتلوکښې خوئې سراسرنفع ده]اوکه تاسو[بياراغلئ او]هغه مودځان سره رانه وستوځماخواته نو[زه به داوګڼړم چه تاسوماته دوکه راکوله غله موزياته اخيسته نوددی په سزاکښې به]نه څماسره ستاسودنوم غله وي اونه به تاسوماته راځئ [پس دده په نه راوستوکښې به دانقصان وي چه ستاسوحصه غله به هم وسوزی].

﴿قَالُوْا سَنُرَاوِدُ عَنْهُ اَبَاهُ وَاِنَّا لَفٰعِلُوْنَ۝﴾هغوی وويل[ګوره]مونږبه [دخپل ممکنه حده پورې خو]دی دپلارنه وغواړواومونږبه ددغه کار[کوشش اوخواست]خامخاکوو[باقي دپلار اختيار ئې دې].

﴿وَقَالَ لِفِتْيٰنِهِ اجْعَلُوْا بِضَاعَتَهُمْ فِيْ رِحَالِهِمْ لَعَلَّهُمْ يَعْرِفُوْنَهَاۤ اِذَا انْقَلَبُوْۤا اِلٰۤى اَهْلِهِمْ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ۝﴾

او [هر کله چه ددغه ځای نه روانیدل نو] یوسف [علیه السلام] خپلونوکرانوته وویل چه ددوی جمع پنګه یعنی سرمایه [دکومی په عوض کښی چه دوی غله اخیستی ده] ددوی په سامان کښی [پټه] کیږدئ ددی لپاره چه هرکله دوی کورته لاړشي نودابه [چه داسباب نه راوخي] وبه پیژني چه شاید دوئ احسان اوکرم ووینې] بیادوباره راشي [چونکه یوسف [علیه السلام] ته ددوی بیاراتلل او د ورور راوستل منظور وو په دی وجه ئی په څه جوړسره داتدبیر وکړو، اول ئی ورسره وعده وکړه چه که دی راولئ نودده حصه غله به درته هم میلاوشئ، دویمه ئی ورته سزاواوروله چه که دې موړانه وستلونوخپله حصه به هم بیانه مومئ، دویم قیمت ددغی چه نقدنه علاوه څه بل شی وو واپس ئی کړو، په دوه خیالونوسره، یوداچه دغه احسان اوکرم ووینې نو دوباره به راشي، دویم داچه شاید ددوی سره نورقیمت نه وي اوبیارانشي اوچه داقیمت ورسره وي نو واپس راتلی شي]

## معارف او مسائل

تیر شوؤ آیتونو کښې دابیان وو چې خالص د الله ﷻ په فضل سره یوسف علیه السلام ته د مصر ملك تبول اقتدار حاصل شوې وو، اوس په دې آیتونو کښې دابیان راغلي دې چې د یوسف علیه السلام لس رونړه مصر ته د غلې اخستلو دپاره راغلي وو، یولسم رور ئې ځان سر نه وو راوستې، کوم چې د یوسف علیه السلام خپل څکه رور وو.

ددې مینځ کښې نوې خبرې په تفصیل سره قرآن عظیم الشان کښې ځکه نه دی راغلی چې هغه پخپله ددې بیان شوؤ واقعاتو نه معلومیږی، ابن کثیر رحمه الله کوم تفصیل چې د تفسیر د امامانو ځینې د سدی رحمه الله اومحمد بن اسحاق رحمه الله په حواله بیان کړې دې[1] هغه د اسرائیلي روایتونو نه اخستې شوې دې، بیا هم د قبلولو ځکه دې چې د قرآن عظیم الشان په روانئ کښې دې طرف ته اشارې موجودې دی.

دغې د تفسیر امامانو فرمائیلي دی چې هر کله یوسف علیه السلام د مصر ملك وزیر شو نو د خوب د تعبیر په جوړ رومبنی اووۀ کاله ډیر د خوشحالئ او مزو وو، ښه پیداوار اوشو او په ډیر مقدار کښې د زیات پیداوار حاصلولو کوششونه اوکړې شو. دې پسې دخوب دویم ارخ داسې مخې ته راغلو چې سخته قاطی شوه او تر اووۀ کالو پورې جاری وه، هر کله چې یوسف علیه السلام دې ټولو حالاتو نه خبر وو ځکه ئې د قاطئ په رومبی کال کښې موجوده ذخیره ښه په احتیاط سره جمع کړه او ښۀ په حفاظت ئې کیخوده.

مصریانو دهغوئ دضرورت په جوړ رومبې نه غله خوندی کړې شوه کله چې قاطی په جوبن یعنی زور کښې شوه، د هر طرفنه مصر ته خلق راتلل شروع شو نو یوسف علیه السلام په یو خاص انداز کښې غله خرڅول شروع کړل. یعنی یو کس ته به ئې د یو اوبن نه زیاته غله نه ورکوله. امام قرطبی رحمه الله دهغې انداز یو وسق یعنی شپیته اوړی لیکلې ده. چې زمونږ په تول دوه سوه لس سیره یعنی پنځومنو نه څه زیات وزن جوړیږی.

د غلې دخرڅولو انتظام ئې پخپلې نګرانئ کښې کولو. دا قاطی یوازې په مصر کښې نه بلکه تر لرې لرې علاقو پورې خوره وه. د کنعان علاقه د فلسطین یوه حصه ده، د یعقوب علیه السلام وطن وو چې نن هم دالخلیل په نوم سره دیو رونقدار ښار په شکل کښې موجود دې، دغلته د ابراهیم علیه السلام، اسحاق علیه السلام، یعقوب علیه السلام او یوسف علیه السلام قبرونه مبارك موجود دی.

---

[1] تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ٤ص: ٣٩٧]

دا علاقه هم د قاطئ لاندې راغله ، د يعقوب ﷺ خاندان هم ددې په وجه بې آرامه شو ،دغلته معلومه شوه چې مصر کښې غله په بيعه ورکولې شي. يعقوب ﷺ ته هم معلوم شوی وو چې مصر بادشاه څوك نيك او رحم کوونکې سړې دې ، هر چاته غله ورکولو کښې څه ،منع نه کوي ځکه ئې خپلو ځامنو ته اووئيل چې تاسو هم لاړ شئ او مصر نه غله راوړئ.

هغوئ ﷺ ته دا هم معلومه شوې وه چې يو کس ته ديو اوښ د پيټي برابر غله ورکولې شي. ځکه ئې خپل لس ځامن مشران اوليږل ، کشر خوئې بنيامين ئې د خپلې تسلئ دپاره ځان سره پاتې کړو ، چې ديوسف ﷺ په غير موجودګئ سره هغوئ ﷺ ډير زيات غمژن وو.

دغه لس رونړه چې مصر ته اورسيدل نو يوسف ﷺ ئې په بادشاهي لباس کښې په بادشاهئ شان و شوکت سره استقبال اوکړو، رونړه ده لره د اوو کالو په عمر کښې په قافله والو باندې خرڅ کړې وو چې د هغه د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د روايت مطابق څلويښت کاله شوی وو.[ قرطبی ، مظهری].([1])

ښکاره خبره ده چې په دومره موده کښې د انسان شکل ، شباهت ، بدليږي ، دا خبره هم وه چې دهغوئ په ګمان کښې دا نه راتله چې زمونږ په بيعه خرڅ کړې رور به چرته وزير يا بادشاه جوړ شوې وی. په دې وجه رونړو يوسف ﷺ لره اونه پيژندو مګر يوسف ﷺ هغوئ اوپيژندل. لکه قرآن عظيم الشان فرمائی چې : ﴿فَعَرَفَهُمْ وَهُمْ لَهُ مُنْكِرُونَ ۝﴾[نو هغه اوپيژندل او هغوئ دې اونه پيژندې شو]

دا حالت ، ابن کثير رحمه الله دسدی په حواله داشان بيان کړې دې چې کله دا لس رونړه دربارته اورسيدل نو يوسف ﷺ د پوره معلومولو او اطمينان په غرض ترې داسې تپوسونه اوکړل ځنګه چې د مشتبهٔ خلقو نه کولې شی، اول تپوس ئې ترې دا اوکړو چې تاسو خلق خو د مصر ځکه نه يئ چې ژبه مو عبرانی ده. نو دلته ځنګه راورسيدئ. هغوئ ورته اووئيل چې زمونږ ملك کښې سخته قاطی ده ، مونږ ستاسو ﷺ صفت آوريدلې دې ، ځکه دغلې حاصلولو دپاره دلته راغلی. يو يوسف ﷺ ورته بيا اوفرمائيل چې په دې مونږ ځنګه اعتبار اوکړو چې تاسو رښتيا وايئ او تاسو د چا دښمن جاسوسان نه يئ. دغې ټولو رونړو اووئيل چې معاذ الله ! مونږ داسې هيچرې نشو کولې. مونږ خود الله ﷻ دهغې رسول يعقوب ﷺ ځامن يو چې په کنعان کښې اوسيږی.([2])

د يوسف ﷺ ددې ټولو تپوسونو مطلب دا وو چې حقيقت په ښه شان سره معلوم کړی او ټول واقعاتو نه ځان خبر کړی. يوسف ﷺ ترې تپوس اوکړو چې ستاسو د باباجی ﷺ نور اولاد هم شته ؟ هغوئ اووئيل چې مونږ ټول دولس رونړه وو ، يو کشر رور مو په ځنګل کښې ورك شو ، د باباجی ﷺ مې د ټولو نه زيات خوښ وو ، د هغه نه پس ئې د ټولو نه زياته مينه د هغه ځکه رور سره ده چې مونږ ټولو کښې کشر هم دې ، د خپلې تسلئ دپاره ئې ځان سره ساتی ، او هم په دې وجه ئې مونږ سره دلته هم نه دی راليږلی. يوسف ﷺ ددې خبرو په آوريدو سره حکم اوکړو چې د بادشاهی ميلمنو په حيثيت دې ددوئ د استوګنې بندوبست اوکړې شي. او د قاعدې مطابق دې غله ورکړې شی. غله به ئې د هر يو کس په سر د اوښ يو بار ورکولو

---

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۹ص:۲۲۰] و تفسير المظهری [ج:۵ص:۱۷٦]

[2]) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٤ص:۳۹۸]

دوباره به ئې هله ورکوله چې د قاعدې مطابق به هغه ختمه شوه . د یوسف ﷺ په زړه کښې دا جذبه راپورته شوه چې دوئ دې دلته بیا راشي . نو دې دپاره ئې یو انتظام داسې اوکړو چې پخپله ئې دغې رونړو ته اوفرمائیل چې :

﴿ائْتُونِي بِأَخٍ لَّكُم مِّنْ أَبِيكُمْ ۚ أَلَا تَرَوْنَ أَنِّي أُوفِي الْكَيْلَ وَأَنَا خَيْرُ الْمُنزِلِينَ ۝﴾ [چې تاسو د خپل پلار نه [میرنې] رور هم راوالئ آیا تاسو نه ګورئ چې زه پوره پیمانه ورکوم او ښه میلمستیا ورکوم].

بیا ئې ورته د زورنې په طور اووئیل چې :

﴿فَإِن لَّمْ تَأْتُونِي بِهِ فَلَا كَيْلَ لَكُمْ عِندِي وَلَا تَقْرَبُونِ ۝﴾ [که چرې تاسو هغه ماله رانه وستو نو تاسو ته به زما دطرفنه غله نه ملاویږی اونه به زما خوا ته رانزدې کیږئی]

بل پټ تدبیر ئې دا اوکړو چې خپلو کارکنانو ته ئې حکم اوکړو چې دغلې په قیمت کښې دوئ نه اخستې شوې نغدیت اوکالي وغیره ورته هم ددوئ په سامان کښې په پټه داسې کیږدئ چې دغه وخت ورته پته او نه لګی ، کورته په رسیدو چې دوئ دا ټول هر څه ترلاسه کړی نو دوباره به دلته راشي .

ابن کثیر رحمه الله د یوسف ﷺ په دې عمل کښې ګڼ احتمالونه بیان کړی دی .

① اول دا چې یوسف ﷺ ته دا خیال راغلو چې کیدې شي ددې نغدیت او کالو وغیره نه بغیر دوئ سره بل څه نه وی او غلې اخستو دپاره دوباره رانشی .

② بل احتمال دا هم کیدې شي چې دخپل باباجی ﷺ او رونړو نه ورته دغلې قیمت اخستل مناسب نه ښکاریدو ، د هغې قیمت ئې په سرکاری خزانه کښې دخپل جیب نه جمع کړو .

③ دریم احتمال دا هم کیدې شي چې هر کله یعقوب ﷺ دغه واپس کړې نغدیت وغیره اوګوری نود مصر خزانې امانت به ئې اوګنړی . دهغې واپس کولو دپاره به ئې بیا دلته راؤلیږی . ولې چې هغوئ ﷺ پیغمبر دی .[1]

بهر حال د یوسف ﷺ داټول تدبیرونه کول په دې غرض وو چې رونړه مې بیا بیا دلته راځی او کشر څکه رور سره مې ملاقات هم اوشی .

**مسئلې او فوائد:** د یوسف ﷺ ددې واقعې نه ددې روا والی معلوم شو چې کله په یو ملک کښې اقتصادی حالات تر دې حده پورې خراب شی چې د حکومت د انتظام کولو نه بغیر ډیر خلق د خپل ژوند د ضروریاتو نه د محرومه پاتې کیدو خطره وی ، نو حکومت داسې څیزونه پخپل انتظام او قبضه کښې اخستې شی ، اود غلې مناسب قیمت مقررولې شی ، څنګه چې د امت فقهاء کرامو دامسئله ښکاره کړې ده .

**د الله ﷻ په حکم باندې یوسف ﷺ خپل باباجی ﷺ دخپلو حالاتو نه نه خبرولو:** د یوسف ﷺ ددې واقعې نه ډیره حیرانتیا داسې راپورته کیږی چې یو طرفته ددوئ باباجی یعقوب ﷺ د الله ﷻ پیغمبر وو ، د یوسف ﷺ په جدائی کښې په ژړیدو ژړیدو نابینا شوې وو . یوسف ﷺ پخپله هم پیغمبر وو ، خپل باباجی یعقوب ﷺ سره ئې د فطری او طبعی محبت نه علاوه دهغوئ ﷺ ټول حقونه هم پیژندل ، لیکن په دې څلویښت کاله کښې چرې ورته هم خیال

[1] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ٤ص:٣٩٨]

رانغلو چې باباجي ﷺ مې په جدايئ کښې سخت غمژن دې ، سره ددې ئې د خپلو حالاتو او خيرت نه خبرول اونه غوښتل . کله چې مصر ته د غلام په حيثيت ور اورسيدو ، بيا د عزيز مصر په کور کښې خو ورته هر قسم آزادی او آسانی حاصله شوه ، دغه وخت خپل کور ته خپل خبر ورليږل څه گران نه وو. دغه شان د جيل په ژوند کښې دنيا پوهيږي چې تول خبرونه يو خوا بل خوا خوريږي خصوصا کله چې الله ﷻ په عزت سره د جيل نه خلاص کړو اود مصر ملك اقتدار ئې لاس ته راغلو نو پخپله تلل ددوئ دپاره پکار وو چې د بابا جي ﷺ په خدمت کښې ئې حاضری ورکړې وې . که د مصلحت په وجه ئې داسې نشو کولې نود قاصد په ذريعه د باباجي ﷺ تسلی کولو دپاره ددې خبر ليږل خو يوسف ﷺ دپاره معمولی خبره وه. خو د يوسف ﷺ نه چرته هم دا منقول نه دی چې يوسف ﷺ ددې اراده قدرې هم کړې وی. رونړه ئې په ښه شان اوپيژندل او بيا ئې هم بغير د خبر ليږلو نه همداسې رخصت کړل .

دا ټول حالات خو د يو معمولی انسان نه هم په تصور کښې نشی راتلې ، د الله ﷻ يو برگزيده بنده يعنی رسول ﷺ داسې څنگه اوکړل .

ددې حيرتناکې خاموشئ نه مې هميشه په زړه کښې دا جواب گرځيدو چې غالبا الله ﷻ دخپل حکمت بالغه په جوړ يوسف ﷺ لره ددې د ښکاره کولو نه منع کړې وی ، خو په تفسير قرطبی کښې راته دا ښکاره خبره معلومه شوه چې الله ﷻ يوسف ﷺ لره د وحی په ذريعه ددې نه منع کړې وو چې خپل کور ته څه خبر او نه ليږی .([1])

الله ﷻ پخپلو حکمتونو باندې پخپله پوهيږی ، انسان ددې احاطه چرته کولې شی ؟ کله څه څيز د چا پوهه کښې راشی ، دلته په ظاهره ددې حکمت دا معلوميږی چې په يعقوب ﷺ باندې امتحان مکمل کړې شی ، هم دغه وجه ده چې کله ددې واقعې په اول سر کښې يعقوب ﷺ ته دا اندازه اوشوه چې يوسف ﷺ لره ليوه يعنی شرمخ نه دې خوړلې بلکه رونړو ئې څه چل جوړ کړې دې . ددې طبعی تقاضا دا وه چې ځائې ته په رسيدو ئې ددې تحقيق کړې وې . ليکن الله ﷻ د هغوئ خيال هم ددې نه واړولو او بيا ډيره موده پس ئې خپلو ځامنو ته داهم اوفرمائيل چې لاړ شئ او د يوسف ﷺ او دهغوئ د رور لټون اوکړئ . کله چې الله ﷻ څه کار کول غواړی نو دهغې ټول اسباب هم داسې جمع کړی .

| رَجَعُوٓا | فَلَمَّا |
|---|---|
| واپس لاړل هغوئ | نوهر کله چې |

|نوکله چې هغوئ خپل پلار ته واپس اورسيدل|
|---|

| مَعَنَآ | فَاَرْسِلْ | الْكَيْلُ | مِنَّا | مُنِعَ | يٰٓاَبَانَا | قَالُوْا | اِلٰٓى اَبِيْهِمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| زمونږ سره | نو اوليږه | پيمانه | زمونږنه | منع کړې شوه | ائې پلاره زمونږ | نووې وئيل | پلار خپل ته |

|نو وې وئيل چې ائې زمونږ بابا جانه! په مونږ بيا د پاره غله بنده شوې ده زمونږ سره زمونږ رور|
|---|

[1] ) تفسير المظهری تحت هذه الآية [ج:۹ص:۲۲۲]

اَخَانَا نَكْتَلْ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ۝ قَالَ

رور زمونږ | چي پیمانه راوړو | او بیشکه مونږ | د ده | خامخا حفاظت کونکی یو | اووئیل یعقوب

اولیږه | چي غله راوړو | او مونږ به د هغهٔ حفاظت کوو | ..................یعقوب ﷺ اووئیل چي

هَلْ اٰمَنُكُمْ عَلَيْهِ اِلَّا كَمَآ اَمِنْتُكُمْ عَلٰٓى اَخِيْهِ

آیا اعتبار اوکړم په تاسو | په حق د دهٔ کښې | مګر هغسې | لکه چي | ما اعتبار کړې ووُ | په حق د رور د دهٔ کښې

ایا زه د دهٔ په باره کښې په تاسو باندې هغه شان اعتبار اوکړم | لکه چي له دې نه وړاندې مې د دهٔ د رور

مِنْ قَبْلُ ط فَاللّٰهُ خَيْرٌ حٰفِظًا ص وَّهُوَ اَرْحَمُ

مخکښې د دې نه | پس الله | بهتر دې | په لحاظ د حفاظت کولو سره | او هغهٔ | زیات رحم کونکې دې

[یوسف] په باره کښې درباندې کړې وو | بس هم الله ډیر ښهٔ محافظ دې | هغهٔ د ټولو نه زیات مهربان دې

الرّٰحِمِيْنَ۝ وَلَمَّا فَتَحُوْا مَتَاعَهُمْ وَجَدُوْا بِضَاعَتَهُمْ

د رحم کونکو نه | او هر کله چي | پرانستو هغوئ | سامان خپل | بیا موندو هغوئ | مال خپل

او هر کله چي هغوئ سامان پرانستو | نو خپل مال ئې بیا موندو | ......................کوم چي

رُدَّتْ اِلَيْهِمْ ط قَالُوْا يٰٓاَبَانَا مَا نَبْغِيْ ط هٰذِهٖ

چي واپس کړې شوې دې | هغوئ ته | اووئیل هغوئ | ائې پلاره زمونږ | څه غواړو مونږ | دا دې

ورته واپس شوې وو | هغوئ اووئیل چي ائې بابا! مونږ لا نور څه غواړو ؟ | ...........دا دې

بِضَاعَتُنَا رُدَّتْ اِلَيْنَا ج وَنَمِيْرُ اَهْلَنَا وَنَحْفَظُ

مال زمونږ | چي واپس کړې شوې دې | مونږ ته | او خوبه او غله به راوړو | بال بچ خپل ته | او حفاظت به کوو مونږ

زمونږ مال هم مونږ ته واپس شوې دې | او مونږ به د خپل کور والو د پاره نوره غله راوړو | او د خپل

اَخَانَا وَنَزْدَادُ كَيْلَ بَعِيْرٍ ط ذٰلِكَ كَيْلٌ يَّسِيْرٌ۝ قَالَ

د رور زمونږ | او زیات به راوړو | [بار] پیمانه | د اوښ | دا | پیمانه ده | آسانه | اووئیل یعقوب

رور به حفاظت کوؤ | او د یو اوښ بار به زیاتي راوړو | د یو اوښ غله به ډیره په آسانه ملاؤ شی | یعقوب ﷺ

لَنْ اُرْسِلَهٗ مَعَكُمْ حَتّٰى تُؤْتُوْنِ مَوْثِقًا مِّنَ اللّٰهِ

هرګز نهٔ لیږم زهٔ دې | تاسو سره | تر هغې پورې | چي راکړئ تاسو ماته | وعده محکمه | د الله په نوم

اووئیل | زهٔ به هیڅ کله دې تاسو سره اونهٔ لیږم | ترڅو چي ماته د الله ﷻ په نوم پوخ قول رانهٔ کړئ

لَتَاْتُنَّنِيْ بِهٖٓ اِلَّآ اَنْ يُّحَاطَ بِكُمْ ج فَلَمَّآ اٰتَوْهُ

چي خامخا به واپس راولئ ماته | دې | بغیر د دې نه | چي ګیر شئ تاسو | نو کله چي | ورکړه هغوئ هغهٔ ته

چي ماته به ئې خامخا واپس راولئ | البته دا چي تاسو ټول پخپله چرته راګیر شئ | نو هر کله چي هغوئ

مَوْثِقَهُمْ قَالَ اللّٰهُ عَلٰى مَا نَقُوْلُ وَكِيْلٌ۝

وعده محکمه خپله | نو اووئیل یعقوب | چي الله | په هغه څه | چي وایو مونږ | ضامن دې |

پوخ قول ورکړو | نو یعقوب ﷺ اوفرمائیل | چي مونږ څه وایو الله ﷻ د دې ضامن دې |

## آسان ترجمه قرآن

نو چه کله دوی خپل پلار ته واپس ورسیدل نو دوی اوئیل چه : باباجانه ! آئنده مونږ لره دغلې را کولو نه انکار شوي دي نو ته مونږ سره څمونږ ورور (بنیامین) اولیږه، دې دپاره چه مونږ (بیا) غله راوړو، او یقین وکړه چه مونږ به د هغه پوره پوره حفاظت کوؤ باباجان اوئیل چه :آیا مونږ د ده په باره کښې په تاسو باندې داسې اعتماد وکړو لکه چه ما دده د ورور (یوسف) په باره کښې هم په تاسو کړې وو ؟ خیر ! الله د ټولو نه زیات نګهبان دې اوهغه دټولو نه زیات رحم کونکې دې. او کله چه دوی خپل سامان کهلاؤ کړو نو دوی اوکتل چه د دوی مال هم دوی ته واپس کړې شوې دې، دوی اوئیل چه : باباجانه ! مونږ ته نور څه پکار دي ؟ دا څمونږ مال دې چه مونږ ته واپس شوې دې، او (دې ځل) مونږ به د خپل کور والؤ دپاره نوره غله راوړو او دخپل ورور به حفاظت کوؤ، او دیو اوخ بار به زیات راوړو (دغه شان) دا زیاته غله به ډیره په آسانۍ سره ملاؤ شي باباجان اوئیل چه: څه ده (بنیامین) لره تاسو سره تر هغه وخته پورې نه لیږم، تر څو چه تاسو ما سره دالله په نوم باندې دا وعده نه وي کړې چه دې به ضرور ما ته راولئ، مګر چه تاسو (واقعي) بې وسه شئ .نو چه کله دوی خپل پلار سره دا وعده وکړه نو پلار اوئیل: کوم څه چه مونږ وایو الله په هغې باندې نګهبان دې.

## خلاصه تفسير:

﴿فَلَمَّا رَجَعُوٓا اِلٰٓى اَبِيْهِمْ قَالُوْا يٰٓاَبَانَا مُنِعَ مِنَّا الْكَيْلُ فَاَرْسِلْ مَعَنَآ اَخَانَا نَكْتَلْ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ﴾ غرض هر کله چه واپس شو خپل پلار يعقوب[عليه السلام]ته ورسيدل وې وئيل اې پلاره[څمونږ ډير خاطر شويدی اوغله هم ميلاوشوی ده مګر دبنيامين حصه ميلاونۀ شوه آئنده هم مونږ بغير دبنيامين بوتلونه] څمونږ دپاره [مطلقا] دغلې بندش شويدی پس[پدی صورت کښې ضروري ده چه ]ته زمونږ ورور[بنيامين ]زمونږسره وليږه ددی لپاره چه [بياغلی راوړلونه کوم کارمانع دی هغه لرې شي او]مونږ[بيا]غله راوړواو[که چرې دده په ليږلوکښی تاته څه فکرمانع وي نوددی متعلق داعرض دی چه]مونږبه دده پوره حفاظت کوو.

﴿قَالَ هَلْ اٰمَنُكُمْ عَلَيْهِ اِلَّا كَمَآ اَمِنْتُكُمْ عَلٰٓى اَخِيْهِ مِنْ قَبْلُ ؕ فَاللّٰهُ خَيْرٌ حٰفِظًا ۪ وَّهُوَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ﴾ يعقوب[عليه السلام ]وفرمائل چه بس [پريدئ]زه دده په باره کښی هم په تاسوهغه شان اعتبارکوم څنګه چه مې دده نه مخکې دده دورور يوسف [عليه السلام ]په باره کښی په تاسواعتبارکړی وو [يعنی زړه څماخوګواهی نه کوي مګرتاسووائی چه بغيردده دتلونه به آئنده غله حاصل نشي او عادتا دژوند دارمدار په غله باندی دی اودژوندبچ کول فرض دي]پس [خيرکه بيائی ئی نو]الله [ته مې سپارلی دی هغه] دټولونه لوې نګهبان دی[څمادنګهبانی: نه هيڅ نه جوړيږي ]اوهغه دټولومهربانونه زيات مهربانه دی [څماپه محبت اوشفقت سره څه کيدې شي ].

﴿وَلَمَّا فَتَحُوْا مَتَاعَهُمْ وَجَدُوْا بِضَاعَتَهُمْ رُدَّتْ اِلَيْهِمْ ؕ قَالُوْا يٰٓاَبَانَا مَا نَبْغِيْ ؕ هٰذِهٖ بِضَاعَتُنَا رُدَّتْ اِلَيْنَا ۚ وَنَمِيْرُ اَهْلَنَا وَنَحْفَظُ اَخَانَا وَنَزْدَادُ كَيْلَ بَعِيْرٍ ؕ ذٰلِكَ كَيْلٌ يَّسِيْرٌ﴾ او[ددی خبری نه بعد]کله چه دوی خپل اسباب خلاص کړو[په دي کښی ]ددوی جمع پنګه [هم ]ميلاوشوه چه دوی ته واپس شوی وه اوونی ويل چه ای پلاره وګوره]مونږنورڅه غواړوداڅمونږه جمع پنګه هم مونږته واپس شويده [داسی مهربانه بادشاه دی اوددی نه زياته دنورڅه مهربانئ: انتظاربه کوودامهرباني بس ده نوپکارده چه دداسی مهربانه بادشاه خواته بيالاړشواوداڅمونږتلل دورور دبوتلونه بغيربی فائدی دی،په دي

وجه اجازت راکړه چه دی خان سره بوځو]اودخپل کوروالاپاره [نور] سامان راوړواودخپل وروربه ښه حفاظت کوواودیواوښ بارغله به نوره زیاته راوړو، [ځکه چه داوخت مونږخومره راوړی ده]دا خوله شان غله ده[زربه ختمه شي،بیابه نو ضرورت وي اوددی میلاویدل بغیر دده دتلونه نشي کیدي].

﴿قَالَ لَنْ أُرْسِلَهُ مَعَكُمْ حَتّٰى تُؤْتُونِ مَوْثِقًا مِّنَ اللّٰهِ لَتَأْتُنَّنِي بِهِۦٓ إِلَّآ أَن يُحَاطَ بِكُمْ ۖ فَلَمَّآ آتَوْهُ مَوْثِقَهُمْ قَالَ اللّٰهُ عَلٰى مَا نَقُولُ وَكِيلٌ۝﴾ یعقوب[علیه السلام ]وفرمائل چه[خیرپه دي حالت کښی دلیګلونه انکارنه کوم لیکن] تر څو پوري چه تاسوخلق دحفاظت قسم ونکړئ [ترهغه وخته پوري مجبوري ده چنانچه ټولوپه دی قسم اوکړلو] پس هرکله چه دوی قسم وکړوخپل پلارته ئی قول ورکړو نودوی وفرمائل چه مونږکومی خبری اتري کووداټول دالله تعالی په حواله دی[یعنی هغه زمونږدقول اواقرارګواه دی‌چه هغه ئی اوري اوهغه دی قول لره پوره کولي شي پس په دی وینا سره دوه غرضونه وشول یوهغوی ته دخپل قول دخیال ساتلوترغیب اوخبرداری چه دحاضرناظرالله تعالی په وړاندی داخبره کیږي،اودویم ددی تدبیرانجام تقدیر ته سپارل چه دتوکل نچوړدی،اوددی نه پس ئی بنیامین ته دتللواجازت ورکړو،خلاصه دا چه د مصر د سفرلپاره دوباره سره دبنیامین تیار شول] .

## معارف او مسائل

دې آیات مبارکوؤ کښې د واقعې پاتې حصه داسې بیان شوېده چې کله یوسف علیه السلام رونړو د مصر نه رالیږلې غله ئې کور ته راؤرسوله نو د مصر د حالاتو او واقعاتو بیان ئې خپل باباجی علیه السلام ته په دې شان بیان کړو چې عزیز مصر بیا دپاره زمونږ په غلې رالیږلو داشرط لګولې دې چې خپل کشر رور به ځان سره راولئ ګنی بالکل به غله نه درکوم.په دې وجه تاسو بیا مونږ سره بنیامین هم اولیږئ چې مونږ ته غله ملاؤ شي . اومونږ به ددې رور پوره حفاظت کوؤ . دۀ ته به هیڅ تکلیف نه وی . باباجی علیه السلام ورته اوفرمائیل چې ښۀ نو ، په تاسو باندې زۀ هغسې اعتبار اوکړم څنګه چې مې دربانديې ددۀ رور یوسف علیه السلام باره کښې کړې وو ؟ مطلب دا چې یو ځل بیا راسره دهوکه کوئی ؟

دا خو ددوئ دخبرو جواب شو مګر د خانداني ضرورت په خاطر ئې پیغمبرانه توکل او دا حقیقت اصلي اوګرځولو چې هیڅ فائده یا نقصان دبنده په لاس کښې نه دې کله چې د الله ﷻ خوښه او اراده نه وی . اوکله ئې چې اراده اوشی نو بیا هغې لره هیڅوك ایسارولې نشی ځکه چې مخلوق باندې تکیه کول هم غلط دی . او د دوئ په شکایتونو باندې څه معامله اډانړه کول هم مناسب نه دی . نو وې فرمائیل چې :

﴿فَاللّٰهُ خَيْرٌ حٰفِظًا ۖ﴾ [بس هم الله ډیر ښه محافظ دې] ﴿وَهُوَ أَرْحَمُ الرّٰحِمِينَ۝﴾[ هغه د ټولو نه زیات مهربان دې د رحم کونکو نه]. دهغه نه امید لرم چې هغه به زما په کمزورئ بوډاتوب ، په غم، خفګان نظر اوکړی غبرګ غمونه بۀ راباندې نه بار کوی.

خلاصه دا شوه چې یعقوب علیه السلام په ظاهری حالاتو او دخپل اولاد په لوظ قول باندې تکیه او نه کړه ، مګر د الله ﷻ په تکیه د کشر رور لیږلو ته هم تیار شو.

﴿وَلَمَّا فَتَحُوا مَتَاعَهُمْ وَجَدُوا بِضَاعَتَهُمْ رُدَّتْ إِلَيْهِمْ ۖ قَالُوا يَا أَبَانَا مَا نَبْغِي ۖ هٰذِهِ بِضَاعَتُنَا رُدَّتْ إِلَيْنَا ۖ وَنَمِيرُ أَهْلَنَا وَنَحْفَظُ أَخَانَا وَنَزْدَادُ كَيْلَ بَعِيرٍ ۖ ذٰلِكَ كَيْلٌ يَسِيرٌ۝﴾[یعنی تر اوسه پوري خو د یوسف علیه السلام د رورنړو د اولنئ

خبرې اترې د سفر د حالاتو بيانولو په دوران کښې وې . لا يې سامان نه وو پرانستې . دې څخه وروستو کله چې هغوئ سامان خپل پرانستو ، هغوئ هغه رقم هم چې کوم يې د غلې په قيمت کښې اداکړې وو د دوئ په مال کښې موجود وو . هغوئ دا محسوس کړه چې دا کار په غلطئ سره نه بلکه هغه په قصد سره مونږ ته مال واپس کړې دې ، په دې وجه يې ﴿رُدَّتْ إِلَيْنَا﴾ [زمونږ مال هم مونږ ته واپس شوې دې] اووئيل او بيا ئې باباجي ﷺ ته عرض اوکړو چې ﴿مَا نَبْغِيْ﴾ يعنی مونږ له نور څه پکار دی چې غله هم راغله او دهغې قيمت هم راواپس کړې شو اوس خو پکار دی چې رور ځان سره کړو او دوباره به په تسلئ سره هلته لاړ شو . ځکه معلوميږی چې عزيز مصر په مونږ زيات مهربان دې . هيڅ غم مو پاتې نشو . دخپلې کورنئ دپاره به غله راؤړو اودخپل رور به هم ښه حفاظت کوؤ ، د رور د حصې غله به هم په لاس راشی ولې چې زمونږ راؤړلې غله زمونږ خرڅ ته نشی پوره کيدې ، په څو ورځو کښې به ختمه شی .
د يوسف ﷺ ورونړو دا جمله اووئيله چې: ﴿مَا نَبْغِيْ﴾ ددې يو مفهوم خو هغه دې چې دا جمله کښې چې ما استفهاميه واخستې شی نو مطلب به ئې دغه وی کوم مو چې اوس بيان کړو او که ما نافيه واخستې شی نو باباجي ﷺ ته ئې دا اووئيل چې مطلب وو چې د نورې غلې راؤړلو دپاره مونږ تاسو نه نور قيمت نه غواړو . بس هم په دې باندې کار کيږی ، صرف د رور د بوتلو اجازت تاسو نه غواړو . باباجي ﷺ ئې دا خبرې واؤريدلې نو وې فرمائيل چې:
﴿لَنْ أُرْسِلَهُ مَعَكُمْ حَتَّى تُؤْتُوْنِ مَوْثِقًا مِّنَ اللّٰهِ لَتَأْتُنَّنِيْ بِهٖٓ﴾ [يعنی زه به هيڅ کله دې تاسو سره اونه ليږم ترڅو چې ماته دالله ﷻ په نوم پوخ قول رانه کړئ چې ماته به ئې خامخا واپس راولئ].
خو حقيقت ليدونکی خلق هر کله چې په دې پوهيږی چې که انسان هر څومره کوشش اوکړی او الله ﷻ ته منظور نه وی نو انسان ددغې لوظ دپوره کولو نه پاتې راځی البته صرف لوظ کولې شی ځکه ئې ورسره : ﴿إِلَّآ أَنْ يُّحَاطَ بِكُمْ﴾ [ البته دا چې تاسو ټول پخپله چرته راګير شئ] يوځائې کړو ، ددې مطلب د تفسير امام مجاهد رحمه الله دابيان کړو چې ① تاسو ټول هلاك شئ ② او قتاده رحمه الله دا مطلب بيان کړې دې چې تاسو ټول په ټوله پاتې او مغلوب راشئ .
﴿فَلَمَّآ اٰتَوْهُ مَوْثِقَهُمْ قَالَ اللّٰهُ عَلٰى مَا نَقُوْلُ وَكِيْلٌ﴾ [يعنی کله چې ځامنو يې په مطلوبه طريقه باندې وعده اوکړه ، يعنی ټولو قسمونه اوکړل او خپل پلار ته يې د اطمينان ورکولو دپاره چې کوم قسمونه مونږ کوؤ ، ددې ټولو بهروسه او معامله په الله تعالی باندې ده ، د هغه په توفيق سره يو کس د چا حفاظت کولې شی او خپله وعده پوره کولې شی . ګنی انسان خو بې بسه دې ، د هغه په ذاتی قبضه او قدرت کښې هيڅ نشته دې ]
**هدايتونه او مسائل** :: پدې آيتونو کښې انسان دپاره ډير څه هدايتونه اوحکمونه دی ، ياد لرل ئې پکار دی .

**که اولاد نه خطا اوشي نو ورسره دتعلق ختمولو په ځاني دهغوئ دسمی راوستو خيال او فکر کول پکار دی**

**ړومبې هدايت** :: د يوسف ﷺ د رونړو نه کومه اوله غلطی چې شوې وه هغه د ډيرو سختو ګناهونو مجموعه داسې وه چې اول :
باباجي ئې په دروغ وينا سره په دې باندې راضی کړو چې يوسف ﷺ دوئ سره ځنګل ته

اوليږی. ② په دروغه ئې ورسره لوظ اوکړو چې دهغې نه ئې غاړه اوړغړوله. ③ دغه ماشوم رور سره ئې ډيره بې رحمي اوکړه او سختي ئې پرې اوکړه. ④ دخپل ضعيف او بوډا باباجي عليه السلام د زړه آزارولو هيڅ پرواه ئې او نه کړه. ⑤ د يو بې ګناه انسان د وژلو منصوبه ئې جوړه کړه. ⑥ يو آزاد انسان ئې په زور ظلم سره خرڅ کړو.

دا ټول داسې سخت جرمونه وو چې کله يعقوب عليه السلام ته معلوم شو چې دوئ دروغ وئيلي دي او په قصد ئې يوسف عليه السلام دمخې نه لرې کړې دې نو په ظاهره ددې تقاضا دا وه چې هغوئ عليه السلام خپلو ځامنو سره تعلق ختم کړې وې يا ئې هغوئ ويستلي وې. خو يعقوب عليه السلام داسې اونه کړل. هغوئ هم هغه شان د خپل والد محترم خدمت کولو. تر دې چې هغوئ يې مصر ته د غلې راوړلو دپاره اوليږل او زياتی دا چې هغوئ ته بيا خپل پلار ته د خپل کشر رور متعلق د عرض کولو موقع ملاؤ شوه. او آخر يې دهغوئ خبره اومنله او خپل کشر زوې يې هغوئ ته حواله کړو.

دې نه معلومه شوه چې اولاد نه هر کله ګناه اوغلطي اوشي نو پکار دي چې پلار ئې د هغې د سمون راوستو کوشش اوکړي او تر څو چې ددې نه نااميده شوې نه وی نو تعلق ختمول او بيلتون دې ورسره نه کوی. څنګه چې يعقوب عليه السلام داسې اوکړل. په نتيجه کښې ئې هغوئ په خپلو کړو پښيمانه او توبه ګار کړل. البته کله چې د سمون راوستو نه بالکل نا اميده شي او په دې حالت کښې د نور چا د ديني ضرر خطره رابرسيره شي نو بيا ورسره تعلق ختمول زيات مناسب دی.

**دويم هدايت:** د هغه ښکلې معاملې او ښکلي اخلاق کولو دې دکومو چې يعقوب عليه السلام ننداري ورکړې يعني هغوئ سره د خپلو ځامنو د سختې ورانئ کولو باوجود خپلو دغه ځامنو سره داسې رويه کوله چې هغوئ دبل کشر رور ځان سره مصر ته د بوتلو دپاره ئې د خواست کولو زړورتيا اوکړه.

**دريم هدايت:** دا هم دې چې په داسې صورت کښې داصلاح کولو په غرض په ورانکاری بنده باندې خپله ورانکاری ضباطول هم مناسب دی چې ستاسو دمعاملې تقاضه خو دا وه چې ستاسو خبره دې اونه منلې شی، خو بيا هم مونږ پرې غم غرض اونه کړو چې تاسو په شرمنده کيدو سره ترې بالکل توبه ګار شئ، نو يعقوب عليه السلام پرې اول دا ضباطول چې ښه د بنيامين په باره کښې همدرباندې هغسې اعتبار اوکړم چې څنګه مې درباندې د يوسف عليه السلام باره کښې کړې وو. کله ئې چې په دې فرمائيلو او ضباطولو سره دهغوئ د غالبو خيالاتو نه دهغوئ پښيمانه کيدل او توبه ګار کيدل معلوم کړل نو په الله جل جلاله ئې توکل اوکړو او بنيامين ځوئې ئې هم ورسره بهر بوتلو دپاره پريخودو.

**څلورم هدايت:** دا دې چې د يو انسان په وعدې او حفاظت باندې په حقيقي ډول تکيه کول څکه غلط دی چې اصلي تکيه کول صرف په الله جل جلاله پکار دی ولې چې حقيقي کارساز او مسبب الاسباب هم هغه ذات دې. اسباب برابرول او بيا په هغې کښې تاثير ايخودل ټول دهغه په اختيار کښې دی. څکه خو يعقوب عليه السلام اوفرمائيل چې: ﴿فَاللّٰهُ خَيْرٌ حٰفِظًا﴾.

د کعب احبار قول دې چې هر کله دا ځل يعقوب عليه السلام يوازې دخپلو ځامنو په وينا باندې تکيه اونه کړه بلکه معامله ئې الله جل جلاله ته اوسپارله. څکه الله جل جلاله اوفرمائيل چې زما دې په خپل

ذات قسم وی چې زهٔ به تاسو ﷺ ته ستاسو دواړه خامن واپس راولم.

**پنځمه مسئله** :: داده چې هر کله په قوی نخښو اودليلونو سره دا ثابته شی چې د چا په سامان کښې راختلې څيز ورته مالك په قصد سره ايخودې دې ، نو بيا دغې څيز لره دغه موندونکې په خپل کار راوستې شی ، څنګه چې د يوسف ﷺ رونړو اوکړل او يعقوب ﷺ هم ورته ددغې څيز د واپس کولو هدايت اونه کړو خو هر کله چې شك شبه په کښې ښکاره شی چې دا څيز په غلطئ يا په هيره زمونږ سامان کښې راغلې دې نو تر څو چې دمالك نه ئې تحقيق او رښتينولی نه وی کړې دهغې استعمال جائز نه دې .

**شپږمه مسئله** :: داده چې هر چاته پدې شان قسم ورکول پکار نه دی چې دهغې پوره کول ئې په اختيار کښې نه وی لکه يعقوب ﷺ چې د بنيامين دصحيح سالم راوستو قسم ئې رونړو ته ورکړو مګر دا استثناء ئې ورسره اولګوله چې هله که تاسو ټول ددې نه بالکل بې وسه شئ يا ټول په ټوله هلاك شئ . دغه شان نبی کريم ﷺ چې دخپلو صحابه کرامو ﷺ نه د خپلې تابعدارئ کولولوظ واخستو نوپخپله يې په دې اطاعت مشروط کړو ، يعنی تر کومې چې زمونږ وس کښې وی ستا اطاعت به کوؤ .

**اووم مسئله** :: په کښې داده چې د يوې مقدمې ملزم دمقدمې تاريخ ته د حاضرولو ضمانت کول درست دی ، څنګه چې يعقوب ﷺ خپلو خامنو نه دا لوظ واخستو چې تاسو به بنيامين لره بيرته راولئ .

په دې مسئله کښې د امام مالك ﷫ اختلاف دې هغوئ وائی چې داسې ضمانت کول صرف د مال په باره کښې روا دی ، د يو انسان دخان يعنی دهغه د راوستو په باره کښې جائز نه دی .

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَقَالَ يٰبَنِيَّ | لَا تَدْخُلُوْا | مِنْۢ بَابٍ وَّاحِدٍ | وَّادْخُلُوْا | مِنْ اَبْوَابٍ | مُّتَفَرِّقَةٍ |
| او وې ويل اې زما خامنو | مهٔ ننوځئ | په دروازه يوه باندې | او ننوځئ | په دروازو | مختلفو باندې |

اوهغه اووئيل اې زما خامنو! تاسوهم د يوې دروازې نه [ښارته] مهٔ ورننوځئ | بلکه په جدا جدا دروازو داخل شئ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَآ اُغْنِيْ | عَنْكُمْ | مِّنَ اللّٰهِ | مِنْ شَيْءٍ | اِنِ الْحُكْمُ | اِلَّا | لِلّٰهِ |
| او نهٔ شم دفع کولې زهٔ | ستاسو نه | د حکم د الله نه | هيڅ څيز | نه دې حکم | مګر | الله لره دې |

اوزهٔ د الله ﷻ د څه فيصلې نه تاسو بچ کولې نهٔ شم | د هغهٔ نه بغير د بل هيڅا حکم نهٔ چليږی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَيْهِ | تَوَكَّلْتُ | وَعَلَيْهِ | فَلْيَتَوَكَّلِ | الْمُتَوَكِّلُوْنَ |
| په هغه باندې | بهروسه کړې ده ما | او هم په هغهٔ باندې | پکار دې چې توکل کوی | توکل کونکی خلق |

په هغه مې بهروسه ده | ..........او په هغه دې بهروسه کونکې بهروسه اوکړی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَمَّا | دَخَلُوْا | مِنْ حَيْثُ | اَمَرَهُمْ | اَبُوْهُمْ | مَا كَانَ |
| اوکله چې | ننوتل هغوئ | د هغه طرفنه | چې حکم کړې وو هغوئ ته | پلار د هغوئ | نهٔ وو |

اوکله چې هغوئ د هغه ځائې نه ورننوتل د کوم نه چې دوئ ته د دوئ پلار حکم کړې وو | دا الله ﷻ

يُغْنِيْ　عَنْهُمْ　مِّنَ اللّٰهِ　مِنْ شَيْءٍ　اِلَّا　حَاجَةً　فِيْ نَفْسِ　يَعْقُوْبَ

چې دفع کړې ئې وې | دهغوئ نه | دحکم دالله نه | څه څیز | مګر | دایو شك وؤ | په زړهٔ کښې | دیعقوب

په مقابله کښې هیڅ تدبیر هم دهغوئ په کار راتلې نشو | دا خو دیعقوب ﷺ په زړهٔ کښې یو ارمان وو

قَضٰىهَا ۗ　وَاِنَّهٗ　لَذُوْ عِلْمٍ　لِّمَا　عَلَّمْنٰهُ

چې ترسره ئې کړو | اوبیشکه هغهٔ | خامخا خاوند د علم وؤ | په سبب ددې | چې تعلیم ورکړې وؤمونږ هغهٔ ته

چې هغهٔ ئې پوره کړو | او هغهٔ د علم خاوند وو | څکه چې مونږ ورته علم ورکړې وو

٨ ع ٢

وَلٰكِنَّ　اَكْثَرَ　النَّاسِ　لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٦٨﴾　وَلَمَّا　دَخَلُوْا　عَلٰى يُوْسُفَ

خولیکن | زیات | د خلقو نه | نهٔ پوهیږي په حقیقت | اوهرکله چې | ورداخل شو | په یوسف باندې

خوزیات خلق په دې حقیقت نهٔ پوهیږي | اوکله چې هغوئ یوسف ﷺ ته ورغلل

اٰوٰى　اِلَيْهِ　اَخَاهُ　قَالَ　اِنِّيْٓ اَنَا اَخُوْكَ　فَلَا تَبْتَئِسْ

رانزدې ئې کړو | ځان ته | رور خپل | ورته ئې اووئیل | بیشکه زهٔ رور ستا یم | نومهٔ کوه غم ته

نوهغه خپل سکه رور ځان سره یوځائې کړو | اوورته ئې اووئیل چې هم زهٔ ستا رور [یوسف] یم | نو تهٔ

بِمَا　كَانُوْا　يَعْمَلُوْنَ ﴿٦٩﴾

په هغه کارونو | چې وؤ هغوئ | چې کول به یئ |

د دوی په کارونو مهٔ غمژن کیږه |

## آسان ترجمه قرآن

او (دې سره ئې دا هم) اووئیل چه: ځما بچو ا تاسو ټول په یو دروازه باندې (ښار ته) مه داخلیږئ بلکه د مختلفو دروازو نه داخل شئ، او څه تاسو د الله د ارادې نه نه شم بچ کولې حکم دالله نه علاوه د بل چا نه چلیږي په هغه باندې ما اعتماد کړې دې او چا لره چه اعتماد کول وي هغوی لره پکار دي چه په الله باندې اعتماد وکړي او چه کله هغوی (ورونړه) دغه شان (مصر ته) داخل شول لکه څنګه چه د دوی پلار وئیلي وو، نو دا عمل دوی لره د الله د مشیت نه لږ هم نه وو بچ کولې. لیکن د یعقوب علیه السلام په زړه کښې یو خواهش وو چه هغه ئې پوره کړو بې شکه هغه څمونږ د ښودلې شوي علم والا وو. لیکن اکثر خلق (د معاملې په حقیقت) نه پوهیږي او کله چه دا خلق یوسف ته ورسیدل نو هغه خپل (څکه) ورور (بنیامین) لره خپل ځان څخه ځائ ورکړو. او (هغه ته) ئې اوئیل چه څه ستا ورور یم. نو ته په دې خبرو مه خفه کیږه کومې چه دا (نور ورونړه) کوي.

## خلاصه تفسیر:

﴿وَقَالَ يٰبَنِيَّ لَا تَدْخُلُوْا مِنْۢ بَابٍ وَّاحِدٍ وَّادْخُلُوْا مِنْ اَبْوَابٍ مُّتَفَرِّقَةٍ ۭ وَمَآ اُغْنِيْ عَنْكُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ ۭ اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا لِلّٰهِ ۭ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ ۚ وَعَلَيْهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُوْنَ ﴿٦٧﴾﴾ او[دتلوبه وخت] یعقوب[عليه السلام] [دوی ته وفرمائل ای خمازامنو[هرکله چه مصرته ورسیږئ نو]ټول په یودروازه مه ځئ بلکه په جداجدادروازولاړشئ او[دامحض یوظاهري تدبیردی دبعضوبدوخبرومثلابدنظروغیره نه دبچ کیدو،باقي][دخدای

حکم څه ستاسونه نشم منع کولې چې حکم فقط دالله [چلیدونکی] دی [سره ددی ظاهر تدبیرنه په زړه سره] په هغه بروسه لرم اوپه هغه بروسه لرونکوته بروسه ساتل پکاردي [یعني تاسوهم په هغه بروسه کوئ په تدبیر نظر مکوئ، غرض ټول رخصت شول لاړل].

﴿وَلَمَّا دَخَلُوا مِنْ حَيْثُ أَمَرَهُمْ أَبُوهُمْ مَا كَانَ يُغْنِي عَنْهُمْ مِنَ اللَّهِ مِنْ شَيْءٍ إِلَّا حَاجَةً فِي نَفْسِ يَعْقُوبَ قَضَاهَا وَإِنَّهُ لَذُو عِلْمٍ لِمَا عَلَّمْنَاهُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ﴾ اوهر کله چه مصرته ورسیدل څنګه چه پلاروورته ویلي وو هغه شان [ښارته] داخل شول د پلار ارمان یئ پوره شو [باقي] ددوی دپلار په دي تدبیرخودلو] ددوئ نه دخدای حکم حصارول مقصودنه وو [ددی لپاره چه په دوی دڅه قسم نه اعتراض یاددی تدبیرپه نفع نه ورکولوسره په دوی شبهه لازمه شي چنانچه پخپله دوی فرمائیلي وو: وَمَا أُغْنِي عَنْكُمْ مِنَ اللَّهِ مِنْ شَيْءٍ: لیکن د یعقوب [علیه السلام] په زړه کښي [په درجه د تدبیر کښي] یو ارمان [راغلی] وو کوم لره چه دوی ظاهرکړو اودی بیشکه لوی عالم وو پدي وجه چه مونږ دوی ته علم ورکړی وو [ده دعلم خلاف تدبیر لره په عقیده کښي حقیقي اثرکونکی کله ګڼرلي شوصرف ددی وینا وجه عملا دغه دیوتدبیرکول ووکوم چه جائزاوغوره دی] لیکن اکثرخلق ددی علم نلري بلکه په ناپوهئ سره تدبیرلره حقیقي اثرکونکی ګڼري په عقیده کښې]

﴿وَلَمَّا دَخَلُوا عَلَىٰ يُوسُفَ آوَىٰ إِلَيْهِ أَخَاهُ قَالَ إِنِّي أَنَا أَخُوكَ فَلَا تَبْتَئِسْ بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ اوهر کله چه داخلق [یعنی د یوسف [علیه السلام] ورڼره] یوسف [علیه السلام] ته ورسیدل اوبنیامین ئی ورته پیش کړواوونی ویل چه مونږستادحکم مطابق ده لره راوستو] هغه خپل وروږخپل خان ته راوبللواویواځې ئی ده ته] وویل چه څه ستا ورور یوسف [علیه السلام] یم پس دي خلقوچه څه [بدسلوکی] کړی دی ددی غم مکوه څکه چه اوس مونږالله تعالی میلاوکړواوس ټول غم هیرول پکاردي، د یوسف [علیه السلام] سره بدسلوکی خوظاهره اومشهوره ده، پاتی شوه دبنیامین سره، پس یاخوده ته به ئی هم څه تکلیف رسولی وي [ورنه د یوسف [علیه السلام] جدائی څه دده په حق کښي کم تکلیف وه، بیا دواړو رونړو مشوره وکړه چه داسي صورت پکاردی چه بنیامین د یوسف [علیه السلام] سره پاتی شي څکه چه که دغسی بی وجه پاتی کیږي نو رونړو دپلارسره قسم کړی دی دوی به ئی نه پریږدي اوناحقه جګړه به جوړه شي، اوبیا که وجه هم ظاهره شي څه چه که دغسي بی وجي ایساریږي نورازبه ښکاره شي اوکه رازپټ پاتی شي نود یعقوب [علیه السلام] غم به زیات شي چه بی دڅه وجی نه ولی پاتی کړی شي. یوسف [علیه السلام] اوفرمائیل چه تدبیر خوشته مګرلږستابدنامی ده، بنیامین وویل چه هیڅ پروانشته، غرض په دوی کښی داخبره مقرره شوه اوبل خواټولوته ئی غله ورکړه ددوی درخصت کولوسامان ئی برابرکړو]۔

## معارف او مسائل

دي آیتونو کښې مصر ته د دویم ځلی سفر کولو داسې بیان دې چې د یوسف علیه السلام رونړو څان سره خپل کشر رور هم په دې سفر کښې شریک کړې وو. په سفر د تلوپه وخت ورته باباجی علیه السلام داسې وصیت اوفرمائیل چې کله د مصر په ښار داخلیږی نو یولس واړه رونړه دښار په یوه دروازه مه داخلیږئ چې کله دښار قلعه ته نزدې شئ نوخپل مینځ کښې مشوره اوکړئ او دښار په بیلو بیلو دروازو داخل شئ.

ددې وجه دا وه چې ټول ځوانان، روغ جوړ، دښکلی بدن، ښکلی شکل د لوړ قد خاوندان او مخوریز خلق وو هسې نه چې د خلقو ورته خیال شی اوبد نظر پرې اولګی. اوهغې نه ورته

تکلیف اورسی. یا داسې چې په یو ځائې ورننوتلو سره پرې څوك حسد اوكړي او تكليف ورته اورسوی.

د اوصیت ئې ورته د رومبی سفر په موقعه ځکه نه وو کړې چې هغه وخت د مسافرو په شان مصر ته ورغلی وو. چا دوئ لره نه پیژندل اونه دوئ ته د خلقو پوره خیال کیدو خطره کیدې شوه ، خو هر كله چې په رومبی سفر کښې مصریانو د دوئ غټ قدر ، خاطر كړې وو، باشاهی درباریانو او عامو خلقو په ښه شان سره پیژندل ځکه دا خطره مضبوطه شوه چې د چا بد نظر پرې اونه لګی ، يا څه خلق ئې رعبداره ډله او نه ګنړی ، او ورسره د حسد کولو په وجه تکلیف اونه رسوی. بله خبره دا وه چې دا ځل ورسره بنیا مین هم وو چې د يوسف ﷺ نه پس ورسره د باباجی ﷺ ډيره زياته مينه وه ، ځکه ورسره دا فكر ملګرې شو.

**د بد نظر اثر حق دې** :: دې نه معلومه شوه چې د انسان نظر لګیدلې اودې سره انسان ، ځناور یا بل څيز ته تكليف او نقصان رسيدل حق دی ، دا خالص د جاهلانه خيال يا وهم نه دې. ځکه چې يعقوب ﷺ سره ددې خبرې فكر شو.

نبی کریم ﷺ ددې تصديق دا شان کړې دې چې بد نظر لګیدل یو انسان لره قبر او اوښ لره كټوئ ته رسوی.(۱) هم دغه وجه ده چې نبی کریم ﷺ ددې نه پخپله هم پناه غوښتې ده او خپل امت ته ئې هم ددې نه دپناه غوښتلو خودنه کړې ده ، چې هغې کښې فرمائی: ﴿من كل عين لامة﴾ هم مذکور دی یعنی[زۀ پناه غوارم د بد نظر نه] [قرطبی].(۲)

صحابه کرامو ﷺ کښې د ابی سهل بن حنیف ﷺ واقعه داسې مشهوره ده چې هغوئ ﷺ د غسل كولو په غرض يو ځل خپلې جامې اوښکلې نو د هغوئ ﷺ په سپین رنګ ، روغ جوړ بدن باندې دعامر بن ربیعه نظر پریوتو. د خلې نه ئې دا خبره راووته چې ما خو تر ننه پورې داسې ښكلې بدن د هیچا نه دې لیدلې.

دې وئیلو سره سمدستی سهل بن حنیف ﷺ باندې سخته تبه راغله ، كله چې نبی کریم ﷺ پدې خبر شو نو رسول کریم ﷺ دا علاج تجویز کړو چې عامر بن ربیعه ته ئې داوس کولو حکم اوکړو .ددغې اوبو راجمع كولو او د سهل بن حنیف ﷺ په بدن باندې د هغې د اچولو حکم ئې اوفرمائیلو. داشان کولو سره تبه ئې سمدستی ښه شوه. هغوئ ﷺ بیخی جك جوړ شوې او نبی کریم ﷺ سره په هغې کاررووان شوکوم دپاره ئې چې قصد کړې وو ، په دې واقعه کښې عامر بن ربیعه ته ئې داخبردارې هم ورکړو چې:

﴿علامه يقتل احدكم اخاه الا بركت ان العين حق﴾(۳)[ په څه وجه څوك خپل مسلمان رور لره وژنی؟ داسې دې ولې نه كول چې بدن ئې درته ښكاره شو نو دنظر کولو په ځائې دې ورته دبركت دعا ولې نه كوله؟]

---

(۱) كنز العمال رقم الحديث [۱۷۶۶۰]

(۲) تفسير القرطبي [ ج:۹ص:۲۲۶]و صحيح البخاری كتاب الأنبياء باب قول الله تعالى (وَاتَّخَذَ اللَّهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا) [ج:۱ص:۴۷۳]

(۳) موطا مالك، كتاب الجامع . باب الوضوء من العين، رقم الحديث[۱۴۷۱]

دي حديث پاك نه داهم معلوم شوچې چاته دبل چا ځان يا مال ډير غوره ښكاره شي نو پكار دي چې هغه دپاره دا دعا اوغواړي چې [ الله ﷻ دې په كښې بركت واچوي].
ځيني روايتونو كښې راغلي دي چې دغه وخت دې ﴿ماشآء الله لا قوة الا بالله﴾ وائي ددغې بد نظر به بالكل ختم شي .(۱) او داهم معلومه شوه چې دنظر د خاوند په بدن باندې استعمال شوې اوبه دهغه چا په بدن باندې اچولو سره د نظر اثر لرې كوي په چا چې نظر لګيدلې وي.
امام قرطبي رحمه الله فرمائيلي دي چې د ټول امت داهل سنت والجماعت دعلماء كرامو پدې باندې اتفاق دې چې بد نظر لګيدل او ددې په وجه نقصان رسيدل حق دي .(۲) يعقوب عليه السلام د بدنظر لګيدو يا د حاسدانو دحسد راتلو انديښني نه خپل اولاد ته دا وصيت اوكړو چې ټول دې په يو ځائې دښار په يوه دروازه نه داخليږئ. بل طرفته ته ئې دا حقيقت ښكاره كول هم ضروري اوګڼرل چې د نظر بد تاثير كول د انسان په ځان مال كښې يو قسم مسمريزم دې او هغه هم بس داسې دي لكه يو مضره دوا يا غذا چې انسان لره بيمار كړي ، داشان د ګرمي يخنې څخه بيمارياني پيدا كيږي ، داشان بد نظري يا ممسريزم تصرفات هم دهغه اسباب عاديه څخه دي چې د نظر يا دخيال او دقوت څخه هغه آثار ښكاره په هغو كښې پخپله څه تاثير حقيقت نه وي بلكه اثرات ئې خالص د الله ﷻ په اراده او قدرت كامله سره د انسان د نظر يا دخيال د قوت مطابق ښكاره كيږي . ولې چې د تقدير الهى په مقابله كښې نه خو څه مفيد تدبير فائده وركولې شي او نه ضرري تدبير اثر پيدا كولې شي ځكه ئې اوفرمائيل چې :﴿وَمَآ أُغْنِيْ عَنْكُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ ۖ اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا لِلّٰهِ ۖ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ ۚ وَعَلَيْهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُوْنَ﴾[ اوزه دالله ﷻ د څه فيصلې نه تاسو بچ كولې نه شم د هغه نه بغير د بل هيچا حكم نه چليږي په هغه مې بهروسه ده اوپه هغه دې بهروسه كونكي بهروسه اوكړي].
يعقوب عليه السلام چې كوم حقيقت ښكاره كړې وو، اتفاقا هم هغسې اوشول ولې چې سره ددغې ټولو تدبيرونو مكمل كولو د بنيامين په بيرته راوستلو كښې مشكلات پيداشو. او هغه په مصر كښې ايسار كړې شو. د هغې په نتيجه كښې يعقوب عليه السلام ته يو بل تكليف ملاؤ شو.
راتلونكې آيت مبارك كښې چې د تدبير ناكام كيدل په ډاګه بيان شوي دي دهغې مقصد هم دادې چې د اصل مقصد په لحاظ سره ئې تدبير ناكام شو. اګر چې د بد نظر يا دحسد نه دبچ كيدو تدبير كامياب شو. ولې چې په دغې سفر كښې دغسې څۀ واقعه راپيښه نه شوه . مګر د الله ﷻ په تقدير سره چې كومه حادثه راپښيدونكې وه هغې ته د يعقوب عليه السلام نظر ورنغلو او نه ئې دهغې دپاره څه تدبير اوكړې شو. مګر ددې ظاهري ناكامئ باوجود دهغوئ عليه السلام د توكل په بركت سره دادويمه صدمه د ړومبئ صدمې هم علاج ثابت شو. او ډير په خوشحالئ او عزت سره يوسف عليه السلام اوبنيامين سره ملاقات اوشو.
دا مضمون په وروسې آيت مبارك كښې داشان بيان شوې دې چې ځامنو دخپل باباجي عليه السلام په حكم عمل اوكړو ،دښار په بيلوبيلو دروازو مصر ته داخل شو. دپلار ارمان ئې پوره شو. دهغوئ عليه السلام دې تدبير د الله ﷻ څه حكم نه شو ايسارولې،ولې چې ديعقوب عليه السلام د پلارولئ

(۱) شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث [۴۲۰۰]
(۲) تفسير القرطبي [ ج:۹ص:۲۲۶]

د شفقت او محبت غوښتنه وه چې هغوئ پوره کړه.

﴿وَإِنَّهُ لَذُو عِلْمٍ لِّمَا عَلَّمْنَاهُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ﴾ [او هغه د علم خاوند وو ځکه چې مونږ ورته علم ورکړې وو خوزيات خلق په دې حقيقت نه پوهيږي] مطلب دادې چې دعامو خلقو په شان د هغوئ ﷺ علم کتابي او استاذي نه وو، بلکه نيغ په نيغه د الله ﷻ ورکړې شوې وو. په دې وجه هغوئ ﷺ ظاهري تدبير چې په شريعت کښې روا او ستائيلې شوې دې هغه ئې اوکړو. خو تاکيد ئې په هغې اونه کړو، ليکن سره ددې نه اکثر خلق په دې حقيقت نه پوهيږي، اود ناخبرئ په وجه د يعقوب ﷺ باره کښې په داسې شبهو کښې اخته کيږي او دا ګڼړي چې دغه تدبيرونه کول د پيغمبر دشان سره نه ښائي.

ځينې مفسرينو فرمائيلي دي چې د رومبي علم نه مراد د علم په مقتضا باندې عمل کول دي. مطلب دا شو چې زمونږ په وربخښلي علم باندې هغوئ ﷺ عمل کوونکي او دهغې پابند وو، ځکه ئې په ظاهري تدبيرونو تکيه او نه کړه بلکه صرف په الله ﷻ باندې ئې اوکړه.

﴿وَلَمَّا دَخَلُوا عَلَىٰ يُوسُفَ آوَىٰ إِلَيْهِ أَخَاهُ قَالَ إِنِّي أَنَا أَخُوكَ فَلَا تَبْتَئِسْ بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ [يعني کله چې هغوئ مصر ښار ته اورسيدل او ټول يوسف ﷺ په دربار کښې حاضر شو او هغه اوليدل چې دوئ د وعدې م مطابق د هغوئ حقيقي رور هم ځان سره راوستې دې نو يوسف ﷺ خپل ځکه رور ځان سره يوځائې کړواوورته ئې اووئيل چې هم زه ستا رور [يوسف] يم نو ته د دوی په کارونو مه غمژن کيږه].

دتفسير امام قتاده رحمه الله فرمائيلي دي چې يوسف ﷺ دغلته خپل رونړه چې ځان سره ميلمانه کړل نو دوه دوه ئې په يوه يوه کمره کښې مقيم کړل چې بنيامين ځان له پاتې شو نو هغه ئې ځان سره پخپلې خاص کمره کښې ايسار کړو. چې بالکل يوازې شو نو بنيامين ته ئې راز ښکاره کړو. او ورته ئې اوفرمائيل چې زۀ ستا ځکه رور يوسف ﷺ يم، هيڅ فکرمه کوه.

## حکمونه او مسائل

ددې دوؤ آيتونو مبارکو نه څو مسائل او احکام معلوم شو:

**اول:** اول دا چې بد نظر لګيدل حق دی. دې نه علاوه د ځان ساتلو تدبير کول داشان جائز بلکه غوره دي څنګه چې ضرري غذاګانې او ضرري کارونو نه د ځان ساتلو تدبير کول جائز بلکه غوره دي.

**دوېم:** دويمه دا چې د خلقو د حسد نه د ځان ساتلو دپاره خپل مخصوص نعمتونه او صفات دخلقو نه پټول صحيح دي.

**درېم:** دريمه دا چې ضرري اثراتو نه دځان ساتلو په غرض ظاهري او مادي تدبيرونه کول د توکل او د انبياء کرامو ﷺ د شان نه خلاف نه دي.

**څلورم:** څلورمه دا چې بل چاله د انديښنې او خطرې د څيز نه خبرول بلکه دهغې نه د ځان ساتلو تدبير ورته خودل غوره دي. څنګه چې يعقوب ﷺ اوکړل.

**پنځم:** پنځم دا چې يو کس ته د بل چا څه کمال يا نعمت ښکلې او حيرتناك ښکاره شي او هغه ته د بد نظر لګيدو خطره وي، نو په هغه واجب دي چې دغه وخت دهغې په ليدو سره بارك الله يا ماشاء الله اووائي دپاره ددې چې هغه بل ته څه تکليف اونه رسي.

**شپږم:** شپږمه دا چې د هر بد نظر نه د ځان ساتلو هر هغه تدبیر او انتظام کول روا دی کوم ئې چې په وس کښې وی ، دهغې یو تدبیر داهم دې چې په څه دعا یا تعویذ وغیره سره ئې علاج اوکړې شی ، ولې چې هر کله رسول کریم ﷺ د جعفر بن ابی طالب دوه ځامن کمزوری اولیدل نو ددې اجازت ئې ورکړو چې په تعویذ وغیره سره دې ددوئ علاج اوکړې شی .(۱)

**اووم:** اوومه دا چې د هوښیار مسلمان کار دادې چې په هر کار کښې اصل تکیه خو په الله ﷻ لری لیکن ظاهری او مادی اسباب دې هم شاته نه غورځوی ، څومره جائز اسباب چې ددې مقصد په حاصلولو کښې دهٔ د وس لاندې وی د هغې په کار راوستو دې هیڅ صرفه نه کوی څنګه چې یعقوب ؑ اوکړل . او رسول کریم ﷺ هم ددې تعلیم ورکړې دې(۲) لکه دانائے روم اوفرمائیل چې : باتوکل زانوئے اشتر به بند

[توکل سره سره د اوښ ګوډې هم اوتړه ] چې هم دا پیغمبری توکل او سنت رسول دې .

**اتم:** اتمه دا چې دلته دا سوال پیدا کیږی چې یوسف ؑ د خپل څکه کشر رور د رابللو دپاره هم کوشش او تاکید اوکړو او د هغه په رارسیدو ئې ورته خپل راز هم ښکاره کړو لیکن نه خوئې د خپل باباجی ؑ د رابللو فکر اوکړو او نه ئې د هغوئ دخبرولو څه بندوبست اوکړو . ددې وجه هم هغه وه کومه چې مونږ بیان کړې ده یعنی په دې خلویښت کاله کښې د هغوئ دخبرولو ډیر موقعې یوسف ؑ خبر کړې وې ، لیکن د وحی په اشاره سره دا یو تقدیری حکم وو چې الله ﷻ ئې په دې شان سره کامل کول غوښتل چې د بنیامین جدائی هم ورته راپیښ شی په هغې باندې د صبر کولو اجر ورته نور هم زیات کړې شی .

| |
|---|
| فَلَمَّا جَهَّزَهُمْ |
| نوهر کله چې \| تیار کړو یوسف هغوئ د پاره |
| ..... کله چې ئې د هغوئ سامان تیار کړو |
| بِجَهَازِهِمْ جَعَلَ السِّقَايَةَ فِي رَحْلِ أَخِيهِ ثُمَّ أَذَّنَ |
| سامان دسفرد هغوئ \| نوکیښودو هغهٔ \| الوښې د څښلو \| په بار کښې \| درورخپل \| بیا آواز اوکړو |
| نوخپله پیاله ئې د خپل سکه رور په سامان کښې کیښوده \| بیا یو آواز کونکی آواز اوکړو |
| مُؤَذِّنٌ أَيَّتُهَا الْعِيرُ إِنَّكُمْ لَسَارِقُونَ ۝ قَالُوا |
| یو آواز کونکی \| ائې \| دقافلې خلقو \| بیشکه تاسو \| خامخا غلهٔ یئ \| اووئیل هغوئ |
| چې ائې د قافلې خلقو ! تاسو غلهٔ یئ \| ..................هغوئ اووئیل |

(۱) موطا مالك، كتاب الجامع . باب الرقية : رقم الحديث[۱۴۷۳]
(۲) هم دا شان مضمون والا یوحدیث جامع ترمذی کښې هم موجود دې.ابواب صفة القیامة باب [ج:۲ص:۷۸]

وَاَقْبَلُوْا عَلَيْهِمْ مَّا ذَا تَفْقِدُوْنَ۝ قَالُوْا نَفْقِدُ

اومخونه ئې راواړول | په هغوئ | څه څیز | ورک شوي دي ستاسونه |اووئیل هغوئ | اورکه ده زمونږ نه

او مخونه ئې ورپسې راواړول | ستاسونه څه ورک شوی دی | ........هغوئ اووئیل زمونږ نه د

صُوَاعَ الْمَلِكِ وَلِمَنْ جَآءَ بِهٖ حِمْلُ بَعِيْرٍ وَّاَنَا بِهٖ زَعِيْمٌ۝

پیمانه | د بادشاه | اودې دپاره دهغه چا | چې رائې وړوهغه | بار | د اوښ |او زهٔ | په دې | ذمه واریم

بادشاه پیمانه اورکه شوې ده | اوچا چې راپیدا کړه هغهٔ د پاره د اوښ یوبار[غله] انعام دې|او زهٔ ددې ذمه واریم

قَالُوْا تَاللّٰهِ لَقَدْ عَلِمْتُمْ مَّا جِئْنَا لِنُفْسِدَ

اووئیل هغوئ|قسم په الله|په تحقیق سره تاسو ته ښهٔ معلومه ده| چې نهٔ یوراغلی مونږ |دپاره ددې چې فساد اوکړو

هغوئ اووئیل چې په الله ﷻ قسم تاسو ته معلومه ده | چې مونږ دې وطن ته د فساد دپاره نهٔ یوراغلی

فِي الْاَرْضِ وَمَا كُنَّا سٰرِقِيْنَ۝ قَالُوْا فَمَا جَزَآؤُهٗ اِنْ كُنْتُمْ

په زمکه کښې | اونهٔ یو مونږ | غلاکونکو | اووئیل هغوئ | نوڅه ده سزا د هغه | که وئ تاسو

اونهٔ مونږ غلهٔ یو|.......... هغوئ اووئیل که چرې تاسو دروغژن ثابت شوئ | نوبیا به د هغه

كٰذِبِيْنَ۝ قَالُوْا جَزَآؤُهٗ مَنْ وُّجِدَ فِيْ رَحْلِهٖ

دروغژن | اووئیل هغوئ | سزا د هغهٔ[دا ده] | هغه څوک | چې بیاموندې شو څیز | په بار د هغه کښې

څه سزا وی | هغوئ اووئیل چې د هغهٔ سزا دا ده | چې د چا په سامان کښې پیمانه راوخته نوهم هغهٔ

فَهُوَ جَزَآؤُهٗ ط كَذٰلِكَ نَجْزِي الظّٰلِمِيْنَ۝ فَبَدَاَ

نوهم هغه[سړې] | د دې بدله ده | دارنګې | بدله ورکوو مونږ | ظالمانوته | نو شروع اوکړه یوسف

دې د غلا په بدله کښې ایسارکړې شی|مونږ ظالمانو ته هم دغه شان سزا ورکوو | نو دخپل رور

بِاَوْعِيَتِهِمْ قَبْلَ وِعَآءِ اَخِيْهِ ثُمَّ اسْتَخْرَجَهَا مِنْ وِّعَآءِ اَخِيْهِ ط

په بارونو د هغوئ| مخکښې | د بار |د رور خپل نه| بیا | راوویستله هغه پیاله| د بارنه | د رور خپل

دبورئ نه وړاندې ئې د هغوئ د بورئ [تلاشی] شروع کړه |بیائې دخپل [سکه]رور دبورئ نه[پیالئ] راوښکله

كَذٰلِكَ كِدْنَا لِيُوْسُفَ ط مَا كَانَ لِيَاْخُذَ اَخَاهُ فِيْ دِيْنِ الْمَلِكِ

دارنګې| تدبیراوښودو مونږ| یوسف ته| نهٔ وهٔ هغهٔ | چې نیولې نی وې| رورخپل| په دین کښې|د بادشاه

دغه شان مونږ یوسف علیه السلام د پاره تدبیر اوکړو | هغهٔ خپل رور د بادشاه[مصر] په قانون کښې اخستې نهٔ شو

اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ ط نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ ط وَفَوْقَ

بغیر ددې نه | چې اوغواړی | الله | پورته کوؤ مونږ | درجې | دهغه چا | چې اوغواړو مونږ | او د پاسه

مګردا چې الله ﷻ ته منظوره وه | مونږ چې د چا درجې اوچتول اوغواړو اوچتې ئې کړو | او د هر

| كُلِّ ذِيْ عِلْمٍ عَلِيْمٌ ۝ |
| --- |
| دهرخاوندعلم \|اوچت علم والاشته\| |
| عالم دپاسه بل لوئی عالم شته \| |

## آسان ترجمه قرآن

بیا چه کله یوسف د دوی سامان تیار کړو نو د اوبو څکلو جام ئې د خپل (سکه) وروړ په کجاوه کښې کیښودو، بیا یو آواز کونکي آواز وکړو چه: اې د قافلو والو تاسو غله یئ هغوی دوی طرف ته را تاؤ شول او تپوس ئې وکړو چه: څه څیز دې چه تاسو نه وُرك شوې دې؟ هغوی اوئیل چه: مونږ ته د بادشاه پیمانه نه ملاویږی. او څوك چه دا راوړي، نو هغه ته به د یو اوښ بار (انعام کښې) ملاویږی، او زه د دې (انعام د ورکولو) ذمه داري اخلم. هغوی (ورونړو) اوئیل چه: قسم په الله! تاسو ته پته ده چه مونږ په زمکه کښې دفساد دپاره نه یُو راغلي، او نه مونږ غلاګر یو. هغوی اووئیل که: تاسو دروغژن (ثابت) شوئ نو ددې به څه سزا وي؟ هغوی اوئیل چه: ددې سزا به دا وي چه دچا په کجاوه کښې هغه (جام) اوموندې شي، نو هغه به خپله دهغې په سزا کښې رانیولې شي او څوك چه ظلم کوي هغوی ته مونږ دغسې سزا ورکوؤ نو یوسف د خپل (سکه) وروړ د تهیلۍ نه مخکښې د نورو ورونړو د تهیلو تلاشي شروع کړه، بیا ئې هغه جام د خپل (سکه) وروړ د تهیلۍ نه راوویستلو دغه شان مونږ د یوسف د خاطره دا تدبیر کړې وو. که د الله خوښه نه وې نو د یوسف دپاره دا ممکنه نه وه چه د بادشاه د قانون مطابق ئې خپل وروړ ځان څخه پاتې کړې وې، او مونږ چه چا ته وغواړو نو دهغه درجې اوچتوؤ، او څومره چه دعلم والا دی دهغوی دپاسه یو علم والا موجود دې.

## خلاصه تفسیر

﴿فَلَمَّا جَهَّزَهُمْ بِجَهَازِهِمْ جَعَلَ السِّقَايَةَ فِيْ رَحْلِ اَخِيْهِ ثُمَّ اَذَّنَ مُؤَذِّنٌ اَيَّتُهَا الْعِيْرُ اِنَّكُمْ لَسٰرِقُوْنَ ۝﴾ بیا هر کله چه یوسف [ﷺ] ددوی سامان[غله وغیره]تیارکړل نو[پخپله یا چا معتمد سړي] د اوبو څکلو لوښی[چه دغه د غلی ورکولو پیمانه هم وه]دخپل ورور په اسباب کښې کیښودو بیا [چه دوی بارونه بار کړه روان شونود یوسف [ﷺ]په حکم دروستونه ]یوآوازکونکی آوازوکړوچه ای دقافلی خلقو تاسو خامخاغله ئی.

﴿قَالُوْا وَاَقْبَلُوْا عَلَيْهِمْ مَّاذَا تَفْقِدُوْنَ ۝ قَالُوْا نَفْقِدُ صُوَاعَ الْمَلِكِ وَلِمَنْ جَآءَ بِهٖ حِمْلُ بَعِيْرٍ وَّاَنَا بِهٖ زَعِيْمٌ ۝﴾ هغوی دوی[تلاش کونکو]طرف ته مخ کړو اووئی ویل چه ستاسوڅه شی ورك شویدی؟چه دغلاپه مونږباندی شك وشودوی وویل چه مونږته دبادشاه پیمانه نۀ میلاویږي[هغه ورکه ده]اوچاچه راوړو]حاضرئی کړو هغه ته به یوبارغله داوښ [په طوردانعام]میلاوشي [اویا دامطلب دې چه که غل پخپله مال راکړی نودعفوه نه پس به انعام بیاموميا]اوزه ددې[دورکولو]ذمه واریم[غالبادا آوازاوداوعده دانعام د یوسف ﷺ په حکم وې].

﴿قَالُوْا تَاللّٰهِ لَقَدْ عَلِمْتُمْ مَّا جِئْنَا لِنُفْسِدَ فِي الْاَرْضِ وَمَا كُنَّا سٰرِقِيْنَ ۝ قَالُوْا فَمَا جَزَآؤُهٗ اِنْ كُنْتُمْ كٰذِبِيْنَ ۝ قَالُوْا جَزَآؤُهٗ مَنْ وُّجِدَ فِيْ رَحْلِهٖ فَهُوَ جَزَآؤُهٗ ۚ كَذٰلِكَ نَجْزِي الظّٰلِمِيْنَ ۝﴾ دي خلقوویل چه په خدای قسم تاسوته ښه معلومه ده چه مونږپه ملك کښې دفسادخورولوپاره[چه غلاپکښې داخله دا]نه یو راغلي او مونږ خلق غلاکونکي نه یو [یعنې زمونږسره دامناسب نه دی]دي [التونکی] خلقو وویل ښه که تاسودروغژن شوئ [ا یه تاسو کښې په چاغلاثابته شوه] نوددي [غل]څه سزاده دوی[د

يعقوب [عليه السلام] دشريعت موافق] جواب وركړوچه سزائي داده چه دغه دكوم سړي په اسباب كښې ميلاوشي پس هغه ئې پخپله سزاده [يعني د غلاپه بدل كښې دمال خاوندديخپل غلام جوړ كړي] مونږخلق ظالمانوته[يعني غلوته]داسي سزا وركوو [يعني زمونږپه شريعت كښې دا مسئله اوعمل دی. ﴿فَبَدَأَ بِأَوْعِيَتِهِمْ قَبْلَ وِعَاءِ أَخِيهِ ثُمَّ اسْتَخْرَجَهَا مِن وِعَاءِ أَخِيهِ ۚ كَذَٰلِكَ كِدْنَا لِيُوسُفَ ۖ مَا كَانَ لِيَأْخُذَ أَخَاهُ فِي دِينِ الْمَلِكِ إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ ۚ نَرْفَعُ دَرَجَاتٍ مَّن نَّشَاءُ ۗ وَفَوْقَ كُلِّ ذِي عِلْمٍ عَلِيمٌ﴾ غرض ددی خبرو په خپل منځ كښې دمقرركولونه بعدئي اسباب كوزكړو]بيائي [دتالاشئ په وخت كښې ]يوسف[عليه السلام ]پخپله ياپه چامعتمدباندی]دخپل ورونو[اسباب د]تيلئ نه مخكې شروع د تالاشئ اول دنوروورونوداسباب د]تيلونه اوكړه بيا[په آخره كښې ]دغه [لوښی] ئې دخپل ورور داسباب نه وويستلومونږد يوسف[عليه السلام ]دخاطرلپاره دغسي [دبنيامين دپاتی كولو] تدبير وفرمايلو [وجه ددی تدبيرداوه چه يوسف[عليه السلام ]خپل ورو[دمصر] دبادشاه په قانون كښې نشو پاتی كولي ځكه چه ددی بادشاه قانون څه وهل اوجرمانه وه [طبراني دمعمرنه اواول په روح المعاني كښې دی ]مگرداده چه الله تعالى ته منظوره وه[په دی وجه د يوسف[عليه السلام ]په زړه كښې داتدبيرراغئ اوددغوخلقودخولونه دافتوی ووتله اوپه دي مجموعه سره تدبير برابرشو او چونكه داپه حقيقت كښې غلام جوړول نه وو بلكه دبنيامين په خوښئ سره داغلام جوړيدل صورتا اختياركړی وو نوداآزاد نه دغلام جوړولوشبهه نه لازميږي،اواگرچه يوسف[عليه السلام ] لوی عاقل اوعالم وو مگربياهم زمونږ دتدبير خودلو محتاجه وو بلكه]مونږچه چاته وغواړو[په علم كښې] دخاصودرجوپوری اوچتوو،اودټولوعلمونو والا نه زيات يولوی علم والا دی [يعنی الله تعالى] هركله چه دمخلوق علم ناقص شواودخالق علم كامل وو نوځامخا به هرمخلوق په خپل علم او تدبير كښې محتاج وي دخالق چه په دي وجه ئې كدنا او الا ان يشاء الله اووئيل. لنډه داده چه هركله دده د اسباب نه دغه لوښی برآمد شواوبنيامين حصاركړی شونودوی ډير شرمنده شو] .

## معارف او مسائل

دې آيتونو كښې دابيان راغلې دې چې يوسف عليه السلام د خپل ځكه رور د ايسارولو دپاره يو چل داسې جوړ كړو چې هر كله ئې د هر يو رور په نوم ځان ځان له د غلې بار تيار كړو. د بنيا مين د نوم دغلې په بار كښې يو لوښې پټ كيخودې شو چې په يو ځائې كښې ورته قرآن عظيم الشان سقايه اوبل ځائې كښې ﴿صُوَاعَ الْمَلِكِ﴾ وئيلی دی. د سقايه معنی د اوبو څكلو لوښې او صواع هم دغسې لوښی ته وئيلې شی خو بادشاه ته ددې د منسوب كولو نه دا معلومه شوه چې دغې لوښی څه خاص شان او خاص قيمت لرلو. په ځينې روايتونو كښې راغلی دی چې دا د زبرجدو نه جوړ كړې شوې وو ، ځينې روايتونو كښې راځی چې د سرو زرو نه جوړ وو ، او ځينو كښې راځی چې سپينو زرو نه جوړ وو ، په هر حال يو خو دغه لوښی خاص شان او خاص قيمت لرلو او بل دا چې د مصر د بادشاه سره ئې څه خصوصيت هم لرلو. داسې هم كيدې شی چې پخپله به هم يوسف عليه السلام استعمالولو او داسې هم كيدې شی چې پخپل حكم سره يې غلې پيمانه كولو دپاره مخصوص كړې وو.

﴿ثُمَّ أَذَّنَ مُؤَذِّنٌ أَيَّتُهَا الْعِيرُ إِنَّكُمْ لَسَارِقُونَ﴾ [يعنی څه وخت پس بيا يو آواز كونكی آواز اوكړو چې اې د قافلې خلقو ! تاسو غله يئ]

دلته د ﴿ثُمَّ﴾ لفظ راوړو نه معلوميږي چې دا نعره سمدستي ورپسې نه وه شوې بلکه څه شيبه پس هله چې قافله روانه شوه. هله دا نعره ورپسې اووهلې شوه چې هسې نه د جعلسازۍ څه شبه ئې راشي. بهر حال دغسې اعلان کوونکي د يوسف ﷺ د رونړو قافلې ته غله اووئيل:
﴿قَالُوا وَأَقْبَلُوا عَلَيْهِم مَّاذَا تَفْقِدُونَ﴾ [ هغوئ اووئيل او مخونه ئې ورپسې راواړول ستاسونه څه ورک شوي دي ]
﴿قَالُوا نَفْقِدُ صُوَاعَ الْمَلِكِ وَلِمَن جَاءَ بِهِ حِمْلُ بَعِيرٍ وَأَنَا بِهِ زَعِيمٌ﴾ [يعنى ديوسف ﷺ رونړو اووئيل زمونږ نه د بادشاه پيمانه ورکه شوې دهاوچا چې راپيدا کړه هغه دپاره داوښ يوبار[غله] انعام دې او زه ددې ذمه دار يم].
دلته يو سوال خودا پيدا کيږي چې هر کله يوسف ﷺ ته دا ښه معلومه وه چې باباجي ﷺ زما په جدا کيدو باندې دړومبې نه ډير زيات غمژن دې ، دبنيا مين په ايسارولو به نور زيات غمژن شي نو هغوئ ﷺ ته ئې آزار اورسول ولې مناسب اوګڼړلو؟
دويم سوال دا پيدا کيږي کوم چې د ړومبى نه ډير زيات اهم دې هغه دادې چې بې ګناه رونړو باندې تور پورې کول هغې دپاره دا چل جوړول چې دهغوئ په سامان کښې ئې په پټه څه څيز کيخودو. اوبيا ښه په ښکاره هغوئ اوشرميدل ، دا ټول هر څه ناروا وو ، د الله ﷻ د نبى يوسف ﷺ شان سره دې څنګه سمون خوړلې شو؟
ځينې مفسرينو قرطبى رحمه الله وغيره دابيان کړې دې چې کله بنيامين يوسف ﷺ لره اوپيژندو او پوره تسلى ئې اوشوه نو ورته ئې خواست اوکړو چې اوس دغه رونړو سره مې واپس مه ليږه اوځان سره مې ايسار کړه . يوسف ﷺ دا عذر اوکړو چې ستا په ايساريدو به مې باباجي ﷺ ډير زيات خفه شي ، بله دا چې ستا د ايسارولو بل هيڅ صورت سوا ددې نه نشي کيدې چې په تا باندې د غلا الزام اولګوم او په دغې الزام کښې دې بنديوان د ځان سره اوساتم. بنيامين دغې رونړو د رويې نه دومره تنګ شوې وو چې دغې ټولو خبرو ته ئې غاړه کيخوده.
ليکن دا واقعه که صحيح ثابته هم شي نود باباجي ﷺ زړه آزارول او دټولو رونړو شرمول ، هغوئ ته غله وئيل يوازې د بنيامين په راضى کيدو خو نشي روا کيدې.
ځينې حضراتو دا توجيه کړې ده چې دا هر څه اعلان کوونکي، د يوسف ﷺ د اجازت نه بغير کړي وو خو دا يو بې دليله دعوى او د واقعې دصورت په لحاظ سره بې سمونه اوبې جوړه خبره ده ، دغه شان دا هم يوتاويل دې چې دوئ ته پدې لحاظ سره غله اووئيلې شو چې يوسف ﷺ ئې په وړوکتوب کښې د پلار نه غلا کړې وو او په پټه ئې خرڅ کړې وو. څکه د ټولو سوالونو صحيح جواب هم دا دې کوم چې قرطبى رحمه الله او مظهرى رحمه الله وغيره ورکړې دې (١) هغه داسې چې نه دا د بنيامين په غوښتنه شوى وو او نه د يوسف ﷺ خپل تجويز وو ، بلکه دا ټول د الله ﷻ په حکم شوى وو. او د الله ﷻ د حکمت بالغه ننداري وې چې په کښې د يعقوب ﷺ دآزميښت اوامتحان تكميل كول وو لکه قرآن عظيم الشان ورته په :

---

١) تفصيل دپاره اوګورئ: تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:٩ص:٢٣٠، ٢٣١]و تفسير المظهرى تحت هذه الآية [ج:٥ص:١٨٣]

﴿كَذٰلِكَ كِدْنَا لِيُوْسُفَ﴾ [ دغه شان مونږ يوسف ﷺ دپاد تدبير اوکړو] کښې اشاره هم کړې ده.
دې آيت مبارك کښې ښه په ښکاره دا چل الله ﷻ خپل ځان ته منسوب کړې دې ، په دې بناء باندې دې ته ناروا وئيل په هيڅ شان سره ګنجائش نه لرى. بلکه د دې مثال به داسې شى لکه د موسى ﷺ او خضر ﷺ په واقعه کښې کشتئ ماتول ،هلك وژل وغير چې شکل ئې د ګناه ښکاريدو ځکه خو موسى ﷺ بد ګنړلى وو ، مګر خضر ﷺ پخپله داخبر صفا کړه چې ټول هر څه د الله ﷻ په حکم د خاص ښيګړې دپاره اوکړې شو هيڅ ګناه په کښې نه وه.
﴿قَالُوْا تَاللّٰهِ لَقَدْ عَلِمْتُمْ مَّا جِئْنَا لِنُفْسِدَ فِي الْاَرْضِ وَمَا كُنَّا سٰرِقِيْنَ﴾ [يعنى کله چې شاهى آواز کوونکى د يوسف ﷺ په رونړو د غلا الزام اولګولو نو هغوئ اووئيل چې په الله ﷻ قسم تاسو ته معلومه ده چې مونږ دې وطن ته د فساد دپاره نه يوراغلى اونه مونږ غلهٔ يو].
﴿قَالُوْا فَمَا جَزَآؤُهٗٓ اِنْ كُنْتُمْ كٰذِبِيْنَ﴾ [يعنى شاهى ملازمينو اووئيل که چرې تاسو دروغژن ثابت شوئ نوبيا به د هغه څه سزا وى؟ ]
﴿قَالُوْا جَزَآؤُهٗ مَنْ وُّجِدَ فِيْ رَحْلِهٖ فَهُوَ جَزَآؤُهٗ كَذٰلِكَ نَجْزِى الظّٰلِمِيْنَ﴾ [ يعنى رونړو ديوسف ﷺ اووئيل چې د هغه سزا دا ده چې د چا په سامان کښې پيمانه راوختنه نوهم هغه دې د غلا په بدله کښې ايسار کړې شى مونږ ظالمانو ته هم دغه شان سزا ورکوو].
مطلب دادې چې د يعقوب ﷺ په شريعت کښې د غل سزا همداده چې غل به د مال د مالك غلام جوړشى. په دې شان سرکارى ملازمانو پخپله د يوسف ﷺ د رونړو دخلې نه دشريعت يعقوب په مطابق دا معلوم کړل چې غل به يوسف ﷺ ته سپارل راځى چې ايسار به وى اوکنعان ته به نشى تلې.
﴿فَبَدَاَ بِاَوْعِيَتِهِمْ قَبْلَ وِعَآءِ اَخِيْهِ﴾ [ يعنى سرکارى تفتيش کوونکو په اصل سازش باندې د پردې اچولو دپاره اول د ټولو ورنړو د سامان تلاشى واخسته، د اول ځخه يې د بنيامين د سامان تلاشى وانخسته چې هسې نه شك پيدا شى].
﴿ثُمَّ اسْتَخْرَجَهَا مِنْ وِّعَآءِ اَخِيْهِ﴾ [ يعنى آخر د بنيامين سامان پرانستې شو ، نو په دې کښې صواع الملك راووختله، په دې کښې وخت کښې د ټولو رونړو ختونه د شرم نه ښکته شو او بنيامين ته ئې سپورې سپکې اووئيل چې مونږ خو دې ډير مختورن کړو.
﴿كَذٰلِكَ كِدْنَا لِيُوْسُفَ مَا كَانَ لِيَاْخُذَ اَخَاهُ فِيْ دِيْنِ الْمَلِكِ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ﴾ [ دغه شان مونږ يوسف ﷺ دپاره تدبير اوکړو هغه خپل رور دبادشاه [مصر] په قانون کښې اخستې نه شومګر دا چې الله ﷻ ته منظوره وه]. ولې چې په دغه قانون کښې غل ته د وهلو ټکولو سزا ورکول وو او د غلا کړى مال په دوچند دهغه جرمانه کول وو مګر هغوئ دې ځائې کښې د يوسف ﷺ د رونړو څخه غلا د سزا حکم د يعقوب ﷺ د شريعت مطابق تپوس کړې وو ، دهغې مطابق د بنيامين ايسارول صحيح خبره وه. او په دې شان دالله ﷻ د حکمت او حکم سره د يوسف ﷺ مراد هم پوره شو.

﴿نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ ؕ وَفَوْقَ كُلِّ ذِیْ عِلْمٍ عَلِیْمٌ﴾ [ مونږ چې د چا درجې اوچتول اوغواړو اوچتې ئې کړو لکه څنګه دې واقعه کښې د یوسف علیه السلام درجات د هغوئ علیه السلام د ورڼړو په مقابله اوچتې کړې شوې. او دهر عالم دپاسه بل لوئي عالم شته ]

مطلب دا چې مخلوق کښې مونږ د علم په اعتبار سره بعضو ته په بعضو ترجیح ورکړې ده . هر څومره لوئي عالم وی د هغه نه پورته به خامخا بل عالم وی. او که یو سړې داسې دې چې په پوره مخلوقاتو کښې دهغه څخه زیات علم والا بل څوك نشته دې نو بیا د رب العالمین جل جلاله علم د ټولو څخه بالا دې .

**حکمونه او مسائل**

دې آیتونو نه څو احکام او مسئلې حاصلې شوې :

① د آیت ﴿وَلِمَنْ جَآءَ بِهٖ حِمْلُ بَعِیْرٍ﴾ نه ثابت شو چې د یو ټاکلی کار په کولو باندې څه مزدوری یا اجرت مقرر کړې شی او د انعام عام اعلان اوشی چې کوم کس دا کار اوکړونو هغه بۀ دومره انعام یا اجرت ملاویږی ، لکه د اشتهاری مجرمانو په ګرفتارولو یا د ورکو شوؤ څیزونو په واپس کولو چې عموما دا انعامونو اعلان کولې شی . اګر چې د معاملې د صورت دپاره د فقهی اجاداری تعریف نه صحیح کیږی خو ددې آیت مبارك په وجه ددې جواز هم ثابت شو [ قرطبی ]. ([1])

② دویم دا چې د ﴿وَاَنَا بِهٖ زَعِیْمٌ﴾ نه معلومه شوه چې یو کس دبل کس دمالی حق ضامن جوړیدې شی او ددغې صورت حکم د جمهورو فقهاء کرامو په نزد دادې چې هغه خپل مال د قرضدار یا ددغې ضامن نه وصولولې شی یعنی ددې دواړو خبرو اختیار دې ورته که په هر یو ئې سمې راغلو ، که ضامن نه وصول کړې شو نو هغه د قرضداری نه د هغې د وصولولو حق لری . [ قرطبی او خلاف دې امام مالك لره ] . ([2])

دریم ﴿كَذٰلِكَ كِدْنَا لِیُوْسُفَ ؕ﴾ نه معلومه شوه چې دیو شرعی مصلحت په بنا باندې د معاملې په صورت کښې داسې څه تبدیلی اختیارول چې ورسره حکمونه بدل شی اود فقهاء په اصطلاح کښې ورته حیله شرعیه وئیلې شی داسې کول په شریعت کښې روا دی خو شرط دادې چې دې سره د شرعی څه حکم باطلیدل نه لازمیږی ، ګنی نو داسې حیلې د فقهاء کرامو په اتفاق سره حرامې دی .لکه زکوة نه د ځان ساتلو دپاره څه حیله کول یا د رمضان نه مخکښې صرف په دې غرض باندې سفر اختیارول چې د روژې نیولو نه بچ شی،داپه اتفاق سره حرام دی او په دغسې حیلو کولو سره قومونو باندې د الله جل جلاله عذاب راغلې دې او رسول کریم صلی الله علیه وسلم دداسې حیلو نه منع فرمائیلې ده او په اتفاق دامت سره حرام دی ، په دې باندې عمل کولو سره هیڅ یو کار نشی جائز کیدې بلکه غبرګه ګناه ترې لازمیږ،یوه ګناه د اصل ناروا کار کولو او دویمه

---

[1] ) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة [ ج:۹ص: ۲۳۲]

[2] ) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة [ ج:۹ص: ۲۳۲]

ددې په ناروا حیله کول داسې دی لکه چې الله ﷻ اود نبی کریم ﷺ سره دهوکه اوکړې شی. نو دداسې حیلو ناروا والې امام بخاری رحمه الله په کتاب الحیل کښې ثابت کړېدې.(۱)

قَالُوٓا　اِنۡ يَّسۡرِقۡ　فَقَدۡ　سَرَقَ

| اووئیل هغوئ | که غلا کوی دې | نوپه تحقیق سره | غلا کړې ده

| هغوئ اووئیل که [نن] دهٔ غلا اوکړه | نو پخوا ددهٔ

اَخٌ لَّهٗ　مِنۡ قَبۡلُ ۚ　فَاَسَرَّهَا　يُوۡسُفُ　فِىۡ نَفۡسِهٖ　وَلَمۡ يُبۡدِهَا

روردده | مخکښې د دې نه | نوپټه اوساتله دا خبره | یوسف | په زړهٔ خپل کښې | اوښکاره نې نهٔ کړه هغه

سکه رور هم غلا کړې وه | نویوسف دا خبره په خپل زړهٔ کښې واچوله | اوهغوئ ته ئې ښکاره نهٔ کړه

لَهُمۡ ۚ　قَالَ　اَنۡتُمۡ　شَرٌّ　مَّكَانًا ۚ　وَاللّٰهُ　اَعۡلَمُ　بِمَا

هغوئ ته | وې وئیل | تاسو | ډیر بد یئ | په لحاظ دمرتبې سره | اوالله | ښهٔ پوهه دې | په هغه الزام

ورته ئې اووئیل چې تاسو ډیر خراب خلق یئ | اوځهٔ چې تاسو بیانوئ | الله ﷻ په هغې ښهٔ پوهه دې

تَصِفُوۡنَ ۞　قَالُوۡا　يٰۤاَيُّهَا الۡعَزِيۡزُ　اِنَّ　لَهٗۤ　اَبًا　شَيۡخًا كَبِيۡرًا　فَخُذۡ

چې تاسونې بیانوئ | اووئیل هغوئ | ائې عزیزه | بیشکه | د دهٔ | یوپلاردې | بوډا | ډیر | نو اونیسه

هغوئ اووئیل | ائې عزیز ! بیشکه ددهٔ پلار ډیر بوډا دې | نو د دهٔ په ځائې مونږ کښې یو

اَحَدَنَا　مَكَانَهٗ ۚ　اِنَّا　نَرٰٮكَ　مِنَ الۡمُحۡسِنِيۡنَ ۞　قَالَ

یو زمونږنه | په ځائې ددهٔ | بیشکه | مونږ وینو تا | د احسان کونکونه | اووئیل یوسف

کس اونیسه | مونږ وینو گورو چې تهٔ ډیر ښهٔ سړې یې | ..................هغهٔ اووئیل

مَعَاذَ اللّٰهِ　اَنۡ نَّاۡخُذَ　اِلَّا　مَنۡ　وَّجَدۡنَا　مَتَاعَنَا

پناه غواړم په الله سره | چې اونیسم زهٔ | مګر | هغه څوک | چې موندلې دې مونږ | سامان زمونږ

چې په الله ﷻ سره د دې خبرې نه پناه غواړم | چې چا سره مونږ خپل څیز موندلې دې د هغه نه سوا بل څوک

عِنۡدَهٗۤ ۙ　اِنَّاۤ　اِذًا　لَّظٰلِمُوۡنَ ۞　فَلَمَّا　اسۡتَيۡـَٔسُوۡا　مِنۡهُ

دهغه سره | بیشکه مونږ | به یو بیا | خامخا ظالمان | نوهرکله چې | نااُمیده شو هغوئ | د هغهٔ نه

اونیسم | په دغه وخت کښې خو به مونږ په ظالمانو کښې شمیر شو | نو کله چې دوئ دهغهٔ [یوسف علیه السلام]

۹
ع ۱۱
۳

خَلَصُوۡا　نَجِيًّا ؕ　قَالَ　كَبِيۡرُهُمۡ　اَلَمۡ تَعۡلَمُوۡۤا　اَنَّ

نوجدا شو | دپاره د پټې مشورې | اووئیل | مشر د هغوئ | آیا تاسوته معلومه نهٔ ده | چې بیشکه

نه مایوسه شو | نود مشورې دپاره ځان له شو | په دوئ کښې مشر اووئیل | چې آیا تاسو ته معلومه نهٔ ده چې

---

(۱) تفصیل دپاره اوګورئ: صحیح البخاری کتاب الحیل.

أَبَاكُمْ　قَدْ أَخَذَ　عَلَيْكُم　مَّوْثِقًا　مِّنَ اللَّهِ　وَمِن قَبْلُ　مَا

پلارستاسو | اخستی ده | ستاسونه | وعده محکمه | د الله په نوم | او مخکښي ددې نه | هغه

پلار درنه په قسمونو پوخ لوظ اخستې وو | اود دې نه وړاندې هم تاسو د يوسف ﷺ په

فَرَّطتُمْ　فِي يُوسُفَ　فَلَنْ أَبْرَحَ　الْأَرْضَ　حَتَّىٰ

چې زياتي کړې وو تاسو | په حق د يوسف کښې | نوهرگز نه خوزيږم زه | ددې زمکې نه | ترهغې پورې

حق کښې قصور کړې دې | نوزه خودا ملک نه پرېږدم | ترڅو چې پلار راته

يَأْذَنَ　لِي　أَبِي　أَوْ يَحْكُمَ　اللَّهُ　لِي　وَهُوَ　خَيْرُ

چې اجازت راکړي | ماته | پلار زما | يا فيصله اوکړي | الله | زما په حقله | او هغه | بهتره

اجازت رانکړي | يا الله ﷻ زما په حق کښې څه فيصله اونه کړي | .....................او هم هغه

الْحَاكِمِينَ ۝　ارْجِعُوا　إِلَىٰ أَبِيكُمْ　فَقُولُوا　يَا أَبَانَا　إِنَّ

د فيصله کونکونه دې | واپس لاړشئ | پلارخپل ته | نواووايئ | ائې پلاره زمونږ | بيشکه

ډير ښهٔ فيصله کونکې دې | تاسوخپل پلارته واپس لاړ شئ | نو ورته وايئ چې ائې باباجانه! ستاسو

ابْنَكَ　سَرَقَ　وَمَا شَهِدْنَا　إِلَّا　بِمَا عَلِمْنَا　وَمَا كُنَّا

چې خوئی ستا | غلا اوکړه | او مونږ گواهي ورنهٔ کړه | مگر | څه چې مونږ ته معلوم وو | او نهٔ وو مونږ

خوئې غلا کړې ده | اومونږ د خپل علم مطابق گواهي ورکړې ده | او مونږ د غيبو

لِلْغَيْبِ　حَافِظِينَ ۝　وَاسْأَلِ　الْقَرْيَةَ　الَّتِي　كُنَّا　فِيهَا　وَالْعِيرَ

غيبو د پاره | حفاظت کونکې | اوتپوس اوکړه | د کلی | هغې نه | چې وو مونږ | په هغې کښې | او دقافلې

هيڅ خبرنهٔ وو | اوپه کوم کلی کښې چې مونږ ديره وو | د هغه ځائې د خلقو نه تپوس اوکړه | او د هغه قافلې د

الَّتِي　أَقْبَلْنَا　فِيهَا　وَإِنَّا　لَصَادِقُونَ ۝

هغې نه | چې راغلومونږ | په هغې کښې | اوبيشکه مونږ | خامخا رېښتينی يو |

خلقو نه تپوس اوکړه | چې مونږ ورسره (په ملگرتيا کښې) راغلي يو | اومونږ بالکل رښيتني يو |

## آسان ترجمه قرآن

(بهرحال) هغه وروڼو واوئيل چه: که دې (بنيامين) غلا کړي وي نو (څه د تعجب خبره نه ده، ځکه) چه دده يو ورور هم دده نه مخکښې غلا کړې ده۔ په دې باندې يوسف په دوی باندې ښکاره کولو نه بغير پټ (زړه کښې) اوئيل چه: تاسو دِ معامله کښې ډير بد يئ او کوم بيان چه تاسو کوئ ، الله د هغې په حقيقت ښه پوهيږي. (اوس) دوی اوئيل چه: اې عزيز مصر! د ده پلار ډير بوډا دې نو دده په ځائې مونږ نه يو کس خپل ځان څخه وساته. مونږ تا د هغه خلقو نه گنړو چه احسان کوي. يوسف اوئيل چه: دې (بې انصافئ) نه څه په الله سره پناه غواړم چه کوم کس څخه مونږ خپل څيز موندلې دې د هغه په ځائې مونږ بل څوك اونيسو که مونږ داسې وکړو نو يقيناً مونږ به د ظالمانو نه شو. نو چه کله دوی د يوسف نه نااميده شو ، نو دوی جدا شو او پټې جرگې ئې کولې په دوی کښې چه د ټولو نه کوم لوئ وو هغه اوئيل

چه: آیا تاسو ته معلومه نه ده چه ستاسو پلار تاسو نه دالله په نوم وعده اغستې وه، او دې نه مخکښ تاسو د یوسف په باره کښ هم کوتاهي کړې ده (هغه هم درته معلومه ده) نو څه به دې مُلک نه تر هغه وخته پورې نه واپس کیږم تر څو چه ما ته ځما پلار اجازت نه وي کړې. یا الله ځما څه فیصله وکړي اوهغه د ټولو نه ښه فیصله کونکې دې. لاړ شئ خپل پلار ته، او هغه ته اوایئ چه باباجانه! ستا ځوئ غلا کړې ده او مونږ هغه خبره کوؤ کومه چه مونږ ته معلومه ده، او د غیب د حفاظت خو ځمونږ وس نشته. او کوم کلی کښ چه مونږ وو د هغې نه تپوس وکړه، او کومه قافله کښ چه مونږ راغلي یو د هغې نه تحقیق وکړه. دا بالکل ښه خبره ده چه مونږ رښتینې یو.

**خلاصه تفسیر:**

﴿قَالُوٓا۟ إِن يَسْرِقْ فَقَدْ سَرَقَ أَخٌ لَّهُۥ مِن قَبْلُ ۚ فَأَسَرَّهَا يُوسُفُ فِى نَفْسِهِۦ وَلَمْ يُبْدِهَا لَهُمْ ۚ قَالَ أَنتُمْ شَرٌّ مَّكَانًا ۖ وَٱللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا تَصِفُونَ﴾اووئي ویل[صاحبه]که ده غلا کړې وی نو[تعجب نه دی ځکه چه] ددهٔ یو ورور [وو هغه] هم [دغه شان]ددی نه مخکی غلاکړیده [چه قصه ئی په درمنثورکښی داسی لیکلی ده چه د یوسف [عليه السلام] پرورش ددویٔ ترور کولو هرکله چه هوښیارشو اوکه یعقوب[عليه السلام] ]ئی بوتلل وغوښتو، دترورو ورسره مینه زیاته وه غوښتل ئی چه دی پاتی شي په دی وجه دده دملا نه دکپړو لاندي د سرو زرو یو کړی اوتړله او مشهوره ئی کړه چه کړی ورکه شوه اوټول ئی تالاشي کړونودده سره میلاو شوه، او ددوی دشریعت دقانون مطابق دی دترورسره پاتی شو دهغي تروفاته پوري بیان یعقوب[عليه السلام] راوستو،(۱) اوممکنه ده چه دا د غلا کولوصورت هم د یوسف [عليه السلام] په رضامندئ سره شوی وي پدی وجه دلته هم دآزادغلام جوړول لازم نشواوکه هرڅومره په قرینواود یوسف[عليه السلام]په اخلاقوکښی دلږفکرکولونه ددهٔ برائت ددی کارنه یقینا معلوم وو مګربنیامین ته چه ورونه غصه وو پدی کښی ئی داخبره هم وکړه ]پس یوسف[عليه السلام] دی خبری لره [کومه چه راخي پخپل زړه کښی پټه کړه اودائی ددوی په مخکښی [په ژبه سره ] ښکاره نکړه [په زړه کښی ئی]داسی ووېل چه [دغلا]په [دی]درجه کښی تاسونورهم زیات ناکاره ئی [یعنی مونږدواړووروڼوپه حقیقت کښی غلانده کړی اوتاسودومره لوی کارکړیدی چه خلق مال غائبوي تاسو بنی آدم غائب کړوچه زه مودپلارنه جداکړم اوظاهره ده چه دبنی آدم غلاکول دمال دغلانه زیات سخت دی ]اوڅه چه تاسو [زمونږ دواړو ورونومتعلق]بیانوئ[چه مونږته غله وائی ددی [حقیقت]الله تعالی ته ښه علم دی [چه مونږغله نه یو].

﴿قَالُوا۟ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْعَزِيزُ إِنَّ لَهُۥٓ أَبًا شَيْخًا كَبِيرًا فَخُذْ أَحَدَنَا مَكَانَهُۥٓ ۖ إِنَّا نَرَىٰكَ مِنَ ٱلْمُحْسِنِينَ﴾هرکله چه وروڼوولیدل چه دهٔ بنیامین اونیولواوورباندی قابض شونوپه خوشامندوسره] ئی وویل ای عزیزه دده [بنیامین] یو ډیر بوډا پلاردی[اودده سره ئی ډیره مینه ده ،په دی غم کښی به ئی خدای خبرڅه حال وي، او زمونږسره ئی دومره محبت نشته ]پس ته[داسی وکړه چه]دلته زمونږنه یوحصارکړه[اوځان ته ئی غلام کړه] مونږ تا نیك خویه ګڼړو[امیددی چه دادرخواست به منظورکړي].

﴿قَالَ مَعَاذَ ٱللَّهِ أَن نَّأْخُذَ إِلَّا مَن وَجَدْنَا مَتَٰعَنَا عِندَهُۥٓ إِنَّآ إِذًا لَّظَٰلِمُونَ﴾ یوسف[عليه السلام]اوویل دداسی [بی انصافئ خبري نه دی خدای امان راکړی چه دچاسره موخپل څیزموندلی دی دهغه نه سوابل څوك ونیسو[که داسي وکړونو]پدي حالت کښی به خومونږډیربی انصافه شو[چاآزادلره غلام

---

(۱) الدرالمنثور: [ج:۵ ص:۴۳۳]

جوړول او د غلامانو په شان معامله ورسره کول د ده په رضامندئ سره هم حرام دي].
﴿فَلَمَّا اسْتَيْـَٔسُوْا مِنْهُ خَلَصُوْا نَجِيًّا ۭ قَالَ كَبِيْرُهُمْ اَلَمْ تَعْلَمُوْٓا اَنَّ اَبَاكُمْ قَدْ اَخَذَ عَلَيْكُمْ مَّوْثِقًا مِّنَ اللّٰهِ وَمِنْ قَبْلُ مَا فَرَّطْتُّمْ فِيْ يُوْسُفَ ۚ فَلَنْ اَبْرَحَ الْاَرْضَ حَتّٰى يَاْذَنَ لِيْٓ اَبِيْٓ اَوْ يَحْكُمَ اللّٰهُ لِيْ ۚ وَهُوَ خَيْرُ الْحٰكِمِيْنَ﴾ بیا چه هرکله ددوی د یوسف [علیه السلام] نه [د ده د صاف جواب په سبب] بالکل امید پاتی نشو [چه بنیامین به راکړي] نو [ددی ځای نه] جدا شو مشوره ئی وکړه [چه څه کول پکار دي، بیا د زیاتو رایه دا شوه چه مجبوري ده ټولو ته بیرته تلل پکار دي، مګر] په دی ټولو کښی هغه مشر وویل چه [تاسو ټول چه د بیرته تللو صلاح کوئ نو] آیا تاسو ته معلومه نده چه ستاسو پلار ستاسونه په خدای قسم او پوخ قول اخیستی دی [چه تاسو به دی د ځان سره راولئ لیکن که ټول ګیرشوئ نو مجبوري ده پس مونږ خو ټول نه یو ګیرشوي چه د تدبیر ګنجائش ندی پاتي پدي وجه ترممکنه حده پوري څه تدبیر کول پکار دي] او ددی نه مخکی د یوسف [علیه السلام] په باره کښی تاسو څومره کوتاهی کړیده [چه ده سره کوم سلوك شویدی په دی د پلار حقوق بالکل ضائع شونو دغه پخوانئ شرمندګی څه کمه ده چه یوه نوي شرمندګي جوړوئ] پس زه خو ددی زمکی نه نه جدا کیږم ترڅو چه ځما پلار ماته [د حاضریدو] اجازت ونکړي یا الله تعالی دا مشکل حل کړي او هغه ښه حل کونکی دی [یعنی په څه تدبیر سره بنیامین آزاد شي، غرض یا به زه دی ورم یا به بلنه باندی ځم، پس ما دلته پریدئ او]
﴿اِرْجِعُوْٓا اِلٰٓى اَبِيْكُمْ فَقُوْلُوْا يٰٓاَبَانَآ اِنَّ ابْنَكَ سَرَقَ ۚ وَمَا شَهِدْنَآ اِلَّا بِمَا عَلِمْنَا وَمَا كُنَّا لِلْغَيْبِ حٰفِظِيْنَ﴾ تاسو بیرته خپل پلار ته لاړشئ او [چه لاړئ هغه ته] ووائی ای پلاره! ستاخوی [بنیامین] غلا وکړه [ځکه ګرفتار شو] او مونږ خو هغه بیانوو کوم چه مونږ ته [په مشاهده سره] معلوم شویدی او مونږ [د قول او اقرار په وخت کښی] د غیبو د خبرونه خبرنه وو [چه دی به غلا کوي، که خبروی نو مونږ به کله هم قول نه وی درکړی].
﴿وَسْـَٔلِ الْقَرْيَةَ الَّتِيْ كُنَّا فِيْهَا وَالْعِيْرَ الَّتِيْٓ اَقْبَلْنَا فِيْهَا ۭ وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ﴾ او [که زمونږ په وینا دی باور نه وي نو] ددی کلی [د مصر] د خلقونه [د چا معتمد په معرفت سره تپوس وکړه کوم ځای چه مونږ [داوخت] موجود وو [هرکله چه غلا برآمد شوی ده] او ددی قافلی د خلقونه تپوس وکړه په کومه کښی چه مونږ [دلته] راغلی یو [معلومیږي چه نور خلق هم د کنعان یا د خوا او شانه د غلی اخیستلو لپاره تللی وه] او یقین اوکړه چه مونږ بالکل رشتیا وایو [چنانچه ټولو مشر هلته پاتي کړوا و پخپله راغلل ټوله واقعه ئی بیان کړه]۔

## معارف او مسائل

تیرو شوؤ آیتونو کښې دا بیان راغلې وو چې په مصر کښې د بنیامین په سامان کښې یو شاهی لوښې پټ کیخودې شو او په څه چل سره ئې چې دهغه د سامان نه راؤښکلو نو د غلا توري ئې پورې کړو.
اوس ددې آیتونو ځینې په ړومبی آیت کښې دادی چې کله په دې خبره باندې هغوئ تیټ سترګې شونو په تاؤ کښې ئې داسې اوو‌ئیل چې:
﴿اِنْ يَّسْرِقْ فَقَدْ سَرَقَ اَخٌ لَّهٗ مِنْ قَبْلُ ۚ﴾ [ که [نن] دهٔ غلا اوکړه نو پخوا ددهٔ سکه رور هم غلا کړې وه] مطلب ئې دا وو چې دا زمونږ څکه رور نه دې بلکه پلار ګنې رور مو دې ، ددهٔ څکه رور یوبل وو چې هغه هم غلا کړې ره.
دغه وخت دغې رونړو ئې پخپله هم په یوسف ﷺ د غلا هغسې تور پورې کړو څنګه چې

اوس په بنيامين باندې تور پورې كړې شو، هسې خو رونړو ته ئې معلومه وه چې هغه دغسې منصوبه وه، څنګه چې اوس د بنيامين په باره كښې منصوبه وه، يعنې په حقيقت كښې غلا نه وه خو كله چې رونړه ئې بنيامين ته دغه وخت په غصه وو څكه ئې په يوسف ﷺ دغلا تور پورې كړو، ددغې تور حقيقت مونږ مخكښې بيان كړې دې، چې د يوسف ﷺ په ناخبرۍ كښې پرې هسې د غلا تور پورې كړې شوې وو، غلا ئې هيڅ كله نه وه كړې او دغه رونړه ئې په دغې حقيقت خبر وو.

ددې واقعې باره كښې روايتونه مختلف دى، ابن كثير رحمه الله په حواله د محمد بن اسحاق رحمه الله او مجاهد رحمه الله د تفسير امام نقل كړى دى چې د يوسف ﷺ د پيدا كيدو نه څه لږه موده پس بنيا مين پيدا شو نو مور بى بى ئې هم د څيږولو په سبب وفات شوه. د دواړو پالنه به ددوئ ترور بى بى كوله. الله ﷻ د وړوكوالى نه يوسف ﷺ ته داسې شان وركړې وو چې چا به اوليدو نو ډيره مينه به ئې ورسره كوله. د ترور بى بى ئې هم دغه حال وو چې د ځان نه ئې د دوئ جدا كيدل نه شو زغملې. بل طرفته ئې د باباجى ﷺ هم دا حال وو، خو تر څو چې ډير ماشوم وو او بغير د زنانه د غيږې نه ئې ګزاره نه كيده نو تر هغې پورې ئې دغې ترور بى بى ته پريخودې وو كله چې پخپله د ګرځيدو جوګه شو نو باباجى ﷺ ئې د هغوئ ﷺ راوستل اوغوښتل، كله چې ترور بى بى ته ئې د هغوئ ﷺ د بوتلو خبره اوكړه نو هغې په كښې عذر اوكړو، په بيا بيا وئيلو سره ئې اګر چې يوسف ﷺ ورته اوسپارلو مګر يو كمر بند ئې پټ د هغوئ ﷺ د ملا پورې دجامو لاندې اوتړلو. دغه كمر بند د اسحاق ﷺ نه دې ته رارسيدلې وو چې ډير قدر او قيمت ئې لرلو.

په دې دوران كښې هغې ددغې كمربند دېټيدو او غلا كيدو خبره مشهوره كړه په تالاشئ اخستلو سره هغه يوسف ﷺ سره راؤختو، د يعقوب ﷺ دشريعت مطابق دغې بى بى ته دا حق حاصل شو چې يوسف ﷺ لره خپل ځان سره د يو عذر په حيثيت اوساتى. يعقوب ﷺ هم دغې شرعى حكم ته غاړه كيخوده او تر هغې ئې ترې نه نه راوستو تر څو چې ژوندئ وه.[1]

په دې واقعه هر څوك خبر وو چې غلا نه بلكه د ترور بى بى يو منصوبه ئې وه، دا حال هر چاته ښكاره وو چې يوسف ﷺ د غلا د معمولى شبهې نه هم برى دې. دا د ترور بى بى د مينې يو چل وو چې هغوئ په كښې راګير كړل. اګر چې رونړو ته ئې دا حقيقت پوره معلوم وو، نو بيا پرې باندې د غلا الزام لګول مناسب نه وو، خو هر كله چې د رونړو زړونه ورته صفا نه وو نو د آخرى ناكړدې په ډول ئې دغه الزام پرې بيا راتازه كړو.

﴿فَأَسَرَّهَا يُوسُفُ فِي نَفْسِهِ وَلَمْ يُبْدِهَا لَهُمْ﴾[ نو يوسف داخبره په خپل زړه كښې واچوله چې داخلق تر اوسه پورې مسلسل په ما باندې دغلا الزام لګوى اوهغوئ ته ئې ښكاره نكړه] چې ګني ما ستاسو داخبره نه ده آوريدلې او نه ئې راباندې څه بد اثر كړې دې.

﴿قَالَ أَنْتُمْ شَرٌّ مَكَانًا وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا تَصِفُونَ﴾[ ورته ئې اووئيل چې تاسو ډير خراب خلق يئ اوځه چې تاسو بيانوئ الله ﷻ په هغې ښه پوهه دې] چې ستاسو دا وئيل صحيح دى كه غلط دى؟

---

[1] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٤ ص:٤٠٢]

رومبئ جمله خو په زړهٔ کښې وئيلې شوې وه کيدې شي چې دا دويمه جمله ئې د رونړو په جواب کښې په ښکاره وئيلی وی.

﴿قَالُوا يَٰٓأَيُّهَا ٱلْعَزِيزُ إِنَّ لَهُۥٓ أَبًا شَيْخًا كَبِيرًا فَخُذْ أَحَدَنَا مَكَانَهُۥٓ ۖ إِنَّا نَرَىٰكَ مِنَ ٱلْمُحْسِنِينَ﴾[د يوسف ﷺ رونړو چې مشاهده اوکړه چې هيڅ خبره مو ځائې نه نيسی او دبنيامين دې ځائې د پريښودو سوا مو بله لار نشته نو دعزيز خوشامندې يې شروع کړې ،او دا خواست يې اوکړو چې ددهٔ پلار ډير بوډا او ضعيف دې [دده جدائی به برداشت نه کړې شی] نو ددهٔ په ځائې مونږ کښې يوبل کس اونيسه، ددې خواست په وجه اميد تاسو ﷺ ساتو او د امحسوسوؤ چې ته ډير احسان کوؤنکې راته ښکارې ، يا دا چې څنګه چې راسره دې څخه مخکښې هم احسان کړيدې .

﴿قَالَ مَعَاذَ ٱللَّهِ أَن نَّأْخُذَ إِلَّا مَن وَجَدْنَا مَتَٰعَنَا عِندَهُۥٓ إِنَّآ إِذًا لَّظَٰلِمُونَ﴾[ هغه اووئيل چې په الله ﷻ سره د دې خبرې نه پناه غواړم چې چا سره مونږ خپل څيز موندلې دې د هغه نه سوا بل څوک اونيسم په دغه وخت کښې خو به مونږپه ظالمانو کښې شمير شو] ځکه چې هم تاسو پخپله داسې وئيلی وو چې چا سره مال راؤختو هم هغه به ددې جزا وی .

﴿فَلَمَّا ٱسْتَيْـَٔسُوا۟ مِنْهُ خَلَصُوا۟ نَجِيًّا﴾[ نوکله چې دوئ دهغه[يوسف ﷺ] نه مايوسه شول نودمشورې دپاره ځان له شول]

﴿قَالَ كَبِيرُهُمْ﴾ د دوئ مشر اووئيل چې تاسو ته دامعلومه نه ده چې ستاسو نه خپل باباجی ﷺ د بنيامين د واپس راوستو پوه لوظ اخستې وو ، اودا چې تاسو ددې نه مخکښې هم ديوسف ﷺ په معامله کښې يو کوتاهی اوغلطی کړې ده . ځکه به اوس زهٔ د مصر زمکه تر هغې نه پريږدم ترڅو چې زما باباجی ﷺ راته پخپله دا واپس راتلو حکم اونه کړی . يا د الله ﷻ د طرفنه راته د الهام په ذريعه دې ځائې نه د وتلو حکم راکړې شی او الله ﷻ ډير غوره حکم کوؤنکې دې .

دې مشر رور نه څينې مفسرينو يهودا مراد اخستې دې . هغوئ وائی چې په عمر کښې خو دې د ټولونه مشر نه دې مګر په علم کښې او بزرګئ کښې د ټولو نه اوچت وو او څينو ترې روبيل مراد اخستې دې کوم چې په عمر کښې دټولو نه مشر وو او د يوسف ﷺ د نه وژلو مشوره هم ده کړې وه ، او څينو ترې شمعون مراد اخستې دې کوم چې د مرتبې په لحاظ سره په ټولو رونړو کښې مشر ګڼړلې شو.

﴿ٱرْجِعُوٓا۟ إِلَىٰٓ أَبِيكُمْ﴾[ يعنې مشر رور اووئيل چې څهٔ به هم دې ځائې کښې يم ، تاسو ټول خپل پلارته واپس لاړ شئ او ورته اووائې چې ستاسو ځوئې غلا کړې ده ، اومونږ چې څه وايو دا هر څه زمونږ په وړاندې شوی دی چې د غلا مال ددهٔ د سامان څخه زمونږ په وړاندې برآمد شوې دې]

﴿وَمَا كُنَّا لِلْغَيْبِ حَٰفِظِينَ﴾ يعنې مونږ چې څه وعده کړې وه چې مونږ به بنيامين ضرور واپس راولو ، دا وعده د ظاهری حالت په اعتبار سره وه ،ومونږ ته دغيبو هيڅ خبرنه وو ددې جملې بله معنی داسې کيدې شی چې مونږ خو دخپل رور بنيامين ډير حفاظت اوکړو چې ددهٔ څخه څه داسې کار اونشی د کوم په وجه چې ورته څه تکليف رسيدې شی ، مګر زمونږ دا کوشش د ظاهری احوالو تر حده پورې وو، زمونږ د نظرونو څخه غائب په لاعلمئ کښې به ددهٔ څخه داکار اوشی مونږ ته ددې هيڅ علم نه وو.

هر كله چې د يوسف ﷺ رونړو دې نه مخكښې هم خپل باباجي ﷺ سره يو دهوكه كړې وه هغوئ په دې پوهيدل چې په مونږ به زمونږ باباجي ﷺ بيا اعتبار نه كوي ، ځكه ئې دتاكيد په غرض اووئيل چې زمونږ په خبره مو كه اعتبار نه وي نو ددغې ښار د خلقو نه تحقيق اوكړئې په كوم كښې چې مونږ وو او د هغه قافلې دخلقو نه هم تحقيق كولې شئ چې هم مونږ سره د مصر نه كنعان ته تلې وو اومونږ په دې خبره كښې بالكل رښتونې يو.

تفسير مظهرى دلته هغه سوال بيا راپورته كړې دې چې يوسف ﷺ داسې بې رحمې ولې اوكړه چې دخپلو حالاتو نه ئې هم خبر نه كړو. حالانكه دغه رونړه ئې بيا بيا مصر ته راتلل اوهغوئ ته ئې خپل راز څرګند هم نكړو.

ددې ټولو جواب تفسير مظهرى دا وركړې دې چې ټول هر څۀ ئې د الله ﷻ په حكم ځكه كړې وو چې په يعقوب ﷺ باندې الله ﷻ خپل آزميښت اوامتحان مكمل كول غوښتل چې درجې ئې بلندې كړي ، د تفسير مظهرى الفاظ دادى چې :

﴿ذالك بأمر الله تعالى ليزيد في بلاء يعقوب﴾[دا ټول هر څه د الله تعالى په حكم سره وو ، چې ديعقوب ﷺ آزميښت او امتحان مكمل شي] (۱)

## حكمونه او مسائل

**اوله مسئله** :: د﴿وَمَا شَهِدۡنَآ إِلَّا بِمَا عَلِمۡنَا﴾[ اومونږ د خپل علم مطابق ګواهي وركړې ده اومونږ دغيبو هيڅ خبرنه وو] نه ثابته شوه چې د يوانسان معامله جوړول ياخه لوظ كول په ظاهرى حالاتو باندې حملولې شي ،داسې څيزونو نه نشي ورتيريدې. كومو باندې چې ددغه كس علم نه وي راغلې. رونړو چې د بنيامين د حفاظت كومه وعده كړې وه هغه دهغې څيزونو باره كښې وه كوم چې پخپل اختيار كښې وو. دې باره كښې دهغوئ هيڅ ذمه دارى نه وه چې په بنيامين د غلا تور پورې شو ، او په هغې كښې ګرفتار شو.

**دويمه مسئله**::دويمه مسئله ترې دا راؤښكلې شوې ده لكه چې قرطبى ﷫ فرمائيلې دى .هغه ددې جملې نه دا ثابتوى چې د ګواهئ كولو اړانړه په علم باندې ده چې هغه علم په هرې طريقې سره حاصل شوې وى.يعنى دغه علم كه د ستركو په ليدو سره حاصل شوى وى يا د يو معتبراو ثقه بنده نه په آؤريدو سره حاصل شوې وى ، خو شرط دادې چې اصل معاملې لره پټه نه كړي بلكه داسې بيان اوكړې چې دا واقعه مې پخپله نه ده آؤريدلې ، فلانى ثقه سړى نه مې آؤريدلې ده ، ددې اصولو په بنا باندې مالكى فقهاء كرام د نابنيا ګواهى هم روا كړې ده.

**دريمه مسئله** :: دريمه مسئله ترې دا هم ثابته شوه چې يو كس په حق او په راستئ باندې دې خو ليدونكو ته ترې د ناحق يا ګناه شبه كيدې شي . نو هغه ته پكار دى چې دغه شبه لرې كړي چې كتونكى د بد ګمانئ كولو په ګناه كښې اخته نشى لكه چې بنيامين په دې واقعه كښې هر كله چې د يوسف ﷺ د ږومبئ واقعې په بنا تهمت لګيدل اوشبه پيداكيدې شوه ځكه ددې دصفايئ دپاره د ودانئ اود قافلې دخلقو ګواهى پيش كړې شوه.

نبى كريم ﷺ پخپل عمل سره هم ددې تاكيدې كړې دې كله چې نبى كريم ﷺ ام المؤمنين صفيه ﵂ سره د يوې كوڅې نه تيريدو نوددغې كوڅې په سرباندې ئې په دوؤ سړو نظر

(۱) تفسير المظهرى تحت هذه الآية [ج:۵ص:۱۸۷]

مبارك پریوتو نو نبی کریم ﷺ ورته دلرې نه اوفرمائیل چې ما سره صفیه بنت حیی رضی الله عنها ده. دغې دواړو عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ! ستاسو باره کښې څه بدګمانی کیدې شی؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې د انسان په رګ رګ کښې شیطان داخلیږی . کیدیشی چې د چا په زړه کښې شبه واچوی .[بخاری ومسلم بحواله قرطبی]. [1]

قَالَ بَلْ

اووئیل یعقوب | بلکه

یعقوب اووئیل

سَوَّلَتْ لَكُمْ اَنْفُسُكُمْ اَمْرًا ؕ فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ ؕ عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّاْتِيَنِيْ

آسان کړو | ستاسو دپاره | نفسونو ستاسو | یو کار | نو صبر | بهتره | امید دې | چې الله | راولی ماته

بلکه دا تاسو ته خپلو نفسونو یوه خبره ښائسته کړې ده | نو هم صبر ډیر ښهٔ دې | کیدیشی چې الله ﷻ دا ټول

بِهِمْ جَمِيْعًا ؕ اِنَّهٗ هُوَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ۝ وَتَوَلّٰى عَنْهُمْ

هغوئ | ټول | بیشکه هغهٔ | هم هغهٔ | ښهٔ پوهه دې | ښهٔ حکمت والا دې | او واړولو ئې مخ | د هغوئ نه

ماته واپس راولی | هغهٔ په هرڅه پوهه دې | دحکمت خاوند دې | اویعقوب ؑ دهغوی نه مخ واړولو

وَقَالَ يٰۤاَسَفٰى عَلٰى يُوْسُفَ وَابْيَضَّتْ عَيْنٰهُ مِنَ الْحُزْنِ فَهُوَ

اووې وئیل | ائې افسوسه | په یوسف باندې | او سپینې شوې | دواړه سترګې د هغهٔ | دغم نه | پس هغهٔ

اووې وئیل چې ائې افسوسه په یوسف باندې | اود غم نه [په ژړا ژړا] ئې سترګې سپینې شوې اوهغهٔ به

كَظِيْمٌ ۝ قَالُوْا تَاللّٰهِ تَفْتَؤُا تَذْكُرُ يُوْسُفَ حَتّٰى

سخت غمګین وو | اووئیل هغوئ | قسم دې په الله | چې ته همیشه | یادوې | یوسف | تردې پورې

خفه دلګیر وو | خامنو ئې اووئیل | په الله ﷻ قسم ته همیشه یوسف ؑ یادوې | .........تردې چې

تَكُوْنَ حَرَضًا اَوْ تَكُوْنَ مِنَ الْهٰلِكِيْنَ ۝ قَالَ اِنَّمَآ

چې شې به ته | ناجوړه ډیر | یا شې به ته | د هلاکیدونکو نه | اووئیل یعقوب | بیشکه

خان به وریسې رنځور کړې | یا به [د ډیرغمه] مړ شې | ......هغهٔ [یعقوب ؑ] اووئیل چې زهٔ خو صرف

اَشْكُوْا بَثِّيْ وَحُزْنِيْٓ اِلَى اللّٰهِ وَاَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ مَا

زهٔ فریاد کوم | د غم خپل | او د خفګان خپل | الله ته | او پوهیږم زهٔ | د طرفه د الله نه | په هغه څه

الله ﷻ ته خپل غم اوخپل خفګان بیانوم | ..او د الله ﷻ د طرفنه په هغه څه پوهیږم

[1] صحیح البخاری کتاب الجهاد والسیر، باب. ماجاء فی بیوت ازواج النبی صلی الله علیه وسلم الخ [ج:۱ص:۴۳۷]و صحیح مسلم کتاب السلام باب بیان انه یستحب لمن رئی خالیا بامراة الخ [ج:۲ص:۲۱٦]و تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة[ ج:۹ص:۲٤٦]

| لَا تَعْلَمُوْنَ۝ | يٰبَنِيَّ | اذْهَبُوْا | فَتَحَسَّسُوْا | مِنْ يُّوْسُفَ | وَاَخِيْهِ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې تاسو پرې نهٔ پوهيږئ | اې خامنو زما | لاړ شئ | پس تلاش اوکړئ | د يوسف | او د رور د هغهٔ |

چې تاسو پرې نهٔ پوهيږئ . اې خامنو! څئ لاړشئ او د يوسف ﷺ او د هغه د رور لټون اوکړئ

| وَلَا تَايْـَٔسُوْا | مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ | اِنَّهٗ | لَا يَايْـَٔسُ | مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ |
|---|---|---|---|---|
| او مهٔ نااميده کيږئ | د رحمت د الله نه | بيشکه شان دادې | چې نه نااميده کيږي | د رحمت د الله نه |

اود الله ﷻ د رحمت نه مهٔ نااميده کيږئ | د الله ﷻ د رحمت نه خو صرف کافران خلق

| اِلَّا | الْقَوْمُ الْكٰفِرُوْنَ۝ |
|---|---|
| مګر | قوم کافران |

نااميده کيږي |

## آسان ترجمه قرآن

(نو دا ورونړه يعقوب عليه السلام ته لاړل، او هغه ته ئې هغه خبره وکړه کومه چه مشر ورور ورته کړې وه) يعقوب چه (دا واوريدل) نو وې وئيل چه: "داسې نه ده، بلکه ستاسو زړونو د خپل ځان نه يوه خبره جوړه کړې ده نو ما ته صبر بهتر دې. څه لرې نه ده چه الله به ما ته هغوی ټول راولي -بې شکه د هغه علم هم کامل دې او حکمت هم او (چه دا ئې اوئيل) نو هغهٔ خپل مخ واړولو، او وې وئيل: هائې يوسفه! او دهغه سترګې (دَ ډيرې ژړا د وجې نه) سپينې شوې وې او هغه په زړه کښې ډك وو د غم نه. دهغه ځامنو اوئيل: قسم په الله! ته به هميشه يوسف يادوې، تر دې چه بالکل به ويلې شې يا به هلاك شې. يعقوب اوئيل چه: زه د خپل مصيبت او غم فرياد (تاسو ته نه) الله ته پيش کوم او د الله په باره کښې چه څه ځومره پوهيږم دومره تاسو نه پوهيږئ. اې ځما ځامنو! لاړشئ او د يوسف او دهغه د ورور لټون وکړئ، او دالله د رحمت نه مه نااميده کيږئ او يقين وکړئ، چه دالله د رحمت نه هغه خلق نااميده کيږئ چه کافران دي.

## خلاصه تفسير

﴿قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ اَنْفُسُكُمْ اَمْرًا ۗ فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ ۗ عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّاْتِيَنِيْ بِهِمْ جَمِيْعًا ۗ اِنَّهٗ هُوَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ۝﴾
يعقوب[عليه السلام]د يوسف[عليه السلام]په معامله کښې ددی ټولونه غيرمطمئن شوی وو نوپه تير ئې قياس وکړو]وئې فرمائل [چه بنيامين په غلاکښې ندی نيولی شوی]بلکه داتاسوپه خپل زړه کښې يوه خبره جوړه کړيده پس[دمخکې په شان]به صبرکوم چه دشکايت پکښې نوم نه وي [ځما] دالله نه اميددی چه داټول به [يوسف[عليه السلام] اوبنيامين اوکوم مشروروړچه اوس په مصر کښې پاتې شويدی دادری واړه به ]ماته راورسوي[ځکه چه هغه دحقيقت دحال نه]ښه خبردی [نوده ته دټولوخبردی چه په کوم کوم ځای اوپه څه څهٔ حال کښې دي اوهغه]لوی حکمت والادی[هرکله چه ميلاويدل وغواړي نوپه زرګونواسباب اوتدبيرونه به برابرکړي]او[داجواب ئې ورکړوځکه چه ددوی نه ورته غم رسيدلی وو].
﴿وَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَقَالَ يٰۤاَسَفٰى عَلٰى يُوْسُفَ وَابْيَضَّتْ عَيْنٰهُ مِنَ الْحُزْنِ فَهُوَ كَظِيْمٌ۝﴾ددوی نه ئې بل طرف ته مخ کړو او[ددی وجې نه چه دي نوی غم سره ئې هغه زوړغم نورتازه شو يوسف[عليه السلام]ئې يادکړو]اووئې ويل های افسوس يوسف!اودغم نه[په ژړاژړا]دده سترګی سپيني شوی[ځکه چه په ډيرژړاسره

دستر کو تورو والی؛ کمیږي اوسترګي بی رونقه یا بلکل بی نوره شي] اوودہ [غم ئي په زړه کښي] خوړلو [خکه کله چه ډیرغم سره زیات ضبط وي لکه چه دصابرینوشان دی نود نوش کولو کیفیت پیدا کیږي].

﴿قَالُوْا تَاللّٰهِ تَفْتَؤُا تَذْكُرُ يُوْسُفَ حَتّٰى تَكُوْنَ حَرَضًا اَوْ تَكُوْنَ مِنَ الْهٰلِكِيْنَ۝﴾ زامنوني وويل چه په خدای چه [معلومیږي ته همیشه همیشه دیوسف یادکوی تردي چه ددی غم نه ویلي شی اوروح دی مرئ ته راشي یاداچه بلکل مړشي [نوددومره غم نه فائده څه ده.

﴿قَالَ اِنَّمَآ اَشْكُوْا بَثِّيْ وَحُزْنِيْٓ اِلَى اللّٰهِ وَاَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ۝ يٰبَنِيَّ اذْهَبُوْا فَتَحَسَّسُوْا مِنْ يُّوْسُفَ وَاَخِيْهِ وَلَا تَايْـَٔسُوْا مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ ۭ اِنَّهٗ لَا يَايْـَٔسُ مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ اِلَّا الْقَوْمُ الْكٰفِرُوْنَ۝﴾ يعقوب [عليه السلام] وفرمائل چه [تاسو خما په ژړا څه کوئ] زه خودخپل رنج اوغم صرف الله ته شکایت کوم [تاسو ته خوهیڅ نه وایم] اوځومره چه څه دالله تعالی خبره پیژنم تاسوئی نه پیژنئ [دخبرونه مرادیاخولطف اوکرم اورحمت تمام دی یامراد الهام دی ددی تهولودمیلاویدوکوم چه بلاواسطه وی یاپه واسطه دخوب د یوسف [عليه السلام] چه تعبیرئی لاتراوسه ندی راوتلی؛ اوواقع کیدل ئی ضروری دي] ای ځمازامنو! [دغم اظهارخوصرف الله تعالی ته کوم هغه مسبب الاسباب دی لیکن ظاهري تدبیرتاسوهم وکړئ چه یوواربیاپه سفر] لاړشئ اودیوسف اودهغه دورورتالاش وکړئ یعنی ددی فکراوتدبیرلټیون وکړئ چه په دي سره دیوسف [عليه السلام] پته میلاوشي اوبنیامین راخوشی شي اودالله تعالی درحمت نه مه ناامیده کیږئ بیشکه دالله تعالی د رحمت نه هغه خلق ناامیده کیږي کوم چه کافردي.

## معارف او مسائل

بنیامین چي په مصر کښي ګرفتار کړي شو او رونړو ئي په واپسئ کښي خپل باباجي یعقوب [عليه السلام] ته ټول حال بیان کړو او د خپلو رښتیاؤ وئیلو ضباطول ئي پرې اوکړل چي دخپل یقین راتلو دپاره د مصر د خلقو نه په څه شان سره تحقیق اوکړئی یا د قافلي هغي خلقو نه دا تپوس اوکړئی چي د مصر نه کنعان ته رارسیدلی دی چي بنیامین په غلا کښي نیولي شوي دي. یو ځل حضرت یعقوب [عليه السلام] ته د یوسف [عليه السلام] باره کښي د خپلو دغي ځامنو دروغژنی ثابته کړي شوي وه. ځکه ئي دا ځل هم پرې اعتبار او نه کړو. اګر چي واقعي کښي دا ځل هغوئ دروغ نه وو وئیلی خو بیا ئي هم هغه کلمات اوفرمائیل کوم ئي چي د یوسف [عليه السلام] د بې درکئ په موقعه فرمائیلي وو. یعنی وې فرمائیل چي : (قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ اَنْفُسُكُمْ اَمْرًا ۭ فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ ۭ) [یعقوب [عليه السلام] اووئیل بلکه دا ستاسو ته خپلو نفسونو یوه خبره ښائسته کړي ده [نو هم صبر ډیر ښهٔ دي].

امام قرطبی [رحمه الله] ددې نه دا نتیجه اوښکلي ده چي هر یو مجتهد نه په اجتهاد کښي غلطی راتلي شی البته فرق دادي چي پیغمبر [عليه السلام] نه په اول کښي دشوي غلطئ په ذریعه وحی سره اصلاح کولي شی او بالاخر حق بیا مومی. دلته د ځانه خبري جوړولو مطلب دا هم کیدې شی چي کوم په مصر کښي د بنیامین د ایسارولو دپاره د غلا الزام لګولو سره یو چل جوړ کړي شوي وو ، او بالاخر په یو ډیر غوره صورت کښي ښکاره کیدونکي وو ، ددې آیت مبارك په راتلونکی جمله کښي ورته په دې شان سره هم اشاره کولي شی چي وې فرمائیل :(عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّاْتِيَنِيْ بِهِمْ جَمِيْعًا ۭ) [کیدیشی چي الله [جل جلاله] دا ټول ماته واپس راولی].

خلاصه داده چي یعقوب [عليه السلام] دځل د خپلو بچو خبره اونه منله ، ددې حاصل دا وو چي په حقیقت نه څه غلا کیږي او نه بنیامین ګرفتار شوي دې ، خبره څه نوره ده ، دا پخپله ځائې

صحيح وو ، مگر ځامنو يې په قصد سره څه وئيلي وو هغه غلط نه وو.
[وَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَقَالَ يٰٓاَسَفٰى عَلٰى يُوْسُفَ وَابْيَضَّتْ عَيْنٰهُ مِنَ الْحُزْنِ فَهُوَ كَظِيْمٌ] يعنى يعقوب ﷺ ددې دويم غم څخه وروستو ځامنو سره يې د خبرو معامله پريښوده او خپل رب ته يې فرياد شروع كړو ، او وې فرمائيل چې زۀ يوسف ﷺ پسې ډير په غم كښې يم، او په دې غم كښې په ژړا ژړا ددوئ د سترګو نظر تلې وو، يعنى نابينا شوى وو يا ډير زيات ضعيف شوې وو ، امام تفسير مقاتل فرمائي چې يعقوب ﷺ په دې حالت كښې شپږ كاله وو چې نظر تقريبا تلې وو، [فَهُوَ كَظِيْمٌ] يعنى هغه خاموش شو ، چا ته به يې خپل غم نه بيانولو ، [كَظِيْمٌ] د كظم څخه مشتق دې ، او ددې معنى ده بنديدل او ډكيدل ، مراد ترې دادې چې دغم د لاسه دهغه زړه ډك شوې وو ، او ژبه يې بنده شوې وه ، او هيچا ته به يې خپل غم نه بيانولو.
په دې وجه د [كَظِيْمٌ] معنى ده غصه برداشت كول ، د غصې په وجه د ژبې يا لاس څخه څه كار نه كيدل ، حديث پاك كښې دى چې [ومن يكظم الغيظ يأجره الله] يعنى كوم كس چې خپله غصه برداشت كړي او په دې باندې د قدرت لرلو باوجود عمل او نه كړي ، الله ﷻ به دۀ ته ډير لوئې اجر وركوى.([1])
يو حديث پاك كښې دى چې الله ﷻ به د حشر په ورځ داسې خلقو ته د عامو خلقو په مخكښې د جنت په نعمتونو كښې اختيار وركړي چې څه غواړئ نو هغه واخلئ.([2])
امام ابن جرير رحمه الله دې ځاى كښې يو حديث نقل كړې دې چې د مصيبت په وخت كښې د [اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّآ اِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ] د وئيلو تلقين ددې امت په خصوصياتو كښې دى ، او دا كلمه انسان ته دغم او مصيبت څخه د نجات وركولو لويه ذريعه ده ، ددې څخه د امت محمديه خصوصيت په دې وجه معلوميږى چې د ډير غم او مصيبت په وخت كښې يعقوب ﷺ ددې جملې په ځائې [يٰٓاَسَفٰى عَلٰى يُوْسُفَ] اوفرمائيل ،بيهقى په شعب الايمان كښې هم دا حديث پاك د ابن عباس رضي الله عنهما څخه نقل كړې دې.([3])

**د يعقوب ﷺ يوسف ﷺ سره دومره زيات محبت ولې وو:** په دې مقام باندې د يعقوب ﷺ يوسف ﷺ سره دومره محبت وو چې كله هغوئ بې د ركه شونو دهغې په وجه يې څلويښت كاله او دځينو روايتونو مطابق اتيا كاله په ژړا كښې تير كړل چې نابينا هم شو ، دا صورت د هغوئ دپيغمبرئ شايان شان نه وو چې اولاد سره دې دومره محبت اوكړې شى ، حالانكه قرآن پاك اولاد ته فتنه وئيلې ده . [اِنَّمَآ اَمْوَالُكُمْ وَاَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ] يعنى ستاسو مالونه او ستاسو اولاد فتنه او آزمينبت دې ، او قرآن پاك دانبياء كرامو شان دا فرمائيلې دې چې : [اِنَّآ اَخْلَصْنٰهُمْ بِخَالِصَةٍ ذِكْرَى الدَّارِ] يعنى مونږ انبياء عليهم السلام يو خاص صفت سره خاص كړې دى ، هغه صفت دې د دار آخرت يادول ، مالك بن دينار ددې معنى كښې فرمائي چې مونږ ددوئ د زړونو څخه ددنيا محبت اوويستلو ، او صرف د آخرت محبت مو ددوئ په زړونو كښې واچولو ، ددوئ هر نظر صرف او صرف په آخرت باندې وى .

---

[1]) دلائل النبوة للبيهقي رقم الحديث[۱۹۹٤]
[2]) سنن ابوداود، كتاب الأدب ، باب الوقار ومن كظم غيظا [ج:۲ص:۶۵۹]
[3]) تفسير الطبري رقم الحديث:[۱۹۶۵۸] وشعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث [۹۳۶۲]

قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله په تفسير مظهري كښې دا اشكال ذكر كړې دې او د مجدد الف ثاني رحمه الله يو خاص تحقيق يې نقل كړې دې، دهغې خلاصه داده چې بيشكه ددنيا او ددنيا د متاع محبت مذموم دې ، د قرآن او حديث ډېر شميره نصوص په دې باندې ګواه دي ، خو په د نيا كښې چې كوم څيزونه د آخرت سره تعلق ساتي دهغې محبت كښې د آخرت محبت شامل دې ،د يوسف عليه السلام كمال يوازې د هغوئ د شكل او صورت ښكلا نه وه ، بلكه پيغمبري پاكوالئ او ښه خويونه وغيره هم دهغوئ كمالات وو چې دې ته او كتلې شي نو هغوئ عليه السلام سره مينه لرل په حقيقت كښې آخرت سره مينه لرل وو ، انتهى.(۱)

دې ځائې دا هم كتل پكار دي چې دې كښې د دنيا د مينې يو اړخ هم موجود وو ځكه خو د يعقوب عليه السلام د آزميښت ذريعه جوړه شوه ، څلويښت يا اتيا كاله پرې د غم خفګان انبارونه ډيرې وو ، د الله ﷻ د طرفه دې دپاره څه داسې صورتونه جوړيدل چې غمونه او خفګانونه ئې اوړيدل . ګنې دداسې واقعې په اول سر كښې داسې كيدې شو چې د خپلو ځامنو په خبرې آوريدو سره زر تر زره په تحقيق كولو پسې لګيدلې وې او معلوم كړې يئ وې خو الله ﷻ دغه آزميښت اوږدول غوښتل ځكه ئې دغسې اونه كړل بيا الله ﷻ يوسف عليه السلام له خپل باباجي عليه السلام ته د هر قسم خبر وركولو نه منع كړو ، ځكه خو د مصر بادشاه چې جوړ شو نو هم ئې باباجي عليه السلام خبر نه كړو ، مصر ته د يوسف عليه السلام رونړه بيا بيا راغلل ، نه ئې هغوئ خبر كړل او نه ئې خپل باباجي عليه السلام ته خبر وركړو. بلكه رور ئې ځان سره په څه تدبير ايسار كړو چې د باباجي عليه السلام غم ئې ورسره نور هم زيات شو. دا ټول صورتونه خو ښكاره د خفګان ، نقصان او تاوان وركولو صورتونه وو چې د يوسف عليه السلام د پيغمبرئ د شان سره ئې بالكل سمون نه خوړلو ، خو يعقوب عليه السلام د آزميښت په خاطر دا ټول كارونه يوسف عليه السلام د وحي الهي مطابق كړي وو. څنګه چې قرطبي رحمه الله وغيره مفسرينو فرمائيلي دي او په :(كَذٰلِكَ كِدۡنَا لِيُوسُفَ) كښې ورته اشاره هم موجوده ده . والله سبحانه و تعالى اعلم.

(قَالُوۡا تَاللّٰهِ تَفۡتَؤُا تَذۡكُرُ يُوسُفَ) [او يعقوب عليه السلام دهغوى نه مخ واړولو اووې وئيل چې ائې افسوسه په يوسف باندې [او د غم نه [ په ژړا ژړا] ئې سترګې سپينې شوې او هغه به خفه دلګير وو] آخر د غم او خفګان څه انتها وى ، څه موده پس ئې خلق هير كړى مګر د دومره زمانې تيريدو نه پس هم ستاسو غم ورځ په ورځ نور هم زياتيږي .

په دې خبرو آوريدو سره يعقوب عليه السلام اوفرمائيل چې : (قَالَ اِنَّمَاۤ اَشۡكُوۡا بَثِّىۡ وَحُزۡنِىۡۤ اِلَى اللّٰهِ) [زه خو خپل فرياد د غم خفګان ښكاره كول تاسو يا نور چاته نه كوم بلكه د الله تعالى ذات ته ئې كوم ځكه مې پخپل حال پريږدئ] او ورسره ئې دا هم ښكاره كړل چې زما د ايادول به تش نه ځي د الله تعالى د طرفه هغه څيز وينم دكوم خبر چې تاسو نه لرئ ، يعنى الله ﷻ ماسره د هغوئ د دوباره يو ځائې كولو وعده كړې ده .

(يٰبَنِىَّ اذۡهَبُوۡا فَتَحَسَّسُوۡا مِنۡ يُّوۡسُفَ وَاَخِيۡهِ) [ائې ځامنو ځئ لاړشئ او د يوسف عليه السلام او د هغه د رور لټون اوكړئ او الله ﷻ د رحمت څخه مه نااميده كيږئ ځكه چې د الله ﷻ د رحمت څخه كافر قوم نه سوا بل څوك نه نااميده كيږي ]

---

۱) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:۵ص:۱۹۱۹۹۰]

يعقوب ﷺ دومره ډير موده پس خپلو ځامنو ته د يوسف ﷺ او دهغوئ د رور د لټولو حكم اوس ځكه وركړو چې د اټول ځيزونه د تقدير تابع داسې وو چې دې نه اول دهغوئ ملاويدل په تقديركښې نه وو مقرر شوی ، او اوس د هغې ځائې كيدو وخت ئې راغلې وو ځكه د هغې مناسب تدبير ورته الله تعالى په زړهٔ كښې واچولو.

د دواړو د لټون حكم ئې ورته د مصر په طرف كښې وركړو او هم دغه خواته ئې ورته بيا د سفر كولو حكم اوكړو. د بنيامين په حق كښې داسې كول معلومه او ښكاره وو خو په ظاهره د مصر په طرف كښې د يوسف ﷺ د لټولو هيڅ وجه نه ښكاريده ، دا د الله تعالى كار دې چې اراده ئې اوشي نو د هغې كار مناسب اسباب راجمع كړي.

ځينو مفسرينو فرمائيلي دي چې يعقوب ﷺ كله چې په دې خبر شو چې عزيز مصر ورته د هغوئ ﷺ د ځامنو پنګه هم د هغوئ په سامان كښې واپس كړې وه ، هغې نه يعقوب ﷺ دا اندازه لګولې وه چې عزيز مصر ځوك ډير زيات شريف انسان كيدې شي چې دا يوسف ﷺ پخپله وي.

**حكمونه او مسائل :**

امام قرطبي رحمه الله فرمائيلي دي چې كله يو مسلمان بنده ته څه نقصان ، تاوان ، تكليف او مصيبت په ځان ، مال او اولاد كښې اورسي نو دهغې علاج دې په صبر جميل او د الله ﷻ په تقدير باندې راضي كيدو سره كوي او په دې شان يعقوب ﷺ او د نورو پيغمبرانو ﷺ په لار باندې دې ځي .(1)

حسن بصري رحمه الله فرمائيلي دي چې د الله ﷻ په نزد د انسان په ټولو اغستلو ګوټونو كښې دوه ګوټونه ډير زيات خوښ دي ، يو په غم باندې د صبر كولو او بل د غصې په وخت كښې ګوټ.(2) د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې (من بث لم يصبر) [چا چې خپل څه مصيبت په خلقو كښې خور كړو نو هغه صبر اونه كړو](3)

ابن عباس رضي الله عنه فرمائيلي دي چې الله ﷻ يعقوب ﷺ ته په دې صبر كولو باندې د شهيدانو ثواب وركړو ، په دې امت كښې چا چې صبر اوكړو هغه ته به هم دغسې اجر ملاويږي .(4)

امام قرطبي رحمه الله د ځينو نورو روايتونو په بنياد فرمائيلي دي چې يو ځل يعقوب ﷺ د تهجدو مونځ كولو ، يوسف ﷺ ورسره خواه كښې اوده وو. دهغوئ ﷺ په خرړيدو سره د يعقوب ﷺ ور سره د هغوئ ﷺ طرفته شوه ، دغسې په دويم او دريم ځل هم اوشو نو الله ﷻ خپلو فرښتو ته اوفرمائيل چې اوګورئي دا زما دوست او مقبول بنده ماسره د خطاب او د عرض معروض په وخت كښې نور مخلوق ته مخه كوي. زما دې په خپل عزت او جلال قسم وي چې څه به ئې دا

---

1) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۹ص:۲۴۷]
2) تفسير القرطبي [ ج:۹ص:۲۴۷]
3) تفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث[۱۲۷۳۳]
4) تفسير القرطبي [ ج:۹ص:۲۴۷]

دواړه سترګې راؤباسم په کومو سره ئې چې زما نه سوا بل چاته ئې مخه کړې ده ، او چا ته ئې چې پرې مخه کړې ده هغه به ترې ډېرې مودې پورې جدا کړم.(۱)

دبخاري شريف کښې يو حديث پاک دې ، عائشه صديقه ﷺ نه روايت دې چې عائشه صديقه ﷺ رسول کريم ﷺ نه تپوس اوکړو چې ، مونځ کښې بل طرفته کتل څنګه دي ؟ رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې ددې په ذريعه د بندۀ مونځ لره شيطان تښتوی ،(۲) العياذ بالله.

فَلَمَّا دَخَلُوْا عَلَيْهِ قَالُوْا يٰٓاَيُّهَا الْعَزِيْزُ

| نو هر کله چې | ورننوتل | په هغه | نو وې وئيل | ائې سرداره د اختيار خاونده

| کله چې هغوئ [ورونړه] يوسف ﷺ ته ورغلل | نو وې وئيل چې ائې عزيزه

مَسَّنَا وَاَهْلَنَا الضُّرُّ وَجِئْنَا بِبِضَاعَةٍ مُّزْجٰةٍ فَاَوْفِ

رسيدلې دې مونږ ته |اوكور والو زمونږ ته| تکليف|او راوړې ده مونږ|سرمايه | معمولي |نو پوره راکړه

مونږ ته اوزمونږ د کور خلقو ته ډېر تکليف رسيدلې دې |اومونږ څه لږه معمولي سرمايه راوړې ده | نو

لَنَا الْكَيْلَ وَتَصَدَّقْ عَلَيْنَا ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَجْزِي الْمُتَصَدِّقِيْنَ ۝

مونږ ته | پيمانه | او خيرات اوکړه | په مونږ باندې | بيشکه الله| جزا ورکوی| خيرات ورکونکو ته

مونږ ته د غلې پوره پيمانه راکړه | اوپه مونږ خيرات اوکړه |بيشکه الله صدقه ورکونکو ته بدله ورکوی

قَالَ هَلْ عَلِمْتُمْ مَّا فَعَلْتُمْ بِيُوْسُفَ وَاَخِيْهِ

اووئيل يوسف| آياعلم شته تاسو ته| په هغه کار| چې کړې وو تاسو| په يوسف باندې| اوپه ورور د هغۀ

يوسف ﷺ تپوس اوکړو|چې آيا تاسو ته معلومه ده|چې تاسو د يوسف او د هغۀ دورور سره څه کړی وو.

اِذْ اَنْتُمْ جٰهِلُوْنَ ۝ قَالُوْٓا ءَاِنَّكَ لَاَنْتَ يُوْسُفُ ؕ قَالَ

کله چې| تاسو | ناپوهه وئ | اووئيل هغوئ| آيا ولې ته | خامخا هم تۀ | يوسف ئې څه| اووئيل هغۀ

کوم وخت کښې چه تاسو نۀ پوهيدلئ| هغوئ اوو ئيل چې آيا هم ته يوسف ﷺ يې | هغۀ اوو ئيل چې

اَنَا يُوْسُفُ وَهٰذَآ اَخِيْ ؗ قَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَيْنَا ؕ اِنَّهٗ مَنْ

زۀ | يوسف يم | او دا | رور زما دې|احسان اوکړو|الله |په مونږ باندې| بيشکه حقيقت دا دې| هغه څوک

هوا هم زۀ يوسف ﷺ يم |اودا زما ورور دې | په مونږ باندې الله ﷻ احسان کړې دې | يقينا

يَّتَّقِ وَيَصْبِرْ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ اَجْرَ الْمُحْسِنِيْنَ ۝ قَالُوْا

چې اوويريږی| اوصبر اوکړی| نو بيشکه| الله| نۀ ضائع کوی| اجر د نيکانو خلقو| اووئيل هغوئ

څوک چې [د الله نه]ويريږی |اوصبر کوی |نو بيشکه الله د داسې| نيکانو بدله نۀ ضائع کوی هغوئ اووئيل

(۱) تفسير القرطبي [ ج:۹ص:۲۴۸]
(۲) صحيح البخاری کتاب الأذان ، باب الإلتفات فی الصلاة [ج:۱ص:۱۰۴]

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| تَاللّٰهِ | لَقَدْ | اٰثَرَكَ | اللّٰهُ | عَلَيْنَا | وَاِنْ | كُنَّا | لَخٰطِـِٕيْنَ ۝ | |
| قسم دی په الله | خامخا بیشکه | غوره کړي ته | الله | په مونږ باندي | اوبيشكه | ووُمونږ | خامخاخطاكار | |
| په الله ﷻ قسم | الله ﷻ تاته په مونږ باندي فضيلت درکړي دی | اوبيشكه هم مونږ خطاكار يو | | | | | | |
| قَالَ | لَا تَثْرِيْبَ | عَلَيْكُمُ | الْيَوْمَ | يَغْفِرُ | اللّٰهُ | لَكُمْ | وَهُوَ | اَرْحَمُ |
| اووئيل يوسف | نشته سزا | په تاسو | نن ورځ | او دي ببنبي | الله | تاسو | او هغهٔ | زيات رحم كونكي دي |
| يوسف عليه السلام ورته اووئيل | چي په تاسو هيڅ سزا نشته | الله ﷻ دي تاسو معاف كړي | اوهغهٔ ټولو نه زيات | | | | | |
| الرّٰحِمِيْنَ ۝ | | | | | | | | |
| درحم كونكونه | | | | | | | | |
| مهربانه دي | | | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

نو چه كله دوی يوسف څخه ورسيدل نو دوی (يوسف ته) اوئيل: اې عزيز مصرا په مونږ او ځونږ په كور والو باندې سخت مصيبت راغلې دې ، او مونږ څه معمولي غونډې پنګه راوړې ده ، نو تاسو مونږ ته پوره پوره غله را كړئ او الله دپاره په مونږ باندې احسان وكړئ. يقيناً الله تعالى احسان كونكو ته ډير اجر وركوي. يوسف اوئيل : تاسو ته څه پته شته چه تاسو كله په جهالت كښې وئ نو تاسو د يوسف او دهغه ورور سره څه كړي وو؟ ( دې باندې) هغوی اوئيل: آيا ته يوسف ئې؟ يوسف اوئيل : څه يوسف يم ، او دا ځما ورور دې الله په مونږ ډير احسان كړې دې. حقيقت دا دې چه څوك پرهيزګارى او صبر كوي نو الله د نيكي كونكو اجر نه ضايع كوي. هغوی اوئيل: قسم په الله ! الله تا لره په مونږ باندې غوره والې دركړې دې ، او مونږ يقيناً خطاكار وو. يوسف اوئيل : نن ورځې به په تاسو څه ملامتيا نه وي ، الله دِ تاسو ته معافي وكړي يقيناً هغه ډير رحم كونكي دې دټولو رحم كونكو نه.

## خلاصه تفسير

﴿فَلَمَّا دَخَلُوْا عَلَيْهِ قَالُوْا يٰٓاَيُّهَا الْعَزِيْزُ مَسَّنَا وَاَهْلَنَا الضُّرُّ وَجِئْنَا بِبِضَاعَةٍ مُّزْجٰىةٍ فَاَوْفِ لَنَا الْكَيْلَ وَتَصَدَّقْ عَلَيْنَا ۭ اِنَّ اللّٰهَ يَجْزِي الْمُتَصَدِّقِيْنَ ۝ قَالَ هَلْ عَلِمْتُمْ مَّا فَعَلْتُمْ بِيُوْسُفَ وَاَخِيْهِ اِذْ اَنْتُمْ جٰهِلُوْنَ ۝﴾ بيا [د يعقوب عليه السلام] دحكم موافق چه دوی فرمائلي وو :مصرته لاړل،څكه چه بنيامين ئې په مصر كښې پاتې كړې وو داخيال بـه ئـې كـړی وي چـه دكـوم نښـه معلومـه ده اول دهغـه دراوستوتدبيرپكاردي چه دبادشـاه نـه ئـې وغواړوبيابـه د يوسف [عليه السلام] دلټـون پـه غـرض مـصرتـه ورسيـدل]هركلـه چـه يوسف[عليه السلام]ته [څوك ئې چه عزيزګڼلو] ورسيدل [اودغلي حاجت هم وو،نوخيال ئې وكړوچه دغلي په بهانه به عزيزته ورشوچه بيابه دخوشامندی خبری شروع كړونوچه كله ئې په طبيعت كښې نرمـی اومـزاج ئـې خوشـحاله ووينونودبنيـامين درخواست بـه وكـړو،پـه دی وجـه اول ئـی دغلي متعلق خبری شروع كړي او]وئـی ويـل ای عزيـزه امونږتـه اوزمونږكوروالوتـه [دقحط په وجه]ألوی تكليف رسيدلی دی او[چونكه مونږغريبئ راګير كړی يوپـه دی وجـه دغلـي اخيستلو لپاره راسره كره قيمت هم نشته]مونږداخه بيكاره څيزونه راوړی دي پس ته[ددی بيكاروالی نه مه ګوره]او[زمونږڅه حق نشته خو]ته ئې مونږته خيرات[وګڼه] راكړه بيشكه الله تعالى خيرات وركونكولره [كه په حقيقت كښی خيرات وركوی اوكه هسي رعايت كوي هغـه هم په مثل

دخيرات دى]جزا [نيكه]وركوي [كه مؤمن وي په آخرت كښې هم ورنه په دنيا كښې] يوسف [عليه السلام]چه ددوى نه دغريبئ خبرى واوريدي نوصبرترى ونه شواوبى اختياره ئى وغوښته چه اوس خان ورته ښكاره كړي،اوداهم عجيبه نه ده چه ورته دزړه په نورسره ښكاره شوى وي چه داواراوس دوى دده لټون هم كوي اوداهم ورته ښكاره شوى وه چه اوس دجدايي دورختم شوپس دتمهيد د تعارف په طورئى ]وفرمائل[ووائى]چه هغه هم تاسوته ياده ده څه چه تاسود يوسف[عليه السلام]اودده دورورسره[سلوك]كړى و،كله چه ستاسودجهالت زمانه وه[اودبنه اوبدسوچ درسره نه وو.

﴿قَالُوٓاْ أَءِنَّكَ لَأَنتَ يُوسُفُۖ قَالَ أَنَا۠ يُوسُفُ وَهَٰذَآ أَخِيۖ قَدۡ مَنَّ ٱللَّهُ عَلَيۡنَآۖ إِنَّهُۥ مَن يَتَّقِ وَيَصۡبِرۡ فَإِنَّ ٱللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجۡرَ ٱلۡمُحۡسِنِينَ﴾ چه دائى واوريدل نواول خوپرى سروګرځيدوچه دعزيزمصرد يوسف[عليه السلام] دقصى سره څه تعلق دې،بل خواداولى زمانى دخوب نه دااحتمال وو چه شايد يوسف[عليه السلام]الوئى مرتبى ته ورسيږي چه بياورته مونږټول سرونه ښكته كوو،نوځكه ئى ددى خبرى نه ئى شك پيداشواوفكرئى وكړونوځه لړلړئى وپيژندلواودزيات تحقيق لپاره ئى]وويل چه په رشتياچه ته يوسف ئى دوى وفرمائل چه [ او كه]څه يوسف[عليه السلام] يم اودا [بنيامين]خماحقيقى وروردى [دائى څكه زياته كړه چه دده ديوسف كيدوزيات تاكيدوشى،يادداوى دلټون دكاميابئ زيرى دى چه دچادلټولولپاره چه تاسوراوتلى ئى مونږدواړه يوځاى جمع يو]په مونږالله تعالى احسان وكړو[چه مونږدواړوته ئى اول دصبراوتقوى توفيق راكړوبيائى ددى په بركت سره څمونږتكليف په راحت اوجدائى په يوځاى كيدلواوكموالئ دمال اومرتبى په ډيروالى دمال اومرتبى سره بدل كړو]بيشكه څوك چه دګناهونونه ځان ساتي او[په مصيبتونو]صبركوي نوالله تعالى دداسى نيكى كونكو اجرنه ضائع كوي،.

﴿قَالُواْ تَٱللَّهِ لَقَدۡ ءَاثَرَكَ ٱللَّهُ عَلَيۡنَا وَإِن كُنَّا لَخَٰطِـِٔينَ ۝ قَالَ لَا تَثۡرِيبَ عَلَيۡكُمُ ٱلۡيَوۡمَۖ يَغۡفِرُ ٱللَّهُ لَكُمۡۖ وَهُوَ أَرۡحَمُ ٱلرَّٰحِمِينَ﴾ دوى[تولى تيرى قصى يادى كړى اوپشيمانه شواوپه معذرت سره ئى]وويل چه په خداى هيڅ شك نشته تاته الله تعالى په مونږباندى غوره والئ دركړو[اوته ددى لائق وى]او[مونږچه څه كړى دى]بيشكه مونږه[په دى كښى ]خطاكارو و[دالله لپاره مونږمعاف كړه] يوسف[عليه السلام]وفرمائل چه نشته نن په تاسو[څمادطرفه] كوم الزام [بيغمه اوسئ څمازړه صفا شو]الله تعالى دى ستاسوقصورمعاف كړى اوهغه دټولومهربانانونه زيات مهربانه دى [دتوبه ويستونكوګناه معافوي،دى دعانه داهم معلومه شوه چه ماهم معاف كړئ].

## معارف او مسائل

دې آيتونو كښې د يوسف ﷺ اود هغوئ د رونړو پاتې قيصه ئې داسې بيان شوې ده چې د يوسف ﷺ والد يعقوب ﷺ ورته دا حكم وركړو چې لاړ شئ د يوسف ﷺ او دده د رور لټون اوكړئې. نو هغوئ ﷺ په دريم ځل د مصر سفر اوكړو ، د بنيامين په مصر كښې موجودګى خو ورته معلومه وه ، د هغوئ رومبې كوشش كول د هغه د راخلاصولو وو. د يوسف ﷺ دغه ځائې كښې موجودګئ يقين ئې اګر چې نه وه خو هر كله چې د كار كيدو وخت راشى نو د انسان تدبيرو نه په ناخبرئ كښې هم برابر شى . لكه يو حديث پاك كښې راغلى دى چې كله الله ﷻ د يو كار اراده اوفرمائى نو د هغې اسباب پخپله راجمع كړى ، په دې بنا د يوسف ﷺ د لټون دپاره هم د مصر سفر كول مناسب وو ، او د غلې ضرورت هم ورته وو ، او دا خبره هم وه چې د غلې حاصلولو په بهانه به عزيز مصر سره ملاقات اوشى چې د خپل رور بنيامين د خلاصى دپاره به ورته زارى منت اوكړى.

﴿فَلَمَّا دَخَلُوا عَلَيْهِ قَالُوا﴾ [ کله چې هغوئ [وروڼه] يوسف ﷺ ته ورغلل نو وې وئيل چې ائي عزيز؛ مونږ ته او زمونږ د کور خلقو ته ډير تکليف رسيدلې دې او مونږ څه لږه معمولي سرمايه راوړې ده نو مونږته د غلې پوره پيمانه راکړه او په مونږ خيرات اوکړه بيشکه الله صدقه ورکونکو ته بدله ورکوي]

ددې سپکو څيزونو څه تفصيل په قرآن عظيم الشان او حديث پاك کښې نه دې بيان شوې څکه د مفسرينو اقوال په دې کښې مختلف دی. څينو وئيلی دی چې دا کوټه روپئ وې او څينو فرمائيلی دی چې دا کورنې سامان وو داد مزجاة لفظ ترجمه ده. ددې اصلی معنی داسې يو څيز دې چې په بازار کښې په عام طور اخستلو دپاره نه استعماليږي بلکه د زبردستئ او مجبورئ په حالاتو کښې په اخستلو خرڅولو کښې استعمالولې شی.

کله چې يوسف ﷺ د خپلو رونړو د عاجزئ دغه الفاظ واؤريدل ، نو طبيعت ئې اوغوښتل چې اوس ورته اصلی حالات ښکاره کړی. ولې چې اندازه داسې ده چې الله ﷻ پرې د حالاتو ښکاره کولو پابندی ختمه کړه.

تفسير قرطبي او مظهری په روايت د ابن عباس ﷺ نقل کړی دی چې دا څل يعقوب ﷺ د عزيز مصر په نوم يو ليکلې خط خپلو څامنو ته ورکړې وو ، د هغې مضمون دا وو ، د يعقوب صفی الله څوئې د اسحاق ﷺ ذبيح الله ،([1]) څوئې د ابراهيم ﷺ خليل الله د طرفه په خدمت د عزيز مصر کښې.

اما بعد ! زمونږ ټول خاندان په مصيبتونو او آزميښتونو کښې مشهور دې .زما د نيکه ابراهيم ﷺ امتحان د نمرود په اور سره واخستې شو ،بيا زما د باباجی اسحاق ﷺ سخت امتحان واخستې شو. بيا زما امتحان زما د يو هلك په ذريعه واخستې شو ، چې د ټولو څامنو نه مې ډير زيات خوښ وو، تر دې پورې چې دهغوئ ﷺ په بيلتون کښې زما د سترګو نظر هم ختم شو. بيا زما تسلی په يوبل کشر رور ئې کيده کوم لره چې تاسو ﷺ دغلا په الزام کښې بنديوان کړې دې او زۀ درته ښايم چې مونږ د پيغمبرانو اولاد يو ، نه خو مونږ چرې غلا کړې ده او نه زمونږ په اولاد کښې څوك غل پيدا شوې دې . والسلام.

يوسف ﷺ ددې خط په لوستلو سره اورپيدو او بې اختياره په ژړا شو ، خپل راز ئې رونړو ته د ښکاره کولو([2]) په غرض ترې دا تپوس اوکړو چې آيا تاسو ته ياد دی چې يوسف ﷺ او دهغوئ ﷺ رور سره مو څه زياتې کړې وو کله چې ستاسو د ناپوهئ زمانه وه چې د ښه بد د سوچ او ددې د انجام ليدو د فکر نه بې پروا وې ؟

د يوسف ﷺ رونړه ددې خبرې په آؤريدو سره اوترې شو چې دعزيز مصر د يوسف ﷺ قيصې سره څه تعلق کيدې شی ، بيا ئې دې خوا خيال لاړو چې يوسف ﷺ په وړوکتوب کښې چې کوم خوب ليدلې وو دهغې تعبير هم دا وو چې يوسف ﷺ ته به لوړه مرتبه حاصله شی او مونږ ټول به د يوسف ﷺ په وړاندې سر ښکته کيږو. هسې نه چې دا عزيز مصر پخپله

---

[1] ) ذبيح حضرت اسحاق ﷺ وو يا حضرت اسماعيل ﷺ؟ ددې پوره تحقيق سورة الصّٰفٰت (جلد اووم ص:۵۰۶ نه تر ص:۵۱۱) باندې اوګورئ.(ناشر)

[2] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۹ص:۲۵۶] و تفسير المظهری[ج:۵ص:۱۹۷]

يوسف ﷺ وی ، په ژور فکر او سوچ سره ئې د نخښو نه اوپیژندو او د زیات تحقیق دپاره ئې ورته اووئیل چې :

﴿ءَاِنَّكَ لَاَنْتَ يُوْسُفُ﴾ [ هغوئ اووئیل چې آیا هم ته یوسف ﷺ یئ ] یوسف ﷺ اوفرمائیل چې آؤ ، هم زهٔ یوسف ﷺ یم ، او دا بنیامین زما ځکه رور دې ، د رور یادګیرنه ئې ځکه اوکړه چې ښه یقین ئې راشی . بل دا چې هغوئ دخپل مقصد په کامیابئ باندې ښه په ښکاره پوهه شی ، چې هغه دواړه رونړه مونږ ته په یوځائې په ګوتو راغلل دکومو لټون پسې چې راوتی وو ، بیا ئې اوفرمائیل چې :

﴿قَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَيْنَا ۖ اِنَّهٗ مَنْ يَّتَّقِ وَيَصْبِرْ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ اَجْرَ الْمُحْسِنِيْنَ﴾ [ یعنی الله ﷻ په مونږ باندې احسان او مهربانی کړې ده چې اول یې مونږ دواړه ته د صبر او تقوی دوه صفات راکړل چې د کامیابئ کنجی ده او د هر مصیبت څخه امان دې ، بیا یې زمونږ تکلیف راحت سره ، بیلتون یې په یوځایې کیدو سره ، دمال او مرتبې کموالې یې ددې په ډیر والی سره بدل کړو ،یقینا څوک چې [دالله نه]ویریږی او صبر کوی نوبیشکه الله د[داسې] نیکانوبدله نه ضائع کوی ]

اوس خو د یوسف ﷺ رونړه په دې مجبوره وو چې دخپلې غلطئ او جرم اقرار اوکړی ، د یوسف ﷺ بهتری او کمال ښه په ښکاره اومنی ، ځکه ټولو په جمع اووئیل چې :

﴿تَاللّٰهِ لَقَدْ اٰثَرَكَ اللّٰهُ عَلَيْنَا وَاِنْ كُنَّا لَخٰطِئِيْنَ﴾ [ په الله ﷻ قسم الله ﷻ تاته په مونږ باندې فضیلت درکړې دې اوبیشکه هم مونږ خطاکار یو الله دپاره مونږ معاف کړه ]

یوسف ﷺ په جواب کښې د پیغمبرئ دشان مطابق اوفرمائیل چې :﴿قَالَ لَا تَثْرِيْبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ﴾ [ یعنی ما به ستاسو څخه انتقام اخستو وو د مظالمو ، نن په تاسو هیڅ سزا نشته ] دا خو ئې د خپل طرفنه د معاف کولو زیرې ورکړو ، بیا ئې دوئ دپاره دعا اوکړه چې :

﴿يَغْفِرُ اللّٰهُ لَكُمْ ۖ وَهُوَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ﴾ [ للهﷻ دې ستاسو غلطیانې معاف کړی اوهغه دټولو مهربانو نه زیات مهربانه دې ]

بیائې اوفرمائیل چې: ﴿اِذْهَبُوْا بِقَمِيْصِيْ هٰذَا فَاَلْقُوْهُ عَلٰى وَجْهِ اَبِيْ يَاْتِ بَصِيْرًا ۚ وَاْتُوْنِيْ بِاَهْلِكُمْ اَجْمَعِيْنَ﴾ [ یعنی تاسو دا زما قمیص یوسئ اوزما د پلار په مخ ئې واچوئ هغه به لیدونکې اوګرځی او دلته به د راتلو قابل شی اوماله خپل ټول خاندان دلته راولئ ځکه چې ټول په یو ځایې کیدو سره به خوشحاله پاتې کیږو اودالله ﷻ د ورکړی نعمتونو څخه فائده پورته کړواوشکر ګذار جوړ شو ]

### حکمونه او هدایات:

ددې آیتونونه ډیر حکمونه ،مسئلې او د انسانی ژوند دپاره ډیر ضروری هدایتونه حاصل شو.

د ﴿وَتَصَدَّقْ عَلَيْنَا﴾ نه اول دا سوال پیدا کیږی چې هر کله د یوسف ﷺ رونړه د پیغمبر ﷺ اولاد وو ، هغوئ لره خیرات اوصدقه اخستل څنګه روا کیدې شو؟ بل دا چې سوال کول دوئ دپاره څنګه روا کیدې شو ، که دغه رونړه ئې پخپله پیغمبران نه وو نو یوسف ﷺ خوپیغمبر وو ، یوسف ﷺ ولې دې غلطئ ته د خپلو رونړو مخه نه کړه؟

ددې یو ښکاره جواب دادې چې دلته د صدقې نه مراد اصلی صدقه نه ده بلکه په دغه معامله کښې رعایت او آسانتیا ورکول مراد وو چې هغې ته ئې صدقه او خیرات اووئیلو. ولې چې بالکل د غلې دپاره خو هغوئ هډو سوال کړې نه ووو بلکه څه سپک څیزونه خو ئې په بیعه

كښې پيش كړي وو ، د هغوئ د خواست حاصل دا وو چې په دې كم قيمته څيزونو سره راباندې غله خرڅه كړئ. بل جواب دا هم كيدې شي چې د پيغمبر ﷺ اولاد دپاره دصدقې حراميدل يوازې امت محمديه سره خصوصيت لرى ځنګه چې د تفسير د امامانو ﷺ ځينې د مجاهد رحمه الله قول هم دادې [بيان القرآن]. (١)

(إِنَّ اللَّهَ يَجْزِي الْمُتَصَدِّقِينَ) نه معلومه شوه چې الله ﷻ صدقې او خيرات وركوونكو ته ډيره غوره بدله وركوي ، ددې يوه جزا خو عامه ده چې په دنيا كښې كافر او مؤمن دواړو ته ملاويږي لكه د تكليفونو او مصيبتونو رد كول ، او بله جزا ئې آخرت سره مخصوص ده. چې جنت او دهغې نعمتونه ئې وركول دى كومه چې د ايمان د خاوندانو سره مخصوصه ده دلته په دغه وخت دوئ ته دا معلومه نه وه چې عزيز مصر كافر دې او كه مسلمان؟ ځكه داسې عامه جمله اختيار كړه چې ددنيا او آخرت دواړو د جزا دپاره شامليده ، [بيان القرآن]. (٢)

بله خبره داده چې دلته خو په ظاهره خطاب عزيز مصر سره وو پكار دا وو چې دخطاب په صيغې سره ورته وئيلې وې چې الله ﷻ دې جزائې خير دركړي ليكن دغه وخت ورته معلوم نه وو چې دوئ ﷺ مؤمن دى او كه نه دى ؟ ځكه ئې ددوئ دپاره عام عنوان اختيار كړو او په خصوصي طور سره ئې د جزائې خير ملاويدو ذكر ددوئ دپاره اونه كړو. [قرطبي]. (٣)

(قَدْ مَنَّ اللَّهُ عَلَيْنَا) دې نه معلومه شوه چې يو تكليف او مصيبت كښې مبتلا وى او بيا الله ﷻ يې ددغه مصيبت څخه خلاص كړى نو ددغه انعام او احسان په بدله كښې دالله ﷻ شكر ويستل پكار دى په داسې صورت كښې د تيرو شوؤ تكليفونو او مصيبتونو يادګيرنه كول ناشكرى كول دى ، داسې كس ته په الله ﷻ كښې كنود وئيلې شوى دى . لكه فرمائى چې : (إِنَّ الْإِنسَانَ لِرَبِّهِ لَكَنُودٌ)(٤) ، كنود هغه چاته وئيلې شي چې احسانات او انعامات ياد نه لرى بلكه يوازې تكليفونه او مصيبتونه ياد لرى ، يوسف ﷺ دغه وخت هغه تير شوى مصيبتونه او تكليفونه بالكل رایاد نه كړل بلكه يوازې د الله ﷻ د انعاماتو او احساناتو يادګيرنه ئې اوكړه.

**صبر او تقوى د هر مصيبت علاج دې** : (إِنَّهُ مَن يَتَّقِ وَيَصْبِرْ) ددې نه معلومه شوه چې تقوى يعنى د ګناهونونه ځان ساتل او په تكليفونو باندې صبر كول او كلك پاتې كيدل ، دا دوه صفتونه داسې دى چې انسان لره د هر تكليف او مصيبت نه خلاصوى ، ځكه خو قرآن عظيم الشان په ډيرو موقعو كښې هم دغه دوه صفتونو باندې د انسان دفلاح او كاميابئ مدار ايښې دې لكه يو ځائې كښې فرمائى : (وَإِن تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا لَا يَضُرُّكُمْ كَيْدُهُمْ شَيْئًا) [كه تاسو صبر او تقوى اختيار كړه نو د دښمنانو مخالفانه تدبيرونه به تاسو ته څه نقصان نشى دررسولې]

دلته په ښكاره دا معلوميږى چې ګنى يوسف ﷺ خپل صبر تقوى ضباط كړې وه او دائې ښكاره كړې وو چې زمونږ د صبر او تقوى په وجه مونږ ته د تكليفونو او مصيبتونو نه خلاصې راكړې شو او لوې درجات راته نصيب شو خو داسې ځكه نه ده چې قرآن عظيم الشان دې نه

---

١) تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:٥ص:٩٥]
٢) تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:٥ص:٩٦]
٣) تفسير القرطبي [ ج:٩ص:٢٥٤]
٤) ترجمه: بيشكه انسان دخپل رب ډير ناشكره دې.

داسې منع فرمائیلې ده : (فَلَا تُزَكُّوْٓا اَنْفُسَكُمْ ۭ هُوَ اَعْلَمُ بِمَنِ اتَّقٰى ؀) [خپله پاکوی مه ضباطوئ الله ﷻ ښه پوهیږي چې څوك متقي دي]

په دي بنا د پیغمبر ﷺ شان سره دا نه ښائي بلکه حقیقت دادي چې په دي شان یوسف ﷺ د الله ﷻ دوه نعمتونه رایاد کړي دي ، یو دا چې اول راته الله ﷻ د صبر او تقوی توفیق راکړو ، بیا ئې د هغې په برکت راباندې دغه نور انعامات او احسانات اوکړل چې ورته تحدیث بالنعمة یعني دالله تعالی انعامامات او احسانات بیانول او ښکاره کول ، وئیلې شي . او قرآن عظیم الشان ئې داسې حکم فرمائیلې دې چې :(وَاَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ ؀).

(قَالَ لَا تَثْرِيْبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ ۭ) [انن په تاسو هیڅ ملامتیا نشته] دادا علی او بهترینو خویونو اعلی مقام دي چې ظالم لره ئې یو ازې معاف نه کړو بلکه دائې هم په ښکاره کړل چې اوس په تاسو باندې څه ملامتیا هم نشته.

اِذْهَبُوْا | بِقَمِيْصِيْ | هٰذَا | فَاَلْقُوْهُ | عَلٰي وَجْهِ | اَبِيْ

| یوسئ | قمیص زما | دا | نو واچوئ دا | په مخ | د پلار زما

| [اوس] تاسو دا زما قمیص یوسئ | نو زما د پلار په مخ ئې واچوئ

يَاْتِ | بَصِيْرًا ۚ | وَاْتُوْنِيْ | بِاَهْلِكُمْ | اَجْمَعِيْنَ ؀ | وَلَمَّا | فَصَلَتِ | الْعِيْرُ

اوبه کرځي | لیدونکې | او راولئ ما ته | اهل خپل | تول | او هرکله چې | جدا شوه | قافله

هغهٔ به لیدونکې اوګرځي | اوماله خپل تول خاندان دلته راولئ | ............اوکله چې قافله روانه شوه

قَالَ | اَبُوْهُمْ | اِنِّىْ | لَاَجِدُ | رِيْحَ | يُوْسُفَ | لَوْلَآ اَنْ تُفَنِّدُوْنِ ؀

اووئیل | پلار د هغوئ | بیشکه زهٔ | خامخا په ما لګی | بوئ | دیوسفؑ | که نسبت نهٔ کوئ دبي عقلئ ماته

نو دهغوئ پلار اووئیل | چې د یوسف ﷺ بوئی راباندې لګی | خو هسې نه تاسو راته لیونې اووائې

قَالُوْا | تَاللّٰهِ | اِنَّكَ | لَفِيْ ضَلٰلِكَ | الْقَدِيْمِ ؀ | فَلَمَّآ | اَنْ جَاۗءَ

اووئیل هغوئ | قسم دې په الله | بیشکه ته | په سودا خپله | پخوانۍ کښې ئې | نو کله | چې راغئ

هغوئ اووئیل | چې په الله ﷻ قسم تهٔ پخپل پخوانی وهم کښې یې | بیا چې زیرې ورکونکې

الْبَشِيْرُ | اَلْقٰىهُ | عَلٰي وَجْهِهٖ | فَارْتَدَّ | بَصِيْرًا ۚ | قَالَ

زیری والا | نو واچوئ هغهٔ هغه قمیص | په مخ د هغهٔ باندې | واپس اوګرځیدو لیدونکې | اووئیل یعقوب

راغلو | اوقمیص ئې د هغهٔ په مخ واچولو | نو بیا لیدونکې شو | ............یعقوب ﷺ اووئیل

اَلَمْ اَقُلْ | لَّكُمْ ڌ | اِنِّىْٓ | اَعْلَمُ | مِنَ اللّٰهِ | مَا

ایا نهٔ وو وئیلی ما | تاسو ته | چې بیشکه زهٔ | ښهٔ پوهیږم | د طرفه د الله نه | په هغه څه

ایا ما تاسو ته نهٔ وو وئیلې | چې بیشکه ما ته د الله ﷻ د طرفنه هغه خبرې معلومې دی | چې

لَا تَعْلَمُوْنَ ؀ | قَالُوْا | يٰٓاَبَانَا | اسْتَغْفِرْ | لَنَا | ذُنُوْبَنَآ

چې تاسو پرې نهٔ پوهیږئ | اووئیل هغوئ | ائې پلاره زمونږ | ښښنه اوغواړه | دپاره زمونږ | د ګناهونو زمونږ

تاسو ته نهٔ دی معلومې | هغوئ اووئیل ائې بابا جانه! مونږ خطاکاریو | زمونږ د پاره د ګناهونو

اِنَّا كُنَّا خٰطِـِٕيْنَ۝ قَالَ سَوْفَ اَسْتَغْفِرُ لَكُمْ رَبِّيْ ۭ

بیشکه وو مونږ | خطاکونکی | اووئیل یعقوب | او به غوارم ببښنه زه | ستاسو د پاره | د رب خپل نه

بښنه اوغواړه | ...... وې فرمائیل ډیر زر به د خپل رب نه تاسو د پاره بښنه اوغواړم

اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ۝ فَلَمَّا دَخَلُوْا عَلٰي يُوْسُفَ

بیشکه هغهٔ | هم هغهٔ | بښونکې دې | رحم کونکې دې | نو هر کله چې ورداخل شو دوئ | په یوسف باندې

بیشکه هغهٔ بښونکې رحم کونکې دې | ...... بیا چې دوئ ټول یوسف ﷺ ته اورسیدل

اٰوٰٓى اِلَيْهِ اَبَوَيْهِ وَقَالَ ادْخُلُوْا مِصْرَ اِنْ شَاۗءَ اللّٰهُ

نورانزدې ئې کړل | خان خپل ته | موراو پلار | اووې وئیل | داخل شئ | ښارته | که خوښه وی د الله

نوهغهٔ مور پلار خان سره کښینول | اووې وئیل چې ټول مصرته داخل شئ | که الله ﷻ ته منظوره وی

اٰمِنِيْنَ۝ۭ وَرَفَعَ اَبَوَيْهِ عَلَي الْعَرْشِ وَخَرُّوْا

په امن سره | اوپورته ئې کړل | مور اوپلار خپل | اوکښینول ئې په تخت باندې | او پریوتل هغوئ

نو په امن کښې به اوسیږئ | اوخپل مور پلار ئې په شاهی تخت کښینول | اوټول یوسف ﷺ

لَهٗ سُجَّدًا ۚ وَقَالَ يٰٓاَبَتِ هٰذَا تَاْوِيْلُ رُءْيَايَ

هغهٔ ته | سجده کونکی | اواووئیل یوسف | ائې پلاره | دا | تعبیر دې | د خوب زما

ته په سجده پریوتل | اویوسف ﷺ اووئیل چې ائې زما پلاره دا زما د خوب تعبیر دې

مِنْ قَبْلُ ۡ قَدْ جَعَلَهَا رَبِّيْ حَقًّا ۭ وَقَدْ اَحْسَنَ

چې لیدلې وو ما مخکښې | بیشکه اوګرځوو دا خوب | رب زما | ربښتینې | او بیشکه احسان اوکړو

چې ما وړاندې لیدلې وو | هغهٔ [خوب] زما رب ربښتیا کړو | او ما سره ئې [داځومره] احسان اوکړو

بِيْٓ اِذْ اَخْرَجَنِيْ مِنَ السِّجْنِ وَجَاۗءَ بِكُمْ مِّنَ الْبَدْوِ مِنْۢ بَعْدِ

په ما باندې | کله چې ئې | راوویستم زهٔ | د قید خانې نه | او رائې وستئ تاسو | د صحرا نه | روستو د هغې نه

چې د جیل نه ئې راوویستلم | اوتاسو ټول ئې د کلی نه [دلته] راوستئ | پس د دې نه چې شیطان زما

اَنْ نَّزَغَ الشَّيْطٰنُ بَيْنِيْ وَبَيْنَ اِخْوَتِيْ ۭ اِنَّ رَبِّيْ

چې فساد اچولې وو | شیطان | په منځ زما | او په منځ | د رونړو زما کښې | بیشکه | رب زما

اوزما د رونړو په مینځ کښې فساد اچولې وو | ...... بیشکه زما رب

لَطِيْفٌ لِّمَا يَشَاۗءُ ۭ اِنَّهٗ هُوَ الْعَلِيْمُ

ښهٔ تدبیر کونکې دې | هغه کار لره | چې خوښه ئې شی | بیشکه هغهٔ | هم هغهٔ | ښهٔ پوهه دې

چې څه غواړي نو هغې د پاره ښهٔ تدبیر جوړوی | ...... هغهٔ په هر څه پوهه د حکمت

الْحَكِيْمُ۝

ښهٔ حکمت والا دې |

خاوند دې

## آسان ترجمه قرآن

زما دا قميص واخلئ او څما د پلار په مخ ئې واچوئ ، دې سره به هغه بينا شي — او خپل ټول کور والا ماته راولئ او کله چه دا قافله (د مصر نه کنعان طرف ته) روانه شوه نو د دوی پلار (کنعان کښې خپل چاپېره خلقو ته) اوئيل: که چرې تاسو ما ته دا نه وايئ چه بوډا بې وقوفه شوې دې نو ما ته د يوسف خوشبو راځي خلقو اوئيل چه: قسم په الله ! ته اوسه پورې په خپله غلط فهمۍ کښې پروت ئې بيا چه کله زيرې ورکونکې راورسيدو نو هغه (د يوسف) قميص د هغه په مخ کېښودو نو هغه فوراً ليدونکې شو هغه (خپلو ځامنو ته) اوئيل چه : آيا تاسو ته ما نه وو وئيلي چه څه د الله په باره کښې چه څومره پوهيږم دومره تاسو نه پوهيږئ؟ هغوی اوئيل چه باباجانه! مونږ دپاره څمونږ د ګناهونو بخنه وغواړه، مونږ يقيناً خطاکار وو. يعقوب (عليه السلام) اوئيل چه څه به ډير زر د خپل پروردګار نه تاسو دپاره د ګناهونو بخنه وغواړم. بې شکه هغه دې ډير بخونکې او ډير مهربان بيا چه کله دوی ټول يوسف ته لاړل نو هغوی خپل مور پلار ته خپل ځان څخه ځائ ورکړو او ټولو ته ئې اوئيل چه: تاسو ټول مصر ته داخل شئ هغلته به تاسو ان شاء الله په امن سره يئ .او دوی مور پلار په تخت باندې کېنول . او ټول د دوی مخې ته په سجده پريوتل او يوسف اوئيل :باباجانه ! دا څما د خوب هغه تعبير دې چه هغه څما پروردګار رښتيا کړو او هغه په ما باندې ډير احسان وکړو چه څه ئې د جيل نه راوويستم . او تاسو ئې د کلی نه دلته راوستئ . حال دا دې چه دې نه مخکښې شيطان څما او څما د وروڼو په مينځ کښې فساد اچولې وو .حقيقت دا دې چه څما پروردګار څه غواړې نو هغې دپاره ډير لطيف تدبيرونه کوې.بې شکه د هغه علم هم کامل دې او حکمت هم .

## خلاصه تفسير

﴿اِذْهَبُوْا بِقَمِيْصِيْ هٰذَا فَاَلْقُوْهُ عَلٰى وَجْهِ اَبِيْ يَاْتِ بَصِيْرًا ۚ وَاْتُوْنِيْ بِاَهْلِكُمْ اَجْمَعِيْنَ ۞﴾ اوس تاسو [څما پلار ته لاړشئ خوشخبرئ ورکړئ اود خوشخبرئ سره] څما دا قميص [هم] يوسئ اوداځما د پلار په مخ وغورځوئ [په دې به] دده سترګي روښانه شی [اودلته به تشريف راوړئ شي] اوخپل [باقي] کوروالا [هم] ټول څماخواته راولئ [چه ټول يوځای شواوخوشحاله شو ،ځکه چه په موجوده حالاتوکښی څماتلل مشکل دی،نوځکه دي دکور [خلق راشي].

﴿وَلَمَّا فَصَلَتِ الْعِيْرُ قَالَ اَبُوْهُمْ اِنِّيْ لَاَجِدُ رِيْحَ يُوْسُفَ لَوْلَآ اَنْ تُفَنِّدُوْنِ ۞ قَالُوْا تَاللّٰهِ اِنَّكَ لَفِيْ ضَلٰلِكَ الْقَدِيْمِ ۞﴾

اوهرکله چه [يوسف[عليه السلام] سره خبری وشوی اودده دحکم موافق قميص ئی واخيستو روان شواو]قافله [دمصردښارنه] روانه شو[چه په دی کښی داخلق هم وو]نودوی پلار [دخپلی خوانه خلقوته] وويل چه که تاسوماداسي نه ګڼئ چه دی زوړشوی دی دناپوهانوخبري کوي نوزه درته وائم چه په ماد يوسف[عليه السلام] خوشبولګی[معجزه په اختيارکښی نه وي نوځکه ددی نه مخکی په دی نه پوهيدو]هغو[کوم چه ورسره ناست وو]وويل چه په خدای قسم ته هم هغسی په خپل پخوانئ غلط خيال کښی ئی [چه يوسف[عليه السلام] ژوندی دی اوميلاوبه شي ددی خيال دغلبي نه درته اوس دخوشبووهم وشواوپه حقيقت کښی نه خوشبوشته اونه څه نورڅه شته يعقوب[عليه السلام] خاموش شو].

﴿فَلَمَّآ أَن جَآءَ الْبَشِيرُ أَلْقَاهُ عَلَىٰ وَجْهِهِ فَارْتَدَّ بَصِيرًا ۖ قَالَ أَلَمْ أَقُل لَّكُمْ إِنِّي أَعْلَمُ مِنَ اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ۝ قَالُوا يَا أَبَانَا اسْتَغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا إِنَّا كُنَّا خَاطِئِينَ ۝ قَالَ سَوْفَ أَسْتَغْفِرُ لَكُمْ رَبِّي ۖ إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ ۝﴾ پس هرکله چه [د یوسف علیه السلام دصحی سلامت والی] خوشخبری راوړونکی [سره دقمیص نه] دلته راورسیدو نو [سمدستی ئی] دغه قمیص دده په مخ وغورزولو پس [دسترګو سره لګیدل اودماغوته دخوشبورسیدل وو چه] فوراً دده سترګی بینا شوی [اوهغوی ټول حالات دوی ته بیان کړل] ده [خامنوته] وفرمائل ولی ماتاسوته نه وو ویلی چه څومره چه خه دالله خبرولره پیژنم تاسوئی نه پیژنئ [اوپه دي وجه ماتاسود یوسف علیه السلام دلټون لپاره لیږلي وئ، وګورئ آخرالله څما امیدپوره کړو، دده داوینا مخکی رکوع کښی راغلی ده، دغه وخت] ټولوځامنوویل چه ای خمونږه پلاره مونږته [دالله نه خمونږد ګناهونودبخښي سوال وکړه [مونږچه تاته څومره تکلیف د یوسف علیه السلام په معامله کښی درکړیدی] مونږ بیشکه خطاکاروو [مطلب دادی چه ته هم معافی وکړه، خکه چه عادتادچاپاره استغفارهغه غواړی کوم چه دچامواخذه کول نه غواړي] یعقوب علیه السلام وفرمائل ډیرزربه خه درته دخپل رب نه دبخښی دعاءوغواړم بیشکه هغه بښونکی مهربانه دی [اوپه دی سره ددوی معاف کول هم معلوم شو، اوقریب مطلب دادی چه د تهجدوخت ته صبروکړی چه ددعاقبلیدوساعت وی. لکه چه په درمنثورکښی مرفوع روایت دی.

﴿فَلَمَّا دَخَلُوا عَلَىٰ يُوسُفَ آوَىٰ إِلَيْهِ أَبَوَيْهِ وَقَالَ ادْخُلُوا مِصْرَ إِن شَاءَ اللَّهُ آمِنِينَ ۝﴾ [غرض ټول تیارشومصرته روان شو، او یوسف علیه السلام ته خبرورسیدواستقبال ته راووتلودمصرنه ئی بهرتشریف راوړلو او هلته ئی دملاقات لپاره سامان برابرکړو] هرکله چه یوسف علیه السلام ته ورسیدل [نوټول ورسره میلاو شو] نوخپل موروپلارئی دخان سره [تعظیما] کینول او [دخبرواترونه چه فارغ شو] وئی ویل ټول مصرته خئ [او] ان شاءالله [هلته] په امن راحت سره اوسئ [دجدائی غم اودقحط سختی ټولی ختمی شوی، نوټول مصرته ورسیدل].

﴿وَرَفَعَ أَبَوَيْهِ عَلَى الْعَرْشِ وَخَرُّوا لَهُ سُجَّدًا ۖ وَقَالَ يَا أَبَتِ هَٰذَا تَأْوِيلُ رُؤْيَايَ مِن قَبْلُ قَدْ جَعَلَهَا رَبِّي حَقًّا ۖ وَقَدْ أَحْسَنَ بِي إِذْ أَخْرَجَنِي مِنَ السِّجْنِ وَجَاءَ بِكُم مِّنَ الْبَدْوِ مِن بَعْدِ أَن نَّزَغَ الشَّيْطَانُ بَيْنِي وَبَيْنَ إِخْوَتِي ۚ إِنَّ رَبِّي لَطِيفٌ لِّمَا يَشَاءُ ۚ إِنَّهُ هُوَ الْعَلِيمُ الْحَكِيمُ ۝﴾ او [هلته په رسیدوئی تعظیما] خپل موراوپلارپه [شاهی] تخت باندی پورته کینول او [داوخت دټولوپه زړونوباندی د یوسف علیه السلام داسی لوئی غالبه شوه چه] ټول دده په مخ کښی په سجده پریوتل او [چه داحالت ئی ولیدو] هغه وویل ای پلاره دادی څمادخوب تعبیرکوم چه ما مخکی زمانه کښی لیدلی وو چه لمرسپوږمئ اویوولس ستوري ماته سجده کوي څما رب دا [خوب] رشتیا کړو [یعني رشتونوالی ئی راته ښکاره کړو] او [ددی شرافت نه علاوه څمارب په مانورانعامات هم فرمائلي دي چنانچه څماسره ئی [یو] هغه وخت احسان وکړوکله چه ئی څه دقیدخانې نه راوویستلم او د حکومت دی مرتبی ته ئی راورسولم] او دویم ئی داانعام اوفرمائیلو چه ]پس ددی چه شیطان څمااوڅما د وروڼوپه منځ کښی فسادغورځولی وو او [چه ددی مقتضی داوه چه ټول عمریوځای شوی او جمع شوی نه وی لیکن دالله مهربانی ده چه هغه ]تاسي ئی ]چه څماوروڼه هم پکی دي] دبهرنه [دلته] راوستلی [اوټول ئی سره میلاوکړو] بیشکه څمارب چه څه غواړي دهغی ډیر پټ تدبیرکوي بیشکه هغه لوی علم والا او حکمت والادی [په خپل علم اوحکمت سره دټولوکارونوتدبیربرابره وي].

## معارف او مسائل

د يوسف ﷺ د قيصې متعلق اولنو آيتون كښې دا معلوم شوى وو چې كله هغه وخت راغلو چې يوسف ﷺ خپلو رونړو ته خپل راز ښكاره كول او غوښتل نو حقيقت ئې ښكاره كړو ، رونړو ئې ترې معافي اوغوښتله ، هغوئ ﷺ نه يوازې معاف كړل بلكه په وړاندېنو كارونو ئې ملامته هم نه كړل. هغوئ دپاره ئې دعا اوكړه او د خپل باباجى ﷺ د ملاقات كولو تلوسه ئې په زړه راؤ وريده . د حالاتو د تقاضا مطابق ئې دا مناسب اوګنړل چې باباجى ﷺ سره د ټولې كورنئ دلته تشريف راؤړى . خو معلومه شوه چې دهغوئ ﷺ بينائى ختمه شوې ده . او ددې فكر ورسره ډېر زيات شو . رونړو ته ئې اووئيل چې :

[اِذْهَبُوْا بِقَمِيْصِيْ هٰذَا فَاَلْقُوْهُ عَلٰى وَجْهِ اَبِيْ يَاْتِ بَصِيْرًا ۚ][ اوس] تاسو دا زما قميص يوسئ ا نو زما د پلار په مخ ئې واچوئ هغهٔ به ليدونكې اوګرځى]

دا ښكاره خبره ده چې قميص په سترګو باندې اچول د بينايئ واپس راتلو څه مادى سبب نه وو بلكه يوه معجزه وه چې يوسف ﷺ ته د الله تعالى د وحى په ذريعه معلومه شوه .

ضحاك رحمه الله ، مجاهد رحمه الله او دنورو د تفسير امامانو مطابق دا هم ددې قميص خصوصيت وو څكه چې دا د عامو جامو پشان نه وو بلكه ابراهيم ﷺ ته هغه وخت د جنت نه راؤړې شوې وو كله چې بربنډ كړې شو او په اور د نمرود كښې اوغورزولې شو ، دې نه پس ټول عمر دپاره ورسره دغه جنتى جامه محفوظه وه ، چې وفات شو نو بيا اسحاق ﷺ سره شو ، د هغوئ ﷺ د وفات نه پس بيا يعقوب ﷺ سره وو ، چې د تبرك په طور ئې په نلكئ كښې بنده كړې د يوسف ﷺ په غاړه اچولې وو چې د بد نظر نه ورسره هم په امن وى ، كله چې د يوسف ﷺ رونړو خپل باباجى رحمه الله ته د تيرباسلو په غرض خودلو دپاره د هغوئ ﷺ اغوستې قميص د هغوئ ﷺ د غاړې نه كوز كړو او بربنډ ئې په كوهى كښې غوزار كړو نو جبرائيل ﷺ ئې د غاړې نه نلكئ پرانسته او دغه قميص مبارك ئې دوئ ته په غاړه كړو. دا تر دغه وخت پورې هغوئ سره محفوظ وو. په دغه وخت هم جبرائيل ﷺ ورته دا مشوره وركړه چې ددې جنتى لباس په مخ مبارك وراچولو سره بهٔ دې باباجى بينا شى ولې چې دې سره دا كار هم كيدې شى .

د مجدد الف ثانى رحمه الله تحقيق دادې چې د يوسف ﷺ ښائست ښكلا او دهغوئ وجود مبارك پخپله هم جنتى څيزونه نه وو څكه دهغوئ ﷺ بدن مبارك سره د هر لګيدلى څيز دا خصوصيت كيدې شو [مظهرى] .(۱)

(وَأْتُوْنِيْ بِاَهْلِكُمْ اَجْمَعِيْنَ ۞)[ او ماله خپل ټول خاندان دلته راولئ] اصل مقصد ئې د باباجى رابلل وو خو دلته ئې په ښكاره د هغوئ ﷺ د رابللو ذكر كول بې ادبى اوګنړله . يقين يې وو چې د باباجى ﷺ په بينا كيدو سره كله چې ورته نورسخت عذر راپيښ نشى نو پخپله به دلته د راتلو تكل خامخا كوى ، قرطبى يو روايت نقل كړې دې چې د يوسف ﷺ يهودا رور په دې موقعه داسې اووئيل چې داقميص بهٔ هم زه څكه اورم چې د يوسف ﷺ په قميص ﷺ باندې د دروغو وينه هم ما پورې كړې وه او باباجى ﷺ ته مې اورې وو ، او باباجى ﷺ ته په وجه صدمې رسيدلې وى اوس دا غواړم چې د هغې دبدل پوره كولو دپاره قميص مبارك هم زه يوسم .

---

(۱) تفسير المظهرى تحت هذه الآية [ج:۵ص:۱۹۸، ۱۹۹]

(وَلَمَّا فَصَلَتِ الْعِيْرُ) [ او کله چې قافله روانه شوه ] نو یعقوب ﷤ د خپل کور خلقو ته اوفرمائیل چې که تاسو راته کم عقل نه وایئ نو زه درته وایم چې ماته د یوسف ﷤ خوشبوئي رازی. د ابن عباس ﷢ د روایت مطابق دکنعان ښار نه د مصر تر ښاره پورې د اتو ورځو مزل وو او د حسن بصري ﷫ فرمائیلي دي چې د اتیا فرسخو ... وو. الله تعالی د دومره لرې نه د یوسف ﷤ د قمیص خوشبو د یعقوب ﷤ دماغو ته راورسوله. عجیبه خبره خو داده چې کله یوسف ﷤ دکنعان په کوهي کښې تر درې ورځو پورې پروت وو نو دغه وخت ئې د هغوئ ﷤ هیڅ خوشبوئي محسوس نه کړه. په دې وجه معلومه شوه چې معجزه د پیغمبر په خپل اختیار کښې نه وی. بلکه په حقیقت کښې دا دهغوئ په عمل او خپل کار نه هم وی. خالص دالله تعالی کار دې چې کله ئې خوښه شي نو د پیغمبر ﷤ د لاسه معجزه ښرګنده کړی، بغیر د الله ﷻ د ارادې نه او امر نه نزدې نه نزدې ښائي هم لرې نه لرې شي.

(قَالُوْا تَاللّٰهِ اِنَّكَ لَفِيْ ضَلٰلِكَ الْقَدِيْمِ) [ هغوئ اووئیل ] چې په الله ﷻ قسم تهٔ پخپل پخواني وهم کښې یې] چې ګڼې یوسف ﷤ ژوندې دې او بیا به هم ماسره یو ځائې شی.

(فَلَمَّآ اَنْ جَآءَ الْبَشِيْرُ) [ بیا چې زیرې ورکونکې راغلو ] دیوسف ﷤ قمیص ئې د یعقوب ﷤ په مخ مبارك باندې ور واچولو نو سمدستي دوباره ئې بینائي راغله. دا زیرې ورکوونکې هم دغه یهودا وو چې دا قمیص ئې دمصر نه ځان سره راوړې وو.

(قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكُمْ ۚ اِنِّيْٓ اَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ) [ یعقوب ﷤ اووئیل آیا ما تاسو ته نهٔ وو وئیلې ] چې بیشکه ماته د الله ﷻ د طرفنه هغه خبرې معلومې دی ] چې تاسو ته نهٔ دی معلومې] چې یوسف ﷤ ژوندې دې او بیا به راسره یو ځائې کیږی.

(قَالُوْا يٰٓاَبَانَا اسْتَغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَآ اِنَّا كُنَّا خٰطِئِيْنَ) [ هغوئ اووئیل ائې بابا جانه! مونږ خطاکار یو ] زمونږ د پاره د ګناهونو بښنه اوغواړه] دا خبره ښکاره ده چې ځوك د چا دپاره د الله ﷻ نه د بخښنې دعا غواړی پخپله به ئې هم معاف کوی.

(قَالَ سَوْفَ اَسْتَغْفِرُ لَكُمْ رَبِّيْ ؕ) [ وې فرمائیل ډیر زر به د خپل رب نه تاسو د پاره بښنه اوغواړم] یعقوب ﷤ سمدستي د دعا دپاره په ځائې وعده اوکړه چې زه بهٔ زر تاسو دپاره دعا کوم، عام مفسرین ددې وجه دا ښائي چې دهغوئ ﷤ مطلب دا وو چې دشپې په آخری وخت کښې کښې به په ډیر توجه سره دعا ځکه کوم چې دغه وخت په خصوصیت سره دعا قبلیږی. د صحیح بخاري او صحیح مسلم په یو روایت کښې راغلې دی چې الله ﷻ د شپې په دریمې آخرنئ حصه کښې زمکې ته نزدې راښکته کیږی او فرمائي چې ځوك زمانه دعا غواړی چې زه ئې قبوله کړم؟ ځوك دبخښنې غوښتونکئ شته چې وې بخښم. (۱)

(فَلَمَّا دَخَلُوْا عَلَيْهِ) [ بیا چې دوئ ټول یوسف ﷤ ته اورسیدل] ځینې روایتونو کښې راغلي دي چې دغه ځل، یوسف ﷤ خپلو رونړو سره دوه سوره بار کړی اوښان د سامان او نورو ضروریاتو په دې غرض سره لیږلی وو چې ټوله کورنئ په ښهٔ شان سره سنبال شوی مصر ته راشي. هم په

---

(۱) صحیح مسلم کتاب صلاة المسافرین الخ، باب صلاة الليل الخ [ج:۱ص:۲۵۸]و صحیح البخاری کتاب الدعوات باب الدعاء نصف اللیل الخ [ج:۲ص:۹۳۶]

دي شان يعقوب ﷺ سره دتولي كورنۍ او متعلقينو مصر ته دپاره تيار شو نو د يو روايت مطابق د هغوئ شمير دوه اويا او د بل روايت مطابق اووۀ كم سل كسان وو.
بل طرفته كله چې مصر ته د دوئ د رارسيدو وخت رانزدې شونو يوسف ﷺ او د مصر نور خلق د استقبال دپاره ښار نه بهر را اوؤتل. د سلامۍ وركولو دپاره ورسره څلور زره سپاهيان راؤوتل. كله چې هغوئ ﷺ په مصر كښې د يوسف ﷺ مكان ته ورداخل شو نو يوسف ﷺ خپل والدين خپل ځان سره ايسار مقيم كړل.
دلته ذكر د والدينو دې خو د يوسف ﷺ خپله مور بى بى د هغوئ ﷺ په وړوكتوب كښې وفات شوې وه . هغې نه پس يعقوب ﷺ د هغې خور بى بى ليا سره نكاح كړې وه هر كله چې ترور هم د مور پشان وي ځكه ئې ورته والدين اوفرمائيل . [۱]
(وَقَالَ ادْخُلُوا مِصْرَ إِنْ شَآءَ اللّٰهُ اٰمِنِيْنَ) [ اووې وئيل چې ټول مصرته داخل شئ إكه الله ﷻ ته منظوره وى نو په امن كښې به اوسيږئ] مطلب ئې دا وو چې څنګه غير ملكى كسان د څه پابنديانو د لاندې يو ښار ته ورداخل هغسې پابنديانې په تاسو باندې نشته.
(وَرَفَعَ اَبَوَيْهِ عَلَى الْعَرْشِ) [ اوخپل مور پلار ئې په شاهي تخت كښينول ]
(وَخَرُّوْا لَهٗ سُجَّدًا) [ اوټول يوسف ﷺ ته په سجده پريوتل] عبدالله بن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل چې دا سجده د شكر الله ﷻ ته كړې شوې وه ، يوسف ﷺ ته نه وه شوې ، او ځينې حضراتو فرمائيلى دى چې د عبادت سجده لګول بغير د الله تعالى نه بل مخلوق ته د ټولو پيغمبرانو ﷺ په شريعتونو كښې حرام وو خو سجده د تعظيم كول په كښې جائز وو. خو په دې شريعت محمدى ﷺ كښې دا هم حرامه كړې شوې ده چې دا ذريعه د شرك وه ، څنګه چې د صحيحينو په حديث مبارك كښې هم راغلى دى چې چا غير الله ته سجده كول جائز نه دى .( [۲] )
(وَقَالَ يٰاَبَتِ هٰذَا تَاْوِيْلُ رُءْيَايَ مِنْ قَبْلُ) [ چې كله دواړه مور پلار او يولس رونړه يوسف ﷺ په سجده شول نو دغه وخت يوسف ﷺ ته دوړوكوالى هغه خوب ورياد شو. يوسف ﷺ اووئيل چې ائې زما پلاره دا زما د خوب تعبير دې چې ما وړاندې ليدلې وو ] دخوب تعبير دې چې يولس

[۱] دا توجيه هم ددې روايت مطابق ده د يوسف ﷺ مور بى بى د بنيامين د ولادت په وخت كښې وفات شوې وه ، په دې وجه دلته د مصنف رحمه الله دا عبارت چې په صفحه نمبر ۲۹ اور ۳۰ جلدنمبر ۵ سره متضاد ملعوميږي ، چې په هغې كښې د يوسف ﷺ مور بى بى راحيل ښودلې شوې ده ، اصل كښې دې باره كښې څه مستند روايت نشته دې ، صرف اسرائيلى روايات دى ا وپه هغې كښې هم تعارض دې ، پخپله صاحب المعانى ليكلى دى چې يهوديان دې قائل نه دى چې يوسف ﷺ مور بى بى د بنيامين د ولادت په وخت كښې وفات شوې وه ، او كه چرې دا روايت واخستې شي نو بيا خو څه اشكال نه پاتې كيږي ، پدې صورت كښې به په رفع ابويه كښې د يوسف ﷺ حقيقى مور مراد اخستې شي ، ابن جرير رحمه الله او ابن كثير رحمه الله هم دا راجح ګرځولى دى ، چنانچه ابن كثير په دې باندې بحث كوى اوفرمائى چې **[قال ابن جرير ولم يقم دليل على موت امه [اي ام يوسف ﷺ] وظاهر القرآن يدل على حياتها]** محمد تقى عثمانى.
[۲] ) هم دا شان مضمون والا يو حديث مبارك جامع الترمذى ، ابواب الرضاع ، باب ماجاء فى حق الزوج على المرأة [ج:۱ ص:۲۱۹] كښې موجود دې.

ستوري ، نمر او سپوږمۍ ځان ته په سجده کولو ليدلي وو. الله ﷻ لره شکر دي چې د اخوب رښتيا کړو او ماته ئې هم زما په سترګو اوخودلو.

**حکمونه او مسائل:**

① يعقوب عليه السلام د خپلو ځامنو ددعا د بخښنې او د معافۍ ورکولو سوال ځکه اوځنګولو چې هغوئ عليه السلام د اتحقيق اوکړي چې يوسف عليه السلام هم ددوئ خطايې معاف کړيده او که نه؟ ولې چې د مظلوم د معافۍ ورکولو نه بغير الله ﷻ هم معافي نه ورکوي.

دا خبره پخپل ځائې بالکل ټيك ده او د اصولو مطابق هم ده چې د بندګانو د حقوقو توبه بغير د ددې نه شي کيدې چې د حق خاوند حق وصول نه کړي يا ورته د هغې معافي اونه کړي ، په داسې صورت کښې خالص دخلې د وينا توبه کول اوبخښنه غوښتل کافي نه دي.

② د سفيان ثوري رحمه الله د روايت مطابق کله چې يهودا د يوسف عليه السلام قميص مبارك د يعقوب عليه السلام په مخ مبارك باندې ورواچولو نو هغوئ عليه السلام زر زر ترې تپوس اوکړو چې يوسف عليه السلام څنګه دې؟ هغه ورته اووئيل چې د مصر بادشاه دې . وې فرمائيل چې دا زما مطلب نه دې چې فقير دې که بادشاه؟ تپوس مې دادې چې د ايمان او عمل حالت ئې څه دې؟ بيا ورته هغه د يوسف عليه السلام د تقوى اوپاکيزګئ حال بيان کړو.دا د انبياء عليهم السلام شان دې چې د خپل اولاد د جسماني راحت او آرام نه زيات ورسره دهغوئ د روحاني حالت فکروي هرمسلمان لره هم داسې کول پکار دي.

③ د حسن رحمه الله د روايت مطابق کله چې زيرى ورکوؤنکي د يوسف عليه السلام قميص مبارك يعقوب عليه السلام ته راؤړو نو هغه ته ئې د څه انعام ورکولو اراده اوکړه خو هيڅ ورسره نه وو . هغه ته ئې اوفرمائيل چې د اوؤ ورځو راسې زمونږ په کور کښې روټئ نه ده پخ شوې . ځکه د مادي انعاماتوت عذر درته کوم مګر دا دعا درته کوم چې الله ﷻ دربانديې د زنګد سختى آسانه کړي . قرطبي فرمائيلى دى چې دا دعا دهغه دپاره دټولو نه زياته غوره انعام وو.([1])

④ دې واقعې نه دا هم معلومه شوه چې زيرى ورکوؤنکي ته انعام ورکول د پيغمبرانو عليهم السلام سنت طريقه ده ، په صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې د کعب بن مالك رضي الله عنه قيصه داسې مشهوره ده چې د تبوك په غزا کښې د شرکت نه کولو په وجه ورکړې زورنه چې ترې پورته کړې شوه او توبه ئې قبوله شوه نو ددې زيرى راؤړونکي ته ئې خپلې اغوستې جامې ورکړې.([2])

دغه شان تر دا هم معلومه شوه چې د خوشحالۍ په موقعه باندې د خوشحالۍ د ښکاره کولو په غرض دوستانووغيره ته دميلمستيا بلنه ورکول هم سنت دى ، عمر فاروق رضي الله عنه کله چې سورت بقره په لوستلو ختم کړو نو په خوشحالۍ کښې يو اوښ ذبح کړو او په خلقو يې اوخرولو.([3])

⑤ کله چې د واقعې حقيقت ښکاره شو نو د يعقوب عليه السلام ځامنو د خپل باباجي او رورنه معافي اوغوښتله ، دې نه معلومه شوه چې زيان رسوؤنکي يا حق لاندې کوؤنکي دې حق خپل خاوند ته زر تر زره ورکوي يا دې ترې معافي اوغواړي.

---

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۹ص:۲۶۱]

[2]) صحيح البخاري کتاب المغازي ، باب حديث کعب بن مالك [ج:۲ص:۶۳۴]

[3]) تفسير القرطبي [ ج:۹ص:۲۶۲]

صحیح بخاري کښې د ابی هریره ﷺ نه روایت دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې د چا په ذمه د بل چا مالي حق واجب وی یا څه زیان ئې ورته په ژبې یا لاس پښو سره رسولې وی نو پکار دی چې هغه ورته نن اداکړی یا ترې معافئ غوښتلو سره ځان معاف کړی. وړاندې دد ې نه چې د قیامت هغه ورځ راشي چرته چې به چا سره د حق ادا کولو دپاره څه مال نه وی ، ځکه به ددهٔ نیک عملونه مظلوم ته ورکړې شي. دې بهٔ تش پاتې شي واچولې شي اوکه دده نیک عملونه وی نورو چې څه ګناهونه وی هغه ددهٔ په سر واچولې شي (۱) والعیاذبالله تعالی

**د یوسف ﷺ د صبر او شکر مقام** :: دې نه پس یوسف ﷺ د والدینو په وړاندې خپل تیر شوی حالات بیانول شروع کړل ، دلته یو منتې ایسار شئ او غور اوکړئی چې په چا باندې دومره تکلیفونه ، مصیبتونه تیر شوی وی څومره چې په یوسف ﷺ تیر شوی وو ،د والدین نه دومره اوږد بیلتون ئې تیر کړې وې ، د ناامیده کیدو نه پس ئې ورسره ملاقات شوې وی ، نو هغه به د والدینو په وړاندې په ده باندې تیر شوی حالات په څه شان سره بیانوی. څومره بهٔ ژاړی او ژړه به کوی . او څومره شپې ورځې به د خپلو مصیبتونو قیصه په آوږولو باندې تیروی. خو دلته دواړو طرفونو ته پیغمبران ﷺ جدا شوې دی ، ددوئ طرز عمل اوګورئی هغه فرزند چې دزړهٔ سره ئې وو ، په زرګونو مصیبتونو پرې تیر شوی وو خو بیا هم باباجی ﷺ سره یو ځائې کیږی نو فرمائی چې :

(وَقَدْ اَحْسَنَ بِیْٓ اِذْ اَخْرَجَنِیْ مِنَ السِّجْنِ وَجَآءَ بِكُمْ مِّنَ الْبَدْوِ مِنْۢ بَعْدِ اَنْ نَّزَغَ الشَّیْطٰنُ بَیْنِیْ وَبَیْنَ اِخْوَتِیْ) [او ما سره ئې [داڅومره] احسان اوکړو چې د جیل نه ئې راوویستلم ] اوتاسو ټول ئې دکلی نه [دلته] راوستئ ] پس د دې نه چې شیطان زما اوزما د رونړو په مینځ کښې فساد اچولې وو]

د یوسف ﷺ مصیبتونه په ترتیب سره په درې بابونو کښې تقسیمیږی. اول د رونړو زور ظلم ، دویم د والدینو نه ډیرې مودې پورې جدا والی ، دریم دقیدخانې تکلیفونه .

د الله ﷻ دې ښکلې پیغمبر ﷺ خو اول د واقعاتو ترتیب بدل کړو او د قیدخانې نه ئې خبر شروع کړو چې قیدخانې ته د ورتلو اود هغې ځائې د تکلیفونو نوم ئې وانغستو. بلکه د قید خانې نه ئې د وتلو بیان د الله ﷻ د شکر سره بیان کړو ، د قیدخانې نه د خلاصیدو او په هغې باندې د الله تعالی د شکر کولو په ترڅ کښې ئې دا هم اوخودل چې زه څه وخت دپاره په قیدخانه کښې هم پاتې شوې یم.

دلته دې خبرې ته هم کتل پکار دی چې یوسف ﷺ د قیدخانې نه د راخلاصیدو یاداشت خو اوکړو او رونړو چې په کوهي کښې غورزولې وو. د هغې ذکر ئې ځکه او نه کړو چې د رونړو غلطي ئې ړومبې معاف کړې وه او فرمائیلي ئې ووچې : (لَا تَثْرِیْبَ عَلَیْكُمُ الْیَوْمَ) نومناسب ئې او نه ګڼړل چې په دغې بیانولو سره خپل رونړه شرمنده کړی [قرطبی] (۲)

دې پسې دا بیانول وو چې ډیره زمانه د والدینونه بیل پاتې شوې یم. ډیر غمونو او تکلیفونو زپلې یم دهغې کیفیت او شان بیانول وو ، خو دا ټول هر څه ئې پرېښودل او ددې آخری انجام او والدینو سره د ملاقات بیان ئې د الله ﷻ په شکر سره اوکړل چې تاسو ئې د باندې صحرا د

(۱) صحیح البخاری کتاب المظالم والقصاص ،باب من کانت له مظلمة [ج:۱ص:۳۳۱]
(۲) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة [ج:۹ص:۲۶۷]

مصر ښار ته راؤروسولئ ، په دې کښې هم نعمت ته اشاره ده چې د يعقوب عليه السلام وطن په کلو کښې وو چرته چې د ژوند تيرولو آسانئ کمې او لږې وې او الله ﷻ په ښار کښې داخل کړل ، او هغې سره د بادشاهئ په عزتونو سره هم اوپالل.

اوس د ړومبئ خبرې بيان ئې دټولو نه روستو کړو ، يعنی د رونړو زور ظلم ئې شيطان ته په دې شان حواله کړو او خبره ئې ختمه کړه چې زما رونړه خو داسې نه وو چې دا کار ئې کړې وې بلکه شيطان دوئ تيروستي دی او دغه فساد ئې د هغوئ دلاسه راولاړ کړې دې.

قربان شم دپيغمبرئ د شان نه،اوګورئ چې په هر ځائې کښې په مصيبتونو او تکليفونو يوازې صبر نه بلکه هر ځائې کښې د شکر طرفته راؤباسی ، ځکه د هغوئ هيڅ حال داسې نه وی چې په هغې کښې بهٔ دالله تعالیٰ شکر ګذار نه وی ، په خلاف د عامو مسلمانانو نه چې حال ئې دا وی که په زرګونو نعمتونه د الله ﷻ پرې اوشی نو د هيڅ يو ياداشت هم نه کوی . او که څه وخت مصيبت پرې راشی نوټول عمرهم هغه مصيبت يادوی،قرآن عظيم الشان کښې دا شکايت شوې دې ، لکه فرمائی چې (اِنَّ الْاِنْسَانَ لِرَبِّهٖ لَكَنُوْدٌ) بيشکه انسان د خپل رب ډير ناشکره دې]

يوسف عليه السلام داشان په دې لفظونو کښې مختصر کولو نه پس اوفرمائيل چې : (اِنَّ رَبِّيْ لَطِيْفٌ لِّمَا يَشَآءُ ۭ اِنَّهٗ هُوَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ)[ بيشکه زما رب چې څه غواړی نو هغې دپاره ښهٔ تدبير جوړوی هغهٔ په هر څه پوهه د حکمت خاوند دې]

| رَبِّ | قَدْ اٰتَيْتَنِيْ | مِنَ الْمُلْكِ | وَعَلَّمْتَنِيْ | مِنْ تَاْوِيْلِ |
|---|---|---|---|---|
| اثي ربه زما | راکړې دې تاماله | حکومت | او اوښودل تا ما ته | حقيقت ته رسيدل |
| .........اثي زما ربه ! تا ماته حکومت راکړو | او د خوبونو د تعبير | | | |

| الْاَحَادِيْثِ | فَاطِرَ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | اَنْتَ | وَلِيّ | فِي الدُّنْيَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| د خبرو | اثي پيداکونکيه | د آسمانونو | او د زمکې | ته | دوست زما ئې | په دنيا کښې |
| علم دې هم راکړو | اثي د آسمانونو اود زمکې خالقه تهٔ په دنيا او په آخرت دواړو کښې | | | | | |

| وَالْاٰخِرَةِ | تَوَفَّنِيْ | مُسْلِمًا | وَّاَلْحِقْنِيْ | بِالصّٰلِحِيْنَ |
|---|---|---|---|---|
| اوپه آخرت کښې | وفات کړې ما | په داحال چې مسلمان يم | او يوځائې کړې ما | د صالحانو خلقو سره |
| زما کار ساز يې | ما د دنيا نه د تابعدارئ په حالت وفات کړه | اود نيکانو په ټولی کښې مې شامل کړه | | |

**آسان ترجمه قرآن**

زما پروردګاره ! تا ما ته د حکومت نه هم حصه راکړې ده او ما ته دې دتعبير علم هم راکړې دې. د آسمانونو او زمکو پيداکونکيه ! ته دنيا او آخرت کښې ځما ساتونکې ئې – ما په داسې حالت کښې د دنيا نه واخلې چه څه ستا تابعدار يم . او ما په نيکانو کښې شامل کړې .

**خلاصه تفسير**

﴿رَبِّ قَدْ اٰتَيْتَنِيْ مِنَ الْمُلْكِ وَعَلَّمْتَنِيْ مِنْ تَاْوِيْلِ الْاَحَادِيْثِ﴾ [ددی نه پس ټول په خنداخوشحالئ اوسيدل تردې چه د يعقوب [عليه السلام] عمرختميدو ته ورسيد واودوفات نه بعد ددوی دوصيت مطابق

دشام ملك ته يوړي شو دخپلو بزرګانو په خواكښې دفن كړي شو بيا د يوسف [عليه السلام] هم دآخرت شوق پيدا شو اودعائي وكړه چه] اى خماربه تاماته [هرقسم نعمتونه راكړه ظاهري هم باطني هم ظاهري داچه مثلا] د حكومت لويه حصه دې راكړه او[باطني داچه مثلا]ماته دې دخوبونو تعبير وركول اوخودل [كوم چه لوى علم دى خصوصاً هركله چه دايقيني وي، كوم چه موقوف دى په وحي باندي پس ددي وجود لازمونكي دى دعطادنبوت لره] ﴿فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ اَنْتَ وَلِيّٖ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۚ﴾ اى خالقه د آسمانونواودزمكي ته خماكارسازئي په دنياكښې هم اوپه آخرت كښې هم ،[پس څنګه دې چه په دنيا كښې خماتول كارونه برابر كړه چه حكومت دې راكړو علم دى راكړو دغه شان دآخرت كارهم جوړ كړي چه ﴿تَوَفَّنِيْ مُسْلِمًا وَّاَلْحِقْنِيْ بِالصّٰلِحِيْنَ ۝﴾ [ما دفرمانبرداري په حالت دنيانه پورته كړې اوخاص په نيكوبندګانو كښې مى شامل كړى [يعني خمابزرګانوته كوم چه لوى لوى انبياء دې دوى ته ماهم ورسوې ]۔

## معارف او مسائل

تيرو شوؤ آيتونو كښې ئې باباجى [عليه السلام] سره خطاب وو ، كله چې د والدينو او رونړو ملاقات سره ئې ډير ضروري مقصد حاصل شو او تسلي ورته حاصله شوه نو نيغ په نيغه د الله [ﷻ] په ثنا ، صفت او دعا كښې مشغول شو ، وې فرمائيل چې:

(رَبِّ قَدْ اٰتَيْتَنِيْ مِنَ الْمُلْكِ وَعَلَّمْتَنِيْ مِنْ تَاْوِيْلِ الْاَحَادِيْثِ ۚ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ اَنْتَ وَلِيّٖ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۚ تَوَفَّنِيْ مُسْلِمًا وَّاَلْحِقْنِيْ بِالصّٰلِحِيْنَ ۝)[ائي زما ربه ! تا ماته حكومت راكړو | او د خوبونو د تعبير علم دې هم راكړو | ائي د آسمانونو اود زمكي خالقه تهٔ په دنيا او په آخرت دواړو كښې زما كارساز يې | ما د دنيا نه د تابعدارئ په حالت وفات كړه | اود نيكانو په ټولى كښې مې شامل كړه]

كامل نيك بندګان هم پيغمبران [عليهم السلام] كيدې شى كوم چې د هرې يوې ګناه نه پاك دى [مظهري].

په دې دعاكښې د نيك انجام دعا ته په خاص طور سره كتل پكار دى ، چې د الله [ﷻ] د مقبولو بندګانو رنګ دا وى چې ددنيا او آخرت څومره لوئې درجې ئې نصيب شى او څومره مرتبې او درجې ئې په قدمونو باندې پريوځى ، بيا هم په هغوئ [عليهم السلام] كښې څه غرور او تكبر نه راځى بلكه هر وخت ورسره دا فكر وى چې هسې نه دا رانه كمې كړې شى يا بالكل رانه واخستې شى ، دې دپاره په مخه دعاګانې كوى چې د الله [ﷻ] ظاهري او باطني نعمتونه دې تر مرګه پورې راسره پاتې شى بلكه په هغې كښې دې نور زياتوالې هم كولې شى تر دې پورې چې د يوسف [عليه السلام] عجيبه او نا آشنا قيصه ختمه شوه او ددې په بحث كښې د هغې هدآيتونو سلسله ختمه شوه كوم چې په قرآن عظيم الشان كښې بيان شوى دى . دې نه پس ددې قصې څه بيان په قرآن عظيم الشان يا حديث مرفوع كښې نه دې راغلې ، كه چرته ئې بيان شوې دې نو اكثر علماء كرام د تفسير هغې لره د تاريخي يا اسرائيلي روايتونو نه اخستى دى .

تفسير ابن كثير كښې د حسن [رحمه الله] په روايت سره نقل شوى دى چې كله يوسف [عليه السلام] خپلو رونړو په كوهي كښې ورغورزولې وو نو هغه وخت ئې عمر اوۀ كاله وو ، بيا اتيا كله د باباجى [عليه السلام] غائب او جدا پاتې شوې وو والدينو سره د ملاقات نه پس ديرويشت كاله ژوندې پاتې او د شپږو شلو كالو په عمر كښې وفات شو

او محمد بن اسحاق [رحمه الله] فرمائيلي دى چې د اهل كتابو د روايتونو مطابق د يوسف [عليه السلام] او يعقوب [عليه السلام] تر مينځه د جدائي زمانه څلويښت كاله وه ، مصر ته چې يعقوب [عليه السلام] تشريف راوړو

نو هلته اوولس کاله ژوندي وو ، بيا وفات شو . خو په تفسير قرطبی کښې د مؤرخينو په حواله بيان شوی دی چې مصر کښې د څليرشتو کالو ژوندې پاتې کيدو نه پس يعقوب عليه السلام وفات شو . د وفات کيدو نه رومبې ئې يوسف عليه السلام ته دا وصيت کړې وو چې مرګ نه پس مالره خپل وطن ته اوليږئی او هلته مې د خپل باباجی عليه السلام په خوا کښې دفن کړئی .

سعيد بن جبير رضي الله عنه اوفرمائيل چې يعقوب عليه السلام لره د سال يعنی آبنونس لرګی په تابوت کښې ايښودو سره بيت المقدس ته يوړې شو ، همد غه وجه ده چې په يهودو کښې دا رسم جوړ شو چې د لرې لرې نه خپل مړی بيت المقدس ته راوړی او هلته ئې ښخوی ، د يعقوب عليه السلام عمر د وفات کيدو په وخت يو سل اووۀ څلويښت کاله وو.

عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائيلی دی چې کله يعقوب عليه السلام مصر ته راغلو نو هغه وخت سره د تولې کورنۍ لس کم سل نارينه او زنانه وو او کله چې د يعقوب عليه السلام اولاد موسى عليه السلام سره د مصر نه وتل نو شمير ئې شپږ لکه اويا زره وو [قرطبی و ابن کثير].([1]) دا خبره مخکې تيره شوې ده چې د مصر بادشاه د زليخې بی بی نکاح يوسف عليه السلام سره کړې وه.

د تورات او اهل کتاب په تاريخ کښې موجود دی چې زليخې بی بی نه د يوسف عليه السلام دوه خامن افرائيم او منشا، او يوه جينۍ رحمت بنت يوسف پيدا شوه، او ددې نکاح ايوب عليه السلام سره شوې وه . د افرائيم په اولاد کښې يوشع بن نون پيدا شوې وو چې د موسى عليه السلام ملګرې وو ، [مظهری].([2]) يوسف عليه السلام د شپږوشلو کالو په عمر کښې وفات شو او د رودنيل په غاړه دفن کړې شو.

ابن اسحاق د عروه بن زبير رضي الله عنه په روايت سره بيان کړې دې چې کله موسى عليه السلام ته دا حکم اوشو چې سره د بنی اسرائيلو دې دمصر اووځی نو دوحی په ذريعه ورته دا حکم ورکړې شو چې د يوسف عليه السلام کالبوت يعنی جسد هم په مصر کښې مه پريږدئی بلکه دا ځان سره شام ته يوسئ او خپلو مشرانو سره ئې دفن کړئی . ددغې حکم په جوړ موسى عليه السلام چې تحقيق اوکړو نو دهغوئ قبر ئې معلوم کړو چې د سنګ مرمرو په تابوت کښې وو ، هغه ئې ځان سره کنعان ته يوړو او د يعقوب عليه السلام او اسحاق عليه السلام په خوا کښې دفن کړو ، [مظهری].([3])

د يوسف عليه السلام نه پس د عمالقه قوم فرعونيانو په مصر باندې بادشاهان شو خو بنی اسرائيل هم په دغه حکومتونو کښې اوسيدلو سره د يوسف عليه السلام په دين باندې کلک پاتې شو. بيا دغې فرعونانو هغوئ لره راغلی خلق بلل او قسما قسم نقصانونه او تکليفونه به ئې ورکول ، تر دې چې د موسى عليه السلام په ذريعه الله ﷻ هغوئ لره ددغې عذاب نه خلاص کړل [تفسير مظهری].([4])

ددې آيتونو نه دا معلومه شوه چې د والدينو قدر او احترام واجب دی څنګه چې د يوسف عليه السلام د قيصې نه ثابت شو . دويمه مسئله ترې دا معلومه شوه چې د يوسف عليه السلام په شريعت کښې د تعظيم سجده جائز وه څکه ئې والدينو او رونړو ورته سجده اوکړه خو په محمدی شريعت

---

[1] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:۹ص:۲٦۸]و تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٤ ص:٤١٣]
[2] ) تفسير المظهری تحت هذه الآية [ج:٥ص:٢٠٤]
[3] ) تفسير المظهری تحت هذه الآية [ج:٥ص:٢٠٤]
[4] ) تفسير المظهری تحت هذه الآية [ج:٥ص:٢٠٤]

کښي سجده د خاص عبادت نخښه ده چې غير الله ته ئې کول حرام شو لکه قرآن عظيم الشان فرمائي چې: (لَاتَسْجُدُوْالِلشَّمْسِ وَلَالِلْقَمَرِ) او په حديث پاك کښې راغلي دي چې کله معاذ ﷺ شام ته لاړو او هلته ئې اوليدل چې نصاری خپلو بزرگانو ته سجدې کوی نو په واپسئ کښې نبي رسول کريم ﷺ ته سجده کول اوغوښتل خو هغوئ ﷺ منع کړل او وې فرمائيل چې که د الله ﷻ نه بغير مې بل چاته سجده کول جائز ګڼړلي نو ښځې ته به مې حکم کړې وو چې خپل خاوند ته دې سجده کوی. (١)

دغه شان کله چې سلمان فارسی ﷺ رسول کريم ﷺ ته سجده کول اوغوښتل نو ورته ئې اوفرمائيل چې:

(لاتسجدلي ياسلمان واسجدللحي الذي لايموت) [اې سلمان ﷺ ! ما ته سجده مه کوه بلکه يوازې هغه ذات ته سجده کوه چې حی او قيوم دې او هيڅ کله نه فنا کيږي] [ابن کثير] (٢)

ددې نه معلومه شوه چې هر کله رسول کريم ﷺ ته تعظيمی سجده کول جائز نه شو نو بل يو بزرگ يا پير ته به څنګه جائزشي؟

(هٰذَاتَاوِيْلُ رُءْيَايَ) ددې نه معلومه شوه چې د خوبونو تعبير کله کله د ډيرې زمانې نه پس ښکاره کيږی څنګه چې په دې واقعه کښې ځلويښت يا اتيا کاله پس ښکاره شو [ابن جرير و ابن کثير] (٣)

(وَقَدْاَحْسَنَ بِيْ) ددې نه ثابته شوه چې مرض يا مصيبت کښې اخته بنده کله چې دې نه خلاص شي نو پيغمبری سنت طريقه داده چې شکر ادا کړی او د مرض او مصيبت يادګيرنه بالکل نه کوی.

(اِنَّ رَبِّيْ لَطِيْفٌ لِّمَا يَشَآءُ) ددې نه معلومه شوه چې کله الله ﷻ د څه کار اراده اوکړی هغې دپاره داسې نازك او پټ تدبيرونه او سامانونه برابر کړی چې د چا په وهم او ګمان کښې هم نه راځي.

(تَوَفَّنِيْ مُسْلِمًا) دې کښې يوسف ﷺ د الله ﷻ نه داسوال کړې دې چې په ايمان او اسلام مې وفات کړې. دې نه معلومه شوه چې په خاصو حالاتو کښې د مرګ دعا کول منع نه دی، په صحيح احاديثو کښې چې د مرګ آرزو کول منع شوی دی، د هغې حاصل دادې چې ددنيا د تکليفونو نه په ويريدو سره د بې صبرئ په وجه دمرګ سوال اوکړی نو دا جائز نه دی. رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې څوك دې د مصيبت په وجه دمرګ خواهش نه کوی اوکه خامخا ددې خواهش کول غواړی نو داسې سوال دې کوی چې يا الله ﷻ ! تر کومې چې مالره ژوند بهتر وی تر هغې مې ژوندې اولرې او کله چې ما دپاره مرګ بهتر وی نو مرګ راته راکړې. (٤)

| ذٰلِكَ | مِنْ اَنْبَآءِ | الْغَيْبِ | نُوْحِيْهِ | اِلَيْكَ ۚ | وَمَاكُنْتَ | لَدَيْهِمْ | اِذْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| داقيصه | د خبرونو | د غيبو نه ده | چې وحی کوو مونږ هغه | تاته | اونه وې ته | د هغوئ سره | کله چې |

دا د غيبي خبرونه دی | چې مونږ ئې تاته د وحی په ذريعه درليږو | اوته هغه وخت هغوئ سره موجود نه

(١) سنن ابن ماجة ابواب النكاح باب حق الزوج على المراة [ج:١ص:١٣٣]
(٢) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٤ ص:٤١٢]
(٣) تفسير الطبری تحت هذه الآية [ج:١٦ص:٢٧٢، ٢٧٣]و تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٤ ص:٤١٣]
(٤) صحيح البخاری كتاب الدعوات، باب الدعاء بالموت والحياة [ج:٢ص:٩٣٩]

أَجْمَعُوٓا أَمْرَهُمْ وَهُمْ يَمْكُرُونَ ۝ وَمَآ أَكْثَرُ النَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ

راجمع كړو هغوئ | كار خپل | او هغوئ | سازش كوؤ | اونه دى | زيات خلق | او اگركه حرص اوكړې ته

وي كله چه هغوئ په خپل سازشى كار باندى اتفاق كولو | او په دوئ كښې زيات خلق ايمان نۀ راوړى

بِمُؤْمِنِينَ ۝ وَمَا تَسْـَٔلُهُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ ۚ إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ

منونكى | اونه غواړې ته د دوئ نه | په دې باندې | څه اجرت | نۀ دې دا | مگر | يو نصيحت دې

اگر كه ته ئې ايماندار غواړې | او ته د دوئ نه په تبليغ باندې څه اجر نۀ غواړې | دا [قرآن] خو د ټول

لِّلْعَٰلَمِينَ ۝ وَكَأَيِّن مِّنْ ءَايَةٍ فِى السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ يَمُرُّونَ

دپاره دخلقو | او ډيرې دى | د نښو نه | په اسمانونو كښې | او په زمكه كښې | چې تيريږى دا خلق

مخلوق دپاره نصيحت دې | او په اسمانونو او په زمكه كښې څومره ډيرې نښې دى | په كومو چې دوئ

عَلَيْهَا وَهُمْ عَنْهَا مُعْرِضُونَ ۝ وَمَا يُؤْمِنُ أَكْثَرُهُم بِاللَّهِ

په هغې باندې | او دوئ | د هغې نه | مخ اړوونكى دى | اونۀ راوړى ايمان | زيات د دوئ نه | په الله باندې

تيريږى | اودوئ د هغې نه مخونه اړولى وى | او په دوئ كښې زيات په الله ﷻ ايمان نۀ راوړى

إِلَّا وَهُم مُّشْرِكُونَ ۝ أَفَأَمِنُوٓا أَن تَأْتِيَهُمْ

مگر په داسې طريقه | چې هغوئ | شرك كونكى وى | آيا نو دوئ په امن دى | د دې نه چې | راشى دوئ ته

مگر بيا ورسره شرك هم كوى | آيا دا خلق د دې خبرې نه بې غمه شوى دى | چې د الله ﷻ د طرف نه پرې

غَٰشِيَةٌ مِّنْ عَذَابِ اللَّهِ أَوْ تَأْتِيَهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً

يوگيرونكې مصيبت | د عذاب د الله نه | يا راشى دوئ ته | ساعت د قيامت | ناساپه

د عذاب څه داسې آفت راپريوزى | چې په دوئ خور شى | يا ناگهانه پرې قيامت راشى

وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ۝ قُلْ هَٰذِهِۦ سَبِيلِىٓ أَدْعُوٓا إِلَى اللَّهِ ۚ

په داسې حال كښې چې دوئ | خبر نۀ وى | ورته اووايه | دا | لار زما ده | رابلم زۀ | الله ته

اودوئ ترې نه خبر هم نۀ وى | ته ورته اووايه | چې دا زما لار ده | زۀ خلق الله ﷻ ته رابلم

عَلَىٰ بَصِيرَةٍ أَنَا۠ وَمَنِ اتَّبَعَنِى ۖ وَسُبْحَٰنَ اللَّهِ وَمَآ أَنَا۠

په ښكاره دليل سره | زۀ | او هغه څوك هم | چې پيروى ئې كړې ده زما | او پاك دې الله | او نۀ يم زۀ

زۀ او زما ملگرى په دغه نيغه لار روان يو | ............ او الله ﷻ پاك دې | او زۀ د مشركانو څخه

مِنَ الْمُشْرِكِينَ ۝ وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا

د مشركانو نه | اونه وو ليږلى مونږ رسولان | مخكښې ستا نه | مگر وو | سړى

نۀ يم | ............ او مونږ چې ستا نه وړاندې [مختلفو] ٭ قومونو ته صرف سړى پيغمبران ليږلى وو

نُّوحِىٓ إِلَيْهِم مِّنْ أَهْلِ الْقُرَىٰٓ ۗ أَفَلَمْ يَسِيرُوا

چې وحى به ليږله مونږ | هغوئ ته | د اوسيدونكو | د دې كلو نه | آيا نو گنى نۀ دى گرځيدلى دوئ

چاته چې به مونږ وحى كوله | ............ نو آيا دا خلق په زمكه كښې نۀ گرځى

فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ط

په زمکه کښې | چې نظر ئې کړې وې | چې څرنګ | شو | انجام | د هغه کسانو | چې مخکښې د دوئ نه وو

چې کتلي ئې وې | چې کوم خلق د دوئ نه ...ـدې تیر شوی وو | د هغوئ څه انجام شوې وو

وَلَدَارُ الْاٰخِرَةِ خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ اتَّقَوْا ط اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ۝

او خامخا کور | د آخرت | بهتر دې | د پاره د هغه کسانو | چې د تقوی په لور روان شو | آیا تاسو عقل نه لرئ

او البته د آخرت کور هغو خلقو د پاره ډیر بهتر دې | چې پرهیزګاران دی | نو ایا تاسو نه پوهیږئ

## آسان ترجمه قرآن

(اې پیغمبره!) دا ټوله واقعه د غیب د خبرو یوه حصه ده چه مونږ ئې تا ته د وحي په ذریعه بیانوؤ—او ته هغه وخت د دوی (د یوسف د وروڼو) سره نه وې چه کله دوی سازش اوکړو او خپله فیصله ئې پخه کړې وه (چه یوسف به په کوهي کښې غورزوؤ) ددې باوجود اکثر خلق ایمان راوړونکی نه دی. اګرچه ستا زړه څنګه هم غواړی. حالانکه ته د دوی نه په دې (تبلیغ) باندې هیڅ مزدوری نه غواړې. دا خو د ټولې دنیا د ټولو خلقو د پاره بس یو د نصیحت پیغام دې. او په آسمانونو او زمکه کښې څومره نخښې دی چه په هغې باندې دوی تیریږی، خو دوی د هغې نه مخ اړوی. او په دوی کښې اکثر خلق داسې دی چه په الله باندې ایمان لری هم نو داسې چه دوی د هغه سره شرك هم کوی. آیا دې خلقو سره ددې خبرې لږه ویره هم نشته چه د الله د عذاب څه مصیبت به دوی راګیر کړی، یا به په دوی باندې قیامت ناڅاپه راشی او دوی ته به د مخکښې نه احساس هم نه وی؟ (اې پیغمبره!) ته اوایه چه: دا ځما لاره ده څه په پوره عقلمندئ سره الله طرف ته رابلم او چا چه ځما تابعداری کړې ده هغوی هم—او الله پاك (د هر قسم شرك نه) پاك دې، او ځه د هغه خلقو نه نه یم چه د الله سره نور خلق شریکان کوي او مونږ چه تا نه مخکښې کوم رسولان لیږلي وو هغوی ټول په مختلفو کلو کښې اوسیدونکي انسانان وو چه هغوی ته به مونږ وحي لیږله نو آیا دا خلق په زمکه کښې وو نه ګرځیدل چه وګوري چه دوی نه مخکښې د قومونو څه حال وو؟ او کور د آخرت یقیناً د هغه خلقو د پاره ډیر بهتر دې چه هغوی پرهیزګاري اختیار کړې ده. آیا بیا هم تاسو د عقل نه کار نه اخلئ؟

## خلاصه تفسیر:

﴿ذٰلِكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهِ اِلَيْكَ﴾ دا قصه [کومه چه پورته بیان شوه ستا په اعتبار سره] د خبرونو د غیبونه ده [څکه چه ستا سره کومه ظاهري ذریعه ددی د پوهیدونه وه فقط] مونږه د وحی په ذریعه درته دا قصه ښایو او ﴿وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ اِذْ اَجْمَعُوْٓا اَمْرَهُمْ وَهُمْ يَمْكُرُوْنَ ۝﴾ [دا ښکاره ده چه] ته د دوی [ورونړو د یوسف سره هغه وخت موجود نه وی کله چه دوی خپله اراده [د یوسف [علیه السلام] کوهی ته د غورزولو] پخه کړی وه او هغو [ددی په باره کښی] تدبیرونه کول [چه تا ته ئی وویل چه دی داسی بوزو او داسی ورسره کوو، وغیره. او دغه شان د اخبره یقنی ده چې تاسو د یوسف ﷺ دا قصه د چا نه آوریدلې نه ده نو دا ښکاره دلیل دې ددې چې خبرې تاسو پیغمبر ﷺ او صاحب وحی یئ. ﴿وَمَآ اَكْثَرُ النَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِيْنَ ۝﴾ او [ددی سره چه ستا په نبوت دلیلونه موجود دي] اکثر خلق

ایمان نه راوړي اګرچه هرڅومره ستاسو زړه غواړي او ﴿وَمَا تَسْـَٔلُهُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ﴾ [ددوی په ایمان نه راوړوسره ستا څه نقصان نشته ځکه چه ]ته ددوی نه په دی[قرآن] باندې څه معاوضه خونه غواړی [چه دا احتمال پکښې وی چه که دوی قرآن قبول نکړي نوستامعاوضه به فوت شي] ﴿إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَٰلَمِينَ﴾ دا [قرآن]خوصرف دټولی دنیا دخلقو لپاره یونصیحت دی[څوك چه ئی نه مني خپل نقصان به ئی وي].

﴿وَكَأَيِّن مِّنْ ءَايَةٍ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ يَمُرُّونَ عَلَيْهَا﴾ او[لکه څنګه چه داخلق دنبوت نه منکر دی دغسی سره ددلیلونو دتوحیدنه هم منکردي چنانچه]ډیري نښې دی [په توحید دلالت کونکی] په آسمانونو کښې [لکه ستوری وغیره]اوپه زمکه کښې [لکه عناصروغیره]چه دوی پرې تیریږي[یعني وینی ئی ] ﴿وَهُمْ عَنْهَا مُعْرِضُونَ﴾ اودوی ددی طرف ته [یوه ذره]توجه نکوي[یعني دلیل پري نه نیسي ] ﴿وَمَا يُؤْمِنُ أَكْثَرُهُم بِٱللَّهِ إِلَّا وَهُم مُّشْرِكُونَ﴾ او اکثرخلق کوم چه الله مني نوداسي چه شرك هم کوي[پس په غیر دتوحیدنه دالله منل په مثل دنه منلودي پس داخلق دالله تعالی سره هم کفر کوی اودنبوت سره هم کفرکوي].

﴿أَفَأَمِنُوٓاْ أَن تَأْتِيَهُمْ غَٰشِيَةٌ مِّنْ عَذَابِ ٱللَّهِ﴾ پس آیا [دالله اودرسول نه دانکارسره ]بیاهم ددې خبري نه مطمئن شویدي چه په دوی دالله دعذاب څه داسي آفت راپریوځي چه دوی پکښې ګیرشي ﴿أَوْ تَأْتِيَهُمُ ٱلسَّاعَةُ بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ﴾ یاپه دوی ناڅاپه قیامت راشي اودوی [دمخکی نه ]خبرتری نه وي [مطلب دادی چه مقتضی دکفرعذاب دی خواپه دنیاکښې نازل شي یادقیامت په ورځ واقع کیدونکی وي،دوی لره ویریدل او کفرپریخودل پکاردي].

﴿قُلْ هَٰذِهِۦ سَبِيلِىٓ أَدْعُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ ۚ عَلَىٰ بَصِيرَةٍ أَنَا۠ وَمَنِ ٱتَّبَعَنِى﴾ تهووایه چه څه دالله طرف ته په داسی طوریاندی بلنه کوم چه څه [دتوحیداوخپل رسالت]په دلیل باندي قائم یم زه هم اوزماملګری هم[یعني څماسره هم دتوحیداورسالت دلیل دی اوځماملګروهم دلیل سره په ما ایمان راوړی دی زه څوك بی دلیله خبری طرف ته نه رابلم،دلیل واوري اوو پوهیږئ پس نچوړ دطریقی داشو چه الله یودی اوځه رسول یم] ﴿وَسُبْحَٰنَ ٱللَّهِ وَمَآ أَنَا۠ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ﴾ او الله [دشرك نه]پاك دی او څه دغه طریقه قبلوم او] دمشرکانونه نه یم.

﴿وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُّوحِىٓ إِلَيْهِم مِّنْ أَهْلِ ٱلْقُرَىٰٓ﴾ او [دوی چه په نبوت کومه شبه کوی چه نبی فرشته پکاردي فقط مهمله خبره ده ځکه چه]مونږستانه مخکی مختلفوکلوته چه څومره [رسولان ] لیګلی دي ټول بنی آدم وو،چه دوی ته مونږوحی لیږله[یوه پکښې فرشته هم نه وه کوموله چه دوی ونه منل اوهمدغسی مهملی شبهی ئی کولي هغوئ ته سزاګانی ورکړی شوی دغسی به دوی ته هم سزاورکړی شي که په دنیاکښې وی اوکه په آخرت کښې وي اوداخلق چه کوم بی فکره دي] ﴿أَفَلَمْ يَسِيرُواْ فِى ٱلْأَرْضِ فَيَنظُرُواْ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾ نوآیاداخلق په ملك کښې [چرته]تلی اوګرځیدلی نه دي چه [پخپلوسترګوسره ]ئی لیدلي وي چه ددغوخلقوڅه [بد]انجام شو کوم چه ددوی نه مخکی کافران تیرشویدي ﴿وَلَدَارُ ٱلْءَاخِرَةِ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ ٱتَّقَوْاْ﴾ او[یادساتئ چه دکومي دنیاپه محبت کښې تاسوبی هوشه شوی ئی کفر مو اختیار کړیدی دادنیافانی اوبیکاره ده]البته آخرت دهغوخلقولپاره نهایت د کامیابئ څیز دي کوم چه[دشرك وغیره نه خان ساتي [اوتوحیداوفرمانبرداری اختاروی ﴿أَفَلَا تَعْقِلُونَ﴾ نو آیا تاسو دومره هم نه

پوهيږئ؟[چه فاني او بې حقيقته شې ښه دی او که باقي او پائيدار]۔

## معارف او مسائل

دې آيتونو کښې نبی کريم ﷺ ته خطاب دې کله چې د يوسف ﷺ پوره قيصه بيان شوه ، فرمائی چې:

﴿ذٰلِكَ مِنۡ أَنۢبَآءِ ٱلۡغَيۡبِ نُوحِيهِ إِلَيۡكَ﴾[ دا د غيبو خبرونه دی چې مونږ ئې تاته د وحی په ذريعه درليږو] تاسو ﷺ د يوسف ﷺ رونړو سره موجود نه وئ کله چې هغوئ يوسف ﷺ لره په کوهی کښې غورزولو دپاره اراده کړې وه. اود هغې دپاره انتظامات ئې کول ددې مقصد دادې چې د يوسف ﷺ داقيصه په پوره تفصيل سره صحيح صحيح بيانول ستاسو د پيغمبرئ او وحی ښکاره دليل دې ، ولې چې دا قيصه ستاسو د زمانې نه په زرګونو کاله آګاهو [مخکښې] تيره شوې ده نه تاسو ﷺ هلته موجود وی چې ګنی خپل ليدل کتل بيان کړې . نه دې چرته چا نه تعليم حاصل کړې دې چې د تاريخ د کتابونو په لوستلو يا دهغې په آوريدو سره دې بيان کړې وی ، نو تاسو ته ددې علم سوا د وحی نه په بله ذريعه نه دې حاصل شوې .

قرآن عظيم الشان دلته صرف دومره اوفرمائيل چې تاسو ﷺ هلته موجود نه وئ. د بل چا يا دڅه کتاب نه ددې علم نه حاصلولو ذکر ځکه ضروری اونه ګنړلې شو چې ټول عرب په دې باندې ښه پوهه ووچې نبی کريم ﷺ امی دې چا نه يې د ليك لوست ازدکړه نه ده کړې. دا هم ټولو ته معلومه ووچې دهغوئ ﷺ ټول عمر مبارك په مکه مکرمه کښې تير شوې دې ، شام ملك ته ئې يو سفر خپل تره ابی طالب سره کړې وو چې د لارې نه بيرته مکې مکرمې ته راواپس شوی وو ، بل سفر ئې تجارت دپاره کړې وو چې د شمير څو ورځو کښې ئې خپل کار ختم کړو او بيرته مکې مکرمې ته ئې تشريف راوړې وو. دې سفر کښې ئې هم چا عالم سر ملاقات نه وو کړې او نه ئې څه علمی اداری ته د ورپيښيدو څه شبه کيدې شوه . قرآن عظيم الشان په يو بل ځائې کښې ددې بيان داسې فرمائی چې :

﴿مَا كُنتَ تَعۡلَمُهَآ أَنتَ وَلَا قَوۡمُكَ مِن قَبۡلِ هَٰذَا﴾[يعنی د قرآن کريم دنازليدو نه مخکښې دا واقعات نه خو تاسو ﷺ ته معلوم وو اونه ستاسو قوم ته]

امام بغوی رحمه الله فرمائيلی دی چې يهود او قريشو په شريکه باندې آزميښت دپاره د نبی کريم ﷺ نه دا سوال کړې وو چې که تاسو ﷺ دپيغمبرئ په دعوی کښې رښتينی يئ نو د يوسف ﷺ واقعه راته بيان کړئ . چې څنګه وه او په څه شان شوې وه؟ د وحی الهی په ذريعه چې ورته هغوئ ﷺ ددې قيصې ټول هر څه بيان کړل ، هغوئ بيا هم پخپل کفر او انکار باندې کلك وو، نبی کريم ﷺ زيات خفه شو ،(۱) ځکه ورته په راتلونکی آيت کښې اوفرمائيلې شو چې ستاسو ﷺ د پيغمبرئ دليلونه که هر څومره واضح او ښکاره وی ، بيا هم ډير خلق ايمان نه قبلوی که تاسو هر څومره کوشش اوکړئ .

مطلب دادې چې ستاسو کار دادې چې په تبليغ او اصلاح کښې کوشش کوئ دهغې کاميابول نه ستاسو ﷺ په اختيار کښې دی او نه ستاسو ﷺ په ذمه دی ځکه غم مه کوئ ، دې پسې

(۱) تفسير البغوی تحت هذه الآية [ج:٤ص:٢٨٢]

فرمائی چې : ﴿وَمَا تَسْـَٔلُهُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ ۭ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعٰلَمِيْنَ ۝﴾[یعنی تاسو دوئ ته تبلیغ کوئی ددوئ په صحیح لاره باندې دراتلو کوشش کوئی په دې باندې خو ددوئ څخه بدله نه اخلئ چې ددوئ په نۀ آؤریدو یا نه منلو سره یې تاسو ته څه تکلیف راپېښیدې شی بلکه ستاسو کار خالص خیرخواهی او نصیحت کول دی ، دټول جهان خلقو ته] په دې کښې دې طرفته هم اشاره ده چې هر کله ددې کوشش څخه ستاسو مقصد څه دنیاوی فائده نه ده بلکه د آخرت ثواب مو غرض دې اود قوم خیر خواهی کول دی نو دغه مقصد خو حاصل شو ، بیا ولې غم کوئی؟

﴿وَكَاَيِّنْ مِّنْ اٰيَةٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ يَمُرُّوْنَ عَلَيْهَا وَهُمْ عَنْهَا مُعْرِضُوْنَ ۝﴾[ اوپه آسمانونو اوپه زمکه کښې څومره ډیرې نخښې دی په کومو چې دوئ تیریږی اودوئ د هغې نه مخونه اړولی وی] آسمانونو اوزمکه کښې د الله ﷻ دخدائی ، حکمت اوقدرت نخښې بې شمیره دی . د هغې څننې یوه نخښه داهم ده چې په پخوانو قومونو باندې راغلی عذابونه ، دهغوئ الټه کړې شوې یا برباد شوې آبادیانې د دوئ د نظر نه تیریږی خو بیا هم ترڅه عبرت نه اخلی.

دابیان د داسې خلقو وو چې د الله ﷻ وجود ، حکمت او قدرت ئې نه منلو ، دې پسې دداسې خلقو بیان دې چې د الله ﷻ موجودگی خو منی مگر په خدائی کښې ورسره نور څیزونه شریکان گرځوی ، لکه فرمائی چې :

﴿وَمَا يُؤْمِنُ اَكْثَرُهُمْ بِاللّٰهِ اِلَّا وَهُمْ مُّشْرِكُوْنَ ۝﴾[یعنی کوم خلق چې په الله ﷻ ایمان راوړی په هغوئ کښې هم اکثر خلق ورسره شریکان گرځوی]یعنی د الله ﷻ په صفتونو ، علم قدرت وغیره کښې ورسره نورو لره شریکان گرځوی چې سراسر ظلم او ناپوهی ده.

یعنی د الله ﷻ په صفتونو ، علم قدرت وغیره کښې ورسره نورو لره شریکان گرځوی چې سراسری ظلم او ناپوهی ده .

ابن کثیر رحمه الله فرمائیلی دی چې ددې آیت مبارک په مفهوم کښې هغه مسلمانان هم داخل دی چې سره د ایمانه په مختلف قسم شرك کښې اخته دی ، په مسند احمد رحمه الله کښې منقول دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې زۀ په تاسو باندې د هر څه نه زیات د شرك اصغر نه ویریږم. صحابه کرامو رضی الله عنهم چې تپوس اوکړو نو وې فرمائیل چې ریاء شرك اصغر دې .([1]) همداشان په یوحدیث پاك کښې دی چې په بل څه باندې قسم خوړل شرك دې . [ ابن کثیر د ترمذی نه].([2]) نو د الله ﷻ نه بغیردبل چا دنوم منښته . کول هم په اتفاق د فقهاء کرامو سره په دې کښې داخل دی.

دې پسې د دوئ په بې پرواهئ اوناپوهئ باندې افسوس او تعجب ښکاره کول دی چې دا خلق د خپل انکار او سرکشئ سره ددې خبرې نه څنگه بې فکره شو چې په دوئ به د الله ﷻ د طرفنه څه عذاب راشی ، یا به ناڅاپه پرې قیامت راشی چې دوئ به دهغې دپاره تیار نه وی.

﴿قُلْ هٰذِهٖ سَبِيْلِيْٓ اَدْعُوْٓا اِلَى اللّٰهِ ۣ عَلٰي بَصِيْرَةٍ اَنَا وَمَنِ اتَّبَعَنِيْ ۭ وَسُبْحٰنَ اللّٰهِ وَمَآ اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝﴾[ ته ورته اووایه چې دا زما لار ده زه خلق الله ﷻ ته رابلم زه او زما ملگری په دغه نیغه لار روان یو اوالله ﷻ پاك دې اوزه د مشرکانو څنې نه یم]

---

[1]) مسند احمد حدیث محمود بن لبید رضی الله عنه رقم الحدیث[۲۲۵۳]

[2]) جامع الترمذی ، ابواب النذور والإیمان باب ماجاء فی کراهیة الحلف بغیر الله [ج:۱ ص:۲۸۰]

مطلب دا چې زما دا بلنه څه سرسري نظر باندې بنا نه ده بلکه د پوره بصيرت او عقل اوحکمت نتيجه ده ، په دې بلنې اوبصيرت کښې نبي کريم ﷺ خپل تابعداران اومنونکي هم شامل کړي دي، ابن عباس رضي الله عنه فرمائيلي دي چې دې نه صحابه کرام رضي الله عنهم مراد دي چې د پيغمبرئ د عملونو خزانې او د الله ﷻ سپاهيان دي ، عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائيلي دي چې د نبي کريم ﷺ ددې امت دټولو نه زيات غوره غړي دي ، د چا زړونه مبارك چې پاك اوعلم ئې ژور وو ،تکلف په کښې دسره نه وو، الله ﷻ هغوئ لره د خپل پيغمبر ﷺ دمجلس او خدمت دپاره ټاکلي وو ، تاسو هم دهغوئ خويونه ، عادات او طريقې ازده کړئ ځکه چې هم هغوئ په نيغه لار باندې دي .(۱)

اودامعنی هم کيدې شي چې : ﴿مَنِ اتَّبَعَنِي﴾ عام وي ، اومراد ترې د امت هر هغه غړي وي کوم چې تر قيامته پورې د رسول ﷺ بلنه امت ته رسوي . کلبي رحمه الله او ابن زيد رحمه الله فرمائيلي دي چې دې آيت نه داهم معلومه شو چې څوك د نبي کريم ﷺ تابعداري کوي ، په هغه لازم دي چې د نبي کريم ﷺ بلنه په خلقو کښې خوره وي او د قرآن عظيم الشان تعليم عام کوي .[مظهري].(۲)

﴿وَسُبْحٰنَ اللّٰهِ وَمَآ اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝ وَمَآ﴾[ او پاك دې الله اوزه د مشرکانو څني نه يم ].

وړاندې دا يادګيرنه تيره شويده چې په الله ﷻ باندې ايمان راوړونکو خلقو کښې هم اکثر داسې وي چې په شرك خفي يا جلي کښې اخته دي ، ځکه ئې د شرك نه دخپلې بيخي ويزارئ اعلان اوکړو. خلاصه ئې دا ده چې زما د بلنې ورکولو مطلب دا نه دې چې خلق خپل بندګان جوړ کړم بلکه زه پخپله هم د الله ﷻ بنده يم او دا خلق هم د هغه بندګئ ته رابلم ، البته د يو بلونکي په حيثيت ، په ما باندې ايمان راوړل فرض دي .

په دې باندې د مکې مکرمې مشرکانو به چې دا شبه کوله چې د الله ﷻ پيغمبر ﷺ يا رسول ﷺ او يا رهبر خود انسان په ځائې فرښته پکار ده ځکه ددې جواب په راتلونکې آيت مبارك کښې داسې فرمائي چې :

﴿وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ اِلَّا رِجَالًا نُّوْحِيْٓ اِلَيْهِمْ مِّنْ اَهْلِ الْقُرٰى﴾[ يعني د دوئ دا خيال بې بنياده او بې کاره دې چې دالله ﷻ رسول او پيغمبر دې فرښته وي ، انسان کيدې نشي ، بلکه معامله ددې الټه داسې ده چې انسانانو ته هميشه دپاره انسانان پيغمبران راغلي دي ، البته هغوئ ته دعامو انسانانو څخه يو خاص امتياز داسې حاصل وي چې هغوئ ته نيغ په نيغه دالله ﷻ وحي اوپيغام راځي او دا دچا د کوشش او عمل نتيجه نه وي ، الله ﷻ هم پخپله د خپلو بندګانو څخه چالره چې مناسب اوګڼري دې دپاره يې اوټاکي ، دا ټاکل دداسې خاص صفتونو د کمال په وجه باندې کولې شي چې په عامو انسانانو کښې نه وي

دې پسې آيت مبارك کښې هغه خلقو ته خبرداري کولو سره د الله ﷻ د طرفه دبلونکي د هداياتو پخلاف ورزئ کولو سره د الله ﷻ عذاب ته بلنه ورکوي ، فرمائي چې :

(۱) مشکوة المصابيح کتاب الإيمان ، باب الإعتصام بالکتاب والسنة [ج:۱ص:۳۲]
(۲) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:۵ص:۲۰۶]

﴿أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَيَنظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۗ وَلَدَارُ الْآخِرَةِ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ اتَّقَوْا ۗ أَفَلَا تَعْقِلُونَ﴾ [ نو آيا دا خلق په زمكه كښې نه ګرځي چې كتلې ئې وې چې كوم خلق د دوئ څخه وړاندې تير شوی وو د هغوئ څه انجام شوې وو. خو دا خلق د دنيا په ظاهری زينت او راحت كښې مست دی د دې وجې يې آخرت هير كړې دې ، حالانكه پرهيزګارانو لره آخرت د دنيا څخه زيات غوره دې ، نو ايا تاسونه پوهيږئ؟ چې د دنيا دڅو ورځو په مزو باندې د آخرت دائمی اومكمل نعمتونه او مزې قربانوی

## معارف او مسائل

**دغيب په خبرونو او د غيب په علم كښې فرق** :: ﴿ذَٰلِكَ مِنْ أَنبَاءِ الْغَيْبِ نُوحِيهِ إِلَيْكَ﴾ [ دا د غيبو خبرونه دی چې مونږ ئې تاته د وحی په ذريعه درليږو]. هم دا مضمون تقريبا هم په دې الفاظو كښې د سورة آل عمران په آيت نمبر ۴۳ د مريم په قيصه كښې راغلې دې ﴿ذَٰلِكَ مِنْ أَنبَاءِ الْغَيْبِ نُوحِيهِ إِلَيْكَ﴾ او د سورة هود په آيت نمبر ۴۸ كښې د نوح ﷺ باره كښې راغلې دې : ﴿تِلْكَ مِنْ أَنبَاءِ الْغَيْبِ نُوحِيهَا إِلَيْكَ﴾ د دې آيتونو نه يو خو د اخبره معلومه شوه چې الله ﷻ پيغمبرانو ﷺ لره دغيبو په ډيروخبرو باندې دوحی په ذريعه خبره وی . خصوصاً زمونږ نبی كريم ﷺ ته د غيبو د خبرونو يوه خاص حصه وركړې ده چې د ټولو پخوانو پيغمبرانو ﷺ نه زياته ده نو نبی كريم ﷺ خپل امت ته تر قيامته د ډيرو كيدونكو واقعاتو تفصيل يا اجمال بيان كړېدې . اود احاديثو په كتابونو كښې د كتاب الفتن ټول احاديث هم د دې په باره كښې منقول دې .

هركله چې عوام علم غيب صرف دې ته وائی چې څوك دغيب په خبرونو باندې خبر شی ، نو دغه عوام وائی چې هر كله نبی كريم ﷺ د نورو تيرو شوؤ پيغمبرانو ﷺ په نسبت دغيبو په خبرونو باندې زيات واقف دې . او هغوئ دا شان كامله درجه لری څكه داخيال كوی چې نبی كريم ﷺ عالم الغيب وو ، ليكن قرآن عظيم الشان په صفا الفاظو كښې دا اعلان كړې دې چې : ﴿قُل لَّا يَعْلَمُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ إِلَّا اللَّهُ﴾ چې سوا د الله ﷻ نه بل هيڅوك عالم الغيب نشته . علم غيب د الله ﷻ يوخاص صفت دې چې په دې كښې ورسره څوك رسول ﷺ فرښته يا بل مخلوق شريك ګڼړل الله ﷻ سره برابر او يوشان ګرځول دی ، څنګه چې عيسايان عيسی ﷺ لره د الله ﷻ څوئې او په خدايئ كښې ورسره شريك ګرځوی . د قرآن د دې مذكوره آيتونو څخه معامله واضحه شو چړ علم غيب صرف د الله ﷻ خاصه ده ، او عالم الغيب صرف الله ﷻ دې . البته د غيبو ډيرې خبرې الله ﷻ خپلو رسولانو ته د وحی په ذريعه ښائی . دې ته د قرآن كريم په اصطلاح كښې علم غيب نه وائی. او عوام چونكه په علم غيب نه پوهيږی نو د غيبو خبرو ته علم غيب وائی او كله چې د قرآنی اصطلاح مطابق د غير الله څخه د نفی ذكر كيږی نو هغه سره اختلاف كوی ، چې د دې حقيقت د دې څخه زيات نه دې چې :

اختلاف خلق از نام او فتاد　　چون بمعنی رفت آرام او فتاد(۱)

﴿وَمَا أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُّوحِي إِلَيْهِم مِّنْ أَهْلِ الْقُرَىٰ﴾ [ او مونږ چې ستانه وړاندې [مختلفو] خلقوته صرف سړی پيغمبران ليږلی وو چاته چې به مونږ وحی كوله]. د دې آيت مبارك كښې د

[۱]) ترجمه: د مخلوق اختلاف صرف د نوم په وجه شوې وو، كله چې ورته معنی معلومات اوشوه نو بيا په قلار شوه.(يعنی اختلاف ختم شو).

رجالا لفظ نه معلومه شوه چې پیغمبران ﷺ ټول نارینه وو زنانه پیغمبر هیچرې نشی کیدې.
ابن کثیر د جمهورو علماء کرامو هم دا قول نقل کړې دې چې الله ﷻ څوك زنانه پیغمبر نه ده جوړه کړې، ځینې علماء کرامو د یو زنانه د پیغمبر کیدو اقرار کړې دې او وائی چې ابراهیم ﷺ د بی بی ساره د موسی ﷺ د مور بی بی اود عیسی ﷺ د مور بی بی مریم باره کښې قرآن عظیم الشان چې فرمائیلی دی دهغې نه دا معلومیږی چې دې درې واړو بیبیانو سره د الله ﷻ په حکم فرښتو خبرې کړیدی او زیرې ئې ورکړې دی یا ورته پخپله د وحی په ذریعه څه خبره معلومه شوېده خو جمهورو علماء کرامو فرمائیلی دی چې ددغې آیتونو نه صرف ددې بیبیانو بزرګی او د درجې لوئیوالې خو ثابتیږی مګر هغوئ فرمائی چې صرف دغه الفاظ دهغوئ د پیغمبرئ ثابتولو دپاره کافی نه دی.(۱)
دې ایت مبارك کښې د اهل القری لفظ نه معلومیږی چې الله ﷻ خپل رسولان او پیغمبران یوازې د ښار او د لویو کلود اوسیدونکو ځینې لیږلې دی د بانډو اود ځنګل د اوسیدونکو څخه څوك پیغمبر شوې نه دې، ولې چې دا خلق سخت طبیعت وی او په عقل، پوهه کښې کامل نه وی. [ابن کثیر و قرطبی وغیره].(۲)

حَتّٰٓى　　اِذَا اسْتَيْـَٔسَ الرُّسُلُ　　وَظَنُّوْٓا　　اَنَّهُمْ

تردې پورې | چې کله نا امیده شو رسولان دخلقونه | او ګمان اوکړو دوئ | چې بیشکه دوئ ته

تردې چې کله پیغمبران نا امیده شول | او د دوئ ګمان اوشو | چې اوس

قَدْ كُذِبُوْا　　جَآءَهُمْ نَصْرُنَا ۙ　　فَنُجِّيَ　　مَنْ　　نَّشَآءُ ۭ

دروغ وئیلی شوی وؤ | نو ورغئ هغوئ ته امداد زمونږ | نو بیا بچ کړو مونږ | هغه څوك | چې غوښتل مونږ

دوئ دروغژن کړې شوی دی | نو هغوی ته زمونږ مدد راغلو | نو چاته چې مونږ غوښتل | نجات مو ورکړو

وَلَا يُرَدُّ　　بَاْسُنَا　　عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِيْنَ ۝ لَقَدْ كَانَ　　فِيْ قَصَصِهِمْ

اونه شی واپس کولې څوك | عذاب زمونږ | د قوم مجرم نه | بیشکه دې | په قیصو ددوئ کښې

اوزمونږ عذاب د مجرمانو نه نهٔ واپس کیږی | ........بیشکه دهغوئ په قصو کښې د عقلمندو خلقو

عِبْرَةٌ　　لِّاُولِي الْاَلْبَابِ ۭ　　مَا كَانَ حَدِيْثًا　　يُّفْتَرٰى　　وَلٰكِنْ　　تَصْدِيْقَ

عبرت | دپاره دخاوندانو د عقل | نه دی | دا خبرې | دخان نه جوړې کړې شوې | خولیکن | تصدیق دې

دپاره لوئې عبرت دې | ..........دا [قرآن] د دروغو جوړ کلام نهٔ دې | بلکه دا د هغه [کتاب] تصدیق کوی

الَّذِيْ　　بَيْنَ يَدَيْهِ　　وَتَفْصِيْلَ　　كُلِّ شَيْءٍ　　وَّهُدًى　　وَّرَحْمَةً

دهغه څهٔ | چې مخکښې راغلی دی ددهٔ نه | او تفصیل دې | د هر څیز | او هدایت دې | او رحمت دې

کوم چې د دې نه وړاندې وو | او د هر [دینی] څیز تفصیل کوی | ........او مومنانو د پاره

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ٤ ص:٤٢٢، ٤٢٣]
(۲) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ٤ ص:٤٢٣] و تفسیر القرطبی [ج:٩ ص:٢٧٤].

| |
|---|
| لِّقَوۡمٍ يُّؤۡمِنُوۡنَ ۝ |
| د پاره د هغه قوم \| چې ایمان راوړي \| |
| هدایت او رحمت دی\| |

## آسان ترجمه قرآن

(مخکښې چه کوم انبیاء تیر شوي وو دهغوی سره هم دغسې شوي وو چه دهغوی په قومونو باندې د عذاب په راتلو کښې څه وخت تأخیر وشو) تر دې چه پیغمبران د خلقو نه ناامیده شو، او کافرانو داګمان وکړو چه دوی ته دروغو ویرې ورکړې شوي وي، نو دغه پیغمبرانو ته به څمونږ مدد راغې (یعنې په کافرانو به عذاب راغې) او چا لره به چه څمونږ خوښه وه هغوی بچ کړې شو، او څوک چه مجرمان دي، دهغوی نه څمونږ عذاب نه شي واپس کولې یقیناً دې واقعاتو کښې د عقل او فهم والو دپاره د عبرت یو لوئ سامان دې. دا یو داسې خبره نه ده چه د ځان نه جوړه کړې شوي وي، بلکه دې نه مخکښې چه کوم کتابونه راغلي دي د هغې تصدیق دې او د هرې خبرې وضاحت، او چا چه ایمان راوړې دې د هغوی دپاره هدایت او رحمت دې.

## خلاصه تفسیر:

﴿حَتّٰۤی اِذَا اسۡتَیۡـَٔسَ الرُّسُلُ وَظَنُّوۡۤا اَنَّهُمۡ قَدۡ کُذِبُوۡا﴾ [که تاسو یه کفاروباندی دتاخیردعذاب په وجه داشك کوئ چه عذاب نه راځی نوداستاسوغلطي ده ،په دی وجه چه دتیروامتونوکفاروته هم لوی لوی مهلتونه ورکړی شوی وو] تردی پوری چه[دمهلت دمودی داوږدوالی په وجه]پیغمبریه[ددی خبری نه]مایوسه شو[چه مونږدالله تعالی دطرفه په کفارودعذاب دراتلودوعدی چه کوم وخت پخپل قیاس اواندازی چه مقرر کړی وو چه په دغه وخت به په کفاروعذاب راشي څمونږغلبه اوحقوالی به واضح شي] او ددوی [پیغمبرانو ﷺ] به ګمان غالب شوچه [دالله دوعدی په وخت مقررولوکښې ]زمونږپوهی غلطی وکړه [چه بغیردنص نه فقط په قرینوسره یادالله تعالی دمدددزرراتلویه خواهش سره مونږدا وخت مقررکړوحال دادی چه وعده مطلقه ده، ﴿جَآءَهُمۡ نَصۡرُنَا ۙ فَنُجِّیَ مَنۡ نَّشَآءُ ؕ﴾ ددا سې مایوسئ په حالت کښې]دوی ته څمونږمددورسیدو[هغه داسې چه په کفاروعذاب راغی]بیا[ددغه عذاب نه ] مونږچالره چه غوښتل هغوی موبچ کړل [مرادتري مومنان دي]او[اوپه دي عذاب سره کفارهلاك شوځکه چه] ﴿وَلَا یُرَدُّ بَاۡسُنَا عَنِ الۡقَوۡمِ الۡمُجۡرِمِیۡنَ ۝﴾ څمونږعذاب دمجرمانونه نه په څنګ کیږي [بلکه خامخاپري واقع کیږي،اګرچه وروسته وي پس دادمکی کفاردي په دي نه دوکه کیږي ].

﴿لَقَدۡ کَانَ فِیۡ قَصَصِهِمۡ عِبۡرَۃٌ لِّاُولِی الۡاَلۡبَابِ ؕ﴾ په دي[دانبیاواوتیروامتونوپه [قصوکی دپوهه خلقولپاره [لوی]عبرت دی[کوم چه ددی نه عبرت حاصلوي چه دحکم منلودانجام دی اودنه منلو داانجام دی ] ﴿مَا کَانَ حَدِیۡثًا یُّفۡتَرٰی﴾ داقرآن[چه داقصې پکښې دي]څه دځان نه جوړه شوی خبره خونده [چه عبرت تري نه حاصلیږي] ﴿وَلٰکِنۡ تَصۡدِیۡقَ الَّذِیۡ بَیۡنَ یَدَیۡهِ وَتَفۡصِیۡلَ کُلِّ شَیۡءٍ﴾ بلکه ددی نه مخکی چه کوم آسمانی کتابونه [نازل ]شویدي دادهغی تصدیق کونکی دی اودهری [ضروري] خبری تفصیل کونکی دی ﴿وَّهُدًی وَّرَحۡمَۃً لِّقَوۡمٍ یُّؤۡمِنُوۡنَ ۝﴾ اودایماندارولپاره دهدایت اودرحمت ذریعه دی[پس په داسی کتاب کښې چه دعبرت مضامین پکښې وي عبرت تري حاصلول پکاردی]

## معارف او مسائل

په تیرو شوؤ آیتونو کښې دا بیان راغلې وو چې پیغمبران ﷺ حق ته دبلنې ورکولو دپاره لیږلي شوي وو ، او ددوئ باره کښې دځه شبهاتو جواب ورکړې شوې وو ، اوس ددې آیتونو ځينې په رومبی آیت مبارك كښې خبرداري وركول دي چې دا خلق د هغې خلقو انجام خرابیدو ته ولې نه ګوري چا چې د پیغمبرانو ﷺ مخالفت کړې وو ، که دوئ لږ شان غور كولې دخپلو خواؤشا ښارونو او ځایونو په تاریخ باندې ئې نظر اچولې نو ورته به معلومه شوې وه چې د پیغمبرانو ﷺ د مخالفینو خراب انجام په دې دنيا کښې هم څومره سخت وو ، د لوطیانو ودانئ الټه کړې شوې . عادیان او ثمودیان په قسماقسم عذابونو سره ختم او ورك كړې شو. او د آخرت عذاب دې نه زيات سخت دې .

په دریم آیت مبارك کښې دا هدایت شو ېدې چې ددنیا تکلیف او راحت خو په هر حال څو ورځې دې، اصل فکرخو د آخرت کول پکار دي چې هلته ایساریدل همیشه دپاره دی او تکلیف یا آرام ئې هم همیشه همیشه دې . او فرمائیلې شوی دی چې د آخرت درست کیدل په تقوی باندې اړه لري ، دتقوی مطلب دادې چې د ټولو شرعی حکمونو پابندی اوکړې شي .

په دې آیت مبارك كښې موجوده خلق په دې خبرول وو چې د پخوانو پیغمبرانو ﷺ ا وپخوانو امتونو حالاتو ته دې اوګوري ، ځکه چې راتلونکې آیت مبارك كښې د دوئ یوه شبه لرې کړې شوه ، شبه ئې داسې کوله چې هر کله رسول کریم ﷺ د الله تعالی د طرفه د عذاب راتلو نه مونږ د ډيرې مودې راهسې بیا بیا ویروي او تر اوسه پورې څه عذاب رانغلو ، په دې سره دغه خلق زړور کیدل او وئیل به ئې چې که څه عذاب راتلې نو تر اوسه پورې به راغلې وو ، الله ﷻ پخپل رحمت او حکمت بالغه ډیر ځل مجرمانو ته مهلت ورکوی او دغه مهلت کله کله ډیر وخت واخلی چې په هغې سره خراب خلق نور هم په ورانئ زړور کیږی . پیغمبران ﷺ ورسره پریشانه کیږی ، فرمائي چې :

(حَتّٰۤى اِذَا اسْتَيْـَٔسَ الرُّسُلُ وَظَنُّوْۤا اَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُوْا جَآءَهُمْ نَصْرُنَا ۙ فَنُجِّیَ مَنْ نَّشَآءُ ؕ وَلَا یُرَدُّ بَاْسُنَا عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِیْنَ۝) [يعنى د تیروامتونو په دې وجه یې اوفرمائیل چې نافرمانو خلقو ته اوږده اوږده مهلتونه ورکړې شو] تردې چې ] [د ډيرې مودې په تیریدو پرې دعذاب د نه راتلو نه] پیغمبران ﷺ [ په دې خیال کولو سره ] نا امیده شو [ چې الله ﷻ د عذاب راوستو کومه اجمالي وعده ړې وه هغې دپاره مونږ پخپلې اندازې او قیاس سره پخپلو ذهنونو کښې وخت مقرر وو دغه وخت به په کافرانو عذاب رانشي او د حق غالب کیدل به په ښکاره نشی او ددغې پیغمبرانو ﷺ ] ګمان غالب شو چې [ د الله ﷻ د وعدې دپاره چې مونږ پخپله اندازه وخت مقرر کړې وو په هغې کښې ] زمونږ پوهې غلطی کړیده [ ولې چې الله ﷻ خو ددې دپاره مقرر وخت نه وو خودلې مونږ په مخصوصو قرینو او نخښو سره هغې دپاره یو موده مقرر کړې وه ، ددغې ناامیدئی په حالت کښې ] هغوئ ته زمونږ مدد راؤرسیدو [یعنی د وعدې مطابق په کافرانو باندې عذاب راغلو] بیا ددغې عذاب نه مونږ چې چالره او غوښتل هغه اوساتلې شو [مراد ددې نه هغه خلق دی چې پیغمبران ﷺ منی او مؤمنان دی او کافران ځکه هلاك شو چې ] زمونږ عذاب د مجرمانو خلقو نه نه لرې کیږی [بلکه خامخا پرې راځی ځکه دمکې کفارو ته پکار دی چې په عذاب کښې د مهلت راتلو په وجه په دهوکه کښې نه پریووځی].

په دې آيت مبارك كښې (كُذِبُوْا) د مشهور قرات مطابق لوستلې شوې دې ، او ددې چې كوم تفسير مونږ غوره كړې دې هغه ښه محفوظ او بې غباره دې ، چې د لفظ (كُذِبُوْا) حاصل دادې چې خپلې اندازې او خيال كښې غلطيدل وي چې يو قسم اجتهادي غلطي ده چې پيغمبرانو ﷺ نه هم اجتهادي غلطي كيدې شي ، البته د پيغمبرانو ﷺ او د نورو مجتهدينو تر مينځه فرق دادې چې د پيغمبرانو ﷺ اجتهادي غلطي په خپل ځائې قائمه نشي پريخودې بلكه د وحي په ذريعه د هغې درستي كولې شي ليكن دنورو مجتهدينو دا مقام نه دې ، درسول كريم ﷺ د حديبيه د صلح واقعه ددې مضمون دپاره كافي ګواه داسې ده چې د قرآن عظيم الشان د بيان تر مخه ددې واقعې بنياد د رسول كريم ﷺ هغه خوب ليدل وو په كوم كښې ئې چې خپل ځان مبارك سره د صحابه كرامو ﷺ د بيت الله شريف په طواف كولو ليدلې وو ولې چې د پيغمبرانو ﷺ خوب ليدل هم په حكم د وحي كښې وي . ځكه ددې واقعې كيدل يقيني شو خو په كښې ورته ددې خاص وخت او موده نه وه خودلې شوې ، رسول كريم ﷺ په اندازه سره داخيال اوفرمائيلو چې دغسې به هم په دې موجوده كال كښې كيږي ، ځكه صحابه كرامو ﷺ ته ددې اعلان اوشو او هغوئ ئې په ګنړ شمير كښې ځان سره مكې مكرمې ته د عمرې ادا كولو دپاره روان كړل ، خو د مكې مكرمې د قريشو د مزاحمت په وجه دغه ځل طواف او عمره ئې او نه كړې شوه ، بلكه په مكمل طور سره دوه كاله پس په اتمه هجرئې كښې دا واقعه هغه وخت ښكاره شوه چې كله مكه مكرمه فتح شوه ، بنا په دې باندې د رسول كريم ﷺ خوب ليدل حق او يقيني وو خو دې دپاره هغوئ ﷺ نه په علاماتو او اندازې سره وخت ټاكلو كښې غلطي اوشوه ، مګر هغه غلطي او ازاله په دغه وخت كښې شوه .

داشان په مذكوره آيت كښې د (قَدْكُذِبُوْا) مطلب هم دادې چې چې هر كله په كافرانو باندې هغه وخت عذاب رانغلو چې پيغمبرانو ﷺ په اندازه سره په خپل ذهن كښې مقرر وو نو د هغوئ ﷺ دا ګمان اوشو چې مونږ په وخت مقررولو كښې غلطي كړې ده. دا تفسير د عبدالله بن عباس ﷺ نه منقول دې او علامه طيبي ﷺ فرمائيلې دی چې دا روايت صحيح ځكه دې چې بخاري شريف كښې راغلې دې [قرطبى].[1]

او ځينې قرآتونو كښې دا لفظ د ذال په شد سره (قَدْكُذِّبُوْا) راغلې دې ، ددې مصدر تكذيب دې په دې صورت كښې به ئې معنى داسې كيږي چې كله د پيغمبرانو ﷺ په اندازې سره په مقرر كړې وخت باندې عذاب رانغلو نو دوئ ﷺ سره داويره شوه چې هسې نه مسلمانانو ته هم بې اعتباره شو او هغوئ مو په دروغه او نه بلې ، په داسې حالت كښې الله ﷻ خپله وعده پوره كول خلقو ته اوخودل په منكرانو عذاب راغلو او مؤمنان ترې خلاص شو او په دې شان د هغوئ غلبه ښكاره شوه .

(لَقَدْكَانَ فِىْ قَصَصِهِمْ عِبْرَةٌ لِّاُولِى الْاَلْبَابِ)[ بيشكه دهغوئ په قصو كښې د عقلمندو خلقو دپاره لوئې عبرت دې] قرآن عظيم الشان كښې بيان شوې ټولې قيصې هم دې نه مراد كيدې شي چې ديوسف ﷺ دا قيصه په كښې هم شامله ده ، ځكه چې په دې قيصه كښې داخبره په پوره شان روښانه شوه او مخې ته راغله چې الله ﷻ د خپلو فرمانبردارو بندګانو په كوم كوم شان سره

---

[1]) تفسير المظهرى تحت هذه الآية [ج:۵ص:۲۰۸].

مدد او مضبوطيا کوی ،لکه يوسف ﷺ ئې د کوهی نه رابهر کړو او د بادشاهئ تخت باندې ئې کينولو او د بدنامئ نه يې راوويستلو او د نيك نامی انتها ته يې اورسولو او د چل کولو او تيرويستلو انجام ذليل کيدل او شرميدل وی .

(مَاكَانَ حَدِيثًا يُفْتَرَىٰ وَلَٰكِن تَصْدِيقَ الَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ)[ دا [قرآن] د دروغو جوړ کلام نهٔ دې [بلکه دا د هغه[کتاب]تصديق کوی کوم چې د دې نه وړاندې وو] څکه چې په تورات او انجيل کښې هم د يوسف ﷺ داقيصه بيان شوې ده . او وهب بن منبه فرمائی چې څومره آسمانی کتابونه او صحيفې نازلې شوې دی هغه ټولې د يوسف ﷺ د قيصې نه خالی نه دی [مظهری].(١)

(وَتَفْصِيلَ كُلِّ شَيْءٍ وَهُدًى وَرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ)[ او د هر [دينی ] څيز تفصيل کوی | ........او مومنانو د پاره هدايت او رحمت دې] مطلب دادې چې په قرآن عظيم الشان کښې دهر هغه څيز تفصيل موجود دې کوم لره چې په دين کښې انسان دپاره ضروری وی ، د عبادتونو ، معاملاتو ، اخلاقو په شريکه د ژوند تيرولو ، حکومت ، سياسيت وغيره د انسانی ژوند د هر طرف خو هغه ځان ځانی وی يا په شريکه وی ، ددې ټولو باره کښې حکمونه او هدايتونه په قرآن عظيم الشان کښې موجود دی ، او دائې هم اوفرمائيل چې داقرآن پاك هدايت او رحمت دې ايمان راوړنکو دپاره دلته دايمان راوړنکو تخصيص څکه اوکړې شو چې ددې فائده يوازې د ايمان خاوندانو ته رسيدلې شی ، کافرانو دپاره هم اګر چې دا قرآن عظيم الشان هدايت او رحمت دې خو هغوئ دخپلو بدو عملونو او نافرمانو په وجه دا هدايت او رحمت ځان دپاره وبال او زحمت جوړ کړې دې .

شيخ ابو منصوری رحمه الله فرمائيلی دی چې ټول سورة يوسف اوپه دې بيان شوې قيصې د يوسف ﷺ سره رسول کريم ﷺ ته تسلی ورکول داسې مقصود دی چې رسول کريم ﷺ ته څنګه د خپل قوم دلاسه نقصانونه اوتکاليف رسيږی دغه شان پخوانو پغمبرانو ﷺ ته به هم رسيدل ، د هغې انجام داشو چې الله ﷻ خپل پيغمبران ﷺ غالب کړل او ستاسو معامله هم په دغه شان سر ته رسيدونکې ده.

...

١) تفسير المظهری تحت هذه الآية [ج:٥ص:٥٠٩].

| ایاتونه | | | سورة الرعد مدنية وهي ثلاث واربعون اية وست ركوعات | | | ركوعات |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | | |
| ۴۳ | | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | | | ۶ |

الٓمّٓرٰ ۣ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ ۭ وَالَّذِيْٓ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ

ا ل م ر | دا | آیتونه | د کتاب دی | او هغه څه | چې نازل کړې شوی دی | تاته | د طرفه د رب ستا نه

الف لام میم را | دا [د قرآن] دکتاب آیتونه دی | اوستا د رب د طرفه څه چې په تانازل شوی دی

الْحَقُّ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُوْنَ ① اَللّٰهُ الَّذِيْ رَفَعَ السَّمٰوٰتِ

حق دی | خولیکن | زیات خلق یې | نه منی | الله هغه ذات دې | چې پورته ئې کړل | آسمانونه

هغه بیخي رښتیا دی | خو زیات خلق ایمان نهٔ راوړی | الله ﷻ هغه ذات دې | چې آسمانونه

بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ وَسَخَّرَ

بغیر د ستنو نه | چې تاسو وینئ هغې لره | بیا | ئي قرار اونیوو په تخت باندې | او پابند ئې کړل

ئې بغیر دستنو نه پورته کړی دی | تاسو ئې وینئ | بیا په عرش باندې په خپل شان لائق سره برابرشو

الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ۭ كُلٌّ يَّجْرِيْ لِاَجَلٍ مُّسَمًّى ۭ يُدَبِّرُ الْاَمْرَ

نمر | او سپوږمئ | هر یو | روان دې | دنیتې مقررې پورې | تدبیر کوی [الله] | د هر کار

اونمر او سپوږمئ ئې تابع کړې دی | اوهر یو تر مقرر وخت پورې روان دې | اهم هغهٔ د هرې خبرې انتظام کوی

يُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ بِلِقَاۗءِ رَبِّكُمْ تُوْقِنُوْنَ ② وَهُوَ

په تفصیل سره بیانوی | نښې | د پاره د دې چې تاسو | په ملاقات | درب خپل | یقین اوکړئ | او هغهٔ

هغهٔ خپلې نښې په تفصیل سره بیانوی | دې د پاره چې خپل رب ته د حاضریدو یقین اوکړئ | او الله ﷻ

الَّذِيْ مَدَّ الْاَرْضَ وَجَعَلَ فِيْهَا رَوَاسِيَ وَاَنْهٰرًا ۭ

هغه ذات دې | چې خوره ئې کړه | زمکه | اوپیدا ئې کړل | په دې کښې | غرونه | اونهرونه

هغه ذات دې | چې زمکه ئې خوره کړې ده | اوپه دې کښې ئې غرونه اودریابونه پیدا کړې دی

وَمِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ جَعَلَ فِيْهَا زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ يُغْشِي الَّيْلَ النَّهَارَ ۭ

او د هر قسم میوو نه | هغهٔ پیدا کړې | په دې کښې | جوړې | دوه | هغهٔ پټوی | شپه | په ورځ باندې

او په دې کښې ئې هر قسم میوې جوړې جوړې پیدا کړې دی | او هغهٔ شپه د ورځې په رڼا کښې پټوی

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ③ وَفِي الْاَرْضِ

بې شکه | په دې ټولو څیزونو کښې | خامخانښې دی | دپاره دهغه قوم | چې فکر کوی | اوپه زمکه کښې

په دې خبرو کښې د فکر کوونکو خلقو دپاره نښې دی | اوپه زمکه کښې

قِطَعٌ مُّتَجٰوِرٰتٌ وَّجَنّٰتٌ مِّنْ اَعْنَابٍ وَّزَرْعٌ وَّنَخِيْلٌ

حصې دی | چه جوخنې دی دیو بل سره | اوباغونه | د انګورو | او فصلونه | او ونې د کهجورو

مختلفې ټکرې دی | چې یوبل سره ملاو دی | اود انګورو باغونه دی | او پټې دی او کهجورې دی

صِنْوَانٌ　　وَّغَيْرُ صِنْوَانٍ　　يُّسْقٰى　　بِمَآءٍ وَّاحِدٍ

چې څينې ديو بيخه ګنړې راختلي دي| او څينې خان خان ته بيخ لري| تول خړوبيږي| په يو قسم اوبو سره

دبعضو ډير ښاخونه دي |او بعضې د يوې تنې دي | ټول په يو قسم اوبو باندې خړوبيږي

وَنُفَضِّلُ　　بَعْضَهَا　　عَلٰى بَعْضٍ　　فِي الْاُكُلِ ؕ　　اِنَّ　　فِيْ ذٰلِكَ

اوغوره كوو مونږ|څينې د هغې نه| په څينو باندې| په خوند كښې | بې شكه | په دې ټولوڅيزونو كښې

خو بيا هم مونږ د يو بل نه په خوراک كښې غوره پيدا كړې دي | ........بيشكه په دې ټولو

لَاٰيٰتٍ　　لِّقَوْمٍ　　يَّعْقِلُوْنَ۝

خامخا نښې دي|دپاره دهغه قوم| چې دعقل نه كار اخلي

خبرو كښې د هغه خلقو دپاره نښې دي چې د عقل نه كار اخلي

### آسان ترجمه قرآن

الٓمّٓرٰ. دا (دالله) د كتاب آيتونه دي، او (اې پيغمبره !) څه چه ستا د پروردګار د طرف نه نازل شوی دی، رښتيا دي ليكن اكثر خلق ايمان نه راوړي .الله هغه ذات دې چه هغه د داسې ستنو نه بغير آسمان اوچت كړې دې چه تاسو ته په نظر راشي، بيا هغه په عرش باندې استواء وكړه او نمر او سپوږمۍ ئې كار كښې ولګول هر يو څيز يوې معينې نيټې پورې روان دې . هغه د ټولو كارونو تدبير كوي.هغه دا نښې واضحې واضحې بيانوي دې دپاره چه تاسو په دې يقين وكړئ چه (يوه ورځ) تاسو لره د خپل پروردګار سره ملاويدل دي او هم هغه ذات دې چه زمكه ئې خوره كړه ، او دې كښې ئې غرونه او دريابونه جوړ كړل، او دې كښې ئې د هر قسم ميوو دوه دوه جوړې پيدا كړې هغه ورځې باندې د شپې څادر اچوي. حقيقت دا دې چه دې ټولو خبرو كښې د هغه خلقو دپاره نښې دي چه غور او فكر كوي – او زمكه كښې مختلفې ټوټې دي چه نژدې نژدې دي او د انګورو باغونه او د كجورو ونې دي ، چه هغې كښې څه د برغې تنې والا دي او څه يوويستوي تنې والا ټولې ديو قسم اوبو نه اوبه كيږي ، او مونږ څنو ته په څنو باندې په خوند كښې غوره والې وركوو يقيناً دې ټولو خبرو كښې د هغه خلقو دپاره نښې دي چه د عقل نه كار اخلي.

### خلاصه تفسير:

﴿الٓمّٓرٰ﴾ ددې معنى خو الله تعالى ته معلومه ده ] ﴿تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ ؕ﴾دا [څه چه ته اوروی] آياتونه دی دلوی كتاب [يعنى دا قرآن] ﴿وَالَّذِيْٓ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ الْحَقُّ﴾ اوڅه چه په تاستا درب له طرفه نازلولی شی دابلكل حق دي او[مقتضى ددې داوه چه ټولوايمان راوړى وى ] ﴿وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُوْنَ۝﴾ليكن ډيرخلق ايمان نه راوړي

[ربط: پورته دقرآن دحقيقت مضمون وو اوس دتوحيدمضمون دى كوم چه دقرآن د لويو مقصدونونه دى﴿اَللّٰهُ الَّذِيْ رَفَعَ السَّمٰوٰتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا﴾ الله تعالى داسى [قادر] ذات دى چه ده آسمانونه بغيرستنوپورته ودرولي دى چنانچه تاسودي [آسمانونولره] [داسي] وينئ﴿ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ﴾ بيا په عرش [كوم چه مشابه ده دتخت دحكومت سره داسي]قائم[اوجلوه فرما] شو [كوم چه دده دشان سره لائق وى ] ﴿وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ؕ كُلٌّ يَّجْرِيْ لِاَجَلٍ مُّسَمًّى ؕ﴾ اولمراوسپوږمۍ

ئی په کار ولګول [په دي دوارو کښې] هریو [په خپل مدار کښې] په یووخت مقرر کښې چلیږی چنانچه لمرخپل مدارپه کال کښې قطع کوی اوسپوږمئ ئی په میاشت کښې ] ﴿ يُدَبِّرُ الْأَمْرَ ﴾ هغه [الله تعالی] دهریو کار [کوم چه واقع کیږی په عالم کښې] تدبیر کوی ﴿ يُفَصِّلُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ بِلِقَاءِ رَبِّكُمْ تُوقِنُونَ ﴾ [او] دلیلونه [تکوینی اوتشریعی] صاف صاف بیانوی چه تاسودخپل رب خواته دتلو [قیامت کښې] یقین وکړئ [ددی امکان خوداسی دی چه هرکله الله تعالی په پیداکولو دداسی عظیموشیانو قادر دي نودمړوپه ژوندئ کولوبه ولي قادرنه وی اوددی دواقع کیدو یقین داسي چه رشتونئ خبرورکونکی دیوممکن کاردواقع کیدوخبرورکړي دي ، نو خامخا دا رشتیا اوصحیح دي ] ﴿ وَهُوَ الَّذِي مَدَّ الْأَرْضَ وَجَعَلَ فِيهَا رَوَاسِيَ وَأَنْهَارًا ﴾ اوهغه داسی دي چه هغه زمکه خوره کړه اوپه دي زمکه کښي ئی غرونه اونهرونه پیداکړل ﴿ وَمِنْ كُلِّ الثَّمَرَاتِ جَعَلَ فِيهَا زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ ﴾ اوپه دي کښئ ئی دهرقسم میوونه دوه دوه قسمه پیداکړل [مثلا تروي اوخوږي یاوړي اولوئي ځني دیورنګ اوځني دبل رنګ اود] ﴿ يُغْشِي اللَّيْلَ النَّهَارَ ﴾ شپي [په تیري] سره [د] ورځي [رڼرا] پټوی [یعنی دشپي په تیري سره د ورځي رڼرا پټه اولري شی ] ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴾ په دي کارونو [ذکر شوو] کښی دسوچ کونکو [دپوهي] لپاره [په توحید ] دلائل [موجود] دی [چه تقریرئی ددویمي پاري په څلورمه رکوع کښي تیرشوي دي] ﴿ وَفِي الْأَرْضِ قِطَعٌ مُتَجَاوِرَاتٌ ﴾ او [دغه شان نورهم دلیلونه دی د توحید چنانچه] په زمکه کښي یوبل سره لګیدلي اوبیا] مختلفي ټکړی دی [سره دپیوستوالی ئي اثرونه مختلف کیدل عجیبه خبره ده] ﴿ وَجَنَّاتٌ مِنْ أَعْنَابٍ وَزَرْعٌ وَنَخِيلٌ صِنْوَانٌ وَغَيْرُ صِنْوَانٍ ﴾ اودانګوروباغونه دی او [مختلف] فصلونه دی اودکجورو [وني] دی چه بعضي خوپکښي داسي دی چه لاندي یوه تنه اوبره بیا دوه تني شوي دی اودبعضودوه تني نه وی [بلکه دزیلونه تربناخونو پوري یوه تنه تلي وی ﴿ يُسْقَىٰ بِمَاءٍ وَاحِدٍ ﴾ او] تولوته یوقسم اوبه ورکولي شی ﴿ وَنُفَضِّلُ بَعْضَهَا عَلَىٰ بَعْضٍ فِي الْأُكُلِ ﴾ او [سره ددي بیاهم] یوي لره دبلي په میوي باندي اوچتوالئ ورکړي دي ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴾ په دي [مذکوره امورو] کارونوکښي [هم] دپوهه لرونکو [دپوهي] لپاره [دتوحید] دلائل [موجود] دی.

## معارف اومسائل

دا سورة مکی دې ،ټول آیتونه ئې درې څلوېښت دی ، په دې سورة کښې د حق کیدو بیان سره د توحید او رسالت بیان راغلې دې. اودشبهاتو جوابونه په کښې شوی دی.

﴿ الٓمٓرٰ ﴾ دا حروف مقطعه دی ، چې په معنی باندې ئې یوازې الله ﷻ پوهیږی ، امت ته ددې معنی نه دی خودلې شوی ، عام امت لره ددې تحقیق پسې لګیدل مناسب نه دی.

**د رسول کریم ﷺ حدیث هم د قرآن عظیم الشان پشان د الله ﷻ وحی ده ::** رومبی آیت کښې دا بیان دې چې قرآن عظیم الشان د الله ﷻ کلام او حق دې ، دلته کتاب نه مراد قرآن عظیم الشان دې او د ﴿ وَالَّذِي أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ الْحَقُّ ﴾ نه هم مراد ، قرآن عظیم الشان کیدې شی ، لیکن هر کله چې دلته واؤ حرف عطف راغلې دې نو ددې غوښتنه په ظاهره داده چې کتاب او ﴿ الَّذِي أُنْزِلَ إِلَيْكَ ﴾ دوه بیل بیل څیزونه دی ، په دې صورت کښې به د کتاب نه مراد قرآن عظیم الشان وی او د ﴿ الَّذِي أُنْزِلَ إِلَيْكَ ﴾ نه به مراد هغه وحی وی چې د قرآن عظیم الشان نه علاوه په نبی کریم ﷺ باندې نازله شوې وی ، ولې چې یوازې قرآن عظیم الشان وحی نه ده بلکه یو بل قسم

وحي هم نبی کریم ﷺ ته ليږلې شويدی. لکه قرآن عظيم الشان پخپله فرمائی چې :﴿وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ﴾ نبی کریم ﷺ د خپله ځان نه هيڅ نه فرمائی بلکه يو وحی وی چې د الله ﷻ دطرفنه ورته راليږلې شی.

دې نه ثابته شوه چې د نبی کریم ﷺ نور ورکړې حکمونه هم د الله ﷻ د طرفنه راليږلې شوی دی.فرق صرف دومره قدرې دې چې د قرآن عظيم الشان تلاوت کيږی. اوددې حديث تلاوت نه کيږی. ددې فرق وجه داده چې د قرآن عظيم الشان الفاظ اومعنې دواړه د الله ﷻ دطرفنه دی او د قرآن پاك ځنځه علاوه په حديث کښې چې کوم احکام رسول کریم ﷺ ورکوی دهغو معناګانې هم اګر چې د الله تعالی دطرفنه خو الفاظ ئې د خدائ پاك د طرفنه نازلې کړې شوی نه دی.ځکه ئې په مونځ کښې تلاوت نشی کيدې.معنی دآيت مبارك دا شوه چې دا قرآن عظيم الشان او په نبی کریم ﷺ باندې نور نازل شوی حکمونه ټول حق دی چې د څه شك شبهې نه بالکل پاك دی ، خو اکثر خلق د غور وفکر نه کولو په وجه په دې باندې ايمان نه راوړی.

دويم آيت مبارك کښې د الله ﷻ د وجود اودهغه دتوحيد دليلونه په دې شان بيان شوی دی چې که د مخلوقاتو او مصنوعاتو ته په لږ شان غور سره اوکتلې شی نو دا يقين به ئې راشی چې ددې جوړونکې داسې يوه هستی موجوده ده چې قادر مطلق ده او ټول مخلوقات او کائنات دهغه په قبضه کښې دی ، فرمائی چې :

﴿اللَّهُ الَّذِي رَفَعَ السَّمَاوَاتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا﴾[ الله ﷻ هغه ذات دې چې آسمانونه ئې بغير د ستنو نه پورته کړی دی تاسو ئې وينئ].

**آيا د آسمان ذات په سترګو سره ليدلې کتلې شی ؟** : عموما دې شين رنګی څيز ته خلق د آسمان ذات وائی ،خو فلسفيان وائی چې دا رنګ د رڼا او تيرې د ګډون دې ، ولې چې لاندې د ستورو رڼا ده. او پورته ترې تياره ده نو د مينځ دارنګ ځکه شين ښکاری چې ځنګه چې په ژور سپينو اوبو چې رڼا پريوځی نو هغه شين ښکاری.

د قرآن عظيم الشان په څو آيتونو کښې د آسمان دليدلو بيان راغلې دې ، لکه يو دلته په ﴿تَرَوْنَهَا﴾ کښې او بل ﴿إِلَى السَّمَاءِ كَيْفَ رُفِعَتْ﴾ کښې ، خو د فلسفيانو دا تحقيق اول خو دې سره بې سمونه ځکه نه دې چې د آسمان رنګ هم شين کيدې شی يا بل رنګ ئې وی چې د مينځو ميانه رڼا اوتياره دګډون په وجې سره ئې رنګ شين ښکاری. دې نه هم انکار په دليل سره نشی کيدې چې ددې فضا په رنګ کښې د آسمان رنګ هم شامل دی. او داسې هم کيدې شی چې چرته په قرآن عظيم الشان کښې د آسمان د ليدلو بيان دې هغه حکمی او مجازی داسې دې چې د آسمان وجود په داسې يقينی دليلونو سره ثابت دې ګويا کښې په سترګو هم ليدلې شی .[روح المعانی](۱)

﴿ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ﴾[ بيا په عرش باندې داسې برابر شو ځنګه چې د هغوئ دشان سره لائق دی] دلته داستواء نه مراد کومه چې د الله ﷻ دشان سره جوړيدې شی هغه مراد ده.

﴿وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِي لِأَجَلٍ مُّسَمًّى﴾[ اونمر او سپوږمئ ئې تابع کړی دی اوهر يو تر مقرر وخت پورې روان دې ]

---

(۱) روح المعانی تحت هذه الآية [ج:۹ص:۱۷۸، ۱۷۹]

دمسخر کولو نه مراد دادې چې الله ﷻ په کومو کارونو باندې لګولی دی په مخه هم په هغې کښې لګیا دی. بې شمیره کلونه تیر شو ، ددې په رفتار کښې څه کمې زیاتې رانغلو ، چرې سترې شوی نه دی . اونه د خپل ټاکلی شوی کار نه سوا بل کار کښې اخته شوی دی . او ټاکلې مودې ته دتلو دا معنی هم کیدې شی چې ټول جهان دپاره مقرر کړې مودې ته روان دی چې دغې پړاؤ ته اورسی نو دا ټول انتظام به ختم شی .

دامعنی هم کیدې شی چې الله ﷻ هر یوې سیارې دپاره یو خاص رفتار او د چکر خاص ځائې ټاکلې دې چې دهغې نه بهر ته نشی وتلې اونه ترې څه قدرې اخوا دیخوا کیدې شی. سپوږمۍ خپل چکر په یو میاشت کښې او نمر ئې په یو کال کښې پوره کوی .

دا سیارې څومره عظیم الشان وجود لرې. بیاپه خپل خپل خاص چکر ځائې کښې دبې اندازې زیاتې مودې راسې په یو اندازې سره ددې داسې چلیدل چې نه ئې مشین څو لیږی او ماتیږی ، د ګریس ورکولو ضرورت نشته ، په دې موجوده سائنسی دور کښې چې ډیره ترقی ئې کړې ده، بیا هم ددې مثال او نظیر پیش کول نشی کیدې .دقدرت دا انتظام په اوچت آواز سره نعره لګوی چې ددې جوړوُنکې او چلوُنکې داسې یوه هستی ضرور شته چې د انسان پوهه او شعور هیڅ درک ورته نشی موندې .

**د هر څيز انتظام په حقيقت کښې هم د الله ﷻ کار دې .انسانی انتظام تش په نوم دې ::** ﴿يُدَبِّرُ الْأَمْرَ﴾ [هم هغه دهرې خبرې انتظام کوی] انسان که هر څومره پخپل تدبیر او انتظام کولو باندې فخر کوی خو که سترګې اوغړوی نو معلومه به شی چې ددهٔ تدبیر او انتظام نه خوڅه څیز جوړولې شی . او نه ئې پیدا کولې شی . ددهٔ د ټولو تدبیرونو حاصل ، ددې نه زیات بل هیڅ نشی کیدې چې د الله ﷻ دپیدا کړو څیزونو په استعمال باندې پوهه شی ،بله دا چې دټول جهان د څیزونو انتظام کول هم ددهٔ دوس نه بهر دی . ولې چې انسان پخپل هر کار کښې هم دنورو زرګونو ، انسانانو ، ځناورو مخلوقاتو محتاج دې ، چې پخپل انتظام سره دا ټول څیزونه پخپل کار کښې نشی لګولې . یوازې د الله ﷻ قدرت ، د هر څیز کړئ بل څیز سره داسې لګولې او پیوست کړې ده چې هر څیز د هغې په برکت رابنکلې شی . که چا انسان ته د مکان جوړولو ضرورت راپیښ شی نو د نقشې جوړونکی نه واخله تر رنګ ، روغن کوُنکو پورې په سوُنو انسانان خپل ځانونه او هنرونه ورته پیش کوی ، د تعمیر ټول سامان چې په مختلفو دکانونو کښې خور وور پروت دې . هغه ټول ورته تیار په ګوتو ورځی ، آیا دانسانانو دا وس رسیدې شی چې د خپل مال یا تدبیر په زور سره دا ټول څیزونه او متعلقه انسان خپل خدمت ته حاضر کړې شی ؟ یو انسان خو لا څهٔ کوې چې د لوئې نه لوئې هیڅ یو حکومت هم د قانون په زور سره دا نظام نشی قائمولې ، بیشکه دجهان دا تدبیر او انتظام کول صرف د حی او قیوم کار دې ، که څوک انسان دې لره خپل تدبیر او انتظام کول بولی نو د ناپوهئ نه سوا بل هیڅ نه دی .

﴿يُفَصِّلُ الْآيٰتِ﴾ یعنی هغه خپل آیتونه تفصیل سره بیانوی ، دې نه مراد قرآنی آیتونه هم کیدې شی چې الله ﷻ په تفصیل سره نازل کړه بیا نبی کریم ﷺ دوحی په ذریعه دهغې نور هم وضاحت او تفسیر اوفرمائیلو.

یا دا چې دې نه مراد د الله ﷻ دقدرت کامله نخښې واخستې شي چې هغه آسمان ، زمکه او
پخپله دانسان په وجود کښې موجود دي چې ښه په تفصیل سره هر وخت هر ځائې کښې
انسان ته په نظر راځي.
﴿لَعَلَّكُمۡ بِلِقَآءِ رَبِّكُمۡ تُوقِنُونَ﴾[ دې دپاره چې خپل رب ته د حاضریدو یقین اوکړئ] ځکه چې کله
دې عجیبه انتظام او ددې جهان په پیداکولو باندې نظر واچولې شي نو دا هیڅکله نشي
کیدې چې د الله ﷻ د قدرت کامله نه په آخرت کښې دانسان دوباره کول بهر اوګنړی ، او کله
چې دا معلوم شو چې داسې کیدل ممکن او د الله ﷻ په قدرت کښې دی ، او دا هم معلوم شو
چې ددې خبر داسې یو هستئ ورکړې دې چې ټول عمر ئې په دروغو چرته ژبه نه چلیده نو ددې
په واقع کیدو او ثابتیدو کښې څه شك پاتې کیدې شي ؟
﴿وَهُوَ الَّذِي مَدَّ الۡأَرۡضَ وَجَعَلَ فِيهَا رَوَاسِيَ وَأَنۡهَٰرٗاۖ﴾[ او الله ﷻ هغه ذات دې چې زمکه ئې خوره کړې ده
اوپه دې کښې ئې غرونه اودریابونه پیدا کړي دی]
دزمکې خورول دې سره بې سمونه نشي کیدې چې زمکه خو غونډئ یعنی ګول ده نو خوره
شوې ورته څنګه اوفرمائیلې شو. ولې چې ډیر لوئي څیز چې د غونډسکې پشان غونډ مونډ هم
وی نو د خلقو په نظر کښې خوره شوې او چپاتئ ښکارئ، په دې ورته خوره شوې او چپاتئ
اووئیلې شو.
بیا ددې د توازن او تولې برابر ساتلو او د نورو ډیرو فائدو دپاره ئې پرې لوړ لوړ درانده
غرونه اودرول چې د زمکې توله پرې هم برابره شي ، او ټول مخلوق ته د اوبو رسولو انتظام
هم ورسره اوشی . ولې چې د اوبو لویه ذخیره د غرونو په څوکو باندې د واؤرې په شکل
کښې ایخودې شوېده . چې هغې دپاره د تالاؤ اوټینکئ جوړولو ضرورت هم نه پیښیږی ، نه
ئې د پلیتیدو څه احتمال راولاړیدې شي اونه ئې د سخا کیدو څه ویره کیدې شي ،بیا د
زمکې دننه دقدرتی نلکو په ذریعه ټوله دنیا کښې خورولې شي چې چرته خو په ډاګه ترې
ولې ،نهروه او د ریابونه جاري وی اوکله د زمکې لاندې پټې اوساتلې شي او د کوهو او
چینو په ذریعه دغه اوبه حاصلولې شي.
﴿وَمِن كُلِّ الثَّمَرَٰتِ جَعَلَ فِيهَا زَوۡجَيۡنِ اثۡنَيۡنِۖ﴾[ او په دې کښې ئې هرقسم میوې جوړئ جوړئ پیدا
کړې دی] وره لویه، سره سپینه، خوږه تروه او دا هم کیدې شي چې زوجین نه مراد صرف دوه
نه بلکه ډیر قسمه واخستې شي چې شمیر ئې کم نه کم دوه وی . ځکه ئې ﴿زَوۡجَيۡنِ اثۡنَيۡنِ﴾
اوفرمائیل ،اوڅه لرې هم نه ده چې د زوجین نه نر مراد وی لکه د ډیرو ونو باره کښې د تجربې
نه ثابته شوې ده چې په هغې کښې نر ښځه وی، لکه د کهجورې او پپیتې ونې شوې، دغه
شان نورې ونې هم نرښځې کیدې شي اګرچې تر اوسه پورې دا خبره تحقیق ته نه وی رسیدلې.
﴿يُغۡشِي الَّيۡلَ النَّهَارَۚ﴾[ اوهغه شپه د ورځې په رڼرا کښې پټوی] مراد ترې دادې چې د ورځې رڼرا
پسې شپه راولی لکه چې یو روښانه څیز په یو پرده کښې پټ کړې شي.
﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَٰتٖ لِّقَوۡمٖ يَتَفَكَّرُونَ﴾[ بیشکه ددې ټولو کائناتو په پیداکولو او ددې په تدبیر او
انتظام کښې غور ، فکر دپاره نخښې دی]
﴿وَفِي الۡأَرۡضِ قِطَعٞ مُّتَجَٰوِرَٰتٞ وَجَنَّٰتٞ مِّنۡ أَعۡنَٰبٖ وَزَرۡعٞ وَنَخِيلٞ صِنۡوَانٞ وَغَيۡرُ صِنۡوَانٖ يُسۡقَىٰ بِمَآءٖ وَٰحِدٖ وَنُفَضِّلُ بَعۡضَهَا
عَلَىٰ بَعۡضٖ فِي الۡأُكُلِۚ﴾[ اوپه زمکه کښې مختلفې ټکړې دی چې یوبل سره ملاؤ دی اودانګورو

باغونه دي او پټي دي او کهجورې دي دبعضو ډير ښاخونه دي او بعضې د يوې تنې دې تول په يو قسم اوبو باندې خړوبيږي خوبيا هم مونږ د يوبل نه په خوراک کښې غوره پيدا کړې دي] اودا ټولې ميوې اگر چې هم د يوې زمکې نه پيدا کيږي ، هم په يو قسم اوبو خړوب کيږي ،دنمر او سپوږمۍ پلوشې په دې ټولو يو شان پريوځي ، خو بيا ئې هم رنگونه او خوندونه مختلف وي . د لوئې او وړوکي رنگ په کښې ښه ښکاره وي .سره ددې پيوستوالي او يوشان والي نه بيا هم په کښې قسما قسم اختلاف څرگنديدل ددې خبرې قوي او واضح دليل دې چې دا ټول کاروبار ديوحکيم او منتظم په حکم سره کيږي . يوازې د مادې مختلف کيدل نه دي څنگه چې دخينو جاهلانو خيال دې ، ولې که چرته ماده هم يو قسم وي نو ددې ترمينځه به مختلف کيدل څنگه کيدل ، هم د يوې زمکې نه ، يوه ميوه په يو موسم کښې راوځي . نورې ميوې په بل موسم کښې هم دغه شان وي خو بيا هم د يوې ونې په يوې څانگه کښې بيل بيل قسمه وړې وړې ، لوې او مختلف خوند ميوې پيدا کيږي .

﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ﴾ [ بيشکه په دې ټولو خبرو کښې د هغه خلقو دپاره نښې دي چې د عقل نه کار اخلي] دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چې کوم خلق په دې څيزونو کښې غور نه کوي ، هغوئ د عقل خاوندان نه دي ، اگر چې په دنيا کښې لوئې عقل مند گڼلې شي او بللې شي .

| |
|---|
| وَإِنْ تَعْجَبْ فَعَجَبٌ |
| اوکه چرې \| ته تعجب کوې \| نو ډيره عجيبه ده |
| اوکه ته تعجب کوې \| نود دوی په خبره |
| قَوْلُهُمْ ءَإِذَا كُنَّا تُرَابًا ءَإِنَّا لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ |
| وينا د دوئ \| آيا کله چې \| شو مونږ \| خاورې \| آيانو بيا به مونږ \| راپيدا کيږو په پيداوښت \| نوې کښې |
| تعجب په کار دې \| [هغه دا] چې کله مونږ مړۀ شو \| او خاورې شو \| نو بيابه راژوندي کيږو |
| أُولَٰئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ وَأُولَٰئِكَ الْأَغْلَالُ |
| داخلق \| هغه کسان دي \| چې کفرنې کړې دې \| په رب خپل سره \| او داهغه کسان دي \| چې پټئ به پرتې وي |
| دا هغه خلق دي \| چې د خپل رب نه منکر دي \| او د دوئ په څټونو کښې به طوقونه زوړند |
| فِي أَعْنَاقِهِمْ وَأُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ |
| په څټونو ددوئ کښې \| او دا کسان \| خاوندان د وور دي \| دوئ به \| په هغې کښې \| هميشه وي |
| پراتۀ وي \| اوهم دغه خلق دوزخيان دي \| چې هميشه به په کښې پراتۀ وي. |
| وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالسَّيِّئَةِ قَبْلَ الْحَسَنَةِ وَقَدْ خَلَتْ |
| او په تلوار غواړي دوئ ستانه \| بدي \| مخکښې \| د نيکئ نه \| او په تحقيق چې تير شوي دي |
| اودوئ ستانه دعافيت راتلو نه وړاندې د مصيبت تلوار کوي \| حال دا دې چې ددوئ نه وړاندې |

مِنْ قَبْلِهِمُ الْمَثُلٰتُ ؕ وَاِنَّ رَبَّكَ لَذُوْ مَغْفِرَةٍ لِّلنَّاسِ

مخکښې ددوئ نه | مثالونه دعبرت | او بیشکه | رب ستا | خامخا مالك | د ښښنې دې | د پاره د خلقو

ډیر دعذابونو مثالونه تیر شوی دی | اوبیشکه ستا رب د خلقو د ظلم [گناهونو] باوجود ښښونکي دې

عَلٰى ظُلْمِهِمْ ۚ وَاِنَّ رَبَّكَ لَشَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝ وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ

سره د ظلم د هغوئ | او بیشکه | رب ستا | خامخا سخت عذاب ورکونکي دې | او وائی | هغه کسان

اوبیشکه ستا رب سخت سزا ورکونکي دې | .اوکافران وائی چې

كَفَرُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ اِنَّمَآ

چې انکارئې کړې دې | ولې نازله نۀ شوه | په دۀ باندې | یوه نښه | دطرفه درب خپل نه | بیشکه چې

د دۀ د رب د طرفنه په دۀ باندې څه نښه ولې نازله نۀ شوه | ...............[ائې پیغمبره ﷺ] تۀ

اَنْتَ مُنْذِرٌ وَّلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ ۝ اَللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ

تۀ | ویرونکې یې | او دپاره دهر قوم | لار ښودونکي مقرر دي | الله پوهیږي | په هغه څۀ | چې بار اخلی

خوصرف [دبدبختو نتیجونه] ویرونکې یې | اودهرقوم دپاره یو لارخودونکي وی | څه چې یوه ښځه په

كُلُّ اُنْثٰى وَمَا تَغِيْضُ الْاَرْحَامُ وَمَا تَزْدَادُ ؕ

هره | ښځه | او په هغه څه | چې کموی ئې | رحمونه | او په هغه څه چې | زیاتوی ئې

خپله خیټه کښې ساتی الله ته هغه ښۀ معلوم دی | اوڅه چې [د ښځو] په رحم کښې [د بچې د پیدا اوښت په حقله] کمې زیاتې کیږي

وَكُلُّ شَيْءٍ عِنْدَهٗ بِمِقْدَارٍ ۝

او هر څیز | د هغه سره | په اندازه دې |

اودا هرڅیز د هغۀ په نزد په یوه مقرره نیته کیږي |

## آسان ترجمه قرآن

او که تا ته (دې کافرانو باندې) تعجب کیږي نو د دوی دا وینا (واقعي) عجیبه ده چه :آیا مونږ چه کله خاورې شو نو مونږ به یقیناً په نوی پیدایش سره ژوندي کیږو ؟ دا هغه خلق دي چه دوی د خپل رب (د قدرت نه) انکار کړې دې.او دا هغه خلق دي چه د دوی په څټونو کښې طوقونه اچولې شوی دی او دوی دوزخ والا دي — دوی به همیشه دې کښې اوسیږی. او دا خلق د خوشحالئ (دوخت د ختمیدو)نه مخکښې په بدحالئ تلوار کوی حال دادې چه دوی نه مخکښې د عذاب داسې واقعات تیر شوی دی چه هغې خلقو لره رسوا کړې وو اودا یو حقیقت دې چه ستا رب د خلقو دپاره د دوی د زیاتې باوجود معاف کونکې ذات دې اودا هم حقیقت دې چه د هغه عذاب ډیر سخت دې او کومو خلقو چه کفر کړې دې هغوی وائی چه: په ده باندې (یعنی محمد صلی الله علیه وسلم باندې) د ده د رب د طرف نه څه معجزه ولې نه ده راغلې ؟ (اې پیغمبره !) خبره دا ده چه ته صرف د خطرې نه خبرونکې ئې ، او د هر یو قوم دپاره به داسې یو کس وو چه

هغوی ته د هدایت لار وښائي د کوم یوې مادې چه کوم حمل وي په هغې هم الله پوهیږي او د میاندو په رحم کښې چه کوم کمې او زیاتې کیږي، په هغې هم او د هر یو څیز د هغه څخه یوه اندازه مقرر ده.

## خلاصه تفسیر

﴿وَاِنْ تَعْجَبْ فَعَجَبٌ قَوْلُهُمْ ءَاِذَا كُنَّا تُرٰبًا ءَاِنَّا لَفِيْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ﴾ او [اې محمد ﷺ] که تاته [ددې خلقو دقیامت نه په انکار سره] تعجب وی نو [واقعی] ددوی داخبره دتعجب لائقه ده چه کله مونږ [مړه] خاورې شو آیا [دخاورې کیدونه بعد بیا به مونږ [په قیامت کښې] دنوی سره پیدا شو؟ [د تعجب وړ ځکه چه کوم ذات دداسې شیانو چه ذکریږ وشو په پیدا کولو اول وارقادر دی هغه ته دوباره پیداکول څه ګران دی او په دې سره جواب وشو دبیا پورته کیدو د محال ګڼړلو او دنبوت دانکار هم چه مبنی ئی دغه بیا پورته کیدل محال ګڼړل وه دیو په جواب سره دبل جواب وشو، مخکښې ددوی لپاره دعذاب وعده ده چه ] ﴿اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ﴾ داهغه خلق دی چه دخپل رب سره ئې کفروکړو [ځکه چه دبیا پورته کیدونه په انکار سره ئې دده دقدرت نه انکاروکړو، او دقیامت نه په انکار سره انکار دنبوت لازمیږی] ﴿وَاُولٰٓئِكَ الْاَغْلٰلُ فِيْٓ اَعْنَاقِهِمْ﴾ او دداسې خلقو په څټونو کښې به په دوزخ کښې ] طوقونه واچولې شی ﴿وَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ﴾ او داسې خلق دوزخیان دی [او] دوی به پکښې همیشه اوسیږی ﴿وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالسَّيِّئَةِ قَبْلَ الْحَسَنَةِ﴾ او داخلق دعافیت [دمیعاد ختمیدو] نه مخکښې ستا نه د مصیبت [نازلیدو] تقاضا کوی [چه که ته نبی ئې نو لاړشه عذاب راوغواړه چه ددې نه معلومیږی چه دوی دعذاب وقع کیدل محال ګڼړی] ﴿وَقَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِمُ الْمَثُلٰتُ﴾ حال دادې چه ددوی مخکښې [په نورو کفارو] د عذاب واقعات تیرشوی دی [نو په دوی ئې راتلل څه محال دی ]

﴿وَاِنَّ رَبَّكَ لَذُوْ مَغْفِرَةٍ لِّلنَّاسِ عَلٰى ظُلْمِهِمْ وَاِنَّ رَبَّكَ لَشَدِيْدُ الْعِقَابِ﴾ او [دالله تعالی په غفوراورحیم اوریدودې داخلق نه مغروره کیږی چه اوس به مونږ نه عذابیږو ځکه چه هغه صرف غفوراورحیم نه دی، او بیا د ټولو لپاره غفوراورحیم نه دی، بلکه دواړه خبرې پخپله خپله موقع ظاهریږی یعنی] داخبره هم یقینی ده چه ستا رب دخلقو خطاګانو سره ددوی [دیوې خاصې درجې] دبې ځایه حرکتونه معاف کوی او داخبره هم یقینی ده چه ستا رب سزاسخته ورکوی [یعنی په ده کښې دواړه صفتونه دی او د هر یو دظهورشرطونه او اسباب دی، نو دوی بې دسبب نه خپل ځانونه درحمت او مغفرت مستحق ځنګه اوګڼړل، بلکه دکفرپه وجه خودوی ته دالله تعالی سخت عذاب دې ﴿وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ﴾ او داکفار [دنبوت نه دانکارپه غرض سره] داسې [هم] وائې چه په ده خاص معجزه [کومه چه مونږ غواړو] ولی نازله نکړی شوه ﴿اِنَّمَآ اَنْتَ مُنْذِرٌ وَّلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ﴾ [او دا اعتراض محض حماقت دې ځکه چه ته دمعجزو مالك نه ئې بلکه ته صرف [دالله تعالی دعذاب نه کفار] ویرونکی [یعنی نبی] ئې [او دنبې لپاره مطلق دمعجزې ضرورت دې کومه چه ښکاره شویده نه دکومې خاصې معجزې] او [ته څه نا اشنا نبي نه ئې راغلې بلکه [دهرقوم لپاره [په مخکښې امتونو کښې] هادیان راغلی دی [په دوی کښې هم داقاعده راغلې ده چه دنبوت د دعوې لپاره مطلق دلیل کافی مقررکړې شو دخاص دلیل انتظام نه دې شوې ] ﴿اَللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ كُلُّ اُنْثٰى وَمَا تَغِيْضُ الْاَرْحَامُ وَمَا تَزْدَادُ﴾ الله تعالی دهرڅه نه

خبردي څه چه کومې ښځې ته حمل وی اوڅه چه په رحم کښې کمې زياتې کيږی ، ﴿وَكُلُّ شَيْءٍ عِنْدَهُ بِمِقْدَارٍ﴾ اوهرشی د الله تعالی په نزد په يوخاص اندازه سره دي..

## معارف او مسائل

ددې آيتونو څنې په رومبو دريو آيتونو کښې دکافرانو د شبهاتو جواب دې چې د پيغمبرئ باره کښې وې ، او دې سره منکرانو دپاره دعذاب وعيد بيان شوې دې.

د دوئ درې شبهې وې . ① يو دا چې دې خلقو د مرګ نه پس دوباره ژوندی کيدل او دمحشر حساب کتاب لوبې توقې او د عقل نه خلاف ګنړلو. په دې بنا د آخرت خبر ورکوونکي پيغمبران ﷺ به ئې په دروغه بلل او د هغوئ دپيغمبرئ نه به ئې انکار کولو ، لکه چې قرآن عظيم الشان په يو بل آيت مبارك کښې دغه شبه په داسې شان سره بيانوی چې :

﴿هَلْ نَدُلُّكُمْ عَلَىٰ رَجُلٍ يُنَبِّئُكُمْ إِذَا مُزِّقْتُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ إِنَّكُمْ لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ﴾ دې کښې نبی کريم ﷺ ته خطاب دې ، فرمائې چې ستاسو ﷺ د ښکاره معجزو او ستاسو په پيغمبرئ باندې دالله ﷻ د ښکاره نخښو ليدلو باوجود ستاسو ﷺ د پيغمبرئ نه ددې خلقو په انکار کولو که تاسو تعجب کوئ او په دې هم تعجب کوئ چې دوئ بې ساه کانړې منی کوم چې حس ، شعور نه لری . او نه د خپل ځان د نفع او نقصان قدرت لری نو بل ته به څه نفع رسولې شی ؟ خو ددې نه د زيات تعجب کولو جوګه خبره داده چې دوئ وائی چې آيا ، داسې کيدې شی چې کله دمرګ نه پس ښاوړې شو نو مونږ به دوباره پيدا کولې شو ؟ قرآن عظيم الشان ددې تعجب کولوڅه ښکاره وجه نه ده بيان کړې ځکه چې په تيرو شوؤ آيتونو کښې د الله ﷻ د قدرت کامله عجيبه عجيبه ننداړو بيانولو سره دا ثابت کړې شوی دی چې هغه داسې قادر مطلق دې چې ټول مخلوق ئې د نيشت نه شته کړې دې . او بيا د هر څيز وجود کښې ئې قسما قسم حکمتونه ايخودی دی چې د انسان دهغې په مزاج په هر طرف باندې احاطه کول خو لا څه کوې چې هغې ته ئې دماغ نه رسی ، او دا ښکاره خبره ده چې کوم ذات په رومبی ځل يو څيز لره د نيشت نه شته کولې شی نو هغه دپاره ئې دوباره پيدا کول ځنګه مشکل کيدې شی ؟ انسان هر کله چې په رومبی ځل څه څيز جوړوی نو مشکلات ورته په کښې ډير راپيښيږی خو په دوباره جوړولو کښې ئې ورته آسانی وی .

بنا په دې د تعجب خبره خو داده چې دا خلق دا منی چې الله ﷻ په رومبی ځل ټول کائنات د بې شميره حکمتونو سره هم ده پيدا کړی دی بيا ئې دوباره پيدا کول هغه دپاره ځنګه لوبې توقې او عقل نه خلاف ګنړی ؟

کيدې شی چې د ې منکرانو ته غټ مشکل دا راپيښيږی چې د مرګ نه پس هر کله چې انسان خاوړې شی او ددهٔ ذرې په ټوله دنيا کښې خورې شی هواګانې ئې يو خوا بل خوا اړوی او دغه شان په نورو اسبابو او ذريعو سره هم دغه ذرې په ټول جهان کښې خورې شی ، بيا د قيامت په ورځ به دغه ټولې ذرې ځنګه راجمع کولې شی او بيا د جمع کولو نه پس به ځنګه ژوندې کولې شی ؟

خو دوئ دې ته نه ګوری چې د نن ژوندې انسان هم دټولې دنيا د خورو ورو ذرو نه جوړ کړې دې . دمشرق او مغرب څيزونه ، اود اوبو او هوا راوړلې ذرې دانسان په خوارك کښې شاملې دی . او ددهٔ د بدن حصه جوړې شوی دی . دې عاجز ته دا معلومات نه شته چې کومه نوړئ

[گوله] پخپله خله کښې اړدی په دې کښې د افریقې ، امریکې او دمشرق ملکونو ځومره ځومره ذرې شاملې دی ؟ چې اوس ئې په رومبی ځل انسان لره په ټوله دنیا کښې دخورو ورو ذرو نه جوړ کړو، دهغه خوراك ، څکاك او د نور استعمال څیزونه ئې ددغسې خورو ورو ذرو نه جوړ کړی دی ، نو ددې ټولو ذرو دوباره راجمع کول ، الله ﷻ دپاره څهٔ مشکل کیدې شی ؟ سره ددې چې ددنیا ټول طاقتونه ، هوا ، اوبه او نور قوتونه ټول د الله ﷻ دحکم تابع اومسخر دی ، او ددهٔ په اشارو سره هوا ، اوبه او فضا خپلې خپلې ذرې راجمع کړی ، دې کښې مشکل څه راپیښیدې شی ؟

حقیقت دادې چې د الله ﷻ قدر او قدرت یې د سره پیژندلې نه دې دهغه قدرت پخپل قدرت باندې قیاس کوی،حالانکه آسمان ،زمکه او ددې ترمینځه د فضا ټول څیزونه دخپل خپل شان په جوړ پوهه او شعور لری او د الله ﷻ دحکم په تابعدارئ کښې اخته دی لکه فرمائی چې:

خاك و باد وآب و آتش بنده اند	بامن و تومر ده باحق زنده اند[1]

خلاصه دا ده چې د ښکاره نخښو باوجود څنګه چې د نبی کریم ﷺ د پیغمبرئ نه انکار کول د تعجب خبره وه ددې نه زیات د تعجب خبره داده چې دوئ په قیامت کښې د دوباره ژوندی کیدو او د حشر د ورځې نه انکار کوی .

دې پسې ددغې منکرانو دسزا بیان داسې دې چې داخلق صرف تاسو ﷺ نه انکار نه کوی بلکه په حقیقت کښې دخپل رب انکار کوی . دهغوئ سزا به دا وی چې په څټونو کښې به ورته ګردنئ یعنی طوق اچولې شی او همیشه دپاره بهٔ دوزخ کښې پاتې کیږی .

دویمه شبه د منکرینو دا وه چې که په واقع کښې تاسو ﷺ د الله ﷻ نبی رسول یئ نو د نبی دمخالفت کولو په وجه د کوم عذاب د راتلو دړکې چې ورکوئی ، هغه عذاب ولې نه راځی ؟ ددې جواب په دویم آیت مبارك کښې دا ورکړې شوې دې چې :

﴿ وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالسَّيِّئَةِ قَبْلَ الْحَسَنَةِ وَقَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِمُ الْمَثُلٰتُ ۗ وَإِنَّ رَبَّكَ لَذُو مَغْفِرَةٍ لِّلنَّاسِ عَلٰى ظُلْمِهِمْ ۖ وَإِنَّ رَبَّكَ لَشَدِيدُ الْعِقَابِ ۝ ﴾ [ یعنی دا خلق همیشه دخیر خیریت د مودې د ختمیدو څخه وړاندې تاسو څخه دمصیبت د نازلیدو سوال کوی ،[او وائی چې که تاسو پیغمبر یې نو زر تر زره عذاب راولې ددې څخه معلومیږی چې دا خلق عذاب راتلل ډیر زیات لرې یا ناممکن ګنړی ] حالانکه ددې څخه وړاندې ډیرعذابونه تیر شوی دی] چې ټولو خلقو لیدلی دی نو په دوئ باندې دعذاب راتلل څه ګران دی ؟ دلته لفظ د [مَثُلٰتُ] د مثلة جمع ده ، معنی یې داسې سزا ده چې انسان لره د ټولو خلقو په وړاندې شرمنده کړی ، او نورو دپاره دعبرت ذریعه جوړه شی .

بیا فرمائی چې بیشکه ستا رب د خلقو د ګناهونو او نا فرمانو باوجود د لویې بخښنې او رحمت خاوند هم دې او څوك چې ددې بخښنې او رحمت څخه فائده نه پورته کوی او پخپلې سرکشئ او نافرمانئ باندې کلك پاتې شی ، هغوئ دپاره سخت عذاب ورکوونکې هم دې ، څکه د الله ﷻ په غفور رحیم کیدلو باندې مه تیروځئ چې ګنی په مونږ باندې عذاب بالکل راتلې نشی .

---

[1] ترجمه: ښاؤره، هوا ، اوبه او اوور (هور) ژوندی دی، زه او ته دا مړهٔ ګنړو خو دالله په نزد دا ژوندی دی.

دریمه شبه ددغه کافرانو دا وه چې اګر که درسول کریم ﷺ ډیرې معجزې مونږ لیدلی دی لیکن د کومو خاص خاص معجزو چې مونږ سوال کړې دې هغه ولې نه ښکاره کوی ؟ ددې جواب په دریم آیت مبارك کښې دا ورکړې شوې دې چې:

﴿وَيَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْهِ آيَةٌ مِّن رَّبِّهِ ۗ إِنَّمَا أَنتَ مُنذِرٌ ۖ وَلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ﴾ [یعنی دا کافران ستاسو په پیغمبرئی د اعتراض کولو دپاره دا وائی چې په دوئ ﷺ خاص معجزې چې مونږ یې غواړو ولې نازلې نه کړې شوې ؟ نو ددې جواب واضح شو چې : معجزه ښکاره کول د پیغمبر په اختیار کښې نه وی بلکه نیغ په نیغه دالله ﷻ کول دی ، هغه پخپل حکمت سره کله چې څنګه معجزه ښکاره کول خوښ کړی نوښکاره یې کړی ، هغه د چا د غوښتنې او خواهش پابند نه دې ، څکه یې اوفرمائیل چې [إِنَّمَا أَنتَ مُنذِرٌ] [تاسو ﷺ کافرانو لره د الله ﷻ د عذاب څخه صرف ویرونکی یئ ، معجزه ښکاره کول ستا کار نه دې]

[وَلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ] [یعنی هر قوم دپاره په پخوانو امتونو کښې هدایت کوؤنکی په مخه راغلی دی، تاسو څه نوې پیغمبر نه یئ ، د ټولو پیغمبران ﷺ کار دا وو چې خپلو قومونو ته به یې هدایت کولو ، د الله ﷻ د عذاب څخه به یې ویرول ، معجزې ښکاره کول خوښوی ښکاره کوی یې]

**آیا هر ملك او هر قوم کښې پیغمبر راتلل لازمی دی !:** دې آیت مبارك کښې چې دا فرمائیلې شوی دی چې هر قوم دپاره یو هدایت کوؤنکې دې ، دې څخه ثابته شوه چې هیڅ قوم او هیڅ زمکه دالله ﷻ طرفته بلونکو او هدایت کوؤنکو څخه نه ده خالی شوې ، خواه هغه پخپله پیغمبر وی ، یا د پیغمبر قائمقام د هغوئ د عوت خورونکې وی ، لکه په سورۀ یاسین کښې چې بیان راغلې دې چې دپیغمبر د طرفه یو قوم ته وړاندې دوه کسان د بلنې او هدایت دپاره لیږلې شوی وو چې پخپله پیغمبران وو ، او بیا وروسې ددوئ د مدد او نصرت دپاره د دریم کس لیږل بیان شوی دی.

پدې بنا دالازمی نه دی چې په هندوستان کښې هم څوك پیغمبر پیدا شوې وی ، البته درسول کریم ﷺ د بلنې رسولو او خورولو دپاره دغه ځائې کښې د ډیرو عالمانو راتلل ثابت دی ، او بیا دغه ځائې کښې د دغسې بې شمیره هدایت کوؤنکو پیدا کیدل هم ، هر چاته معلوم دی.

تر دې پورې چې په دریو آیتونو کښې د پیغمبرئ نه دانکار کوؤنکو د شبهو جواب وو ، په څلورم آیت مبارك کښې بیا هم هغه اصل مضمون د توحید بیان شوې دې ، دکوم بیان چې ددې سورت د اول سر څخه راروان دې ، فرمائی چې :

﴿اللَّهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ كُلُّ أُنثَىٰ وَمَا تَغِيضُ الْأَرْحَامُ وَمَا تَزْدَادُ ۖ وَكُلُّ شَيْءٍ عِندَهُ بِمِقْدَارٍ﴾ [ یعنی څه چې یوه ښځه په خپله خیټه کښې ساتی الله تعالی ته هغه ښه معلوم دی چې هلك دی که جینی، ښکلې دې که بدشکل ، نیك دې او که بد. او د ښځو په رحمونو کښې چې د بچی کوم کمی زیاتې کیږی په هغې پوهیږی چې کله به یو ماشوم پیدا کیږی او کله زر پیدا کیږی او کله څه وخت پس پیدا کیږی ، اودا هر څیز دهغه په نزد په یوه مقرره نیټه کیږی

دې آیت کښې د الله ﷻ د یو خاص صفت بیان دې چې هغه عالم الغیب دې د ټولو کائناتو او مخلوقاتو د ذرې ذرې نه او دهر ذرې دبدلیدونکو حالاتو نه خبر دې . دې سره د انسان دپیدائش دهر دور ، هر بدلون اوهر صفت نه پوره شان د واقف کیدو بیان دې چې د حمل یقینی او صحیح علم صرف هغه لره دې چې هلك دې که جینئ،یادواړه دی ، یا هیڅ هم نشته ،

صرف اوبهٔ یا هوا ده . په علاماتو او تخمیني سره څوك حكیم یا ډاكټر چې په دې باره كښې څه رائې وركوی، د هغې حیثیت یو ګمان او اندازې نه زیات نه وی ، ډیر ځل واقعه ددې پخلاف راوځی، د ایكسرې نوی آله هم ددې حقیقت معلومولو كښې پاتې راځی . ددې حقیقی او یقینی علم یوازې الله ﷻ لره كیدې شی ، ددې بیان په یوبل آیت مبارك كښې داسې راغلې دې : ﴿وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ﴾ [یعنی الله ﷻ پیژنی هغه څه چې په رحمونو كښې دی]
﴿تَغِيضُ﴾ لفظ په عربئ كښې د كمیدو او اوچیدو په معنی كښې رازی خو هر كله چې دلته ددې په مقابله كښې د ﴿تَزْدَادُ﴾ لفظ راغلې دې نودې لره د تغیض معنی كمیدل او ټاكلې شو، مطلب دادې چې د مور په خیټه كښې چې څه كمې ، زیاتې كیږی ، دهغې صحیح علم هم یوازې الله ﷻ لره وی . ددغې كمی زیاتی نه مراد دا هم كیدې شی چې دا بچې یو دې او كه ګنړ دی . او دا هم كیدې شی چې دا بچې په لږه موده كښې به پیدا كیږی او كه په ډیره موده كښې په څو میاشتو څو ورځو او څو ګنټو كښې به پیدا كیږی ؟
ددې یقینی علم سوا د الله ﷻ نه بل چاته نشی كیدې .
دتفسیر امام مجاهد رحمه الله فرمائیلی دی چې د حمل په دوران كښې د ښځې نه راتونكې وینه د حمل دبچی په بدن اوصحت كښې د كمی باعث جوړیږی . نو ﴿تَغِيضُ الْأَرْحَامُ﴾ نه مراد دا كمی ده ، او حقیقت دادې چې د كمی څومره قسمونه دی هغې ټولو ته د آیت مبارك دا الفاظ شاملیږی ، ځكه په كښې هیڅ اختلاف نشته .
﴿وَكُلُّ شَيْءٍ عِندَهُ بِمِقْدَارٍ﴾ [ اودا هرڅیز دهغه په نزد په یوه مقرره نیته كیږی] د بچی ټول حالات هم په دې كښې داخل دی چې ددهٔ هر څیز د الله ﷻ په نزد ټاكلې شوې دې چې څومره موده به د مور په خیټه كښې پاتې كیږی . بیا به څومره زمانه ژوندې اوسیږی ، څومره رزق به بیا مومی ، د الله ﷻ دا بې مثاله علم ، د هغه دتوحید ښكاره دلیل دې .

عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْكَبِيرُ
[ عالم دې په پټو څیزونو | او په ښكاره | هغه لوئ دې
[هغهٔ په پټو او په ښكاره څرګندوټولو څیزونو ښهٔ عالم دې

الْمُتَعَالِ ۞ سَوَاءٌ مِّنكُم مَّنْ أَسَرَّ الْقَوْلَ وَمَنْ
اود اوچت شان مالك دې | یو شان دی [هغهٔ ته] | ستاسو نه | هغه څوك | چې پټوی خبره | او هغه څوك
ډیر لوئې دې اوعظیم دې | په تاسو كښې كه څوك په پټه خبره كوی او كه په ښكاره | ټول هغهٔ ته برابر

جَهَرَ بِهِ وَمَنْ هُوَ مُسْتَخْفٍ بِاللَّيْلِ وَسَارِبٌ
چې په اوچت آواز كوی دا | او هغه څوك | چې هغهٔ | پټیدنكی وی | په شپه كښې | او هغه څوك چې روان وی
دی | او هغه څوك ورته هم یو شان معلوم دی كه د شپې [په تیاره كښې ] پټ شی | او كه د ورځې [ښكاره] ګرځی

بِالنَّهَارِ ۞ لَهُ مُعَقِّبَاتٌ مِّن بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِ
په ورځ كښې | د هغه | نګرانې فرښتې مقرر دی | مخكښې د انسان نه | او روستو د هغهٔ نه
راګرځی | هر یو د پاره نمبر په نمبر راتلونكې [فرښتې] مقرر دی | وړاندې هم او روستو هم

يَحْفَظُوْنَهٗ مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ

چې حفاظت کوی د انسان | په حکم د الله | بیشکه الله | نهٔ بدلوی | هغه حالت | چې وی په یو قوم باندې

هغوی دالله ﷻ په حکم د هغهٔ حفاظت کوی | بیشکه الله ﷻ د یو قوم [ښهٔ] حالت نهٔ بدلوی

حَتّٰى يُغَيِّرُوْا مَا بِاَنْفُسِهِمْ ۭ وَاِذَآ اَرَادَ اللّٰهُ

تر هغې پورې | چې بدل کړی هغوئ | هغه حالت | په ځانونو خپلو | اوهرکله چې | اراده اوکړی | الله

ترڅو چې هغوئ پخپله خپل حالت بدل کړې نهٔ وی | اوهرکله چې الله په یوقوم باندې دمصیبت [راوستو]

بِقَوْمٍ سُوْۗءًا فَلَا مَرَدَّ لَهٗ ۚ وَمَا لَهُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ مِنْ وَّالٍ ⑪

په یوقوم | د مصیبت نو بیانشته واپس کیدل | د هغې | او نشته هغوئ دپاره | په مقابله دالله کښې | څوک مددګار

اراده اوکړی | نو هیڅوک ئې نشی واپس کولې | او دوی د پاره به د الله ﷻ نه سوا بل څوک مددګار نهٔ وی

هُوَ الَّذِيْ يُرِيْكُمُ الْبَرْقَ خَوْفًا وَّطَمَعًا وَّيُنْشِئُ السَّحَابَ

هغهٔ | هغه ذات دې | چې ښائی تاسو ته | بریښنا | هم ویره | او هم امید دپاره | او پورته کوی | وریځې

الله ﷻ هغه ذات دې چې تاسو ته دبجلئ پرق ښائی | چې د ویرې او امید دوارو ذریعه ده | او [داوبونه ډکې] درنې

الثِّقَالَ ⑫ وَيُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهٖ وَالْمَلٰۗىِٕكَةُ مِنْ خِيْفَتِهٖ ۚ

درنې | او پاکی بیانوی | د وریځې ګرزار | د حمد د هغه سره | او فرښتې هم | د ویرې د هغهٔ نه

وریځې راخیژوی | اورعد [ګړګوړ] سره دتعریف نه دهغهٔ پاکی بیانوی | اوفرښتې هم دهغهٔ دویرې نه رپیږی

وَيُرْسِلُ الصَّوَاعِقَ فَيُصِيْبُ بِهَا مَنْ يَّشَاۗءُ وَهُمْ

اولیږی هغهٔ | تندرونه | نو رسوی | دغه تندرونه | هغه چاته | چې اوغواړی | په داحال کښې چې هغوئ

اوهغهٔ تندرونه رالیږی | نو چې په چا غواړی په هغهٔ ئې غورزوی | اوتهٔ ګوره چې دوئ دالله ﷻ

يُجَادِلُوْنَ فِي اللّٰهِ ۚ وَهُوَ شَدِيْدُ الْمِحَالِ ⑬ لَهٗ دَعْوَةُ الْحَقِّ ۭ

جګړه کوی | په باره دالله کښې | او هغهٔ | سخت دې | دتدبیریه لحاظ سره | هغهٔ د پاره ده بلنه د حق

په وحدانیت کښې جګړې کوی | حال دا دې چې هغهٔ دلوئې طاقت خاوند دې | هم د هغهٔ بلنه حقه ده

وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ لَا يَسْتَجِيْبُوْنَ لَهُمْ بِشَيْءٍ

اوهغه هستیانې | چې دوئ رابلی هغوئ | بې دالله نه | هغوئ جواب نشی ورکولې | دوئ ته | د هیڅ څیز

او څوک چې د هغهٔ نه بغیر نور خلق رابلی | نو هغوئ ورته هیڅ جواب ورکولې نشی

اِلَّا كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ اِلَى الْمَاۗءِ لِيَبْلُغَ

مګرمثال ددوئ | پشان د غزونکی سری دې | دواړولاسونو خپلولره | اوبو ته | د پاره ددې چې اورسیږی دغه اوبه

مګر د هغه بنده په شان چې خپل دواړه لاسونه اوبو ته اوږدهٔ کړی | چې ددهٔ خلې ته راورسیږی

فَاهُ وَمَا هُوَ بِبَالِغِهٖ ۭ وَمَا دُعَاۗءُ الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا

خلې د هغهٔ ته | حال دا چې نهٔ وی دغه | رسیدونکی هغهٔ ته | اونهٔ دی | دعاګانې د کافرانو | مګر

حال دا دې چې هغه هیڅکله ددهٔ ته نشی رسیدلې | او دکافرانو بلنه خو بې اثره اوضائع ده

| فِيْ ضَلٰلٍ۝ | وَلِلّٰهِ | يَسْجُدُ | مَنْ | فِي السَّمٰوٰتِ |
|---|---|---|---|---|
| په ګمراهۍ کښې دی | او خاص الله ته | سجده کوی | هغه څوك | چې په آسمانونو کښې دی |
| ...... | اوپه زمکه او آسمانونو کښې چې څوک دی په خوښه او | | | |

| وَالْاَرْضِ | طَوْعًا | وَّكَرْهًا | وَّظِلٰلُهُمْ | بِالْغُدُوِّ | وَالْاٰصَالِ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| او په زمکه کښې دی | په خوښه | اوپه ناخوښه | اوسوری د هغوی | په صبا کښې | اوپه بیګاه کښې |
| یا په ناخوښه هم الله ﷻ ته سجده کوی | اودهغوی سیوری ورته هم سحر اومابنام سجده کوی | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

هغه په پټو او ښکاره ټولو خبرو باندې پوهیږی ،دهغه ذات ډیر لوئې دې، او د هغه شان ډیر اوچت دې.تاسو کښې که په پټه څوك خبره وکړي یا په زور سره ، که څوك د شپې پټ وی یا د ورځې روان وي، هغه ټول (الله تعالیٰ ته د علم په لحاظ سره) برابر دي .د هر یو کس ته مخکښې وروستو حفاظت کونکې (فرښتې) مقرر دي چه دالله تعالیٰ په حکم باندې په نمبر نمبر باندې دده حفاظت کوي یقین وکړئ چه الله تعالیٰ د یو قوم حالت هغه وخته پورې نه بدلوي تر څو چه دهغوی خپله په خپل حالت کښې تبدیلي نه وي راوستې او کله چه الله تعالیٰ په یو قوم باندې د یو آفت راوستو اراده وکړي نو د هغې واپس کول ممکن نه دي . اود داسې خلقو خپله د هغه نه سوا څوك حفاظت کونکې نه شی کیدې هم هغه ذات دې چه تاسو ته د بجلۍ پړق پړوق ښائی چه هغې نه تاسو ته (د تندر راپریوتلو) ویره هم وي ، او د (باران) امید هم وی او هغه (داوبو نه) ډکې وریځې اوچتوی. او د وریځو ګرزار د هغه تسبیح او حمد بیانوي ، او د هغه د ویرې نه فرښتې هم (د هغه په تسبیح کښې لګیا دي) او هغه تندرونه لیږي ، چه په چا باندې وغواړي نو هغه د مصیبت په شکل کښې غورزوی او ددې (کافرانو) حال دا دې چه دوی دالله په باره کښې بحثونه کوي ، حال دا دې چه د هغه طاقت ډیر زبردست دې هم هغه ذات دې چه دده نه دعاء غوښتل حق دی. او دده نه سوا چه دوی کوم (خدایان) رابلي هغوی د دوی د بلنې جواب نه شي ورکولې البته د دوی مثال د هغه کس پشان دې چه اوبو طرف ته خپل دواړه لاسونه اوږده کړي او دا غواړي چه اوبه د ده خولې ته راورسی حال دا دې چه هغه چرې هم دده خولې ته نه شي رارسیدلې. او (بتانو نه) ددې کافرانو د غوښتلو نتیجه دې نه سوا نور څه نشته چه دوی ګمراهۍ کښې وي.او الله هغه ذات دې چه د زمکې او آسمان ټول مخلوق هغه ته سجده کوي څه په خوشحالۍ او څه په مجبورۍ ، او د دوی سورې هم سحر او ماښام هغه ته سجده کوي.

## خلاصه تفسیر

﴿ عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْكَبِيْرُ الْمُتَعَالِ۝ ﴾ هغه ټولو پټو او ښکاره شیانو لره پیژنی دټولونه لوی [او] عالیشان دي ، ﴿سَوَآءٌ مِّنْكُمْ مَّنْ اَسَرَّ الْقَوْلَ وَمَنْ جَهَرَ بِهٖ﴾ په تاسو کښې چه کوم سړي کومه خبره په پټه کوی اوکه په ښکاره ﴿وَمَنْ هُوَ مُسْتَخْفٍ بِالَّيْلِ وَسَارِبٌ بِالنَّهَارِ۝﴾ اوکوم سړي چه په شپه کښې چیرته پټ شی اوکوم چه دورځی ګرځی راځی داټول [دالله په علم کښې ]برابردی [یعنی په ټولو پوشان علم لری﴿ لَهٗ مُعَقِّبٰتٌ مِّنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ﴾ اولکه څنګه چه په تاسو کښې دهرسړی

نه خبردي دغه شان دهریوحفاظت هم کوی چنانچه په تاسوکښې ]دهرسړي [دحفاظت ]لپاره څه فرښتي [مقرر]دي چه بدلي ئې کیږی څنې دده نه مخکښې اوځنې دده نه وروستو ﴿يَحْفَظُونَهُ مِنْ أَمْرِ اللَّهِ ۗ﴾ چه دوي دالله په حکم [دډیروبلاګانونه] ددوي حفاظت کوی [اوددي نه دي څوك داسي نه ګڼړي چه هرکله فرښتي څمونږه حفاظت کوی نوبیا چه څه غواړوکووبه ،ګناه وی اوکه کفر عذاب نشي نازلیدي دا ګنړل بلکل غلط دی څکه چه]﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ حَتَّىٰ يُغَيِّرُوا مَا بِأَنفُسِهِمْ ۗ﴾ واقعي الله تعالی [اول خوچاته عذاب نه ورکوی څنګه چه دهغه عادت دي چه هغه ] د یو قوم [ښه ] حالت نه بدلوی ترڅوپوری چه دغه خلق خپل [دصلاحیت] حال بدل نکړی [مګردديِ سره دا هم ده چه هرکله دوي په خپل صلاحیت کښې خلل اچونکی شی ،نوبیا دالله تعالی دطرفه په دوي مصیبت اوعذاب لیږل تجویزکولي شی ] ﴿وَإِذَا أَرَادَ اللَّهُ بِقَوْمٍ سُوءًا فَلَا مَرَدَّ لَهُ ۚ﴾اوکله چه الله تعالی په یوقوم باندی مصیبت لیږل تجویزکړی نوبیائی دبیرته ګرځیدوهیڅ صورت نه وی [هغه واقع کیږی ] ﴿ وَمَا لَهُم مِّن دُونِهِ مِن وَالٍ ﴾او[په داسي وخت کښې ]دالله تعالی نه سوا[دکومې په باره کښې چه ددوي ګمان وی چه څمونږحفاظت به کوی ]ددوي امدادنشي کولي [تردي چه فرښتي هم دده حفاظت نکوی اوکه کوی هم نودغه حفاظت ددوي پکارنشي راتلي ] ﴿هُوَ الَّذِي يُرِيكُمُ الْبَرْقَ خَوْفًا وَطَمَعًا ﴾هغه داسي[عظیم الشان ] دي چه تاسوته [دباران په وخت کښې ]بجلی[بریږیدونکي ښائی چه ددی نه]دتندرپریوتوویره هم وی او [ددی نه دباران]امیدهم وی﴿وَيُنشِئُ السَّحَابَ الثِّقَالَ ۞﴾ اوهغه وریځی [هم ] اوچتوی کومي چه ډکي وی داوبونه﴿وَيُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهِ وَالْمَلَائِكَةُ مِنْ خِيفَتِهِ ۚ﴾ اورعد[فرښته]دهغه په تسبیح سره دهغه پاکی بیانوی او[نوری]فرښتي هم دده دویري نه [دده حمداوثنابیانوی ] ﴿وَيُرْسِلُ الصَّوَاعِقَ فَيُصِيبُ بِهَا مَن يَشَاءُ ﴾ او هغه [زمکي ته تندرونه لیږی بیاچه په چاغواړی راغورځوی ئې﴿وَهُمْ يُجَادِلُونَ فِي اللَّهِ ۚ وَهُوَ شَدِيدُ الْمِحَالِ ۞﴾ اودغه خلق دالله تعالی په باره کښې [یعني دده په توحیدکښې سره ددومره عظیم الشان کیدو]جګړي کوی سره ددي چه هغه ډیرلوی قوت والادي چه ویره تري پکارده مګرداخلق نه ویریږی اودده سره شریك جوړوی﴿لَهُ دَعْوَةُ الْحَقِّ ۖ﴾ اوهغه داسي دعاګانو قبلونکي دي چه دهغه لپاره رشتوني بلل خاص دی [څکه چه هغه ئې په قبلولوقادر دي ] ﴿وَالَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِهِ لَا يَسْتَجِيبُونَ لَهُم بِشَيْءٍ﴾اودالله تعالی نه سواکوموخلقولره چه داخلق [پخپلو حاجتونو او مصیبتونو کښې ]رابلی هغه [دنه قدرت په وجه ]ددوي درخواست ددي نه سوا نشي منظورولي ﴿ إِلَّا كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ إِلَى الْمَاءِ لِيَبْلُغَ فَاهُ وَمَا هُوَ بِبَالِغِهِ ۚ ﴾څومره چه اوبه دهغه سړی درخواست منظوروی کوم چه خپل دواړه لاسونه اوبوطرف ته غزولي وی [اوپه اشاره سره ئې خپل طرف ته رابولی ]چه دغه اوبه دده خولي ته [راوالوځی ]راشی اوهغه [دخانه]دده خولي ته [په هیڅ شان]راتلونکي نه وی﴿ وَمَا دُعَاءُ الْكَافِرِينَ إِلَّا فِي ضَلَالٍ ۞﴾ [نولکه څنګه چه دغه اوبه دده درخواست دقبلولونه عاجزه دي دغه شان ددوي معبودان عاجزدی په دي وجه ]دکافرانو[ددوي نه ]درخواست کول محض بی اثره دي﴿ وَلِلَّهِ يَسْجُدُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ اوالله تعالی [داسي قادرمطلق دي چه دهغه ]په وړاندي ټولو سرونه ښکته کړی دی څومره چه په آسمانونو کښې دی اوڅومره چه په زمکه کښې دی﴿طَوْعًا وَكَرْهًا ﴾ [بعضي]په خوښئ سره اوبعضي په مجبورئ سره [په خوښي داسي چه په خپل اختیارسره عبادت کوی ،اودمجبورئ دامعنی ده چه الله

تعالی په خپل مخلوق کښې څنګه تصرف کول غواړي هغه ئې مخالفت نشي کولی] ﴿وَظِلٰلُهُمْ بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ﴾ اوددغو [زمکي والو] سوري هم [سرونه ئې ښکته کړي دی دسحراومابنام په وختونوکښې [یعنی سورولره څومره چه غواړي لنډوي ،اودسحراومابنام په وخت کښې چونکه د اوږدیدو اولنډیدوزیات ښکاره کیدل وی خکه ئې ددی تخصیص وکړوورنه سوري خوپه دې معنی سره په هرشان تابعدار دی۔

## معارف او مسائل

ددې آیتونو نه وړاندې د الله ﷻ د مخصوص صفتونو دکمال سلسله روانه ده چې په حقیقت کښې دتوحید دلیلونه دی دې آیت مبارك کښې الله ﷻ فرمائی چې:

﴿عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْكَبِيْرُ الْمُتَعَالِ﴾ [ هغه په پټو او په څرګندوټولو څیزونو ښه عالم دې ډیر لوئې دې اوعظیم دې] دغیب نه مراد هغه څیز دې چې د انسانی حواسو نه غائب وی ، یعنی په سترګو نشی لیدلې کیدې ، په غوږونو نشی آوریدلې کیدې ، په پوزې سره ئې نشی بویولې ،په ژبه ئې څکل نشی کیدې ، په لاسونو لګولو سره معلومول نشی کیدې.

﴿اَلشَّهَادَةِ﴾ ددې په مقابله کښې هغه څیزونه دی چې د انسان په دغه بیان شوؤ حواسو سره ئې معلومول کیدې شی ،معنی ئې داده چې دالله ﷻ خاص صفت کمال دادې چې هغه ، هر غیب په داسې شان سره پیژنی څنګه چې حاضر او موجود پیژنی. س

﴿اَلْكَبِيْرُ﴾ معنی ده لوئې او د ﴿اَلْمُتَعَالِ﴾ پورته او بلند معنی ده ، ددې دواړو لفظونو نه مراد دادې چې الله ﷻ دمخلوقاتو د صفتونو نه پورته ، بلند او لوئې دې. کفارو او مشرکانو به د الله ﷻ دپاره په اجمالی طور د لویئ او پورته والی اقرار کولو خو د کم عقلئ په وجه به ئې د هغه صفتونه د عامو بنیادمو په صفتونو باندې قیاس کول اوداسې صفتونه به ئې ددهٔ دپاره ثابتول چې د هغه دشان نه ډیر لرې دی لکه یهودو او عیسایانو د الله ﷻ دپاره خوئې ثابت کړو ، چا د الله ﷻ دپاره د بنیادمو پشان جسم او اندامونه ثابت کړل ، چا د الله ﷻ دپاره اړخ او طرف ثابت کړو ، قرآن عظیم الشان ددې بیان شوؤ صفتونو نه د الله ﷻ د پاکئ ښکاره کولو دپاره بیا بیا فرمائیلی دی چې ﴿سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يَصِفُوْنَ﴾ [الله ﷻ د هغې صفتونو نه پاك دې چې داخلق ئې ددهٔ دپاره بیانوی]

ړومبئ جمله کښې ﴿عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ﴾ داشان دویم آیت مبارك ﴿اَللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ كُلُّ اُنْثٰى﴾ کښې د الله ﷻ د کمال علمی بیان وو ، پدې دویمه جمله ﴿الْكَبِيْرُ الْمُتَعَالِ﴾ کښې دکمال قدرت او عظمت ذکر دې چې ددهٔ طاقت اوقدرت د انسانی تصوراتو نه زیات پورته دې ، دې پسې آیت مبارك کښې هم دغه کمال علمی ، او کمال قدرت په یوخاص انداز کښې داسې بیان کړې شوې دې:

﴿سَوَآءٌ مِّنْكُمْ مَّنْ اَسَرَّ الْقَوْلَ وَمَنْ جَهَرَ بِهٖ وَمَنْ هُوَ مُسْتَخْفٍ بِالَّيْلِ وَسَارِبٌۢ بِالنَّهَارِ﴾ [ په تاسو کښې که څوك په مزه خبره کوی او که په ښکاره ټول هغه ته برابر دی او هغه څوك ورته هم یو شان معلوم دی که د شپې [په تیاره کښې ] پټ شی اوکه د ورځې [ښکاره] ګرځی راګرځی] دلته ﴿اَسَرَّ﴾ د ﴿اسرار﴾ مصدر نه جوړ دې چې معنی ئې پټه خبره ده او د جهر معنی ښکاره خبره ده. کومه خبره چې یو انسان بل چاته د آورولو دپاره کوی هغې ته جهر وئیلې شی او چې خپل

ځان ته ئې د آوږولو دپاره کوی هغه ته سر وئيلې شي . د ﴿مُسۡتَخۡفٍ﴾ معنى پټيدونکې ده ، ﴿وَسَارِبٌ﴾ په آزادئ او بې فکرئ سره د لار تلونکي معنى ورکوی .

اوس د ټول آيت مبارك معنى دا شوه چې د الله ﷻ علم داسې دې چې دهر څيز نه چاپيره کيدونکې دې په دې وجه دهغه په نزد پټه خبره کوونکې او په زوره خبره کوونکې دواړه يو شان دی ، هغه دواړه قسمه خبرې په يو شان سره آورى او په هغې پوهيږی . دغه شان څوك چې د شپې په تيارې کښې پټ وی او بل په رڼرا ورځ ، په لار ، روان وی ، دا دواړه دهغه دعلم او قدرت په اعتبار سره داسې برابر دی چې هغه ته د دواړو دننه او بهرنی حالات ټول يوشان معلوم دی او په دواړو باندې د هغه قدرت په يو شان پرې راچاپيره دې ، هيڅوك دهغه د قدرت دلاس نه بهر نه دې ، ددې زيات بيان دې پسې آيت مبارك کښې داسې دې :

﴿لَهٗ مُعَقِّبٰتٌ مِّنۡۢ بَيۡنِ يَدَيۡهِ وَمِنۡ خَلۡفِهٖ يَحۡفَظُوۡنَهٗ مِنۡ اَمۡرِ اللّٰهِ﴾ [ هريو دپاره نمبر په نمبر راتلونکې [فرښتې] مقرر دی وړاندې هم او روستو هم هغوی دالله ﷻ په حکم دهغه حفاظت کوی]

﴿مُعَقِّبٰتٌ﴾ د ﴿معقبة﴾ جمع ده . دا داسې ډلې ته وئيلې شي چې بلې ډلې پسې متصل راشي .

﴿مِنۡۢ بَيۡنِ يَدَيۡهِ﴾ لفظى معنى دا ورکوی چې د دواړو لاسونو په مينځ کښې وی . او مراد ترې هغه اړخ دې چې د انسان مخې ته وی ،

﴿وَمِنۡ خَلۡفِهٖ﴾ شاته اړخ ته، ﴿اَمۡرِ اللّٰهِ﴾ دلته ﴿مِنۡ﴾ صرف د سببيت د باء معنى ورکوی ، يعنى ﴿بأمر الله﴾ په امرد الله ﷻ سره ، په ځينې قرآتونو کښې دا لفظ ﴿بأمر الله﴾ هم منقول دې [روح][1]

د آيت مبارك معنى داشوه چې څوك که خپله خبره پټوی يا ښکاره کول غواړی داشان خپل تګ راتګ دشپې دتيرولو په ذريعه پټ لرل غواړی يا په ډاګه په سړك باندې ګرځى راګرځى ، دې ټولو انسانانو دپاره د الله ﷻ د اړخه د فرښتو ډلې مقررې دی چې وړاندې روستو چاپيره وی ، او د هغوئ خدمتونه او ډيوټئ بدليږی رابدليږی ، او پرله پسې يوبل پسې راځى ، د هغوئ په ذمه داکار لګولې شوې دې چې د الله ﷻ په حکم د انسانانو حفاظت کوی .

د صحيح بخاری په يو حديث شريف کښې منقول دی چې دفرښتو دوه ډلې دحفاظت دپاره مقررې دی،يوه دشپې دپاره اوبله د ورځې دپاره اودا دواړه ډلې دصبا او د مازيګرپه مونځونو کښې جمع کيږی، دصبا دمونځ نه پس دشپې حفاظت کوونکې فرښتې رخصت شی اود ورځې حفاظت کوونکې فرښتې داکار سنبالوی ، دا دمازيګر دمونځ نه پس رخصت شی اودشپې والا فرښتې په ډيوټئ اودريږی.[2]

د ابی داؤد په يوحديث مبارك کښې راغلی دی چې د علی المرتضى ﷺ په روايت منقول دی چې هر انسان سره څه حفاظت کوونکې فرښتې مقررې دی چې د هغه حفاظت داشان کوی چې چرته ديوال پرې راپريوته نه څى . چرته په کنده يا غار کښې ګذار نشى څوك انسان ياځناور ورته تکليف اونه رسوی،البته کله چې دالله ﷻ حکم جاری شی چې يو انسان دې په څه تکليف

---

[1]) روح المعانی تحت هذه الآية [ج:۹ص:۲۱٤]

[2]) صحيح البخاری کتاب بدء الخلق ،باب ذکر الملائکة [ج:۱ص:٤٥٥]

يا مصيبت كښې راګير شي نو حفاظت كوونكې دغه ځائې نه وروسته شي .[روح المعاني].([1])
د ابن جرير رحمه الله په يو حديث كښې دي چې د عثمان غنى رضي الله عنه په روايت منقول دې د هغې نه دا هم معلوميږي چې ددې حفاظت كوونكو فرښتو كار يوازې دا نه دې چې دنيوى مصيبتونو او تكليفونو نه ئې ساتى ، بلكه د ګناه نه د ساتلو كوشش ئې هم كوى . د انسان په زړه كښې د نيكئ او د الله ﷻ د ويرې جذبه رابيداروى چې دهغې په وجه هغه د ګناه نه بچ شي . او كه بيا هم هغه د فرښتو د الهام څه پروا نه كوى او په ګناه كښې اخته شى نو هغوئ د هٔ د پاره دعا او دا كوشش كوى چې په زر توبه كولو سره دې ، د ګناه نه پاك شي بيا كه په هيڅ شان هغه رابيداره نشي نو بيا د هغه په عمل نامه كښې د ګناه دغه كار اوليكى .([2])
خلاصه دا ده چې دا حفاظت كوونكې فرښتې ددين دنيا دواړو دمصيبتونو او آفتونو دانسان حفاظت دهغه په اويښه و اوده كښې كوى ، كعب احبار رحمه الله فرمائيلى دى چې كه د انسان نه د الله ﷻ د حفاظت دغه پهره لرې كړې شي نوپيريان به د دهٔ ژوند ګډوډ كړى ، ليكن دا حفاظتي پهره تر هغې وخته پورې خپل كار كوى ترڅو چې الله ﷻ ته منظور وى ، او كله چې الله ﷻ يو بنده په څه مصيبت كښې مبتلا كول اوغواړى نو بيا هغه پهره لرې شى ، دا بيان په راروان آيت مبارك كښې داسې كيږى چې :

﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ حَتَّىٰ يُغَيِّرُوا مَا بِأَنفُسِهِمْ ۗ وَإِذَا أَرَادَ اللَّهُ بِقَوْمٍ سُوءًا فَلَا مَرَدَّ لَهُ ۚ وَمَا لَهُم مِّن دُونِهِ مِن وَالٍ ۝﴾

يعنى بيشكه الله ﷻ ديو قوم [امن] ا ود خير خيريت حالت په آفت او مصيبت كښې تر هغې پورې نه بدلوى ترڅو پورې چې دغه قوم پخپله خپل عملونه او حالتونه په خرابئ او فساد كښې بدل نكړې او هركله چې خپل حالت په سركشئ او نافرمانئ كولو سره بدلوى نو الله ﷻ هم خپل طرز بدل كړى، اودا خبره ښكاره ده چې كله الله ﷻ د چا بد اوغواړى او عذاب ورته وركوى نو بل هيڅوك يې د ايسارولو توان نشى لرلې ، او نه څوك د پروردګار دحكم په مقابله كښې د هغه مدد ته رارسيدلې شى.
حاصل ئې دادې چې د الله ﷻ د طرفنه د انسانانو د حفاظت دپاره د فرښتو پهره لګيدلې وى، ليكن كله چې يو قوم د الله ﷻ د نعمتونو شكر او دهغه فرمانبردارى كول پريږدى ، بد عملى بد كردارى او سركشى كول اختيار كړى نو الله ﷻ هم ، خپله حفاظتى پهره پورته كړى بيا د الله ﷻ قهر اوعذاب په هغوئ راشى چې ترې نه د ځان ساتلو هيڅ صورت نشى كيدې.
ددې تشريح نه معلومه شوه چې په دغه آيت مبارك كښې د حالاتو دبدلولو نه مراد دادې چې كله قوم ، فرمانبردارى او شكر ګذارى پريږدى او په خپلو حالاتو كښې خرابه تبديلى پيدا كړى نو الله ﷻ هم دخپل رحمت او حفاظت طرز بدل كړى.
ددې آيت مبارك دا مطلب بيانول چې په يو قوم كښې ښه بدلون تر هغې نشى راتلې تر څو چې هغې دپاره دغه قوم خپل حالات درست نه كړى ، او په دې باره كښې مشهور شعر دا هم پيش كولې شى چې :

خدا نے آج تک اس قوم کی حالت نہیں بدلی — نہ ہو جس کو خیال آپ اپنی حالت بدلنے کا

---

[1]) روح المعانى تحت هذه الآية [ج:۹ص:۲۱۵]

[2]) تفسير الطبرى رقم الحديث:[۲۰۲۱۱]

داخبره اګر چې تر څه حده پورې صحیح ده خو ددې آیت مبارك مطلب دا نه دې بلکه ددې د صحیح کیدو صورت د یوعام قانون تر مخه داسې جوړ ې دې شی چې څوك پخپله دخپلو حالاتو صحیح کولو اراده نه کوی . د الله ﷻ د طرفنه دمدد وعده نشته ، بلکه دا وعده په هغه حالت کښې ده کله چې څوك پخپله هـ دصحیحوالی راوستو فکر اوکړی . لکه په یو آیت مبارك کښې فرمائی چې:

﴿وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا﴾ [ یعنی د الله ﷻ د طرفنه د هدایت لارې هغه چاته بیرته کولې شی چې پخپله هم د هدایت په لټون کښې وی ] خو دالله ﷻ انعامات ددې قانون پابند نه دی ، ولې چې اکثر ددې نه بغیر هم ورکولې شی :

دادِ حق را قابلیت شرط نیست　　بلکه شرط قابلیت داد هست(۱)

لکه خپل وجود ته اوګوری چې په دې کښې ایخودی بې شمیره نعمتونه د الله ﷻ نه خو زمونږ د کوششونو نتیجه ده ،نه ددۀ دپاره مونږ څړې دعا غوښتې وه چې مونږ ته داسې وجود راکړې چې د هغې سترګې ،پوزه ، غوږونه او ټول قوتونه او اندامونه درست دی ، دا ټول نعمتونه بې غوښتول راکړې شوی دی :

مابنودیم وتقاضائے مانبود　　لطف تو ناګفتۀ ما مي شنود(۲)

البته د انعاماتو حقدار ګرځیدل اود انعاماتو وعده د انسان په کوشش پورې اړه لری ، بې د سعی او عمل نه د انعاماتو حاصلولو په انتظار کښې پاتې کیدل ځان تیرویستل[دهوکه کول] دی .

﴿هُوَ الَّذِي يُرِيكُمُ الْبَرْقَ خَوْفًا وَطَمَعًا وَيُنْشِئُ السَّحَابَ الثِّقَالَ﴾[ یعنی یو ازې الله ﷻ تاسو ته بریښنا ښکاره کوی چې ویره ترې اوشی چې هسې نه تندر ترې جوړ شی او زمونږ ټول هر څه خاوړې کړی او طمع ترې هم کیدې شی چې د بریښنا کیدو نه پس راباندې باران راؤوریږی چې مونږه ، مالونه ، څاروی، فصلونه او باغونه موپرې خړوب شی.چې د ژوند جوړیدو ذریعې دی او یوازې دا ذات دې چې ډیرې درنې وریځې په مون سون جوړولو سره د سمندر څخه راپورته کوی اوبیا دغه د اوبو څخه ډکې درنې وریځې په فضا کښې ډیر په تیزئی سره د یو ځائې څخه بل ځائې ته بوځی او دخپل قدرت مطابق چرته چې اوغواړی هلته ترې باران وروی.

﴿وَيُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ مِنْ خِيفَتِهِ﴾[ اورعد [ګرګوړ] سره د تعریف نه د هغه پاکی بیانوی او فرښتې هم دهغه د ویرې نه رپیږی]

عرف کښې رعد د وریځې د ګرزیدو آواز ته وئیلې شی چې د وریځو تر مینځه د ټکر خوړلو نه پیدا کیږی ، ددې دتسبیح لوستلو نه مراد هم هغه تسبیح ده چې د الله ﷻ په یوبل آیت مبارك کښې ئې داسې بیان راغلې دې

---

۱) ترجمه: دالله تعالی جل شانه د ورکړې دپاره قابلیت شرط نه دې بلکه د الله جل شانه ورکړه د انسان دقابلیت دپاره شرط ده.

۲) ترجمه: نه مونږوو اونه زمونږ تقاضا وه ، تا پخپله مهربانئ سره هغه څه اوکړل چې څه مونږ نه وو وئیلي.

په زمکه او آسمانونو کښې داسې هيڅ يو څيز نشته چې د الله ﷻ تسبيح نه کوی خو دغه تسبيح عام خلق نشی آوريدلې.

او د حديث پاك په ځينو روايتونو کښې راغلی دی چې رعد د هغه فرښتې نوم دې چې د باران په ورولو باندې مقرر کړې شوېده.(۱) نو پدې لحاظ سره د فرښتې تسبيح وئيل خو زيات ځرګند دی.

﴿وَيُرْسِلُ الصَّوَاعِقَ فَيُصِيبُ بِهَا مَنْ يَشَآءُ﴾[ اوهغه تندرونه راليږی نو چې په چا غواړی په هغه ئې غورزوی]

صواعق د صاعقه جمع دې ، معنی ئې تندر ده ، د آيت مبارك مطلب دا شو چې الله ﷻ دا تندرونه زمکې ته ليږی چا لره چې اوغواړی هغه پرې سوزوی او بيخ ئې اوباسی.

﴿وَهُمْ يُجَادِلُونَ فِي اللّٰهِ ۚ وَهُوَ شَدِيدُ الْمِحَالِ ﴿١٣﴾﴾[ او ته ګوره چې دوئ دالله ﷻ په وحدانيت کښې جګړې کوی حال دا دې چې هغه دلوئې طاقت خاوند دې]

لفظ د محال دميم په زير سره د حيلې او تدبير په معنی راځی ، داشان دعقاب او عذاب معنی هم ورکوی او د قدرت په معنی هم راځی.

د آيت مبارك معنی دا شوه چې دا خلق د الله ﷻ د توحيد په معامله کښې په جنګ کولو کښې اخته دی سره ددې چې الله ﷻ ډير مضبوط انتظام کوونکې دې د چا په مخکښې چې هيڅ دهوکه نشی چليدې.

قُلْ مَنْ رَّبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ قُلِ اللّٰهُ ۭ قُلْ اَفَاتَّخَذْتُمْ

اووايه| څوك دې| رب د آسمانونو | او د زمکې | ورته اووايه چې الله دې | اووايه | آيا نواونيول تاسو

[اې نبی ﷺ تپوس ترې اوکړه | چې دآسمانونو اود زمکې رب څوک دې| ته ورته اووايه چې صرف الله دې |ورته

مِّنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَاۗءَ لَا يَمْلِكُوْنَ لِاَنْفُسِهِمْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا ۭ

بې دالله نه | حمايتيان | چې اختيار نهٔ لری | د پاره د خانونو خپلو| د نفعې | او نهٔ د نقصان

اووايه آيا تاسو دهغهٔ نه سوا نور دوستان نيولی دی|چې هغوئ دخپل ځان دپاره دنفعې اوضرر اختيار هم نهٔ لری

قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ ڏ اَمْ هَلْ تَسْتَوِي الظُّلُمٰتُ

ورته اووايه | آيا برابريدې شی | ړوند | او ليدونکې | يا آيا | برابر دی | تيارې

ورته اووايه چې آيا ړوند او د سترګو خاوند چرې برابر کيدې شی | يا تيارهٔ او رڼړا

وَالنُّوْرُ ڬ اَمْ جَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَكَاۗءَ خَلَقُوْا كَخَلْقِهٖ

او رڼړا| يا | جوړکړی دی دوئ|الله د پاره| شريکان |چې پيدا کړی دی هغوئ|پشان دپيدا کولو د الله

برابر کيدې شی| اوکه دوئ الله دپاره داسې شريکان جوړکړی دی | چې دالله د پيدا کولو په شان پيدا کول ئې کړی دی

(۱) السنن الکبری للبيهقی باب ماجاء فی الرعد[ج:۳ص:۳۶۳]

| فَتَشَابَهَ | الْخَلْقُ | عَلَيْهِمْ ط | قُلِ | اللّٰهُ | خَالِقُ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو په دې وجه شکمن شو | پيداوښت | په دوئ باندې | ورته اووايه | چې صرف الله | پيدا کونکې |
| نو په دې په دوئ باندې پيدائش گډوډ شو[چې خپل خالق نهٔ پيژني] اووايه چې الله د هر څيز خالق دې | | | | | |

| كُلِّ شَيْءٍ | وَّهُوَ | الْوَاحِدُ | الْقَهَّارُ۝ | اَنْزَلَ | مِنَ السَّمَآءِ | مَآءً |
|---|---|---|---|---|---|---|
| د هر څيز دې | او هغهٔ | يودې | په ټولو غالب دې | الله نازلې کړې | د آسمان نه | اوبه(۱) |
| اوهغهٔ يودې او په ټولو غالب دې ......هغهٔ پورته نه اوبه راوروی | | | | | | |

(۱) **دَ حق پاتې کيدل او باطل ختميدل:-** دَ حق او باطل دَ فرق، دَ حق دَ باقي پاتې کيدو او دَ باطل دَ ختميدو دوه مثالونه بيان فرمائيلوسره چه الله تعالى دَ وريځونه باران راوروی او چينو دريابونو ولو لختو په ذريعه دَ باران اوبه بهيږی. په چا کښې زياتې چا کښې کمې څوك لوئ خوك ورې. دا مثال دې دَزړونو اودَ هغوی دَ تفاوت څوك آسمانی علم ډير زيات اخلی څوك کم بيا دَ اوبو په دې مخ زګ تيريږی بو مثال خو دا شو دوئم مثال دَ سرو زرو سپينو زرو اوسپنې تانبې دې چه دا په اُورکښې ګرمولې شی. سره او سپين زر دَ کالو او اوسپنه او تانبه دَ لوښو وغيره دَ پاره، په دې کښې هم زګ وی. نو لکه څنګه چه دَدې دواړو څيزونو زګ ختميږې دغه شان باطل چه کله په حق باندې راخوريږی اخرختميږی او حق ترې بهر راوځی لکه څنګه چه اوبه خوټکولو سره صفا کيږی او لکه څنګه چه سره زر او سپين زر ګرمولې شی خيرې جدا کولې شی. اوس دَ سرو او سپينو زرو او اوبو وغيره نه خو خلق فائدې اوچتوی او په دې چه کوم خيرې او زګ راغلې وو دَ هغې نوم او نښه هم نه پاتې کيږی الله تعالى دَ خلقو دَ پوهه کولو دَ پاره څومره صفاصفا مثالونه بيانوی چه دوی سوچ اوکړی او پوهه شی لکه چه فرمائيلی دی مونږ دا مثالونه دَ خلقو په وړاندې بيانوو خو په دې باندې علماء ښه پوهيږی. (۲۹/العنکبوت:۴۳) دَ بعضې سلفو په پوهه کښې چه کله يو مثال نه راتلو نو هغوی به ژړل څکه چه په دې نه پوهيدل دَ علم نه خالی خلقو صفت وو. ابن عباس رضی الله عنه فرمائی په رومبی مثال کښې بيان دې دَ هغه خلقو دَ پاره دَ چا زړه چه په يقين سره دَ الله تعالى دَ علم حامل وی او بعضې زړونه هغه هم دی په کومو کښې چه شك باقی وی نودَ شك سره عمل بې فائدې دې يقين پوره فائده ورکوی ﴿زَبَدٌ﴾ نه مراد شك دې چه بې کاره څيز دې يقين دَ کار څيز دې کوم چه باقی پاتې کيدونکې لکه څنګه چه کالی په اُور کښې ګرمولې شی نو خيرې ترې سوزی او صفا څيز باقی پاتې کيږی دغه شان دَ الله تعالى په نيز يقين مقبول دې او شك مردود دې نو چه څنګه اوبه باقی پاتې شوې او دَ څکلو وغيره په کارکښې راځی او څنګه چه سره او سپين زر اصلی پاتې شو او دَ کالو وغيره په کار راځي او لکه څنګه چه تانبه او اوسپنه وغيره باقی پاتې شوه اودَ هغې نه سامانونه جوړيږی دغه شان نيك اعمال عمل کونکی ته فائده ورکوی او باقی پاتې کيږی. په هدايت او حق باندې څوك عمل کونکی پاتې شو هغوی ګټه مومی لکه څنګه چه دَ اوسپنې نه چاړه او توره وغيره بغير دَ ګرمولو نه نه جوړيږی دغه شان دَ شك رياکارئی او باطل عملونه دَ الله تعالى په نيز دَ کار نه شی جوړيدې. دَ قيامت په ورځ به باطل ضائع کيږی او اهل حق ته به حق ګټه ورکوی.

فَسَالَتْ　اَوْدِيَةٌۢ　بِقَدَرِهَا　فَاحْتَمَلَ　السَّيْلُ　زَبَدًا　رَّابِيًاؕ

نواوبهيدلې | لختى اونالى | مطابق د اندازې خپلې | نو راواخستو | دې سيلاب | زګ | په سر د اوبو

چې دهغې په اندازه خوړونه اوبهيدل | .........نوسيلاب د اوبو په سر باندې دا زګ راپورته کړو

وَمِمَّا　يُوْقِدُوْنَ　عَلَيْهِ　فِي النَّارِ　ابْتِغَاءَ　حِلْيَةٍ

او خينى دهغه څيزونو نه | چې بلوى اور دا خلق | په هغې باندې | په اوركښې | د پاره د جوړولو | دګالو

دګالو يا دلوښو جوړولو د پاره څه چې دوئ په اور كښې ګرموى | ............په هغې

اَوْ مَتَاعٍ　زَبَدٌ　مِّثْلُهٗؕ　كَذٰلِكَ　يَضْرِبُ اللّٰهُ　الْحَقَّ　وَالْبَاطِلَ۬ؕ

يا د نور سامان | زګ | پشان د هغې زګ | دا رنګې | بيانوى | الله | حق | او باطل

باندې هم دغسې زګونه راخيژى | ..........دغه شان الله ﷻ دحق او باطل مثالونه بيانوى

فَاَمَّا　الزَّبَدُ　فَيَذْهَبُ　جُفَآءًۚ　وَاَمَّا　مَا

نوهر چې دې | هغه زګ د اوبو | نو الوزى هغه | په وچيدو سره | او هر چې | هغه څيز دې

نوزګونه خو هسې بيكاره لاړ شى [ځكه چې څه وخت پس پخپله ختم شى] او كوم څيز چې خلقو ته

يَنْفَعُ　النَّاسَ　فَيَمْكُثُ　فِي الْاَرْضِؕ　كَذٰلِكَ　يَضْرِبُ　اللّٰهُ

چې فائده رسوى | خلقوته | نو پاتې كيږى هغه | په زمكه كښې | دا رنګې | بيانوى | الله

فائده وركوى | نو هغه په دنيا كښې باقى پاتې شى | .............الله ﷻ هم دغه شان

الْاَمْثَالَؕ

مثالونه |

مثالونه بيان فرمائى |

## آسان ترجمه قرآن

(اې پيغمبره! دې كافرانو ته) اوايه چه: هغه څوك دې چه د آسمان او زمكې پالنه كوي؟ ته اوايه چه هغه الله دې! ته اوايه چه: بيا هم تاسو ده لره پريښودې دې او داسې كارسازان مو جوړ كړى دى چه هغوى ته نه د فائدې رسولو څه اختيار شته او نه د نقصان لرې كولو؟ ته اوايه چه: آيا ړوند او ليدونكې برابر كيدې شى؟ يا آيا تياره او رڼا يو شان كيدې شى؟ يا دې خلقو د الله دپاره داسې شريكان جوړ كړى دى چه دوى يو څيز داسې پيدا كړې وي لكه څنګه چه الله تعالى پيدا كوې او ددې د وجې نه دوى ته د دواړو پيدائش يوشان معلوميږى؟ (كه څوك په دې غلط فهمۍ كښې مبتلاء وي نو هغه ته) اوايه چه صرف الله تعالى د هر يو څيز خالق دې، او هغه يواځې داسې دې چه د هغه قدرت په هر څه باندې دې. هم هغه د آسمان نه اوبه راورولى چه په هغې سره ناله د خپلې اندازې مطابق وبهيدلې. بيا د اوبو څپې اوچت شوې زګ لره اوچت كړو. او دا قسم زګ هغه وخت هم اوچتيږى چه كله خلق د ګالو يا د لوخو جوړولو دپاره دهاتونه په اور باندې ګرموي الله تعالى د حق او د باطل مثال دغسې بيانوي چه (د دواړه قسمه) چه كوم زګ وى، هغه بهر وغورزيږى او ضايع شي ليكن چه كوم څيزونه د خلقو دپاره فائده مند وي، هغه زمكه كښې پاتې شي داسې قسمه مثالونه دي چه الله تعالى ئې بيانوي.

**خلاصه تفسير:**

﴿قُلْ مَنْ رَّبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ﴾ ته [دوي ته داسې ] ووايه چه دآسمانونواوزمکې پروردګار [يعني ايجادکونکي اوباقي پاتي کونکي يعني خالق اوحافظ څوک دي ﴿قُلِ اللّٰهُ ۭ﴾[اوځنګه چه ددې جواب څو معلوم دي په دی وجه جراب هم ]ته ورکړه چه الله دي ﴿قُلْ اَفَاتَّخَذْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَاۗءَ لَا يَمْلِكُوْنَ لِاَنْفُسِهِمْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا ۭ﴾[بيا] ته ووايه چه آيا[دادليلونه دتوحيد اورئ ]بيا هم تاسودالله نه سوانورمددګاران [يعني معبودان] مقررکوئ کوم چه[دډيری ناچاری په وجه ]پخپله دځان دنفع او نقصان اختيارهم نلري [اوبيادشرك دباطليداواودتوحيددحق کيدونه پس دموحدينو او مشرکانو په منځ کښې پخپله دفرق دظاهرولولپاره ] ﴿قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ ڏ اَمْ هَلْ تَسْتَوِي الظُّلُمٰتُ وَالنُّوْرُ ڬ﴾ ته دا[هم] ووايه چه آياړونداوليدونکي برابريدي شی [دامثال دمشرك اوموحدشو] ياچيرته تياره اورڼابرابريدي شی [دامثال دشرك اود توحيد شو] ﴿اَمْ جَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَكَاۗءَ خَلَقُوْا كَخَلْقِهٖ فَتَشَابَهَ الْخَلْقُ عَلَيْهِمْ ۭ﴾ يادوي الله لره داسې شريکان مقررکريدی چه دوي هم [څه شی لره ]پيداکړي وی لکه چه الله تعالی [ددوي داقرارموافق هم ] پيداکوی بيا [ددي وجې نه ]دوي ته[ددواړوپيداکول يوشان معلوم شوي وی [اوپه دی سره ئی دليل نيولي وی چه هرکله دواړه يوشان خالقان دی نودواړه يوشان معبودان به هم وی ﴿قُلِ اللّٰهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ﴾په دي باره کښې هم ]ته ووايه چه خاص الله دهرشی خالق دي ﴿وَّهُوَ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ﴾اوهغه [پخپل ذات اوصفتونودکمال کښې ]يودي[اوپه ټولومخلوقاتو]غالب دي﴿اَنْزَلَ مِنَ السَّمَاۗءِ مَاۗءً فَسَالَتْ اَوْدِيَةٌۢ بِقَدَرِهَا فَاحْتَمَلَ السَّيْلُ زَبَدًا رَّابِيًا ۭ﴾ الله تعالی دآسمان نه اوبه نازلوی بيا [ددي اوبونه ]ناليځ [ډکی ] موافق دخپل مقدار رواني شی [يعني په وړه ناليځ کښې لږي اوپه غټه ناليځ کښې ډيري اوبه ] بيا دغه سيلاب [اوبه ]خيري خزلي وبيوی کوم چه ددي[ اوبو ]په سرروانی وی ﴿وَمِمَّا يُوْقِدُوْنَ عَلَيْهِ فِي النَّارِ ابْتِغَاۗءَ حِلْيَةٍ اَوْ مَتَاعٍ زَبَدٌ مِّثْلُهٗ ۭ﴾ [يوخيری خزلي يعني زګ خودادي ]اوکوم شيان چه په اورکښې [اړدی ] دکالوياسباب [لوخووغيره ]جوړولولپاره ئی ګرموی پدی کښې هم داسي خيري [زګ پورته] راشي [پس په دي دوه مثالونوکښې دوه څيزونه دی يودکارشي چه اصل اوبه اواصل مال دي اويوناکاره شي چه خړي خزلي اوخيري دي ﴿كَذٰلِكَ يَضْرِبُ اللّٰهُ الْحَقَّ وَالْبَاطِلَ ڛ﴾ غرض] الله تعالی دحق [يعني توحيد ايمان وغيره ] او د باطل [کفر شرك وغيره ]دغسي مثالونه بيانوی [چه په راتلونکي مضمون سره ئی تکميل کيدي شی]﴿ فَاَمَّا الزَّبَدُ فَيَذْهَبُ جُفَاۗءً ۚ وَاَمَّا مَا يَنْفَعُ النَّاسَ فَيَمْكُثُ فِي الْاَرْضِ ۭ﴾پس[په دي دواړو ذکرشوومثالونوکښې ] کوم چه خيري زګ وو هغه غورزولي شی اوکوم چه خلقوته پکار رازی هغه په دنيا کښې دنفع رسولو سره ] باقی پاتي وی ﴿كَذٰلِكَ يَضْرِبُ اللّٰهُ الْاَمْثَالَ ڛ﴾ [ اولکه څنګه چه دحق اوباطل مثال بيان شو ] الله تعالی دغسي [په هريوضروری مضمون کښې مثالونه بيانوی ـ .

**معارف اومسائل**

د دواړو مثالونو حاصل دا شو چې څنګه خځلې ، خشاك او خيرې اصل څيز د پاسه د هغې حصه ښکاری خو نتيجه دهغې غورزول وی او اصل څيز په ځائې پاتې شی . دغه شان باطل هم اګر چې څو ورځو دپاره په حق باندې پورته او غالب ښکاری خو په آخر کښې باطل ورك او

لاندې مغلوب شي او حق په ځائې باندې ایسار پاتې شي ، [جلالین].(۱)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لِلَّذِيْنَ | اسْتَجَابُوْا | لِرَبِّهِمُ | الْحُسْنٰی ؕ | وَالَّذِيْنَ | |
| دپاره د هغه کسانو | چې قبول ئې کړ دعوت | د رب خپل | ده بدله نیکه | او هغه کسان | |
| چا چې دخپل رب خبره اومنله | هغوئ دپاره ښهٔ بدله مقرر ده | اوچا چې | | | |
| لَمْ يَسْتَجِيْبُوْا | لَهٗ | لَوْ اَنَّ لَهُمْ | مَّا | فِی الْاَرْضِ | جَمِيْعًا |
| چې قبول ئې نهٔ کړو دعوت | د هغهٔ | که چرې وی هغوئ لره | هغه څه | چې په زمکه کښې دی | ټول |
| د هغه خبره اونه منله | ..................که د دنیا ټول څیزونه د هغوی ملکیت شي | | | | |
| وَّمِثْلَهٗ | مَعَهٗ | لَافْتَدَوْا | بِهٖ ؕ | اُولٰٓئِكَ | لَهُمْ |
| اوبه مثل دهغې | دهغې سره | نوخامخا به فدیه کښې ورکړې | دغه ټول | داکسان چې دی | مقرردې د پاره د دوئ |
| اودومره قدرې ورسره نور هم شي | نو هغوئ به ئې په فدیه کښې ورکولو ته تیار شي | دهغوئ | | | |
| سُوْٓءُ | الْحِسَابِ ۙ۬ | وَمَاْوٰىهُمْ | جَهَنَّمُ ؕ | وَبِئْسَ | الْمِهَادُ ؑ۱۸ |
| سخت | حساب | او ځائې داستوګنې د دوئ | دوزخ دې | او ډیر بد ځائې دی | د آرام |
| حساب به ډیرسخت وی | اودهغوئ تیکانړه بهٔ دوزخ وی | اوهغه ډیر خراب ځائې دې | | | |
| اَفَمَنْ | يَّعْلَمُ | اَنَّمَآ | اُنْزِلَ | اِلَيْكَ | مِنْ رَّبِّكَ |
| آیانوهغه څوك | چې پوهیږی | چې بیشکه هغه کتاب | چې نازل کړې شوې دې | تاته | د طرفه درب ستانه |
| آیانو څوک چې دایقین ساتی | چې تا ته د خپل رب د طرفنه کوم[کتاب] نازل شوې دی | | | | |
| الْحَقُّ | كَمَنْ | هُوَ | اَعْمٰی ؕ | اِنَّمَا | يَتَذَكَّرُ |
| هغه حق دې | پشان دهغه چاکیدې شی | چې هغه | روندې | بیشکه خبره هم داده | چې نصیحت قبلوی |
| هغه حق دې | نودا کس د هغه چا په شان کیدیشی | څوک چې ړوند وی | نصیحت خو صرف دپوهې | | |
| اُولُوا الْاَلْبَابِ ۙ۱۹ | الَّذِيْنَ | يُوْفُوْنَ | بِعَهْدِ اللّٰهِ | وَلَا يَنْقُضُوْنَ | الْمِيْثَاقَ ۙ۲۰ |
| خاوندان دعقل | هغه کسان دی | چې پوره کوی | وعده دالله | اونهٔ ماتوی هغوئ | هغه پخه وعده |
| خاوندان قبلوی | څوک چې دالله ﷻ سره کړې وعده پوره کوی | اوهغوی وعده نهٔ ماتوی | | | |
| وَالَّذِيْنَ | يَصِلُوْنَ | مَآ | اَمَرَ اللّٰهُ | بِهٖٓ | اَنْ يُّوْصَلَ |
| اوهغه کسان دی | چې پیوست کوی | هغه څیز | چې حکم کړې دې الله | په هغې سره | چې پیوست دې کړې شی |
| اوڅوک چې هغه خپلولئ پالی | د کومو د پالنې چې الله ﷻ حکم کړې دې.................................. | | | | |
| وَيَخْشَوْنَ | رَبَّهُمْ | وَيَخَافُوْنَ | سُوْٓءَ | الْحِسَابِ ؕ۲۱ | وَالَّذِيْنَ | صَبَرُوْا |
| او ویریږی | د رب خپل نه | او ویره کوی | د سختئ | د حساب نه | او هغه کسان دی | چې صبر کوی |
| او دخپل رب نه ویریږی | اود حساب د سختئ نه ویریږی | اوڅوک چې د خپل رب د راضی کولو په تلاش کښې | | | | |

---

(۱) تفسير الجلالين تحت هذه الآية [ج:٤ص:٢٢٣]

| ابْتِغَآءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ |
|---|
| د پاره د طلب \| درضا \| درب خپل \| اوقائموي \| مونځ \| اوخرچ کوي \| څيني د هغې نه \| چې ورکړي دي مونږ هغوئ له |
| صبر کوي \| اوڅوک چې مونځونه کوي \| او زمونږ د ورکړي رزق نه [ د نيکئ په لار کښې ] |
| سِرًّا وَّعَلَانِيَةً وَّيَدْرَءُوْنَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ |
| په پټه \| او په ښکاره \| او دفع کوي \| په نيکئ سره \| بدي \| دا کسان چې دي \| دې د دوئ د پاره |
| په پټه اوپه ښکاره خرچ کوي \| اود نيکو په ذريعه بدئ ختموي \| هم دا هغه خلق دي \| کومو د پاره |
| عُقْبَى الدَّارِ ۝ |
| ښهٔ انجام \| دآخرت \| |
| چې د آخرت کور دي \| |

## آسان ترجمه قرآن

نيکي د هغه خلقو په حصه کښې ده چه هغوی دالله تعالی وينا منلې ده ، او کومو خلقو چه دالله تعالی وينا نه ده منلې که هغوی څخه د دنيا ټول څيزونه هم شي ، بلکه دومره نور هم ، نو دوی به (د قيامت په ورځ) د خپل ځان د بچ کولو دپاره دې هر څه ورکولو دپاره تيار شي. د دې خلقو په حصه کښې بد حساب دې ، او د دوی ځائ جهنم دې او هغه ډير بد ځائ دې او کوم کس چې دا يقين ساتي چې په تا څه نازل شوی دی دا حق دي نو دې د هغه چا پشان کيدې شي چې هغه بالکل روند وي؟ اوحقيقت دادې چې نصيحت هغه څوك قبلوي چې هغوی عقل لري. (يعنی) هغه خلق چې هغوی د الله سره کړي وعدې پوره کوي او وعدې نه ماتوي. او د کومو رشتو د ساتلو چه الله حکم کړې دي نو هغه پالی او د خپل رب نه ويريږي. او د بد حساب نه ويريږي او داهغه خلق دي چې دوی صبر کوي دپاره د رضا دالله او پابندي کوي د مونځ او خرچ کوي د هغه مال نه چې مونږ ورته ورکړې دي په پټه او ښکاره او د بد سلوك دفاع په ښه سلوك سره کوي په اصل وطن کښې د دوی دپاره ښه انجام دي.

## خلاصه تفسير

﴿لِلَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِرَبِّهِمُ الْحُسْنٰى﴾ کوموخلقوچه دخپل رب خبره ومنله [اوتوحيداوطاعت ئې اختيارکړو] د دوی دپاره ښه بدل دی[جنت مقرر]دي﴿وَالَّذِيْنَ لَمْ يَسْتَجِيْبُوْا لَهٗ لَوْ اَنَّ لَهُمْ مَّا فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا وَّمِثْلَهٗ مَعَهٗ لَافْتَدَوْا بِهٖ﴾ اوکوموخلقوچه دهغه خبره ونه منله [اوپه کفراونافرمانئ باندی پاتی شو]ددوي سره [دقيامت په ورځ ]که دټولي دنيا څيزونه موجود ]وی او[بلکه ] دی سره ددي په قدرنورهم [مال اودولت ]وی نوټول دخپل خلاصئ لپاره ورکړی ﴿اُولٰٓئِكَ لَهُمْ سُوْٓءُ الْحِسَابِ﴾ ددی خلقوبه سخت حساب وی [چه ورته بل آيات کښې حساب عسيروئيلې شوي دي]﴿وَمَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمِهَادُ﴾اوددوي ځای [هميشه لپاره] دوزخ دي اودغه ډير بدد اوسيدو ځاي دي﴿اَفَمَنْ يَّعْلَمُ اَنَّمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ الْحَقُّ كَمَنْ هُوَ اَعْمٰى﴾کوم سړي چه دا يقين لری چه څهٔ ستادرب له طرفه په تانازل شوي دي هغه ټول حق دی آياداسی سړي دهغه په شان کيدي شی کوم چه [ددی علم نه محض ړوند وی [يعنی کافراومومن سره برابرنه دی﴿اِنَّمَا يَتَذَكَّرُ اُولُوا الْاَلْبَابِ﴾ نصيحت

خوپوهه خلق قبلوی ﴿الَّذِينَ يُوفُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَلَا يَنقُضُونَ الْمِيثَاقَ﴾ او [دا [پوهه] خلق داسي دي چه الله تعالی سره ....ئی څه عهد کړي دي هغه پوره کوی او [دغه] عهدنه ماتوی ﴿ وَالَّذِينَ يَصِلُونَ مَا أَمَرَ اللَّهُ بِهِ أَن يُوصَلَ وَيَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ وَيَخَافُونَ سُوءَ الْحِسَابِ﴾ اودوي داسي دی چه الله تعالی دکوموحکمونودقائم ساتلوحکم کړي دي هغه قائم ساتی اودخپل رب نه ویریږی اودسخت عذاب نه ویره کوی [کوم چه به دکفاروسره خاص وی په دي وجه دکفر نه ځان ساتی] ﴿وَالَّذِينَ صَبَرُوا ابْتِغَاءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَأَنفَقُوا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً﴾ اودغه خلق داسي دی چه دخپل رب درضاحاصلولولپاره [په دین] محکم اوسی اودمانځه پابندي ساتی اوڅه چه مونږدوي ته رزق ورکړي وي دهغي نه په پټه هم اوپه ښکاره هم [څنګه چه موقع وی] خرچ کوی ﴿وَيَدْرَءُونَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ أُولَٰئِكَ لَهُمْ عُقْبَى الدَّارِ﴾ او [دخلقو د] بدو بدله [چه کوم دوي سره کوی] په ښه سلوك سره ورکوی [یعنی که څوك ورسره بدوکړی دوي ئی پرواه نه ساتي بلکه دهغي سره ښه سلوك کوی] په هغه جهان کښي [په آخرت کښي] انیك انجام ددغوخلقولپاره دي ﴿جَنَّاتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا وَمَن صَلَحَ مِنْ آبَائِهِمْ وَأَزْوَاجِهِمْ وَذُرِّيَّاتِهِمْ﴾ یعنی دهمیشه اوسیدوپه جنت کښي به دغه خلق هم داخل شی اوددوي په مور اوپلار اوبیبیانواواولاد کښي چه کوم [د جنت] لائق [مومنان] وی [اګرچه ددوي ددرجي نه وی] دغه به هم په جنت کښي ددوي په برکت سره ددوي په درجوکښي] داخل شی، ﴿وَالْمَلَائِكَةُ يَدْخُلُونَ عَلَيْهِم مِّن كُلِّ بَابٍ﴾ اوفرشتی به دوي ته د [هرطرفونو] دروازونه راځی ﴿سَلَامٌ عَلَيْكُم بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ﴾ [اودابه وائی] چه تاسو [دهرآفت اوخطري نه] صحیح سلامت اوسئ دهغي په برکت چه تاسو [په حق دین محکم پاتی وئ پس په دی جهان کښي ستاسوانجام ډیرښه دي .

## معارف اومسائل

تیرو شوؤ آیتونو کښي حق او باطل د مثالونو په ذریعه واضح کړي شوی وو ، اوس په دې آیت مبارك کښې د اهل حق او اهل باطل نخښې دهغوئ ښه او بدعملونه او دهغوئ جزا او سزا بیان شوې ده .

رومبی آیت مبارك کښې دهغي خلقو دپاره د ښې بدلې بیان دې کوم چې د خپل پروردګار حکمونه پوره کوی او د هغه تابعداری کوی او نافرمانه خلقو دپاره دسخت عذاب بیان دې .

دویم آیت مبارك کښي ددې دواړو مثال ړوند او بینا سره ورکړې شوې دې او په آخر کښې فرمائی چې: ﴿إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُولُو الْأَلْبَابِ﴾ [نصیحت خو صرف دپوهې خاوندان قبلوی] او دچا عقلونه چې غفلت او نافرمانئ بیکاره کړی دی هغوئ په دې دومره لوئې فرق باندې هم نه پوهیږی .

د دریم آیت مبارك نه ددې دواړو ډلو د خاص عملونو اونخښنو بیان شروع شوې دې ، رومبې د هغې خلقو صفتونه بیان شوی دی چې کوم چې د الله ﷻ حکمونه منی ،فرمائی چې :

﴿الَّذِينَ يُوفُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ﴾ [ څوک چې دالله ﷻ سره کړې وعده پوره کوی ] دې نه مراد ټول هغه لوظونه او وعدې دی کومې چې الله ﷻ دخپلو بندګانو نه اخستی دی ، د ټولو نه رومبې هغه لوظ قول دې چې په ازل کښې ئې د ټولو روحونو نه اخستې وولکه په یو بل ځائې کښې د قرآن عظیم الشان وینا ده چې :

﴿أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ﴾ [یعنی آیا زه ستاسو رب نه یم] ددې په جواب کښې ټولو په یوه خله سره داسې

اووئیل چې : ﴿بَلٰى﴾ [یعنی ولې نه] ته ضرور زمونږ رب یې . دغه شان د الله ﷻ د ټولو حکمونو منل د ټولو فرضونو اداکول، د ناروا څیزونو نه ځان ساتلو وصیت د الله ﷻ د طرفه او د بندګانو د طرفه ددې اقرار په مختلفو آیتونو کښې د قرآن عظیم الشان په مختلفو آیتونو کښې راغلې دې.

بل صفت : ﴿وَلَا يَنْقُضُوْنَ الْمِيْثَاقَ﴾ [ او هغوی وعده نه ماتوی] دې کښې هم هغه لوظ قول دا خل دې چې د بنده او د الله ﷻ ترمینځه وی چې بیان ئې اوس په رومبئ جمله کښې د عهد الله په الفاظو سره کړې شوېدې او هغه لوظ هم چې د امت خلق ئې خپل پیغمبر سره کوی او هغه معاهدې او لوظونه قولونه هم چې انسانان ئې خپل مینځ کښې کوی.

ابوداؤد په روایت د عوف بن مالک رضی الله عنه سره دا حدیث پاك نقل کړې دې چې نبی کریم ﷺ د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه په دې لوظ او بیعت واخستو چې الله ﷻ سره به چالره شریك نه ګرځوی ، پنځه واړه وخته مونځ په پابندئ سره ادا کوی او دخپلو امیرانو تابعداری به کوی او چا انسان نه به د څه څیز سوال نه کوی.

کوم خلق چې دغه لاس نیوی[بیعت] کښې شریك وو ، ددې لوظ په پابندئ کولو کښې د هغوئ حال دا وو چې آس باندې دسورلئ په وخت ئې دلاسه چابك پریوتو نوراکوز به شو پخپله ئې پورته کړو او بل چا نه به ئې ددې د راپورته کولو سوال نه کولو.[1]

دا د صحابه کرامو رضی الله عنهم نبی کریم ﷺ سره د مینې کولو او د نبی کریم ﷺ د تابعدارئ کولوجذبه وه، ګنې ښکاره خبره ده چې دداسې قسم سوال کولو نه منع نه وه د نبی کریم ﷺ د تابعدارئ دجذبې یو بل مثال اوګورئ چې یو ځل عبدالله بن مسعود رضی الله عنه مسجد ته داخل شو او وې لیدل چې نبی کریم ﷺ خطبه ورکوله ، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې کینه ، نو عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ددې په آوریدو سر سمدستی مسجد نه بهر کیناستو دهغې ځائې نه لړ شان هم اخوا نه شو. حالانکه پوهیدل چې بې ځایه کیناستل ترې مراد نه دی ، دا صرف د تابعدارئ د جذبې لاندې یې اوکړل چې د دوئ رضی الله عنهم په طبیعت کښې اغړلې شوې وو.[2]

د الله ﷻ د تابعدارو او فرمانبردارو دریم صفت دا خودلې شوې دې چې : ﴿وَالَّذِيْنَ يَصِلُوْنَ مَآ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖٓ اَنْ يُّوْصَلَ﴾ [ اوڅوک چې هغه خپلولئ پالی دکومو دپالنې چې الله ﷻ حکم کړې دې] ددې مشهور تفسیر خو دادې چې د خپلوئ دتعلقاتو قائم لرلو او دهغې په تقاضو باندې دعمل کولو حکم چې الله ﷻ ورکړې دې . هغې لره دا خلق قائم لری . د ځینې مفسرینو حضراتو په نزد ددې نه مراد دادې چې په نبی کریم ﷺ اوپه قرآن عظیم الشان باندې د ایمان لرلو سره په پخوانو پیغمبرانو علیهم السلام او دهغوئ په کتابونو باندې ایمان راوړل یو ځائې کوی.

څلورم صفت ئې داسې بیانیږی چې : ﴿وَيَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ﴾ [ او دخپل رب نه ویریږی] دلته د خوف په ځائې دخشیة لفظ په استعمالولو کښې دې طرفته اشاره ده چې د الله ﷻ نه ویریدل داسې نه

---

[1]) سنن ابوداود، کتاب الزکوة، باب کراهیة المسألة [ج:۱ص:۲۳۲]

[2]) دا قسمه ډیر روایتونه بنده ته ملاؤ شوی دی چې دهغې تعلق حضرت عبدالله بن رواحه رضی الله عنه سره دې.مجمع الزوائد رقم الحدیث[۱۵۷۵۱] ، باب فی عبدالله بن رواحة رضی الله عنه ، وکنزل العمال رقم الحدیث [۳۷۱۷۰].

دی څنګه چې یو څیروونکی څناور یا موذی انسان نه طبعا کیدې شی، بلکه د لوینې او محبت په وجه ترې ویره کوی چې هسې نه زمونږ څه عمل یا خبره الله ﷻ ته ناخوښه نه شی، څکه چې کله دتعریف کولو په څائې کښې د خوف او ویرې دبیانولو ذکر هلته عموما د خشیت لفظ استعمالیږی، په دې وجه په راتلونکې جمله کښې د خوف لفظ استعمال شوې دې، ولې چې دغلته د حساب دسختئ ویره بیان کړې شوې ده لکه فرمائی چې:

﴿وَيَخَافُونَ سُوٓءَ الْحِسَابِ﴾ [ اود حساب د سختئ نه ویریږی] د خراب حساب مطلب په حساب کښې سختی کول او د ذرې ذرې حساب اخستل دی، عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمائیلی دی چې انسان یوائې د الله ﷻ په رحمت سره خلاصې بیا موندې شی کله چې سرسری حساب ترې اخستې شی او د هغه په غلطو باندې پښه راښکلې شی او معافی ورته اوکړې شی، ورنه چا سره چې د ذرې ذرې حساب راشی نو د عذاب نه ئې خلاصیدل نشی کیدې. ولې چې داسې هیڅ انسان نشته چې هغه نه به څه ګناه اوخطا چرې هم نه وی شوی، نو د حساب د سختئ نه ویریدل دنیکانو او تابعدارو خلقو پنځم صفت شو.

شپږم صفت ئې دا بیان شوې دې چې: ﴿وَالَّذِينَ صَبَرُوا ابْتِغَآءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ﴾ [ اوخوک چې خالص دخپل رب د راضی کولو دپاره صبر کوی] په اردو یا پښتو ژبه کښې چې دصبر کوم مطلب اخستې شی دهغې نه په عربئ ژبه کښې دصبر معنی ډیره عامه ده. ولې چې په اردو اوپښتو ژبه کښې د صبر مطلب دا اخستې شی چې د مصیبت اوسختئ تکلیف په وخت کښې خپل ځان قابو او ساتی او په عربئ کښې دصبر مطلب دادې چې د طبیعت نه پخلاف څیزونو راپیښیدو سره پریشانه نشی بلکه پخپل کار کولو او چلولو باندې کلك ولاړ وی. څکه ددې دوه قسمه شو. یو صبر علی الطاعة یعنی د الله ﷻ په حکمونو منلو کښې کلك پاتې کیدل او بل صبر عن المعصیة یعنی ګناهونو نه په ځان ساتلو باندې کلك پاتې کیدل.

هرکله چې صبر سره ئې د ﴿ابْتِغَآءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ﴾ قید اولګولو نودې نه معلومه شوه چې صرف صبر کول د څه بهترئ څیز نه دې څکه چې کله خو بې صبره انسان هم څه موده پس په مجبورئ سره صبر کول شروع کړی چې په اختیار سره ئې نه وی بلکه بهتری دهغه صبر وی چې په اختیار سره دمصیبت اوتکلیف راپیښیدو په اول سر کښې اوشی. څنګه چې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې ﴿الصبر عند الصدمة الاولی﴾[1] یعنی اصل او معتبر صبر یوازې هغه دې چې د مصیبت او غم راپیښیدو په اول سر کښې اوکړې شی. ګنی بیا خو کله ناکله انسان په صبر کولو سره مجبوره شی.بنا په دې د تعریف جوګه هغه صبر وی چې په اختیار سره خلاف طبع څیز اوزغملې شی، خواه فرض واجب ادا کول وی یا دحرامو او مکروهاتو نه ځان ساتل وی. په دې وجه که څوك دبل چا مکان ته د غلا کولو په اراده ورننوځی هلته په غلا کولو ئې وس او نه رسی صبر پرې اوکړی او بهر راوځی. نو دا اختیاری صبر د تعریف کولو او د ثواب موندلو جوګه نه دې، ثواب به ئې هله موندې شی چې د ګناه نه د ځان ساتلو د ویرې په وجه د الله ﷻ د رضا حاصلولو دپاره وی.

---

[1] صحیح البخاری کتاب الجنائز ،باب الصبر عند الصدمة الأولى [ج:۱ص:۱۷٤]

اووم صفت دادی چې: ﴿وَأَقَامُوا الصَّلَوٰةَ﴾ د مونځ قائمولو مطلب دادې چې ټولو آدابو شرطونو او په عاجزئ سره ادا کړې شي ، صرف مونځ کول ترې مراد نه دی ځکه چې قرآن عظیم الشان کښې عموما د مونځ کولو حکم د مونځ قائمولو په الفاظو سره ورکړې شوېدې.

اتم صفت: ﴿وَأَنفَقُوا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً﴾ [ اوزمونږ د ورکړې رزق نه [ دنیکئ په لار کښې مال خرچ کوي پټ او ښکاره ] دې سره دې خبرې ته اشاره ده چې تاسو نه د زکوة وغیره غوښتنه الله ﷻ کوي ، هغه تاسو نه غوښتل نه دی بلکه دخپل ورکړې مال څه لږه حصه تاسو نه غواړي هغه هم صرف دوه نیم فی صده ډیر کم مقدار کښې ستاسو څخه غوښتلې شی چې دهغې په ورکولو کښې هیڅ قسم خبرې نه دې کول پکار.

د الله ﷻ په لار کښې مال خرچ کولو سره د ﴿سِرًّا وَعَلَانِيَةً﴾ قید لګول دا ښائی چې هر قسم صدقه او خیرات په پټه ورکول مسنون نه دی بلکه څینې وختونو کښې ددې په ښکاره ورکولو کښې هم هیڅ څه بدیت نشته ، بنا په دې علماء کرام فرمائی چې زکوة او واجب خیراتونه په ښکاره ادا کول پکار دی ، په پټه ئې ورکول مناسب نه دی ، ولې چې نور ته هم ددې خودونه کول اوشوق پیدا کول پکار دی. البته نفلی خیراتونه په پټه ورکول زیات غوره دی ، او په کومو احادیثو کښې چې په پټه د ادا کولو غور والې راغلې دې هغه دنفلی صدقاتو متعلق دی.

نهم صفت :: ﴿وَيَدْرَءُونَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ﴾ [ یعنی دا خلق بدی په ښیګړې سره دښمنی په دوستئ سره ، ظلم په معافئ سره اوچشم پوشئ سره دفع کوي. دبدو جواب په بدو سره نه ورکوی ، او څینې حضراتو ددې مطلب دابیان کړې دې چې ګناه لره په نیکئ سره داسې تمبوی چې د خطا ، ګناه کولو نه پس ، نیکی او فرمانبرداری په پوره انتظام سره ښه ډیره ډیره کوی چې په هغې سره یې کړې غلطئ او ګناهونه بالکل د مخې لرې شی یو حدیث پاک کښې راغلی دی چې نبی کریم ﷺ معاذ ؓ ته وصیت اوفرمائیلوچې دبدئ نه پس چې نیکی اوکړې نو بدی به دې ختمه شی.([1])

مطلب دا شو چې کله په ګناه باندې پښیمانه کیدو سره توبه اوکړې شی او ورپسې نیک عمل اوکړې شی نو هله به دغه نیک عمل دهغه کړې ګناهونه بالکل ختم کړی که پښیمانی او توبه نه وی نو د ګناه نه پس نیک عمل کولو سره د ګناه نه معاف کیدل نشی کیدې.

د الله ﷻ د تابعدارئ دنهو صفتونو بیانولو نه پس دهغوئ بدله داسې بیانوی چې: ﴿أُولَٰئِكَ لَهُمْ عُقْبَى الدَّارِ﴾ [ هم دا هغه خلق دی کومو دپاره چې د آخرت کور دې ] څینې حضراتو فرمائیلی دی چې د دار نه مراد دار دنیا دې ، مطلب دا شو چې د لته په دنیا کښې اګر چې څه وخت دپاره نیکانو خلقو ته تکلیفونه او غمونه راپیښیږی مګر په دنیا کښې هم دهغوئ انجام د کامیابئ او خلاصی وی.

دې پسې د عقبی الدار یعنی د دار آخرت دکامیابئ بیان دی چې جنات عدن به وی په کومو کښې به چې دغه نیکان داخلیږی. د عدن لفظی معنی پاتې کیدل او ایساریدل دی ،

---

[1]) المعجم الکبیر للطبرانی رقم الحدیث [۱۶۷۱۷]

مطلب ئي داشو چې دغې جنتونو نه به دوئ لره هيڅکله نشي اوبشکلې بلکه تل تر تله به دوئ په کښې پاتې کيږي اوسيږي به. او ځينې حضراتو فرمائيلي دي چې عدن د جنت د مينځ نوم دې چې د جنت په مقاماتو کښې هم يو اعلى مقام دې.

ددې نيکانو يو بل انعام دابيان شوې دې چې دغه خدائې انعام به يوازې هم دوئ لره نه وي بلکه د دوئ پلرونو ،نيکونو ، بيبيانو او اولاد ته بۀ ئې هم ترې حصه ورکولې شي خو شرط دادې چې هغوئ هم نيکان وي چې ادنى درجه ئې مسلمان کيدل دي ، مطلب ئې دا شو چې د هغوئ نيك عمل اګر چې ددغې درجاتو حاصلولو جوګه نه وو بيا هم ددغې مقبولو بندګانو په خاطر او برکت به هغوئ ته هم دغه درجات حاصل شي.

دې پسې په دار آخرت کښې د دوئ د خلاصی او کاميابئ نور زيات بيان داسې دې چې فرښتې به په هرې دروازه د داخليدو په موقع دوئ ته سلام کوي او ورته به وائي چې ستاسو د صبر کولو په وجه درته دغې قسمه تکليفونو نه سلامتی ده چې دا د دار آخرت ښۀ ښکلې انجام دې.

جَنّٰتُ عَدۡنٍ يَّدۡخُلُوۡنَهَا وَمَنۡ

| چې جنتونه | د هميشوالی دی | چې دوئ به داخليږی هغې ته | او هغه څوك

| يعنی د هميشه اوسيدو باغونه دی | کومو ته چې به دوئ پخپله

صَلَحَ مِنۡ اٰبَآئِهِمۡ وَاَزۡوَاجِهِمۡ وَذُرِّيّٰتِهِمۡ وَالۡمَلٰٓئِكَةُ

چې صالحان وی | د پلارانو د هغوئ نه | او د ښځو د هغوئ نه | او د اولاد د هغوئ نه | او فرښتې

او د دوئ په پلار نيکه او ښځو او اولاد کښې چې څوک نيکان وی هغوی داخليږی | او فرشتې

يَدۡخُلُوۡنَ عَلَيۡهِمۡ مِّنۡ كُلِّ بَابٍ ۚ سَلٰمٌ عَلَيۡكُمۡ بِمَا

به ورداخليږی په هغوئ باندې | د هرې | دروازې نه | ورته به وائي چې سلام دې | په تاسو باندې | په سبب د هغې

به ورته د هرې يوې دروازې نه استقبال ته راځی | او ورته بۀ وائي چې سلامت اوسئ | خکه چې تاسو

صَبَرۡتُمۡ فَنِعۡمَ عُقۡبَى الدَّارِ ؕ وَالَّذِيۡنَ يَنۡقُضُوۡنَ عَهۡدَ اللّٰهِ

چې صبر اوکړو تاسو | نو څومره ښۀ دې | انجام د آخرت | او هغه کسان | چې ماتوی هغوئ | وعده د الله

به صبر کولو | نو په دې جهان کښې مو انجام ښۀ شو | او څوک چې د الله ﷻ سره کړې وعده

مِنۡۢ بَعۡدِ مِيۡثَاقِهٖ وَيَقۡطَعُوۡنَ مَاۤ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖۤ

روستو | د محکموالی د هغې نه | او پريکوی | هغه رابطې | چې حکم کړې دې الله | په هغې سره

د پخولو نه پس بيا ماتوی | او د کومې [رشتې] چې الله ﷻ د پالنې حکم ورکړې دې

اَنۡ يُّوۡصَلَ وَيُفۡسِدُوۡنَ فِى الۡاَرۡضِ ۙ اُولٰٓئِكَ لَهُمُ اللَّعۡنَةُ

چې يوځائې دې کړې شي | او فساد کوی | په زمکه کښې | داکسان چې دی | دې د دوئ د پاره | لعنت

هغه نه پالی | او په زمکه کښې فساد جوړوی | ................. په داسې خلقو لعنت وريږی

وَلَهُمْ سُوْٓءُ الدَّارِ ۝ اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ

او ده د دوئ دپاره سختي | د اخرت | الله | فراخه کوی | رزق | د پاره د هغه چا | چي غواړی هغهٔ

او ددې خلقو انجام خراب دې | ............ الله ﷻ چي چاته اوغواړی | نو روزی ورته فراخه ورکوی

وَيَقْدِرُ ؕ وَفَرِحُوْا بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ؕ وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا

او تنگوی هغهٔ | او خوشحاله دی داخلق | په ژوند د دنیا کنبي | حالانکه نه دی | ژوند د دنیا

او چاته چي اوغواړی نو [روزی ئي] تنگه کړی | اودوئ د دنیا په ژوند خوشحالیږی | اود دنیا ژوند

فِي الْاٰخِرَةِ اِلَّا مَتَاعٌ ۝ وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

په مقابله داخرت کنبي | مگر | لږ سامان دې | او وائی هغه کسان | چي انکار ئي اوکړو د رسالت نه

د اخرت په مقابله کنبي لږ سامان دې | ............ اوکافران وائی

لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ قُلْ اِنَّ اللّٰهَ يُضِلُّ

ولې نازله نهٔ شوه | په دهٔ باندې | څه نښه | دطرفه درب خپل نه | ورته اووایه | بیشکه الله | بې لارې کوی

چي ولې دهٔ ته د خپل رب د طرفنه زمونږ [ غوښتلې ] معجزه رانغله ؟ | ورته اووایه الله ﷻ دچا په

مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ اَنَابَ ۝

هغه څوک | چي غواړی هغهٔ | او لار ښائی | په طرف خپل | هغه چا ته | چي رجوع اوکړی الله ته

حق کنبي چي اوغواړی | نو گمراه ئي کړی | اوهغه چاته سمه لار ښائی | چي رجوع ورته اوکړی

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَتَطْمَئِنُّ قُلُوْبُهُمْ بِذِكْرِ اللّٰهِ ؕ اَلَا

هغه کسان | چي ایمان ئي راوړو | اومطمین کیږی | زړونه د هغوئ | په ذکر د الله سره | واورئ

یعنی څوک چي ایمان راوړی | ............ او د الله ﷻ په ذکر مطمئن شی | ............ واوره !

بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ ۝ اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا

چي په ذکر دالله سره | مطمئین کیږی | زړونه | هغه کسان | چي ایمان ئي راوړو | اوعمل ئي اوکړو

چي دالله ﷻ په ذکر سره د زړونو تسلی کیږی | ............ چا چي ایمان راوړو | اونیک

الصّٰلِحٰتِ طُوْبٰى لَهُمْ وَحُسْنُ مَاٰبٍ ۝ كَذٰلِكَ اَرْسَلْنٰكَ

نیک | خوشحالی دهٔ | هغوئ لره | او ښهٔ | انجام دی | دارنگې | اولیږلې مونږ ته

کارونه ئي اوکړل | هغوئ دپاره خوشحالی دهٔ | اوښائسته انجام دې | مونږ تهٔ په یو داسې امت کنبي

فِيْٓ اُمَّةٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهَآ اُمَمٌ لِّتَتْلُوَا

په یو داسې امت کنبي | چي تیرشوی دی | مخکنبي د هغې نه | ډیرقومونه | د پاره ددې چي تهٔ واوروې

رالیږلې یې | چي د دې نه وړاندې هم ډیر امتونه تیر شوی دی | ............ د دې دپاره چي تهٔ ورته هغه

عَلَيْهِمُ الَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ وَهُمْ يَكْفُرُوْنَ بِالرَّحْمٰنِ ؕ

هغوئ ته | هغه | چي وحی کړې دې مونږ | تاته | او حال دا چي دوئ | انکار کوی | دمهربانه الله نه

کتاب واوروې | اکوم چي مونږ تاته وحی کړې دهٔ | خو حال دا دې چي هغوئ د رحمان نه انکاری کوی

| قُلْ | هُوَ | رَبِّيْ | لَآ اِلٰهَ | اِلَّا هُوَ |
|---|---|---|---|---|
| دوئ ته اووایه | چي هم هغهٔ | رب زما دې | نشته دې لائق د عبادت | مګرهم هغهٔ دې |
| ورته اووایه چي هم هغهٔ زمارب دې | ............ | بې د هغهٔ نه بل څوک لائق د عبادت نشته | | |

| عَلَيْهِ | تَوَكَّلْتُ | وَاِلَيْهِ | مَتَابِ |
|---|---|---|---|
| هم په هغهٔ باندې | بهروسه اوکړه ما | اوهم هغهٔ ته | ورتلل دی زما |
| په هغهٔ مې توکل دې | اوهغهٔ ته به واپس کیږم | | |

## آسان ترجمه قرآن

یعنی د همیشه اوسیدو دپاره هغه باغونه چه هغې کښې به دوی خپله داخلیږی. او ددوئ پلاران، نیکونه بیبیانې او اولاد هم چه نیکان وی (اود دوی د استقبال دپاره) فرشتې به وي (چه دا به وائی) او داخلیږي به د هرې دروازې نه، چه تاسو (دنیا کښې) کوم صبر کړې وو، د هغې د وجې نه به اوس په تاسو سلامتیا او سلامتیا وي، او (ستاسو) په اصلی وطن کښې دا ستاسو بهترین انجام دې او (بل طرف ته) کوم خلق چه دالله سره شوي وعدې پس د مضبوطیا سره کولو نه ماتوي، او د کومو رشتو چه الله تعالیٰ د پاللو حکم کړې دې، هغه ماتوی، او زمکه کښې فساد خوروی، نو داسې خلقو په حصه کښې لعنت راځی، او اصلی وطن کښې بد انجام د دوی دې. الله تعالیٰ چه چا لره وغواړي، رزق کښې فراخي راولي، او (چه چا ته وغواړي) تنګي راولي او دا (کافران) د دنیا په ژوند مست دی، حال دا دې چه د آخرت په مقابله کښې د دنیا د ژوند حیثیت د معمولی ګوندې سامان نه زیات نه دې. او کومو خلقو چه کفر کړې دې، هغوی وائی چه په ده (محمد صلی الله علیه وسلم) باندې دخپل پروردګار د طرف نه څه نښه ولې نه ده راغلې؟ ته اووایه چه: الله چه چا لره وغواړي ګمراه کوي، او خپلې لارې ته هغه څوک راولي چه ده طرف ته رجوع کوي، دا هغه خلق دي چه دوی ایمان راوړې دې، او چه د دوی زړه دالله په ذکر باندې اطمینان حاصلوي یاد ساتئ چه دالله تعالیٰ ذکر داسې څیز دې چه دې سره زړونو ته اطمینان حاصلیږی. (مقصد) کومو خلقو چه ایمان راوړې دې او کومو خلقو چه نیک عمل ئې کړې دې، د هغوی په حصه کښې خوشحالی هم ده او بهترین انجام هم (اې پیغمبره! څنګه چه نور رسولان لیږلې شوې وو) هم دغه شان مونږ ته په یو داسې امت کښې رسول لیږلې ئې چه د هغې نه مخکښې ډیر امتونه تیرشوی دی چه ته د هغوی مخکښې هغه کتاب لوستلو سره واورَوې کوم چه مونږ د وحی په ذریعه په تا باندې نازل کړې دې او دا خلق د هغه ذات ناشکری کوی کوم چه په ټولو باندې مهربان دې. اووایه چه! هغه زما پالونکې دې د هغه نه سوا څوک هم دعبادت لائق نشته، هم په هغه باندې ما ځان سپارلې دې اوهم د هغه طرف ته به ځه واپس کیږم.

### خلاصه تفسیر

﴿وَالَّذِيْنَ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مِيْثَاقِهٖ﴾ اوڅوک چه د الله تعالی معاهدي پس دپخولونه ماتوي ﴿وَيَقْطَعُوْنَ مَآ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖٓ اَنْ يُّوْصَلَ﴾ او الله تعالی چه دکوموتعلقاتودقائم ساتلوحکم کړی دی هغه پری کوی ﴿وَيُفْسِدُوْنَ فِي الْاَرْضِ﴾ اوپه دنیا کښی فسادکوي ﴿اُولٰٓئِكَ لَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ سُوْۤءُ الدَّارِ﴾ په داسي خلقوباندی به لعنت وي اوددوی لپاره به په دی دنیاکښی به خرابي وي.

﴿اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ﴾ [په ظاهري دولت اودمالداره كيدوئى دوكه كيدل ندى پكارچه گوندي په دي خلقورحمت دى خكه چه درزق خوداكيفيت دى چه ] الله تعالى چاته چه غواړي زيات رزق وركوي[ اوچاته چه غواړي]تنگوي ئى [دادرحمت اوغضب معيارندى ] ﴿وَفَرِحُوْا بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾اودا[كفار]په دنيوي ژوند[اوددى په عيش اوعشرت ]خوشحاليږي او[ددوى داخوشحالي بلكل غلطى اوفضول ده خكه چه] ﴿وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا فِي الْاٰخِرَةِ اِلَّا مَتَاعٌ﴾ ددنياژوند[اوددى عيش اوعشرت]دآخرت په مقابله كښى بغيرديولږسامان نه نورهيڅ نشته.

﴿وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ﴾ اوداكافرخلق[ستاپه نبوت دبدو وئيلواوداعتراض كولودپاره داسي]وائى چه په ده[پيغمبر]څه معجزه[خمونږدفرمائشي معجزونه] دده درب له طرفه ولى نازله نه شوه ؟ ﴿قُلْ اِنَّ اللّٰهَ يُضِلُّ مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ اَنَابَ﴾ ته ووايه چه بيشكه [ستاسوددى بى خايه فرمايشونونه داسي ښكاره معلوميږي چه] الله تعالى چاته چه غواړي گمراه كوي[يعني دمعلوميدووجه ښكاره ده چه سره دكافى معجزوچه په دوى كښى دټولونه لويه معجزه قرآن دى بياهم فضولى خبري كوي ددي نه معلوميږي چه په قسمت كښى ئى گمراهي ليكلي ده].

او[لكه څنگه چه دي عنادكروته قرآن چه دلويومعجزونه دى دهدايت لپاره كافي نه شو او گمراهي ددوى نصيب شوه دغسى] ﴿اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَتَطْمَئِنُّ قُلُوْبُهُمْ بِذِكْرِ اللّٰهِ﴾كوم سړئ چه دهغه طرف ته متوجه كيږي[اوحقه لاره لټوي چه مصداق ئى مخكى راخي : ﴿اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَتَطْمَئِنُّ﴾ الخ: دوى خپل طرف ته[درسيدو]هدايت كوي[اوگمراهئ نه ئى ساتي]مرادتري هغه خلق دي كوم چه ايمان راوړي﴿اَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ﴾ اودالله تعالى په ذكرسره[چه فردكامل پكښى قرآن دى]ددوى زړونوته اطمينان راخي [چه فردكامل ئى ايمان دى،يعنى دوى دقرآن معجزه دنبوت لپاره كافى گڼړي اوبى فائدى فرمائشونه نكوي ،بيادالله تعالى په يادواطاعت كښى ددوى داسي رغبت وي چه دكفاروپه شان ئى ددنيا سره رغبت اومينه اوخوشحالى ...نه وي او] ښه پوهه شئ چه دالله تعالى دذكر[داسى خاصيت دى چه په دى]سره زړه ته اطمينان راخى [چه دكومى مرتبى ذكروي ددغي مرتبى اطمينان وي څنكه چه په قرآن سره ايمان اوپه نيكو عملونو سره دطاعت سخته توجه اوتعلق دالله تعالى سره حاصليږي غرض].

﴿اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ طُوْبٰى لَهُمْ وَحُسْنُ مَاٰبٍ﴾كوم خلق چه ايمان راوړي اونيك عملونه كوي [چه كوم پورته ذكر شو]ددوى لپاره[په دنياكښى]خوشحالي ده او[په آخرت كښى]نيك انجام دى[چه دايه بل آيات كښى :فَلَنُحْيِيَنَّهٗ حَيٰوةً طَيِّبَةً ۚ وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ اَجْرَهُمْ الخ:سره تعبير كړيدى.

﴿كَذٰلِكَ اَرْسَلْنٰكَ فِيْٓ اُمَّةٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهَآ اُمَمٌ﴾ دغه شان ]مونږه ته په يوداسي امت كښى رسول جوړكړى ليږلى ئى چه ددي[امت]نه مخكى ډيرامتونه تيرشويدي﴿لِّتَتْلُوَا۟ عَلَيْهِمُ الَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ﴾ [اوته موخكه رسول جوړكړى دوى ته وليږلى]چه دوى ته هغه كتاب واوروي كوم چه مونږتاته دوحي په ذريعه درليږلى دى ]او[دوى ته پكاروه چه ددى لوى نعمت قدرئى كړى وئ اوپه دي كتاب چه معجزه هم ده ايمان ئى پري راوړى وى مگر] ﴿وَهُمْ يَكْفُرُوْنَ بِالرَّحْمٰنِ﴾دغه خلق دداسي لوى رحمت والاناشكري كوي [اوپه قرآن ايمان نه راوړم ] ﴿قُلْ هُوَ رَبِّيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ مَتَابِ﴾ ته ووايه چه [ستاسو په ايمان نه راوړلو څماڅه ضررنشته ،خكه چه تاسويه زيات نه زيات خمامخالفت كوئ ،نوپه دي سره خماخكه ويره نشته چه ]هغه خماپالونكى

[اوساتونکی دی] دهغه نه غیر څوك دعبادت لائق نشته پس خامخا هغه دکاملو صفتونو مالك دی اودحفاظت لپاره به کافي وي نوځکه ]ماپه هغه بروسه کړی ده اوهغه ته څما بیرته ورګرځیدل دي [خلاصه داچه څما دحفاظت لپاره خوالله تعالی کافی دی تاسی که مخالفت کوئ ماته هیڅ ضررنشئ رسولی البته تاسوته نقصان دی].

## معارف او مسائل

د رکوع په شروع کښې ټول انسانان دوه قسمه ګرځولي شوی وو یو قسم په کښې د الله ﷻ تابعدار بندګان د ی او څه په کښې نافرمانه خلق دی ، بیا د تابعدارو بندګانو څه صفات او نخښې بیان شوی دی او په آخرت کښې دوئ دپاره د زیاتې غورې جزا بیان راغلي دي .اوس د دویم قسم خلقو صفتونه او سزاګانې اونخښې په دې آیتونو کښې بیانیږی . نو ددغه سرتیزه او نافرمانه خلقو یو خصلت داسې بیانوی چې : ﴿وَالَّذِيْنَ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مِيْثَاقِهٖ﴾[ اوڅوك چې د الله ﷻ سره کړې وعده د پخولو نه پس بیاماتوی] د الله پدې لوظ کښې د اولې ورځې هغه لوظ هم داخل دی چې ټولو روحونه نه د الله ﷻ په وحدانیت او دهغه په رب والي اخستې شوې وو. خو کافرانو دنیا ته د راتلو نه پس دغه لوظ مات کړو او الله ﷻ سره ئې په سوؤنو او زرګونو معبودان جوړ کړل .

دې کښې هغه ټول لوظونه هم داخل دی چې د ﴿لااله الاالله﴾ په ترڅ کښې د هغې پوره کول په انسان باندې لازمیږی . ولې چې کلمه طیبهٔ ﴿لا اله الا الله محمد رسول الله﴾ په اصل کښې د یوې ډیرې لوئې لوظنامې شرط دې چې د الله ﷻ او دهغه د رسول کریم ﷺ د طرفنه د ټولو حکمونو پابندی کول او دهغوئ د منع کړو څیزونو نه ځان ساتل ټول په دغې لوظنامه کښې داخل دی .په دې بناڅوك چې دالله ﷻ اودهغه درسول ﷺ دحکم نه مخ اړوی نودغه ایمانی لوظنامه ماتوی .

دنافرمانه بندګانو دویم خصلت دا خودلې شوې دې : ﴿وَيَقْطَعُوْنَ مَآ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖٓ اَنْ يُّوْصَلَ﴾[ اود کومې [رشتې] چې الله ﷻ دپالنې حکم ورکړې دې] دلته هغه تعلق پریکول شامل دی چې کوم د الله ﷻ او د رسول ﷺ سره ئې قائم لرل لازمی وی ، ددغې تعلقاتو پریکول هم دادی چې د هغوئ د احکامو خلاف ورزی اوشی او درشته داریٔ هغه تعلقات ه په دې کښې شامل دی چې دهغې دحقونو ادا کولو او دهغې دقائم لرلو هدایت ځائې په ځائې قرآن عظیم الشان کړې دې . د الله ﷻ نافرمانی کوؤنکی خلق دغه حقونه او تعلقات هم ماتوی . لکه دوئ د مور پلار ، رونړو ، خویندو ، ګواندیانو او د نورو تعلقدارو هغه حقونه نه ادا کوی کوم چې الله ﷻ او رسول ﷺ په دوئ لازم کړی دی .

دا دریم خصلت ئې دا خودلې شوې دې چې : ﴿وَيُفْسِدُوْنَ فِي الْاَرْضِ﴾[ اوپه زمکه کښې فساد جوړوی] او دریم صفت په حقیقت کښې د ړومبو دوؤ خصلتونو نتیجه ده ، ولې چې څوك د الله ﷻ او دهغه د رسول ﷺ د حقوقو او وعدو پوره کولو پروا نه کوی ، نو دنورو خلقو د حقوقو تعلقاتو به څه پروا لری ؟ښکاره خبره ده چې دداسې خلقو عملونه او کارونه د نورو خلقو د نقصان سبب جوړیږی . د جنګ میدان به تود وی چې هم دا د زمکې د ټولو نه لوئې فساد دې .

دسرتیزه اونافرمانو خلقو ددې درې خصلتونو بیانولونه پس ددوئ د سزا بیان داسې کیږی چې:

﴿أُولَٰئِكَ لَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ سُوءُ الدَّارِ﴾ [او په داسې خلقو لعنت وريږي او ددې خلقو انجام خراب دې]
دلعنت معنی د الله ﷻ د رحمت نه لرې کيدل اومحرومه کيدل دی ، او ښکاره خبره ده چې د الله ﷻ درحمت نه لرې کيدل دټولو عذابونو نه لوئې عذاب او د ټولو مصيبتونو نه لوئې مصيبت دې .

## حکمونه او هدايانونه

دې آيتونو کښې دانسانی ژوند د مختلفو طرفونو په باره کښې خاص خاص احکام او هدايات راغلی دی څينې په کښې په ښکاره او څينې په اشارو سره راغلی لکه فرمائی چې:

① ﴿الَّذِينَ يُوفُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَلَا يَنْقُضُونَ الْمِيثَاقَ﴾ دې نه ثابته شوه چې چا سره دکړې وعدې قول پابندی کول فرض او دهغې خلاف ورزی کول حرام دی ، خواه دغه لوظ ، قول ئې الله ﷻ سره کړې وی ، لکه د ايمان لوظ ، قول شو يا نور مخلوق سره ئې کړی وی ،نو دهغې ماتول په هر شان سره حرام دی خواه دغه مخلوق مسلمان يا کافر وی .

② ﴿وَالَّذِينَ يَصِلُونَ مَا أَمَرَ اللَّهُ بِهِ أَنْ يُوصَلَ﴾ دې نه معلومه شوه چې د اسلام تعليم دا نه دې چې د راهبانو په شان هر مخلوق سره تعلقات پريخودې شی ، بلکه ضروری تعلقات قائم لرل او ددوئ حقونه د ادا کول ضروری ګرځولې شوی دی .دې ته شاکول اوپه نفلی عبادت يا څه دينی خدمت کښې مشغولتيا هم جائز نه دی ، په نورو کارونو کښې مشغوليدل اوددې هيرول به څنګه روا شی ؟

د خپلوئ او رشته دارئ دتعلقاتو قائم لرلو ددې د جزا اخستو او ددې د حقونو دا کولو تاکيد د قرآن عظيم الشان په بې شميره آيتونو کښې بيان شوې دې .

دبخاری شريف اومسلم په يو حديث پاک کښې راغلی دی چې دانس ﷺ نه روايت دې چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې :

څوک چې د رزق فراخی او په کارونو کښې برکت غواړی نو پکار دی چې خپلوی پالی .[1]

دخپلوئ پاللو معنی هم داده چې د هغې خلقو سره دخپل وس په جوړ لاس امداد کوی چا سرهٔ چې د خپلوئ خصوصی تعلقات وی .

ابو ايوب انصاری ﷺ فرمائيلی دی چې يو بانډيچی د نبی کريم ﷺ کور مبارک ته راغلو او سوال ئې اوکړو چې ماته هغه عمل اوښائې چې کوم مالره جنت ته نزدې او جهنم نه لرې کوی . هغوئ ورته اوفرمائيل چې د الله ﷻ عبادت کوئ او هغه سره هيڅوک شريک مه جوړوئ ، مونځ قائموئ ، زکوة ادا کوئ ، او خپلوی پالئ .[بغوی][2]

صحيح بخاری کښې دعبدالله بن عمر ﷺ نه روايت دې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې خپلوی پالل يوازې دې ته نه وائی چې ديوبل عزيز د احسان او ښيګړې بدله ورکړې شی . که هغه درسره ښيګړې کړې وی ، ته ورسره هله ښيګړه کوه ، بلکه اصل خپلوی پالل دادی چې

---

[1] ) صحيح البخاری كتاب الأدب ،باب من بسط له فی الرزق [ج:۲ص:۸۸۵] و صحيح مسلم كتاب البر والصلة باب صلة الرحم إلخ [ج:۲ص:۳۱۵]
[2] ) تفسير البغوی تحت هذه الأية [ج:۵ص:۳۱۲]

ستاسو خپل خپلوان او عزيزان ستاسو په حقونو ادا كولو كښې كوتاهى كوى تاسو سره تعلق نه ساتى نو تاسو بيا هم ورسره خالص دالله ﷻ د رضا دپاره هغوئ سره تعلق قائم لرئ ، او ښيګړې ورسره كوئى .([1])

دخپلوانو دحقونو ادا كولو او دهغوئ سره د تعلقاتو قائم لرلو په خيال نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې خپلې نسب نامې محفوظې لرئ چې دهغې په ذريعه ستاسوخپلوئ محفوظې پاتې شى او تاسو دهغې حقونه ادا كړې شئ بيا ئې ارشاد اوفرمائيلو چې د خپلوئ پاللو فائدې دادې چې دې سره خپل مينځ كښې محبت پيدا كيږى ، په مال كښې بركت او زياتوالئ راځى ، په عمر كښې ورسره بركت پيدا كيږى .[بحواله د ترمذى ].([2])

د صحيح مسلم په حديث پاك كښې راغلى دى چې نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې په لوئې شان خپلوى پالل دادى چې يوانسان دخپل پلار د وفات نه پس دهغه دوستانو سره هغه تعلقات قائم لرى كوم يې چې پلار قائم لرل غوښتل .([3])

③ ﴿وَالَّذِينَ صَبَرُوا ابْتِغَاءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ﴾ نه معلومه شوه چې د صبر كوم فضيلتونه قرآن عظيم الشان او حديث مباركو كښې راغلى دى چې د صبر كوؤنكو الله ﷻ ملګرې دې ، د الله ﷻ امداد او مرسته ورته حاصله وى ، بې حسابه اجر و ثواب به ورته ملاويږى . خو دا هر څه به هله حاصليږى چې د الله ﷻ درضا دپاره ئې صبر اختيار كړې وى ، ورنه هسې خو هر څوك څه وخت دپاره صبر كوى.

دصبر اصلى معنى داده چې خپل نفس په قابو كښې اوساتلې شى او مستقل مزاج پاتې شى ، ددې مختلف صورتونه دى .

① يو خو په مصيبت او تكليف باندې داسې صبر كول دى چې ويره او نااميدى ئې نه وى . په الله ﷻ نظر لرى او دهغه نه اميد ساتى .

② بل قسم په عبادت باندې په دې شان صبر كول دى چې د الله ﷻ د حكمونو پابند وى اګر چې ورته ګران ښكارى خو بيا هم په دغې پابندئ كولو باندې كلك پاتې كيږى.

③ دريم قسم دګناه او دبدو خبرو نه صبر كول ، اګر چې د نفس ماتې[ميلان] او تقاضا ئې بدئ طرفته راكاږى ليكن د الله ﷻ د ويرې نه د هغې خواته هم نه ورزى .

④ ﴿وَأَنفَقُوا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً﴾ دې نه معلومه شوه چې د الله ﷻ په لار كښې په پټه او په ښكاره دواړو طريقو سره خرچ كول درست دى ، البته غوره خبره داده چې واجب صدقې ، زكوة ، صدقة الفطر وغيره په ښكاره ادا كوى ، چې د نورو مسلمانانو هم ددې د ادا كولو شوق پيدا شى ، او كومې صدقې او خيراتونه چې واجب نه بلكه نفل وى هغه دې په پټه ادا كوى چې د ريا كارئ او نمائش شبهې نه خلاص شى.

⑤ ﴿وَيَدْرَءُونَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ﴾ دې نه معلومه شوه چې هر ناخوښه څيز پخپل طبيعت عقل او خواهش سره په شا تمبولو لره شريعت په دې شان نه خوښوى چې د بدئ جواب هم په بدئ

---

[1] ) صحيح البخارى كتاب الأدب، باب ليس الواصل بالكمافى[ج:۲ص:۸۸٦]
[2] ) جامع الترمذى ، ابواب البر والصلة، باب ماجاء فى تعليم النسب [ج:۲ ص:۱۹]
[3] ) صحيح مسلم كتاب البر والصلة، باب فضل صلة اصدقاء الأدب [ج:۲ص:۳۱٤]

سره ورکړې شي بلکه اسلامي تعليم دادې چې بدي دې د نيکۍ اوبښيګړې په طريقه اوتمبولې شي. چا دربانديې ظلم کړې وي ته هغه سره انصاف اوکړه ، چا چې ستا دتعلق حق ادا نکړو ، ته دهغه حق ادا کوه ، دچا د غصې جواب په زغملو اوبرداشت سره ورکوه. دهغې لازمي نتيجه به دا وي چې دښمنان به دې هم دوستان شي ، او ورانکاري خلق به ستا مخې ته نيکان جوړ شي.

ددې جملې يو معنى دا هم کيدې شي چې د ګناه بدله په عبادت سره داسې ادا کوه چې ګناه چا نه اوشي او هغې نه سمدستي توبه اوکړي او دې پسې دې د الله ﷻ په عبادت کښې اخته شي. دې سره به ئې هغه کړې ګناه هم معاف شي.

ابوذر غفاري رضي الله عنه اوفرمائيل چې نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې کله تاسو نه څه ګناه اوشي نو دې پسې نيک عمل کوئ هغې سره به دغه ګناه ختميږي. [احمد رحمه الله په صحيح سند سره په حواله د تفسير مظهري] [1] ددغې نيک عمل شرط دا دې چې د کړې ګناه نه توبه اوکړي او نيک عمل اختيار کړي.

﴿جَنّٰتُ عَدْنٍ يَّدْخُلُوْنَهَا وَمَنْ صَلَحَ مِنْ اٰبَآىِٕهِمْ وَاَزْوَاجِهِمْ وَذُرِّيّٰتِهِمْ﴾ [ يعني د هميشه اوسيدو باغونه دي کومو ته چې به دوئ پخپله او د دوئ په پلار نيکه او ښځو اواولاد کښې چې څوک نيکان وي هغوي داخليږي] دې نه مراد دادې چې د الله ﷻ مقبولو او نيکو بندګانو ته پخپله هم په جنت کښې مقام ملاويږي. او دهغوئ په خاطر به ئې مور ، پلار ، ښځې او اولاد ته هم ،خو په شرط ددې چې داخلق صالحان يعني مؤمنان مسلمانان وي او کافران نه وي ، اګر چې په نيکو عملونو کښې خپل دغې بزرګ سره يوشان نه وي ، بيا به هم دغې خلقو لره الله ﷻ ددغه بزرګ دعمل په برکت سره دې خلقو لره هم هغه مقام ته اورسوي ، جنت کښې چې کوم ددې بزرګ مقام وي. په بل آيت مبارک کښې داسې راغلي دي چې : ﴿اَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ﴾ يعني د نيکوخلقو بال بچ به هم د دوئ ملګري کړو.

دې نه معلومه شوه چې بزرګانو سره د نسبي خپلوئ يا د دوستئ تعلق به هم په آخرت کښې فائده ورکوي ، خو ايمان دې دپاره شرط دې.

﴿سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ﴾ [ او ورته به وائي چې سلامت اوسئ څکه چې تاسو به صبر کولو نو په دې جهان کښې مو انجام ښه شو] دې نه معلومه شوه چې په آخرت کښې خلاصې او لوړ درجات موندل په دنيا کښې دصبر کولو نتيجه وي ، د الله ﷻ او د بندګانو په حقونو ادا کولو او د الله ﷻ د نافرمانونه په بچ کيدلو کښې په خپل ځان او نفس باندې زور اړدي.

﴿اُولٰٓىِٕكَ لَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ سُوْٓءُ الدَّارِ﴾ [ په داسې خلقو لعنت وريږي اوددې خلقوانجام خراب دې] څنګه چې په ړومبو آيتونو کښې د الله ﷻ د فرمانبردارو د اجزاء بيان شوې ده چې مقام به ئې جنت کښې وي ، فرښتې به ورته سلام کوي ، چې د جنت دا دائمي نعمتونه ټول ددې نتيجه وه چې تاسو به صبر کولو ، مستقل مزاج به پاتې کيدئ او فرمانبرداري به مو کوله ، دغه شان په دې آيت مبارک د نافرمانو او سرکشو خلقو دا خراب انجام خودلې شوې دې چې په دوئ به د

[1] تفسير المظهري[ج:۵ص:۲۳۲] و مسند احمد ، حديث ابي ذر الغفاري رقم الحديث [۲۰۵۱۲]

الله ﷻ لعنت وی ، دوئ به د الله ﷻ د رحمت نه لرې وی ، او دوئ دپاره د جهنم خائې مقرر دې . دې نه دا معلومه شوه چې لوظ ، قول ماتول خپلو او عزيزانو سره خپلوی او تعلق پريخودل د لعنت او جهنم سبب دی ، نعوذ بالله منه.

| | | |
|---|---|---|
| وَلَوْ | أَنَّ قُرْآنًا | |
| اوکه چرې | وې داسې قران | |
| اوکه يو قرآن داسې راغلې وې........ | | |

| سُيِّرَتْ | بِهِ | الْجِبَالُ | أَوْ قُطِّعَتْ | بِهِ | الْأَرْضُ | أَوْ كُلِّمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې روانيدلې شوې | په هغې سره | غرونه | ياشليدلې شوې | په هغې سره | زمكه | يا خبرې كولې شوې |
| چې په هغې غرونه اړولې شی \| ياپرې زمكه ټكرې ټكرې كيديشی \| يا د دې په ذريعه مړو خبرې | | | | | | |

| بِهِ | الْمَوْتَىٰ ؕ | بَلْ | لِلَّهِ | الْأَمْرُ | جَمِيعًا ؕ | أَفَلَمْ يَايْئَسِ | الَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| په هغې سره | مړو | بلكه | خاص الله لره دي | اختيار | ټول | آيا نو نااميده نه شو | هغه كسان |
| كولې [بيا به هم دوئ ايمان نۀ راوړو] \| بلكه ټول كارونه د الله په اختيار كښې دی \| اوس هم د مسلمانانو په دې | | | | | | | |

| آمَنُوا | أَنْ | لَّوْ يَشَاءُ | اللَّهُ | لَهَدَى | النَّاسَ جَمِيعًا ؕ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې ايمان ئې راوړې دې | چې | كه چرې غوښتلې | الله | نوخامخابه ئې هدايت كړې وې | خلقو \| ټولوته |
| خبره تسلی نۀ ده شوې \| كه الله ﷻ غوښتلې نو ټولو خلقو ته به ئې هدايت كړې وو | | | | | |

| وَلَا يَزَالُ | الَّذِينَ | كَفَرُوا | تُصِيبُهُمْ | بِمَا |
|---|---|---|---|---|
| او هميشه به وی | هغه كسان | چې كافران شوی دی | چې رسيږی به هغوئ ته | په سبب دهغې عمل |
| اودا كافران به هميشه په داسې حالت كښې وی \| چې د خپلو ګناهونو په وجه به پرې | | | | |

| صَنَعُوا | قَارِعَةٌ | أَوْ تَحُلُّ | قَرِيبًا | مِّن دَارِهِمْ | حَتَّىٰ | يَأْتِيَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې كړې وی هغوئ | ټكونكې عذاب | يابه نازليږی | نزدې | اكورونود هغوئ ته | ترهغې پورې | چې راشی |
| څه نه څه آفت راځی \| يا به د دوئ په خواوشا باندې راځی \| تر دې چې دالله ﷻ د وعدې پوره كيدو | | | | | | |

| وَعْدُ اللَّهِ ؕ | إِنَّ اللَّهَ | لَا يُخْلِفُ | الْمِيعَادَ ﴿٣١﴾ | وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ | بِرُسُلٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| وعده دالله | بيشكه الله | خلاف نۀ كوی | د وعدې نه | او خامخا ټوقې شوی دی | په رسولانو پورې |
| وخت راشی \| بيشكه الله ﷻ دخپلې وعدې نه خلاف نۀ كوی \| اوستا نه وړاندې هم په پيغمبرانو | | | | | |

| مِّن قَبْلِكَ | فَأَمْلَيْتُ | لِلَّذِينَ | كَفَرُوا | ثُمَّ | أَخَذْتُهُمْ ۖ |
|---|---|---|---|---|---|
| مخكښې ستانه | نومهلت وركړو ما | هغه كسانوته | چې انكار ئې اوكړو | بيا | ما اونيول هغوئ |
| پورې ټوقې شوې وې \| خو ما [اول] كافرانو ته مهلت وركړو \| بيا مې راونيول | | | | | |

| فَكَيْفَ كَانَ | عِقَابِ ﴿٣٢﴾ | أَفَمَنْ | هُوَ | قَائِمٌ | عَلَىٰ كُلِّ نَفْسٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو څرنګې وو | عذاب زما | آيا نو هغه ذات | چې هغۀ | نظر ساتونكې دې | په هر نفس باندې |
| نو [اوګوره] زما عذاب څومره سخت وو \| نو كوم الله ﷻ چې د هر سړی د ټولو عملونو نګران دې | | | | | |

بِمَا كَسَبَتْ ۚ وَجَعَلُوا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ ۗ قُلْ

په هغه عمل | چې کوی ئې هغه نفس | او جوړ کړی دی خلقو | الله د پاره | شریکان | ورته اووایه

[دهغه بتانو په شان کیدیشی؟!] | او دوئ د [داسې] الله ﷻ شریکان جوړ کړی دی | ورته اووایه

سَمُّوهُمْ ۗ أَمْ تُنَبِّئُونَهُ بِمَا لَا يَعْلَمُ

چې واخلئ نومونه د هغوئ | یا | خبر ورکوئ تاسو الله ته | په هغه څیز | چې معلوم نۀ دې هغۀ ته

چې د هغوئ صفتونه خو لږ واورئ | آیا تاسو الله ﷻ ته د داسې بتانو [د خدائې] خبر ورکوئ | چې

فِي الْأَرْضِ أَمْ بِظَاهِرٍ مِّنَ الْقَوْلِ ۗ بَلْ زُيِّنَ

په زمکه کښې | یا | [خبر ورکوئ] په سرسری خبرو [د خلې] | بلکه ښائسته ښکاره کړې شوی دی

په ټوله دنیا کښې د هغۀ په علم کښې نشته [که نا هغوئ تش په خله [ستاسو معبودان] دی] بلکه کومو خلقو

لِلَّذِينَ كَفَرُوا مَكْرُهُمْ وَصُدُّوا

د پاره د هغه خلقو | چې دحق منلو نه ئې انکار کړې دې | مکرونه خپل | او منع کړې شوی دی

چې کفر کړې دې | هغوی ته دهغوی حق نۀ منل ښائسته کړې شوې دی | او هغوئ د لارې

عَنِ السَّبِيلِ ۗ وَمَن يُضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ ۝

د نیغې لارې نه | او هغه څوك چې گمراهه کړی هغۀ لره الله | نو نشته | هغۀ د پاره | څوك لار ښودونکې

[دهدایت] نه منع کړې شوې دی | او چا لره چې الله ﷻ گمراه کړی | هغۀ بل څوک په لاره کولې نشی

## آسان ترجمه قرآن

او که قرآن کریم داسې هم نازل شوې وې چې په هغې باندې غرونه د خپل ځائې نه خوزیدلې وې، یاد هغې په ذریعه زمکه شلولې شوې وې (او په هغې کښې دریابونه راوتلې وې) او یا د هغې په نتیجه کښې د مړو سره خبرې کړې شوې وې. (نو بیا هم دې خلقو ایمان نه راوړلو) حقیقت خو دا دې چې ټول اختیار د الله پاک دې. آیا بیا هم ایمان والو دې سوچ کولو سره خپل ذهن نه دې فارغ کړې چې که الله پاک خوښتلې وې نو ټول انسانان به ئې (په زور) په نیغه لاره روان کړی وې؟ او چا چې کفر خپل کړې دې په هغوی باندې خو دهغوی د بد عملونو د وجې همیشه څه نه څه مصیبت واقع کیږی، یا دهغوی آبادو ته نزدې چرته واقع کیږی ترڅو چې (یو ورځ) الله پاک چې کومه وعده کړې ده، هغه به راتلو سره پوره شی. یقین اولره چې الله پاک د وعدې خلاف نه کوی او (اې پیغمبره) حقیقت دا دې چې ستا نه مخکښې پیغمبرانو پورې هم مسخرې کړې شوې دی او داسې کافرانو ته هم ما مهلت ورکړې وو، خو څه وخت پس ما هغوی اونیول. اوس اوگوره چې زما عذاب څنګه وو؟ خبر را کړئ چې یو طرف ته هغه ذات دې چې د هر هر سړی د هر هر کار نگرانی کوی، او بل طرف ته دې خلقو د الله پاک سره شریکان منلې دی؟ او وایه چې ا تاسو لږ د هغوی (د الله پاک د شریکانو) نومونه واخلئ، (که یو نوم واخلئ) نو آیا الله پاک ته د یو داسې وجود خبر ورکوئ چې د هغې په ټوله دنیا کښې الله پاک ته هم پته نشته؟ یا که خالی په ژبه باندې به داسې نومونه اخلئ چې د هغې هیڅ حقیقت نشته؟ حقیقت خو دا دې چې دې کفارو ته خپلې د مکر نه

دکي خبرې ډيرې ښه معلومېږي، او (دغه شان) د هغوی د هدايت په لاره کښې بنديز پيدا شوې دې، او کوم انسان چه الله پاک گمراهۍ کښې پرېږدي، هغه ته څوک هم په لاره کولو کښې نه شي ملاويدې.

**خلاصه تفسير:**

﴿وَلَوْ اَنَّ قُرْاٰنًا سُيِّرَتْ بِهِ الْجِبَالُ﴾ او[ای پيغمبر ﷺ اوای مومنانو ددغی کافرانو ضد داحال دې چه دقرآن چه کوم موجوده حالت دی چه دده معجزه کيدل غورواوفکرغوارې، ددې په ځای]که يو قرآن داسي وي چه دده په ذريعه غر[دځپل ځای نه ]خوځيدی شوی ﴿اَوْ قُطِّعَتْ بِهِ الْاَرْضُ﴾ يادده په ذريعه زمکه زره زره ټکرې کولې شوی قطع کولی شوی﴿اَوْ كُلِّمَ بِهِ الْمَوْتٰى﴾ يادده په ذريعه دمړوسره خبری کيدې شوی [يعنی مړی پری ژوندي کيدی اوچاورسره خبری کولی شوی، اودا هغه معجزي دي دکوموفرمائش چه به اکثرکفاروکولو،بعضی مطلقابعضي داسي چه قرآن په موجوده حالت کښې خومعجزه نه منوالبته که په قرآن سره داخارق يعنی د عرف او عادت نه خلاف ښکاره شي نومونږبه ئې معجزه کيدل ومنومطلب دادی چه دقرآن نه دداسی داسی معجزو ظهورهم وي چه په دي سره ددواړه قسمه خلقوفرمائش پوره کيدی يعنی کوموچه دنفس ذکرشوی خوارق غوښتل اوکوموچه ددی ظهوردقرآن نه غوښتلو]بياهم داخلق ايمان راوړونکي نه دي [ځکه چه دا اسباب حقيقي اثرکونکي نه دي ] ﴿بَلْ لِّلّٰهِ الْاَمْرُ جَمِيْعًا﴾ بلکه ټول اختيارالله ته دی [هغه چه چاته توفيق ورکوي هغه ايمان راوړي او د هغه عادت دادی چه طلب کونکی ته توفيق ورکوي اوعنادکونکی محرومو ي ﴿اَفَلَمْ يَايْئَسِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اَنْ لَّوْ يَشَآءُ اللّٰهُ لَهَدَى النَّاسَ جَمِيْعًا﴾ اوځنگه چه د بعضو مسلمانانوزړه غوښتل چه ددی معجزی ظهوروشي نوشايدچه دوی ايمان راوړي نوځکه مخکی ددي جواب دی چه ]آيا [داواوريدل چه داعناديان ايمان نه راوړي اوداچه ټول اختيار الله ته دی اوداچه حقيقي اثرکونکی اسباب نه دي آياددی اوريدوسره ]بيا هم دايماندارو په دي خبره زړه نه جمع کيږي چه که الله تعالی غوښتی نوټولو[ددنيا]خلقوته به ئی هدايت کړی وو [مگردبعضی حکمتونوپه وجی سره ئی دارضانه شوه،نوټول ايمان نه راوړي چه ددی لوی وجه عناددی نوبياولې ددی عناديانودايمان راوړلو په فکرکښی يئی ] ﴿وَلَا يَزَالُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا تُصِيْبُهُمْ بِمَا صَنَعُوْا قَارِعَةٌ اَوْ تَحُلُّ قَرِيْبًا مِّنْ دَارِهِمْ﴾ او[هركله چه ثابته شوه چه داخلق ايمان نه راوړي نوددي خبري فکرکيدی شو چه بيا دوی ته سزاولی نشي ورکولی ددي متعلق ارشاددی چه]دا[دمکی]کافران خوهميشه[روزانه]په دي حالت کښی وي چه ددوی د[بدو]عملونوپه سبب په دوی څه نا څه حادثه پريوځي [کله قتل کله قيدکله هزيمت اوشکست ] يا[بعضي حادثه که په دوی واقع هم نشي مگر]ددوی دکلي په خواکښی نازليږي [مثلاپه کوم قوم آفت راشي اودوی سره ويره پيداشي چه هسي نه په مونږهم څه بلا او مصيبت رانشي ] ﴿حَتّٰى يَاْتِيَ وَعْدُ اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيْعَادَ﴾ تردي چه[په دغه حالت کښی ]دالله وعده راشي [يعنی داخرت دعذاب سره مخامخ شي ،کوم به چه دمرگ نه بعدشروع کيږي، او] يقيناًالله تعالی وعده خلافی نه کوي [پس دعذاب واقع کيدل په دوی يقيني دی اگرچه څه وخت پکښی تيرشي ].

﴿وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّنْ قَبْلِكَ﴾ او[ددی خلقودادروغژن کولواومسخرکولومعامله فقط ستاسره خاص نه ده اودغسي ددوی په عذاب کښی څه وخت اړول دوی سره خاص نه دی بلکه دمخکيني رسولانواوددوی دامتيانوسره هم داسي شوي دي چنانچه دډيروپيغمبرانوسره کوم

چه ستا نه مخکې تیرشوی دي [د کفارو له طرف نه ] مسخري شوي دي ﴿فَأَمْلَيْتُ لِلَّذِينَ كَفَرُوا ثُمَّ أَخَذْتُهُمْ فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ﴾ بیا ما دغو کفارو ته مهلت ورکړو بیا ما دغه کفار راګیر کړل [د پوهیدو خبره ده چه ] څما سزا څنګه وه [یعني ډیره سخته وه].

﴿أَفَمَنْ هُوَ قَائِمٌ عَلَىٰ كُلِّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ وَجَعَلُوا لِلَّهِ شُرَكَاءَ قُلْ سَمُّوهُمْ﴾ هر کله چه د الله تعالی شان معلوم شو چه هغه د هر څه اختیارلري نو ددی معلومیدو او ثابتیدو نه پس ] بیا [هم] آیا کوم [الله تعالی] چه د هر سړي په عملونو خبروي او ددی خلقو شریکان برابریدی شي او [سره ددي] دي خلقو دالله تعالی سره شریکان جوړ کړی دی ،ته ووایه چه [لږ] ددی [شریکانو] نوم ونه خو واخلئ [چه څه هم واورم چه څوك دي او څنګه دي ] ﴿أَمْ تُنَبِّئُونَهُ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِي الْأَرْضِ﴾ آیا [تاسو په حقیقت کښی دوی شریکان ګڼرئی نو بیا خو دا لازمیږي چه ] تاسو الله تعالی ته د داسي خبرو خبرور کوئ چه په [ټوله] د نیا کښی ددی [دوجود] خبر الله تعالی ته نه وي [څکه چه الله تعالی خو هغی لره موجود ګڼري کوم چه په واقع کښی موجودوي او معدوم موجود نه ګڼي څکه چه په دي سره د علم غلطوالئ لازمیږي اګرچه په ښکاره کیدو کښی دواړه یوشان دي ،غرض دوی ته په حقیقي شریکانو ویلو سره دامحال کار لازمیږي،پس ددوی شریکان کیدل هم محال دي] ﴿أَمْ بِظَاهِرٍ مِنَ الْقَوْلِ﴾ یا [داچه دوی ته حقیقي شریکان نه وائی بلکه] فقط د ظاهري لفظ په اعتبار سره دوی ته شریکان وائی [اوددي مصداق په واقع کښی هیڅ نشته ،نو که داخبره داسي وي بیا خونی نه شریکوالئ تاسو پخپله تسلیموئ ،پس د شریك باطلیدل چه په دواړو شقونو ثابت شو،په اول شق کښی په دلیل سره په دویم شق کښی ستاسو په تسلیم سره ،او داتقریر اګرچه په اعلی درجه سره کافي دی مګر داخلق ئی نه مني] ﴿بَلْ زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا مَكْرُهُمْ وَصُدُّوا عَنِ السَّبِيلِ﴾ بلکه دي کافرانو ته دخپلي غلطي خبري [چه....پري دلیل نیسي او په شرك کښی اخته کیږي] ښی معلومیږي او [په دي وجه سره] داخلق د [حقی] لاري نه محروم پاتی شوی دي او [اصل خبره دغه ده کوم چه مخکی بیان شوی دی په :بل لله الامر:سره ، ﴿وَمَنْ يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ﴾ یعنی چالره چه الله تعالی په ګمراهئ کښی ساتي ده ته هیڅوك په لاره راوستونکی نشته [البته هغه ده لره ګمراه ساتي کوم چه سره دواضح کیدو دحق نه عناد کوي]۔

## معارف او مسائل

دمکي دمشرکانو په وړاندې د اسلام دحقوالی ښکاره دلیلونه او د نبی کریم ﷺ د رښتیی پیغمبر کیدو ښکاره نخښې د نبی کریم ﷺ دژوند د هر طرفنه او بیا په حیرانوونکو معجزو سره په پوره ډول روښانه شوې دي او د هغوئ یعني قریشو سردار ابوجهل دا وئیلی وو چې بني هاشم سره زمونږ خانداني مقابله ده مونږ د دوئ برتري څنګه اومنو چې د الله ﷻ رسول دې هم په دوئ کښې راځی . دوئ که هر څۀ وائی او هر قسم نخښې راوړی مونږ به په هیڅ صورت کښې پرې ایمان نه راوړو، نو هغوئ به په هره موقعه ددغسې ضدی بې سره سوالونو او فرمائشونو تنداره ورکوله، په دې آیتونو کښې هم د ابی جهل او د هغه د ملګرو ددغسې قسم یو سوال جواب دې.

تفسیر بغوی کښې راغلی دی چې دمکې دمشرکانو یوه ډله د بیت الله شریف شاته کیناستله ، په دې کښې ابوجهل بن هشام او عبدالله بن امیه په خصوصیت سره شامل وو ، هغوئ عبدالله بن امیه نبی کریم ﷺ ته اولیږلو هغه چې راغلو نو وې وئیل چې که تاسو ﷺ

غواړئ چې پیغمبری مو اومنو اوستاسو تابعداری اختیار کړو نو زمونږ څو مطالبې دی هغه دخپل قرآن عظیم الشان په ذریعه پوره کړئی . مونږ به په دغه صورت کښې ټول په ټوله اسلام قبول کړو.

ددغې قریشو یوه مطالبه دا وه چې دمکې زمکه ډیره تنګه ده ، دهر طرفنه په غرونو کښې ګیره اوبنده ده څه کر ، کرونده او زرغنه په کښې نشی کیدې ، باغونه او نور دغسې ضروریات مو دلته پوره کیدل خو ډیره ګرانه اولرې خبره ده ، تاسو ﷺ داسې اوکړئی چې د معجزې په ذریعه دغه غرونه چرته لرې یوسئ چې د مکې زمکې راته فراخه او میدانی شی . وې وئیل چې تاسو ﷺ فرمائیلی دی چې داؤد ﷺ لره غرونه تابع وو چې د هغوئ ﷺ تسبیح لوستلو کښې ورسره غرونه هم شاملیدل او تاسو ﷺ دخپلې وینا مطابق دهغوئ نه څه کم نه یئ .

بله مطالبه ئې دا اوکړه چې تاسو ﷺ فرمائیلی دی چې سلیمان ﷺ لره الله ﷻ هوا تابع کړې وه ، د هغې په ذریعه ئې ورته لرې لرې مزلونه ډیر لنډ کړی وو ، تاسو ﷺ مونږ دپاره هم دغسې انتظام اوکړئ چې دشام او یمن وغیره مزلونه راته لنډ او آسان شی .

دریمه مطالبه ئې دا اوکړه هر کله چې تاسو ﷺ د عیسی ﷺ نه ځان کم نه بولئ نو څنګه چې هغوئ به مړی ژوندی کول تاسو ﷺ هم مونږ دپاره زمونږ نیکه قصئ په دې غرض ژوندې کړئ چې مونږ ترې دا تپوس اوکړو چې ستاسو ﷺ دین رښتینې دې اوکه نه؟ [مظهری په حواله د بغوی ، ابن ابی حاتم او ابن مردویه].(۱) اوس په دې آیتونو کښې ددغې بې مقصده سوالونو او مطالبو جوابونه داسې ورکړې شوی دی .

﴿وَلَوْ اَنَّ قُرْاٰنًا سُيِّرَتْ بِهِ الْجِبَالُ اَوْ قُطِّعَتْ بِهِ الْاَرْضُ اَوْ كُلِّمَ بِهِ الْمَوْتٰى ۗ بَلْ لِّلّٰهِ الْاَمْرُ جَمِيْعًا ۗ﴾ دلته د ﴿سُيِّرَتْ﴾ مطلب غرونه د خپل ځائې نه لرې کول .

﴿قُطِّعَتْ﴾ نه مطلب د زمکې مزل لنډول او د ﴿كُلِّمَ بِهِ الْمَوْتٰى ۗ﴾ نه مړی ژوندی کول او بیا پرې خبرې کول مراد دی . دلته د ﴿لَوْ﴾ حرف شرط جواب په قرینې د مقام سره محذوف دې . ﴿لَمَّا اٰمَنُوْا﴾ څنګه چې په بل ځائې کښې هم دداسې مضمون جواب داسې راغلې دې .

﴿وَلَوْ اَنَّنَا نَزَّلْنَآ اِلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةَ وَكَلَّمَهُمُ الْمَوْتٰى وَحَشَرْنَا عَلَيْهِمْ كُلَّ شَيْءٍ قُبُلًا مَّا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْٓا﴾ څنګه چې دوئ ددې نه وړاندې دغسې معجزې لیدلې کتلې دی چې ددې نه ډیرې زیاتې اوچتې وې ، د نبی کریم ﷺ په اشارې سره په آسمان کښې سپوږمئ دوه ټکړې شوې وه چې د غرونو دخپل ځائې نه دلرې کیدو اود هوا د تابع کیدو نه زیاته حیرانونکې خبره ده ، دغه شان د بې ساه کاڼړو او ګیټکو د نبی کریم ﷺ په لاس مبارك کښې ګویا کیدل ددې څخه زیاته لویه معجزه ده چې یو مړ بنده ژوندې شی او خبرې اوکړی ، د معراج په شپه مسجد اقصی ته اوبیا دهغې نه آسمانونو ته په ډیر لنډ وخت کښې سفر کول او بیا د هغه ځائې نه په ډیر لنډو وخت کښې بیرته راتلل دهوا مسخر کیدو او د سلیمان ﷺ دتخت د معجزې نه ډیره زیاته معجزه ده ، مګر دې ظالمانو ددې ټولو دلیدلوکتلو نه پس هر کله چې ایمان راؤنه ړلو نو اوس ددې مطالباتو په کولو سره هم د دوئ نیت معلوم دې چې خالص وخت اړول ئې مطلب څۀ کول یا

(۱) تفسیر المظهری [ج:۵ص:۲۳۹، ۲٤۰] وتفسیر البغوی تحت هذه الآیة [ج:٤ص:۳۱۹]

منل ئې مطلب نه دې . هر کله چې ددې مطالباتو کولو نه د مشرکانو مطلب هم دا وو چې ددې نه د نه پوره کولو په صورت کښې به مونږ دا وایو چې معاذ الله ، الله ﷻ د کولو وس نه لرى ، یا د نبی کریم ﷺ خبرې لره الله ﷻ نه آورى او نه ئې قبلوى . نو مطلب ئې په ښکاره دا راوڅى چې معاذ الله ! نبی کریم ﷺ د الله ﷻ پیغمبر نه دې ، څکه ئې ورپسې اوفرمائیل چې : ﴿بَل لِّلَّهِ الْأَمْرُ جَمِيعًا﴾ [بلکه ټول کارونه دالله په اختیارکښې دى] مطلب دا شو چې دغه مطالبات نه پوره کول په دې وجه نه دى چې الله ﷻ ددې وس نه لرى بلکه حقیقت دادې چې الله ﷻ ددنیا په خیر ښیګړو باندې ښه پوهیږى ، ددغې حکمت په بنا الله ﷻ ددې مطالباتو پوره کول مناسب اونه ګڼل څکه چې د مطالبې کوونکو ضد او بدنیتى هغه ته معلومه ده ، هغه په دې باندې پوهه دې چې ددې مطالباتو په پوره کولو سره هم دوئ ایمان نه راوړى .

﴿أَفَلَمْ يَيْأَسِ الَّذِينَ آمَنُوا أَن لَّوْ يَشَاءُ اللَّهُ لَهَدَى النَّاسَ جَمِيعًا﴾ امام بغوى رحمه الله نقل کړى دى چې کله صحابه کرامو ﷺ دمکې د مشرکانو دغه مطالبې واوریدلې نو دا خواهش ئې اوکړو چې دمعجزې په طورئې دامطالبات پوره کړې شى، ولې چې دمکې مکرمې ټول خلق به مسلمانان شى او اسلام ته به ډیر قوت حاصل شى څکه دا آیت مبارك نازل شو[1] معنى ئې داده چې :
[اوس هم دمسلمانانو په دې خبره تسلى نه ده شوې که الله ﷻ غوښتلې نو ټولو خلقو ته به ئې هدایت کړې وو ، مګر دحکمت تقاضا داده چې ټولو لره په اسلام او ایمان باندې مجبور کړې شى بلکه حکمت هم دا وؤ چې د هر سړى اختیار باقى پاتې شى او پخپل اختیار سره اسلام قبول کړى یا کفر .

﴿وَلَا يَزَالُ الَّذِينَ كَفَرُوا تُصِيبُهُم بِمَا صَنَعُوا قَارِعَةٌ أَوْ تَحُلُّ قَرِيبًا مِّن دَارِهِمْ﴾ اودا کافران به همیشه په داسې حالت کښې وى چې د خپلو ګناهونو په وجه به پرې څه نه څه آفت راڅى یا به د دوئ په خواؤشا باندې راڅى] . ابن عباس رضي الله عنه فرمائیلى دى چې د قارعة معنى مصیبت او آفت دې ، په دې بنا د آیت معنى دا شوه چې ددې مشرکانو مطالبات څکه منظور نه کړې شو چې ددوئ بد نیتى او ضد داسې معلوم وو چې دمطالباتو په پوره کیدو سره به هم دوئ ایمان نه راوړى ، دوئ خو د الله ﷻ په نزد ددې حقدار دى چې پرې په دنیا کښې هم آفتونه او مصیبتونه راشى څنګه چې په اهل مکه باندې کله د قحط مصیبت راغلو کله داسلامى غزاګانو په ذریعه په بدر او احد وغیره کښې په دوئ باندې د وژلې کیدو او قیدى کیدو آفت نازل شو ، په چا تندر راپریوتو او څوك په بل مصیبت کښې اخته شو .

﴿أَوْ تَحُلُّ قَرِيبًا مِّن دَارِهِمْ﴾ یعنى کله به داسې کیږى چې مصیبت خو به خاص په دوئ نه راڅى بلکه دوئ سره به نزدې آبادیانو باندې به راڅى چې دوئ ترې عبرت واخلى او دوئ ته خپل خراب انجام هم معلوم شى .

﴿حَتَّىٰ يَأْتِيَ وَعْدُ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيعَادَ﴾ یعنى ددې مصیبتونو او آفتونو راتلل به همداسې جارى وى تر څو چې د الله ﷻ وعده پوره نه شى څکه چې د الله ﷻ وعده هیچرې ایساریدونکې نه وى ، دې وعدې نه مراد د فتح وعده ده ، مطلب دادې چې په دې خلقو

[1] ) تفسیر البغوى تحت هذه الآی ترجمه:- او مونږ به دوئ ته د قریب بهد غټ نه مخکښې عذاب نه اوڅکوؤ.[ج: ٤ ص:٣٢٠]

باندې به قسما قسم آفتونه په مخه رازي تر دې چې په آخر کښې به مکه مکرمه فتح شي او دغه ټول خلق به پاتې اولاندې شي.

په دې آيت مبارك کښې د ﴿أَوْ تَحُلُّ قَرِيبًا مِّن دَارِهِمْ﴾ نه معلومه شوه چې دکوم قوم اوآبادئ په خواؤشا کښې څه عذاب ، آفت يا مصيبت راشي نو په دې کښې د الله ﷻ يوحکمت دا هم وي چې دغه د خواؤشا اوسيدونکي خلق هم خبردار شي او هغوئ دنورو نه په عبرت حاصلولو سره خپل عملونه درست کړي نو دا د نورو عذاب به دوئ دپاره رحمت جوړ شي ، ګني يو ورځ به داسې راشي چې دوئ به هم په هغې کښې راګير شي کوم کښې چې دغه د خواؤشا خلق راګير شوي وو.

زمونږ په ملك کښې هم چې خواؤشا خلقو باندې يو څائي قسما قسم آفتونه رازي کله سيلاب رازي ، کله دسيلئ طوفان کله د زلزلې عذاب ،کله يوآفت کله بل آفت رازي نو دا هم دقرآن عظيم الشان ددې ارشاد مطابق صرف ددغې آبادو او قومونو دپاره سزا نه وي بلکه د خواؤشا خلقو دپاره هم خبردارې وي ، دپخوا زمانې خلق دومره دعلم او فن خاوندان خو نه وومګر د الله ﷻ نه به ويريدل ، چرته به چې دغسې پيښه اوشوه نو پخپله دغه خلق به هم او ورسره د خواؤشا خلق هم ويريدل ، الله ﷻ ته به ئې ماتې اوکړه ، خپلو ګناهونو نه به ئې توبه اوويسته ، د الله ﷻ نه بخښنه غوښتل ،خير خيرات کول بهٔ ئې د خلاصې ذريعه ګنړله ، په ستړګو به اوليدې شو چې دهغوئ مصيبتونه به په آسانه ايسار شو، نن زمونږ دغفلت داحال دې چې دمصيبت په وخت هم راته الله ﷻ نه رايادېږي، نور هر څه راته رايادېږي ، ددنيا دعامو غير مسلمو پشان زمونږ نظر هم په مادى اسبابو باندې ښخ شي ، ډير کم خلقو ته د مسبب الاسباب درايادېدو توفيق دغه وخت کښې نصيب کيږي ، څکه خو ددې په نتيجه کښې داشان پيښې او مصيبتونه په مخه راروان دى چې دنيا ئې تل دپاره اوتره کړې ده.

﴿حَتَّىٰ يَأْتِيَ وَعْدُ اللَّهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيعَادَ﴾[ تر دې چې دالله ﷻ د وعدې پوره کيدو وخت راشي بيشکه الله ﷻ دخپلې وعدې نه خلاف نه کوي]دلته د وعدې نه مراد د مکې مکرمې فتح ده چې الله ﷻ ، رسول ﷺ سره ددې وعده کړې ده ، د آيت مبارك مطلب داشو چې په آخر کښې دمکې مکرمې فتح کيدل او د کافرانو اومشرکانو مغلوب کول او پاتې راوستل دى ، ددې نه مخکښې به هم ددوئ دجرمونو څه ناڅه سزاګانې ورته ورکولې شي ، او د وعدالله نه د قيامت ورځ هم مراد کيدې شى چې ټولو پيغمبرانو ﷺ سره ئې وعده هميشه دپاره شوې ده ، په کومه ورځ به چې هر يو کافر ، مجرم دخپلو کړو پوره سزا بيا مومى.

کله چې دغه واقعه راپيښه شوه چې نبى کريم ﷺ نه کافرانو اومشرکانو دغسې ضدى او بې سره تپوسونه اوکړل نو په دې سره نبى کريم ﷺ ته د تکليف رسيدو انديښنه کيدې شوه څکه په راتلونکى آيت مبارك کښې نبى کريم ﷺ ته د تسلئ ورکولو دپاره داسې اوفرمائيلې شو چې :

﴿وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّن قَبْلِكَ فَأَمْلَيْتُ لِلَّذِينَ كَفَرُوا ثُمَّ أَخَذْتُهُمْ ۖ فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ﴾[داسې حالت يوازې تاسو ﷺ ته نه دې راپيښ شوې ستاسو نه وړاندې هم په پيغمبرانو پورې ټوقې شوې وې ، دغه شان مجرمان اومنکران سمدستى نه دى راايسار کړې شوى. کله چې هغوئ د حد څخه تير شو نوبيا الله ﷻ داسې راونيول چې دهغې د مقابلې طاقت يې نه وو]

﴿أَفَمَنْ هُوَ قَآئِمٌ عَلَىٰ كُلِّ نَفْسٍ﴾ دې آيت مبارك كښې د مشركانو جهالت او بې عقلي داسې ښكاره كړې شوې ده چې دې بيوقوفانو ته اوګورئ چې بې شده او بې ساه بتان ئې د الله ﷻ سره برابر ګرځولي دي كوم ذات چې د هر چا څارنه كوي او ورسره حساب كتاب كوونكې دې ، بيا ئې اوفرمائيل چې ددې اصلي وجه داده چې شيطان دوئ ته هم ددوئ بيوقوفي ښائسته كړې ده او هم دې لره لوئې كمال او كاميابي ګڼړې.

| لَهُمْ | عَذَابٌ | فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا | وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ | اَشَقُّ |
|---|---|---|---|---|
| مقرر دي هغوئ لره | عذاب | په ژوند ددنيا كښې(۱) | او خامخا عذاب د آخرت | زيات سخت دې |

هغوئ د پاره د دنيا ژوند كښې عذاب دې | او د آخرت عذاب خو ډير سخت دې

| وَمَا | لَهُمْ | مِّنَ اللّٰهِ | مِنْ وَّاقٍ | مَثَلُ | الْجَنَّةِ | الَّتِيْ | وُعِدَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او نشته | هغوئ لره | دالله نه | څوك بچ كونكې | مثال [صفت] | د جنت | هغه | چې وعده شوې ده د هغې |

اوهيڅوك دوئ د الله ﷻ [د عذاب] نه بچ كولې نشي | د كوم جنت چې پرهيزګارو خلقو

| الْمُتَّقُوْنَ | تَجْرِيْ | مِنْ تَحْتِهَا | الْاَنْهٰرُ | اُكُلُهَا | دَآئِمٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| دمتقيانو سره | [دادې] چې بهيږي | لاندې د هغې نه | نهرونه | ميوې د هغې | هميشه وي |

سره وعده شوې ده(۲) | د هغې حالت دا دې | چې لاندې به ترې نه نهرونه بهيږي | د هغې ميوې

---

(۱) **د دوزخ عذاب**:- دَ كافرانو شرك او كفر بيانولو سره دَهغوي سزا بيان فرمائي چه هغوي به دَ مؤمنانو دَ لاسه قتل كيږي او غرقيږي، دې سره به دآخرت په سختو عذابونو كښې راګيرولي شي چه دَ دې دنيا دَ سزا نه به په زرګاوُ درجو خرابه وي.
لعنت كړې شوي ښځې او خاوندباره كښې رسول الله ﷺ فرمائيل چه دَ دنيا عذاب دَ آخرت دَ عذاب نه ډير سپك دې. (صحيح مسلم كتاب اللعان: ۱۴۹۳) د دې ځائ عذاب فاني دې او دَ هغه ځائ باقي دې او دَ هغه اُور عذاب چه دَ دې ځائ دَ اُور نه اويا حصې زيات تيز دې او بيا هغه قيد چه په تصور كښې هم نه شي راتلې. لكه چه ارشاد دې﴿ فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُعَذِّبُ عَذَابَهٗٓ اَحَدٌ ﴾ نه د دې په شان نن دَ چا عذاب دې او نه دَ دې په شان دَ چا قيد دې. ارشاد دې ﴿وَاَعْتَدْنَا لِمَنْ كَذَّبَ بِالسَّاعَةِ سَعِيْرًا﴾ دَ قيامت دَ منكرانودَ پاره مونږ دَ اُورعذاب تيار كړې دې. دلړې نه په كتلوباندې به چغې سورې شروع كړي. دَ هغه ځائ په تنګو اوتيارو كورونو كښې چه كله هغوي اينختلې ورواچولې شي نو په چغو چغو به مرګ غواړي. يو مرګ څه له غواړئ ډير مرګونه اوغواړئ اوس اوښائې چه دا صحيح دي كه دَ هميشه جنت صحيح دې دَ كوم وعده چه پرهيزګارانوسره ده چه دا دَ هغوي بدله ده اودَ هغوي دَ هميشه دَ پاره كور.
(۲) **دَ جنت نظارې** :-بيا دَ نيكو انجام بيانوي چه هغوي سره دَ كومو جنتيانو وعده ده دَ هغې يو صفت خودا دې چه دَ دې نه څلورواړو طرفونوته نهرونه روان دي. چرته چه غواړي اوبه دې اوړي او اوبه هم هغه چه نه خرابيدونكې دي. بيا دَ پئيو نهرونه دي او پئي هم هغه چه دَهغې خوند چرې هم نه خرابيدونكې دې. اودَ شرابونهرونه دي په كوموكښې چه صرف خوند او هم خونددې. نه بې مزګې اونه خرابه نشه اودَ صفا شاتو نهرونه دي اودَ هرقسم ميوې دي او ورسره دَ الله تعالى رحمتونه او دَ مالك بخښنې. دَهغې ميوې دَهميشه دَپاره دي دَدې دَخوراك څښاك څيزونه هيڅ كله هم فنا كيدونكي نه دي.
كله چه حضور ﷺ دَ كسوف مونځ كولونو صحابه كرامو ؓ تپوس اوكړو چه حضور ﷺ مونږ تاسو اوليدلئي چه لكه تاسو ﷺ دَ څه څيز دَ اخستو اراده كړې وه. بيا مونږ...... [باقي په راروانه صفحه...

وَّظِلُّهَاؕ تِلْكَ عُقْبَى الَّذِيْنَ اتَّقَوْاۖ وَّعُقْبَى الْكٰفِرِيْنَ النَّارُ ﴿۳۵﴾

او سیوري د هغې هم | دا انجام دی | د هغه کسانو | چې اوویریدل د الله نه | او انجام د کافرانو | اور دی

اودهغې سیوري به همیشه قائم وی | دغه د پرهیزګارو انجام دی | او د کافرانو انجام [د دوزخ] اور دی

وَالَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَفْرَحُوْنَ بِمَآ

او هغه کسان | چې ورکړې وو مونږ هغوئ ته | کتاب | هغوئ خوشحالیږی | په دې کتاب

اوهغه خلق کوموته چې مونږ کتاب ورکړې دی(۱) هغوئ په تاباندې په نازلیدونکی [کلام] خوشحالیږی

....باقي حاشیه د تیرمخ] ... اولیدل چه تاسو روستونني پښه بیا روستو اخواکړه. حضور ﷺ اوفرمائیل چه اوماجنت لیدلې ووا وغوښتل مې چه یوه غنچه راوشوکوم که اخستې مې وې نو د دنیاد ټول عمر د پاره وه او تاسو به خوړله. (صحیح بخاری:۱۰۵۲،صحیح مسلم:۹۰۷)

ابویعلی کښې دی چه یو ورځ د ماسپښین په مانځه کښې مونږ حضور ﷺ سره وو چه هغوی ناڅاپې وړاندې شو او مونږ هم وړاندې شو بیا مونږ اوکتل چه هغوی ﷺ د څه څیز د اخستو اراده کړې وه خو بیا هغوی ﷺ روستو راغله. د مانځه نه پس حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه معلومات اوکړوچه یارسول الله ﷺ! نن خو مونږ تاسو په داسې کار کولو اوکتلئی چه د نن نه وړاندې مونږ نه وې لیدلې. حضور ﷺ اوفرمائیل چه او جنت ماته پیش کړې شو چه تازه پړقیدو، ما غوښتل چه دې نه یوه غنچه د انګورو راوشوکوم خو زما اود دې په مینځ کښې پړده اوکړې شوه. که ما دا راشوکولې وه نو ټولې دنیا به خوړله او بیا به هم یوه ذره نه کمیدله. (احمد:۳/۳۵۲)

د دې معنې یوروایت مسلم کښې هم شته. (صحیح مسلم:۹۰٤) یو کلی وال د حضور ﷺ نه تپوس اوکړو په جنت کښې به انګور وی؟ هغوی ﷺ اوفرمائیل چه او. هغه وئیل چه څومره لوئې غنچې به وی وئی فرمائیل چه دومره لوئې که یو تور کارغه پوره میاشت الوزی نو بیا به هم د هغه غنچې نه تیرشوې نه وو. (احمد:٤/١٨٤، طبرانی۸۲۰۸ مجمع الزوائد:۱۰/٤۳۱)

حدیث شریف کښې دی چه جنتی کله یوه میوه راوشوکوی هم هغه وخت به د هغې په ځائ بله اولګی. حضور ﷺ فرمائی چه جنتی به ښه خوری څکی خو نه به ئې توکانړې راځی او نه پوزه (ګړنګ) نه وړې متیازې او نه لوئې د مشکو په شان خوشبو کونکې غوندې خوله به راشی او هم په دې سره به خوراک هضم شی لکه څنګه چه بې تکلفه ساه روانه وی دغه شان به تسبیح او تقدیس الهام کولې شی. (صحیح مسلم:۲۸۳۵، ابن حبان:۷٤۳۵، الدارمی:۲۸۲۷) یو اهل کتاب حضور ﷺ ته اووئیل چه تاسو فرمائې جنتیان به خوری او څکی؟ هغوی ﷺ اوفرمائیل چه او او، د هغه قسم د چا په لاس کښې چه د محمد (ﷺ) روح دې چه هر سړی له به د خوراک څښاک او جماع او شهوت دومره طاقت ورکولې شی څومره چه دلته سلو سړو له ورکړې شوی وی. هغه وئیل ښه ده چه څوك خوری څکی نو هغه ته به د متیازو هم ضرورت وی نو بیا په جنت کښې ګندګی څنګه؟هغوی ﷺ اوفرمائیل چه نه د خولې په ذریعه به دا ټول هضمیږی او هغه خوله به د مشکوذ بوئی والا وی (احمد:٤/٣٦٧، السنن الکبری:۱۱٤۷۸، الدارمی:۲۸۲۵)

فرمائی چه د کومې مرغئی طرف ته جنتی د خوړلو په نظر سره اوګوری هغه به هم دغه وخت کښې د هغه په وړاندې سره کړې شوې راپریوځی. (البزار:۳۵۳۲، مجمع الزوائد:۱۰/٤۱٤)

(۱) **د قرآن د نازلیدلو سره خوشحالیدونکی خلق:-** کوموخلقوته چه د دې نه مخکښې کتاب ورکړې شوې دې او هغوی د هغې عمل کونکی دی نود قرآن په تاباندې نازلیدلوسره خوشحاله دی څکه چه پخپله هم د هغوی په کتابونو کښې ددې زیرې اودې صداقت موجوددې لکه چه ...... [باقي په راروانه صفحه...

أُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمِنَ الْاَحْزَابِ مَنْ يُّنْكِرُ بَعْضَهٗ ۭ

چې نازل کړې شوې دې | تاته | او ځینې د ډلو نه | هغه څوك دی | چې نۀ مني | ځینې خبرې د هغې

او د هغوئ په مختلفو ډلو کښې داسې کسان هم شته | چې د دې د بعضې حصې نه انکار کوي

قُلْ اِنَّمَآ اُمِرْتُ اَنْ اَعْبُدَ اللّٰهَ وَلَآ اُشْرِكَ

ورته اووايه | چې بيشکه | حکم شوې دې ماته | چې زۀ بندګی اوکړم د الله | او نۀ کړم شريك [هيڅوك]

ورته اووايه چې ماته دا حکم شوې دې | چې دالله ﷻ عبادت اوکړم | او هيڅوك ورسره شريک

بِهٖ ۭ اِلَيْهِ اَدْعُوْا وَاِلَيْهِ مَاٰبِ ۝ وَكَذٰلِكَ

د هغۀ سره | خاص هغۀ ته | رابلل کوم زۀ | او خاص هغۀ ته | ورتلل دی زما | او دارنګې

نۀ کړم | زه د هغۀ طرفته بلنه کوم | او هم هغۀ ته به واپس کيږم | او دغه شان

اَنْزَلْنٰهُ حُكْمًا عَرَبِيًّا ۭ وَلَىِٕنِ اتَّبَعْتَ اَهْوَآءَهُمْ

نازل کړې دې مونږ دا قرآن | فرمان | عربي | او که چرې | تا پيروي اوکړه | د خواهشاتو د هغوئ

مونږ دا [کتاب] (۱) ديو واضحه حکم په طور نازل کړې دې | اوکه تۀ د دې [سم] علم د راتلو نه پس هم

---

....باقي حاشيه د تيرمخ]...په آيت ﴿اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَتْلُوْنَهٗ حَقَّ تِلَاوَتِهٖ ۭ﴾ کښې دی چه وړاندينی کتابونه په ښه شان سره لوستونکی په دې آخری کتاب باندې هم ايمان راوړی او په بل آيت کښې دی چه دوی منې که نه منې دَ وړاندينو کتابونو والا به دې ښه تابعدار جوړيږی ځکه چه دهغوی په کتابونوکښې دَ حضور ﷺ دَ پيغمبرئی خبردې او هغوی دا وعده پوره کول په خوشحالئی سره منی. الله تعالی دې نه پاك دې چه دَ هغه وعدې به غلطې راوځی اودَ هغه فرمان به صحيح ثابت نه وی نو هغوی خوشحاليدلو سره دَ الله تعالی په وړاندې په سجده کښې پريوځی. او په دې ډلو کښې داسې هم دی چه دَ هغې بعضې خبرې نه منی. غرض دا چه بعضې اهل کتاب مسلمانان دی او بعضې نه دی نو اې نبی ﷺ! اعلان اوکړه چه ماته صرف دَ يو الله دَ عبادت حکم ملاوشوې دې چه دَ نورو دَ شرکت نه بغير صرف دَ هغه عبادت دَ هغه دَ توحيد سره کوه او همدغه حکم زما نه وړاندې نبيانو او رسولانو ته ملاوْ شوې وو. هم دَ دغه لارې طرف ته اوهم دغه رب عبادت طرف ته زه ټولې دنيا ته دعوت ورکوم هم دغه الله طرف ته ټول رابلم او هم دغه الله تعالی طرف ته زما واپس کيدل دی. ځنګه چه مونږ تانه وړاندې انبياء ليږلی په هغوی باندې مو خپل کتابونه نازل کړی نو هم دغه شان دا قرآن چه مضبوط او محکم دې. په عربی ژبه کښې چه ستا او ستا دَ قوم ژبه ده دا قرآن مونږ په تاباندې نازل کړو دا هم په تا باندې خاص احسان دې چه دَ دې واضح ظاهر مفصل او محکم کتاب سره تاله مونږ عزت درکړو. نه دَ دې نه وړاندې اونه دَ دې نه شاته باطل په دې کښې شامليدلې شی. دا دَ الله تعالی حکيم او حميد دَ طرف نه نازل شوې دې.

(۱) اې نبی ﷺ! تاله ربانی علم اوآسمانی وحی راغلې ده که اوس هم تا دَ دوی دَ ماتحتنی خواهش اوکړو نو ياد ساته چه دَ الله تعالی دَ عذابونونه تاڅوك هم نه شی بچ کولې. نه به څوك ستا په حمايت کښې اودريږی. سنت نبويه او طريقه محمديه ﷺ دَ علم نه پس څوك چه دَ ګمراهئی والا لار اختيار کړی نودَ هغه علماوْ دَ پاره په دې آيت کښې زبردست وعيد دې.

| مِنۡ وَّلِيٍّ | مِنَ اللّٰهِ | مَا لَكَ | مِنَ الۡعِلۡمِ ۙ | جَآءَكَ | مَا | بَعۡدَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| څوك دوست | په مقابله د الله کښې | نو نشته ستا د پاره | د علم نه | چې راغلې دې تاته | د هغې نه | روستو |

دهغوئ په خواهشاتو پسې لاړې | نو د الله ﷻ په مقابله کښې به دې نۀ څوک مددګار پيدا شي

وَّلَا وَاقٍ ؏

او نۀ څوك بچ کونکې |

او نۀ څوک بچ کونکې |

**آسان ترجمه قرآن**

د داسې خلقو دپاره په دنيوی ژوند کښې هم عذاب دې، او يقينًا د آخرت عذاب به ډير زيات سخت وی او څوک هم نشته چه هغوی د الله پاک (د عذاب) نه بچ کړې شي. (بل طرف ته) هغه جنت د کوم چه د متقيانو سره وعده کړې شوې ده د هغې حال دا دې چه د هغې نه لاندې نهرونه بهيږی، د هغې ميوې به هم هميشه وی، او د هغې سورې هم، دا انجام دې د هغه خلقو چا چه تقوٰی اختيار کړه، او د کافرانو انجام د دوزخ اور دې. او (اې پيغمبره!) کومو خلقو ته چه مونږ کتاب ورکړې دې، هغوی په دې کلام باندې خوشحاليږی کوم چه په تا باندې نازل کړې شوې دې. او هم په دې ډلو کښې هغه خلق هم دی کوم چه د دې قرآن د بعضو خبرو د منلو نه انکار کوی اووايه چه : ماته دا حکم کړې شوې دې چه زه د الله پاک عبادت اوکړم، او هغه سره څوک هم په بندګئ کښې شريک او نه منم، هم د دې خبرې زه دعوت کوم او هم هغه (الله پاک) ته زما واپسی ده او هم دغه شان مونږ دا (قرآن) په عربئ ژبه کښې د يو حکم نامې په شکل نازل کړې دې او (اې پيغمبره!) تاته چه کوم علم راغلې دې، که د هغې نه پس هم ته د دې خلقو په خواهشاتو پسې روان شوې نو د الله پاک په مقابله کښې به نه ستا څوک مددګار وی، او نه څوك بچ کونکې.

**خلاصه تفسير:**

﴿لَهُمۡ عَذَابٌ فِي الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا وَلَعَذَابُ الۡاٰخِرَةِ اَشَقُّ ۚ﴾ ددي کافرانولپاره ددنياپه ژوند کښی [هم]عذاب دی[دغه قتل قيدمرض ذلت اومصيبتونه دي ]اودآخرت عذاب ددي نه په زياتودرجوسخت دی [ځکه چه سخت هم دی اودائمي هم دی ]﴿وَمَا لَهُمۡ مِّنَ اللّٰهِ مِنۡ وَّاقٍ ۝﴾ اودالله [دعذاب ]نه به دوی ته هيڅوك بچ کونکی نه وي .

﴿مَثَلُ الۡجَنَّةِ الَّتِيۡ وُعِدَ الۡمُتَّقُوۡنَ ۭ تَجۡرِيۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ ۭ اُكُلُهَا دَآئِمٌ وَّظِلُّهَا ۭ﴾[او]دکوم جنت چه دمتقيانوسره [يعنی دکفراوشرك نه دځان ساتونکوسره]وعده شويده ددی حال دادی چه ددي [دآبادواوونو [درختو] لاندي به نهرونه بهيږي اوميوي اوسورئ به ئی هميشه وي ﴿تِلۡكَ عُقۡبَى الَّذِيۡنَ اتَّقَوۡا ۖ وَّعُقۡبَى الۡكٰفِرِيۡنَ النَّارُ ۝﴾داخوبه انجام وي دمتقيانواودکافرانوانجام به دوزخ وي.

﴿وَالَّذِيۡنَ اٰتَيۡنٰهُمُ الۡكِتٰبَ يَفۡرَحُوۡنَ بِمَآ اُنۡزِلَ اِلَيۡكَ﴾ اوکوموخلقوته چه مونږ [آسماني] کتاب [يعنی تورات اوانجيل ]ورکړی دی [اودوی هغه په پوره طورسره مني]هغوی په دي [کتاب] سره خوشحاليږی کوم چه په تانازل شويدی [ځکه چه ددی خبرپه خپل کتاب کښی مومي، او خوشحاليږي مني ئی اوايمان راوړي لکه په يهودوکښی عبدالله بن سلام اودده ملګري اوپه نصاراؤ کښی نجاشي اودده قاصدان چه په نوروآياتونوکښی هم مذکوردي ] ﴿وَمِنَ الۡاَحۡزَابِ مَنۡ

يُّنْكِرُ بَعْضَهٗ﴾اوددوی په ډلوکښې بعضی خلق داسي دي چه ددي[کتاب]دبعضي حصي نه [چه په دي کښې ددوی دکتاب خلاف حکمونه دي ]انکارکوي[اوکفرکوي] ﴿قُلْ اِنَّمَآ اُمِرْتُ اَنْ اَعْبُدَاللّٰهَ وَلَآ اُشْرِكَ بِهٖ ؕ اِلَيْهِ اَدْعُوْا وَاِلَيْهِ مَاٰبِ۝﴾ ته [دوی ته] وفرمايه چه [احکام په دوه قسمه دي اصول اوفروع که تاسوپه اصولوکښې مخالفت کوئ نودغه په ټولوشريعتونوکښې مشترك دی چنانچه]ماته [دتوحيد متعلق ]صرف داحکم شوی دی چه زه دالله تعالی عبادت وکړم اوڅوك ورسره شريك نکړم [اودنبوت متعلق داخبره ده چه] زه[خلق] دالله تعالی طرف ته رابلم[يعنی دنبوت نچوړ دا دی چه زه الله تعالی ته بلونکی يم] او[دآخرت متعلق ځماعقيده داده چه] دهغه طرف ته ځما بيرته ورتلل دي[ددنيانه] [يعنی دادري اصول دي پس په دي کښې يوه خبره هم دانکارقابله نه ده، چنانچه توحيد دټولوپه نزدمنلی شوی دی لکه چه دامضمون په بل آيات کښې دی :تعالوا الى كلمة سواء بيننا وبينكم الخ]:اوپه نبوت کښې دځان لپاره مال اوجاه نه غواړم چه پکښې د انکارګنجايش پيداشي .محض الله تعالی طرف ته بلنه کوم پس داسي خلق ځمانه مخکښې هم راغلي دي کومولره چه تاسومنئ لکه چه دامضمون بل ځای هم دی:ماكان لبشران يؤتيه الله الكتاب الخ:دغسي دمعادعقيده مشترکه اومنلی شوی اوغيرقابل انکارده﴿وَكَذٰلِكَ اَنْزَلْنٰهُ حُكْمًا عَرَبِيًّا ؕ﴾ اوکه په فروعوکښې مخالفت وي نودهغې جواب الله تعالی داسي ورکوي چه لکه مونږ څرنګه نورورسولا نولره په خاصوخاصوژبوکښې خاص احکام ورکړی دي ]دغه شان مونږدغه [قرآن ] په دي طورسره نازل کړوچه دغه خاص حکم دی په عربی ژبه کښې [دعربی په وضاحت سره اشاره شويده د نورو پيغمبرانو نورو ژبو طرف ته ،اوپه اختلاف دژبوسره اشاره وشوه اختلاف دامتونوته ،نودجواب نچوړدادی چه په فروعو کښې اختلاف په سبب داختلاف د امتونو وشوځکه چه دامتونومصلحتونه په هره زمانه کښې جدادی پس دشريعتونواختلاف مقتضی داختلاف نه دی ،لکه چه ستاسوپه منلو شوو شريعتونو کښې هم داسي اختلاف د فروعو شوی دی ،نوبيا څه ګنجايش دی ستاسو دمخالفتونو اود انکار] ﴿وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ اَهْوَآءَهُمْ بَعْدَمَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ مَالَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا وَاقٍ۝﴾ او[ای محمد صلی الله عليه وسلم]که ته [په فرض محال]ددوی دنفسانی خيالاتو[يعنی دمنسوخواحکامواوتحريف شوی احکامو] تابعداري وکړي پس ددی چه تاته [دمقصودي حکمونو]علم[صحيح]رسيدلی دی نود الله تعالی په مقابله کښې به نه ستاڅوك مددګاروي اونه څوك بچ کونکی [اوکله چه پيغمبرته داسی خطاب کيدی شي نونورخلق چه انکاروکړي چرته به خي پس په دي کښې کنايه ده اهل کتابوته ،پس په دواړو شقونو سره د منکرينو او مخالفينو جواب اوشو]۔

| وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا | رُسُلًا | مِّنْ قَبْلِكَ | وَجَعَلْنَا |
|---|---|---|---|
| اوليږلي دي مونږ | ډير رسولان | مخکښي ستا نه | او ورکړي وي مونږ |
| اوستا نه وړاندي هم مونږ ډير پيغمبران ليږلي وو | | | اوهغوئ ته مو ښځي |

| لَهُمْ | اَزْوَاجًا | وَّذُرِّيَّةً ؕ | وَمَا كَانَ | لِرَسُوْلٍ | اَنْ يَّاْتِيَ | بِاٰيَةٍ | اِلَّا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هغوئ ته | ښځي | او اولاد | او نه وو طاقت | د پاره د يو رسول | چي راوړي ئي | يوه نښه | مګر |
| او اولاد ورکړي وو | | او هيڅ يو پيغمبر د الله ﷻ د حکم نه بغير يو آيت قدري هم نه | | | | | |

بِإِذْنِ اللّٰهِ ۗ لِكُلِّ أَجَلٍ كِتَابٌ ۝ يَمْحُوا اللّٰهُ مَا يَشَاءُ

په اجازت دالله سره | دپاره دهرې نيتې [دور] | يو كتاب دې | ختموى | الله | هغه څه | چې غواړي هغهٔ

شي راوړي | د هرې نيتې يو [خپل] كتاب وى | الله ﷻ چې كوم حكم غواړي هغه ختموى

وَيُثْبِتُ ۚ وَعِنْدَهٗ أُمُّ الْكِتَابِ ۝ وَإِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِي

او محكم كوى | او د هغهٔ سره دې | اصل دكتاب | او كه چرې | مونږ اوښايو تا ته |خينى[عذاب] | هغه

او چې كوم غواړي نو هغه باقي ساتى |او اصل كتاب خوصرف هغهٔ سره دې |او مونږ چې دوئ سره [دعذاب]

نَعِدُهُمْ أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ

چې وعد ني كوؤ مونږ د هغوئ سره | يا وفات كړو مونږ تالره | نو بيشكه | په تاباندې |پيغام رسول دى

كومه وعده كوو| كه د هغې څه حصه تاته اوښايو| يا تا وفات كړو|نو ستا كارخو بس حكم رسول دى

وَعَلَيْنَا الْحِسَابُ ۝ أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا نَأْتِي الْأَرْضَ

او په مونږ باندې| حساب دې | آيا نهٔ ګورى [داخلق ] | چې بيشكه مونږ | راخو | زمكې ته

اوزمونږ په ذمه حساب اخستل دى| ايادوئ نهٔ ګورى چې مونږ زمكې ته راڅرواندې كيږو

نَنْقُصُهَا مِنْ أَطْرَافِهَا ۗ وَاللّٰهُ يَحْكُمُ لَا مُعَقِّبَ

چې كموؤ دا | دغاړې ددې نه | او الله | حكومت كوى | نشته دې هيڅوك وروسې روستو نظر اچونكي

اودهر طرف نه ئې [په دوئ] راڼدوؤ | او فيصلې صرف الله ﷻ كوى | هيڅوک د هغهٔ فيصله

لِحُكْمِهٖ ۗ وَهُوَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ۝ وَقَدْ مَكَرَ

په فيصله د هغه باندې| او هغهٔ | ډير زر اخستونكى دې | د حساب | او مكر [فريب] كړې دې

بندولې نشي|اوهغهٔ ډير زر حساب اخستونكې دې |اود دوئ نه وړاندې هم خلقو ډير سازشونه كړى وو|حال دا

الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَلِلّٰهِ الْمَكْرُ

هغه كسانو| چې مخكښې د دوئ نه ووٴ | ليكن دالله په اختيار كښې دې | اصلى فيصله كونكي تدبير

چې سازشونه كاميابول خو ټول د الله ﷻ په اختيار كښې دى ..................

جَمِيعًا ۗ يَعْلَمُ مَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ ۗ وَسَيَعْلَمُ الْكُفَّارُ

ټول | معلوم دى هغهٔ ته | هغه څه چې كوى ئې | هر نفس | او زر به پوهه شى | د حق نه انكاريان خلق

..................هر كس چې څه كوى هغه ټول الله ته معلوم دى| او كافرانو ته به زر معلومه شى

لِمَنْ عُقْبَى الدَّارِ ۝ وَيَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا

چې چا د پاره به وى | ښهٔ انجام | د آخرت | او وائى | هغه كسان | چې د حق نه ئې انكار اوكړو

چې د آخرت انجام د چا ښهٔ دې | ..................او كافران وائى..................

لَسْتَ مُرْسَلًا ۗ قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيدًا بَيْنِي

چې نهٔ ئې ته | راليږلې شوې پيغمبر | ورته اووايه | كافى دې | الله | په حيثيت د ګواه | په منځ زما

چې تهٔ رسول نهٔ يې | .................. ورته اووايه چې الله ﷻ زما او ستاسو په مينځ كښې كافى ګواه

| وَبَيْنَكُمْ | وَمَنْ | عِنْدَهٗ | عِلْمُ | الْكِتٰبِ |
|---|---|---|---|---|
| او په منځ ستاسو كښې | او بيا د هغه چاګواهي كافي ده | چي د هغه سره دي | علم | د كتاب |
| دي | .......... او هغه څوك [ګواه دي] چاسره چې د [آسماني كتاب] علم دي | | | |

## آسان ترجمه قرآن

حقيقت دا دي چه مونږ ستا نه مخكښ ډير رسولان ليږلي دي او هغوی ته مو ښځې او بچي هم ورکړي وو. او يو رسول ته هم دا اختيار نه وو چه هغوی يو آيت هم د الله پاک د حکم نه بغير راوړلي شو. د هرې زمانې دپاره يو بيل كتاب وركړې شوې دې الله پاک چه كوم (حكم) غواړي منسوخ كوي. او (كوم چه غواړي) باقي ساتي. او د ټولو كتابونو چه كوم اصل دې هغه هم دهغه سره دې. اود كومې خبرې ويره چه مونږ هغوی (كافرانو) ته وركوو، كه د هغې څه حصه مونږ تا ته (ستا په ژوند كښ) اوښايو، يا (د هغې نه مخكښ) تا د دنيا نه اوچت كړو، بهر حال ستا په ذمه خو صرف پيغام ليږل دي. او د حساب اخستلو ذمه داري زمونږ ده. آيا دې خلقو ته دا حقيقت په نظر رانغلو چه مونږ د هغوی زمكه د ځلورو واړو طرفونو نه راكموو؟ اوهر حكم الله پاک وركوي. څوك هم نشته چه دهغهٔ حكم مات كړي، او هغه زر حساب اخستونكي دې اوكوم خلق چه د دوی نه مخكښ تير شوې دی، چالونه هغوی هم كړي وو، خو چال خو ټول د الله پاک چليږي. څوك هم چه څه كوي، ټول هغه ته معلوم دي، او كافرو ته به زر ده چه معلومه شي چه د اصل وطن نيک انجام د چا په حصه كښ راځي او كومو خلقو چه كفر خپل كړې دې، وائي چه: ته پيغمبر نه ئې، اووايه چه: زما او ستاسو ترمينځه د ګواهۍ دپاره الله پاک كافي دې، او هر هغه سړې هم چا سره چه د كتاب علم دې

### خلاصه تفسير:

﴿وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّنْ قَبْلِكَ وَجَعَلْنَا لَهُمْ اَزْوَاجًا وَّذُرِّيَّةً﴾ او[په اهل كتابو كښې چه څنی په نبوت داطعن لګوي چه دده سره ډيري بيبياني دي پس ددي جواب دادی چه ]مونږيقيناستانه مخكې ډير رسولان ليږلی دي اومونږدوی ته بيبياني اوبچي هم وركړيدي[دادرسالت نه منافي كوم يو كاردی؟ هم داسي +مضمون يو بل آيات كښی هم دی([1])ام يحسدون الناس علی ماآتاهم الله الخ] ﴿وَمَا كَانَ لِرَسُوْلٍ اَنْ يَّاْتِيَ بِاٰيَةٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ﴾ او[چونكه دشريعتونوداختلاف شبه دنوروشبهونه ډيره مشهوره اوبره محض په اجمال سره ذكروه په دي وجه دااوس مخكی مكرراوپه تفصيل سره ارشاد فرمائی چه كوم سړئ په نبي باندي دشريعت داختلاف شبه كوي دی په پرده كښی نبي د احكامومالك كنړل دی حال دادی چه] ديوپيغمبرپه اختياركښی داكارنشته چه يوآيات [يعنی يو حكم] بغيردالله دحكمنه[دخان نه ] راوړی شي [بلكه داحكامومقررول دالله په اذن پوري موقوف دی ﴿لِكُلِّ اَجَلٍ كِتَابٌ﴾ اودالله تعالی دحكمت اومصلحت په اعتبارسره دامعمول مقرر دی چه ]دهری زمانی مناسب خاص خاص احكام وي ﴿يَمْحُوا اللّٰهُ مَا يَشَآءُ وَيُثْبِتُ﴾ [بياپه بله زمانه كښی په بعضوكارونوكښي نوراحكام راخي اومخكنئي احكام موقوف شي اوبعضي په خپل حال باقی پاتي شي پس] الله تعالی چه كوم حكم غواړي موقوف كوي ئی اوكوم حكم چه

---

[1]) ترجمه:- يا نورو خلقو سره په هغه څيزونو حسد كوی كوم چې الله تعالی جل شانه هغوئ ته وركړی دی.

غواړي قائم ئې ساتي﴿وَعِنْدَهٗۤ اُمُّ الْكِتٰبِ﴾ او اواصل کتاب[لوح محفوظ]دهغه سره وي [اوداټول احکام ناسخ اومنسوخ اوپخپل ځای پاتې شوی په دي کښی ليکلی دي هغه دټولوجامع او ميزان دټولودی، يعنې دکوم ځای نه چه دااحکام راځي هغه د الله تعالی په قبضه کښی دي،پس دمخکی احکاموسره موافق يادهغونه بدل د احکامو راوړل دهيچاسره ګنجائش اوطاقت نشي کيدی] ﴿وَاِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِيْ نَعِدُهُمْ اَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ﴾ او [داخلق کوم چه ددي وجی نه دنبوت نه انکار کوي چه که ته نبي ئې نودنبوت په انکارچه دکوم عذاب وعده کيدی شي دغه عذاب ولې نه نازليږي ددي باره کښی واورئ چه]دکومي خبري[يعنی عذاب] مونږددوی سره [دنبوت په انکار] وعده کووپه دي کښی ځني واقعه که مونږتاته وښايو[يعني ستاپه ژوند کښی څه عذاب په دوی نازل شي]خواکه[مخکی دنزول ددي عذاب نه]مونږتاوفات کړو[اوبياپس ته[وروسته] دغه عذاب نازل شي خواپه دنيا کښی ياپه آخرت کښی، ﴿فَاِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ وَعَلَيْنَا الْحِسَابُ﴾ په دواړو حالتونوکښی ته فکراواهتمام مکوه ځکه چه ] ستاپه ذمه خوفقط [داحکامو]رسول دي او ددوی نيول خوزمونږه کاردی[ته ولې ددي فکرکوي چه که واقع شي نوغوره ده شايدچه ايمان راوړي، ﴿اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا نَاْتِي الْاَرْضَ نَنْقُصُهَا مِنْ اَطْرَافِهَا﴾ اوپه دغه خلقوهم تعجب دی چه په کفرباندي دعذاب واقع کيدونه څنګه پوره انکارکوي] آيا[دمقدمودعذاب نه] دي کارلره دوی نه وينی چه مونږداسلام دفتحی په ذريعي سره ددوی] زمکه دهرخلورطرف نه برابرپه مخه کموو[يعني ددوی عملداریٔ په سبب دډيروفتحوداسلام ورځ په ورځ کميږي،پس داهم يوقسم ته عذاب دی کوم چه داصلي عذاب مقدمه ده ،لکه چه په بل آيات کښی دي:([1])ولنذيقنهم من العذاب الادنی دون العذاب الاکبر] ﴿وَاللّٰهُ يَحْكُمُ لَا مُعَقِّبَ لِحُكْمِهٖ﴾ او الله تعالی چه څه غواړي حکم کوي دده دحکم څوك ګرځونکی نشته[پس عذاب ادنی خوا عذاب اکبرکوم يوچه وي هيڅوك ئې ددوی شريکان ياغيرشريکان نشي ردکولی] ﴿وَهُوَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ﴾اوکه دوی ته څه مهلت وشي نوڅه وشو]هغه ډيرزرحساب اخيستونکی دی [دوخت انتظاردی بيابه فوراوعده شوی عذاب شروع شي] ﴿وَقَدْ مَكَرَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَلِلّٰهِ الْمَكْرُ جَمِيْعًا﴾ او[داخلق چه نبي عليه السلام ته په آزاررسولويادااسلام په نافذکولوکښی قسم قسم تدبيرونه کوي نوپه دي سره هيڅ نه کيږي چنانچه] ددوی نه مخکی چه کوم [کافران ]خلق تيرشويدي هغوی[هم ددي غرضونو لپاره لوی لوی ] تدبيرونه کړی وو پس]هيڅ پري نه دي شوی ځکه چه]اصل تدبيرخود الله تعالی دی[دده په مخکی دهيچانه چليږي پس الله تعالی ددوی دغه تدبيرونه چليدوته پری نخودل او] ﴿يَعْلَمُ مَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ﴾ دی د هر څه نه خبردی کوم سړی چه هرڅه هم کوي[نودوی ته به په وخت باندي سزاورکړي]او[دغسي]ددي کفارو [د عملونوخبرهم ورته شته ﴿وَسَيَعْلَمُ الْكُفّٰرُ لِمَنْ عُقْبَى الدَّارِ﴾ پس دوی]ته به[هم]اوس معلومه شي چه په دغه جهان کی نيك انجام دچاپه حصه کښی دی [چه ددوی دي اوکه دمسلمانانويعنی ډيرزربه دوی ته دخپلي بدانجامیٔ اوعملونودسزاحال معلوم شي]﴿وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَسْتَ مُرْسَلًا﴾اوداکافران خلق[دا سزاګانی هيروي] داسي وائی چه[نعوذبالله ]ته پيغمبرنه ئې ﴿قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًاۢ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ ۙ وَمَنْ عِنْدَهٗ عِلْمُ الْكِتٰبِ﴾ ته ووايه چه[ستاسويه دي بی معنی انکارڅه کيدی شي ]ځمااوستاسوپه منځ کښی [ځماپه نبوت]الله

[1]) ترجمه:- او مونږ به دویٔ ته د قريب بهد غټ نه مخکښي عذاب نه اوڅکوؤ.

تعالى اوهغه سړئ دچاسره چه د [آسماني] كتاب علم دى [چه په دي كښي څمادنبوت تصديق دى] كافي ګواه دى۔ [مرادتري داهل كتابوعالمان دي كوم چه انصاف كونكي وو۔ اودنبوت پيشين ګوئي ئي ليدلي وه ايمان ئي راوړى وو مطلب داشوچه څمادنبوت دوه دليلونه دي، عقلي اونقلي عقلي خوداچه الله تعالى ماته معجزي راكړيدي كومي چه دنبوت دليلونه دي، او د الله تعالى دګواه كيدو هم دا معنى ده ،اونقلي دادى چه په تيرواسماني كتابونوكښي ددي خبر موجود دى؛ كه يقين نه كوئ نو د انصاف كونكي عالمانونه تپوس وكړئ هغه به درته ښكاره كړي،پس دعقلي اونقلي دليلونوپه موجود ګيرئ كښي دنبوت نه انكاركول بغير د بدبختئ نه نورڅه دي،هيڅ هوښيارته هم په دي كښي شك او شبه كول نه دي پكار]۔

## معارف او مسائل

د رسول او نبى باره كښي د كافرانواو مشركانو عام خيال دا وو چې هغه د بشر او انسان په ځائې څوك بل مخلوق مثلاً فرشته وغيره دې وى چې دهغې په وجه د عامو مسلمانانو نه دهغوئ برترى ښكاره شى، قرآن عظيم الشان ددې خيال جواب په ډيرو آيتونو مباركو كښې وركړې دې چې تاسو د پيغمبرئ حقيقت او حكمت نه دې پيژندلې ، ځكه دغه خيالات لرئ ، حقيقت دادې چې الله ﷻ پيغمبرانو لره يو نمونه جوړولو سره ځكه ليږى چې د امت ټول انسانان د هغوئ ﷺ په نقش قدم روان وى ، دهغوئ ﷺ پشان عملونه دې كوى ، دهغوئ ﷺ نه دې اخلاق زده كوى . ولې چې انسان صرف د انسان په نقش قدم باندې ځكه تلې شى چې مثلاً فرشته ، لوږه ، تنده نه لرى . نفسانى خواهشات ئې نه وى ، خوب نه ورځى ، ستړې كيږى نه ، كه انسان ته ددې په نقش قدم باندې دتلو حكم وې نو د وس نه زيات او بهر تكليف به وركول وو ، دلته هم مشركانو دغه اعتراض وړاندې كړو ، خصوصاً د رسول كريم ﷺ باره كښې ئې دا شبه نوره هم زياته شوه خو ددې جواب د ړومبى آيت مبارك په شروع كښې داسې وركړې شو چې يو يا ددې نه زياتې بيبيانې لرل خو پيغمبرانو ﷺ سره ځكه بې جوړه نه دى چې الله ﷻ وخت د سره پيغمبران ﷺ د آل ، اولاد خاوندان ګرځولى دى ، پخوانو پيغمبرانو ﷺ ګنړې بيبيانې لرلې چې په هغې كښې ځينې لره تاسو هم پيغمبران منئ ، د هغوئ ﷺ اولاد هم وو، په دې بنا دې لره د پيغمبرئ يا بزرګئ او ولى توب خلاف ګنړل ناپوهى ده .

د صحيح بخارى او صحيح مسلم په حواله نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى چې زما روژه هم وى او كوزه هم مې هم وى ، يعنى هميشه په روژه كښې نه پاتې كيږم ، داشان ئې م اوفرمائيل چې دشپې كله اوده كيږم او كله مونځ دپاره اودريږم ، يعنى ټوله شپه عبادت دپاره ولاړ نه يم ، غوښه هم خورم او بيبيانو سره نكاح هم كوم ، څوك چې زما سنت ته سپك ګورى هغه مسلمان نه دى .(۱)

﴿وَمَا كَانَ لِرَسُوْلٍ اَنْ يَّاْتِيَ بِاٰيَةٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ﴾ [او هيڅ يو پيغمبر د الله ﷻ د حكم نه بغير يو آيت قدرې هم نه شى راوړې] كافرانو او مشركانو چې كوم ضد او اعتراضونه په خپلو پيغمبرانو ﷺ باندې كړى دى او په نبى كريم ﷺ باندې هم دخپلې زمانې مشركانو كړى دى په هغې

(۱) صحيح البخارى كتاب النكاح ،باب الترغيب فى النكاح [ج:۲ص:۷۵۷]و صحيح مسلم كتاب النكاح، باب استحباب النكاح الخ [ج:۱ص:۴۴۸]

کښې دوه سوالونه ډير عام دی ، يو دا چې د الله ﷻ په کتاب کښې دې زمونږ د خواهش مطابق حکمونه نازلولې شی لکه په سورة يونس کښې داسې راغلی دی چې ﴿ائْتِ بِقُرْآنٍ غَيْرِ هَٰذَا أَوْ بَدِّلْهُ﴾ يعنی يا خو تاسو ﷺ ددې قرآن کريم په ځائې بل قرآن کريم راوړئ چې زمونږ د بتانو د عبادت بنديز په کښې نه وی ، يا پخپله ددې حکمونه بدل کړئ ، دعذاب په ځائې په کښې رحمت بيان کړئ او د حرام په ځائې په کښې حلال کړئ.

ددوئ بل سوال داوو چې دپيغمبر ﷺ د ښکاره معجزو ليدلو نه پس به ئې هم نوې نوې معجزې ترې غوښتلې اووئيل به ئې چې ددې په ښکاره کولو سره به مونږه مسلمانيږو.

په دې بنا دلته د آية دوه معنې کيدې شي يوه معنی ئې قرآنی آيت اوبله معنی معجزه بيان کړې شوې ده ،ځينې مفسرينو ترې قرآنی آيت مراد اخستې دې. او مطلب ئې دا بيان کړې دې چې يو پيغمبر ﷺ لره دا اختيار نشته چې دخپل طرفنه پخپل کتاب کښې يو آيت جوړ کړی او بعضو دې آيت نه معجزه مراد اخستې ده او وئيلی ئې دی چې الله ﷻ هيڅ پيغمبر ته دا اختيار نه دې ورکړې چې پخپله خوښه او پخپل طبيعت معجزه ښکاره کړی دتفسير روح المعانی مطابق د عموم مجاز قاعدې په بنا دلته دا دواړه معنې مراد اخستې شی او دواړه تفسيرونه صحيح کيدې شی. (١)

په دې لحاظ ددې آيت مبارك د مضمون خلاصه دا شوه چې زمونږ رسول ﷺ نه د قرآنی آيتونو د بدلولو غوښتنه کول بې ځايه او غلطه دې چې مونږ ددې اختيار هيڅ پيغمبر ته نه دې ورکړې ، دغه شان دا مطالبه ترې کول هم د پيغمبرئ د حقيقت نه د ناخبرئ دليل دې چې مونږ ته دې زمونږ غوښتلې معجزه ښکاره کړی ولې چې هيڅ يو پيغمبر په خپله خوښه د معجزې ښکار کولو اختيار نه لری

﴿لِكُلِّ أَجَلٍ كِتَابٌ﴾[د هرې نيتې يو [خپل] کتاب وی] داجل معنی ټاکلې نيټه او ميعاد کيږی او کتاب په معنی د مصدر يعنی تحرير اوليك دې. د ټولې جملې معنی دا شوه چې د هر ځيز ميعاد اواندازه الله ﷻ سره ليکلې شوې ده يعنی هغه په ازل کښې ليکلی دی چې فلانې بنده به په فلانی وخت پيدا کيږی او دومره موده به ژوندې پاتې کيږی ، په فلانی فلانی ځائې کښې به پاتې کيږی او فلانې فلانې کار به کوی، په فلانی وخت به په فلانی ځائې کښې مری. دغه شان دا هم ليکلې شوې دی چې فلانئ زمانه کښې به په فلانی پيغمبر ﷺ کومه وحی اوحکمونه نازليږی ؟ ولې چې په هره زمانه کښې د هر قوم دحال مناسب حکمونه په مخه راتلل د انصاف او عقل تقاضا ده او دا هم ليکلې شوی دی چې فلانی پيغمبر ﷺ نه به په فلانی وخت کومه کومه معجزه ښکاره کيږی ؟

په دې بنا نبی کريم ﷺ نه دخپلې خوښې معجزې غوښتل يا دا ترې غوښتل چې د قرآن عظيم الشان په فلانی حکمونو کښې تاويل اوکړئ ، يا دا مطالبه کول چې فلانئ د خاص قسم معجزه ښکاره کړئ يو ضد او غلط قسمه غوښتل دی چې د پيغمبرئ د حقيقت نه دناخبرئ دليل دې

---

(١) روح المعانی تحت هذه الآية [ج: ٩ ص:٢٩٣]

﴿يَمۡحُوا اللّٰهُ مَا يَشَآءُ وَيُثۡبِتُ ۚ وَعِنۡدَهٗۤ اُمُّ الۡكِتٰبِ ۝﴾ د ﴿اُمُّ الۡكِتٰبِ﴾ لفظي معنی اصل کتاب ده ، مراد ترې لوح محفوظ دې چې هیڅ بدلون په کښې نه شي کیدې ، د آیت مبارك معنی دا شوه چې الله ﷻ پخپل کار قدرت او رسا حکمت بالغه سره کوم څیز لره چې غواړي ، ختموي ئې ، او کوم څیز لره چې غواړي پخپل ځائې پاتې لري او ددې ختمولو او په ځائې پریخودو نه پس چې څه واقع کیږي ، هغه الله ﷻ سره محفوظ دی چې نه پرې د چا لاس رسی او نه په کښې کمې زیاتې کیدې شي.

د تفسیر په امامانو کښې سعید بن جبیر رضي الله عنه ، او قتاده رضي الله عنه وغیره فرمائیلی دی چې دا آیت مبارك هم دحکمونو او شریعتونو د ختمولو او په ځاې د پریخودلو په باره کښې دې. د آیت مبارك مطلب ئې دا بیان کړې دې چې الله ﷻ په هره زمانه کښې د هر قوم دپاره د مختلفو پیغمبرانو علیهم السلام په ذریعه خپل کوم کتابونه چې لیږلی دی او په هغې کښې د شریعت د حکمونو او فرائضو بیان وی دا ضروری نه ده چې دغه ټول حکمونه دې همیشه وی او همیشه دې باقی پاتې وی ، بلکه د کوم حکم چې اوغواړی ختم ئې کړی او کوم حکم چې اوغواړی پخپل ځائې ئې باقی پریږدی ، او اصل کتاب په هرحال هغه سره محفوظ دې چې په کښې د ړومبې نه دالیکلې شوی دی چې فلانې حکم ، فلانی قوم دپاره چې نازل شوی دی ، دا دیو خاص میعاد یا خاص حالاتو په بنا دې ، کله چې دغه میعاد تیر شي یا هغه حالات بدل شي نو دا حکم هم بدل شي ، په دغې ام الکتاب کښې د هغې میعاد او ټاکلې نیټه په پوره شان درج شویده او دا حکم په کښې درج شوی دی. چې ددې حکم د بدلولو نه پس به کوم حکم راوړې شي ؟

دې سره هغه شبه هم دفع شوه چې د الله ﷻ احکام هیڅکله هم منسوخ کیدل نه دی پکار ، ولې چې د یو حکم جاری کولو نه پس دهغې منسوخ کول دا مطلب لری چې حکم جاری کوونکی ته مخکښې د حالاتو او اندازه نه وه ، اوس ئې چې حالات اولیدل څکه ئې مخکښې کړې حکم منسوخ کړو او ښکاره خبره ده چې د الله ﷻ شان دې نه ډیر زیات پورته دې ، هیڅ څیز دهغه د علم نه بهر نه دې ، معلومه شوه چې الله ﷻ ته دمنسوخ کیدونکی حکم د ړومبې نه علم وو چې دا به څه وخت دپاره وی او دهغې نه پس به بدلولې او منسوخ کولې شی لکه یو ډاکټر یا حکیم چې د مخکښې نه په دې پوهیږی چې هر کله یو دارو سره د مریض حال بدل شي نو بل دارو به هغه ته دهغه د حال مناسب تجویز کوی.

خلاصه دا شوه چې ددې تفسیر مطابق په آیت مبارك کښې د محو او اثبات نه مراد د حکمونو منسوخ کیدل او په ځائې باقی پاتې کیدل دی.

دتفسیر د امامانو یوې ډلې لکه سفیان ثوری رحمه الله او وکیع رحمه الله وغیره د ابن عباس رضي الله عنه نه ددې آیت مبارك بل تفسیر داسې نقل کړې دې چې دې نه مراد د تقدیر لیك دې. په دې بنا د آیت مبارك معنی دا بیان کړې شوې ده چې د قرآن عظیم الشان او حدیث د ښکاره بیانونو مطابق دمخلوقاتو تقدیرونه ، د هر چا عمر ، او ټول عمر روزی ، راپیښیدونکې آرام یا مصیبت او ددې ټولو څیزونو اندازې الله ﷻ په ازل کښې ، د ټول مخلوق د پیدا کیدو نه مخکښې هم لیکلی دی ، بیا د ماشوم دپیدا کیدو په وخت په فرښتو هم لیکلې شی ، او هر کال د شب قدر په شپه، دراتلونکی کال د ټولو معاملاتو فهرست ، فرښتو ته حواله کولې شي خلاصه دا شوه چې د هر سادار مخلوق عمر ، رزق ، حرکات ، سکنات ټول ټاکلې شوی او لیکلې شوی دی خو الله ﷻ چې غواړی نو یو تقدیر لیك وران کړی او چې اوغواړی په ځائې ئې پریږدی

﴿وَعِندَهُۥٓ أُمُّ ٱلۡكِتَٰبِ﴾ يعنى كوم چې اصل كتاب دې چې د محو او اثبات نه پس په انجام عمل كول وى هم په هغې باندې كول دى هغه الله ﷻ سره دې چې په كښې هيڅ بدلون نشي راتلې.
ددې وضاحت دادې چې د ډيرو صحيح احاديثو نه معلوميږى چې د ځينو عملونو په وجه د انسان عمر او روزى زياتيږى او د ځينو په وجه كميږى لكه صحيح بخارى كښې راغلى دى چې خپلوئ پاللو سره په عمر كښې زياتې راځى (۱) او د مسند احمد په يو روايت كښې راغلى دى چې كله خو د يو ګناه كولو په وجه انسان د روزئ نه بې نصيبه كيږى دغه شان دمور، پلار، په خدمت كولو او دهغوئ په حكم منلو سره زياتيږى او د الله ﷻ تقدير لره سوا د دعا نه بل هيڅ څيز نشى بدلولې. (۲)
دې روايتونو نه ثابتيږى چې د چا په تقدير كښې د الله ﷻ د طرفه دهغه ليكلې عمر يا رزق دهغه ځينې عملونو په وجه كميږى يا زياتيږى اوددعا په وجه هم تقدير بدلولې شى.
ددې مضمون خلاصه دا شوه چې د تقدير ليك مثلا دچا په عمر، روزئ مصيبت راحت وغيره كښې د څۀ عمل يا دعا په وجه بدلون راځى هغې نه مراد ليك دې چې د فرښتو په لاسونو يا علم كښې وى كله دغه حكم په يو خاص شرط پورې تړلې شوى وى، كله چې دغه شرط موجود نشى نو هغه حكم هم باقى نه پاتې كيږى، بيا دغه شرط كله خو فرښتو سره ليكلې موجود وى څكه پرې دهغوئ علم هم راځى او كله دغه فرښتو سره ليكلې موجود نه وى بلكه صرف د الله ﷻ په علم كښې وى نو ددغسې حكم په بدليدو سره ټول حيران شى، داسې قسم تقدير ته معلق وئيلې شى چې په كښې د آيت دتصريح مطابق محو، اثبات په مخه كولې شى ليكن د آيت د آخر جملې:
﴿وَعِندَهُۥٓ أُمُّ ٱلۡكِتَٰبِ﴾ نه معلومه شوه چې ددې تقدير معلق نه پورته يو تقدير مبرم دې چې په ام الكتاب كښې ليكلې صرف الله ﷻ سره دې، هغه خالص د الله ﷻ په علم كښې وى، په دې كښې هغه حكمونه ليكلې شى كوم چې د عملونو يا دعاګانو نه پس د آخر نتيجې په ډول وى څكه خو په دې كښې محو، اثبات او كمې بيشې نشى كيدې [ابن كثير] (۳)
﴿وَإِن مَّا نُرِيَنَّكَ بَعۡضَ ٱلَّذِي نَعِدُهُمۡ أَوۡ نَتَوَفَّيَنَّكَ﴾ په دې آيت مبارك كښې الله ﷻ د نبى كريم ﷺ د تسلئ دپاره فرمائى چې الله ﷻ به درسره كړې وعدې پوره كوى. لكه دا وعده به درسره هم پوره كوى چې اسلام به مكمله فتحه وى، كفر او كافران به ذليل او خوار وى. داخو به يقينا پوره كولې شى خو دا فكر مه كوئ چې كله به وى؟ ممكنه ده چې ستاسو په ژوند كښې اوشى او داهم ممكنه ده چې ستاسو ﷺ د وفات نه پس وى. خو ستاسو ﷺ د اطمينان او تسلئ دپاره دا هم كافى ده چې تاسو مسلسل ګورئ چې مونږ د كافرانو زمكې دهغه د اطرافو نه راغونډ وو، يعنى په هغې باندې د دوئ قبضه ختموؤ او دا مسلمانانو په قبضه كښې ئې راولو چې په دې طريقه د كافرانو زمكه كميږى اود مسلمانانو زمكه په مخه زياتيږى، دغه شان به تاسو سره د فتح مكه كړې وعده به هم مكمله كړې شى. حكم هم د الله ﷻ په اختيار كښې دې د هغه د حكم څوك اتباله [وروستو] كوونكې نشته، هغه ډير زر حساب اخستونكې دې..

---

(۱) صحيح البخارى كتاب الأدب، باب من بسط له فى الرزق [ج:۲ص:۸۸۵]
(۲) مسند احمد ومن حديث ثوبان رضى الله عنه رقم الحديث [۲۱۳۵۲]
(۳) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٤ ص: ۲۷۰، ۲۷۱]

| آيتونه | سورة ابراهيم مكية وهي اثنان وخمسون اٰية وسبع ركوعات | ركوع ګاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۵۲ | شروع كوم په نوم دالله چې ډېرمهربان اوزيات رحم كونكې دې | ۷ |

| الٓرٰ | كِتٰبٌ | اَنْزَلْنٰهُ | اِلَيْكَ | لِتُخْرِجَ | النَّاسَ |
|---|---|---|---|---|---|
| ال ر | دا يو كتاب دې | چې نازل كړو مونږ دا | تاته | دپاره ددې چې ته راوباسې | دا خلق |

الف لام را | دا كتاب مونږ ستا طرفته دې دپاره نازل كړې دې | چې ته خلق د هغوى د رب په حكم سره

| مِنَ الظُّلُمٰتِ | اِلَى النُّوْرِ ۙ | بِاِذْنِ | رَبِّهِمْ | اِلٰى صِرَاطِ الْعَزِيْزِ الْحَمِيْدِ ۙ① |
|---|---|---|---|---|
| دتياروڼه | رڼړا ته | په اجازت | درب دهغوئ سره | لارې دغالب ستائيلې شوى الله ته |

[د كفر د تياروڼه] اوباسې [او[دايمان] رڼړا كښې ئې داخل كړې] دهغه الله لارې ته چې غالب ستائيلې شوې دې

| اللّٰهِ الَّذِيْ | لَهٗ | مَا | فِي السَّمٰوٰتِ | وَمَا | فِي الْاَرْضِ ؕ |
|---|---|---|---|---|---|
| الله هغه | چې هغهٔ دپاره دى | هغه څه | چې په آسمانونو كښې دى | او هغه څه | چې په زمكه كښې دى |

هغه الله ﷻ چې په زمكه او آسمانونو كښې څهٔ دى هغه ټول د هغهٔ ملكيت دې

| وَوَيْلٌ | لِّلْكٰفِرِيْنَ | مِنْ عَذَابٍ شَدِيْدِ ۙ② | الَّذِيْنَ | يَسْتَحِبُّوْنَ | الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا |
|---|---|---|---|---|---|
| او هلاكت دې | دپاره د كافرانو | د عذاب سخت نه | هغه كافران | چې غوره كوى | ژوند د دنيا |

اوكافرانودپاره د ډېرسخت عذاب هلاكت دې | يعنى هغه خلق چې د آخرت په مقابله كښې د دنيا

| عَلَى الْاٰخِرَةِ | وَيَصُدُّوْنَ | عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | وَيَبْغُوْنَهَا | عِوَجًا ؕ |
|---|---|---|---|---|
| په آخرت باندې | او منع كوى خلق | د لارې د الله نه | او لټوى دوئ دغې لاره كښې | كوږ والې |

ژوند خوښوى | اوخلق د الله ﷻ د لارې نه منع كوى | او په هغې كښې عيبونه لټوى

| اُولٰٓئِكَ | فِيْ ضَلٰلٍ | بَعِيْدٍ ③ |
|---|---|---|
| دا كسان | په ګمراهۍ | لرې كښې دى |

هغوى په ګمراهۍ كښې لرې رسيدلى دى.

## آسان ترجمه قرآن

الٓرٰ: (اې پيغمبره!) دا يو كتاب دې چه مونږ په تا باندې نازل كړې دې، چه ته خلق د خپل رب په حكم باندې د تيرو نه راويستلوسره رڼرا ته راولې، يعنى د هغه ذات د لارې طرف ته چه د هغه اقتدار په ټولو باندې غالب دې، (او) كوم [الله پاک] چه د هرتعريف مستحق دې. اوهغه الله پاک چه په آسمانونو او زمكه كښې څه دى، هم د هغه ملكيت دې. او افسوس دې په هغه خلقو باندې كوم چه د حق نه انكار كوى، ځكه چه هغوى ته سخت عذاب كيدونكې دې. هغه خلق چه د دنيا ژوند د آخرت په مقابله كښې

خوښوي، او نور خلق په لاره بانديې د راتلو نه منع کوي، او په هغې کښې کوږوالې لټوي! هغوی په لرې ګمراهۍ کښې اخته دي.

**خلاصه تفسير**

﴿الٓرٰ﴾: ددې معنی خو الله تعالی ته معلومه ده] ﴿كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ اِلَيْكَ لِتُخْرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ۙ۬ بِاِذْنِ رَبِّهِمْ﴾ دا [قرآن] يو کتاب دی کوم چه مونږ په تا نازل کړی دی چه ته [په دې سره ] ټولو خلقو ته ددوی د پرورد ګار په حکم سره [د تبليغ په مرتبه کښې د کفر] د تيارونه راوباسي [د ايمان او هدايت] رڼا طرف ته ﴿اِلٰى صِرَاطِ الْعَزِيْزِ الْحَمِيْدِ ۙ﴾ يعنی د هغی ذات چه غالب او ستائلی دی د لارې طرف ته ئی راولې [رڼا ته د راوستو مطلب دادی چه هغه لار ورته وښائی ] ﴿اللّٰهِ الَّذِيْ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۭ﴾ کوم چه داسې خدای دی چه د هغه په ملکيت کښی دی څه چه په اسمانونو کښی دي او څه چه په ځمکه کښی دي او ﴿وَوَيْلٌ لِّلْكٰفِرِيْنَ مِنْ عَذَابٍ شَدِيْدِ ۙ﴾ [هر کله چه دا کتاب د الله تعالی لا رښائی نو] لويه خرابي يعني سخت عذاب دی هغه کافرانو ته کوم چه [دغه لاره نه پخپله قبلوي بلکه ] ﴿الَّذِيْنَ يَسْتَحِبُّوْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا عَلَي الْاٰخِرَةِ﴾ دنيوي ژوند ته په آخرت ترجيح ورکوی په دې وجه د دين لټون نه کوي ]او [نه نور خلق دې لارې اختيارولو ته پريدي ﴿وَيَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَيَبْغُوْنَهَا عِوَجًا ۭ﴾ بلکه د الله تعالی د [دې] لارې نه منع کوي او په دې کښی کوږوالی [يعنی شبهات لټوي[چه ددې په ذريعه نور خلق ګمراه کوي ﴿اُولٰۗىِٕكَ فِيْ ضَلٰلٍۢ بَعِيْدٍ﴾ داسې خلق په ډيره لرې ګمراهۍ کښی پراته دي [يعني ګمراهي د حق نه ډيره لرې ده ].

**معارف او مسائل**

**سورت او ددې مضامين**:: دا شروع کيدونکې څوارلسم سورت مکي دې چې د هجرت نه مخکښې نازل شوې وو. دې کښې څو آيتونه داسې هم شته دې چې د هغې باره کښې اختلاف دې چې دا مکی دی او که مدنی دی ؟

ددې سورت په شروع کښې د پيغمبرۍ او ددې د څو خصوصيتونو بيان دې ، بيا په کښې د توحيد د مضمون او ددې د شواهدو بيان دې. هر کله چې دې باره کښې د ابراهيم ﷺ قيصه بيان شوې ده ، په دې لحاظ ئې نوم سورۀ ابراهيم ايخودې شوې دې.

(الٓرٰ كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ اِلَيْكَ لِتُخْرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ۙ۬ بِاِذْنِ رَبِّهِمْ)، (الٓرٰ) د هغې حروف مقطعاتو نه دې چې په دې باره کښې د پخوانو بزرګانو دا صفا موقف بيان شوې دې چې ددې مراد حق او ګڼرلې شی ليکن ددې د معنو په تحقيق او لټون پسې لګيدل نه دی پکار.

(كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ اِلَيْكَ) د نحوی ترکيب په لحاظ سره زياته ښکاره او صفا خبره داده چې دې لره د محذوف لفظ هذا خبر اوګرځولې شی او په دې بنا باندې ددې معنی داسې اوکړې شی ، داسې کتاب دې چې تاسو ﷺ ته مونږ نازل کړې دې. هر کله چې نازلول الله ﷻ ته منسوب کړې شو او خطاب رسول کريم ﷺ ته اوکړې شو نو دې کښې دوو څيزونو ته اشاره اوکړې شوه ، يو دې ته اشاره اوکړې شوه چې دا کتاب ډيره لوړه مرتبه لری ولې چې پخپله الله ﷻ نازل کړې دې ، بله اشاره دې ته اوکړې شوه چې رسول کريم ﷺ د ډيرې لوړې مرتبې خاوند څکه دې چې ددې رومبې مخاطب رسول کريم ﷺ ګرځولې شوی دی.

(لِتُخْرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ۙ بِاِذْنِ رَبِّهِمْ) د ناس لفظ عامو انسانانو د پاره استعمالولې شی ، دې نه مراد د ټولې دنيا موجوده او راتلونکی انسانان دی .
(الظُّلُمٰتِ) د ظلمة جمع ده ، چې د دهغه معنی د تيارې معروفې او مشهورې دی ، دلته د ظلمات نه مراد د کفر او شرك او بدعملونو ظلمتونه دی او دنور څخه مراد دايمان رڼړا ده په دې وجه يې لفظ د (الظُّلُمٰتِ) د جمع په صيغې سره راوړې ځکه چې د کفر او شرك قسمونه هم ډير دی او ناكاره عملونه هم بې شميره دی ، او د نور لفظ ځکه د واحد په صيغې سره راوړې شو چې ايمان او حق يو دې ، د ټول آيت مبارك معنی دا شوه چې دا کتاب درته مونږ ځکه نازل کړ بېدې چې تاسو ﷺ ددې په ذريعه د ټولې دنيا انسانان د کفر ، شرك او نا کاره كارونو د تيرو نه په رابهر کولو سره هغوئ لره د هغوئ درب په اجازت سره د ا يمان او حق رڼړا ته راولئ . دلته د رب لفظ په راوړلو کښې دې ته اشاره ده چې د الله ﷻ دا انعام کول په خلقو باندې په دې غرض دی چې ښيګړه او مهرباني ورسره اوکړی کومه چې د ټولو انسانانو د خالق او مالك د ربوبيت د شان سره ښائی ، هسې په الله تعالی باندې نه څو د چا حق کيدې شی اونه پرې د چا ددې زور چليدې شی .

**هدايت کول بوازې د الله تعالی کار دې** :: دې آيت مبارك کښې د تيرو نه رڼړا ته راؤښکل د رسول کريم ﷺ کار خودلې شوې دې ، حالانکه هدايت کول په حقيقت کښې صرف دالله تعالی کار دې لکه په يو آيت مبارك کښې فرمائی چې : (اِنَّكَ لَا تَهْدِيْ مَنْ اَحْبَبْتَ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ) [يعنی چا ته د هدايت کولو خپل اختيار تاسو نه لرئ بلکه صرف الله تعالی هغه چاته هدايت کوی چې خوښه يئ شی]
هم دغه وجه ده چې ورسره د (بِاِذْنِ رَبِّهِمْ) په لفظ زياتولو سره د د شبه ختم کړې شوه ، په دې بنا د آيت پوره معنی دا شوه چې د کفر او شرك د تيرو نه په راؤښکلو سره د ايمان او نيك عمل رڼړا ته راؤښکل د حقيقت تر مخه ستاسو په اختيار کښې نه دی ، تاسو ئې صرف د الله ﷻ په حکم او اجازت سر کولې شی .

**احکام او هدايات**:: دې آيت نه معلومه شوه چې ټولو بنيادمو ته د ناکاره خبرو او کارونو د تيرو نه د ايمان او نيك عمل رڼړا ته د راؤښکلو يوه ذريعه قرآن عظيم الشان دې . يوازې هم ددې په ذريعه انسان ددنيا او آخرت د بربادېدو او هلاکيدو نه خلاصې موندې شی ، څومره چې دې ته خلق رانژدې کيږی په هغې حساب به ورته په دنيا کښې هم امن اوامان اوخير ښيګړه نصيب کيږی او په آخرت کښې به هم خلاصې او کاميابی بيا مومـوی ، څومره چې ترې لرې اووځی په هغې حساب به د دواړو جهانونو خرابئ او بربادئ او مصيبتونو سره به يې مخه وی .
دې آيت مبارك کښې په هدايت باندې د راوستو ذريعه په ښکاره بيان نه کړې شوه ، ليکن دا خبره هسې هم ښکاره ده چې د يو کتاب په ذريعه د يو قوم د سمولو طريقه هم داوی چې ددغې کتاب هدايات او تعليمات په دغې قوم کښې خواره کړې شی چې هغوئ ئې پابندی اوکړی .

**د قرآن پاك تلاوت کول هم يو مستقل مقصد دې** :: د قرآن عظيم الشان يو علاوه خصوصيت دا هم دې چې ددې صرف تلاوت کول يو خاص اثر لری او د بدو کارونو نه خلق منع کوی اګر چې تلاوت کوونکې ددې په معنی نه پوهيږی ، تر دې پورې چې د کفر او شرك په جال کښې ددې

تلاوت کوونکي نه راګيرېږي اګر چې دغه جال ډېر ښکلې ښکاري او تلاوت کوونکي ددې په معنی هم نه پوهېږي. د هندوانو د تحريك شدی سنګتهن په زمانه کښې دا ليدلي شوي وو چې ددې په جال کښې صرف لږ داسې خلق راګير شوي وؤ چې د قرآن عظيم الشان د تلاوت نه بالکل بې خبره وو.

نن هم عيسائي مشنونه خپل کار په ډېر زور شور سره کوي، په پيسو لګولو باندې هم نه دی شنو باغونو مزيدار جالونه خلقو ته ښکاره کوي، کرڅي ليکن اثر ئې يوازې په هغو خلقو باندې کيږي چې د قرآن عظيم الشان دتلاوت نه بې نصيبه وي. دا بې نصيبي ئې په دې وجه وي چې د قرآن عظيم الشان په تلاوت باندې بالکل خبر نه وي يا د نوی تعليم غلط اثر پرې باندې وي.

شايد هم دغه وجه ده چې د رسول کريم ﷺ د پيغمبرئ د مقصدونو بيانولو په سلسله کښې د قرآن عظيم الشان په معنو باندې د پوهولو نه اول ددې د تلاوت بيان شوې دې. لکه يو ځائي کښې فرمائي چې: (يَتۡلُوۡا عَلَيۡهِمۡ اٰيٰتِهٖ وَيُزَكِّيۡهِمۡ وَيُعَلِّمُهُمُ الۡكِتٰبَ وَالۡحِكۡمَةَ) يعني رسول کريم ﷺ درېو کارونو دپاره ليږلي شوې دې، يو کار تلاوت کول دی چې صرف الفاظو سره تعلق لري، بل کار ئې دادې چې خلق د ناکاره کارونو نه پاکوي، او دريم کار ئې دادې چې د قرآن عظيم الشان او حکمت يعني سنت رسول تعليم وي.

خلاصه دا شوه چې قرآن عظيم الشان داسې يو هدايت نامه ده چې په معنو باندې ئې پوهيدل او په دې باندې عمل کول خو ئې اصل مقصد دې چې دانساني ژوند په سمون راوستو کښې هم ښکاره تاثير لري. خو د الفاظو تلاوت کول ئې هم دخلقو په اصلاح کولو کښې ښه پوره اثر لري، اګر چې د انسان په شعور کښې هم د اخبره نه وي.

په دې آيت مبارك کښې د الله ﷻ په اذن سره د تيرو نه رڼا ته راوښکل هر کله چې رسول کريم ﷺ ته منسوب شو نو اشاره دې ته اوشوه چې اګر که هدايت کول په حقيقت کښې د الله ﷻ کار دې خو د رسول کريم ﷺ د واسطې نه بغير نشي حاصليدې. نو قرآن عظيم الشان مفهوم او تعبير هم هغه معتبر دې کوم چې رسول کريم ﷺ پخپل قول يا عمل مبارك سره خودلې دې بل هيڅ قسم مطلب يا تعبير معتبر نه دې.

(إِلَىٰ صِرَاطِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ ۝ اللَّهِ الَّذِي لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ) کله چې ددې آيت مبارك په شروع کښې د ظلمت او نور بيان راغلې دې ښکاره خبره ده چې د هغې نه مادي تياره او رڼا مراد نه ده کومه چې په سترګو سره ليدلې کتلې شي، په دې وجه ددې د واضح کولو دپاره يې په دې جمله کښې اوفرمائيل چې دا رڼا د الله ﷻ لاره ده څوك چې په دې روان شي نو په تيرې کښې د تلونکو پشان تيندکونه بهٔ نه خوري، خوئيدل بهٔ ئې نه وي او مقصود ته په رسيدو کښې به نه ناکامه کيږي. د الله ﷻ د لار نه مراد هغه لاره ده چې په هغې باندې تلو سره انسان الله ﷻ ته رسيدې شي او دهغه د رضا درجه حاصلولې شي.

دلته د الله لفظ روستو راوړې شو، دې نه مخکښې دوه صفتونه عزيز او حميد راوړې شو، د عربي لغت تر مخه د عزيز معنی قوي او غالب ده، حميد هغه ذات ته وئيلې شي چې د ثناء لائق وي. د الله ﷻ د ذاتي نوم الله نه وړاندې ددې دوؤ صفتي نومونو عزيز او حميد راوړلو کښې دې ته اشاره ده چې دا لار کوم پاك ذات ته چې تلې ده هغه قوي او غالب هم دې او دهر

ثناء او صفت لائق هم دې ځکه به په دې باندې تلونکی خلق څه تیندك نه خوری او نه به ئې کوشش بې ځایه کیږی بلکه منزل مقصود ته به ئې رسیدل یقیني وی خو شرط دادې چې دغه لار پرې نږدې.

د الله ﷻ ددغې دوؤ صفتونو بیانولو نه پس فرمائی چې : (اللّٰهِ الَّذِیْ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ) [یعنی داهغه ذات دې چې د آسمان او زمکې ټول څیزونه هم دده پیدا کړې شوی دی دا هم دده ملك دی چې هیڅوك په کښې ورسره شریك نشته]

(وَوَیْلٌ لِّلْکٰفِرِیْنَ مِنْ عَذَابٍ شَدِیْدِ) ، ویل د سخت عذاب او هلاکیدو په معنی رازی ، په دې بنا ټوله معنی ئې داشوه چې څوك هغوئ لره لویه بربادی او د کفر او شرك په تیرو کښې پاتې کیدل خوښوی هغوئ لره لویه بربادی او هلاکت دې او دا به دهغه سخت عذاب په وجه وی چې کوم په دوئ راتلونکې دې.

**د مطلب خلاصه** :: د آیت مبارك خلاصه داده چې قرآن عظیم الشان دې دپاره نازل کړې شو بېدې چې ټول انسانان د تیرو نه راؤباسی او رڼا ته ئې راولی مګر د قرآن عظیم الشان په منکرانو بدنصیبه خلق د خپله لاسه په عذاب کښې ځان راولی.

کوم خلق چې قرآن عظیم الشان لره د الله ﷻ کلام نه مني ، هغه خو ددې وعید لاندې خامخا رازی لیکن هغه بد نصیبه خلق هم بالکل دې نه نه اووځی کوم چې تلاوت ئې نه کوی. او نه پرې د پوهیدو اوپه دې دعمل کولو سره ئې څۀ غرض وی.

(الَّذِیْنَ یَسْتَحِبُّوْنَ الْحَیٰوةَ الدُّنْیَا عَلَی الْاٰخِرَةِ وَیَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِیْلِ اللّٰهِ وَیَبْغُوْنَهَا عِوَجًا ؕ اُولٰٓئِكَ فِیْ ضَلٰلٍۢ بَعِیْدٍ) په دې آیت مبارك کښې د قرآن عظیم الشان د منکرانو کافرانو درې حالتونه بیان کړې شوی دی ، یو دا چې د آخرت په مقابله کښې ددنیا ژوند زیات خوښوی او دې لره ترې غوره ګڼړی ، په دې وجه ددنیوی فائدې او آرام په خاطر نقصان ورکول زغمی.

په دې شان د دوئ دا مرض په ګوته کړې شو چې دوئ د قرآن عظیم الشان د ښکاره معجزو لیدلو باوجود ددې نه منکر ځکه دی چې ددنیا د موجوده ژوند میني ، دوئ لره د آخرت نه رانده کړی دی ، هم په تیاره کښې پاتې کیدل ئې خوښ دی ، رڼا ته د راتلو هیڅ شوق نه لری، دویم حالت ئې دا بیان کړې شوې دې چې پخپله خو په تیاره کښې پاتې کیدل خوښوی خو په خپلې دې غلطۍ باندې د پردې اچولو دپاره نور خلق هم د رڼا په لارې باندې د تلو نه ایساروی.

**د قرآن پاك په پوهیدو کښې څینې غلطیانې په ګوته کول**:: دریم حالت ئې په (وَیَبْغُوْنَهَا عِوَجًا) کښې بیان کړې شوې دې ، ددې دوه معنې کیدې شی ، ابن کثیر ئې معنی دابیان کړې ده چې دا خلق د بد باطنۍ او بدعملۍ په وجه په دې فکر کښې اخته وی چې د الله ﷻ په روښانه او سمه لار کښې ورته څه خرابي او ورانې ښکاره شی چې اعتراض پرې او کړی او پیغور ورکړی.[1]

بله معنی ئې تفسیر قرطبی دا اختیار کړې[2] ده چې دا خلق په دې تلاش کښې دی چې د الله ﷻ په لار قرآن وسنت کښې ورته د دوئ د خیالونو او خواهشونو مطابق داسې څه څیز په لاس ورشی چې د خپل حقوالی دپاره ئې دلیل جوړ کړې شی ، نن صبا بې شمیره عالمان په دې کښې

[1]) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية [ج: ٤ ص: ٤٧٧]
[2]) تفسیر القرطبي تحت هذه الآية [ ج:٩ص:٣٤٠]

اخته دي چې د خپلې غلطۍ په و جه کله په يو غلط خيال کلك شي او کله د نورو قومونو اثر واخلي او په يو خيال باندې کلك شي ، بيا د ددې د مضبوطولو دپاره په قرآن کريم او حديث پاك کښې څه دليلونه تلاش کوي که ددغه خيال موافق څه لفظ ئې په خپل ګمان کښې راشي نوخپل ځان دپاره ئې قرآني دليل جوړ کړي حالانکه د کار دا طريقه اصولي طور غلطه ده ځکه چې د يو مؤمن د کتاب او سنت په تابعدارئ کولو کار دادې چې کښې خپلو خيالونو او خواهشاتو لره هيڅ دخل نه ورکوي بلکه هر څه چې قرآن عظيم الشان او حديث پاك نه په ښکاره ثابت شي هم هغې باندې روان وي .

(اُولٰٓئِكَ فِيْ ضَلٰلٍۭ بَعِيْدٍ۝) دې جمله کښې د هغې کافرانو خراب انجام بيان کړې شوې دې چې د کوم چې دغه درې حالتونه بيان کړې شوي دي ، حاصل ئې دا شو چې دا خلق په خپلې ګمراهۍ کښې ډير داسې لرې رسيدلي دي چې اوس ددوئ په لاره باندې تلل ګران دي .

**حکمونه او مسائل ::**

تفسير قرطبي کښې راغلي دي ، اګر چې په دې کښې دغه درې حالتونه د کافرانو بيان کړې شوي دي او په دې باندې هم د دوئ د اخراب انجام بناکړې شوې دې چې په ګمراهۍ کښې لرې رسيدلي دي ، ليکن په اصولي طور سره هغه مسلمانان هم ددې وعيد حقدار دي کوم چې دا درې حالتونه لري ،([1]) ددغې درې حالتونو خلاصه داده:

① ددنيا مينه په آخرت غالبه لري تر دې چې د دين رڼا ته نه راڅي .

② پخپله هم د الله ﷻ لارې ته نه راځي او نور خلق هم ددې نه منع کوي.

③ قرآن عظيم الشان او سنت کښې ګډون کولو سره هغې لره د خپلو خيالاتو سره سمون راولي، نعوذ بالله منه.

وَمَآ اَرْسَلْنَا | مِنْ رَّسُوْلٍ | اِلَّا | بِلِسَانِ

| او نه دي ليږلي مونږ | يو رسول | مګر | په ژبه

| اومونږ چې کله هم يو رسول ليږلي دي | نو هغه

قَوْمِهٖ | لِيُبَيِّنَ | لَهُمْ ؕ | فَيُضِلُّ اللّٰهُ

دقوم خپل سره | دپاره ددې چې ښۀ پوهه کړي | هغوئ لره | نو بې لارې کوي الله

خپل قوم ته هم دهغوئ په ژبه کښې پيغبم رسولې دې|چې زمونږ حکمونه ورته په تفصيل سره بيان کړي| بيا چې

مَنْ يَّشَآءُ | وَيَهْدِيْ | مَنْ | يَّشَآءُ ؕ | وَهُوَ الْعَزِيْزُ

هغه څوك چې غواړي هغۀ | او لاره ښائي | هغه چاته | چې غواړي هغۀ | او هغۀ غالب

الله چاته اوغواړي نو ګمراه ئې کړي|او چې چاته اوغواړي نو هدايت ورته اوکړي|اوهغۀ غالب

الْحَكِيْمُ۝

او حکمت والا دې |

اود حکمت خاوند دې|

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۹ص:۳۳۹، ۳۴۰]

## آسان ترجمه قرآن

**او مونږ چه کله هم یو رسول لیږلې دې، هغه مو د خپل قوم په ژبه کښې لیږلې دې چه هغه د هغوی مخې ته حق ښه واضح کړې شی . او بیا الله پاک چالره چه اوغواړی گمراه کوی، او چالره چه اوغواړی هدایت ورکوی، او هم هغه دې چه د هغه اقتدار هم کامل دې، او حکمت ئې هم کامل دې.**

## خلاصه تفسیر

﴿وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا بِلِسَانِ قَوْمِهٖ لِیُبَیِّنَ لَهُمْ ﴾او[ددی کتاب دالله تعالی دطرف نه په نازلیدوکښی چه کوم ځنی کفارداشبه کوي چه داولی عربی دی په دې سره دا احتمال کیدی شي چه پخپله نبي ﷺ تصنیف کړی وي په عجمئ ژبه کښی ولې نه دی چه دا احتمال پکښی نه وي اوقرآن په نوروآسماني کتابونوسره په عجمی والی کښی موافق هم وو نوداشبه محض لغوه ده ځکه چه] مونږتولو[مخکنو]پیغمبرانوته [هم] ددوی دقوم په ژبه کښی پیغمبران لیږلي دي ددي لپاره چه [ددوی په ژبه کښ ] دوی ته [د الله تعالی داحکامو]بیان وکړي [چه اصل مقصود واضح بیان دی ، نو د تولو کتابونو په یوه ژبه کښی کیدل څه مقصدنه دی] ﴿فَیُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ یَّشَآءُ وَیَهْدِیْ مَنْ یَّشَآءُ﴾ بیا[دبیانولونه پس چاته چه الله تعالی غواړي گمراه کوي[چه دوی دغه حکمونه قبول نکړي]اوچاته چه غواړي هدایت ورته کوي [چه دوی دغه احکام قبول کړي ] ﴿وَهُوَ الْعَزِیْزُ الْحَکِیْمُ﴾اوهغه[په تولو کارونو]غالب دی [او] حکمت والادی [پس دغالب کیدو په سبب کښی تولوته هدایت کولی شي مگرد ډیروحکمتونومقتضی دانه شوه].

## معارف او مسائل

رومبی آیت مبارك کښې الله ﷻ دا نعمت او آسانی بیان کړې ده چې الله ﷻ هر یو قوم ته هم دهغوئ په ژبه پیغمبر ځکه لیږی چې هغوئ ته د الله ﷻ حکمونه هم دهغوئ په ژبه او هم دهغوئ په محاورو کښې ښائی چې هغوئ پرې په آسانه پوهه شی ، که د یو پیغمبر ژبه دخپل قوم نه بدله وې نو ښکاره خبره ده چې امت ته به ئې د ترجمې کولو او د ترجمان ضرورت وو. او بیا به په حکمونو باندې پوهولو کښې شك پیدا کیدو. بنا په دې باندې الله ﷻ د عبرانی ژبې قوم ته د عبرانی ژبې پیغبران اولیږل. د فارسئ ژبې خلقو ته ئې د فارسئ ژبې پیغمبر لیږلې دې ، بربرو خلقو ته ئې د بربری ژبې پیغمبران لیږلې دې ، ددې دوه صورتونه کیدې شی ، یو صورت ئې دا وو چې کوم کس لره پیغمبر جوړول وی هغه پخپله ددغې قوم یو غړې وی چې خامخا بۀ ئې ژبه هم ددغې قوم وی یا به ئې پیدا ئشی او مادری ژبه بله وه مگر الله ﷻ به داسې انتظام اوکړو چې هغه بۀ د دغې قوم ژبه زده کړه لکه داؤد ؑ په اصل کښې د عراق اوسیدونکې وو او ژبه ئې فارسی وه لیکن شام ملك ته ئې چې کله هجرت اوکړو هلته ئې واده اوکړو او شامی ژبه ئې زده کړه ځکه الله ﷻ د شام د ملك د یوې علاقې پیغمبر جوړ کړو.

اود زمونږ رسول کریم ﷺ بعثت د مکان او مقام اعتبار سره تولې دنیا دپاره اود زمانې اعتبار سره تر قیامته پورې عام دې .او ددنیا یو قوم د یو ملك اوسیدونکی ، د هرې یو ژبې ویونکی د نبی کریم د رسالت د دائرې څخه بهر نه دی . اوتر قیامته پورې چې به څومره قومونه او ژبې پیدا کیږی ، هغه تول په توله د نبی کریم ﷺ په امت دعوت کښې به داخل وی لکه ځنګه چې قرآن پاك کښې ارشاد دې : (یٰٓاَیُّهَا النَّاسُ اِنِّیْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَیْکُمْ جَمِیْعًا) [ائې خلقو زه تاسو تولو

خلقو ته د الله تعالى د طرفه پيغمبر ليږلې شوې يم] د غه شان په صحيح بخاري او مسلم كښې د جابر ﷺ په روايت كښې راغلى دى چې رسول كريم ﷺ د ټولو پيغمبرانو ﷺ نه دخپلو پنځو ځانله خصوصيتونو ځينې يو خصوصيت دا بيان كړې دې چې زما نه وړاندې هر يو پيغمبر خپل خاص قوم او برادرئ ته ليږلې شو خو زه ټولو بنيادمو ته پيغمبر ليږلې شوې يم.[1]

الله ﷻ انسانى آبادى په دنيا كښې د آدم ﷺ نه شروع كړه او هم هغوئ ﷺ ئې ددوئ رومبې پيغمبر جوړ كړو ، څومره به چې انسانى آبادى زياتيدل ، د اوسيدو اقتصادى حالت به ئې چې څومره وده كوله او نورې معاملې به ئې هم زياتيدې نو دهغه په مناسبت سره درشدوهدايت دپاره به الله تعالى په هره يوه زمانه كښې جدا جدا علاقو ته جدا جدا پيغمبران ﷺ ليږلو چې هغوئ ته هدايت اوكړى او د الله ﷻ حكمونو نه ئې خبر كړى . د زمانې د هر دور او هر قوم د حال مناسب حكمونه او شريعتونه به الله ﷻ نازلول ، تر دې چې انسانى وده كمال ته اورسيده ، څكه الله تعالى د اولينو او آخرينو امام الانبياء محمد رسول الله ﷺ ټولې دنيا ته د پيغمبر په حيثيت راؤليږلو ، كتاب چې وركړو هغه يې هم د ټ،ل عالم دپاره اوتر قيامته پورې يې پيغمبران تاكلى دى چې الله ﷻ فرمائى چې : (اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ)[ما نن تاسو دپاره دين مكمل كړو ، او خپل نعمت مې تاسو دپاره پوره كړو].

هسې خو د ټولو پيغمبرانو ﷺ شريعتونه هم خپل خپل وخت او خپلې خپلې علاقې او خپلې خپلې زمانې دپاره كامل او مكمل وو هغې ته هم نيمګړى نشى وئيلې. خو دشريعت محمديه ﷺ كامليدل څه خاص وخت او خاص علاقې پورې مخصوص نه دى او دا بالكل كامل دې ، په دې وجه ددين مكمل كيدل دې شريعت سره خاص دى او هم په دې وجه په رسول كريم ﷺ باندې پيغمبرى ختمه كړې شوه.

**قرآن پاك ولې په عربئ ژبه كښې دې** :: دلته د اسوال پيدا كيږئ چې څنګه د هر ا مت رسول ﷺ د هغوئ په ژبه كښې راؤليږلې شو او هغوئ ته د هغې د ترجمې كولو خوارى پيښه نه شوه ، نو رسول كريم ﷺ اوپه رسول كريم ﷺ باندې نازل شوې قرآن كريم يو ازې په عربئ ژبه كښې ولې راؤليږلې شو ؟

خو په غوركولو سره هر څوك ددې په جواب صفا پوهيدې شى ، چې رسول كريم ﷺ د سوؤنو ژبو ويونكو دپاره راؤليږلې شو او بلنه ئې د ټولې دنيا قومونو د پاره عامه شوه ، نوټولو دپاره دهدايت صورتونه داسې كيدې شى چې يا خو بهٔ قرآن عظيم الشان د هر قوم په ژبه جدا جدا نازل شوې وو او د رسول كريم ﷺ تعليمات او هدايات به هم د هرقوم په ژبه كښې جدا جدا وو. د الله ﷻ د كامل قدرت په وړاندې ددې انتظام كول څه ګران نه وو خو دا لوئې او اعلى مقصد به پرې نشو حاصليدې ، چې دينى اخلاقى او معاشرتى يو والې او يو مخيزتوب دې. كوم چې د عربئ په قرآن عظيم الشان سره پيدا شوې دې حالانكه په دې قومونو ددنيا كښې په زرګونو قسمه اختلافات موجود دى.

[1] ) صحيح البخارى كتاب التيمم وقول الله تعالى (فَلَمْ تَجِدُوْا مَاۤءً [الخ)[ج:١ص:٤٨]و صحيح مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة، [ج:١ص:١٩٩]

که هر قوم او هر ملك د پاره قرآن عظيم الشان او حديث په جدا جدا ژبه كښې وې نو د قرآن عظيم الشان د بدلولو بې شميره لارې به پرانيستې شوې وې او د قرآن عظيم الشان دا خصوصيت بهٔ باقي نه وو پاتې شوې د كوم د منلو چې غير او منكر خلق هم انكار كولې نشي چې هغه د قرآن عظيم الشان د كلام محفوظ كيدل دى ، په دې شان بهٔ د قرآن عظيم الشان دا معجزانه خصوصيت نه وو پاتې شوې او سره د يو دين او يو كتاب نه به ددې د منونكو لارې جدا جدا شوې وې او ديو والى څه مركزى نقطه به ئې نه وه پاتې شوې ، ددې اندازه دې نه معلوميږى چې په جائز حدودو كښې دننه ددې عربى قرآن عظيم الشان په تعبير او تفسير كښې څومره اختلافات راپيښ شو ، بيا خو به په ناجائزه او باطل طريقو سره د اختلاف څه حد نه وو ، ليكن سره ددې ټولو خبرو د مسلمانانو قومى يو والې او ځانله شان په دې ټولو خلقو كښې موجود دې كوم چې په قرآن عظيم الشان باندې په څه درجه كښې عمل كوونكي دى.

خلاصه دا ده چې هر كله د قرآن عظيم الشان پيغمبرى ددنيا د ټولو قومونو دپاره عامه ده كه په دې صورت كښې د هر قوم تعليم او هدايت دپار دهر قوم په ژبه كښې جداجدا قرآن وې نو د معمولى پوهې خاوند هم درست نشو گنړلې ، ځكه ضرورى شوه چې قرآن عظيم الشان دې هم په يوه ژبه كښې وى او د قرآن عظيم الشان ژبه دې هم ددغې قرآن پاك ژبه وى ، بيا په نورو علاقائى او ملكى ژبو كښې د هغې ترجمې خورې كړې شى ، د قرآن عظيم الشان نائبان دې د قرآن عظيم الشان وركړى هدايتونه د خپل خپل قوم او ملك په ژبه كښې د خلقو د پوهولو دپاره خواره كړى ځكه الله ﷻ په ټولو ژبو كښې د قرآن عظيم الشان دپاره عربى ژبه اوټاكله چې ددې ډير وجوهات كيدې شى.

**د عربى ژبې خصوصيتونه:** اول دا چې عربى د آسمان دفترى ژبه ده ، د فرښتو ژبه عربى ده ، د لوح محفوظ ژبه عربى ده ، لكه قرآن عظيم الشان پخپله فرمائى چې : (بَلْ هُوَ قُرْآنٌ مَّجِيدٌ ۝ فِي لَوْحٍ مَّحْفُوظٍ ۝).([1]) د جنت ژبه هم عربى ده كوم چې د انسان اصلى وطن دې او هلته به واپس ځى ، لكه طبرانى رحمه الله ، مستدرك حاكم رحمه الله ، او شعب الايمان بيهقى كښې د عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې :

(احبوا العرب لثلاث لانى عربى والقران عربى وكلام اهل الجنة عربى).([2])

دې روايت ته حاكم په مستدرك كښې صحيح وئيلې دې ،([3]) په جامع صغير كښې هم د صحيح نخښه خودلې شوې ده ، ځينې محدثينو دې ته ضعيف او مجروح وئيلې دې. حافظ الحديث ابن تيميه رحمه الله فرمائيلى دى چې ددې حديث مضمون ثابت دې چې د حسن د درجې نه كم نه دې [فيض القدير ، شرح د جامع صغير ص: ۱۷۹ جلد: ۱].

د حديث معنى داده چې د درې وجوهاتو په بنا عربو سره مينه كوئى. يو ددې وجې نه چې زه عربى يم ، بل ددې وجې نه چې قرآن عظيم الشان عربى دې ، دريم ددې وجې نه چې د جنتيانو ژبه عربى ده. تفسير قرطبى كښې دا روايت هم نقل شوې دې چې د آدم عليه السلام ژبه به په جنت

---

[1]) ترجمه:- بلكه دا يو عظمت والا قرآن پاك دې چې په لوح محفوظ كښې دې.

[2]) المعجم الأوسط للطبرانى رقم الحديث [۵۷۴۱]، وشعب الإيمان رقم الحديث [۱۴۱۵]

[3]) المستدرك للحاكم ، كتاب معرفة الصحابة، باب ذكر فضائل القبائل رقم الحديث: [۷۰۹۹]

کښې عربی وه . چې زمکې ته راکوز شو او توبه ئې قبوله شوه نو عربی ژبه کښې بدلون راوستو ترې سریانی ژبه جوړه شوه .

دې سره هغه روایات قوی جوړیږی او تائید کیږی کوم چې د عبدالله بن عباس رضی الله عنهما وغیره روایت دې چې په ټولو پیغمبرانو علیهم السلام باندې دنازل شوی آسمانی کتابونو اصلی ژبه عربی ده ، جبرائیل علیه السلام به په قومی ژبه کښې ترجمه اوکړه ، او پیغمبران علیهم السلام ته به ئې خودله . هغوئ علیهم السلام به په قومی ژبه کښې خپلو امتونو ته رسوله . دا روایات علامه سیوطی رحمه الله په خپل کتاب اتقان کښې او اکثرو مفسرینو ددې آیت مبارك د لاندې نقل کړی دی ، ددې خلاصه دا ده چې د ټولو آسمانی کتابونو ژبه عربی وه مګر قرآن عظیم الشان نه سوا د نورو کتابونو ترجمه په ملکی او قومی ژبو کښې شوې ده ، هله پیغمبرانو علیهم السلام ته ورکړې شوې ده . په دې بنا دد ې ټولو معنې د الله ﷻ د طرفه دی مګر الفاظ ئې بدل شوی دی ، دا خصوصیت یوازې د قرآن عظیم الشان دې چې الفاظ او معنې دواړه ئې د الله تعالی د طرفه دی . غالبا هم دا وجه ده چې قرآن عظیم الشان دا دعوی اوکړه چې د ټولې دنیا پیریان او بنیادم چې یو ځائې شی نو د قرآن عظیم الشان د یو وړوکی سورت پشان څه بلکه ددې یو آیت پشان نښی جوړولې ، ځکهن چې د معنې او لفظ په حیثیت سره دا د الله تعالی کلام او د الله ﷻ صفت دې ، چې هیڅوك ددې پشان هیڅ نقل ئې نشی پیش کولې په معنوی حیثیت سره خو نور کتابونه هم اګر چې د الله ﷻ کلام دی خو د الفاظو ترجمه ئې شوې ده ځکه بل آسمانی کتاب داسې دعوی نه ده کړې ، هسې خو ټول آسمانی کتابونو د الله تعالی کلام په حیثیت د قرآن عظیم الشان پشان بې مثله او بې مثاله یقینی وو .

عربی ژبه قرآن عظیم الشان دپاره ځکه مقرر کړې شوه چې دې کښې ډیر زیات صلاحیتونه دی ، او دیو مفهوم ادا کولو دپاره په دې کښې بې شمیره صورتونه او طریقې دی .

بله وجه ئې دا هم ده چې الله ﷻ مسلمان ته په فطری طور عربی ژبې سره یو مناسبت ورکړې دې چې د هغې په وجه هر څوك به په آسانه د خپل ضرورت په مطابق ازده کولې شی ، صحابه کرام رضی الله عنهم چې کوم ملك ته رسیدلی دی په لږ موده کښې ئې بغیر د څه زور زیاتئ نه ددغه ملك ژبه عربی ګرزیدلې ده ، دمصر ، شام او عراق ژبه هم عربی نه وه کومو ته چې اوس عربی ملکونه وئیلې شی .

دا وجه ئې هم ده چې د عربو خلق اګر چې د اسلام نه وړاندې سخت بد عمله وو مګر ددوئ صلاحیتونه او جذبې په دغه وخت هم بې مثله وې هم دغه وجه ده چې الله ﷻ د ټولو نه لوئې او آخری پیغمبر ﷺ ئې په دوئ کښې پیدا کړو او هم ددوئ ژبه ئې قرآن عظیم الشان دپاره غوره کړه او رسول کریم ﷺ ته ئې د ټولو نه مخکښې هم ددوئ د هدایت او تعلیم ورکولو حکم ورکړو لکه فرمائی چې : ﴿وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ﴾(۱) او د ټولو نه اول ئې هم ددې قوم داسې غړی د خپل رسول خواته راجمع کړل چې په هغوئ ئې خپل ځان او مال او هر څه قربان کړل او دهغوئ تعلیمات ئې د خپلو ځانونو نه زیات عزت مند ګڼړل . په دې شان پدوئ باندې دهغوئ د مجلس او تعلیم داسې ژور رنګ اوختو چې په ټوله دنیا کښې داسې یو مثالی معاشره پیدا

---

(۱) ترجمه :- او ته خپل نزدې خاندان اورېروه .

شوه د کومې مثال چې دې نه مخکښې زمکې او آسمان ن وو لیدلې هغوئ ﷺ هم دغه ډله دقرآنی تعلیماتو خوړولو دپاره اودرولـه او وې فرمائیل چې : (بلغواعنی ولوایة) یعنی ما نه آوریدلې خبره امت ته رسوئ . ځان قربانوونکو دغه صحابه کرامو ﷺ دغه نصیحت او فرمان په زړه سره قبول کړو او قرآنی تعلیمات ئې ددنیا گوټ گوټ ته اورسول.

د رسول کریم ﷺ د وفات لا پنځویشت کاله هم نه وو تیر شوی چې د قرآن عظیم الشان آواز د دنیا په مشرق او مغرب کښې خور شو. بل طرفته الله ﷻ په تکوینی او تقدیری طور د تعلیم ، تعلم ، تصنیف او تالیف د تبلیغ او اشاعت داسې جذبه اویو خاص ملکه ددې امت د عوت په زړونو کښې راولاړه کړه چې ددنیا په پخوانو تاریخونو کښې مثال نه ملاویږی ، امت دعوت کښې ددنیا مشرکان ، اهل کتاب ، یهود او نصاری ټول داخل دی. نتیجه ئې دا شوه چې په عجمی قومونو کښې نه یوازې د قرآن عظیم الشان او سنت د عملونو حاصلولو مضبوطه جذبه پیداشوه بلکه دعربی ژبې په حاصلولو د هغې په خورولو او رواج ورکولو کښې د عربو نه روستو پاتې نشو.

دا یو حیراوونکئ حقیت دې چې په دې وخت عربی لغت ، محاورې او ددې د نحو ا وصرف څومره کتابونه چې په دنیا کښې موجود دی هغه اکثر د عجمیانو لیکلې شوی دی ، دغه شان د قرآن عظیم الشان او سنت په راجمع کولو ، ددې په تدوین ، تفسیر او تشریح کښې د عربو نه کمه حصه نه لری .

دغه شان د رسول کریم ﷺ ژبه او د رسول کریم ﷺ کتاب هم د ټولې دنیا نه راچاپیره شو او د بلنې او تبلیغ تر حده پورې د عربو ، عجمو فرق ختم شو . د هر ملك ، قوم او عجمی ژبې په خلقو کښې داسې عالمان پیدا شو چې د قرآن عظیم الشان او سنت تعلیمات ئې په خپلو قومی ژبو کښې ډیر په آسانئ سره اورسول ، په دې شان هغه حکمت هم حاصل شو کوم چې په عربو کښې د رسول کریم ﷺ د رالیږلو وو.

په آخر د آیت کښې ئې اوفرمائیل چې مونږ د خلقو دآسانئ دپاره خپل پیغمبران ﷺ د هغوئ په ژبه کښې ځکه اولیږل چې هغوئ لره زمونږ په حکمونو باندې په ښه شان پوهه کړی ، خو هدایت او گمراهی بیا هم د چا په وس کښې نه ده ، یوازې د الله ﷻ په ا ختیار کښې ده هغه چې اوغواړی چالره په گمراهئ کښې پریږدی او چا تـه چې اوغواړی هدایت ورکوی ، هغه دلوئې قوت او حکمت خاوند دې .

| قَوْمَكَ | اَنْ اَخْرِجْ | بِاٰيٰتِنَآ | مُوْسٰى | وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا |
|---|---|---|---|---|
| قوم خپل | چې راوباسه | د نښو زمونږ سره | موسی | او لیږلې دې مونږ |
| او مونږ موسی ﷺ په خپلو نښو سره لیږلې وو \| چې خپل قوم | | | | |

| بِاَيّٰىمِ اللّٰهِ | وَذَكِّرْهُمْ | اِلَى النُّوْرِ | مِنَ الظُّلُمٰتِ |
|---|---|---|---|
| په عبرتناك تاریخ د الله سره | او نصیحت او کړه هغوئ ته | رڼړا ته | دتیارو نه |
| د[جهالت]د تیارو نه [دعلم] رڼړا ته راوله \| اوهغوئ ته دالله [عبرتناك تاریخی] واقعات وریاد کړه | | | |

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ ﴿٥﴾

بيشكه په دې واقعاتو دتاريخ كښې | خامخا نښې دي | د پاره د هر | صبرناك | شكرايستونكي سړي

په دې كښې دهر صبر كونكي شكر ويستونكي دپاره لوئې لوئې نښې دي..........

وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ

او كله چې | اووئيل | موسى | قوم خپل ته | يادكړئ | نعمت د الله | چې كړې ئې دې په تاسو باندې

اوكله چې موسى خپل قوم ته اووئيل | چې دالله هغه مهربانئ يادې كړئ | كومې چې ئې په تاسوكړې دي

إِذْ أَنْجَاكُمْ مِنْ آلِ فِرْعَوْنَ يَسُومُونَكُمْ

كله چې | هغه خلاصې دركړو تاسو ته | د ملګرو | دفرعون نه | چې رسولو به ئې تاسو ته

څه وخت چې هغهٔ تاسو ته د فرعون د قوم نه نجات دركړو | چې تاسوته به ئې سخت

سُوءَ الْعَذَابِ وَيُذَبِّحُونَ أَبْنَاءَكُمْ وَيَسْتَحْيُونَ نِسَاءَكُمْ ۚ

سختي دعذاب | او ذبح كول به ئې | خامن ستاسو | او ژوندئ به ئې پريښودلې | ښځې ستاسو

تكليفونه دركول | اوستاسو خامن به ئې ذبح كول | او ستاسو لونړه به ئې ژوندئ پريښودلې

وَفِي ذَٰلِكُمْ بَلَاءٌ مِنْ رَبِّكُمْ عَظِيمٌ ﴿٦﴾ وَإِذْ تَأَذَّنَ

او په دې كار ستاسو كښې | آزميښت ووُ | دطرفه درب ستاسو نه | لوئ | او كله چې | خبر اوكړو

اوپه دې كښې ستاسو د رب د طرفه ډير لوئې امتحان وو | .............او هغه وخت ياد كړئ چې ستاسو

رَبُّكُمْ لَئِنْ شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ ۖ وَلَئِنْ

رب ستاسو | كه چرې | شكر اوويستو تاسو | خامخا زيات به دركړم تاسو ته | او كه چرې

رب تاسو ته خبر دركړو | كه تاسو زما شكر اوباسئ | نو زهٔ به ستاسو په نعمتونو كښې زياتې اوكړم | اوكه

كَفَرْتُمْ إِنَّ عَذَابِي لَشَدِيدٌ ﴿٧﴾ وَقَالَ مُوسَىٰ إِنْ تَكْفُرُوا

ناشكري اوكړه تاسو | نو بيشكه عذاب زما | ډير سخت دې | او اووئيل موسى | كه چرې كفر اوكړئ

تاسوناشكري كوئ | نو زما عذاب ډير سخت دې | اوموسى ﷺ اوفرمائيل كه تاسو

أَنْتُمْ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا ۚ فَإِنَّ اللَّهَ لَغَنِيٌّ

تاسو | او هغه څوك | چې په زمكه كښې دي | تول | نوبيشكه الله | غني [بې پروا] دې

او د زمكې په مخ ټول اوسيدنكي د الله ﷻ نه انكار اوكړي | نو الله ﷻ ترې نه بې پرواه دې

حَمِيدٌ ﴿٨﴾

ستائيلې شوې دې |

اوستائيلې شوې دې |

## آسان ترجمه قرآن

او موسىٰ د خپلو نخښو سره اوليږلو چه : خپل قوم د تيرو نه راوباسه او رڼرا ته ئې راوله،
او(مختلف خلقوته چه) الله پاک (د خوشحالۍ او بدحالۍ) كومې ورځې ښودلې دي دهغې په حواله سره

هغوی ته نصیحت اوکړه. حقیقت دا دې چه هرهغه سړې کوم چه صبر او شکر کوی، د هغه دپاره په دې واقعاتو کښې ډیرې نخښې دی. هغه وخت یاد کړئ چه کله موسٰی خپل قوم ته اووئیل چه: الله پاک په تاسو باندې کوم انعام کړې دې، هغه یاد ساتئ چه هغه تاسو ته د فرعون د خلقو نه خلاصې درکړو، چه تاسو ته به ئې بدترین تکلیفونه درکول، او ستاسو ځامن به ئې قتلول، او ستاسو زنانه به ئې ژوندئ پریخودلې اوپه دې ټولو واقعاتوکښې ستاسو د رب د طرف نه ستاسو زبردست امتحان وو. اوهغه وخت هم یاد کړئ چه کله ستا رب اعلان فرمائیلې وو چه که تاسو واقعی شکر اوکړو نو زه به تاسو ته نور هم زیات درکوم. او که تاسو ناشکری اوکړه نو یقین اوساتئ، چه زما عذاب ډیر سخت دې. او موسٰی وئیلې وو چه: که تاسو او هغه ټول خلق چه په زمکه باندې اوسیږی ناشکری اوکړی نو (د الله پاک څه نقصان نشته ځکه چه) الله پاک ډیر بې نیازه دې، بذات خود د تعریف قابل دې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا مُوۡسٰی بِاٰیٰتِنَاۤ اَنۡ اَخۡرِجۡ قَوۡمَكَ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَی النُّوۡرِ﴾ اومونږ موسی علیه السلام دخپلونښنوسره ولیږه چه خپل قوم [دکفراوګناهونو] دتیرونه [ راوباسئ دایمان اوطاعت] رڼاطرف ته ئی راولئ ﴿وَذَکِّرۡهُمۡ بِاَیّٰىمِ اللّٰهِ﴾ اودوی ته دالله تعالی معاملی[دنعمت اوعذاب] وریاد کړی ﴿اِنَّ فِیۡ ذٰلِكَ لَاٰیٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوۡرٍ﴾ بیشکه په دي معاملوکښی عبرتونه دي د هر صابر شاکر لپاره [ځکه چه نعمت یادکړي شکروکړي اوبیا دنعمت لری کیدل اوزوال چه یادکړي نوپه آینده حادثوکښی صبر وکړي] ﴿وَاِذۡ قَالَ مُوۡسٰی لِقَوۡمِهِ اذۡکُرُوۡا نِعۡمَةَ اللّٰهِ عَلَیۡکُمۡ﴾ اوهغه وخت یادکړه چه کله چه[ځمونږددی پورتنی ارشادموافق] موسی [علیه السلام ]خپل قوم ته وفرمائل چه تاسودالله تعالی انعام په خپل ځان باندي یادکړئ ﴿اِذۡ اَنۡجٰکُمۡ مِّنۡ اٰلِ فِرۡعَوۡنَ یَسُوۡمُوۡنَکُمۡ سُوۡٓءَ الۡعَذَابِ﴾ کله چه ئی تاسوته دفرعونیانونه نجات درکړوکوم چه تاسوته ئی سخت تکلیفونه رسول ﴿وَیُذَبِّحُوۡنَ اَبۡنَآءَکُمۡ وَیَسۡتَحۡیُوۡنَ نِسَآءَکُمۡ﴾ اوستاسوزامن به ئی ذبح کول او ستاسی ښځی ئی [جینکئ کومي چه به لوئیدي اوښځی کیدي به] ژوندئ پریخودي [چه کاراوخدمت تري واخلي پس داهم دذبح په شان یوعذاب وو]
﴿وَفِیۡ ذٰلِکُمۡ بَلَآءٌ مِّنۡ رَّبِّکُمۡ عَظِیۡمٌ﴾ اوپه دي [مصیبت اونجات دواړو]کښی ستاسودرب له طرف نه یولوی امتحان دی[یعني په مصیبت کی بلا اوپه نجات کی نعمت وو اوبلا اونعمت دواړه دبنده لپاره امتحان دی. ﴿وَاِذۡ تَاَذَّنَ رَبُّکُمۡ لَئِنۡ شَکَرۡتُمۡ لَاَزِیۡدَنَّکُمۡ﴾ پس په دي کی موسی علیه السلام دایام الله یعنی نعمت اوزوال تذکره وفرمایل چه[ای ځماقومه] هغه وخت یادکړئ کله چه ستاسورب [ځما په واسطه ]خبردرکړوچه که[ځمانعمتونه واورئ ]تاسوشکروکړئ نو درته به [خواپه دنیاکی هم یاپه آخرت کی خوځامخا] ډیرنعمت درکړم ﴿وَلَئِنۡ کَفَرۡتُمۡ اِنَّ عَذَابِیۡ لَشَدِیۡدٌ﴾ اوکه تاسو[دانعمتونه واورئ ]ناشکری وکړئ نو[وپوهیږئ چه]ځماعذاب ډیرسخت دي [په ناشکرئ کښي ئي احتمال شته ] ﴿وَقَالَ مُوۡسٰۤی اِنۡ تَکۡفُرُوۡۤا اَنۡتُمۡ وَمَنۡ فِی الۡاَرۡضِ جَمِیۡعًا ۙ فَاِنَّ اللّٰهَ لَغَنِیٌّ حَمِیۡدٌ﴾ او موسی علیه السلام داهم] اوفرمائیل چه که تاسودټولي دنیاخلق ټول یوځاي ناشکری وکړی نوالله تعالی [ته هیڅ نقصان نشته ځکه چه هغه ] بلکل بی حاجته [اوپخپل ذات کښي] دستائلو شوو صفتونو مالك دي [بل ته داحتیاج هلته څه احتمال نشته ځکه الله تعالی ته دضررهم څه

احتمال نشته، او تاسو خپل ضرراوریدلي دي :ان عذابی لشدید :نوشکر کوئ ناشکری مکوئ]۔

## معارف او مسائل

په ړومبی آیت مبارك كښې دابيان دې چې مونږ موسی ﷺ سره خپل آيتونه وركولو سره اوليږلو چې خپل قوم لره دکفر او د نافرمانئ د تیریو نه د ایمان او فرمانبردارئ رڼړا ته راولی. د آیات نه مراد د تورات آیتونه هم کیدې شی ولی چې دهغې د نازلولو مطلب هم د حق رڼړا خوروُل وو ، بله معنی ئې معجزې هم کیدې شی ځکه چې د هغې په لیدو سره یو شریف او پوهه انسان پخپل انکار اونافرنامنئ باندې قائم نشی پاتې کیدل ، الله ﷻ موسی ﷺ ته نهه معجزې په خاص طور سره ورکړې وې . لکه همسا نه مار جوړیدل ، لاس مبارك نه ئې رڼړا ختل چې د قرآن عظیم الشان په ګڼړو ځایونو کښې راغلی دی .

**یوه نکته** :: دلته موسی ﷺ ته خطاب په دې شان دې چې تاسو خپل قوم تیرو نه رڼړا ته راؤباسئ ، لیکن ددې سورت په ړومبی آیت مبارك كښې دداسې مضمون خطاب رسول کریم ﷺ ته په داسې شان شوېدې چې :

(لِتُخۡرِجَ ٱلنَّاسَ مِنَ ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِۚ) یعنی دقوم په ځائې ناس استعمال شوې دې چې ټول خلق د تیرو نه رڼړا راؤباسې ، دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چې موسی ﷺ خاص قوم مصریانو ته پیغمبر لیږلې شوې وو او رسول کریم ﷺ د ټولې دنیا انسانانو دپاره پیغمبر لیږلې شوې دې.

بیا فرمائی چې : (وَذَكِّرۡهُم بِأَيَّىٰمِ ٱللَّهِۚ) [ اوهغوئ ته دالله [عبرتناک تاریخی] واقعات وریاد کړه]

**اَيّٰمِ اللّٰه** :: ایام د یوم جمع ده چې مشهوره معنی ئې ورځ ده . د ایام الله دوه معنې کیدې شی او هغه دواړه دلته مراد کیدې شی ، یو دا چې په خاصو ورځو کښې جنګ شوې وی یا انقلاب راغلې وی لکه د بدر ، احد ، احزاب او حنین وغیره واقعات یا په پخوانو اُمتونو باندې د عذاب د نازلیدو واقعات چې په کښې لوئې لوئې قومونه زیروزبر یا نیست ونابود شو ، په دې صورت کښې د ایام الله د یادګیرنې ورکولو مطلب ددغې قومونو د کفر او خراب انجام نه ویرول او خبر د اړه کول مقصود دی .

د ایام الله بله معنی د الله تعالی د نعمتونو او احسانونو یادګیرنه کول هم د ی ، دد ې مقصد به دا وی چې د احسان کوؤنکی د احسان په یادګیرنې کولو سره دغه کس ته د هغه د مخالفت او نافرمانئ کولو نه شرم او حیا ورځی .

د قرآن عظیم الشان طرز او د اِصلاح طریقه عموما داده چې د یو حکم ورکولو سره په هغې باندې د عمل د آسانولو تدبیرونه هم خودلې شی ، دلته په ړومبئ جمله کښې موسی ﷺ ته دا حکم ورکړې شوې دې چې د الله ﷻ په آیتونو آؤرولو یا په معجزو خودلو سره خپل قوم د کفر د تیرو نه راؤباسه او د ایمان رڼړا ته ئې راوله ، ددې تدبیر ئې په دې جمله کښې په دې شان اوخودلو چې نافرمانو خلقو لره په سمه لار باندې راوستو دپاره دوه تدبیرونه دی ، یو دا چې سزا نه ویرولې شی ،بله دا چې په نعمتونو او احسانونو وریادولو سره فرمانبردارئ ته راؤبللې شی ، نو د (وَذَكِّرۡهُم بِأَيَّىٰمِ ٱللَّهِۚ) [اوهغوئ ته دالله [عبرتناک تاریخی] واقعات وریاد کړه] دی نه دا دواړه څیزونه مرا داخستې شی ، یعنی د پخوانو امتونو دنافرمانو د خراب انجام په وریادولو سره د عذاب راتلو یا په جهاد کښې د دوئ د وژلی کیدو په وجه ددوئ ذلیل او خوار کیدل

وریادول چې عبرت ترې واخلي او ځان ترې اوساتي.
دویم مطلب ترې دا هم اخستې شي چې په کوم قوم باندې د الله ﷻ عام نعمتونه شپه ورځ وریږي او خاص نعمتونه په هره موقعه په هغوئ باندې کیږي ، لکه په میدان تیه کښې د هغوئ په سرونو باندې د وریځې سوري کیدل خوراك دپاره د من او سلوی نازلیدل ، دضرورت په وخت کانړي نه دچینو راوتل وغیره ورته یادلو او د الله تعالی فرمانبرداري ته ئې رابلل.
(اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰیٰتٍ لِّکُلِّ صَبَّارٍ شَکُوۡرٍ) [په دې کښې دهر صبر کونکی شکر ویستونکی دپاره لوئې لوئې نښې دی]
(صَبَّارٍ) د صبر نه د مبالغې صیغه ده . معنی ئې ډیر زیات صبر کوونکې ، دغه شان شکور شکر نه د مبالغې صیغه ده ، معنی ئې ډیر زیات شکر گذار ، دې د ټولې جملې معنی ئې دا شوه چې ایام الله که دمنکرانو د سزا او عذاب په باره کښې وی یا د الله تعالی د احسانونو اوانعاماتو په باره کښې وی ، په هر حال په تیرو شوؤ واقعاتو کښې د الله ﷻ د کامل قدرت او د حکمت بالغه لوئې نښانې اودلیلونه موجود دی ، دهغه چا دپاره چې صبر کوونکې او ډیر شکر کوونکې وی.
مطلب دادې چې ښکاره نخښې او دلیلونه اگر چې د هر غور کوونکی د هدایت دپاره دی مگر بدنصیبه کافران په دې کښې هډوغور وفکر نه کوی ، او فائده ترې نه پورته کوی ، فائده ترې صرف هغه خلق اخلی چې صبر ، شکر دواړه کوی ، مراد ترې مؤمنان دی ، بیهقی د انس رضی الله عنه نه روایت نقل کړې دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې : دایمان دوه حصې دی یوه صبر او بله شکر [مظهری].(۱)
عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائیلی دی چې صبر نیم ایمان دې ،(۲) په صحیح مسلم او مسند احمد کښې د صهیب رضی الله عنه نه روایت دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل : د مؤمن هر حال سراسر خیر او ښیگړه ده چې سوا د مؤمن نه دبل هیچا په نصیب کښې نشته ، وجه ئې داده چې د راحت نعمت او عزت په حالت کښې د الله ﷻ شکر گذار وی چې د دین ، دنیا د خیر ښیگړې سبب جوړیږی لکه د الله ﷻ د وعدې مطابق ددهٔ دپاره نعمت زیاتیږی . او ورسره قائم پاتې کیږی.اوپه آخرت کښې ورته ددې شکر کولو په وجه به لوئې اجر ملاویږی.(۳)
دغسې د تکلیف او مصیبت په وخت باندې چې مؤمن په هغې صبر کوی د هغې په وجه پرې مصیبت هم د نعمت او آرام سامان جوړ شی ، د صبر په برکت په دنیا کښې د غه کس ته د الله تعالی یو نزدیکت نصیب کیږی لکه قرآن عظیم الشان فرمائی چې : (اِنَّ اللّٰہَ مَعَ الصّٰبِرِیۡنَ)(۴) الله ﷻ چې چا سره وی نو په انجام کښې د هغه مصیبت په راحت باندې بدل شی او په آخرت کښې ورته د صبر لوئې اجر د الله تعالی په نزد بهٔ بې حسابه وی لکه قرآن عظیم الشان فرمائی

۱) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة [ج:۵ص:۲۵۵] وشعب الإیمان للبیهقی رقم الحدیث[۹۳۸۳]
۲) المعجم الکبیر للطبرانی رقم الحدیث[۸۵۴۴]
۳) صحیح مسلم کتاب الزهد الرقائق، باب فی احادیث متفرقة [ج:۲ص:۴۱۳] ومسند احمد حدیث صهیب رضی الله عنه رقم الحدیث[۲۲۷۹۸]
۴) ترجمه:-بیشکه الله صبر کوؤنکو سره دې.

چې (إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ أَجْرَهُم بِغَيْرِ حِسَابٍ)(۱)
خلاصه ئې داده چې د مؤمن هيڅ يو حال خراب نه وي ، سراسر ښه او ښه وي ، چې ګذاريدو کښې هم ترقي کوي ، او په ورانيد کښې هم سميږي او جوړيږي :

نه شوخی چل سکی بادِ صبا کی　بگڑنے میں بھی زلف اسکی بنا کی

[ترجمه]: د باد صبا خشنګي څه کارا ونه کړې شو ، ولې چې د محبوب زلفولره د ورانولو په ځائې ئې جوړې کړې.
ايمان داسې دولت دې چې مصيبت او تکليف لره هم په راحت اونعمت سره بدلوي ، ابوالدرداء رضي الله عنه فرمائيلي دي چې ما رسول کريم ﷺ نه آوريدلي دي چې الله ﷻ عيسى عليه السلام ته اوفرمائيل چې څه تاسو نه پس دداسې يو امت پيدا کوونکې يم چې که د هغوئ د زړه مراد پوره شي او د هغوئ د خوښې کار ترې اوشي نو هغوئ به شکر اداکوي اوکه د هغوئ دخوښې او مرضئ نه خلاف څه کار ورته راپيښ شي نو د ثواب په خيال صبر پرې کوي. خو دا عقل مندي او زغم د هغوئ په وس کښې به نه وي بلکه مونږ به ورته د خپل علم او برداشت يوه حصه ورکړو [مظهري].(۲)
دشکر د حقيقت خلاصه داده چې د الله ﷻ ورکړې نعمتونه دهغه په نافرمانئ په حرامو او ناجائزه کارونو کښې خرچ نه کړي او په ژبه د الله ﷻ شکر ادا کوي او خپل کارونه هم د هغه د مرضئ مطابق جوړ کړي.
او دصبر خلاصه داده چې د طبيعت نه په خلاف کارونو باندې پرشانه شي ، په خپل قول او عمل کښې د نا شکرئ نه ځان ساتي ، په د نيا کښې هم د الله تعالى د رحمت او اميدوار وي او په آخرت کښې هم دصبر د لوئې اجر يقين لري.
دويم آيت مبارک کښې ددې مضمون زيات تفصيل داسې دې چې موسى عليه السلام ته حکم ورکړې شو چې هغه دې خپل قوم بنى اسرائيل ته د الله ﷻ ددې خاص نعمت يادګيرنه اوکړي چې موسى عليه السلام نه وړاندې فرعون دوئ لره غلامان جوړ کړي وو. خو د غلامانو پشان سلوک به ئې هم ورسره نه کولو. د دوئ نارينه اولاد بۀ ئې پيدا کيدو سره زر تر زره قتل کولو صرف جينکئ به ئې پريښودلې او غرض بۀ ئې دا وو چې لوئې شي نو خدمتګارې به ئې جوړې کړي. موسى عليه السلام چې الله ﷻ پيغمبر جوړکړو نو دهغوئ په برکت سره ئې بنى اسرائيل ددغې فرعونى عذاب نه بچ کړل.

## د شکر او نافرمانئ نتائج

(وَإِذْ تَأَذَّنَ رَبُّكُمْ لَئِن شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ وَلَئِن كَفَرْتُمْ إِنَّ عَذَابِي لَشَدِيدٌ)
تاذن د اذن نه دې معنى ئې اجازت خبر ورکول او اعلان کول دي ، په دې بنا د ټول آيت مبارک معنى دا شوه چې :
[او هغه وخت ياد کړئ چې الله ﷻ دا عام اعلان کړې دې چې که تاسوزما د نعمتونو شکر ادا کړو په دې شان چې زما په نافرمانو او په ناجائزو کارونو کښې مو خرچ نه کړو او خپل عملونه

(۱) ترجمه:-صبر کوونکو(مستقل اوسيدونکو) ته دهغوئ بدله خامخا ملاويږي.
(۲) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:۵ص:۲۵۵] وشعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث[۴۳۰۶]

او کارونه مو زما د مرضئ مطابق کولو کوشش اوکړو نو زه به دغه نعمتونه نورهم زيات کړم]
دا زياتوالی په مقدار کښې هم کيدې شی اوپه باقي او هميشه پاتې کيدو کښې هم کيدې شی.
رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې چاتـه د شکر ادا کولو توفيق اوشو نو هغه بـه هيچرې پـه نعمتونو کښې د برکت او زياتوالی نه نه محرومه کيږی .[روايت از ابن مردويه عن ابن عباس رضی الله عنه [مظهری] .(۱)

اودائي هم اوفرمايېل چې [اوکه تاسوناشکری کوئ] نو زما عذاب ډير سخت دې ] ناشکری کول دا مطلب لری چې د الله ﷻ نعمتونه دهغه په نافرمانئ او ناجائزه کارونو کښې خرچ کړې يا دهغې د فرضو او واجباتو په ادا کولو کښې سستی اوکړی د ناشکرئ عذاب پـه د نيا کښې داسې هم کيدې شی چې نعمت ترې لرې شی يا په داسې مصيبت کښې اخته شی چې د نعمت نه فائده هم وانه خستې شی او د آخرت په عذاب کښې هم را ګير شی .

دلته دې خبرې ته هم په ژور نظر کتل پکار دی چې پدې آيت مبارك کښې الله ﷻ د شکر ګذارو د اجر و ثواب او د نعمت د زياتوالی وعده کړې ده او تاکيد ئې هم د هغې داسې فرمائيلې دې (لَأَزِيدَنَّكُمْ) ليکن بل خوا تاکيد وغيره خو لاځه کوې چې ناشکرو سره د عذاب ورکولو وعده ئې هم نه ده فرمائيلې بلکه صرف دومره ئې اوفرمائيل چې زما عذاب پـه چا راشی هغه ډير سخت وی ، په دې کښې اشاره معلومه شوه چې د ناشکره خلقو په عذاب کښې راګيريدل څه ضروری نه دی بلکه د معافئ امکان ئې هم شته دې .

(وَقَالَ مُوسَىٰ إِن تَكْفُرُوا أَنتُمْ وَمَن فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا فَإِنَّ اللَّهَ لَغَنِيٌّ حَمِيدٌ ۝)[ اوموسی علیه السلام خپل قوم تـه اوفرمائيل چې که تاسو او په زمکې باندې د آباد ټولو خلقو د الله ﷻ د نعمتونو ناشکری کول شروع کړل نو ياد ساتئ چې په دې کښې د الله ﷻ هيڅ زيان شته هغه خو د ټولو خلقو پـه ثنا او صفت ، پـه شکر او ناشکرئ هيڅ اړه نه لری ، هغه پخپل ذات کښې د ستائيلو حقدار دې ]

که تاسو ئې ثنا صفت اونه کړئ نو د الله ﷻ ټولې فرښتې او ددنيا ذره ذره ئې ثناء او صفت کوی د شکر کولو ټوله فائده خو هم ستاسو ده ، که الله ﷻ تاسو ته د شکر کولو تاکيد کړې دې نو هغه د خپلې فائدې دپاره نه بلکه د رحمت کولو پـه وجـه ئې تاسو تـه د فائدې رسول دپاره کړې دې .

| أَلَمْ يَأْتِكُمْ | نَبَؤُا | الَّذِينَ | مِن قَبْلِكُمْ |
|---|---|---|---|
| آيا نه دې راغلې تاسو ته | خبر | دهغه کسانو | چې وو مخکښې ستاسو نه |
| .......آيا تاسوته د هغه خلقو واقعات نۀ دی راغلی | | | چې ستاسو نه وړاندې وو |

| قَوْمِ نُوحٍ | وَعَادٍ | وَثَمُودَ | وَالَّذِينَ | مِن بَعْدِهِمْ |
|---|---|---|---|---|
| يعنی خبر] د قوم د نوح | او خبرد عاد قوم | او د ثمود قوم | او د هغه کسانو | چې روستو د هغوئ نه وو |
| د نوح علیه السلام د قوم اود عاديانو اود ثموديانو او د هغې ټولو قومونو چې د هغوی نه روستو راغلی وو | | | | |

(۱) تفسير المظهری تحت هذه الآية [ج:۵ص:۲۵۶] وشعب الإيمان للبيهقی رقم الحديث[۴۳۵۱]

لَا يَعْلَمُهُمْ　اِلَّا اللّٰهُ ؕ　جَآءَتْهُمْ　رُسُلُهُمْ

چې شماره د هغوئ معلومه نۀ ده هیچاته | مګر الله ته | راغلل هغوئ ته | رسولان د هغوئ

د هغوئ شمیره بې د الله ﷻ نه بل چاته معلومه نۀ ده | هغوئ ته خپلو پیغمبرانو

بِالْبَيِّنٰتِ　فَرَدُّوْٓا　اَيْدِيَهُمْ　فِيْٓ اَفْوَاهِهِمْ　وَقَالُوْٓا　اِنَّا كَفَرْنَا

دصفانښوسره | نو ویوړل هغوئ | لاسونه خپل | په خلوخپلو کښې( [1] ) | او وې وئیل | بیشکه مونږ نۀ منو

ښکاره نخښې راوړې وې | خوهغوئ خپل لاسونه د دغو پیغمبرانو په خلو کښې ورکړل | اووې وئیل چې

بِمَآ　اُرْسِلْتُمْ　بِهٖ　وَاِنَّا　لَفِيْ شَكٍّ

هغه پیغام | چې تاسو رالیږلی شوی یئ | د هغې سره | او بیشکه مونږ | په شك کښې یو

مونږستاسوپه ذریعه رالیږلی شوی حکمونو نه انکار کوؤ | او تاسو چې مونږ کوم دین طرف ته رابلئ

مِّمَّا　تَدْعُوْنَنَآ　اِلَيْهِ　مُرِيْبٍ ⑨　قَالَتْ

د هغه خبرې نه | چې تاسو رابلئ مونږ | هغې ته | [هغه شك] چې سخت پریشانه کونکې دې | اووئیل

د هغې په باره کښې زمونږ [په زړونو کښې] شک او تردد دې | .............دهغوئ پیغمبرانوورته

رُسُلُهُمْ　اَفِي اللّٰهِ　شَكٌّ　فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ　وَالْاَرْضِ ؕ

رسولانو دهغوئ | آیا په باره دالله کښې | شك دې | چې پیدا کونکې د آسمانونو | او د زمکې دې

اووئیل ( [2] ) | ایا تاسو دالله ﷻ په وحدانیت کښې شک کوئ | چې اسمانونه او زمکې ئې پیدا کړې دی

---

[1] ) **د لاسونو خولو ته د واپس کولو مطالب:-** هغوی خپل لاس دَ هغوی دَ خُلو پورې واپس یوړل، ① دَ دې یوه معنی خو داده چه دَ رسولانو خُلې ئې بند کړې. ②یوه معنی داهم ده چه هغوئ خپل لاس په خپله خُله باندې کیخودو چه صرف دروغ دی کوم چه رسول وائی. ③ یوه معنی داده دَ جواب نه لاچاره شو نو ګوتې په خپله خُله باندې کیخودې. ④ یوه معنی دا هم ده چه په خپله خُله باندې دروغ اوګڼړل. ⑤ او دا هم کیدې شی چه دلته ﴿فِيْ﴾ په معنی دَ "ب" وی لکه بعضې عرب چه وائی ﴿ادخلك الله بالجنة يعنى فى الجنة﴾ په شعرکښې هم دا محاوره استعمال شوې ده او دَ مجاهد رحمه الله په قول دې نه پس جمله هم دَ دې تفسیر ده. ⑥ دا هم وئیلې شوی دی چه هغه دَ غصې په وجه خپلې ګوتې په خپله خُله کښې ورکړې. (حاکم: ۲/۳۵۰-۳۵۲) دغه شان په بل آیت کښې دَ منافقانو باره کښې دی ﴿وَاِذَا خَلَوْا عَضُّوْا عَلَيْكُمُ الْاَنَامِلَ مِنَ الْغَيْظِ﴾ دا خلق په خلوت کښې ستا نه دَ سوزیدو په وجه په خپلو ګوتو چکونه لګوی. داهم دی چه د الله تعالی کلام اوریدو سره د حیرانتیانه خپل لاسونه په خپله خُله باندې ایږدی او وائی چه مونږ خو ستا د رسالت منکر یو تاربنتونې نه ګڼړو بلکه په سخت شك کښې یو.

[2] ) **دَ قوم په غلطوکارونو دَ انبیاوُ په الله باندې توکل:-** دَ رسولانو اودَهغوی دَ قوم دَ کافرانو په مینځ کښې دَ خبرو اترو بیان کیږی.قوم دَ الله تعالی په عبادت کښې شك شبه اوکړه. په هغې باندې رسولانو اوفرمائیل چه دَ الله تعالی باره کښې شك؟ یعنی دَ هغه په وجود کښې شك څنګه؟ فطرت دَ هغه د عدل شاهد دې. دَ انسان په بنیادکښې دَ هغه اقرار موجود دې. عقل سلیم دَ دې په منلو بندې مجبور دې. ښه ده که چرې دلیل بغیردَ اطمینان نه وی نو ګوره د...... [باقی په راروانه صفحه...

يَدۡعُوكُمۡ | لِيَغۡفِرَ لَكُم | مِّن ذُنُوبِكُمۡ | وَيُؤَخِّرَكُمۡ

هغه رابلي تاسو | د پاره ددې چې اوبښي تاسو ته | دګناهونو ستاسو نه | او مهلت درکړي تاسوته

هغهٔ خو تاسو [توحيد] ته رابلي | چې ستاسو ګناهونه معاف کړي | اوتر يوې نيتې پورې

إِلَىٰٓ أَجَلٖ مُّسَمًّىۚ | قَالُوٓاْ | إِنۡ أَنتُمۡ | إِلَّا | بَشَرٞ | مِّثۡلُنَا | تُرِيدُونَ

دنيتې مقررې پورې | اووئيل هغوئ | چې نه يئ تاسو | مګر | انسانان يئ | په مثل زمونږ | اراده لرئ

مهلت درکړي | هغوئ ورته اووئيل چې تاسو خوزمونږ غوندې انسانان يئ | ..................تاسو

أَن تَصُدُّونَا | عَمَّا | كَانَ يَعۡبُدُ | ءَابَآؤُنَا

چې تاسو منع کړئ مونږ | د هغې نه | چې عبادت به کوؤ [د هغې] | پلارانو زمونږ

خو صرف دا غواړئ | چې مونږ د هغو [معبودانو] نه منع کړئ | چې زمونږ پلار نيکه ئې عبادت کولو

فَأۡتُونَا | بِسُلۡطَٰنٖ | مُّبِينٖ ۝ | قَالَتۡ | لَهُمۡ | رُسُلُهُمۡ | إِن نَّحۡنُ | إِلَّا

نو راوړئ مونږ ته | يو دليل | ښکاره | اووئيل | هغوئ ته | رسولانو د هغوئ | چې نهٔ يو مونږ | مګر

ښهٔ ده نو مونږ ته يوه ښکاره معجزه راوړئ | پيغمبرانو ورته اووئيل چې مونږ خو بيشکه

---

....باقي حاشيه د تيرمخ]...ا زمکه اوآسمان څنګه پيدا شو. دَ موجود دَ پاره دِ مؤجد کيدل ضروري دي. دا بغير دَ نمونې نه پيداکونکې هم هغه وحده لاشريك دې. دَ دې عالم دَ نوی سر نه پيداکيدلِ تابعدار اومخلوقِ کيدل بالکل ښکاره دی. دې سره څه دومره لويه خبره هم په پوهه کښې نه راځي چه دَ دې جوړونکې دَ دې خالق دې. او هغه هم الله تعالی دې چه دَ هرِ څيز خالق مالك او معبودبرحق دې. آيا ستاسو دَهغه په الوهيت او وحدانيت کښې شك دې؟ کله چه دَ ټولو موجوداتو خالِق او پيدا کونکې هم هغه دې نو بيا به په عبادتونوکښې هغه ولې يوازې نه وی؟ اکثر امتونه دَ خالق دَوجودقائل وو بيا دَنورو عبادت کول ئې واسطه او وسيله ګڼړلو سره الله تعالی ته نيزدې کونکی او ګټه ورکونکی ګڼړلې وو. دَ دې دَ پاره به دَ الله تعالی پيغمبر دَدوی دَ عبادتونو نه منع کول. چه الله تعالِی تاسو خپل طرف ته رابلي چه په آخرت کښې ستاسو ګناه معاف کړی او چه کوم مقدر وخت دې دَ هغې پورې تاسو په نيکئی سره اورسوی. هر يو فضيلت والا ته به دَ هغه فضيلت ورکړی. نو امتونو ړومبې مقام منلو نه پس جواب ورکړو چه ستا رسالت مونږ څنګه اومنو؟ په تاکښې خو انسانيت هم زمونږ په شان دې ښه ده که چرې رښتونې ئی نو يوه زبردسته معجزه پيش کړه کومه چه دَ انساني طاقت نه بهر وی. دَ دې په جواب کښې دَالله تعالی پيغمبر اوفرمائيل چه دا خو بالکل حقيقت دې چه زه هم ستاسو په شان انسان يم خو رسالت او نبوت خو دَ الله تعالی ورکړه ده هغه چه چا له غواړې ورکړی، انسانيت دَ رسالت سره منافی نه دې اوکوم څيز چه تاسو زما په لاس کښې ليدل غواړئی دَ هغې متعلق هم واوړئی چه هغه زمونږ دَ وس کار نه دې اودا ده چه مونږ دَ الله تعالی نه سوال اوکړو که زمونږ دعا قبوله شوه نو بې شکه مونږ به اوښايو. دَ مؤمنانو خو په هرکارکښې په الله تعالی باندې توکل دې او په خصوصيت سره خو زمونږ په دې باندې ډير يقين او توکل دې، اودَ دې دَ پاره هم چه هغه په ټولو لاروکښې مونږ ته بهترين لاره اوخودله. تاسو چه څومره غواړئی تکليف راکړئی ان شاءالله دَ الله تعالی لمن به زمونږ دَ لاس نه خلاصه نه شی.دَ متوکلينو دَ ډلې دَ پاره دَ الله تعالی توکل کافی دې.

بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَمُنُّ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ط

انسانان يو | پشان ستاسو | ليکن الله | احسان کوي | په هغه چا | چې اوغواړي | دبندګانو خپلو نه

ستاسو پشان انسانان يو | خو الله ﷻ چې په خپلو بندګانو کښې په چا اوغواړي | په هغهٔ احسان اوکړي

وَمَا كَانَ لَنَآ اَنْ نَّاْتِيَكُمْ بِسُلْطٰنٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ط

او دا زمونږ په اختيار کښې نهٔ ده | چې مونږ راوړو تاسو ته | يو دليل | مګر | په حکم د الله سره

او دا زمونږ په وس کښې نهٔ ده | چې مونږ تاسو ته د الله ﷻ دحکم نه بغير څه معجزه اوښايو

وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ۝ وَمَا لَنَآ

او خاص په الله باندې | پکار دي چې بهروسه اوکړي | مومنان | او څه شوي دي په مونږ باندې

اومؤمنانوله پکار دي چې صرف په الله تعالى باندې بهروسه اوکړي | او څه دي مونږ له چې مونږ

اَلَّا نَتَوَكَّلَ عَلَى اللّٰهِ وَقَدْ هَدٰىنَا سُبُلَنَا ط

چې بهروسه به نهٔ کوؤ مونږ | په الله باندې | حال دا چې هغهٔ ښودلې دي مونږ ته | لارې د ژوند زمونږ

توکل نه کوؤ په الله ﷻ او حال دا دې چې هغهٔ مونږ ته زمونږ [ددين] طريقې ښودلې دي | او تاسو چې

وَلَنَصْبِرَنَّ عَلٰى مَآ اٰذَيْتُمُوْنَا ط وَعَلَى اللّٰهِ

او خامخا به صبر کوؤ مونږ | په هغه تکليفونو باندې | چې رسوئ ئې تاسو مونږ ته | او خاص په الله باندې

مونږ ته کوم تکليف راکوئ مونږ به په دې ضرور صبر کوؤ | او هم په الله ﷻ باندې دې توکل ........

فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُوْنَ ۝ وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

پکار دي چې بهروسه اوکړي | بهروسه کونکي | او اووئيل | هغه کسانو | چې انکاريان دي

کونکو ته پکار ده چې توکل اوکړي | او کومو خلقو چې دکفر لاره اختياره کړه | هغوئ خپلو

لِرُسُلِهِمْ لَنُخْرِجَنَّكُمْ مِّنْ اَرْضِنَآ اَوْ لَتَعُوْدُنَّ

رسولانو خپلوته | خامخا به اوباسو مونږ تاسو لره | د زمکې نه | يا به خامخا واپس راځئ تاسو

پيغمبرانو ته اووئيل | چې مونږ به تاسوضرور د خپلې زمکې نه اوباسو[1] | يا به زمونږ مذهب ته بيا

---

[1] **پيغمبرانو ته دهمکياني ورکول:-** کافران چه کله تنګ شو او هيڅ حجت باقي پاتې نه شو نو انبياؤ ته ئې دهمکيانې ورکولې اودَ وطن نه دَ ويستلو نه ئې ويرول. دَ حضرت شعيب عليه السلام قوم هم خپل نبي او مؤمنانوته هم دا وئيلې وو چه تاسو به دَ خپل کلي نه اوباسو. لوطيانو همدغه وئيلې وو چه آل لوط د خپل ښار نه اوباسئ. دَ قريشو مشرکانو هم دغه منصوبه تياره کړې وه او دائې هم وئيلې وو چه قيدئې کړئ يا قتل ئې کړئ او يا دَ ملك نه ئې اوباسئ. هغوی لکه چه مکر کولو خو الله تعالی هم په هغوی پوهيدلو خپل نبي ئې په سلامتياسره دَ مکې د ښار نه اوويستلو. دَ مدينې خلق ئې دَ هغه امداديان او انصار کړل. هغوی دَ حضور ﷺ په لښکر کښې شامل شواوهم دَ هغوی ﷺ د جهنډې لاندې کافرانوسره جنګيدل او درجه په درجه الله تعالی هغوی له ..... [باقي په راروانه صفحه...

| لَنُهْلِكَنَّ | رَبُّهُمْ | اِلَيْهِمْ | فَاَوْحٰى | فِيْ مِلَّتِنَا ؕ |
|---|---|---|---|---|
| په دين زمونږ کښې \| نو وحي اوکړه \| هغوئ ته \| رب د هغوئ (۱) \| چې خامخا به هلاك کړو مونږ | | | | |
| واپس کيږئ \| نو خپل رب هغوئ ته وحي اوکړه \| چې مونږ به ضرور ظالمان ........................ | | | | |

| ذٰلِكَ | مِنْۢ بَعْدِهِمْ ؕ | الْاَرْضَ | وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ | الظّٰلِمِيْنَ ۙ﴿۱۳﴾ |
|---|---|---|---|---|
| داظالمان \| او خامخا به آباد کړو مونږ تاسو \| په دغه زمکه کښې \| روستو دهغوئ نه \| دا [انعام دې] | | | | |
| تباه کوؤ \| اوتاسو به د هغوئ نه پس په دغې زمکه کښې آبادوؤ \| ...... (۲)..............دا [د انعام وعده] | | | | |

| وَعِيْدِ ﴿۱۴﴾ | وَخَافَ | مَقَامِيْ | خَافَ | لِمَنْ |
|---|---|---|---|---|
| د پاره د هغه چا \| چې اوويريدو \| د ودريدو نه ما ته \| او اوويريدو \| د وعدې د عذاب زما نه | | | | |
| هر هغه چاسره ده \| چې زما په وړاندې اودريدو نه \| او زما د وعدې نه ويريږي | | | | |

.....باقي حاشيه د تيرمخ]...ترقي ورکړه او تردې چه هغوی مکه هم فتح کړه. اوس خو دَ دين دَ دښمنانو منصوبې په خاوروکښې ملاوْ شوې. دَ هغوی په اميدونوياندې پربشه پريوتله اودَ هغوی خواهشات ختم شو. دَ الله تعالى دين دَ خلقو په سينوکښې مضبوط شو، او ډلې ډلې په دين کښې داخل شو. په مخ دَ زمکې په ټولو دينونوياندې دَ اسلام دين خور شو. دَ رب کلمه اوچته شوه او په لږه شان موده کښې دَ مشرق نه تر مغرب پورې اسلام خور شو الحمدلله. تردې ځائ پورې فرمان دې چه يوخوا کافرانو انبياؤ له دهمکياني ورکولې.

(۱) بل خوا الله تعالى دَ هغوی سره ربښتوني وعده اوفرمائيله چه هم دوی به هلاکيږی او دَ زمکې مالکان به تاسو جوړيږئ، لکه چه فرمان دې چه زمونږ کلمو زمونږ دَ رسولانو باره کښې وړاندې والې کړې دې او هم زمونږ لښکرې به غالبيږی. او په آيت کښې دی ﴿كَتَبَ اللّٰهُ لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَرُسُلِيْ﴾ الخ. الله تعالى ليکلى دی چه زه او زما پيغمبر به غالبيږو نو الله تعالى قوت والا دې او عزت والا دې. او په آيت کښې ارشاد مبارك دې چه دَ ذکر نه پس په زبور کښې هم دا ليك دې. حضرت موسى ﷺ خپل قوم ته هم دغه فرمائيلې ووچه تاسو دَ الله تعالى نه امداد غواړئ اوصبر کوئ، زمکه هم دَ الله تعالى ده په خپلو بنديگانوکښې چه څوك غواړی واکمن به ئې جوړ کړی. او انجام کارهم دَ پرهيزګارانو دې. يوبل ځائ کښې ارشاد دې ﴿وَاَوْرَثْنَا الْقَوْمَ الَّذِيْنَ كَانُوْا يُسْتَضْعَفُوْنَ مَشَارِقَ الْاَرْضِ وَمَغَارِبَهَا الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا ؕ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ الْحُسْنٰى عَلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۙ بِمَا صَبَرُوْا ؕ وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهٗ وَمَا كَانُوْا يَعْرِشُوْنَ﴾ ضعيفان او کمزوری خلق مونږ دَ مشرق او مغرب وارثان جوړ کړل چرته چه زمونږ برکتونه وو. دَ بنی اسرائيلو دَ صبر په وجه چه هغوی سره زمونږ کومه بهترينه وعده وه هغه مونږ پوره کړه. دَ هغوی دښمن فرعون او فرعونيان اودَ هغوی کړې شوی تياريانې ټولې په يو ځل خاوړو کښې يوځائ شوې.

(۲) نبيانوته اوفرمائيلې شوچه زمکه به ستاسوپه قبضه کښې راشی. داوعده دَ هغه خلقو دَ پاره ده چه دَ قيامت په ورځ زما په وړاندې اودريدو نه ويريږی. او زما دَ ويرولو او عذاب نه ويره خوری. لکه چه فرمان دې ﴿فَاَمَّا مَنْ طَغٰى﴾ يعنی چا چه سرکشي اوکړه او دَ دنياژوندله ئې ترجيح ورکړه دَ هغه ځائ دوزخ دې. او په آيت کښې دی چه دَ خپل رب په وړاندې دَ اودريدو ويره چا اوکړه هغه ته به ډبل جنتونه ملاويږی.

| وَاسْتَفْتَحُوْا | وَخَابَ | كُلُّ جَبَّارٍ | عَنِيْدٍ ۝ |
|---|---|---|---|
| او فيصله غوښتلې وه هغوئ | نو ناكام شو | هر سركشه | عنادي |

اوهغوئ فيصله اوغوښتله(۱) اوهر سركش (۲) عنادي نامراده پاتې شو

## آسان ترجمه قرآن

(اې كفار مكه) آيا تاسو ته دهغه خلقو خبرنه دې رارسيدلې كوم چه ستاسو نه مخكښې تېرشوې دي، قوم نوح، عاديان، ثموديان اودهغوى نه روستورا تلونكي قومونه كوم چه دالله پاك نه سوا چاته هم نه دي معلوم هغوى ټولوته دهغوى رسولانو ښكاره ښكاره دلائل راوړل، نوهغوى دهغوى په خولو باندې خپل لاسونه كيخودل. او وې وئيل په كوم پيغام سره چه تاسو رالېږلې شوى يئ مونږ دهغې د منلو نه انكار كوو، او د كومې خبرې چه تاسو مونږ ته دعوت راكوئ د هغې په باره كښې زمونږ ډير لوئې شك دې. دهغوى پيغمبرانو هغوى ته اووئيل: آيا ستاسو د هغه الله پاك په باره كښې شك دې كوم چه د زمكې او اسمانونو خالق دې؟ هغه تاسو ته دعوت دركوى چه ستاسو ګناهونه معاف كړى او تاسو ته د يو مقررې مودې پورې مهلت دركړى هغوى اووئيل چه: ستاسو حقيقت د دې نه سوا هيڅ نه دې چه تاسو هم دغه شان انسانان يئ څنګه چه مونږ يو. تاسو دا غوارئ چه زمونږ پلار نيكۀ چه د كومو څيزونو عبادت كونكى راروان دى دهغې نه مونږ منع كړئ، لهذا څه صفا صفا معجزه اوښايئ. هغوى ته د هغوى پيغمبرانو اووئيل: مونږ يقيناً هم ستاسو په شان انسانان يو، خو الله پاك چه په خپلو بندګانو كښې په چا باندې غواړى خصوصى احسان فرمائى. او دا خبره زمونږ په اختيار كښې نشته چه مونږ د الله پاك د حكم نه بغير تاسو ته څۀ معجزه اوښايو، او مومنانو له صرف په الله پاك باندې اعتماد ساتل پكار دى

---

(۱) رسولانو دَ خپل رب نه امداد فتح او فيصله اوغوښتله يا دا چه دَ هغوى قوم دا غوښتنه اوكړه لكه چه دَ مكې قريشو وئيلې وو چه كه دا حق وى نو په مونږ باندې دآسمان نه كاڼړى راؤروه او يا څه دردناك عذاب راكړه او دا هم كيدې شى چه يو طرف ته دَ كافرانو مطالبه شوې وى او بل طرف ته رسولانو هم الله تعالىٰ ته دعا كړې وى لكه چه دَ بدر په ورځ شوې وو چه يو طرف ته رسول الله دعا غوښتله بل طرف ته دَ كافرانو سردارانو وئيل چه يا الهى نن ربښتونى غالب كړې، او همدغه اوشو. مشركانوته په كلام الله كښې يوبل ځائ كښې فرمائيلې شوى دى چه تاسو فتح غوښتله نو واخلئ هغه اوس راغله كه اوس هم منع شوئى نو ستاسو په حق كښې به بهتره وى الخ.

(۲) نقصانيان هغه دى چه كبرژن دى. خپل ځان څه شميرى، دَ حق سره دښمنى ساتى. دَ قيامت په ورځ به فرمان كيږى چه هر يو كافر او سركش او نيكئى نه منع كيدونكې دوزخ كښې داخل كړئى چه الله تعالى سره ئې دَ نورو هم عبادت كولو هغوى سخت عذاب ته بوځئ. په حديث شريف كښې دى چه دَ قيامت په ورځ به دوزخ الله تعالى راولى هغه به ټول مخلوق ته آواز كوى او وائى به چه زه دَ هر يو سركش او ضدى دَ پاره مقرر كړې شوې يم الخ.( ترمذى:۲۵۷۴معناً احمد:۳/۴۰) هغه وخت به دَ دې بدانو خلقو څه خراب حال وى او ترانبياؤ پورې به دَ الله تعالى په وړاندې ژړاګانې او زارى كوى. دَ وراء دلته معنى ده امامه(مخامخ) لكه چه آيت ﴿وَكَانَ وَرَآءَهُمْ﴾ كښې دى. دَ ابن عباس رضي الله عنه قراءت ﴿وكان امامهم ملك﴾ دې.

او مونږ به په الله پاک باندې ولې اعتماد نه ساتو په داسې حال کښې چه هغه مونږ ته د هغه لارې هدایت را کړې دې چه په هغې باندې مونږ ځو؟ او تاسو چه مونږ ته کوم تکلیفونه را کړې دی، په هغې باندې به مونږ یقیناً صبر کوو او کوم خلق چه اعتماد کول غواړی، هغوی دې په الله پاک باندې اعتماد اولری. او کومو خلقو چه کفر خپل کړې وو هغوی خپلو پیغمبرانو ته اووئیل چه : مونږ به تاسو د خپلې زمکې نه ضرور اوباسو، ګینې تاسو به زمونږ دین ته راواپس کیږئ پس د هغوی رب په هغوی باندې وحی راولیږله چه : یقین ساتئ! مونږ به دا ظالمان هلاک کړو، او د هغوی نه پس به تاسو یقیناً په زمکه کښې آباد کړو. دا ده د هر هغه چا بدله کوم چه ماته د اودریدو نه ویریږی او زما د وعید نه ویریږی او دې کافرانو په خپله فیصله اوغوښتله او (نتیجه دا شوه چه) هر ظالم او عناد کونکې نامراد پاتې شو.

## خلاصه تفسیر

﴿اَلَمْ يَاْتِكُمْ نَبَؤُا الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ قَوْمِ نُوْحٍ وَّعَادٍ وَّثَمُوْدَ ۬ وَالَّذِيْنَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ ۛ﴾ [اي دمکي کفارو] ایاتاسوته دهغوخلقو[دواقعاتو]خبر[اګرچه اجمالا ولي نه وی]نه دي رسیدلي کوم چه تاسونه مخکښي تیرشویدی یعنی قوم دنوح علیه السلام اوعادیان [قوم دهود علیه السلام]اوثمودیان [قوم دصالح علیه السلام اوکوم خلق چه ددوي نه وروستوراغلی دی ﴿لَا يَعْلَمُهُمْ اِلَّا اللّٰهُ ۭ﴾کومو[چه ئی تفصیلی حالاتو] لره چه بغیردالله تعالی نه څوك نه پیژنی [ځکه چه ددي حالاتوتفصیلات لیکلی اوبه نقل کښي نشته اوهغه واقعات دادی چه] ﴿جَاۗءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَرَدُّوْٓا اَيْدِيَهُمْ فِيْٓ اَفْوَاهِهِمْ﴾ددوي پیغمبرانودوي ته دلیلونه راوړل نو دغوقومونو[کښي چه کوم کفار وو دوی]خپل لاسونه ددغوپیغمبرانوپه خولوکښي ورکړل [یعنی منل خوپریده داکوشش ئی کولو چه دوي خبره هم تري ونه کړی ] ﴿وَقَالُوْٓا اِنَّا كَفَرْنَا بِمَآ اُرْسِلْتُمْ بِهٖ﴾ او وئی ویل چه کوم حکم تاسو [په خپل ګمان ] راوړي دي [یعنی توحید اوایمان ] مونږتری منکریو، ﴿وَاِنَّا لَفِيْ شَكٍّ مِّمَّا تَدْعُوْنَنَآ اِلَيْهِ مُرِيْبٍ۝﴾ اومونږ چه ته کوم کارطرف ته بلي [دغه توحید اوایمان ته]مونږخودده نه ډیرپه شك کښي یوکوم چه مونږئی په تردد کښي اچولی یو[مقصدتری دتوحید اورسالت نه انکارکول دی دتوحید نه خوښکاره دي اودرسالت نه په :تدعونا: کښي چه مطلب ئی داشو تاسودخپل طرف نه دتوحید دعوت راکوئ دالله تعالی دطرف نه ماموره اولیګلي شوي نه ئی ﴿قَالَتْ رُسُلُهُمْ اَفِي اللّٰهِ شَكٌّ﴾ دی پیغمبرانو ددي خبري په جواب کښي ]وویل [ تاسوته]دالله تعالی په باره کښي [یعنی دده توحید کښي ]شك [اوانکار] دي﴿فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ﴾ کوم چه دآسمانونو او ځمکي پیداکونکي دي [یعنی دغه دغه څیزونو لره پیداکول پخپله دداسې هستئ دلیل دي اودده دیووالی . بیا سره ددی دلیل نه شك کول غتېه دتعجب خبره ده اوتاسوچه دتوحید ددعوت مستقل طورسره ماته نسبت کوئ داهم محض خطائی ده ،اګرچه توحید دحقوالی په وجه قابل ددی دي چه څوك پخپله رایه سره هم ددی دعوت ورکوی نوهم ډیر ښائسته خبره ده مګر محل دجګړی کښي خوځما دعوت دالله تعالی په حکم سره دي پس ] ﴿يَدْعُوْكُمْ لِيَغْفِرَ لَكُمْ مِّنْ ذُنُوْبِكُمْ وَيُؤَخِّرَكُمْ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ۭ﴾ پس هم هغه تاسو[توحید طرف ته ] رابلی چه [ددي دقبلولوپه برکت سره ] ستاسو [تیر] ګناهونه معاف کړی او[ستاسودعمر ] معینی مودی پوری تاسوته [په بهتروالی سره ] ژوند درکړی [غرض داچه توحید غیر ددی نه چه فی نفسه حق دي تاسوته په دواړه جهانه کښي نفعمند هم دي اوپه دی جواب کښي ددواړوکارونو ...متعلق جواب وشو دتوحید متعلق هم: افی الله شك الخ:

اودرسالت متعلق هم په :یدعوکم : کښي لکه چه دترجمی نه ظاهره ده ] بیا دوی ﴿قَالُوْٓا اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا ۭ تُرِيْدُوْنَ اَنْ تَصُدُّوْنَا عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ اٰبَاۗؤُنَا﴾ [بیا ددواړوکارونومتعلق خبری شروع کړي او ]ونی ویل چه تاسو[پیغمبران نه ئی بلکه] محض بنی آدم ئی لکه مونږه اوبنی آدم رسول نه شی کیدي تاسوچه څه وائی دغه دالله تعالی دطرف نه نهٔ دي بلکه ] تاسو[په خپلي رانی سره ] داسی غواړئ چه زمونږپلارنیکه دکوم شی عبادت کولو[یعنی بت]ددي نه مونږمنع کړئ ﴿فَاْتُوْنَا بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ۝﴾ پس [که درسالت دعوه کوئ نوعلاوه ددي دلیلوواضحونه نوري ]صافي معجزي وښائی [چه ددي ټولونه زیاتي واضحه وی،په دي کښي په نبوت خوکلام ظاهردي اوپه :یعبدآباء نا:کښي په توحید باندي کلام کولوته اشاره ده،چه مطلب ئی داشوچه دشرك دحقوالی دلیل دادي چه زمونږمشرانوداکارکولو] ﴿قَالَتْ لَهُمْ رُسُلُهُمْ اِنْ نَّحْنُ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ﴾ ددوي رسولانو [ددي په جواب کښي ]وویل چه [ستاسو د تقریر څو جزونه دی،دتوحید نه انکار اودلیل ئی فعل دپلار انو ،انکار دنبوت د سلطان مبین علاوه د واضحو دلیلونو مخکینونه ،پس د اول کار متعلق په :فاطرالسموت والارض: کښي جواب وشو څکه د عقلی دلیل په مقابله کښي رسم ورواج هیڅ شي نه دي،د دویم کار متعلق مونږخپل بشریت منو چه واقعی] مونږهم ستاسوپه شان بنی آدم یولیکن[په بشریت اونبوت کښي څه منافات نشته څکه چه نبوت دالله تعالی یواعلی درجه احسان دي او] ﴿وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَمُنُّ عَلٰي مَنْ يَّشَاۗءُ مِنْ عِبَادِهٖ ۭ﴾الله ته اختیار دي چه] پخپلو بندګانوباندي په چا چه غواړی [دغه ]احسان فرمائی [اوداحسان دغیربشرسره د خاصوالی هیڅ دلیل نشته ] او[ددریم متعلق داده چه ددعوي لپاره چه په دی کښي دعوی دنبوت هم شامله ده نفس دلیل اومطلق بینه چه دنبوت ددعوي په صورت کښي معجزه وی خامخا پکار دي کوم چه پیش شویدی ،پاتی شودلیل اومعجزه خاص کوم چه تاسوپه صاف دلیل سلطان مبین سره تعبیر کوئ پس اول خو د مناظری دقاعدوموافق ضروری نه ده دویم]

﴿وَمَا كَانَ لَنَآ اَنْ نَّاْتِيَكُمْ بِسُلْطٰنٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ۭ﴾داخبره خمونږ په قبضه کښي نه ده چه مونږتاسوته څه معجزه وخودي شو بغیر دالله دحکم نه [نو ستاسو د ټولو شبهو جواب وشو،بیا که په دی دپاسه هم تاسونه منئ ،اومخالفت کوئ نوخیر مونږ ستاسو دمخالفت نه نه ویریږو بلکه په الله تعالی باندي بروسه کوو] ﴿وَعَلَي اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ۝﴾اوپه الله تعالی ټول ایماندارو ته بروسه کول پکار دی [چونکه مونږه هم ایماندار یواوایمان مقتضی دي دتوکل نوپه دی وجه مونږهم دا اختیاروو] ﴿وَمَا لَنَآ اَلَّا نَتَوَكَّلَ عَلَي اللّٰهِ وَقَدْ هَدٰىنَا سُبُلَنَا ۭ﴾اومونږته په الله تعالی باندي دبروسی نه کولولپاره کوم کارباعث کیدي شی حال دادي چه هغه [زمونږ په حال لوي فضل کړیدي چه مونږته ئی زمونږددواړه جهانودنفع] لاري وخودي [دچا چه دومره لوي فضل وی په هغه خامخا تکیه کول پکاردی] ﴿وَلَنَصْبِرَنَّ عَلٰي مَآ اٰذَيْتُمُوْنَا ۭ﴾او[دبهرنی ضررنه خودغسي بی فکره شو پاتی شوداخلی ضرر چه ستاسو د مخالفت غم اوخفګان دي پس ]تاسوچه [په عناد اوخلاف سره څه آزار مونږته رسوئ مونږبه په دی صبر کوو [پس په دی سره هم پاتي نه شو او حاصل ددي صبر هم دغه توکل دي] ﴿وَعَلَي اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُوْنَ۝ۧ﴾اوپه الله تعالی باندي تکیه کونکوته [همیشه] تکیه ساتل پکار دی او[ددي ټولوحاجتونوتمامیدونه پس هم کفارنرم نه شویلکه]. ﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِرُسُلِهِمْ لَنُخْرِجَنَّكُمْ مِّنْ اَرْضِنَآ اَوْ لَتَعُوْدُنَّ فِيْ مِلَّتِنَا ۭ﴾ دي کفاروخپلورسولانو ته وویل چه

مونږبه تاسودخپلی زمکي نه وباسويابه داسي وشي چه تاسوبه خمونږ مذهب ته واپس راشئ [واپس كيدل ئی خكه ووېل چه دپيغمبركيدونه مخكې ددوي دسكوت نه دوي دا گڼړلو چه ددوي عقيده به هم خمونږ په شان وی] ﴿فَاَوْحٰۤى اِلَيْهِمْ رَبُّهُمْ لَنُهْلِكَنَّ الظّٰلِمِيْنَ﴾ پس دی سولانوته ددوي رب [دتسلئ دپاره ] وحی نازله كړه [چه دابيچاره به تاسوڅه وباسی]مونږبه دي ظالمانولره خامخاهلاك كړو﴿وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ الْاَرْضَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ﴾ اوددوي [دهلاكولو] نه بعد به تاسو په دي زمكه كښې آباد وساتو ﴿ذٰلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِيْ وَخَافَ وَعِيْدِ﴾[او] دا [وعده د آبادولو څه ستاسوسره خاصه نه ده بلكه ]دهرهغه سړي لپاره [عامه]ده كوم چه خما په مخكښې دودريدونه ويريږی اوخما دعذاب دوعدي نه ويريږی مراد دادي چه څوك مسلمان وی چه نښه ئی دقيامت نه او د عذاب نه ويره ده دټولولپاره داوعده دعذاب نه دنجات وركولوعلامه ده ]او[پيغمبرانوچه كوم دا مضمون كفاروته واورولو تاسوددليلونوفيصله ونه منله اوس په عذاب سره فيصله كيدونكي ده يعنی عذاب راتلونكي دي نو]كفارو[چه په جهل مركب اوعنادكښې ډوب وو په دي هم ونه ويريدل بلكه په كمال بي باكئ سره هغو] ﴿وَاسْتَفْتَحُوْا وَخَابَ كُلُّ جَبَّارٍ عَنِيْدٍ﴾ فيصله وغوښتله [لكه چه دا آيات :فاتنا بما تعدنا:اوددی د مثالونو نه معلوميږی ]او[كله چه دغه فيصله راغله نو]څومره سركشان [او]ضديان خلق چه وو هغوي ټول [پدی فيصله كښې ناكامه شو[هلاك شو اوڅه چه ددوي مراد وو چه ځانونه ئی په حقه گڼړل فتح اوكاميابي ئی غوښتله هغه حاصله نه شوه] .

| | | |
|---|---|---|
| | | مِنْ وَّرَآىِٕهٖ |
| | | روستو ددې نه |
| | | [....] [اوپه قيامت كښې] د هغهٔ |
| مِنْ مَّآءٍ صَدِيْدٍ | وَيُسْقٰى | جَهَنَّمُ |
| د اوبو د وينو زووْ نه | اوڅكولې كيږي به په هغهٔ | دوزخ دي [دهغه دپاره ] |
| ......... او په هغهٔ به د وينو زوو اوبه څكولې شي (١) | | مخې ته به دوزخ وی |

[١] **د جهنميانو عذاب:**- غرض دا چه مخامخ به دوزخ دَ هغوی په تلاش كښې وی كوم ته په تلو چه به بيا راوتل نه وی. دَ قيامت دَ ورځې پورې خو هغه سحر ماښام پيش كيدلو خواوسِ ئی هغه كور جوړ شو بيا به هلته دَ هغوی دَ پاره دَ اوبوپه بدله كښې دَ اُور په شان وينې زوې دی اود حد نه زيات گرمې او خراب بوئی والا اوبه دی چه دَ دوزخيانو دَ زخمونونه روانې دی. لكه چه فرمانی﴿هٰذَا فَلْيَذُوْقُوْهُ حَمِيْمٌ وَّغَسَّاقٌ﴾ په گرمئ كښې دَ حد نه زيات گرم. صديد وائی (احمد:٦/٤٦٠، مجمع الزوائد: ٦٩/۵) پيپ او وينې چه دَ دوزخيانودَ غوښې نه اودَ هغوی دَ څرمنونه بهيږی. (احمد:١٧٨/٣مجمع الزوائد:٦٩/۵) هم دې ته ﴿طينة الخبال﴾ هم وئيلې شی. په مسند احمدكښې دی چه كله هغوی له راوړلې شی نوهغوی ته به سخت تكليف وی. خُلې ته په نيزدې كولو سره به دَ مخ څرمن اوسوزی او په هغې كښې به راوغورزيږی او بو گوټ (غړپ) اخستو باندې به دَ خيټې كولمې دَ متيازو په ځائ بهر راوځي. (٤٧/محمد:١۵) د الله تعالی فرمان دې چه په هغوی باندې به گرمې خوټكيدلې اوبه څكولې شی چه دَ هغوی كولمې به پريكړی. د ارشاد دې چه دَ فرياد كولو په صورت كښې هغوی ته دَ ويلې كړې ...... [باقی په راروانه صفحه...

| يَّتَجَرَّعُهٗ | وَلَا يَكَادُ | يُسِيْغُهٗ | وَيَأْتِيْهِ | الْمَوْتُ |
|---|---|---|---|---|
| چې په گوټ گوټ به څکی هغه | اونږدې به نه وي | چې تیر کړی هغه | او راځي به هغه ته | مرگ |
| چې گوټ گوټ به ئې څکي | او د مرئ نه به ئې ښکته کولې نشي | .......... | ......او دهرطرف نه به پرې | |

| مِنْ كُلِّ مَكَانٍ | وَّمَا | هُوَ | بِمَيِّتٍ ط | وَمِنْ وَّرَآئِهٖ | عَذَابٌ | غَلِيْظٌ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دهرطرفنه | حال دا چې نه به وي | هغهٔ | مړکیدونکې | او روستو د هغې نه به | عذاب | سخت وي |
| مرگ راځي | خو هغهٔ به مړکیږی نه | ....او د هغې [عذاب نه] پس به بل سخت عذاب ته ورمخامخ شي | | | | |

.....باقي حاشيه د تيرمخ]...تانبې په شان اوبه ورکولې شي. چه مخ به سوزوي. (احمد: ۲۶۵/۵، ترمذي: ۲۵۸۳، خودَ سورة الكهف آيت ۲۹ مطابق دَ دې معنى صحيح ده) په زور به گوټ گوټ (يوبو غړپ) تيروي او فربنتې به ئې دَ اوسپنې په گرځ په وهلووهلو پرې څكوي. دَ خراب خوند خراب بوئى سختې گرمئى يا سختې يخنئى په وجه به دَ مرئى نه نه تيريږي. په بدن كښې په اندامونوكښې او په جوړونوكښې به ئې هغه دردونه او تكليف وي چه دَ مرگ مزه به ورشي خو مرگ به نه راځي. په رگ رگ به ئې عذاب وي خو ساه به ئې نه اوځي. وار په وار اودَ برداشت كيدو نه بهر مصيبتونوكښې به راگير وي خوولې روح به ئې دَ بدن نه نه جدا كيږي. دَ وړاندې نه روستونه بنى طرف نه گس طرف نه به مرگ راځي خورارسى نه . قسم قسم عذابونو دَ دوزخ به راگير كړې وي خو مرگ به غوښتو سره هم نه راځي. نه به مرگ راځي اونه به عذاب ځي. هره سزا دومره به وي چه دَ مرگ دَ پاره به دَ كافي نه زياته وي خو هلته خو به مرگ له مرگ راغلې وي دې دَ پاره دا سزاگانې دَ هميشه دَ پاره وي. دې ټولو خبرو سره بيا دَ سخت مصيبت او دردناك عذاب به نور دا وي چه لكه دَ زقوم دَ ونې باره كښې فرمائى چه هغه دَ دوزخ دَ بيخ نه راوځى دَ كومې غوټې چه دَ شيطانانودَ سرونو په شان دى هغه به دوى خورى او په ډكه خيټه به ئې خورى بيا به خوټكيدلې تيزې گرمې اوبه خيټې ته لاړې شى دې سره به ملاؤ شى بيا دَ هغوى واپس كيدل هم دَ دوزخ طرف ته دى. لنډه دا چه كله به زقوم خورى كله به حميم څكى كله په اَور كښې دَ سوزيدو او كله دَ صديد څكلو عذاب وركړې كيږي. دَ الله تعالى پناه. دَ الله تعالى فرمان دې ﴿هٰذِهٖ جَهَنَّمُ الَّتِيْ يُكَذِّبُ بِهَا الْمُجْرِمُوْنَ۝﴾ الخ دا هم هغه دوزخ دې چه كافرانو به دروغ گنړلو. نن به هغوى دَ دوزخ خوټكيدلو تيزو گرمو اوبو كښې چكرې خورى گرځى به. او په بل آيت كښې دى چه دَ زقوم ونه دَ گناهگارانو خوراك دې چه دَ ويلې شوې تانبې په شان به وي. خيټې ته په تلويه خوټكيږي او داسې جوش به وهى لكه څنگه چه گرمې اوبه خوټكيږى اوړى راوړي. دې اونيسئ او دَ دوزخ بيخ نه ئې اورسوئ بيا دَ ده په سر د گرمواوبو اړولو عذاب وركړئ چه مزه اوڅكى. ته خو په خپل خيال كښې ډير عزيز وې او ډير كريم وې، همدغه دى كوم كښې چه تاسو دَ هميشه نه شك كولو. په سورة واقعه كښې ارشاد دې چه كومو خلقو ته په گس لاس كښې عمل نامه وركړې شى څنگه خراب خلق دى په گرمه هوا او گرمو اوبوكښې به پراته وي او دَ لوگو په سورى كښې چه نه به يخ وي اونه به دَ عزت والا. په دونم آيت كښې دى دَ سركشانو دَ پاره دَ جهنم لوئ كور دې كوم كښې چه به هغوى داخليږي او هغه دَ اوسيدو ډير خراب ځائ دې. دې مصيبت سره تيزې گرمې اوبه پيپ او ريني اودَ دې په شان نور. هم قسم قسم عذابونه به وي چه دوزخيان به ئې برداشت كوى كوم چه دَ الله تعالى نه سوا بل هيڅ څوك نه پيژنى. دابه دَ هغوى دَ عملونو بدله وي نه چه دَ الله تعالى ظلم.

## آسان ترجمه قرآن

د هغه مخې ته جهنم دې او (هلته به) هغه پاڅدې وينې زوې څکولې شي. هغه به ئې په گوټلو گوټلو څکي، او هغه ته به داسې محسوسيږي چه د حلق نه به ئې ښکته نه کړې شي او مرگ به د هر طرف نه په هغه پاڅدې راځي، خو هغه به نه مري او د هغه مخې ته به (هميشه) يو سخت عذاب موجود وي.

## خلاصه تفسير

﴿مِنْ وَّرَآىِٕهٖ جَهَنَّمُ وَيُسْقٰى مِنْ مَّآءٍ صَدِيْدٍ﴾ دکوم جبار اوعنيد چه بره ذکرشوي دي علاوه ددنيوي عذاب نه] دده په وړاندي ددوزخ [عذاب ئې راتلونکي ]دي اوده ته به په دوزخ کښي داسي اوبه سکلوته ورکولي کيږي کومي چه به ويني زوي وي[يعني دويني زوي په شان وي] ﴿يَّتَجَرَّعُهٗ وَلَا يَكَادُ يُسِيْغُهٗ وَيَاْتِيْهِ الْمَوْتُ مِنْ كُلِّ مَكَانٍ وَّمَا هُوَ بِمَيِّتٍ﴾ کومولره چه به دډيري تندي نه گوټ گوټ کوي څکي به اوډډيري گرمئ اويدوالي نه به] نه مرئ نه به ئې دتيرولوهيڅ صورت نه وي اودهر [څلور]طرف نه به په ده [سامان د]مرگ رازی اودي به په هيڅ شان سره مري نه [بلکه دغسي به ترقيږی] او[بيا داسي هم نه دي چه دامذکوره عذاب به په يوحالت وی بلکه] ﴿وَمِنْ وَّرَآىِٕهٖ عَذَابٌ غَلِيْظٌ﴾ دا[سرې]به دنورو[زيات ]سخت عذاب سره [برابر]مخامخ کيږی [چه ددي سره به دهلاك کيدو احتمال پکښي دسره نه وی لکه چه داقول دي دالله تعالى :كلما نضجت جلودهم بدلنهم جلودا غيرها](1)

| مَثَلُ | الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | بِرَبِّهِمْ | اَعْمَالُهُمْ | كَرَمَادِ |
|---|---|---|---|---|---|
| مثال | د هغه کسانو | چي کفر ئې اوکړو | په رب خپل سره | عملونه د هغوئ | پشان د ايرو دی |
| چا چې د خپل رب نه انکار کړې دې (2) | | | د هغوئ د عملونومثال د هغه ايرې په شان دې | | |

(1) ترجمه:- هرکله چې يو څل ددوئ څرمن اوسوزی نو مونږ به ددې وروستې څرمنې په ځائې به بله څرمن پيدا کړو (النساء:٥٦)

(2) دَ بې فائدې عمل مثال:- کافران چه الله تعالى سره دَ نورو دَ عبادت عاشقان وو، دَپيغمبرانو ئې نه منل. دَ چا عملونه چه داسې وولکه بغيرستنو عمارت دَ څه نتيجه چه دا شوه چه دِ سخت ضرورت په وخت کښې تش لاس ولاړ پاتې شو. نو فرمان الهی دې چه دَ دې کافرانو يعنې دَ دوی دَ عملونو مثال دَ قيامت په ورځ چه دوی به پوره محتاج وی پوهيږی به چه اوس هم زمونږدَ نيکو بدله مونږ ته ملاوشوي خو څه به هم نه بيامومی نااميده به وی. د ارمانه به مخونوته گوری لکه دَ تيزې هوا په ورځ چه هوا ايره والوزوی او ذره ذره ئې اخواديخوا کړی. دغه شان به دَ هغوی عملونه صرف بې کاره شی لکه څنګه چه شيندلې شوې ايره راجمع کول محال دی دغه شان به دَ هغوی د بې کاره عملونو بدله محال وی او هغه خو به هلته وی هم نه. دَ هغوی دَ راتلونه اول ﴿هَبَآءً مَّنْثُوْرًا﴾ شو. دَ الله تعالى ارشاد دې ﴿مَثَلُ مَا يُنْفِقُوْنَ فِيْ هٰذِهِ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَثَلِ رِيْحٍ فِيْهَا صِرٌّ اَصَابَتْ حَرْثَ قَوْمٍ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَاَهْلَكَتْهُ ۭ وَمَا ظَلَمَهُمُ اللّٰهُ وَلٰكِنْ اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ﴾ دا کافران چه کوم څه د دنيا په ژوندکښې خرچ کړی دَ دې مثال به دَ هغه اُور دَ گولې وی لکه څنګه چه دَ دې ظالمانو فصل اوسيزی. الله تعالى ظالم نه دې ولې هغوی پخپله په خپلو خانونو ظلم کړې دې. او په بل آيت کښې دی چه ايماندارو خپلې صدقې او خيراتونه په احسان کولو سره او تکليف ورکولو سره مه بربادونی. لکه چه هغوی دَ رياکارنی دَ پاره خرچ کوی او په الله تعالى او قيامت باندې ايمان او يقين نه لری. دَ دې مثال دَهغه گټ (دبری) په شان دې په کوم چه ......[باقي په راروانه صفحه...

اِشْتَدَّتْ بِهِ الرِّيْحُ فِيْ يَوْمٍ عَاصِفٍ ۭ لَا يَقْدِرُوْنَ

چې تيزه راشي | په هغې باندې | سيلۍ [هوا] | په ورځ | طوفاني کښې | نه به قادربږي هغوئ

چې په طوفاني ورځ کښې پرې تيز اوتند باد راشي | ............... څه چې دوئ کړي وي د هغې

مِمَّا كَسَبُوْا عَلٰي شَيْءٍ ۭ ذٰلِكَ هُوَ الضَّلٰلُ الْبَعِيْدُ ⑱

د هغه عمل نه | چې کړې وي هغوئ | په هيڅ څيز باندې | دا | هغه ګمراهي ده | داخرې درجې

نه به دوی هيڅ فائده وانخستې شي | ............... هم دا ښکاره لويه ګمراهي ده

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ۭ اِنْ يَّشَاْ

آيا نهٔ وينې ته | چې بيشکه الله | پيدا کړل (۱) | آسمانونه | او زمکه | په حقه سره | که اوغواړي هغهٔ

آيا تا نهٔ دي ليدلي چې الله ﷻ آسمانونه او زمکه په مقصد باندې پيدا کړي دي | که هغهٔ اوغواړي

يُذْهِبْكُمْ وَيَاْتِ بِخَلْقٍ جَدِيْدٍ ⑲ وَّمَا ذٰلِكَ عَلَي اللّٰهِ بِعَزِيْزٍ ⑳

نولرې به کړي تاسو | او رابه ولي | مخلوق | نوې | اونهٔ دې | داکار | په الله باندې | څه ګران

نوتاسو به فنا کړي | او بل نوې مخلوق به راولي | اوداکار په الله ﷻ باندې هيڅ ګران نهٔ دې

وَبَرَزُوْا لِلّٰهِ جَمِيْعًا فَقَالَ الضُّعَفٰۗؤُا لِلَّذِيْنَ

او بې پردې به شي داخلق | الله ته | ټول | نو اوبه وائي | کمزوري خلق | هغه کسانو ته

او دوئ ټول به الله ﷻ ته مخامخ کيږي | نو[ددې دنيا]کمزوري خلق به [ددې دنيا]

اسْتَكْبَرُوْٓا اِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا فَهَلْ اَنْتُمْ مُّغْنُوْنَ

چې خان ئې لوئ ګڼړلې وو | بيشکه وو مونږ | دپاره ستاسو | تابع | نو آيا | تاسو لرې کولې شئ

غټانو نه تپوس اوکړي | چې مونږ خو ستاسو [دحکمونو] تابعدار وو | نو آيا تاسو زمونږ نه د الله ﷻ

عَنَّا مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ ۭ قَالُوْا لَوْ هَدٰىنَا اللّٰهُ

زمونږ نه | عذاب د الله | څه قدرې | اوبه وائي هغوئ | که چرې | لاربنودلې وې مونږ ته الله [دنجات]

په عذاب کښې څه لږ شان کمولې شئ | هغوئ به اووائي که الله ﷻ مونږ ته هدايت کړې وې

....باقي حاشيه د تيرمخ]...خاوره وه خودَ باران اوبو هغه اووينځلو او اوس هغه بالکل صفاشو. دا خلق خپلې ګټې نه په هيڅ څه څيز قادر نه دي. الله تعالى دَ کافرانو لارخودنه نه کوی. په دې آيت کښې ارشاد اوشو چه دا د لرې ګمراهي ده. دَ دوی کوشش دَ دوی کار بې پښو او نه پاتې کيدونکې دې. دَسخت حاجت مندئى په وخت کښې به ډير کم ثواب بيامومى اوهمدغه دَ لرې بدنصيبى ده.

(۱) **دَ کائناتو رنګ او بوئى خالق:**- الله تعالى بيان فرمائى چه دَ قيامت دَ ورځې په بيا راپيداکولو زه قادر يم. کله چه ما دَ زمکې او آسمان پيدائش اوکړو نودَ انسان پيدائش ماته څه ګران دې. دَ آسمان اوچتوالې فراخوالې اولوئ والې بيا په دې کښې ولاړ او تيريدونکى ستورى اودا زمکې غرونه ځنګلو ونې او ځناور ټول هم الله تعالى جوړ کړى اودَ هغوى دَ پيدا کولو نه عاجز رانغلو، هغه به دَ مړو دوباره ژوندى کولو باندې قادر نه وى، بې شکه قادر دې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَهَدَيْنٰكُمْ ط | سَوَآءٌ | عَلَيْنَآ | اَجَزِعْنَآ | | |
| نو مونږ به ضرور ښودلې وې تاسو ته | اوس خو برابره خبره ده | په حق زمونږ کښې | که فریاد کوو مونږ | | |
| نو مونږ به تاسو ته هدایت کړې وې | .........اوس زمونږ ټولو د پاره یو شان خبره ده | که چغې وهو | | | |
| اَمْ صَبَرْنَا | مَا لَنَا | مِنْ مَّحِيْصٍ ؏ | وَقَالَ | الشَّيْطٰنُ | لَمَّا |
| یا صبر کوو مونږ | نشته دې مونږ د پاره | هیڅ ځائې دخلاصی | او اوبه وائی | شیطان | هر کله چې |
| او که صبر کوو | زمونږ خلاصې په هیڅ صورت کښې نشته | او کله چې فیصله اوشی | نو شیطان به | | |
| قُضِيَ | الْاَمْرُ | اِنَّ اللّٰهَ | وَعَدَكُمْ | وَعْدَ الْحَقِّ | |
| فیصله کړې شی | کار | بیشکه الله | وعده کړې وه تاسو سره | وعده ریښتونې | |
| اووائی | (١) چې بیشکه الله ﷻ تاسو سره ریښتینې وعده کړې وه .............. | | | | |

(١) **دَ قیامت په ورځ دَ شیطان خطاب**:- الله تعالی چه کله دَ بندګانو دَ قضا نه اوزګار شی. مؤمنان جنت ته او کافران دوزخ ته اورسی هغه وخت به ابلیسِ ملعون په دوزخ کښې اودرېږی هغوی ته به وائی چه دَ الله تعالی وعدې ریښتونې او په حقه وې. هم د رسولانو په تابعدارئی کښې خلاصې او سلامتی وه. زما وعدې خو دهوکه وه. ما خو به تاسو په غلطه لار اچولو دَ پاره تاسو ته شنه باغونه خودل. زما خبرې بې دلیله وې او زما خبرې بې حجته وې. زما په تاسو باندې هیڅ زور او غلبه نه وه. تاسو به هسې زما په یو آواز رامندې وهلې. ما اووئیل او تاسو اومنل. دَ رسولانو ریښتونې وعدې دَ هغوی دَ دلیل نه ډك آواز اودَ هغوی دَ کامل حجت دلیلونه تاسو پرېخودل دَ هغې خلاف او زما تابعداری مو اوکړه دَ څه نتیجه چه نن تاسو په خپلو سترګو وینئی. دا ستاسو دَ خپلو کړو بدله ده. ما ملامته کوئی مه بلکه خپل نفس ته الزام ورکړئی. ګناه ستاسو خپله ده تاسو دلیلونه پرېخودل تاسو زما خبرې اومنلې خو نن به زه ستاسو په هیڅ کار رانه شم. نه به تاسو بچ کړې شم او نه به تاسو ته څه نفع دراورسوم. زه خو ستاسو دَ شرك په وجه ستاسو منکر یم. زه صفا وایم چه دَ الله تعالی سره شریك نه یم لکه چه دَ الله تعالی ارشاد دې ﴿وَمَنْ اَضَلُّ مِمَّنْ يَّدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَنْ لَّا يَسْتَجِيْبُ لَهٗ﴾ دې نه لوئ ګمراه څوك دې؟ څوك چه دَ الله تعالی نه سوا نور رابلې چه دَ قیامته پورې به د دوی رابلل قبول نه کړې شی. بلکه دَ هغوی دَ رابللو نه به صرف غافل وی اودَ محشر په ورځ دَ هغوی دښمنان اودَ هغوی دَ عبادتونو منکران به جوړشی. اویه بل آیت کښې دی ﴿كَلَّا سَيَكْفُرُوْنَ بِعِبَادَتِهِمْ وَيَكُوْنُوْنَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا﴾ یقینًا هغه خلق به دَدوی دَ عبادتونو منکر جوړشی اودَ هغوی دښمنان به جوړشی. دا ظالمان خلق دی خکه چه دَ حق نه ئی مخ واړولو اودَ باطل منونکی جوړ شو دَ داسې ظالمانودَپاره دردناك عذاب دې. نو ښکاره خبره ده چه دَ ابلیس دا خبرې دوزخیانو سره په دوزخ کښې دَ داخلیدو نه پس به وی دې د پاره چه هغوی په حسرت ارمان او افسوس کښې نور هم زیات شی.

خو دَ ابن ابی حاتم یو حدیث شریف کښې دی چه حضور ﷺ فرمائی کله چه وړاندینی او روستونی الله تعالی راجمع کړی او په هغوی کښې فیصلې اوکړی نو دَ فیصلو په وخت کښې به عامه ویره وی. مؤمنان به وائی چه په مونږ کښې فیصلې کیږی اوس به زمونږ دَ سفارش دَ پاره څوك اودرېږی؟ حضرت عیسی ؑ حضرت آدم ؑ حضرت نوح ؑ حضرت ابراهیم ؑ حضرت موسی ؑ به حضرت عیسی ؑ له لاړشی حضرت عیسی ؑ به فرمائی نبی امی ﷺ له ورشئی نو هغوی به ماله راشی، ماته به الله تعالی دَ اودریدلو اجازت راکړی. هغه وخت به زما دَ مجلس نه ښکلې او مزیداره خوشبو خوره شی چه دې نه وړاندې به داسې خوشبو چا نه وی راښکلې. زه به روان شم ......[باقی په راروانه صفحه...

وَوَعَدْتُكُمْ فَأَخْلَفْتُكُمْ ۖ وَمَا كَانَ لِيَ عَلَيْكُمْ

او وعده کړې وه ما تاسو سره | نو ما خلاف اوکړو ستاسو | او نهٔ وه | زما د پاره | په تاسو باندې

اوما هم درسره وعده کړې وه | نو ما درسره د وعدې خلاف اوکړو | او زما په تاسو څه زور خو

مِّنْ سُلْطٰنٍ اِلَّآ اَنْ دَعَوْتُكُمْ فَاسْتَجَبْتُمْ لِيْ ۚ

هيڅ غلبه | مگر دومره قدرې | چې اوبللئ ما تاسو | نو قبوله کړه تاسو | بلنه زما

نهٔ چليدهٔ | صرف دومره ده چې ما تاسو ته بلنه اوکړه [چې گناهونه اوکړئ] | اوتاسو زما خبره اومنله

فَلَا تَلُوْمُوْنِيْ وَلُوْمُوْٓا اَنْفُسَكُمْ ۖ مَآ اَنَا بِمُصْرِخِكُمْ

نومهٔ ملامته کوئ تاسو ما | او ملامته کړئ | خانونه خپل | نهٔ يم زهٔ | فرياد اوريدونکې ستاسو

نو اوس ما مهٔ ملامته کوئ | بلکه خپل ځانونه په خپله ملامته کړئ | نهٔ زهٔ ستاسو فرياد آوريدلې شم

وَمَآ اَنْتُمْ بِمُصْرِخِيَّ ۖ اِنِّيْ كَفَرْتُ بِمَآ اَشْرَكْتُمُوْنِ

او نهٔ يئ تاسو | فرياد اوريدونکی زما | بيشکه زهٔ | انکاری يم | د هغې نه | چې شريك کړې وو تاسو ما لره

او نهٔ تاسو زما فرياد آوريدلې شئ | زهٔ خپله د هغې خبرې نه ويزاره يم | چې تاسو به زهٔ د الله ﷻ سره

مِنْ قَبْلُ ۗ اِنَّ الظّٰلِمِيْنَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝

مخکښې ددې نه | بيشکه ظالمان چې دی | دې د هغوئ د پاره | عذاب | درد ناك |

شريک گنړلم | بيشکه داسې ظالمانو د پاره دردناک عذاب تيار دې |

---

.....باقی حاشيه د تيرمخ]...او رب العالمين له به لاړشم. زما دَ سر دَ ويښتونه واخله تر دَ پښو دَ گوتوپورې بدن به ټول نورانی شی اوس به زه سفارش کوم او الله تعالی حق تبارك وتعالی به نی قبلوی. د دې په کتلو به کافران خلق وائی چه راځئ مونږ هم چرته څوك سفارشی راولو. اودَ دې دَ پاره دَ ابليس نه بغير مونږ سره څوك دی؟ هغه مونږ دهوکه کړې ووِ ځنی چه هغه له ورشو. رابه شی او ابليس ته به وائی چه مؤمنانوِ خو سفارش بيامونډ او ته زمونږ دَ پاره شفاعت کونکې جوړشه څکه چه مونږ خو گمراه کړې هم تايو دَ دې اوريدو سره به دا ملعون اودريږی دَ هغه دَ مجلس نه به داسې گنده بونی خورشی چه دی نه وړاندې به يوې پوزې ته داسې خراب بونی نه وی رسيدلې بيا به هغه وائی د هغه بيان په دې آيت کښې دې. (مجمع الزوائد: ۳۷۹/۱۰، التقريب: ۴۸۰/۱)

محمد بن کعب قرظی رحمه الله فرمائی چه کله دوزخيان خپل صبر او بې صبری يو شان بيان کړی هغه وخت به ملعون هغوی ته دا وائی هغه وخت به هغوی دَ خپلو ځانونونه هم ويزاره وی. آواز به اوشی چه ستاسو دَ دې وخت دَ ويزارتی نه هم ډيره ويزاری دَ الله تعالی دَ طرف نه تاسو نه هغه وخت وه چه کوم وخت به تاسو دَ ايمان طرف ته رابللې کيدئی او تاسو به انکار کولو.

عامر شعبی رحمه الله فرمائی دَ ټولو خلقو په وړاندې به هغه ورځ دوه کسان خطبه ورکولو دَ پاره اودريږی. حضرت عيسی بن مريم عليه السلام ته به الله تعالی اوفرمائی چه آيا تا خلقو ته ونيلې ووچه تاسو دَ الله تعالی نه سوا ما او زما مور خپل معبودان جوړکړئی. دا آياتونو ﴿هٰذَا يَوْمُ يَنْفَعُ الصّٰدِقِيْنَ صِدْقُهُمْ﴾ پورې هم په دې بيان کښې دی. او ابليس به اودريږی او وائی به ﴿وَمَا كَانَ لِيَ عَلَيْكُمْ مِّنْ سُلْطٰنٍ﴾

## آسان ترجمه قرآن

كومو خلقو چه د خپل رب سره كفر اختيار كړې دې، د هغوى حالت دا دې چه د هغوى عملونه د هغه ايرو په شان دى چه د سختې سيلۍ او طوفان په ورځ ئې هوا په تيزۍ سره يوسى. هغوى چه څه كسب كړې وى، د هغې نه به څه هم دهغوى په لاس نه راځى، هم دا ده ګمراهى لرې. آيا تا ته دا خبره په نظر نه راځى چه الله پاک زمكه او آسمانونه د حق مقصد دپاره پيدا كړى دى. كه هغه غواړى نو تاسو ټول به فنا كړى او يو نوې مخلوق به په وجود كښې راولى. او دا خبره د الله پاک دپاره هيڅ هم ګرانه نه ده او دا ټول خلق به د الله پاک مخې ته پيش كيږى، بيا چه كوم خلق (دنيا كښې) كمزورې وو، هغوى به لوئى كونكو ته وائى چه: مونږ خو په تاسو پسې روستو تلونكى خلق وو، نو آيا اوس به تاسو مونږ د الله پاک د عذاب نه بچ كړئ؟ هغوى به اووائى: كه الله پاک مونږ ته هدايت را كړې وې نو مونږ به هم تاسو ته هدايت دركړې وې. كه مونږ چغې وهو او كه صبر كوو په دواړو صورتونو كښې زمونږ دپاره برابر ده، زمونږ دپاره د خلاصى هيڅ لاره نشته. او كله چه د هرې خبرې فيصله اوشى نو شيطان به (خپلو منونكو ته) اووائى: حقيقت دا دې چه الله پاک تاسو سره رشتينې وعده كړې وه، او ما چه تاسو سره كومه وعده اوكړه نو د هغې خلاف ورزى مې اوكړه، او ماته په تاسو باندې د دې نه زيات هيڅ اختيار حاصل نه وو چه ما تاسو ته (د الله پاک د نافرمانۍ) دعوت دركړو نو تاسو زما خبره اومنله. لهٰذا اوس ما مه ملامته كوئ، بلكه خپل ځان ملامته كړئ. نه ستاسو په فرياد باندې زه ستاسو امداد كولې شم او نه زما په فرياد باندې تاسو زما امداد كولې شئ. تاسو د دې نه مخكښې زه د الله پاک شريک منلې اوم، (نن) ما د هغې نه انكار كړې دې كومو خلقو چه دا ظلم كړې وو د هغوى په حصه كښې خو اوس دردناک عذاب دې.

## خلاصه تفسير

﴿مَثَلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ اَعْمَالُهُمْ كَرَمَادِ ِاشْتَدَّتْ بِهِ الرِّيْحُ فِيْ يَوْمٍ عَاصِفٍ ۭ لَا يَقْدِرُوْنَ مِمَّا كَسَبُوْا عَلٰي شَيْءٍ ۭ﴾ ددي كفاروكه دخپل نجات متعلق داګمان وى چه خمونږ عملونه به مونږ ته نفع راكړى نوددي قاعده كليه داواورئ چه ]كوم خلق دخپل رب سره كفركوى ددوي حالت په اعتبار دعمل دادي [يعنى ددوي دعملونوداسى مثال دي ]لكه چه ايره وى [چه په الوتوكښي ډيره سپكه وى ]چه هغې لره د تيزې هوا په ورځ په تيزۍ سره هوا والوزى ويسى چې په دي صورت كښي به ددغي ايرى نوم اونښي هم پاتي نشى دغه شان]دي خلقوچه كوم عملونه كوى ددي هيڅ برخه [ډيره كمه نفع اواثر]به دوي ته حاصل نشى [ددي ايرى په شان به ضايع اوبرباد شى ] ﴿ذٰلِكَ هُوَ الضَّلٰلُ الْبَعِيْدُ﴾داهم ډيره لويه اوږده ګمراهى ده [چه ګمان ئى وو چه زمونږعمل نيك اونافع دي اوبيا ښكاره شى بداومضر لكه عبادت دبتانو ياغيرنافع لكه دغلامانوآزادول صله رحمى كول ،اوچونكه د حق نه لرى دي نوډيرلرى والي وويلي شو،پس په دى طريقي سره خودنجات احتمال پاتي نشو، اوكه ددوي داګمان وى چه دقيامت وجودمحال دي،اوپه دي صورت كښي دعذاب احتمال نشته نوددي جواب دادي چه]﴿اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ۭ﴾آيا[اي مخاطبه] تاته داخبره نده معلومه چه الله تعالى آسمانونه او زمكه بلكل ټيك ټيك ]يعني په منفعتونو مشتمل] پيداكړل [اوپه دي سره دده قادروالئ ښكاره دي پس هر كله چه دي قادر مطلق دي نو] ﴿اِنْ يَّشَاْ يُذْهِبْكُمْ وَيَاْتِ بِخَلْقٍ جَدِيْدٍ﴾كه هغه وغواړى نوتاسى ټول به فناكړي اوبل يونوي

مخلوق به پیدا کړي ﴿وَمَا ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ بِعَزِيْزٍ﴾ اودا الله ته څه ګرانه نده ، [پس هرکله چه نوي مخلوق پیداکول ورته آسان دي نوستاسو بیاپیداکول ورته څه مشکل دي ] ﴿وَبَرَزُوْا لِلّٰهِ جَمِيْعًا فَقَالَ الضُّعَفٰٓؤُا لِلَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْٓا اِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا فَهَلْ اَنْتُمْ مُّغْنُوْنَ عَنَّا مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ﴾ اوکه داوسوسه مووی چه مونږبه زمونږمشران بچ کړی نودهغي حقیقت واورئ چه دقیامت په ورځ به ]تول دالله حضورته پیش شی بیا دوړي درجي خلق [عوام اوتابعین ] دلوئی درجی خلقو ته [یعنی خاصو او متبوعینو ته دملامت اوعتاب په طور] وائی چه مونږ [په دنیا کښي]ستاسوتابع وو[تردي چه تاسومونږ ته کومه ددین لاره وخوده په هغی روان شواوس نن په مونږمصیبت دي]نوآیاتاسوزمونږنه دالله دعذاب څه حصه لري کولي شئ[ یعنی که بیخی مونښئ بچ کولي څه قدري خومویچ کولي شئ]﴿قَالُوْا لَوْ هَدٰىنَا اللّٰهُ لَهَدَيْنٰكُمْ﴾ دوي به[په جواب کښي ] وائی چه مونږخوپخپله نشویچ کیدي نو تاسی به څنګه بچ کړو البته] که الله تعالی مونږته [څه ]لار دبچ کیدو ]خودلي نومونږبه تاسوته هم [دغه]لارخودله [اواوس خو] زمونږ دټولو په حق کښي دواړه صورتونه برابردي خوا پریشانه کیږو[لکه چه ستاسوپریشانی د:فهل انتم مغنون عنا: نه ظاهره ده ﴿سَوَآءٌ عَلَيْنَآ اَجَزِعْنَآ اَمْ صَبَرْنَا مَا لَنَا مِنْ مَّحِيْصٍ﴾زمونږپریشانی د [لوهدی نا الله :نه ظاهره ده ]خواکه صبرکوو[یعنی په دواړوحالتونوکښي] زمونږ د خلاصیدو هیڅ صورت نشته [پس ددي سوال جواب نه دامعلومه شوه چه دکفر دطریقي مشران به هم خپلوخپلوتابعدارانوته هیڅ په کاررانشی،پدي طریقه کښي هم دنجات لاره پاتي نشوه ]او[اوکه ددوي تکیه وی چه دامعبودان غیرالله به پکارراشی] نوددوي حال ددي قصي نه معلومیږی چه ﴿وَقَالَ الشَّيْطٰنُ لَمَّا قُضِيَ الْاَمْرُ اِنَّ اللّٰهَ وَعَدَكُمْ وَعْدَ الْحَقِّ﴾ هرکله [قیامت کښي ] ټولي مقدمی فیصله شی[ یعنی ایماندارجنت ته اوکفاردوزخ ته ولیږلي شی ] نو[ دوزخیان به ټول په شیطان پسي ورشی چه دي به هم هلته وی اوملا مته به ئی کړی چه بدبخته ته خوهلاك وي مونږدي هم هلاك کړودځان سره نودغه وخت ] شیطان به [په جواب کښي ] وائی چه [تاسومابي ځایه ملامته کوئ ځکه چه[ الله تعالی تاسوسره [څومره وعدي کړي وي ټولي ] رشتیا وعدي وي [یعنی په قیامت کښي به په کفرهلاکت اوپه ایمان به نجات وي] ﴿وَوَعَدْتُّكُمْ فَاَخْلَفْتُكُمْ﴾ او ما هم وعدي درسره کړي وي[ چه قیامت نشته اودا ستاسو طریقه دکفردنجات طریقه ده] پس ما دغه وعدي ستاسوسره خلاف کړي وي [ اودالله دوعدوپه حقوالي اوځما دوعدي په باطلوالي قطعی دلیلونه قایم وو،پس ددي سره بیا هم تاسو ځما وعدي رشتیا اودالله وعدي غلطي ګنړلي نوپخپلولاسونوموځانونه هلاك کړل ] ﴿وَمَا كَانَ لِيَ عَلَيْكُمْ مِّنْ سُلْطٰنٍ اِلَّآ اَنْ دَعَوْتُكُمْ فَاسْتَجَبْتُمْ لِيْ﴾ او [که تاسودا وائی چه آخر رشتونو وعدو لره دروغ ګنړل اودروغووعدولره رشتیا ګنړل سبب هم زه وم ، نو خبره داده چه یقیني زه دغولولو په درجه کښي خوسبب وم خامخا لاکن اوګورئ چه ځمادغولولونه بعد تاسومختاروئ که مجبوره نوبښکاره ده چه ] ځماپه تاسوهیڅ زورنه چلیدو غیر ددي نه چه ما تاسو ته [ ګمراهئ طرف ته] دعوت درکړي وو پس تاسو[ پخپل اختیار ] ځمادعوت قبول کړو[ که تاسونه وي قبول کړي نوماتاسوپه زوره نه شوئ ګمراه کولي نوکله چه داخبره ثابته ده ] ﴿فَلَا تَلُوْمُوْنِيْ وَلُوْمُوْٓا اَنْفُسَكُمْ﴾نوپه ما [ټول]ملامتیا مه را اړوئ [ داسی چه ځان بیخی بری کړئ ] او[ ډیر] ځانونه ملامته کوئ [ ځکه چه اصل علت دعذاب کارستاسودي اوځماکارخوبعیداوغیرمستلزم شي یعنی محض سبب دي، نو د

ملامته کولو جواب خودادي، ﴿مَآ أَنَا۠ بِمُصْرِخِكُمْ وَمَآ أَنتُم بِمُصْرِخِيَّ﴾ اوکه ستاسوددي نه دامطلب وی چه څمونږ مدد وکړه،نوزه به دچاڅه مددوکړم پخپله په مصیبت کښې اخته اوامدادته محتاج یم ، لیکن پوهیږم چه نه څوك څمامددکولي شی اونه څه ستاسونه دڅان لپاره مددغوارم څکه چه ډیر مناسبت می ستاسوسره دي بس اوس څو] نه څه ستاسومددکولي شم نه تاسوڅمامددکولي شئ[البته که ما ستاسو ددې شرك طریقه حق ګڼړلي نوهم به می ددي تعلق په وجه درنه دمددمطالبه کړې وه لیکن﴿إِنِّي كَفَرْتُ بِمَآ أَشْرَكْتُمُونِ مِن قَبْلُ﴾ زه پخپله ستاسو ددي کارنه بیزاره یم [اوداباطل ګنم ]چه تاسو مخکې ددې نه [ په دنیاکښې] زه [دالله سره] شریك ګرزولم [دبتانو وغیره دعبادت په باره کښې به تاسو داسی څماحکم منلو چې کم حکم منل خاص وو د الله تعالی سره،نودبتانوشریك ګرڅول په معنی دشریك ګرڅولودشیطان دي نوڅماتاسوسره هیڅ تعلق نشته اونه ستاسودمددغوښتلوحق شته پس] ﴿إِنَّ الظَّالِمِينَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾یقینادظالمانولپاره دردناك عذاب [مقرر]دي پس په عذاب کښې پراته اوسئ مه څما دملامته کولونه دنفع امیدساتئ اونه دمددغوښتلونه ،کوم ظلم چه تاسوکړې دي دهغي مزه تاسوڅکئ کوم چه ماکړي دي څه به ئې څکم پس خبري پریدئ دا نچوړشوداblیس دجواب نوپه دي سره دغیرالله دمعبودانوتکیه هم قطع شوه ،څکه چه کوم ددې معبودانودعبادت اصل بانی اومحرك دي اوپه حقیقت کښې دغیرالله په عبادت باندې زیات راضی هم هغه وی په دې بنابه دقیامت په ورځ کښې دوزخیان دده سره سوال جواب وکړې ،بل معبودغیرالله ته به هیڅ نه وائی، هرکله چه دې صاف جواب ورکړې نودنورونه به څه امیدپاتې شی ،پس د کفارو د نجات ټولې طریقی بندې شوې اومقصودهم دامضمون وو].

| وَأُدْخِلَ الَّذِينَ | آمَنُوا | وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ | جَنَّاتٍ | تَجْرِي |
|---|---|---|---|---|
| اوداخل به کړې شی هغه کسان | چې ایمان ئې راوړو(۱) | اوعملونه ئې اوکړل نیك | داسې باغونو ته | چې بهیږی به |
| او چاچې ایمان راوړې دې او نیک کارونه ئې کړي دي | هغوئ به داسې باغونو ته داخلولې شی | | | چې د هغې لاندې |
| مِن تَحْتِهَا | الْأَنْهَارُ | خَالِدِينَ فِيهَا | | بِإِذْنِ رَبِّهِمْ |
| لاندې د[اونو] د هغې نه | نهرونه | همیشه به وی | په هغې کښې | په حکم د رب خپل |
| به نهرونه بهیږی | ......... د خپل رب په حکم به هغوئ په دې کښې همیشه وی | | | |

۱) دَ خرابو خلقو انجام اودَ هغوی دَ درد اوغم اودَ ابلیس دَ جواب ذکر کولو سره اوس دَ نیکانو خلقو انجام بیانولې شی چه ایماندار د نیکو عملونو والا خِلق به جنتونو ته ځی. چرته چه زړه غوارې ځی دې راځی دې ګرځی راګرځی او خوری او څکی دې. د همیشه د پاره دې هم دلته اوسیږی پاتې شوې ارزوګانې، نه به ئې زړه مړیږی، نه به ئې طبیعت خرابیږی، نه به مړه کولې شی او نه به راویستلې شی او نه به نعمتونه کم وی. هلته به دهغوی تحفه هم سِلام او سلام وی لِکه چه اِرشاد دی﴿حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءُوهَا وَفُتِحَتْ أَبْوَٰبُهَا﴾ یعنی چه کله جنتیان جنت ته لاړشی نودَ هغې دروازې به د هغوی د پاره کولاوولې شی اودَ هغه ځایٔ څوکیدار به هغوی ته سلام علیك وائې الخ. او په بل اَیت کښې دی چه د هرې دروازې نه به هغوی سره فرښتې راځی او سلام علیکم به وائی او په بل اَیت کښې دی چه هلته به تحیة او سلام اوروِلې شی. او په یو بل آیت کښې دِی ﴿دَعْوَىٰهُمْ فِيهَا سُبْحَـٰنَكَ ٱللَّهُمَّ وَتَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلَـٰمٌ﴾ دَ هغوی آواز کول به هلته دَ الله تعالی پاکی بیانول وی اودَ هغوی تحفه به هلته سلام وی اودَ هغوی آواز به د الله تعالی رب العزت حمد وی.

| سَلٰمٌ۝ | فِيهَا | تَحِيَّتُهُمْ |
|---|---|---|
| سلام وی | په هغې کښې | د ملاقات دعا د هغوئ به |

اوهلته به دهغوئ دملاقات دعا سلام وی |

## آسان ترجمه قرآن

او کومو خلقو چه ایمان راوړې وو، او هغوی نیک عملونه کړې وو، هغوی به داسې باغونه ته داخل کړې شی چه د هغې د لاندې به نهرونه بهیږی. د خپل رب په حکم بانديې به هغوی په هغې (باغونو) کښې همیشه اوسیږی. هغوی به خپل مینځ کښې د یو بل استقبال په سلام سره کوی.

### خلاصه تفسیر

﴿وَأُدْخِلَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا بِإِذْنِ رَبِّهِمْ﴾ کوم خلق چه ایمان راوړي اونیك کارونه وکړې دوې به داسی باغونوته داخل کړې شی چه لاندې به تري نهرونه بهیږي [او] دوي به په هغوی کښې دخپل رب په حکم همیشه همیشه اوسي ﴿تَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلَامٌ﴾ [او] هلته به هغوي ته سلام په دې لفظ سره کولي شی السلام علیکم [یعنی خپلو کښې سره هم او د فرشتو لخوا هم لکه چه الله فرمائی (إِلَّا قِيلًا سَلَامًا سَلَامًا)(۱)یا داسې (وَالْمَلَائِكَةُ يَدْخُلُونَ عَلَيْهِمْ مِنْ كُلِّ بَابٍ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ):الایة ].(۲)

| ضَرَبَ اللّٰهُ | كَيْفَ | أَلَمْ تَرَ |
|---|---|---|
| بیان کړو الله | چې څرنګې | آیا ته نه ګورې |

آیا ته نه ګورې چې الله ﷻ څنګه د پاکې .......... |

| ثَابِتٌ | أَصْلُهَا | طَيِّبَةٍ | كَشَجَرَةٍ | طَيِّبَةً | كَلِمَةً | مَثَلًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| محکم وی | د هغې | چې بیخ (جرړې) | پاکې | پشان د ونې | پاکې | مثال \| د کلمې |

کلمې مثال بیان کړې دې | چې هغه د یوې پاکې ونې په شان ده | د هغې جرړې (په زمکه کښې)

| بِإِذْنِ | كُلَّ حِينٍ | أُكُلَهَا | تُؤْتِي | فِي السَّمَاءِ | وَفَرْعُهَا |
|---|---|---|---|---|---|
| په حکم | هروختې | میوه خپله | ورکوی | په آسمان کښې وی | او څانګې د هغې |

مضبوطې او ښاخ ئې په آسمان کښې دې | هغه دخپل رب په حکم سره په هر فصل کښې خپله میوه

| يَتَذَكَّرُونَ۝ | لَعَلَّهُمْ | لِلنَّاسِ | الْأَمْثَالَ | وَيَضْرِبُ اللّٰهُ | رَبِّهَا |
|---|---|---|---|---|---|
| نصیحت قبول کړی | د پاره د دې چې هغوئ | د پاره د خلقو | دا مثالونه | او بیانوی الله | درب خپل |

ورکوی | اوالله ﷻ خلقو د پاره مثالونه څکه بیانوی | چې هغوئ ترې نه سبق واخلی

(۱) ترجمه:- صرف د سلام سلام آوازونه به وی. (الواقعة:۲٦)

(۲) ترجمه:- او دوئ ته به فرښتې دهرې دروازې نه رازی چې تاسو به بالکل صحیح سلامت اوسئ په هغه وجه چې تاسو به مضبوط (یعنې صبر کوونکې)اوسیدئ.(الرعد:۲۳، ۲٤)

## آسان ترجمه قرآن

آيا تاسو نه گورئ چه الله پاک د کلمه طيبه څنګه مثال بيان فرمائيلې دې؟ هغه د يوې پاکې اونې په شان ده چه د هغې جرړې (زمکه کښې) په مضبوطوالی سره لګيدلې دی، او د هغې ښاخونه په آسمان کښې دی. د خپل رب په حکم باندې هغه هر وخت ميوه ورکوی الله پاک (دا قسم) مثالونه ځکه بيان فرمائی چه خلق نصيحت حاصل کړی.

## د تفسير خلاصه

﴿اَلَمۡ تَرَ كَيۡفَ ضَرَبَ اللّٰهُ﴾آيا تاسو ته معلومه نه ده (يعنې اوس درته معلومه شوه) چې الله ﷻ څنګه (ښه او د موقعې) مثال بيان کړې دې ﴿مَثَلًا كَلِمَةً طَيِّبَةً﴾ د کلمې طيبې (يعنی د توحيد د کلمې او د ايمان) ﴿كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ﴾ چې هغه د يوې پاکې ونې پشان ده (چې هغه ونه دکهجورې ده) ﴿اَصۡلُهَا ثَابِتٌ﴾ چې جرړې يې (په زمکه کښې) ښې ښخې وی ﴿وَّفَرۡعُهَا فِى السَّمَآءِ﴾ او څانګې يې په پورته روانې دی (او) ﴿تُؤۡتِىۡۤ اُكُلَهَا كُلَّ حِيۡنٍۢ بِاِذۡنِ رَبِّهَا﴾ دغه (ونه) د الله ﷻ په حکم سره په هر فصل کښې (يعنی کله چې ددې فصل راشی) خپله ميوه ورکوی (يعنی په غوررنګ کښې وی، هيڅ يو فصل يې نه خرابيږی ، دغه شان د توحيد د کلمې لااله الاالله يوه جرړه ده ، مراد ترې عقيده ده چې د مؤمن په زړه کښې يې پوخ او مضبوط ځاې نيولې دې او دهغې څه څانګې دی ، مراد ترې نيک عملونه دی چې په ايمان باندې انحصار لری او د قبوليت دربار آسمان ته اوړلې شی ، بيا په دې باندې د هميشه رضامندئ نتيجه ولاړيږی ) ﴿وَيَضۡرِبُ اللّٰهُ الۡاَمۡثَالَ لِلنَّاسِ﴾ او الله ﷻ (داشان) مثالونه خلقو ته (دښودلو) دپاره ځکه بيانوی ﴿لَعَلَّهُمۡ يَتَذَكَّرُوۡنَ﴾ چې دغه (خلق په مقصودی معنو باندې) ښه پوهه شی (ولې چې مثال څخه د مقصود ښه وضاحت کيدې شی)

<table>
<tr><td>وَمَثَلُ كَلِمَةٍ　خَبِيۡثَةٍ　كَشَجَرَةٍ　خَبِيۡثَةِ　اجۡتُثَّتۡ</td></tr>
<tr><td>او مثال | دکلمې | خبيثې (پليتې ) | پشان د ونې | خبيثې (بدذاتې ) دې | چې ايستلې شوی وی</td></tr>
<tr><td>اود يوې ناپاکې خبرې مثال د يوې ناپاکې ونې پشان دې | چې د زمکې دپاسه راوويستلې</td></tr>
<tr><td>مِنۡ فَوۡقِ الۡاَرۡضِ　مَا لَهَا　مِنۡ قَرَارٍ　يُثَبِّتُ اللّٰهُ　الَّذِيۡنَ　اٰمَنُوۡا</td></tr>
<tr><td>د سر د زمکې نه | چې نۀ وی هغې د پاره |هيڅ قرار| مضبوطوی الله | هغه کسان | چې ايمان ئې راوړو</td></tr>
<tr><td>شی | او د هغې هيڅ مضبوطيا نۀ وی | .........الله ﷻ مومنان د دغې پخې خبرې (کلمې طيبې)</td></tr>
<tr><td>بِالۡقَوۡلِ الثَّابِتِ　فِى الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا　وَفِى الۡاٰخِرَةِ　وَيُضِلُّ اللّٰهُ　الظّٰلِمِيۡنَ</td></tr>
<tr><td>په خبرې محکمې سره | په ژوند د دنيا کښې | او په آخرت کښې | اوګمراهه کوی الله | ظالمان</td></tr>
<tr><td>په برکت د دنيا په ژوند کښې او په آخرت کښې هم ثابت قدم ساتی | اوالله ﷻ ظالمان ګمراه کوی</td></tr>
<tr><td>وَيَفۡعَلُ اللّٰهُ　مَا　يَشَآءُ　اَلَمۡ تَرَ　اِلَى الَّذِيۡنَ　بَدَّلُوۡا</td></tr>
<tr><td>او کوی الله | هغه کار | چې غواړی نې هغۀ | آيا تا اونۀ ليدل | هغه کسان | چې بدل کړو هغوئ</td></tr>
<tr><td>او الله ﷻ چې څه غواړی هغه کوی | آيا تا هغه خلق نۀ دی ليدلی | چې کومو د الله ﷻ نعمت په</td></tr>
</table>

| نِعۡمَتَ اللّٰهِ | كُفۡرًا | وَّاَحَلُّوۡا | قَوۡمَهُمۡ | دَارَ الۡبَوَارِ ۝۲۸ |
|---|---|---|---|---|
| نعمت د الله | په ناشکرئ سره | او بوتلو (ديکه کړو) هغوئ | قوم خپل | کور د هلاکت ته |
| ناشکرئ بدل کړو | ......او خپل قوم ئي هم د هلاکت کور ته ورداخل کړو | | | |

| جَهَنَّمَ | يَصۡلَوۡنَهَا | وَبِئۡسَ | الۡقَرَارُ ۝۲۹ |
|---|---|---|---|
| (يعنی) دوزخ ته | چې سوزی به په هغې کښې | او ډير بدخائې دې | د قرار |
| چې جهنم دې | چې ټول به ورته داخليږی | او هغهٔ ډير بد ځائې دې د اوسيدو | |

## آسان ترجمه قرآن

**او د ناپاکې کلمې مثال د يوې خرابې اونې په شان دې کومه چه د زمکې دپاسه سرته راويستلې شي، په هغې کښې لږ شان هم مضبوطوالې نه وی کومو خلقو چه ايمان راوړې دې، الله پاک هغوی ته په مضبوطې خبرې باندې په دنيا کښې هم مضبوطيا ورکوی، او په آخرت کښې هم. او ظالمانو خلقو لره الله پاک گمراه کوی، او الله پاک (د خپل حکمت مطابق) چه څه غواړی کوی آيا تا هغه خلق نه دی ليدلی چا چه د الله پاک نعمت په کفر باندې بدل کړو، او خپل قوم ئې د تباهئ په کور کښې راکوز کړو چه د هغې نوم جهنم دې، هغوی به په هغې کښې سوزی، او ډيره بده استوګنه ده.**

## د تفسير خلاصه

﴿وَمَثَلُ كَلِمَةٍ خَبِيۡثَةٍ﴾ او د ګنده کلمې (د کفر اوشرک) مثال داسې دې ﴿كَشَجَرَةٍ خَبِيۡثَةِ اجۡتُثَّتۡ مِنۡ فَوۡقِ الۡاَرۡضِ﴾ لکه چې يوه خرابه ونه وی (مراد ترې د مرغونې ونه ده) چې هغه د زمکې دپاسه نه راوښکلې شی (او) ﴿مَالَهَا مِنۡ قَرَارٍ﴾ د هغې (په زمکه کښې) څه کلك والې نه وی (د مرغونې دې بوټی ته څکه خراب اوويلې شو چې خوند، رنګ او بدبو يې خراب وی يا د ميوې خوند رنګ او بدبوی يې خراب وی، دا صفت د طيبه په مقابله کښې شو، دپاسه نه راوښکلو مطلب دادې چې جرړې دننه زمکه کښې لرې پورې نه وی تلې بلکه معمولی شان په زمکه کښې ښخې وی داد ﴿اَصۡلُهَا ثَابِتٌ﴾ په مقابله کښې شو چې ﴿مَالَهَا مِنۡ قَرَارٍ﴾ سره يې تاکيد اوکړې شو ، ددې ښاخونه په پورته نه تلل او ميوه يې د خوند اخستو دپاره نه پکاريدل هر چاته معلوم دی هم دا حال دکفر د کلمې دې چې اګر که د کافر په زړه کښې ددې جرړې دی خو دحق په وړاندې ددې کمزوری او پاتې راتلل داسې دی لکه چې جرړې يې بالکل نه وی بل ځائې کښې الله ﷻ فرمائی چې ﴿حُجَّتُهُمۡ دَاحِضَةٌ﴾[1] کيدې شی چې په ﴿مَالَهَا مِنۡ قَرَارٍ﴾[2] سره يې هم دا کمزوری ښکاره کول مقصود وی ، او هرکله چې ددوې عملونه نشی قبلولې څکه ددې څه تعبير په دې سره اوکړې شو چې ګويا ښاخونه يې په فضا کښې خواره نه دی ، هرکله چې ددوئ هيڅ عمل د الله ﷻ د رضا دپاره نه وی څکه يې د ميوې نيشتوالې هم ښکاره دې ، هر کله چې د کافر د څه عمل قبليدو او په دې سره د الله ﷻ د رضا حاصلولو هيڅ احتمال نشته ، څکه د مشبه به يعنی د مرغونې د بوټی د ښاخونو او ميوې بيانول شايد پرينبودلې شو،

---

[1] ترجمه:- ددې خلقو حجت باطل دې. (الشورى:١٦)

[2] ترجمه:-دوئ ته به هيڅ ثبات نه وی. (ابراهيم:٢٦)

البته د کفر بيان څکه اوکړې شو چې د هغې موجود والې محسوس هم دې او د جهاد په احکامو کښې معتبر هم دې ، دا دواړه مثالونه شو ، وروسته ددې اثر بيان داسې دې چې ﴿يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ﴾ الله ﷻ ايمان دارو لره دې پخې خبرې (يعنی د کلمې طيبې په برکت) سره ﴿فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِي الْاٰخِرَةِ﴾ په د نيا او آخرت (دواړو ځايونو) کښې (په دين او امتحان کښې) مضبوط لرى او (ددې خبيثې کلمې دسپيرتوب په وجه) ﴿وَيُضِلُّ اللّٰهُ الظّٰلِمِيْنَ﴾ ظالمانو (يعنی کافرانو) لره (دواړو ځايونو) په دين او امتحان کښې) بې درکه کوى او (چالره پخپل ځائې لرلو او چالره په دې بې درکه کولو کښې په زرګونو حکمتونه وى نو) ﴿وَيَفْعَلُ اللّٰهُ مَا يَشَآءُ﴾ الله ﷻ (پخپل حکمت سره) څه چې غواړې کوى ﴿اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ﴾ ايا تاسو هغه خلق نه دى ليدلى (چې عجيبه حال يې دې) ﴿بَدَّلُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ كُفْرًا﴾ چا چې د الله ﷻ د نعمت په ځائې (د شکر باندې) کفر اوکړو (مراد ترې د مکې کافران دى (بحواله درمنثور عن ابن عباس رضی الله عنه)[1]) ﴿وَاَحَلُّوْا قَوْمَهُمْ دَارَ الْبَوَارِ﴾ او چا چې خپل قوم لره د هلاکت کور يعنی جهنم ته اورسولو (يعنی هغوئ ته يې هم د کفر تعليم ورکړو چې د هغې په وجه به) ﴿جَهَنَّمَ ۚ يَصْلَوْنَهَا ۗ وَبِئْسَ الْقَرَارُ﴾ دوئ په هغې (جهنم) کښې داخليږى او هغه د استوګنې خراب ځائې دى (په دې کښې اشاره شوه چې ددوئ داخليدل په کلك او هميشه پاتې کيدو دپاره وى)

## معارف او مسائل

ددې آيتونو څخه مخکښې په يو آيت مبارك کښې الله ﷻ د کافرانو د عملونو مثال هغې ايرې سره ورکړې دې چې طوفانى هوا پرې راشى نو دهغې ذره ذره په هوا کښې الوتلو سره بې نوم نشانه نشى بلکه که څوك ددې په جمع کولو سره ترې څه کار اخستل غواړى نو هيڅ نشى کيدې لکه فرمائى چې :

﴿مَثَلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ اَعْمَالُهُمْ كَرَمَادِ ِۨاشْتَدَّتْ بِهِ الرِّيْحُ فِيْ يَوْمٍ عَاصِفٍ﴾ مطلب دادې چې د کافرانو عملونه که په ظاهره ښه هم وى بيا هم د الله ﷻ په نزد قبليدې نشى څکه بالکل بيکاره دى.

دې پسې په دې آيتونو کښې د مؤمن اود هغه د عملونو مثال ورکړې شوې دې ، بيا د کافرانو او منافقانو مثال ورکړې دې ، په رومبى ايت مبارك کښې د مؤمن او دهغه د عملونو مثال يو داسې ونې سره ورکړې شوې دې چې تنه يې مضبوطه او لوړه وى او جرړې يې په زمکه کښې لرې پورې ژورې تلې وى او د زمکې په ښکته اوبو باندې يې زرغونه کيږى. د ژورو جرړو په وجه دغه ونه مضبوطه او محکمه هم وى چې د هوا په چپو سره نه راګذاريږى. او د زمکې د مخ نه د لوړوالى په وجه يې ميوه دګنده څخه صفا کيږى ، ددې ونې دويم صفت دا بيان شوې دې چې ښاخونه يې ښه لوړ آسمان ته نزدې وى ؛ دريم صفت يې دا بيان شوې دې چې ميوه يې په حال کښې په هر وخت کښې خوړلې شى . ددې ونې باره کښې د مفسرينو اقوال مختلف دى ، خو زياته نزدې خبره داده چې دا کهجورې ونه ده ، چې په ليدلو کتلو او تجربې سره يې هم تائيد کيدې شى ، د احاديثو د روايتونو تر مخه د کهجورې دونې د تنې لوړ والې او مضبوط والې خو د ليدلو کتلو څيز دې . او تول خلق يې پيژنى ، دا هم

[1] الدر المنثور تحت هذه الآية [ج:٦ص:٦٥]

هر چاته معلومه ده چې ددې جرړې په زمکه کښې ډیرې ژورې تلې دی او میوه یې هم په هر وخت او هر حال کښې خوړلې شی، تر دې پورې چې لګیدلې کچه کهجورو څخه اچارونه او چټنیانې وغیره جوړولې شی، د پخو کهجورو ذخیره هم ټول کال پکار راوستې شی او چهوهارې خو په کلونو پکار راوستلې شی، په صبا، ماښام خصوصا په روژو کښې د ماښام د شپې، ورځې په ګرمی یخنی کښې استعمالولې شی، غرض دا چې هر موسم او هر وخت کښې پکار راوستې شی، ددې ونې د مینځ حصه هم خوړلې شی، دې نه خوږ رس راوښکلې شی، د پانړو نه ډیره فائده من څیزونه مثلا پوزی، ببوزی وغیره جوړولې شی، او ددې هډوکی د څناورو د خوراك دپاره پکار ر راځی، په خلاف د نورو ونو د میوونه چې په خاص موسم کښې موندې شی او ختمیږی، دهغې ذخیره نشی ساتلې اونه یې د هر څیز نه فائده اخستې شی.

د ترمذی، نسائی و ابن حبان او حاکم په حواله د انس رضی الله عنه څخه دا روایت نقل شوې دې چې نبی کریم اوفرمائیل چې شجره طیبه (کومه چې په قرآن پاك کښې بیان شوېده) د کهجورې ونه ده او شجره خبیثه د مرغونې ونه ده (مظهری)[1]

مسند احمد کښې د مجاهد رحمه الله په روایت راغلی دی چې عبد الله بن عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چې یوه ورځ مونږ نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، چا نبی کریم ﷺ ته د کهجورې دونې منځنۍ حصه راوړله، د غه وخت کښې نبی کریم ﷺ د صحابه کرام څخه سوال اوکړو په ونو کښې داسې ونه هم شته چې دمؤمن بنده مثال دې. او د بخاری په روایت کښې دا هم راغلی دی چې د نبی کریم ﷺ د فرمان مطابق ددې ونې پانړې په هیڅ یو قسم موسم کښې نه غورزیږی، اونه رژیږی. اوښایې دا کومه ونه ده؟[2] ابن عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چې زړه کښې مې دا راغلل چې اووایم چ داد کهجورې ونه ده، خو په مجلس کښې ابو بکر صدیق رضی الله عنه، عمر فاروق رضی الله عنه او نور لوې لوې صحابه کرام ناست وو چې هغوئ مې خاموش اولیدل نو ما ددغه وئیلو څخه زړه صبر کړو، بیا پخپله نبی کریم اوفرمائیل چې دا د کهجورې ونه ده.

دمؤمن مثال داسې ونې سره دورکولو یوه وجه دا هم ده چې په کلمه طیبه ایمان ددې خبرې جرړې دی چې ډیرې زیاتې محکم او مضبوط دې، ددنیا حادثات او راپیښې دې لره نشی خوځولې، د کاملو مؤمنانو، صحابه کرامو او تابعینو بلکه د هرې زمانې د پخو مسلمانانو داسې مثالونه څه کم نه دی چې د ایمان په مقابله کښې یې د ځان او مال او د بل هیڅ څیز پرواه نه ده کړې، بله وجه یې پاکی او صفائی ده چې ددنیا په ګندګیانو څه اثر نه قبلوی لکه په یوې لوړې ونې باندې چې د مخ د زمکې د ګندګی څه اثر نه کیږی دا دوه صفتونه خو د (اَصۡلُهَا ثَابِتٌ) مثالونه دی، دریمه وجه یې داده چې څنګه دکهجورې دونې ښاخونه لوړې او آسمان طرفته دی، د مؤمن د ایمان نتیجې یعنی عملونه هم آسمان ته پورته کولې شی لکه قرآن پاك فرمائی چې: (اِلَيۡهِ يَصۡعَدُ الۡكَلِمُ الطَّيِّبُ) (یعنی الله ﷻ ته پاکیزه کلمات مخ ته پورته ځی) مطلب دا دې چې

---

[1] تفسیر المظهری تحت هذه الآیة [ج:۵ص:۲۶۷] و جامع الترمذی، ابواب التفسیر باب سورة ابراهیم علیه السلام [ج:۲ ص:۱۴۰]

[2] صحیح البخاری کتاب الأدب، باب [کرام الکبیر إلخ [ج:۲ص:۹۰۷] ومسند احمد بالفاظ مختلفة رقم الحدیث [۵۶۸۴] مسند عبدالله بن عمر رضی الله عنه.

دمؤمن ذکر ، تسبيح ، تهليل ، لوستل دقرآن وغيره هر وخت الله ﷻ ته رسيږي .
څلورمه وجه يې داده چې څنګه د کهجورې ميوه هر وخت ، په هر حال او په هر موسم کښې د شپې او د ورځې خوړلې شي ، د مؤمن نيک عملونه هم هر وخت په هر موسم کښې او په هر حال کښې صبا ، بيګاه جارې وي ، او څنګه چې د کهجورې د ونې هر څيز پکار راځي ، دا شان د مؤمن هر قول ، فعل ، ناسته ولاړه ، حرکت او بې حرکتي او ددې څخه پيدا کيدونکي اثرات ټولې دنيا دپاره فائده مند وي ، خو شرط دادې چې هغه کامل مؤمن او دالله ﷻ او درسول کريم ﷺ دتعليماتو پوره پابند وي .
ددې بيان شوې تقرير څخه معلومه شوه چې ﴿تُؤْتِيْٓ اُكُلَهَا كُلَّ حِيْنٍ﴾ کښې د اکل نه مراد ميوې او د خوړلو جوګه څيزونه دي ، او د حين نه مراد هر وخت او هر حال دې ، اکثرو مفسرينو داخبره غوره کړيده ، د نورو حضراتو نور اقوال هم شته دې .

**د کافرانو مثال :** بل طرفته د کافرانو مثال ﴿شَجَرَةٍ خَبِيْثَةٍ﴾ سره ورکړې شوې دې ، څنګه چې د ﴿كَلِمَةً طَيِّبَةً﴾ نه مراد لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ، يعنې ايمان دې . دغه شان د ﴿كَلِمَةٍ خَبِيْثَةٍ﴾ نه مراد د کفر کلمې او دکفر کارونه دي ، دحديث پاک ترمخه شجره خبيثة نه مراد د مرغونې بوټې دې ، او څينو داورې وغيره بوټي مراد اخستې دې .
د﴿شَجَرَةٍ خَبِيْثَةٍ﴾ حال قرآن کريم دا بيان کړې دې چې جرړې يې په زمکه کښې ډيرې ژورې نه وي څکه په رابنکلو سره ټوله د زمکې څخه راوځي نو د ﴿اجْتُثَّتْ﴾ اصلي معنی هم داده چې د يو څيز پوره بدن راپورته کړې شي .
د کافرانو عملونه ددې ونې پشان څکه بنودلې شوې دي چې اول خو ددوئ د عقيدو څه بيخ بنياد نشته دې ، په لږ وخت کښې پرې زلزله راځي ، بله دا چې ددنيا د ګندګۍ نه اثر قبلوي ، دريمه دا چې دونې ګلونه ميوې يعنې عملونه او کارونه وغيره دالله ﷻ په نزد دکار څيزونه دي .

**د ايمان اثر :** دې پسې د مؤمن د ايمان او کلمې طيبې يو خاص اثر په دويم آيت مبارک کښې دابيان شوې دې چې : ﴿يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِي الْاٰخِرَةِ﴾ [1] يعنې د مؤمن کلمه طيبه دمحکمې او مضبوطې ونې پشان يو ثابت قول دې چې الله ﷻ يې هميشه په خائې ولاړ لرې په دنيا او آخرت دواړوو کښې خو شرط دادې چې دا کلمه په اخلاص سره اوويلې شي او د لا اله الا الله مطلب سره د پوهې سراسر اختيار کړي .
مطلب دا شو چې کلمه طيبه باندې ايمان لرونکې خلق الله ﷻ په دنيا کښې هم مضبوطوي چې د هغې په وجه تر مرګه پورې هغه په دغه کلمې باندې ولاړ پاتې کيږي ، خواه که هر څومره آزمينتونه پرې اوشي ، او په آخرت کښې په دې کلمه باندې داسې په خائې ولاړ لرلې شي چې هر قسمه امداد يې کولې شي ، د صحيح بخارې او صحيح مسلم په حديث مبارک کښې راغلې دي چې دې آيت مبارک کښې د آخرت نه مراد عالم برزخ يعنې د مرګ او دوباره ژوندې کيدو تر مينځه حالت دې .

[1]) صحيح البخاري كتاب الجنائز ،باب ماجاء في عذاب القبر [ج:۱ص:۱۸۳]

**دقبرونو ثواب او عذاب د قرآن پاك او حديث څخه ثابت دي** :: په يو حديث پاك كښې راغلي دي چې كله په قبر كښې د يو مؤمن نه سوال كولې شي نو د غه شان هيبتناك مقام او سخت حال كښې به هم ، دالله ﷻ په مدد سره په دې كلمه قائم پاتې كيږي او د لااله الا الله محمد رسول الله ګواهي به وركوي ، اوبيا يې او فرمائيل چې د قرآني ارشاد : ﴿يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِي الْاٰخِرَةِ﴾ هم دا مطلب دې .﴿بروايت براء بن عازب رضي الله عنه﴾دغه شان تقريبا د څلويښتو صحابه كرامو په معتبرو سندونو سره ددې مضمون حديثونه نقل شوى دى چې امام ابن كثير رحمه الله دلته په خپل تفسير كښې راجمع كړى دى . او شيخ جلال الدين سيوطى رحمه الله پخپلې منظوم رساله التثبيت عند التسبيت او شرح الصدر كښې د اويا احاديثو په نقل كولو سره دې روايتونو ته متواتر وئيلې شوى دى، دې ټولو صحابه كرامو په دغه آيت مبارك كښې د آخرت نه مراد قبر اخستې دې او دا آيت مبارك يې د قبر د ثواب او عذاب په باره كښې ګرځولې دې.
دمرګ او ښخيدلو نه پس د انسان دوباره ژوندى كيدل او د فرښتو د سوالونو جوابونه وركول دقرآن پاك په لسو آيتونو كښې اشارتا او درسول كريم ﷺ په اويا متواترو احاديثو مباركو كښې ښه په ښكاره بيان شوى دى چې هيڅ يو مسلمان په كښې شك شبه نشي كولې ، دا د اميانو سوالونه دى چې بيا ولې دغه عذاب ليدلې نشي ، ددې تفصيلي جواب اګر چې دلته ځائې نه لرى صرف دومره خبره باندې پوهيدل پكار دى چې د يو څيز نه ښكاريدل ددې د نيشتوالى دليل نشي كيدې ځكه چې پيريان او فرښتې چاته نه ښكارى خو په شتو شته دې ، هوا څوك نه وينى خو ضرور شته دې ، كومه كائناتى فضا چې په دې زمانه كښې د راكټونو په ذريعه معلومه شوې ده هغه د نن څخه وړاندې چا نه وو ليدلى حالانكه موجود وو ، په خوب كښې څوك په مصيبت ، تكليف ، عذاب كښې اخته وى مګر ورسره ناست او موجود خلق پرې هيڅ نه پوهيږي .
اصولى خبره د اده چې ديو جهان حالات د بل جهان په حالاتو باندې قياس كول پخپله غلط دى، كله چې د كائناتو پيداكوونكى دخپل رسول ﷺ په ذريعه بل جهان ته د رسيدو نه پس د ثواب او عذاب خبر وركړې شوې دې په هغې باندې ايمان او عقيده لرل ضرورى دى .
په آخر د آيت مبارك كښې فرمائى چې ﴿وَيُضِلُّ اللّٰهُ الظّٰلِمِيْنَ﴾ يعنى الله ﷻ خو مؤمنانو لره په كلمه طيبه او قول ثابت باندې مضبوط لرى او ددې په نتيجه كښې د قبر د وخت نه دوئ دپاره د آرام او راحت سامان جمع شى خو ظالمان يعنى كافرانو او مشركانو ته دالله ﷻ مدد او مرسته نه حاصليږى ، د منكر نكير د سوالونو صحيح جواب نشې وركولې ، او په نتيجه كښې د اوس نه په يو قسم عذاب كښې اخته شى .
﴿وَيَفْعَلُ اللّٰهُ مَا يَشَآءُ﴾ او الله ﷻ هغه كوى چې غواړى ، هيڅ يو طاقت دهغه اراده او خوښه نشى ايسارولې ، ابى بن كعب رضي الله عنه ، عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ، حذيفه بن يمان رضي الله عنه ، صحابه كرامو فرمائيلى دى چې مؤمن لره دا عقيده لرل لازمى دى چې ده ته حاصل شوې هر يو څيز د الله ﷻ په اراده او خوښې سره حاصل شوى دى ، ددې ايسارول نه شو كيدې ، داشان د نه حاصليدونكى څيز ، حاصليدل هم نشو كيدې ، او وې فرمائيل چې كه تاسو په دې باندې يقين او اعتبار ساتئ نو ډير خراب ځائې مو جهنم دې.
﴿اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ بَدَّلُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ كُفْرًا وَّاَحَلُّوْا قَوْمَهُمْ دَارَ الْبَوَارِ ۝ جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا وَبِئْسَ الْقَرَارُ ۝﴾ آيا تاسو هغې خلقو ته

نه ګورئ چا چې د الله ﷻ د نعمتونو په بدله کښې کفر اختيار کړ او خپل هغه قوم يې د هلاکيدو او تباه کيدو مقام ته وروستو (کوم چې دهغه په وينا باندې چليدل) هغوئ به په جهنم کښې سوځي او جهنم ډير خراب ځائې دې.

دلته د نعمة الله څخه د الله ﷻ عام نعمتونه هم مراد کيديشي کوم چې په سترګو ليدلې کتلې او محسوس کيدې شي يا دانسان ظاهرى فائدوسره تعلق لرى ، لکه د خوراك څکاك اغوستو ځيزونه زمکه او آسمان وغيره. او هغه مخصوص معنوى نعمتونه هم کيدې شي چې د انسان لارې ښودلو او هدايت دپاره دالله ﷻ د طرفه راغلى دى ، مثلا پيغمبران عليهم السلام ، آسمانى کتابونه ، هغه نخښې د الله ﷻ د قدرت او حکمت چې د انسانى بدن په هر جوړ کښې دى ، بيا د زمکې او دهغه په بې شميره مخلوقاتو کښې دى ، په آسمانونو کښې د انسان د پوهې څخه بهر کائناتو کښې د انسان د هدايتونو دپاره چې کوم سامانونه دى.

ددې دواړه قسمه نعمتونو تقاضا داده چې انسان د الله ﷻ لويى ، اوقدرت پيژندلې وې ، دهغه د نعمتونوشکر ګذار وى، او دهغه په تابعدارئ کښې اخته وى مګر کافرانو او مشرکانو د نعمتونو د شکر کولو په ځائې ناشکرى اوسرکشى اختيار کړه او په نافرمانئ کولو سر شو ، نتيجه يې دا راؤختله چې هغوئ خپل قوم هلاکت او تباهئ کښې وراوغورزولو او پخپله هم هلاك شو .

**حکمونه او هدايتونه** :: په دې درې واړو آيتونو کښې توحيد ، کلمې طيبې لااله الا الله لوئ او غوروالې ، ددې برکتونه اوفائدې او ددې نه دانکار کولو د سپرتوب او دخراب انجام بيان دې ، توحيد داسې يو نه ختمدونکې دولت دې چې د هغې په برکت سره په دنيا کښې د الله ﷻ مدد ورسره وى ، اوپه آخرت او قبر کښې هم او ددې نه انکار کول د الله ﷻ نعمتونو لره په عذاب سره د بدلولو پشان دى.

| | |
|---|---|
| وَجَعَلُوْا | لِلّٰهِ |
| او جوړ کړل هغوئ | الله د پاره |
| ......او دې خلقو | |

| اَنْدَادًا | لِّيُضِلُّوْا | عَنْ سَبِيْلِهٖ ؕ | قُلْ | تَمَتَّعُوْا |
|---|---|---|---|---|
| شريکان | دپاره ددې چې بې لارې کړى خلق | د لارې دهغهٔ نه | ورته اووايه | چې نفع واخلئ تاسو |
| الله دپاره شريکان جوړ کړى دى | چې خلق د هغهٔ دلارې نه ګمراه کړى | | ورته اووايه چې لږه | |

| فَاِنَّ مَصِيْرَكُمْ | اِلَى النَّارِ ۝ | قُلْ | لِّعِبَادِيَ | الَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|
| پس بيشکه واپس تلل | دى ستاسو | وور ته | اووايه | بندګانو زما ته \| هغه (بندګان) |
| فائده واخلئ \| بيشکه ستاسو تلل دوزخ طرفته دى \| (ائې محبوبه ﷺ) زما هغه بندګانو ته اووايه | | | | |

| اٰمَنُوْا | يُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ | وَيُنْفِقُوْا | مِمَّا | رَزَقْنٰهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| چې ايمان ئې راوړې دې | چې قائم کړى مونځ | او خرچ کړى | د هغې نه | چې ور کړې دى مونږ هغوئ ته |
| چې ايمان ئې راوړې دې | چې هغوئ د مونځونو پابندى کوى | او څه چې مونږ ورکړى دى | د هغې نه | |

سِرًّا وَّعَلَانِيَةً مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ

په پټه | او په ښکاره | مخکښې د دې نه | چې راشي هغه ورځ | چې نه به وي اخستل خرڅول

په پټه او په ښکاره (دنیکئ په لار کښې) خرڅ کوي | د دې نه وړاندې چې هغه ورځ راشي | چې

فِيْهِ وَلَا خِلٰلٌ ۝ اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ

په هغې کښې | او نه دوستي | الله | هغه ذات دې | چې پیدائي کړل | آسمانونه | او زمکه

په کښې اخستل خرڅول نه وي | الله ﷻ هغه ذات دې | چې چا آسمانونه او زمکه پیدا کړل

وَاَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَخْرَجَ بِهٖ مِنَ الثَّمَرٰتِ رِزْقًا لَّكُمْ

او نازلې ئې کړې آسمان نه | اوبه | نو راویستلې ئې | په دغه اوبو سره | دهر قسم میوو نه | رزق | د پاره ستاسو

او د بره نه ئې اوبه راورولې | بیا د هغې اوبو نه ئې مختلفې میوې تاسو دپاره د رزق په طور پیدا کړې

وَسَخَّرَ لَكُمُ الْفُلْكَ لِتَجْرِيَ فِي الْبَحْرِ بِاَمْرِهٖ

او تابع ئې کړه | ستاسو دپاره کشتئ | دپاره ددې چې گرځي | په دریاب کښې | په حکم د هغهٔ سره

اوتاسو دپاره ئې بیړئ تابع کړه | چې د هغهٔ په حکم سره سمندر کښې روانه وي

وَسَخَّرَ لَكُمُ الْاَنْهٰرَ ۝ وَسَخَّرَ لَكُمُ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ

او تابع ئې کړل | ستاسو دپاره | نهرونه | او تابع ئې کړل | ستاسو دپاره نمر | او سپوږمئ

او ستاسو د فائدې دپاره ئې دریابونه تابع کړل | اوستاسو دپاره ئې نمر او سپوږمئ په کار لګولې دي

دَآئِبَيْنِ وَسَخَّرَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ ۝ وَاٰتٰىكُمْ مِّنْ كُلِّ مَا

چې مسلسل روان دي | او تابع ئې کړل | ستاسو دپاره شپه | او ورځ | او در ئې کړل تاسو ته ټول هغه څیزونه

چې همیشه روان وي | اوتاسو دپاره ئې شپه او ورځ تابع کړل | اوتاسو ته ئې هغه ټول څیزونه درکړل

سَاَلْتُمُوْهُ وَاِنْ تَعُدُّوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ لَا تُحْصُوْهَا اِنَّ

چې تاسو اوغوښتل هغهٔ | او که شماروئ تاسو | نعمتونه د الله | نه شئ شمارولې هغه | بیشکه

چې تاسو غوښتل | اوکه تاسو د الله ﷻ نعمتونه شمیرل غواړئ | نو نهٔ ئې شئ شمیرلې | بیشکه

الْاِنْسَانَ لَظَلُوْمٌ كَفَّارٌ ۝

انسان | ډیرظالم دې | ډیر ناشکره دې

انسان ډیر بې انصافه ناشکره دې |

## آسان ترجمه قرآن

او هغوی الله پاک سره (د هغه په بندگئ کښې) څه شریکان جوړ کړل، چه خلق د هغه د لارې نه گمراه کړی. هغوی ته اووایه چه : (لږې شان) مزې واخلئ، ځکه چه آخر به تاسو جهنم ته ځئ. زما کومو بندګانو چه ایمان راوړې دې، هغوی ته اووایه چه هغوی مونځ قائم کړی، او مونږ چه ورته کوم رزق ورکړې دې د هغې نه په پټه هم او په ښکاره هم (د نیکئ په کارونو کښې) خرچ کړی، (او دا کار دې) د هغه

ورځې دراتلو نه مخکښې مخکښې (اوکړی) چه په هغې کښې به نه اخستل خرڅول وی، نه به څه دوستی په کار راشی  الله پاک هغه ذات دې چا چه زمکه او آسمانونه پیدا کړی دی، او د آسمان نه ئې اوبه راورولې دی، بیائې د هغې په ذریعه ستاسو د رزق دپاره میوې پیدا کړې، او کشتۍ ئې ستاسو تابع کړې، چه هغه د الله پاک حکم بانډې په سمندر کښې روانې وی، او دریابونه ئې هم ستاسو په خدمت بانډې اولګول، او ستاسو دپاره ئې نمر او سپوږمۍ داسې په کار بانډې اولګول چه هغوی مسلسل په سفر کښې دی، او ستاسو دپاره ئې شپه او ورځ هم په کار کښې اولګول. او تاسو چه څه اوغوښتل هغه د هغې نه (چه څه ستاسو دپاره مناسب وو) تاسو ته درکړل. او که تاسو د الله پاک نعمتونه شمارل غواړئ نو شمار کولې ئې (هم) نه شئ حقیقت دا دې چه انسان ډیر بې انصافه، لوئې ناشکره دې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ اَنْدَادًا﴾ او (وړاندې بیان شوی دی چې دې خلقو د نعمت د شکر کولو په ځائې کفر اوکړو او خپل قوم یې جهنم ته اورسولو ، ددغې کفر جهنم ته د رسولو بیان دادیې چې) دغې خلقو الله ﷻ لره شریکان جوړ کړل ، ﴿لِّيُضِلُّوْا عَنْ سَبِيْلِهٖ﴾ دپاره ددې چې (نور هم) د هغه ددین څخه ګمراه کړي (نو شریك یې ګرځول کفر دې او نور خلق ګمراه کول هغوئ لره جهنم ته رسول دی) ﴿قُلْ تَمَتَّعُوْا فَاِنَّ مَصِيْرَكُمْ اِلَى النَّارِ﴾ تاسو (دغې ټولو ته) اووایې چې څه وخت عیش اوکړئی ځکه چې آخر انجام ستاسو دوزخ ته تلل دی (عیش نه مرد د کفر په حالت کښې پاتې کیدل دی ، ولې چې هر چاته خپل مذهب خوند ورکوی ، یعنی څه وخت نور هم کفر اوکړئی ، دا زورنه ورکول دی ، او دا ځکه چې مطلب دادې چې هر کله جهنم ته ستاسو تلل ضروری دی ، ځکه د کفر نه آوړیدل ستاسو ګران دی ، خیر څه وخت نور هم تیر کړئ. بیا خو به دغې مصیب سره مخ کیږئی او) ﴿قُلْ لِّعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ کوم چې زما ایماندار بندګان دی (هغه د نعمت د ناشکرۍ په وبال بانډې خبردار کړئی او دې نه یې محفوظ ساتلو دپاره ) ورته اووایې چې دوئ دې (د الله ﷻ د نعمت په داسې شان شکر ګذار اوسی چې) ﴿يُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ﴾ د مونځونو پابندی کوی ﴿وَيُنْفِقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ﴾ او مونږ چې څه دوئ ته ورکړی دی دهغې څخه (د قاعدو په جوړ) ﴿سِرًّا وَّعَلَانِيَةً﴾ په پټه او ښکاره (دموقعې مناسب ) خرچ کوئی ﴿مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيْهِ وَلَا خِلٰلٌ﴾ دداسې ورځې د راتلو څخه وړاندې چې په کښې به نه اخستل خرڅول وی او نه دوستی وی (مطلب دا شو چې په مخه مالی او بدنی عبادتونه کوئ ځکه چې هم دا د نعمت شکر ادا کول دی) ﴿اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ﴾ الله ﷻ داسې دی ، چا چې آسمانونه او زمکه پیدا کړه ﴿وَاَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً﴾ او د آسمان نه یې اوبه راؤورولې ﴿فَاَخْرَجَ بِهٖ مِنَ الثَّمَرٰتِ رِزْقًا لَّكُمْ﴾ بیا په دغې اوبو سره دمیوؤ د قسم نه تاسو دپاره روزی پیدا کړه ﴿وَسَخَّرَ لَكُمُ الْفُلْكَ﴾ او ستاسو د فائدې دپاره یې کشتۍ (او جهازونه په خپل قدرت سره) مسخر جوړ کړل ﴿لِتَجْرِيَ فِي الْبَحْرِ بِاَمْرِهٖ﴾ دپاره ددې چې هغه د الله ﷻ په حکم سره په دریاب کښې روانه وی (او ستاسو د تجارت او سفر مطلب ترې حاصل شی ، ) ﴿وَسَخَّرَ لَكُمُ الْاَنْهٰرَ﴾ او ستاسو دفائدې دپاره یې نهرونه (دخپل قدرت) مسخر جوړ کړل (دپاره ددې چې هم د هغې نه اوبه څکۍ ، فصلونه پرې خړوبوئی او کشتۍ په کښې چلوی) ﴿وَسَخَّرَ لَكُمُ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ دَآىِٕبَيْنِ﴾ او ستاسو د فائدې دپاره یې نمر او سپوږمۍ مسخر جوړل کړل

چې همیشه په رفتار کښې پاتې کیږی (دپاره ددې چې تاسو لره ترې د رنړا او ګرمۍ وغیره فائده وی) ﴿وَسَخَّرَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ﴾ او ستاسو د فائدې دپاره یې شپه ورځ (دخپل قدرت) مسخر جوړ کړه (چې تاسو ته ترې د ژوند تیرولو او آرام فائده حاصله وی) ﴿وَاٰتٰكُمْ مِّنْ كُلِّ مَا سَاَلْتُمُوْهُ﴾ او کوم څیزونه چې تاسو غوښتل (او هغه ستاسو د حال مناسب وو) تاسو ته یې (ستاسو غوښتلې) هر څیز درکړو ﴿وَاِنْ تَعُدُّوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ لَا تُحْصُوْهَا﴾ او (یوازې په دغې څیزونو درکولو خبره خلاصه نه شوه بلکه) دالله ﷻ نعمتونه (خو دومره بې شمیره دی چې) که دې لره شمیرل شروع کړې نو شمیر به یې نکړې شې ﴿اِنَّ الْاِنْسَانَ لَظَلُوْمٌ كَفَّارٌ﴾ (خو) رښتیا دادی چې انسان ډیر زیات بې انصافه ډیر زیات ناشکره دې (او د الله ﷻ د نعمتونو قدر او شکر نه کوی بلکه التبه کفر او نافرمانی کول شروع کړی څنګه چې یې بیان داسې اوشو ﴿اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ بَدَّلُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ كُفْرًا﴾)

## معارف او مسائل

دسورة ابراهیم په اول سر کښې د پیغمبرئ او آخرت په باره کښې مضامین وو ، وروسې د توحید غوره والې او د کفر او شرك د کلمې بدی د مثالونو په ذریعه بیان کړې شوی وو . بیا دمشرکانو بدی په دې وجه بیان شوې وه چې هغوئ د نعمتونو د شکر ادا کولو په ځائې د ناشکرئ ، اوکفر لار اختیار کړې وه .

اوس ددې آیتونو ځینې په رومبی آیت مبارك کښې د کافرانو او مشرکانو بدی او د هغوئ خراب انجام بیان شوې دې ، په دویم ایت مبارك کښې دمؤمنانوو فضیلت او د شکر ادا کولو دپاره دالله ﷻ د څه حکمونو تاکید کړې شوې دې ، په دریم ، څلورم ، اوپنځم آیت مبارك کښې د الله ﷻ د لویو نعمتونو په بیانولو سره دې ته تیار کړې شو چې دوئ دې دا نعمتونه دالله ﷻ په نافرمانۍ کښې نه خرچ کوی.

**تفسیر او تشریح:** (اَنْدَادًا) د نِدٌّ جمع ده. ددې معنی برابر او یو شان ده. بتانو ته انداد ځکه وئیلې شی چې مشرکانو دې لره د الله ﷻ پشان د هغه برابر ګرځولی وو ، (تَمَتَّعُوْا) معنی داده چې د یو څیز څو ورځو دپاره عارضی فائده حاصله کړې شی ، په دې آیت مبارك کښې دمشرکانو ددې غلطې عقیدې او نظریې بدی بیان شوې ده چې هغوئ بتانو لره دالله ﷻ پشان اودهغه شریکان ګرځولې وو ، رسول کریم ﷺ ته اوفرمائیلې شو چې دې خلقو باندې دا ضباط کړې چې انجام به یې څه وی ؟ وې فرمائیل چې یو څو ورځو دپاره ددنیا د نعمتونو نه فائده پورته کړې ، خو ستاسو ځائې د جهنم اور دې .

دویم آیت مبارك کښې رسول کریم ﷺ ته ارشاد دې چې د مکې کافران خو دالله ﷻ نعمت په شکر سره بدل کړو ، اوس تاسو زما مؤمنانو بندګانو ته اوفرمائې چې د مونځ پابندی دې کوی ، او مونږ چې کوم رزق دوئ ته ورکړې دی دهغې ځینې د الله ﷻ په لار کښې په پټه او په ښکاره خرچ کوی . دې آیت مبارك مؤمنانو لره ډیر زیرې او عزت ورکول دی ، اول خو دوئ لره الله ﷻ خپل بندګان اوبلل ، بیا په ایمان سره یې اوستائیل ، بیا یې ورته د همیشه آرام او عزت ورکولو طریقه اوښودله چې هغه د مونځ پابندی کول دی دهغې په وختونو کښې دې سستی نه کوی ، دهغې په آدابو کښې دې کوتاهی نه کوی ، او هم دالله ﷻ د ورکړی رزق څخه دې څه دهغه په لار کښې ورکوی ، ددې ورکولو او خرچ کولو دوه صورتونه ئې جائز

او گرځول. چې هغه په پټه وي او که په ښکاره وي ، ځيني علماء کرام فرمائي چې فرض زکوة او سرسايه په ښکاره ورکول پکار دي چې د نورو خلقو شوق هم پيدا شي ، او نفلي صدقه او خيرات په پټه ورکول بهتر دي چې د نوم نمائش خطره راپيدا نشي خو دا په اصل کښې په نيت باندې انحصار لري که په ښکاره کولو کښې د نوم نمائش څه بدبوئ راشي نو دصدقې غوره والي ختم شي خواه فرض وي او که نفل او که نيت يې داوي چې دنورو شوق هم پيدا شي نو په فرض او نفل کښې په ښکاره ادا کول جائز دي.

﴿مِّن قَبۡلِ أَن يَأۡتِيَ يَوۡمٞ لَّا بَيۡعٞ فِيهِ وَلَا خِلَٰلٌ﴾ : (خِلَٰلٌ) د (خُلَّةٌ) جمع هم کيدېشي چې معنى يې ېې غرضه دوستي ده ، او دې ته د باب مفاعله مصدر هم وئيلې شي ، لکه قتال او دفاع ، په دې صورت کښې به يې معنى د د وؤ کسانو په مينځ کښې د دواړو طرفونو سوچه دوستي کول وي ، دا جمله د مونځ او صدقې دواړو حکم سره تعلق لري.

مطلب به يې دا شي چې هر کله الله ﷻ نن فرصت درکړې دې چې مونځ اوکړې که په تير وخت کښې دې مونځونه قضا شوي وي د هغې قضا راوړې ، نن دې مال په قبضه کښې دې ، دالله ﷻ په لار کښې ددې په خرچ کولو سره د همېشه ژوند خان له پر جوړولې شې . ليکن هغه ورځ نزدې راروانه ده چې دا دواړه قوتونه او طاقتونه ستا نه واخستې شي ، بدن به دې د مونځ ادا کولو جوګه پاتې نشي ، ستا په ملك او قبضه کښې به مال پاتې نشي چې د هغې په وجه به پاتې شوي حقونه ادا کړې شي ، په دغه ورځ به څه اخستل خرڅول نشي کيدې چې دخپلو کوتاهيانو او نقصانونو راسر کولو دپاره به څه څيز واخستې شي په دغه ورځ به دوستانې او تعلقات هم پکار رانشي ، خوك عزيز ، دوست به دچا د ګناهونو بوج نشي پورته کولې نه به دهغه دعذاب په څه شان سره لرې کولې شي.

دغې ورځې نه مراد په ظاهره دحشر او قيامت ورځ ده ، او دا هم وئيلې شوي دي چې د مرګ ورځ ترې مراد ده ، ولې چې دغه ټول آثار هم د مرګ د وخت نه ښکاره کيږي ، نه يې بدن د څه عمل کولو جوګه پاتې شي او نه يې مال په قبضه کښې پاتې شي.

**احکام او هدايات**: په دې ايت مبارك کښې دا فرمائي چې د قيامت په ورځ به د چا دوستي په کار رانشي ، دې نه مطلب دنيوي دوستي ده ، ليکن هغه دوستي به پکار راځي کومه چې دالله ﷻ اودين دپاره وي ، داسې قسم دوستان به د يوبل شفاعت کوي څنګه چې په ډيرو احاديثو کښې دا راغلي دي اوقرآن کريم فرمائي : (ٱلۡأَخِلَّآءُ يَوۡمَئِذِۭ بَعۡضُهُمۡ لِبَعۡضٍ عَدُوٌّ إِلَّا ٱلۡمُتَّقِينَ)(يعنى کوم خلق چې په د نيا کښې د يوبل دوستان وو په دغه ورځ به د يوبل دښمنان شي دا به غواړي چې پخپل دوست باندې ګناه اچوي او پخپله ترې لرې لرې ګرځي مګر هغه خلق چې تقوى اختياروي) يعنى تقوي دار خلق به هلته د يوبل مدد او شفاعت کوي.

دريم ، څلورم او پنځم آيتونو کښې الله ﷻ د لويو لويو نعمتونو په يادګيرنې کولو سره انسان ته دهغه دعبادت اوفرمانبردارئ دعوت ورکړيده ، فرمائي چې هم دالله ﷻ ذات دې چې آسمانونه او زمکه يې پيدا کړه چې د انسان د شته والي شروع کيدل او باقي پاتې کيدل پرې منحصر دي ، بيا يې د آسمان نه په اوبو رابنکته کولو سره قسما قسم ميوې پيدا کړې چې هغه ستاسو رزق جوړ شي . ثمرات د ثمرة جمع ده چې د هر څيز نه حاصليد ونبك نتيجې ته ثمرة وئيلې شي ، په دې وجه ثمرات ټولو هغه څيزونو ته هم وئيلې شي چې د انسان غذا او

خوراك جوړيږي ، او هغه څيزونو ته هم وئيلې شي چې اغوستلو دپاره په كار راځي ، هغه څيزونه هم چې د استوګنې مكان ترې جوړيږي ولې چې په دې آيت مبارك كښې راغلې د رزق لفظ ټولو انساني ضروریاتو لره شامل دې (مظهري)(١)

بيا يې اوفرمائيل چې الله ﷻ كشتۍ او جهازونه ستاسو په كار كښې اولګول چې د الله ﷻ په حكم سره په دريابونو كښې رواني دي ، په دې آيت مبارك كښې د ﴿سَخَّرَ﴾ لفظ مطلب دادې چې ددې څيزونو استعمال الله ﷻ تاسو دپاره آسان كړې دې ، لرګي ، اوسپنه او ددې څخه د كشتۍ او جهازونو جوړولو سامان ، آلات او ددې څخه د صحيح كار اخستلو عقل او پوهه دا ټول څيزونه هم دهغه وركړې څيزونه دي ، څكه دې ددې ايجاد كوونكې ددې په ايجاد كولو فخر نه كوي ولې چې په دې كښې ټول پكار راوستلې څيزونه تاسو نه دي پيدا كړي او نه يې پيدا كولې شي ، دغه ټول دالله ﷻ پيدا كړي څيزونه مو يو بل سره چې يو ځائې كړل او كشتۍ جهاز وغيره ترې جوړ شو نو د ايجاد كولودعوى يې هم مه كوې ، كه حقيقت ته اوكتلې شي نو ستاسو خپل وجود لاسونه پښې ، دماغ او عقل ، ستا جوړ كړي څيزونه نه دي . د دې څخه پسې فرمائي چې مونږ ستاسو دپاره نمر ا وسپوږمۍ مسخر كړل چې دواړه هميشه دپاره هم په يو حالت باندې همدغه شان چليږي .

﴿دَآئِبَيْنِ﴾ د داب څخه مشتق دې ، معنى يې عادت ده ، مراد يې دادې چې په هر وخت او هر حال كښې روان اوسيدل ددې دواړو سيارو عادت جوړ كړې شو چې هيچرې دغه عادت نه پريږدي ، د مسخر كولو دا معنى نه ده چې هغه ستاسو په حكم او اشارو چليږي كه داسې وې نو د انسانانو مينځ كښې به په دې باندې جنګونه كيدل ، يو به دا وئيل چې نن دې نمر دوه ګنټې روستو راؤخيژي څكه چې زما دشپې كار ډير دې او بل به وئيل چې دوه ګنټې مخكښې دې راؤخيژي څكه چې زما د ورځې كار ډير دې . هم دغه وجه ده چې آسمان او ستورې د الله ﷻ مسخر كړي څيزونه په د ې معنى دي چې هر وخت او په هر حال كښې د الله ﷻ د حكمت لاندې د انسان په كار كښې اخته دي ، دا مطلب يې نه دې چې ددې رفتار ، راختل ، او غروب كيدل د انسان د خواهش مطابق او تابع دي ، هم دا مطلب د شپې او ورځې د مسخر كولو هم دې چې د انسان دخدمت او آرام په كار كښې يې اخته كړي دي .

﴿وَآتٰىكُمْ مِّنْ كُلِّ مَا سَاَلْتُمُوْهُ﴾ (يعنى الله ﷻ درته د هر هغه څيزونه دركړل چې تاسو ترې غوښتلي وو) سره ددې چې د الله ﷻ وركړه دچا په غوښتلو منحصره نه ده مونږ خو ترې خپل شته كيدل هم نه وو غوښتلي هغه پخپل فضل سره بې غوښتلو راكړل :

مانبوديم تقاضائے ما نبود　　　لطف تو ناګفته ما مي شنود(٢)

**ترجمه:**-(مونږ چې نه وونو غوښتل به مو څنګه وو ، ستاسو مهرباني زما ناوئيلي غوښتنه غوښتنه هم آؤريدل)

---

(١) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٥ص:٢٧٣]

(٢) ترجمه: نه مونږ ووانه زمونږ تقاضا وه، تا پخپله مهربانئ سره هغه څه اوكړل چې څه مونږنه وو وئيلي.

دغه شان آسمان ، زمکه نمر او سپوږمۍ وغیره خو هم الله ﷻ بې غوښتلو پیدا کړي دي ، ځکه قاضي بیضاوي رحمه الله ددې لفظ معنی دا بیان کړیده چې الله ﷻ مونږ ته هرهغه څیز هم بې غوښتلو راکړې دې کوم چې د غوښتلو جوګه وو ،([1]) لیکن ددې الفاظو ظاهري معنی په دې شان سره مراد اخستل څه اشکال نه لري چې عموما انسان څه غواړي او طلب کوي ، اکثر خو هغه ورته ورکولې شي او کله چې دهغه سوال په خپل ظاهري شکل کښې نشي پوره کولې په هغې کښې دغې کس یا ټولې دنیا دپاره څه ښیګړه وي خو دې پرې خبر نه وي صرف علیم او خبیر ذات پرې پوهیږي چې که دهغه داسوال پوره کړې شي پخپله هغه دپاره یا دهغه د خاندان یاټولې دنیا دپاره به وبال جوړ شي په داسې صورت کښې دهغه دسوال نه پوره کولو لوئې نعمت وي خو هر انسان د خپل نیمګړي علم په وجه په هغې نه پوهیږي ځکه غمژن کیږي.

(وَاِنْ تَعُدُّوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ لَا تُحْصُوْهَا) یعنی د الله ﷻ نعمتونه دومره زیات دي که ټول انسانان د دې د شمیر کولو دپاره رایو ځائې شي نو په شمیر کښې بیا هم نشي راتلې ، دا نسان خپل وجود یو ورکوټې دنیا ده ، ددهٔ په سترګو غوږونو ، پوزه ، لاسونو ، پښو بلکه د بدن په هر جوړ او رګ ریښه کښې چې د الله ﷻ بې شمیره پټ نعمتونه موجود دي او دهغې په ذریعه دا ګرځنده د سوؤنو نازکو مشینونو عجیبه او ناآشنا کارخانه چې هر وخت په کار کښې اخته ده ، بیا د آسمانونو اوزمکې مخلوقاتو ، دسمندرونو او غرونو مخلوقاتو چې ننني نوی تحقیقات او په دې کښې ټول عمر خرچ کوؤنکی په زرګونو ماهران هم په احاطه کښې نشي راوستلې . بیا نعمتونه صرف هغه دي چې عام طور نعمتونه ګنړلې شي بلکه د هرمرض ، هر تکلیف ، هر مصیبت او هر غم رنځ څخه محفوظ پاتې کیدل ځان له مستقل نعمتونه دي ، انسان ته په دنیا کښې چې څومره قسمه بدني او ذهني تکلیفونه راپیښې دې شي د انسان په وس کښې د هغې شمیر نشي کیدې ، دې څخه اندازه لګیدې شي چې دالله ﷻ ټول نعمتونه او دهغه ټولې ورکړې شمیرل د هیچا د وس کار نه دې.

د انصاف تقاضا داده چې د بې شمیره نعمتونو په بدل کښې بې شمیره عبادات او بې شمیره شکرونه ضروري ګرځولې شوې وې خو الله ﷻ د ضعیف انسان دومره لحاظ اوساتلو چې کله په حقیقت باندې نظر کولو سره انسان ددې اقرار اوکړي چې د واجب شوی شکر ادا کول د انسان د وس نه بهر دي ، نو دا یې هم د شکر ادا کولو په ځائې اوګرځول ، لکه چې الله ﷻ داؤد عليه السلام ته په داسې قسم اقرار کولو سره اوفرمائیل چې : (الان قد شکرت یاداود) (یعنی ستا دا اقرار کول د شکر ادا کولو په ځائې کافي کیږي)

په آخر آیت کښې فرمائي چې (اِنَّ الْاِنْسَانَ لَظَلُوْمٌ كَفَّارٌ) (انسان ډیر بې انصافه او لوې ناشکره دي) د انصاف تقاضا خو داده چې تکلیف او مصیبت راپیښیدو په وخت کښې انسان دصبر او برداشت څخه کار اخستې ، په ژبه او زړه کښې یې هیڅ شکایت نه راوستې او دا یې ګنړلې چې دا دیو حکیم حاکم د طرفه راپیښ شوی دي په دې بنا دغه یو نعمت دې ، دغه شان د آرام، راحت او نعمت حاصلیدو په موقعه یې په خله او زړهٔ او په هر عمل سره د هغې شکر ادا

[1]) تفسیر البیضاوي تحت هذه الآية ج:۳ص:۲٦٦]

کولې ، خو عام انسان دا عادت نه لري ،که ورته لږ شان مصيبت او تکليف راپيښ شي نو بې صبري کښې اخته شي او د خلې نه يې هم د بې صبرۍ خبرې خيژي او د معمولي دولت او نعمت په حاصليدو سره په انسان کښې مستي راشي او الله تري هير شي ځکه خو په تير شوي آيت مبارکه کښې د مخلص مؤمن صفت صبار او شکور ښودلې شوي دي .

وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ رَبِّ اجْعَلْ

| او کله چې | اوونيل | ابراهيمؑ | اثې ربه زما | جوړ کړه

| ..........اوڅه وخت چې ابراهيمؑ دعا اوکړه | چې

هٰذَا الْبَلَدَ اٰمِنًا وَّاجْنُبْنِيْ وَبَنِيَّ اَنْ نَّعْبُدَ

دا ښار | امن والا | او اوساته ما | او ځامن زما | (ددې نه) چې عبادت اوکړو مونږ

اثې زما ربه دا ښار(مکه) د امن ځائې اوګرځوه |.............. اوما او زما اولاد د بتانو د عبادت نه

الْاَصْنَامَ ۝ رَبِّ اِنَّهُنَّ اَضْلَلْنَ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ ۚ فَمَنْ

دبتانو | اثې ربه زما | بيشکه دې بتانو | بې لارې کړل | ډير | د خلقو نه | نو هغه څوک

بچ اوساته|اثې زما ربه دې بتانو خو ډير خلق ګمراه کړي دي(دهغوی دګمراهۍ سبب جوړشوی دی) | نو چا

تَبِعَنِيْ فَاِنَّهٗ مِنِّيْ ۚ وَمَنْ عَصَانِيْ

چې روان شو په طريقه زما | نو بيشکه هغهٔ | د(ملت) زمانه دې | او هغه چا | چې نافرمانی او کړه زما

چې زما تابعداري اوکړه | ............هغهٔ خو زما دی | ...........او چا چې زما نافرمانی اوکړه

فَاِنَّكَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝ رَبَّنَآ اِنِّيْٓ اَسْكَنْتُ مِنْ ذُرِّيَّتِيْ

نو بيشکه ته | ښښونکې | مهربانه يې | اثې ربه زمونږ | بيشکه | ديره کړل ما | اولاد خپل

نو ته ښښونکې ډير مهربان يې | اثې زمونږ ربه ! بيشکه ما خپل اولاد ستا عزتمند کور

بِوَادٍ غَيْرِ ذِيْ زَرْعٍ عِنْدَ بَيْتِكَ الْمُحَرَّمِ ۙ

په داسې ميدان کښې | چې نه دې | خاوند | د فصل | خوا ته د کور ستا | چې محترم دې

کعبې سره نزدې په بې اوبو او بې ګياه ميدان کښې ديره کړل ..............

رَبَّنَا لِيُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ فَاجْعَلْ اَفْئِدَةً مِّنَ النَّاسِ

اثې ربه زمونږ | د پاره د دې چې قائم کړی | مونځ | نو اوګرځوه | زړونه | د خلقو

اثې زمونږ ربه د دې د پاره چې دوئ مونځونه په پابندئ سره اوکړی | پس د بعضو خلقو زړونه

تَهْوِيْٓ اِلَيْهِمْ وَارْزُقْهُمْ مِّنَ الثَّمَرٰتِ لَعَلَّهُمْ

چې راځی په محبت سره | دوئ ته | او ورکړه دوئ ته | د ميوو نه | د پاره د دې چې دوئ

د دوئ طرف ته مائله کړه | اودوئ ته ميوې ورکړه | .............چې ستا

يَشْكُرُوْنَ ﴿۳۷﴾ رَبَّنَآ اِنَّكَ تَعْلَمُ مَا نُخْفِيْ وَمَا

شکر اوباسی | اے ربه زمونږ | بیشکه ته | معلوم دی تاته | هغه چې پټوو ئې مونږ | او هغه

شکر اداکړی | ائې زمونږ ربه ! | بیشکه څه چې مونږ پټوؤ او څه چې مونږ ښکاره کوو ټول هر څه تا

نُعْلِنُ ؕ وَمَا يَخْفٰى عَلَى اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ فِي الْاَرْضِ وَلَا

چې ښکاره کوو ئې مونږ | او نه پټیږی | په الله باندې | هیڅ څیز | په زمکه کښې | او نه

ته معلوم دی | او د الله ﷻ نه په زمکه کښې او په آسمان کښې هیڅ څیز پټ نهٔ دې......................

فِي السَّمَآءِ ﴿۳۸﴾ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ وَهَبَ لِيْ عَلَى الْكِبَرِ

په آسمان کښې | ثنا ده | الله د پاره | هغه الله | چې رائې کړل | ماته | سره د بوډاوالی

| ... ټول تعریفونه الله ﷻ د پاره دی | چې ماته ئې په پیریٔ (بوډاتوب) کښې (دوه خامن

اِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ ؕ اِنَّ رَبِّيْ لَسَمِيْعُ الدُّعَآءِ ﴿۳۹﴾ رَبِّ

اسماعیل | او اسحاق | بیشکه | رب زما | خامخا اوریدونکې | د دعا دې | ائې ربه زما

اسماعیل ﷺ او اسحاق ﷺ راکړل | بیشکه زما رب دعاګانې آوری | ...................... ائې زما ربه

اجْعَلْنِيْ مُقِيْمَ الصَّلٰوةِ وَمِنْ ذُرِّيَّتِيْ ۖ رَبَّنَا وَتَقَبَّلْ دُعَآءِ ﴿۴۰﴾

جوړ کړې ما | قائیمونکې د مانځه | او زما د اولاد نه هم | ائې ربه زمونږ | او قبوله کړې | دعا زما

ما او زما اولاد هم دمونځ پابند جوړ کره | ...................... ائې زمونږ ربه ! زما دعا قبوله کره

رَبَّنَا اغْفِرْ لِيْ وَلِوَالِدَيَّ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ يَوْمَ

ائې ربه زمونږ | ښښنه اوکړې | ماته | او مور او پلار زماته | او مومنانو ته | په هغه ورځ

ائې زمونږ ربه ! ما او زما مور پلار اوټول مؤمنان په هغه ورځ اوبښه | په کومه ورځ چې به

يَقُوْمُ الْحِسَابُ ﴿۴۱﴾

چې قائمیږی حساب |

حساب کتاب کیږی |

## آسان ترجمه قرآن

او یاد کره هغه وخت چه کله ابراهیم (الله پاک ته په دعا کولو کښې) وئیلې وو چه : یا ربه ! دا ښهر پرامن جوړ کره . او ما او زما خامن د دې نه بچ کره چه مونږ د بتانو عبادت اوکړو . اې زما ربه ! بیشکه دې بتانو ډیر لوئې تعداد ګمراه کړو . لهٰذا څوک چه زما په لار باندې روان شی ، هغه خو زما دې او څوک چه زما وینا نه منی ، نو (د هغه معامله زه په تا باندې پریږدم) ته ډیر بخښونکې رحم کونکې ئې اې زمونږ ربه ! ما د خپل اولاد نه بعضې ستا د حرمت والا کور په خوا کښې په یو داسې میدان کښې دیره کړی دی چه په هغې کښې هیڅ هم نه راټوکیږی . اې زمونږ ربه ! (دا ما په دې وجه باندې اوکړل) چه دوی مونځ قائم کړی ، لهٰذا د خلقو په زړونو کښې د هغوئ د پاره مینه پیدا کره ، او هغوی ته د میوو نه رزق ورکره ، چه هغوی شکر ګزار جوړ شی . اې زمونږ ربه ! مونږ چه کوم کار په پټه کوو ، هغه هم ستا په علم کښې دې ، او

کوم کار چه ښکاره کوو هغه هم. او د الله پاک نه نهٔ د زمکې یو څیز پټ دې، او نه د آسمان یو څیز ټول تعریفونه د الله پاک دپاره دي چا چه ماته په بوډاتوب کښې (د) اسماعیل او اسحق (په شان ځامن) راکړل. بیشکه زما رب ډیر د دعاګانو اوریدلو والا دې. اې ربه! ما هم مونځ قائم کونکې جوړ کړه، او زما په اولاد کښې هم (داسې خلق پیدا کړه چه مونځ قائم کړی) اې زمونږ ربه! او زما دعا قبوله کړه. اې زمونږ ربه! په کومه ورځ چه حساب قائم شي، هغه ورځ ماته هم بخښنه اوکړه، او زما مور پلار ته هم، او د هغه ټولو ته هم چا چه ایمان راوړې دې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَإِذۡ قَالَ إِبۡرَٰهِيمُ﴾ او (هغه وخت هم د یادولو قابل دې) کله چې ابراهیم ﷺ (اسماعیل ﷺ او هاجره بی بی دالله ﷻ په حکم د مکې په میدان کښې د راوستلو او ډیره کولو په وخت ددعا په طور) اووئیل ﴿رَبِّ ٱجۡعَلۡ هَٰذَا ٱلۡبَلَدَ ءَامِنٗا﴾ اې ربه دا ښار (دمکې) د امن (ښار) جوړ کړې (چې ددې اوسیدونکی د امن حقدار وی یعنی حرم یې اوګرځوې) ﴿وَٱجۡنُبۡنِي وَبَنِيَّ أَن نَّعۡبُدَ ٱلۡأَصۡنَامَ﴾ او ما او زما خاص فرزندان دبتانو د عبادت څخه (چې دا وخت په جاهلانو کښې خور شوې دې) ساتلی اولرې (څنګه چې تر اوسه دې ساتلی اولرل) ﴿رَبِّ إِنَّهُنَّ أَضۡلَلۡنَ كَثِيرٗا مِّنَ ٱلنَّاسِ﴾ اې زما ربه! (زه د بتانو د عبادت نه دبچ کیدو دعا کوم ځکه چې) دې بتانو ډیر خلق بې لارې کړل (یعنی ددوئ دبې لارې کیدو سبب شو، ځکه ویریږم او ستا پناه غواړم او زه چې څنګه د اولاد د بچ کیدو دعا کوم هغه شان به هغوئ ته په مخه وینا او آؤریدل کوم) ﴿فَمَن تَبِعَنِي فَإِنَّهُۥ مِنِّي﴾ بیا څوك چې زما په لار روان وی نو هغه خو زما څخه دی (او هغوئ دپاره دبخښنې وعده ده) ﴿وَمَنۡ عَصَانِي﴾ او څوك چې (دې باره کښې) زما خبره نه منی (نو هغوئ ته ته هدایت اوکړې ځکه چې) ﴿فَإِنَّكَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ﴾ ته خو ډیر بخښونکې (او) د ډیر رحمت خاوند یې (د هغوئ د بخښنې او رحمت اسباب هم برابرولې شی چې هدایت ورته اوکړې، مقصود ددې دعا څخه مؤمنانو دپاره شفاعت کول او غیر مؤمنانو دپاره دهدایت غوښتل دی) ﴿رَّبَّنَآ إِنِّيٓ أَسۡكَنتُ مِن ذُرِّيَّتِي بِوَادٍ غَيۡرِ ذِي زَرۡعٍ عِندَ بَيۡتِكَ ٱلۡمُحَرَّمِ﴾ اې زمونږ ربه! زه خپل اولاد (یعنی اسماعیل ﷺ او دهغوئ ﷺ په واسطه د هغوئ ﷺ نسل) ستاسو دلویئ د کور (خانه کعبې) په خوا کښې (چې میدان کښې یې (کانړی دی او ددې په وجه) د کروندې قابله (هم) نه ده آبادوم اې زمونږ ربه (بیت الحرام سره یې) ځکه (استوګن کوم) ﴿رَبَّنَا لِيُقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ﴾ چې دغه خلق د مونځ (خاص) خیال ساتی (او هر کله چې دا وړوکې شان میدان دې) ﴿فَٱجۡعَلۡ أَفۡـِٔدَةٗ مِّنَ ٱلنَّاسِ تَهۡوِيٓ إِلَيۡهِمۡ﴾ نو ته د څه خلقو زړونه دوئ ته راواړوې (چې دلته په راتلو سره دلته استوګنه کوی او د آبادئ رونق زیات شی) ﴿وَٱرۡزُقۡهُم مِّنَ ٱلثَّمَرَٰتِ﴾ او (هر کله چې دلته څه کرونده نشی کیدې ځکه) دوئ ته (خالص په خپل قدرت سره) میوې خوراك دپاره ورکوې ﴿لَعَلَّهُمۡ يَشۡكُرُونَ﴾ دپاره ددې چې دا خلق (ددغه نعمتونو) شکر کوی، اې زمونږ ربه (دا دعاګانې د خپلې بندګۍ او حاجت دښکاره کولو دپاره کوم په خپل حاجت باندې ستا د خبرولو څخه کوم ځکه چې) ﴿رَبَّنَآ إِنَّكَ تَعۡلَمُ مَا نُخۡفِي وَمَا نُعۡلِنُ﴾ تا ته خو هر څه معلوم دی چې مونږ یې پخپل زړه کښې ساتو او چې ښکاره کوؤ یې ﴿وَمَا يَخۡفَىٰ عَلَى ٱللَّهِ مِن شَيۡءٖ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَلَا فِي ٱلسَّمَآءِ﴾ او (یوازې زمونږ ظاهر او باطن نه) بلکه الله ﷻ څخه (خو) هیڅ څیز هم پټ نه دې په زمکه کښې او نه په آسمانو

کښې (څه دعاګانې راروانې دی په مينځ مينځ کښې يې په وړاندې نعمتونو باندې ثناء اوشکر اوکړو ، دپاره ددې چې د شکر په برکت دا دعاګانې قبليدو ته ډيرې نزدې شي ، نوفرمائي ) ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ وَهَبَ لِيْ عَلَى الْكِبَرِ اِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ﴾ ټول حمد (او ثناء) الله ﷻ لره (لائقه) ده چا چې په بوډا توب کښې اسماعيل ﷺ او اسحاق ﷺ (دوه ځامن) راوبخښل ﴿اِنَّ رَبِّيْ لَسَمِيْعُ الدُّعَآءِ﴾ په حقيقت کښې زما رب د دعا لوی آوريدونکې (يعني قبلوونکې) دې (چې د اولاد رابخښلو باره کښې زما دا دعا ﴿رَبِّ هَبْ لِيْ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ﴾[1] يې قبوله کړه بيا ددې نعمت شکر ادا کولو نه پس نورې دعاګانې داسې کوی چې ) ﴿رَبِّ اجْعَلْنِيْ مُقِيْمَ الصَّلٰوةِ وَمِنْ ذُرِّيَّتِيْ﴾ اې زما ربه (دبيت محرم خوا کښې د خپل اولاد ډيره کولو نه زما طلب دا دعا قبوله کړې چې دوئ دې د مونځونو پوره پابندي کوی ، څنګه چې د مونځ د پابندۍ دعا مې دوئ دپاره ده دغه شان مې ځان دپاره هم ده ، ځکه چې دوئ کښې به ځينې غير مؤمنان هم وی ځکه د وحې په ذريعه راته معلوم شويده چې دوئ کښې ځينې غير مؤمنان هم وی ځکه ټولو دپاره دعا نشم کولې نو په دې مضمونونو باندې نظر اچولو سره دا دعا کوم چې) ما هم د مونځ (خاص) پابند لرې او زما ځينې اولادهم (دمونځ پابندجوړ کړې) ﴿رَبَّنَا وَتَقَبَّلْ دُعَآءِ﴾ اې زمونږ ربه! او زما (دا) دعا قبوله کړې ﴿رَبَّنَا اغْفِرْ لِيْ وَلِوَالِدَيَّ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ يَوْمَ يَقُوْمُ الْحِسَابُ﴾ (او) اې زمونږ ربه ! ما اوبخښې او زما موروپلار هم اوټول مؤمنان هم د حساب د قائميدو په ورځ (يعنی دقيامت په ورځ ،مونږ ټول اوبخښې)

## معارف او مسائل

په تيرو شوؤ آيتونو کښې د توحيد د عقيدې د مقوليت او اهميت او د شرک د جهالت او د ناکار والی بيان وو ،د توحيد په معامله کښې د پيغمبرانو عليهم السلام په ډله کښې د ټولو ښخه زيات کامياب جهاد د خليل الله ابراهيم ﷺ جهاد وو په دې وجه د ابراهيم ﷺ دين ته په خاص طور سره د دين حنيف نوم ورکولې شي.

ددغه مناسبت په وجه دلته د ابراهيم ﷺ د قيصې بيان په دې آيتونو کښې کړې شوې دې ، يوه وجه دا هم ده چې په تير شوی يو آيت مبارک ﴿اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ بَدَّلُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ كُفْرًا﴾ کښې د مکې د قريشو دهغه خلقو ناکار والې بيان کړې شوې دې چا چې پلرونو په نقش قدم باندې د تلو په وجه ايمان په کفر او توحيد په شرک کښې بدل کړې وو ، په دې آيتونو مبارکو کښې دوئ ته اوښودلې شوچې ستاسو دمشرنيکه ابراهيم ﷺ عقيده اوعمل څه وو؟ ددې دپاره چې د پلرونو په تابعدارۍ کولو باندې عادت خلق دې ته خيال اوکړی اودخپل کفر څخه راؤګرځي (بحرمحيط)[2]

دا ښکاره خبره ده چې د پيغمبرانو عليهم السلام د قيصو او حالاتو بيانولو څخه د قران پاک مقصد صرف ددوئ تاريخ بيانول نه وی بلکه په دې کښې د انساني ژوند په هر شعبه کښې د هدايت په باره کښې اصول او بنيادی څيزونه وی چې هم دهغې جاری لرلو دپاره دا واقعات په قران پاک کښې بيا بيا بيانولې شي.

[1] ) ترجمه: اې زما ربه ما ته يو زوې راکړه.
[2] ) تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية [ج:۷ص:۱۶۵]

دلته په رومبی آیت مبارك كښې د ابراهیم ﷺ دوه دعاګانې بیان شوی دی اوله دا چې: ﴿رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا الْبَلَدَ اٰمِنًا﴾ (اې زما پروردګاره دا ښار د مکې ځائې د امن جوړ کړې) دا دعا په سورهٔ بقره کښې هم بیان شوې ده خو هلته د «البلد» لفظ په ځائې د «بلدا» لفظ راغلې دې ، نکره او نامعلوم ښار یې ورته ځکه اوفرمائیلو چې دغه وخت هیڅ آبادی نه وه نو ددغه دعا مطلب دا شو چې اې الله ! په دې ځائې کښې یو داسې ښار جوړ کړې چې امن په کښې وی او دا اوسنی دعا دهغه وخت ده چې مکه کښې خلق آباد شوی وو ځکه یې د معرفې «البلد» په لفظ سره معلوم ښار اوبللو. بله دعا ابراهیم ﷺ دا اوفرمائیله چې ما او زما اولاد د بت پرستۍ ځخه اوساتې.

هر کله چې پیغمبران علیهم السلام د ګناه ځخه پاك دی نو دلته بت پرستۍ ځخه د ساتلو په دعا کښې د ابراهیم ﷺ خپل ځان شاملو دا مطلب لرې چې دطبعی ویرې په وجه هغوئ ﷺ ته ددې خطره کیدې شوه ځکه یې د غه شان دعا اوفرمائیله یا اصلی دعا خو یې د خپل اولاد دپاره کوله مګر ځان یې پخپله ځکه په کښې شریك کړو چې خپل اولاد ته یې ددې اهمیت او ضرورت ښودلو.

الله ﷻ د خپل خلیل دعا قبوله کړه دهغوئ اولاد دشرك او بت پرستۍ ځخه محفوظ پاتې شو ، دلته دا سوال راپورته کیدې شي چې د مکې خلق خو عام طور د ابراهیم ﷺ اولاد دی نو بت پرستی خو به ددوئ کوله ، دسفیان بن عینیه په حواله ددې جواب بحر محیط[۱] کښې دا ورکړې شوې دې چې د اسماعیل اولاد په حقیقت کښې هیڅ قسم بت پرستی نه وه کړې بلکه کله چې جرهم قبیلې په مکه مکرمه باندې قبضې کولو سره د هغې ځائې یعنی حرم مکه نه د اسماعیل ﷺ اولاد اوښکلو نو دې خلقو ځان سره ددغه ځائې ځخه ځه ګټې ځان راوړې ځکه چې حرم سره یې مینه لرله ، دغه ګټې به یې د حرم او د بیت الله شریف د یادګار په طور خپلې مخې ته لرلې هلته به یې عبادت کولو او هغې ځخه چاپیره به یې طواف کولو ، په دې عمل کښې به یې دالله ﷻ ځخه بغیر بل هیڅا ته مخه نه وه ، یعنی عبادت به یې خالص دالله ﷻ کولو صرف رخ به یې دغه ګټې ګرځولې ، بیا روستنو خلقو دا طریقه د بت پرستۍ جوړ کړه.

په دویم آیت مبارك كښې ئې د خپلې دې دعا وجه دا بیان کړې ده چې د بت پرستۍ ځخه مونږ ځکه پناه غواړو چې دې بتانو ډیر خلق په ګمراهۍ کښې اخته کړی دی ، ځنګه چې په دې کښې یې د خپل پلار آزر حال لیدلې وو چې بت پرستۍ د خیر ښیګړې ټولو کارونو ځخه بې حصې کړې وو.

په آخر دآیت مبارك كښې فرمائی چې: ﴿فَمَنْ تَبِعَنِىْ فَاِنَّهٗ مِنِّىْ ۚ وَمَنْ عَصَانِىْ فَاِنَّكَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ (یعنی) په دوئ کښې چې څوك زما تابعداری کوی د ایمان او نیك عمل پابندی کوی نو هغوئ هم زما ځخه دی)

مطلب یې دادې چې په هغوئ باندې د فضل او کرم کیدو امید کول ښکاره دی او څوك چې زما نافرمانی کوی نو ته لوې بخښونکې لوې رحمت کوونکې یې ، دلته که د نافرمانۍ ځخه صرف عملی نافرمانی مراد واخستې شي نو معنی یې ښکاره ده چې ستا د فضل ځخه دهغوئ د بخښنې امید هم شته دې اوکه د نافرمانۍ ځخه مراد دکفر او انکار واخستې شي نو ابراهیم

[۱] تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية [ج:۷ص:۱۶۵]

؈ ته د وراندې څخه دا حکم شوی وو چې کافر او مشرك ته بخښنه نشي کيدې ، او هغوئ ؈ يې د شفاعت کولو څخه منع کړی وو ، لهذا د هغوئ د بخښنې امید کول صحیح نشي کیدې ، په دې بنا بحر محیط کښې راغلی دی چې د لته د ابراهیم ؈ الفاظ د دعا نه دی چې الله دوئ ته بخښنه او کړي .

البته د پیغمبر ؈ دشان په جوړ هغوئ ؈ دا غواړي چې لوي شان ښکاره کړه چې ته خو لوی غفور او رحیم یې دا داسې شو څنګه چې عیسی ؈ د خپل امت د کافرانو په باره کښې فرمائیلي وو چې : ﴿وَإِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾ (که ته یې بخښنه کوې نو قوی او د حکمت خاوند یې) هر څه کولې شې هیڅوك دې نشي منع کولی .

دې دواړو پیغمبرانو علیهم السلام د کافرانو د بخښنې سفارش څکه اونه کړو چې بې ادبی د الله ﷻ ترې کیدله ، خو داسې یې هم اونه فرمائیل چې الله په کافرانو باندې عذاب نازل کړې ، بلکه یو خاص عنوان سره یې ددوئ د بخښنې طبعي خواهش په ډیر ادب سره ښکاره کړو .

**حکمونه او هدایتونه:** دعا خو هر انسان غواړي خو دغوښتلو طریقه هر څوك نه لري د پیغمبرانو علیهم السلام د عاګانې د عبرت اخستو جوګه دی ، دې څخه دا اندازه لګیدې شي چې کوم څیز د غوښتلو دې او کوم یو نه دې ؟ لهذا د ابراهیم ؈ ددعا دوه برخې دی ، یو دا چې الله د مکې ښار د ویرې او خطرې څخه پاك کړه د امن ځائې یې اوګرځوه ، بله دا چې اولاد مې د بت پرستئ څخه اوساتې .

په ژورنظر کتلو سره د انسان دخیر ، ښیګړې او کامیابۍ حاصلولو هم دغه دوه بنیادي اصول دی . مطلب دا چې د استوګنې په ځائې کښې ویره او خطره او د دښمنانو د حملو څخه امن او اطمینان نه وی نو ددنیا او ما دی لحاظ سره هم ، او ددین او روحانی لحاظ سره هم ژوند خوندناك نشي کیدې ، ولې چې ددنیا کارونه خو هله په آرام سره سرته رسولې شي چې امن او اطمینان سره اوکړې شي ، چاته چې ددښمنانو ویره په سر سوره وی په قسماقسم خطرو کښې راګیر وی نو ددنیا لوې څخه لوې محلونه او بنګلې ، مال دولت هغه ته هیڅ خوند نشي ورکولې . دغه شان طاعت او عبادت او دالله ﷻ په حکمونو باندې عمل کول انسان هله کولې شی چې څه سکون او اطمینان ورته حاصل وی .

په دې وجه د خلیل ؈ په ړومبۍ دعا کښې د انسانی کامیابۍ ټول ضروریات که هغه معاشی ، اقتصادی وی او که دینی او اخروی وی ، ټول په کښې داخل شو په دې یوې جملې سره خلیل الله ؈ د خپل اولاد دپاره د دنیا ټول ضروری څیزونه اوغوښتل .

ددې دعا نه دا هم معلومه شوه چې اولاد سره همدردی کول دهغوئ د ژوند د آرام انتظام هم دخپل وس مطابق دپلار په فرائضو کښې شامل دی ، په دې کښې کوشش کول زاهد کیدو او دنیا پریښولو سره بې سمونه نه دی .

دویمه دعا هم جامع ده څکه چې شرك او بت پرستی د بخښنې امکان نه لري نو په دې وجه یې د هغې څخه د محفوظ پاتې کیدو دعا اوکړه ، دې نه پس که بیا هم چانه څه ګناه اوشی نو په نورو نیکو عملونو سره دهغې بخښنه کیدې شی او د یو نیك بنده په شفاعت سره هم معاف کیدې شی ، که د صوفیاء کرامو د وینا مطابق عبادت اصنام یعنی د بتانو عبادت په یوه

عامه معنی داشان واخستې شي چې د الله ﷻ نه هر غافله کوونکې څيز هم يو بت دې ، دهغې په مينه کښې دومره غرقيدل چې د الله ﷻ نافرمانۍ ته ور ورانديږ کيدل دا هم يو قسم د بت عبادت کول شو ، په دغه بنا د بتانو د عبادت څخه محفوظ پاتې کيدو په مضمون کښې د ټولو ګناهونو دمحفوظ پاتې کيدو مضمون هم شامل شو ، په دې شان دغه دعا هم جامع شوه کومه چې ابراهيم ﷺ د بتانو د عبادت څخه دمحفوظ پاتې کيدو دپاره کړې وه ، څينې صوفياء کرامو هم په دې لحاظ سره خپل ځان ته خطاب کړې دې او په غفلت او نافرمانۍ سره خپل ځان ملامته کړې دې لکه فرمائيلي يې دي چې :

سوده گشت از سجدهٔ راه بتان پيشانيم

چند برخود تهمت دين مسلماني نهم

ترجمه: «د بتانو په لار کښې په سجدې کولو سره مې تندې اوځوليدو ، تر څو پورې به په خپل ځان باندې تور پورې کوم»

او عارف رومي فرمائيلي دي چې :     هر خيال شهوتے دره بتے است

«په دې لار کښې د شهوت هر يو خيال لرل ګويا چې د بت عبادت کول دي»

په دريم آيت مبارك کښې د ابراهيم ﷺ يوه بله حکيمانه دعا دا شان بيان شوې ده چې : ﴿رَبَّنَآ إِنِّيٓ أَسۡكَنتُ (الاية) ﴾ «اې زمونږه ربه ! ماخپل بال بچ د غر په په داسې لمن کښې ديره کړل چې په کښې هيڅ فصل نشي کيدې «او په ښکاره دغلته د ژوند هيڅ سامان نشته» دا ځائې ستا دلويئ کور په خوا کښې دې دپاره چې دا خلق مونځ قائم کړې څکه ته د خلقو زړونه دوئ ته رامات کړې چې د هغوئ د عادت کيدو او آباديدو باعث جوړ شي او دوئ ته ميوې ورکړې چې دا خلق ستا شکر ګذار شي» خليل الله ﷺ دا دعا په هغه موقعه اوکړه کله چې د الله ﷻ په حکم باندې هغوئ د بيت الله شريف د دوباره آبادولو اراده اوکړه د کوم نخښې چې د نوح ﷺ د زمانې په طوفان کښې ورکې شوې وې ، په دې اراده باندې هغوئ خپله بی بی هاجره او خپل ځوئې اسماعيل ﷺ دغه اوچه زمکه کښې دغه ځائې کښې د الله ﷻ په حکم سره استوګن کړو.

د صحيح بخاري د روايت مطابق دغه وخت اسماعيل ﷺ تې رودونکې «رولو» ماشوم وو ، ابراهيم ﷺ د الله ﷻ په حکم دوئ لره د موجوده بيت الله شريف او آب زم زم په خوا کښې استوګن کړل . دغه وخت کښې دغه ځايې په غرونو کښې راګير يو شار ميدان وو ، تر لرې لرې پورې دغلته د اوبو هيڅ درك نه وو ، تر لرې لرې پورې د غه ځائې څه آبادي نه وه ، ابراهيم ﷺ ورسره دغه ځائې کښې خوراك دپاره څه لږه توښه او څه لږ ې شان اوبه په مشکيزه کښې کيښودې ، کله چې دغه ځائې څخه ابراهيم ﷺ ته د الله ﷻ د طرفه شام ملك ته د واپس کيدو حکم اوشو نو دوئ ﷺ زر تر زره دحکم په منلو کښې څه تاخير اونکړو ، تر دې چې هاجرې بی بی ته هم خبر ورکولو دپاره ورنغلو چې د هغې تسلي پرې شوې وې ، په داسې شار ميدان کښې خپل ماشوم او زنانه بال بچ دوه په دوه يوازې پريښودل اوبيا د هغوئ څخه بې حال د وتيلو شام ملك ته واپس کيدل داسې يوه واقعه ده چې يو انسان يې په طبعي طور سره نشي برداشت کولې ، څنګه چې د هغوئ ددعا: ﴿رَبَّنَآ إِنِّيٓ أَسۡكَنتُ (الاية) ﴾ څخه معلوميږي .

بل طرفته كله چې هاجرې بي بي هغوئ ﷺ لره ورايه په بيرته ليدلو او ددوئ په پرېښودلو اوليدو نو بيا بيا به يې ورته آواز كولو چې تاسو ﷺ مونږ لره د لته چاته پرېږدئى چرته چې نه څو څوك انسان شته ، او نه دژوند تيرولو څه سامان شته ، خو سره ددې ورته خليل الله ﷺ او نه كتل ، بيا هاجرې بي بي ته دا خيال راغلو چې دالله ﷻ خليل ﷺ داسې بې وفائى نشي كولى . داسې معلوميږي چې دا حكم ورته دالله ﷻ دطرفه ملاؤ شوې دې . څكه يې ورته داسې آواز اوكړو چې د الله ﷻ د طرفه درته داسې حكم ملاؤ شوې دې ، نو ابراهيم ﷺ ورته اوكتل او وې فرمائيل چې آؤ. هاجرې بي بي واؤريدل نو وې فرمائيل ﴿اذًا لايضيعُنا﴾ «بيا ده اوس مو څه غم څكه نشته چې الله ﷻ به مونږ نه خرابوي»

ابراهيم ﷺ ددغه ځائې څخه همداسې روان وو چې د يو غر شاته اورسيدو چرته څخه چې ورته خپل بال بچ نه ښكاريدو ، نو دغه وخت يې بيت الله شريف ته مخ كړو(١) او په آيت كښې بيان شوې دعا يې اوكړه په كومه كښې چې ډير هدايتونه او مسئلې داسې بيان شوي دي:

**دابراهيم ﷺ ددعا رازونه او حكمتونه:** ① هر كله چې ابراهيم ﷺ د الله ﷻ دوست وو نو ددې مرتبې حق يې داسې ادا كړو چې كوم ځائې كښې ورته د واپس تلو حكم دالله ﷻ ملاؤ شو نو هيڅ څڅكان يې پرې رانغلو او په دې حكم كښې يې عمل كولو باندې دومره تاخيرهم اونه كړو چې هاجرې بي بي ته يې دا خيال وئيلې وې.

بل طرفته يې د اهل وعيال د حقونو او دهغوئ د محبت دا حق اداكړو چې د يو غر شاته ورغلو نو دالله ﷻ څخه يې په امن او اطيمنان او حفاظت سره ددوئ د ژوند تيرولو دعا اوكړه ، او دوئ دپاره د راحت انتظام يې داسې اوكړو چې هر كله دوئ ﷺ د الله ﷻ په حكم باندې عمل كولو كښې هيڅ قسم تاخير نه دې كړې نو ددوئ د بال بچ په باره كښې به الله ﷻ دعا هم منظوره كړې ،نو ددې دعا نتيجه هم دغه شان راؤوته ، دغه بې آسرې بال بچ يې نه يوازې پخپله دغلته آباد شو بلكه ددوئ په بركت دغه ځائې كښې يو پوره ښار آباد شو ، نه يوازې هغوئ ته دو ژوند ټول ضروريات ملاويدل بلكه دهغوئ په خاطر تر اوسه پورې د مكې په خلقو د هر قسم نعمتونو دروازې پرانستې شوى دى.

دپيغمبرانو عليهم السلام د استقامت او دښه انتظام شان اوګورئى چې د يو طرف خيال ساتى نو بل طرف بالكل شاته غورزوى ، هغوئ ﷺ د عامو صوفياء كرامو پشان مجذوبان نه وى ، داهم هغه تعليم دې دكوم په ذريعه چې يو انسان كامل انسان جوړيږي.

② ﴿غَيْرِذِيْ زَرْعٍ﴾ ابراهيم ﷺ په دې موقعه دغه زمكې ته بې زرغونه زمكه وئيلې ده ، بې اوبو زمكه يې ورته او نه وئيله ، څكه چې اوبه د ژوند د پاره د ټولو څخه زيات لويې ضرورت دې ، هر كله چې ددوئ ﷺ تسلى وه چې زه دغه خپل بال بچ خالص دالله ﷻ په حكم دغه شاړ ميدان كښې پرېږدم نو الله ﷻ به يې ضرور داوبو انتظام كوى كوم سره چې دوئ ژوندى پاتې كيږي. او دميوؤ سوال يې دوئ دپاره اوكړو چې دغه ځائې كښې په كركرونده كښې د دوئ وخت تير نشى ، او الله ﷻ د نورو ځايونو نه دئ ته دميوؤ رارسولو انتظام اوكړى هم دغه وجه ده چې ترننه پورې هم په مكه كښې د كركرونديې كولو څه انتظام نشته دې ، مګر د ټولې دنيا څخه

١) صحيح البخارى كتاب الأنبياء باب قول الله تعالى (وَاتَّخَذَ اللّٰهُ إِبْرٰهِيمَ خَلِيلًا) [ج:١ص:٤٧٣]

میوې او د هر څيز ثمرات هلته په دومره مقدار کښې شته دې چې په نورو ښارونو کښې هغه په مشکله سره ملاويږي. (بحر محيط)[1]

③ ﴿عِنۡدَ بَیۡتِكَ الۡمُحَرَّمِ﴾ دې څخه ثابته شوه چې بيت الله شريف د ابراهيم عليه السلام څخه وړاندې بنا شوې وو ، چنانچه امام قرطبي رحمه الله د سورة بقرة په تفسير کښې د ډيرو روايتونو څخه ثابت کړې دی چې د ټولو څخه اول آدم عليه السلام دبيت الله شريف تعمير په دې شان کړې دې چې هر کله هغوئ عليه السلام زمکې ته په سرانديپ غر راکوز کړې شو نو د معجزې په طور دغې غر څخه د بيت الله شريف مقام ته راوړسولوشو ، جبرائيل عليه السلام ورته د بيت الله شريف نخښې اوښودلې د هغې په جوړ آدم عليه السلام هغه آباد کړو ، هغوئ او دهغوئ اولاد به ددې طوافونه کول ، تر دې چې د نوح عليه السلام په طوفان کښې بيت الله شريف پورته کړې شو ، او بنيادونه يې په زمکه باندې پاتې شو ، هم په دغې بنيادونو باندې ابراهيم عليه السلام ته ددې د دوباره تعمير کولو حکم اوشو. جبرائيل عليه السلام ورته ددې د زړو بنيادونو نخښنه اوښودله ، د ابراهيم عليه السلام دغه تعمير دجاهليت په زمانه کښې ويران شو ، د جاهليت د زمانې قريشو ، هغه په نوی طرز آباد کړو ، په دې آبادولو کښې رسول کريم صلی الله علیه وسلم هم ابوطالب سره د پيغمبر کيدو څخه مخکښې حصه اخستې وه.[2]

دبيت الله شريف صفت په دې آيت مبارك کښې ﴿مُحَرَّم﴾ بيان کړې شوې دې. د ﴿مُحَرَّم﴾ دوه معنې کيدې شی ، يوه معنی يې عزت مند هم کيدې شی او محفوظ هم ، په بيت الله شريف کښې دا دواړه صفات موجود دی ، چې هميشه دپاره عزت مند پاتې شوې او هميشه دپاره د دښمنانو څخه محفوظ پاتې شوې دې.

④ ﴿لِيُقِيۡمُوا الصَّلٰوةَ﴾ کله چې ابراهيم عليه السلام د خپل بال بچ بې وسی بيان کړه ، نو هغوئ دپاره يې د ټولو څخه اول دادعا اوکړه چې دوئ د مونځ پابند جوړ کړې. ولې چې مونځ کښې ددنيا او آخرت ټول خيرونه او برکتونه راجمع دی ، دې څخه معلومه شوه چې اولاد سره ددې څخه زياته همدردی او خير خواهی بله نشته چې هغوئ دمونځ پابند جوړ کړې شی ، دغلته به يو ښار آباديږي او ددوئ نسل به زياتيږي ، څکه يې صيغه د جمعې راوړه چې په دغه دعا کښې دغه ټول راتلونکې نسل هم شريك کړی.

⑤ ﴿اَفۡـِٕدَةً مِّنَ النَّاسِ﴾ ، (اَفۡـِٕدَةً) د فؤاد جمع ده معنی يې زړهٔ دې ، دلته د ﴿اَفۡـِٕدَةً﴾ نکره راوړه او د مِنۡ حرف يې ورپسې څکه اولګولو چې د بعضيت او لږوالی معنی ورکړی ، يعنی دا دعا يې اوکړه چې د څه خلقو زړونه ددوئ طرفته رامات کړې.

مجاهد رحمه الله فرمائيلی دی چې که په دعا کښې يې الفاظ د مِنۡ د بعضيت او لږوالی دپاره نه وې راوړې شوې بلکه ﴿اَفۡـِٕدَةَ النَّاسِ﴾ يې فرمائيلې وې نو د ټولې دنيا مسلمانان او غير مسلمانان ، يهود اونصاری د مشرق او مغرب ټول خلق به په مکه کښې رامات شوی وو چې هغوئ دپاره به د تکليف باعث وو څکه په دعا کښې ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل چې د څه خلقو زړونه دوئ ته رامات شی.

---

[1] تفسير البحر المحيط (بإختصار) تحت هذه الآية [ج:۷ص:۱۶۷]
[2] تفسير القرطبي البقرة آيت:۱۲۷ [ج:۲ص:۱۲۱، ۱۲۲]

⑥ ﴿وَارْزُقْهُمْ مِّنَ الثَّمَرٰتِ﴾ ثمرات د ثمرة جمع ده ، معنی میوې ده ، چې په عادت کښې د خوراك میوؤ ته وئیلې شی نو په دې لحاظ به د دعا حاصل دا وی چې دې خلقو ته د خوراك هر قسم میوې ورکړې .
کله ثمرة د نتیجې او پیداوار معنی ورکوی چې دخوراك څیزونو څخه زیات عام وی ، د هر څیز نیتجې فائدې او حاصل ته دهغې ثمره وئیلې شی و د مشینونو او صنعتی کارخانو ثمرات په هغې کښې جوړ شوی څیزونو ته وئیلې شی ، دملازمت اومزدوری نتیجه به د هغې اجرت او تنخواه ته وئیلې شی ، بل ځائې په قرآن کریم کښې هم دا مضمون په دې الفاظو سره راغلې دې چې ﴿ثَمَرٰتُ كُلِّ شَيْءٍ﴾ یعنی د شجرة په ځائې لفظ د شئ راوړې شوې دې چې دهغې نه دې ته هم اشاره کیدې شی چې ابراهیم خلیل الله ﷺ دغه خلقو دپاره یوازې د خوراك د میوؤ نه ده بلکه د هر څیز د ثمرات او حاصلو شوؤ نتیجو دعا غوښتلې ده چې په کښې د ټولې دنیا مصنوعات او هر قسم د فائدې ټول څیزونه داخل دی ، حالانکه دا څه ملك نه دې ، تجارتی یا صنعتی ټول کارونه په کښې نه کیږی ، لیکن ددنیا د ګټ ګټ نه دغه ځائې ته د مشرق او مغرب څیزونه رازی چې غالباً ددنیا د هیڅ یو لوې نه لوې ښار د احالت په نصیب نه دې .
⑦ خلیل الله ﷺ د خپل اولاد دپاره دا دعا اونه کړه چې د مکې مکرمې زمکه د کروندې قابله کړې ، ورته دا څه ګرانه نه وه چې دمکې مکرمې وادئ او ټول غرونه د زرغونې کولو ځایونه وې چې په کښې باغونه او فصلونه وې ، مګر خلیل الله ﷺ خپل اولاد دپاره د کروندې دا کاروبار خوښ نه کړو څکه یې دعا اوکړه چې د څینې خلقو زړونه دوئ ته مائل کړې ، چې د مشرق او مغرق او ددنیا د ګټ ګټ نه هم دغلته خلق رارسی چې د هغوئ دا راجمع کیدل د ټولې دنیا دخیر او هدایت او د مکې مکرمې د خلقو دخوشحالۍ ذریعه جوړه شی ددنیا د هر طرفنه هم دغلته خلق رارسی اود مکې خلقو ته د مال ګټلو ذریعې په لاس ورشی ، الله ﷻ دادعا قبوله کړه ، او تر ننه پورې د مکې خلق کرکرونده باندې هیڅ انحصار نه کوی ، او د ژوند ټول ضروریات ورته همداسې بسیار حاصلیږی .
⑧ ﴿لَعَلَّهُمْ يَشْكُرُوْنَ﴾ کښې یې اشاره اوکړه چې د اولاد دپاره یې دژوند د راحت او آرام دعا هم اوکړه څکه چې په دې باندې شکر ګذار جوړ ید وسره هم اجراوثواب حاصل کړی . دغه شان ددعا شروع یې د مونځ د پابندئ څخه اوکړه اوختیمدل یې په ګذارۍ سره اوکړه ، په مینځ مینځ کښې د ژوند آرام او راحت بیا راغلو ، پدې کښې دا ښودونه ده چې مسلمان دې داسې وی چې په عملونو ، حالاتو ، خیالونو اوفکرونو باندې یې د آخرت د کامیابۍ غلبه وی اوددنیا کار یې د ضرورت په اندازه وی .
﴿رَبَّنَآ اِنَّكَ تَعْلَمُ مَا نُخْفِيْ وَمَا نُعْلِنُ ۭ وَمَا يَخْفٰى عَلَى اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ فِي الْاَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاۗءِ﴾ په دې کښې ددعا تکمیل د الله ﷻ د راچاپیر علم په حواله کړې شوې دې لفظ د ربنا د زارۍ کولو او د عاجزۍ ښکاره کولو په غرض دوباره راوړې شوې دې ، معنی یې داده چې ته زمونږ د هر حال نه او زمونږ د زړه او باطن د کیفیتونو څخه او ظاهری اوباطنی عرض ، معروض ټولو څخه خبردار یې .
د باطنی کیفیتونو څخه هغه غم خفګان او فکر مراد دې چې د پیښو رودونکی ماشوم او دهغوئ دوالدې محترمې په شاړمیدان کښې پریښودل اودهغوئ دبیلتون په وجه په فطری

طور سره راولاړ شوي وو ، ولې چې د غه بي بي اوماشوم يې د غه ځائې کښې ډير بې آسرې او بې انتظامه فرياد کوونکي پرېښودي وو ، او د ظاهري عرض . معروض نه د ابراهيم ﷺ دعا او د هاجرې بي بي هغه کلمات مراد دي چې هغوئ دالله ﷻ د حکم په آوريدو سره داسې اووئيل چې د الله ﷻ داحکم مونږ ته په سر سترګو منظور دې ، هغه به مونږ لره هيڅرې برباد نه کړي، په آخر د آيت مبارك کښې دالله ﷻ د علم بې انتها فراخي داسې بيان شوې ده چې زمونږ ظاهر او باطن خو لاڅه کوې په ټوله زمکه اوآسمان کښې هيڅ څيز دالله ﷻ څخه پټ نه دې.

﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ وَهَبَ لِيْ عَلَى الْكِبَرِ اِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ ۭ اِنَّ رَبِّيْ لَسَمِيْعُ الدُّعَاۗءِ۝﴾ ددې آيت مبارك مفهوم هم دهغې دعا تکميل کول دی ولې چې ددعا ادب دا هم دې چې د الله ﷻ ثنا ، صفت بيانولو سره اوکړې شي ،نو ابراهيم ﷺ دلته د الله ﷻ دهغه نعمت شکريه ادا کړه چې د زيات بوډاتوب په عمر کښې الله ﷻ زما دعا قبوله کړه اونيك اولاد اسماعيل ﷺ او اسحاق ﷺ يې راکړل.

په دې حمد او ثنا کښې دې ته هم اشاره ده چې اې الله ﷻ دا ماشوم راته هم تا رابخښلي دي په شاړ ميدان کښې يې هم ستا سره پرېږدم هم ته به يې حفاظت کوې ، په آخر کښې يې دالله ﷻ حمد اوثناء په ﴿اِنَّ رَبِّيْ لَسَمِيْعُ الدُّعَاۗءِ۝﴾ سره مکمله کړه (چې بيشکه زما پروردګار ددعا ګانو آوريدونکې او قبلونکې دې)

ددې حمد او ثناء څخه وروستو بيا په دعا کولو شروع شو او وې فرمائيل چې: ﴿رَبِّ اجْعَلْنِيْ مُقِيْمَ الصَّلٰوةِ وَمِنْ ذُرِّيَّتِيْ ڰ رَبَّنَا وَتَقَبَّلْ دُعَاۗءِ۝﴾ په دې کښې يې دا دعا اوکړه چې ما او زما اولاد د مونځ پابند لرې، اوپه آخرکښې يې بيا په ډيرې زارۍ سره عرض اوکړو چې اې زما ربه! زما دا دعا قبوله کړه.

په آخر کښې يې يو جامع دعا اوکړه چې : ﴿رَبَّنَا اغْفِرْ لِيْ وَلِوَالِدَيَّ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ يَوْمَ يَقُوْمُ الْحِسَابُ۝ۧ﴾ (يعنی اې زماپروردګاره مااو زما مورا وپلار اوټول مؤمنان اوبخښې کله به چې په محشر کښې د ټول ژوند حساب اخستلې شي) دلته يې د والدينو د بخښنې دعا کړې ده حالانکه والد آزر يې د قرآن کريم د فرمان مطابق کافر وو ، ددې جواب دادې چې کيدې شی دا دعا د هغه وخت وی چې ابراهيم ﷺ کافرانو دپاره د بخښنې ددعا کولو څخه نه وی منع کړې شوې څنګه چې د قرآن پاك په يو بل آيت مبارك کښې ددوئ دا دعا په دې شان بيان شوې ده چې : ﴿وَاغْفِرْ لِاَبِيْٓ اِنَّهٗ كَانَ مِنَ الضَّاۗلِّيْنَ۝ۙ﴾

**احکام او هدايات**: ددې آيتونو څخه ددعا دا آداب هم معلوم شو چې بيا بيا دعا کول په ډيرې عاجزۍ او زارۍ سره په دې شان وی چې الله ﷻ حمد او ثناء ورسره هم کولې شی ولې چې داسې دعا دقبليدو اميد زيات وی.

وَلَا تَحْسَبَنَّ　اللّٰهَ　غَافِلًا　عَمَّا　يَعْمَلُ

| او ته مه کوه ګمان | په الله باندې| چې غافله دې|د هغه کارونو نه| چې کوی ئې

| ........اوته په الله باندې دا ګمان مه کوه| چې ګنی هغه د ظالمانو

الظّٰلِمُوْنَ ڛ　اِنَّمَا　يُؤَخِّرُهُمْ　لِيَوْمٍ　تَشْخَصُ　فِيْهِ

ظالمان | بيشکه | چې الله روستو کوی دوئ | هغه ورځ ته | چې غړيدلې به پاتې شی | په هغې کښې

دکارونو نه غافله دې | هغوئ ته ئې خو تر هغې ورځې پورې مهلت ورکړې دې | چې په کومه ورځ به

الْاَبْصَارُ ﴿۴۲﴾ مُهْطِعِيْنَ مُقْنِعِيْ رُءُوْسِهِمْ لَا يَرْتَدُّ

سترګې | چې منډې وهونکي به وي | اوچت نيونکي به وي | د سرونو خپلو | واپس به نه راګرځي

نې سترګې غريدلې پاتې شي | هغوئ به خپل سرونه اوچت کړي منډې وهي | د هغوئ

اِلَيْهِمْ طَرْفُهُمْ وَاَفْـِٕدَتُهُمْ هَوَآءٌ ﴿۴۳﴾ وَاَنْذِرِ النَّاسَ يَوْمَ

دوئ ته | سترګې د دوئ | او زړونه د دوئ به | الوتلي وي | او اوويروه | خلق | د هغه ورځې نه

نظرونه به دهغوئ طرفته نۀ واپس کيږي | او زړونه به ئې الوتې وي | او واني محبوبه ﷺ خلق دهغې ورځې

يَاْتِيْهِمُ الْعَذَابُ فَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا رَبَّنَآ

چې رابه شي هغوئ ته | عذاب | نو اوبه واني | هغه کسان | چې ظلم ئې کړې وي | اې ربه زمونږ

نه اوويروه | په کومه کښې چې به په هغوئ عذاب راشي | نو ظالمان خلق به اوواني | چې اې زمونږ ربه

اَخِّرْنَآ اِلٰٓى اَجَلٍ قَرِيْبٍ ۙ نُّجِبْ دَعْوَتَكَ وَنَتَّبِعِ الرُّسُلَ ۭ

روستو کړې مونږ | نيتې نزدې ته | قبول به کړو مونږ | دعوت ستا | او پيروي به اوکړو | د رسولانو

مونږ ته لږ مهلت راکړه | چې مونږ ستا دعوت قبول کړو | او د پيغمبرانو تابعداري اوکړو

اَوَلَمْ تَكُوْنُوْٓا اَقْسَمْتُمْ مِّنْ قَبْلُ مَا لَكُمْ مِّنْ زَوَالٍ ﴿۴۴﴾ ۙ

ايا نۀ وئ تاسو | چې قسمونه به خوړل تاسو | د مخکښې نه | چې نشته تاسو لره | څه زوال

(مونږ به ورته اوواېو) ايا تاسو نۀ وئ چې د دې نه وړاندې به مو قسمونه خوړل | چې مونږ د پاره زوال نشته

وَّسَكَنْتُمْ فِيْ مَسٰكِنِ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْٓا

حالانکه اوسيدلي وئ تاسو | په کورونو د هغه کسانو کښې | چې هغوئ ظلم کړې وو

حال دا چې تاسو د هغه چا په ځايونو کښې اوسيدلي وئ چې په ځانونو ئې (د ګناهونو په وجه) زياتې

اَنْفُسَهُمْ وَتَبَيَّنَ لَكُمْ كَيْفَ فَعَلْنَا بِهِمْ

په ځانونو خپلو باندې | او ښکاره شوې وه | تاسو ته | چې څرنګې | اوکړو سلوک مونږ | د هغوئ سره

کړې وو | او ښۀ ښکاره درته معلومه وه | چې هغوئ سره مونږ څه کړي وو ......................

وَضَرَبْنَا لَكُمُ الْاَمْثَالَ ﴿۴۵﴾ وَقَدْ مَكَرُوْا مَكْرَهُمْ وَعِنْدَ اللّٰهِ

او بيان کړې وو مونږ | تاسو ته | مثالونه | او اوکړل هغوئ | تدبيرونه خپل | او د الله سره دي

او د هغوئ مثالونه مو درته اورولي وو | او دوئ خپل ټول سازشونه اوکړل | او د دوئ د سازشونو جواب

مَكْرُهُمْ وَاِنْ كَانَ مَكْرُهُمْ لِتَزُوْلَ مِنْهُ الْجِبَالُ ﴿۴۶﴾

(جواب د) مکر د هغوئ | او اګر چې وو | مکر د هغوئ (داسې) | چې اوخوزيږي | د وجې د هغې نه غرونه

الله ﷻ سره موجود وو | اګر که د دوئ سازشونه داسې زبردست سازشونه وو | چې غرونه هم ورته د ځنګي نۀ وو

فَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ مُخْلِفَ وَعْدِهٖ رُسُلَهٗ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ

پس نۀ ګمان مۀ کوه | په الله باندې | د خلاف کونکې | د وعدې خپلې | د رسولانو خپلو سره | بيشکه الله | غالب دي

نو دا ګمان هيڅرې مۀ کوه | چې الله ﷻ به خپلو پيغمبرانو سره وعده خلافي اوکړي | بيشکه الله ﷻ غالب

ذُو انْتِقَامٍ ﴿٤٧﴾ يَوْمَ تُبَدَّلُ الْأَرْضُ غَيْرَ الْأَرْضِ

بدله اخستونکې دی | (اوویروه دوئ) د هغه ورځ نه | چې بدل به کړې شی | دا زمکه | په بلې زمکې سره

بدله اخستونکې دی | (دوئ دهغې ورځې نه) اوویروه | په کومه ورځ چې به دا زمکه په بله زمکه بدله شی

وَالسَّمٰوٰتُ وَبَرَزُوْا لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ﴿٤٨﴾ وَتَرَى

او اسمانونه هم | او حاضر به شی | الله ته | چې یو دی | غالب دی | اوته به اووینې

او اسمانونه (به بې نوره شی) | او دوئ ټول به غالب الله ﷻ ته ورمخامخ شی | اوته به اووینې

الْمُجْرِمِيْنَ يَوْمَئِذٍ مُّقَرَّنِيْنَ فِي الْأَصْفَادِ ﴿٤٩﴾ سَرَابِيْلُهُمْ

مجرمان | په دغه ورځ | چې تړلی شوی به وی | په زنځیرونو کښې | قمیصونه د هغوئ به

چې نافرمان به په دغه ورځ په یوبل پورې په زنځیرونو تړلی وی | ............. دهغوئ قمیصونه

مِّنْ قَطِرَانٍ وَّتَغْشٰى وُجُوْهَهُمُ النَّارُ ﴿٥٠﴾ لِيَجْزِيَ اللّٰهُ

دګوګرو وی | او راخور به وی | په مخونو د هغوئ باندې | وور | دپاره ددې چې بدله ورکړی الله

په ګوګرو نه جوړ وی | او په مخونو به ئې د اور (لمبه) راخوره وی | دا د دې د پاره چې الله ﷻ هر

كُلَّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿٥١﴾ هٰذَا

هر انسان ته | د هغه عمل چې کړې ئې وی | بیشکه الله | زر اخستونکې دی د حساب | دا قرآن

نفس ته دخپل عمل بدله ورکړی | بیشکه الله ﷻ ډیر زر حساب اخستونکې دی | دا (قران پاک)

بَلٰغٌ لِّلنَّاسِ وَلِيُنْذَرُوْا بِهٖ وَلِيَعْلَمُوْا

پیغام دی | دپاره دخلقو | او چې اوویرولې شی دا خلق | په دې سره | او چې معلوم شی خلقو ته

د خلقو دپاره یو لوئې پیغام دې | او چې د دې په ذریعه هغوئ اوویرولې شی | او چې پوهه شی

اَنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ وَّلِيَذَّكَّرَ اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿٥٢﴾

چې بیشکه | هم هغهٔ (الله) | لائق د عبادت دی | یو | او چې نصیحت قبول کړی | خاوندان دعقلونو

چې په حقیقت کښې الله ﷻ صرف ځان له د عبادت مستحق دی | او چې پوهان ترې سبق واخلی

## آسان ترجمه قرآن

او دا ګمان هر ګز مه کوه چه څه دا ظالمان کوی، الله پاک د هغې نه غافل دی هغه خو دې خلقو ته د هغه ورځې پورې مهلت ورکوی چه په هغې کښې به سترګې غړیدلې پاتې شی. هغوی به خپلو سرونو لره اوچتولو سره منډې وهی، دهغوی سترګې به رپیدو ته هم نه واپس کیږی او دهغوی زړونه به (د ویرې نه) په هوا وی. او (اې پیغمبره) ته خلق د هغه ورځې نه خبردار کړه چه کله عذاب په هغوی واقع شی، نو هغه وخت به دا ظالمان وائی چه: اې زمونږ ربه! مونږ ته د لږې مودې دپاره مهلت راکړه چه مونږ ستا دعوت قبول کړو، او د پیغمبرانو تابعداری اوکړو (هغه وخت به هغوی ته اوویلې شی چه) آیا تاسو دې قسمونو خوړلو سره دا نه وو وئیلې چه په تاسو باندې به هیڅ زوال نه راځی. او تاسو دهغه خلقو په آبادو کښې اوسیدلې وئ چا چه په خپلو ځانونو باندې ظلم کړې وو، او دا خبره ښکاره ستاسو مخې ته

راغلي وه چه مونږ د هغوی سره څه سلوک اوکړو او مونږ تاسو ته مثالونه هم درکړي وو او دغه خلقو خپل ټول چالونه چلولي وو، او د هغوی د ټولو چالونو جواب الله سره وو، اګر که د هغوی چالونه داسې ولې نه وی چه په هغې سره غرونه هم د خپل ځائې نه اوخوزی. لهٰذا د الله پاک په باره کښې هر ګز دا خيال هم په زړه کښې مه راوله چه هغه چه د خپلو پيغمبرانو سره کومه وعده کړې ده، د هغې خلاف ورزی به اوکړی. يقين ساتۍ چه الله پاک په خپل اقتدار کښې په ټولو باندې غالب دې،(او) انتقام اخستونکې دې. هغه ورځ چه کله به دا زمکه په يو بلې زمکې سره بدله کړې شی، او آسمان هم (بدل کړې شی) او ټول په ټول به د الله پاک وړاندې چه واحد او قهار دې پيش کړې شی. اوهغه ورځ به ته مجرمان په داسې حالت کښې وينې چه هغوی به په زنځيرونو کښې تړلې شوی وی. د هغوی قميصونه به د تارکولو وی، او اور به د هغوی په مخونو باندې خور وی. چه الله پاک هر چا ته د هغه د عمل بدله ورکړی. الله پاک زر حساب اخستونکې دې. دا د ټولو خلقو دپاره يو پيغام دې، او په دې وجه ورکولې شی چه هغوی د دې په ذريعه خبردار کړې شی او دې دپاره چه هغوی ته معلومه شی چه معبود برحق بس يو دې، او دې دپاره چه پوهه لرونکی نصيحت حاصل کړی.

## خلاصه تفسير

﴿وَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ غَافِلًا عَمَّا يَعْمَلُ الظّٰلِمُوْنَ ۬ؕ﴾ او (اې مخاطبه) څه چې دا ظالمان خلق کوی (د زر عذاب نه ورکولو په بنا) دې څخه الله ﷻ بې خبره (څکه) مه ګنړئی چې دوئ ته يې صرف تر هغې ورځې پورې مهلت ورکړې دی ﴿اِنَّمَا يُؤَخِّرُهُمْ لِيَوْمٍ تَشْخَصُ فِيْهِ الْاَبْصَارُ ۙ﴾ چې په هغې به د دغې خلقو سترګې (د حيرانتيا او هيبت په وجه) غړيدلې پاتې شی ﴿مُهْطِعِيْنَ مُقْنِعِيْ رُءُوْسِهِمْ﴾ (اودوئ به د حساب، کتاب ځائې ته د بلنې په جوړ) منډې وهی ﴿لَا يَرْتَدُّ اِلَيْهِمْ طَرْفُهُمْ ۚ﴾ (او) نظر به هم دوئ ته واپس نه راځی (يعنی سترګې به يې داسې غړيږی چې هغه به نه رپيږی) ﴿وَاَفْـِٕدَتُهُمْ هَوَآءٌ ۭ﴾ او د دوئ زړونه به (د سختې ويرې په وجه) بالکل اوتر وی ﴿وَاَنْذِرِ النَّاسَ يَوْمَ يَاْتِيْهِمُ الْعَذَابُ﴾ او (کله به چې دغه ورځ راشی بيا به په کښې څه مهلت نه وی پس) تاسو داخلق د دغې ورځې (دراتلو) څخه نه ويروئی په کومه ورځ چې به دوئ باندې عذاب راشی ﴿فَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا رَبَّنَآ اَخِّرْنَآ اِلٰٓى اَجَلٍ قَرِيْبٍ ۙ﴾ بيا دا ظالمان خلق وائی چې اې زمونږه ربه ! تر يوې مودې لږې پورې مونږ ته (نور) مهلت راکړې (او دنيا ته مو واپس اوليږې) ﴿نُّجِبْ دَعْوَتَكَ وَنَتَّبِعِ الرُّسُلَ ۭ﴾ مونږ به (په دغه موده کښې) ستا ټولې خبرې اومنو او د پيغمبرانو عليهم السلام تابعداری به کوؤ (په جواب کښې به ورته اووئيلې شی چې آيا په دنيا کښې مو درته اوږده موده نه وه درکړې او ملهت مو نه وو درکړې او) ﴿اَوَلَمْ تَكُوْنُوْٓا اَقْسَمْتُمْ مِّنْ قَبْلُ مَا لَكُمْ مِّنْ زَوَالٍ ۙ﴾ آيا تاسو (ددې ميعاد د اوږدوالی په وجه) ددې څخه مخکښې (په دنيا کښې) قسمونه نه وو خوړلی چې ستاسو (ددنيا څخه بالکل) چرته تلل د سره نشته (يعنی د قيامت نه منکر وې او په دې به مو قسمونه خوړل لکه قرآن پاك فرمائی چې ﴿وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ ۙ لَا يَبْعَثُ اللّٰهُ مَنْ يَّمُوْتُ ۭ﴾)[1] سره ددې چې (دانکار نه د آوړيدو ټول اسباب

[1] ترجمه:- اود ا خلق ډير زورونه لګوی او قسمونه خوری چې څوك مړی شی نو الله تعالی جل شانه به هغه نه ژوندي کوی. (النحل:۳۸)

راجمع شوی وو چنانچه) ﴿وَسَكَنتُمْ فِي مَسَٰكِنِ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓاْ أَنفُسَهُمْ﴾ تاسو دهغه (مخکښينو) خلقو د استوګنې په ځايونو کښې اوسيدئ چاچې (کفر او د قيامت انکار اوکړو) د خپلو ځانونو نقصان يې کړې وو ﴿وَتَبَيَّنَ لَكُمْ كَيْفَ فَعَلْنَا بِهِمْ﴾ او تاسو ته (د پرله پسې خبرونو څخه) دا هم معلومه شوې وه چې مونږ هغوئ سره په څه شان معامله کړې وه (چې دهغوئ په کفر او انکار کولو مو ورته سزاګانې ورکړې، هغې نه تاسو ته معلوميدې شوه چې انکار کول دالله ﷻ د غضب نازليدو سبب دې، نو تصديق واجب دې او دهغوئ د استوګنې په ځايونو کښې اوسيدل، هر وخت دهغوی ددې حالات د يادولو سبب کيدې شو، پس د انکار کولو هيڅ وخت ګنجائش نه وو) ﴿وَضَرَبْنَا لَكُمُ ٱلْأَمْثَالَ﴾ او (ددغې واقعاتو آؤريدو باوجود چې د عبرت دپاره کافی وو) مونږ (هم) تاسو ته مثالونه بيان کړل (يعنی په آسمانی کتابونو کښې مونږ هم دا واقعات د مثال په طور بيان کړل چې که تاسو داسې کوئی نو په تاسو به هم داسې غضب کولې شی او د عذاب حقدار به يې بيا اول ددغې واقعاتو خبرونه آؤريدل بيا زمونږ دې لره بيانول بيا ددې سره يو شان والې، بيا خبردارې ورکول ددې سبب وو چې د قيامت څخه انکار نه کولې) ﴿وَقَدْ مَكَرُواْ مَكْرَهُمْ﴾ او (مونږ چې کومو اولنو خلقو ته د هغوئ دکفر او انکار په وجه سزاګانې ورکړې) دغې خلقو (دحق دين په ورانولو کښې) دخپلو پشان ډير لوې لوې چلونه کړی وو ﴿وَعِندَ ٱللَّهِ مَكْرُهُمْ﴾ او دهغوئ (دغه ټول) چلونه دالله ﷻ په وړاندې وو (د هغه د علم څخه پټ نه شو پاتې کيدې) ﴿وَإِن كَانَ مَكْرُهُمْ لِتَزُولَ مِنْهُ ٱلْجِبَالُ﴾ او واقعی د هغوئ چلونه داسې وو چې (عجيبه نه ده) په هغې سره غرونه هم (دخپل ځائې څخه) لرې شوې وې (ليکن بيا هم حق غالب راغلو، او دهغوئ ټول چلونه خراب او بيکاره شو او هغوئ هلاك کړې شو، دې څخه معلومه شوه چې حق هم هغه دی چې پيغمبر فرمائيل او دهغه انکار د غضب او عذاب موجب دې کله چې په قيامت کښې د هغوئ مغلوب کيدل اوپاتې کيدل معلوم شو) ﴿فَلَا تَحْسَبَنَّ ٱللَّهَ مُخْلِفَ وَعْدِهِۦ رُسُلَهُۥٓ﴾ نو (اې مخاطبه!) الله لره دخپلو رسولانو سره وعده خلافی کوؤنکې مه ګڼره (چنانچه د قيامت په ورځ دې منکرانو ته د عذاب ورکولو وعده وه چې پوره شوه څنګه چې پورته بيان شوه) ﴿إِنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ ذُو ٱنتِقَامٍ﴾ بيشکه الله ﷻ لوې زبردست (او) پوره بدله اخستونکې دې (چې هغه لره څوك دبدلې اخستلو څخه نشی منع کولې، نو قدرت يې هم کامل دې بيا د ارادې تعلق يې پورته معلوم شو نو د وعده خلافی څه احتمال پاتې شو؟ او دا بدله به په هغه ورځ وی) ﴿يَوْمَ تُبَدَّلُ ٱلْأَرْضُ غَيْرَ ٱلْأَرْضِ وَٱلسَّمَٰوَٰتُ﴾ په کومه ورځ به چې بله زمکه بدله شی ددې زمکې څخه علاوه او آسمانونه هم (نور بدل کړې شی ددې آسمانونو څخه علاوه ولې چې د اول ځل شپيلۍ پوك وهلو سره ټول زمکه او آسمانونه مات اوګډ شی بيا به په دريم ځل نوی زمکې او آسمانونه جوړيږی)

﴿وَبَرَزُواْ لِلَّهِ ٱلْوَٰحِدِ ٱلْقَهَّارِ﴾ او ټول په ټوله به د يو (او) زبردست الله ﷻ په وړاندې پيش کيږی (مراد ترې د قيامت ورځ ده يعنی په قيامت کښې به بدله اخستې شی) ﴿وَتَرَى ٱلْمُجْرِمِينَ يَوْمَئِذٍ مُّقَرَّنِينَ فِي ٱلْأَصْفَادِ﴾ او (پدغه ورځ به اې مخاطبه!) ته به مجرمانو لره (يعنی کافرانو لره) په زنځيرونو کښې تړلی شوی اووينې ﴿سَرَابِيلُهُم مِّن قَطِرَانٍ﴾ (او) ددوئ قميصونه به د قطران وی (يعنی ټول بدن نه به يې راچاپيره وی چې اور به پرې زر او تيزی سره لګی، او قطران د چيړ د ونې روغن

ته وئيلې شي، (بحواله د لغت اود طب د كتابونو) ﴿وَتَغْشٰى وُجُوْهَهُمُ النَّارُۙ﴾ او اور به د دوئ دمخونو څخه (هم) راچاپيره وي ﴿لِيَجْزِيَ اللّٰهُ كُلَّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ﴾ (دا ټول هر څه به څكه وي) چې الله ﷻ هر څه (مجرم) بنده ته د هغه دكړو سزا وركوي (اوګوره، داسې مجرمان به بې انتها وي مګر) ﴿اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ﴾ يقينا الله ﷻ (ته د دوئ حساب، كتاب څه مشكل نه دې څكه چې هغه) ډير زر حساب اخستونكې دې (د حساب كتاب شروع كولو سره به زر تر زره د ټول فيصله اوكړي) ﴿هٰذَا بَلٰغٌ لِّلنَّاسِ وَلِيُنْذَرُوْا بِهٖ﴾ دا (قرآن پاك) خلقو ته حكمونه رسول دي (د پاره د دې چې د مبلغ تصديق اوكړي) او د پاره د دې چې د دې په ذريعه (د عذاب څخه) اوويرولې شي ﴿وَلِيَعْلَمُوْٓا اَنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ﴾ او د پاره د دې چې د دې خبرې يقين اوكړي چې هغه حق معبود دې ﴿وَلِيَذَّكَّرَ اُولُوا الْاَلْبَابِ﴾ او د پاره د دې چې د عقل خاوندان نصيحت حاصل كړي.

## معارف او مسائل

په سورة ابراهيم كښې د انبياء عليهم السلام اود هغوئ دقومونو د څه حالاتو او معاملاتو تفصيل د الله ﷻ دحكمونو د مخالفت كوونكو دخراب انجام او په آخرت كښې د خليل الله ﷺ يادګيرنه وه چاچې بيت الله شريف آباد كړو او د چا اولاد د پاره چې الله ﷻ د مكې مكرمې ودانى برابر كړه، په دې كښې اوسيدونكو ته يې په هر شان امن و امان او په غير معمولى طور معاشى آسانى وركړې، هم د دوئ ﷺ اولاد بنى اسماعيل ﷺ د قرآن پاك اودرسول كريم ﷺ مخاطب دى.

د سورة ابراهيم په دې آخرى ركوع كښې د خلاصې په طور هم دغې دمكې خلقو ته پخوانو قومو باندې د تير شوؤ واقعاتو څخه دعبرت حاصلولو ښودنه او بيا هم په تابعدارئ كښې د نه راتلو په صورت كښې د قيامت د هيبتناك عذابونو څخه ويرولې شوى دى.

په رومبى آيت مبارك كښې رسول كريم ﷺ اوهرمظلوم ته تسلى وركول او ظالم دپاره دسخت عذاب وعيد وركول دى چې ظالمان اومجرمان خلق دې د الله ﷻ د مهلت وركولو څخه نه بې فكره كيږى، او دا دې نه ګنړى چې الله ﷻ د دوئ د جرمونو څخه بې خبره دې څكه دوئ په مزو كښې وخت تيروى، څه عذاب يا مصيبت پرې نشته، بلكه دوئ چې هر څه كوى هغه ټول د الله ﷻ په نظر كښې دى، خو هغه د خپل رحمت او حكمت د تقاضې مطابق مهلت وركوى.

﴿وَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ غَافِلًا﴾ (الله ﷻ غافله او ناخبره مه ګنړئ) په ظاهره دا خطاب هر هغه چا ته دې چې خپل غفلت او شيطان ده لره په دې دهوكه كښې اخته كړې وى او كه ددې مخاطب رسول كريم ﷺ وى نو بيا ترې هم مقصود د امت غافلانو ته آورول، او خبرداري وركول دى څكه چې رسول كريم ﷺ داسې هيچرې نشى كولې چې معاذ الله الله ﷻ لره د حالاتو څخه بې خبره يا غافل اوګنړى.

په دويم آيت مبارك كښې يې اوښودل چې په دغه ظالمانو باندې زر تر زره عذاب نه راتلل هغوئ دپاره څكه څه ښه نه دى چې په انجام كښې به دا خلق ناګاهانه د قيامت اوآخرت په عذاب كښې راګير كړې شي، وروسته د سورت تر ختميدو پورې د آخرت ددې عذاب د آخرت تفصيلات او هيبتناك واقعات بيان شويدى.

﴿لِيَوۡمٍ تَشۡخَصُ فِيهِ ٱلۡأَبۡصَٰرُ﴾ (يعنى په دغه ورځ چې كله به پاتې شى ستركې غړيدلې)
﴿مُهۡطِعِينَ مُقۡنِعِي رُءُوسِهِمۡ﴾ (يعنى دويږې اوداوتريدو په وجه سر پورته كړى وار خطا منډې به وهى)
﴿لَا يَرۡتَدُّ إِلَيۡهِمۡ طَرۡفُهُمۡ﴾ (ستركې به يې نه رپى) ، ﴿وَأَفۡـِٔدَتُهُمۡ هَوَآءٞ﴾ (زړونه به يې خالى بدحواسه وى)
ددې حالاتو بيانولو څخه وروستو نبى كريم ﷺ ته خطاب دې چې تاسو خپل قوم د هغې ورځې د عذاب څخه ويروئ چې په كښې ظالمان او مجرمان خلق د مجبورى څخه چغې وهى چې اې زمونږ پروردګاره ! مونږ ته څه نور مهلت راكړه ، يعنى بيا مو دنيا ته څو ورځو دپاره اوليږه چې ستا دعوت قبول كړو ، او ستا د رسولانو خبره اومنو ، او ددې عذاب څخه راته خلاصې راكړه ، د الله ﷻ د طرفه به ددوئ د درخواست جواب وى چې اوس تاسو دا اووايئ آيا تاسو ددې څخه وړاندې قسمونه نه وو خوړلى چې زمونږ دولت او رعب چرې هم ختميدونكې نه دې مونږ به په د نيا كښې په مخه دغه شان مزې كوؤ ، او د دوباره ژوندى كيدو اوداخرت نه مو انكار كړې وو؟
﴿وَسَكَنتُمۡ فِي مَسَٰكِنِ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓاْ أَنفُسَهُمۡ وَتَبَيَّنَ لَكُمۡ كَيۡفَ فَعَلۡنَا بِهِمۡ وَضَرَبۡنَا لَكُمُ ٱلۡأَمۡثَالَ﴾ په ظاهره داسې ښكارى چې ددې مخاطب د عربو مشركان دى د چا په باره كښې چې رسول كريم ﷺ ته داسې حكم شوې دې چې : ﴿وَأَنذِرِ ٱلنَّاسَ﴾ په دې خطاب سره دوئ خبرداره كړې شوى دى چې د پخوانو قومونو حالات انقلابات تاسو دپاره بهترين نصيحت ګر دى ، تعجب دې چې تاسو دې څخه عبرت نه حاصلوئ ، سره ددې چې تاسو هم ددې هلاك شوؤ قومونو په كورونو كښې آباد شوى يې ، او هم په دې كښې آوړئ راؤړئ او تاسو ته د څه حالاتو په ليدلو او څه د پرله پسې خبرونو نه داهم معلومه شوې ده چې الله ﷻ ددې نافرمانو په وجه هغوئ باندې څومره سخت عذاب نازل كړو ، او مونږ هم په لار باندې ستاسو د راوستو په غرض ډير مثالونه بيان كړل بيا هم تاسو فكر نه كوئى ؟
﴿وَقَدۡ مَكَرُواْ مَكۡرَهُمۡ وَعِندَ ٱللَّهِ مَكۡرُهُمۡ وَإِن كَانَ مَكۡرُهُمۡ لِتَزُولَ مِنۡهُ ٱلۡجِبَالُ﴾ يعنى دې خلقو د حق دين ختمولو د حقې بلنې قبلوؤنكى مسلمانانو لره دتنګولو اودوئ ته د نقصانونورسولو ښه مضبوط چلونه اوكړل ، الله ﷻ سره ددوئ ټول ښكاره او پټ چلونه مخامخ موجود دى ، هغه د ټولو خبرداره او دهغې په بې كاره ګرځولو باندې قادر دې ، اګر چې د دوئ چلونه دومره لوې او سخت وو چې دهغې په مقابله كښې غرونه هم خپلو ځايونو نه لرې كيدې شو ، خو دالله ﷻ د كامل قدرت په وړاندې د غه ټول تدبيرونه لكه ګرد اوناكامه شو.
دا احتمال شته چې ددې چلونو څخه مراد د پخوانو هلاك شوؤ قومونو چلونه وى ، لكه نمرود ، فرعون ، قوم عاد او ثمود وغيره او دا احتمال هم شته چې په دې كښې د موجوده مشركانو د عربو حال داسې بيان شوې وى چې هغوئ هم درسول كريم ﷺ په مقابله كښې ډير ژور او اوږد سازشونه او چلونه اوكړل خو الله ﷻ دا ټول نا كامه كړل.
اكثرو مفسرينو په ﴿وَإِن كَانَ مَكۡرُهُمۡ﴾ كښې لفظ د اِنۡ د نفى دپاره داسې ګرځولې دې چې معنى به يې دا شى :
اګر چې هغوئ ډير چلونه اوكړل او دهوكې يې اوكړې خو پدې سره د خپلو ځايونو نه د غرونو لرې كيدل نشو كيدې . دلته د غر نه مراد رسول كريم ﷺ او ددوئ ﷺ مضبوطه اراده او مستقل مزاجى ده چې د كافرانو هيڅ دهوكې پرې اثر او نه كړې شو.

دې پسې امت محمدیه ته دا ورولو دپاره رسول کریم ﷺ یا هر مخاطب ته دا خبرداري ورکړې شو:

﴿فَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ مُخْلِفَ وَعْدِهٖ رُسُلَهٗ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَزِیْزٌ ذُو انْتِقَامٍ﴾ یعنی څوك دې دا نه ګنړي چې الله ﷻ به خپلو رسولانو سره د خپلو کړو وعدو څخه خلاف اوکړي چې دوئ ته به فتح، کامیابي ورنکړي او مدد به ورسره نه کوي، بیشکه الله ﷻ زبردست او بدل اخستونکي دې، هغه به ضرور دخپلو پیغمبرانو علیهم السلام د دښمنانو نه بدله اخلي او پیغمبران علیهم السلام سره کړې وعدې به پوره کوي.

دې پسې آیتونو کښې بیا د قیامت هیبتناك حالات او واقعات بیان شوي دي فرمائي چې:

﴿یَوْمَ تُبَدَّلُ الْاَرْضُ غَیْرَ الْاَرْضِ وَالسَّمٰوٰتُ وَبَرَزُوْا لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ﴾ (د قیامت ورځ به داسې وي چې دا موجوده زمکه به هم په کښې بدله شي، آسمانونه به هم بدل شي او ټول په ټول خلق به د الله ﷻ واحد قهار په وړاندې حاضر وي)

دزمکې اوآسمان د بدلولو دا معنی هم کیدې شي چې ددې صفتونه شکل او صورت بدل کړې شي لکه دقرآن پاك په نورو آیتونو کښې او د حدیث پاك په روایاتو کښې راغلي دي چې ټوله زمکه به داشان هموار میدان جوړ کړې شي چې نه به څه مکان په کښې جوړیږي، نه ونه وغیره، اونه به په کښې څه غار یا خندق جوړیږي، چنانچه قرآن کریم یې بیان داسې کړې دې چې: ﴿فَیَذَرُهَا قَاعًا صَفْصَفًا ۙ لَّا تَرٰی فِیْهَا عِوَجًا وَّلَآ اَمْتًا﴾ یعنی نن صبا چې د زمکې څه داسې حالت دې چې یوه حصه یې دبلې حصې څخه په څه مکان تعمیر ګټ پیر، لوړوالي، ژور والي وغیره سره په ډډه کیږي او پناه کیږي نو د قیامت په ورځ به یې دا حالت نه وي بلکه صفا میدان به شي.

د زمکې اوآسمان د بدلولو دا معنی هم کیدې شي چې ددې په بدل کښې بله زمکه یا نور آسمانونه جوړ کړې شي، دغه شان د حدیث پاك د روایتونو نه کله ددې د صفاتو بدلول معلومیږي اوکله یې د ذات بدلول معلومیږي.

د حدیث امام بیهقي رحمه الله په صحیح سند سره د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په روایت ددې آیت مبارك باره کښې درسول کریم ﷺ دا فرمان نقل کړې دې چې د محشر زمکه به بالکل نوې لکه د سپینو زرو سپینه وي، په دغه زمکه بڼه چا ګناه نه وي کړې، پدې به ناروا قتل نه وي شوې. دغه شان د مسند احمد رحمه الله او د تفسیر ابن جریر رحمه الله په حدیث کښې هم دا مضمون د انس رضي الله عنه په روایت راغلې دې (تفسیر مظهري)([1])

په صحیحینو یعنی بخاري او مسلم کښې د سهل بن سعد رضي الله عنه څخه روایت دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې د قیامت په ورځ به خلق په داسې زمکه راپورته کولې شي لکه چې د میدې د روټۍ پشان به تکه سپینه وي، په دې کښې به د هیچا څه نخښه (دمکان، باغ، ونه، غر غونډۍ وغیره) هیڅ نه وي. هم دا مضمون عبدالله بن عباس رضي الله عنه ددې آیت مبارك په تفسیر کښې نقل کړې دې.([2])

---

[1]) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة [ج:۵ص:۲۸۳] و تفسیر الطبری تحت هذه الآیة [ج:۱۷ ص:۴۷]

[2]) صحیح البخاری کتاب الرقاق ،باب یقبض الله الارض یوم القیامة [ج:۲ص:۹۶۵]، و صحیح مسلم کتاب صفات المنافقین الخ باب صفة القیامة إلخ [ج:۲ص:۳۷۱] وشعب الإیمان رقم الحدیث[۳۶۶۰].

حاکم په قوي سند سره جابر ﷺ څخه نقل کړي دي چې نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې د قيامت په ورځ به دا زمکه داشان راښکلې شي لکه چې څرمن راښکلې شي په دې شان به دې گنجې ، ماتون ، او کونړ وغيره هموار شي ، څه غار ، کنده او غونډۍ وغيره به په کښې پاتې نشي چې داسې صفا هواره شي نو دغه وخت به د آدم ﷺ ټول اولاد په دې باندې راجمع شي ، په دې گڼره کښې به د هر يو انسان دومره حصه اورسي چې هغه پرې صرف اودريدلې شي ، بيا به په محشر کښې د ټولو څخه اول زه راؤبللې شم ، زه به د الله ﷻ په مخکښې په سجده پريوزم بيا به راته د شفاعت اجازت راکړې شي ، نو زه به د ټول مخلوق دپاره دا شفاعت کوم چې ددوئ حساب کتاب دې زر اوشي .(۱)

ددې آخري روايت نه په ظاهره دا معلوميږي چې صرف دزمکې صفت به بدل شي ذات د زمکې به هم داوي او د ړومبو ټولو روايتونو څخه معلوميږي چې د محشر زمکه به دې موجوده زمکې څخه علاوه بله وي او په دغه بنا به په دې آيت مبارك کښې د بدليدو څخه مراد ددې ذات بدليدل وي .

بيان القرآن کښې حکيم الامت فرمائيلي دي چې ددې دواړو خبرو مينځ کښې هيڅ بې سموني داسې نشته کيدې شي چې د ړومبی ځل شپيلۍ پوك وهلو په وخت هم دغه زمکه وی صرف صفتونه او حالات به ئې بدل شي او بيا د حساب په وخت دا زمکه بالکل بدله کړې شي او بله ددې په ځائې خوره کړې شي .(۲)

په تفسير مظهري کښې د مسند عبد بن حميد څخه د عکرمه يو قول نقل کړې دې چې په هغې سره دا خبره مضبوطيږي ، ددې الفاظو ترجمه داده چې دا زمکه به راغونډه شي او ددې په خوا کښې به يوه بله زمکه وي چې په هغې به خلق حساب کتاب دپاره اودرولې شي .(۳)

په صحيح مسلم کښې د ثوبان ﷺ څخه روايت دې چې د نبي کريم ﷺ خواته يو يهودي عالم راغلو اودا سوال يې اوکړو چې کله دازمکه بدلولې شي نو بنيادم به کوم ځائې کښې وي ؟ نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې د پل صراط خواته به په يوه تياره کښې وي .(۴)

دې څخه معلومه شوه چې اوسنۍ زمکې نه به د پل صراط په ذريعه بل طرفته خلق منتقل کولې شي ، او ابن جرير پخپل تفسير کښې د ګڼرو صحابه کرامو او تابعينو دا اقوال نقل کړي دي چې دغه وخت به موجوده زمکه او دريابونه اور جوړ شي ،(۵) ګويا دا ټوله علاقه اوسنۍ دنيا به هغه وخت د جهنم علاقه جوړه شي ، او د حال حقيقت الله ﷻ ته معلوم دې ، بنده لره ددې نه سوا بل څه علاج نشته دې :

زبان تازه کردن باقرار تو　　نينگختن علت از کارتو

(ژبه ستا د الله ﷻ په اقرار باندې تازه کول دي ، ستا په کارونو کښې ډکې نه دي وهل پکار)

۱) المستدرك للحاكم كتاب الأهوال رقم الحديث[۸۸۵٤]
۲) تفصيل دپاره اوګورئ: بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:٦ ص:١٩]
۳) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٥ص: ۲۸۳]
۴) صحيح مسلم كتاب الحيض، باب بيان صفة منى الرجل إلخ [ج:١ص:١٤٦]
۵) تفسير الطبري تحت هذه الآية [ج: ١٧ ص:٤٨]

په آخری آیتونو کښې د جهنمیانو داحال ښودلې شوې دې چې مجرمان خلق به په يو زنځير کښې اوتړلې شي ، يعنى د هر جرم مجرمان به ځان ځان له جمع کولې شي اويو ځائې به تړلې شي ، دوئ ته به د قطران جامې ورواغوستولې شي چې تارکول ورته وئيلې شي ولې چې هغه ډير زر اور اخلي.

په آخرى آيت مبارك كښې فرمائی چې د قيامت دا ټول حالات بيانول د خلقو د خبرداره كولو دپاره دی ، چې هغوئ اوس هم په دې پوهه شي چې د عبادت او تابعدارئ قابل صرف د الله ﷻ ذات دې او دې دپاره هم دی چې چا كښې څه لږ عقل او پوهه هم وی هغه دې د شرك څخه واوړی.

**يو يادداشت او اطلاع:** بيكاره احقر ددې قابل نه وو چې تفسير ليكلو زړه يې كړې وې او نه يې ددې خيال همت كولې شو البته خپل مرشد حكيم الامت تهانوی رحمة الله عليه تفسير بيان القرآن چې په دې زمانه كښې بې مثله درميانه تفسير دې ، نه دومره لنډ دې چې دقرآن پاك مضمون ترې په پوهه كښې راتلل گران دی ، بيا دعلم او ذهين توب د تقوىٰ او پاكيزگئ په بركت سره په مختلفو اقوالو كښې يو ته په ترجيح وركولو سره دليكلو كوم خاص شوق چې الله ﷻ موصوف ته وركړې وو ، هغه د لويولويو تفسيرونو نه حاصليدل هم گران وو ، خو دا تفسير حضرت رحمة الله عليه دعلم د خاوندانو دپاره هم دهغوئ په ژبه او علمى اصطلاحاتو كښې ليكلې دې .هر كله چې عوام اوخصوصا اوسنى عوام چې د عربئ ژبې او ددې د اصطلاحاتو څخه ډير لرې شوی دی ، هغوئ ته ددې تفسير څخه فائده حاصلول گران وو.

ځكه مې اكثر دا خيال كولو چې ددې عجيبه مضمونونه دنن زمانې په آسانه ژبه كښې اوليكلې شي ، خو دا هم څه آسان كار نه وو.

تقديری كار وو چې ددې شروع په دې شان اوشوه چې د ريډيو پاكستان ډائركټر صاحب ما ته ډير اصرار اوكړو چې په ريډيو باندې يوه سلسله دقرآن كريم د خاص خاص آيتونو دمعارف القرآن په عنوان سره جاری كړې شی ، دهغوئ دا اصرار ددې كار د شروع كولو سبب جوړ شو ، او په ريډيو پاكستان باندې د هرې جمعې په ورځ ۳ شوال كال ۱۳۷۳ هجرئ مطابق ۲ جولائى كال ۱۹۵۴ ء نه شروع شوه ، ۱۵ صفر كال ۱۳۸۴ هجرى مطابق ۲۵ جون كال ۱۹۶۴ ء پورې جارى پاتې شو ه چې د سورۂ ابراهيم په ختميدو باندې د ريډيو پاكستان د محكمې دطرفه ختمه كړې شوه.

الله ﷻ دې ته زما وهم وگمان نه هم زيات مقبوليت وركړو او ددنيا د گټ گټ څخه په كتابى شكل كښې يې د چاپ كولو غوښته شروع شوه ، چې ما اراده اوكړه نو څومره كار چې تر دغې وخته پورې شوې وو هغه په دې لحاظ سره نامكمل وو چې دا د چونړ كړی آيتونو سلسله وه ، ولې چې ددې مينځ كښې د پاتې شوؤ خالص علمى آيتونو په تفسير باندې عوامو لره پوهيدل د ريډيو په ذريعه څه آسان كار نه وو ځكه مې پريښودی وو ، اوس په كتابى شكل كښې د چاپ كولو دپاره ددې سلسله هم پوره كول وو چې دا هم د وختی ضرورتونو او مصروفياتو په وجه پوره كول گران وو.

د قدرت عجائباتو ته ګوري، چې په رمضان کال ۱۳۸۸ هجري کښې زه احقر سخت بیمار شوم، په کټ کښې پریوتم، او د خوزیدو نه پاتې شوم، د مرګ مخې ته راتلل راته محسوس شو نو افسوس راته اوشو چې دا مسودې به راځخه هسې خرابې شي. الله ﷻ مې په زړه کښې دا جذبه راپورته کړه چې په ملاستې د معارف القرآن په مسودو باندې نظر ثاني اوکړم اوهم په دې حالت کښې دهغې آیتونو تکمیل اوکړم کوم چې په مینځ کښې پاتې شوی وو.

بل طرفته د بیماری سلسله مې په مخه اوږدیده، هسې خو ددې بیمارتیا په وجه راځخه نور مصروفیات پاتې شوی وو ځکه مې اوس صرف دا مصروفیت کیدې شو، نو دې بیمارتیا کښې د قدرت عجیب او غریب انتظام دا کار تر ۲۹ رجب کال ۱۳۹۰ هجرئ پورې زما په ذریعه پوره کړو، داشان ټول سورة ابراهیم او دقرآن پاك دیارلس پارې د ریډیو د نشری سبقونو په ذریعه پوره شوې. اوس راته الله ﷻ د باقی حصې د لیکلو توفیق او همت راؤبخښلو چې د خوزیدو ځخه پاتې شوې وم هغه تکلیف هم الله ﷻ لرې کړو اګر چې د نورو مرضونو سلسله مې په مخه جاري وه او کمزوری مې هم وخت په وخت زیاتیدله، مګر دالله ﷻ په فضل او کرم او هم دهغه په مدد سره ۳۰ شعبان کال ۱۳۹۰ هجرئ ځخه مې د قرآن پاك د نور باقی پارو تفسیر لیکل شروع کړل، تر ۲۵ صفر کال ۱۳۹۱ هجري پورې یو خوا د تفسیر د معارف القرآن درې جلدونه چاپ اوخواره شی وو او بل طرفته ددې تفسیر مسوده د قرآن کریم تر ځلورم منزل یعنی سورة فرقان نولسمې پارې پورې د الله ﷻ په مدد سره مکمل شوې وه.

دا وخت هم په مختلفو مرضونو کښې اخته یم، کمزورتیا هم شته، اوشکر دې دا کار مې هم روان دې، ځه لرې خبره نه ده چې الله ﷻ راته پخپل فضل سره ددې د مکمل کولو توفیق راکړی، وماذالك على الله بعزيز

**بنده محمد شفیع**

**۲۵صفر کال ۱۳۹۱ هجری**

[الحمدلله پاره نمبر ۱۳ ختمه شوه]

| تول آیتونه | سورت الحجر مکیة وهی تسع وتسعون ایة وست رکوعات | رکوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۹۹ | [شروع کوم] په نوم د الله چې بخښونکې مهربانه دې | ۶ |

| |
|---|
| الٓرٰ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ وَقُرْاٰنٍ مُّبِيْنٍ ۝ |
| ال ر \| دا \| آیتونه دي \| د کتاب او د قرآن \| صفا صفا بیانونکي دی \| |
| الف لام را \| دا د یو [کامل] کتاب او واضح قرآن آیتونه دی \| |
| رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ كَانُوْا مُسْلِمِيْنَ ۝ |
| ډیر خله به \| خوښوي \| هغه کسان \| چې کفر ئې کړې دي \| افسوس که چرې وي هغوئ \| مسلمانان \| |
| ډیرواري به کافران دا آرزو کوي \| کاش چې دوئ [یعني مونږ] مسلمانان وي |
| ذَرْهُمْ يَاْكُلُوْا وَيَتَمَتَّعُوْا وَيُلْهِهِمُ الْاَمَلُ فَسَوْفَ |
| پریږده دوئ \| چې خوراك کوي \| اوفائدي اخلي \| اومشغول کړي دوئ لره \| د دروغو اومیدونه \| البوخت پس به |
| دوی پریږده چې خوري [څښي] اوفائده اخلي \| او [غلط] امیدونه ئې په غفلت کښې غورځوي \| ډیر زر |
| يَعْلَمُوْنَ ۝ وَمَآ اَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ اِلَّا وَلَهَا كِتٰبٌ |
| پوهه شي دوئ \| اونه دي هلاك كړي مونږه \| یو کلي \| مگر \| دپاره دهلاکت دهغې \| یولیکلي شوې وخت |
| به پوهه شي \| اومونږ چې کوم کلي هم هلاک کړي دي نو د هغې دپاره یولیکلي شوي |
| مَّعْلُوْمٌ ۝ مَا تَسْبِقُ مِنْ اُمَّةٍ اَجَلَهَا وَمَا يَسْتَاْخِرُوْنَ ۝ |
| معلوم وو \| نۀ مخکښې کیږي \| یوامت \| دمقرروخت خپل نه \| اونۀ روستو کیږي \| |
| وخت مقرر وو \| یوقوم دخپلې نیټې نه نه خوړراندې تلې شي \| اونه روستو پاتې کیدیشي \| |

### آسان ترجمه قرآن

الرٰ: دا (د الله پاک) د کتاب او روښانه قرآن آیتونه دي. یو وخت به راشي چه دا کافران خلق به ډیرې آرزوګانې کوي چه کاش هغوی مسلمانان وې. (اې پیغمبره!) دوئ په خپل حالت باندې پریږده چه دوی به خوراک اوکړي، مزې اوکړي اوخیالي امیدونه هغوی لره په غفلت کښې واچوي ځکه چه ډیر زر به دوئ ته پته اولګي (چه حقیقت څه وو) او مونږ چه کومې علاقې هلاکې کړې وې، د هغوی دپاره یو مقرّر وخت لیکلې شوې وو. هیڅ یو قوم د خپل مقرّر وخت نه مخکښې نه هلاکیږي او نه دهغې نه وړاندې تلې شي.

### خلاصه تفسير

﴿الٓرٰ﴾ [ ددې معنی الله ﷻ ته معلوم ده ] دا د یو کامل کتاب او واضح قرآن آیتونه دی [ یعنی ددې دواړه صفتونه دی چې دا کامل کتاب هم دې او دا واضح قرآن هم دې، ددې کلماتو څخه د قرآن پاك د واضح کیدو نه پس د هغه خلقو د حسرت او عذاب بیان دې کوم چې په دې قرآن باندې ایمان نه راوړي یا ددې د احکامو تعمیل نه کوي وې فرمائیل چې [کله به چې د قیامت

د حشر نشر په میدان کښې په کافرانو قسم قسم عذابونه وی نو وائی به چې] ﴿رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ کافر خلق به بیا بیا آرزو لری چې څه ښه به وو ﴿لَوْ كَانُوا مُسْلِمِينَ﴾ که هغوئ [ یعنی مونږ په دنیا کښې] مسلمانان وې [بیا بیا ځکه چې هرڅل په سختئ او مصیبت راپیښیدو سره د اسلام نه وړاندې ارمان به په مخه راتازه کیږی] ﴿ذَرْهُمْ يَأْكُلُوا وَيَتَمَتَّعُوا وَيُلْهِهِمُ الْأَمَلُ﴾ تاسو ﷺ [ په دنیا کښې ددوئ د کفر باندې غم مه کوئی او] هغوئ په خپل حال باندې همدغه شان پریږدئی چې ښه خوراکونه کوی او په مزو کښې اوسیږی او خیالی منصوبې ئې په غفلت کښې ساتلی لری ﴿فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ﴾ دوئ ته به اوس [ په مړ کیدو سره] حقیقت معلومیږی [ دوئ ته د کفر او د بدعملئ سزا چې سمدستی نشی ورکولې دهغې وجه داده چې الله ﷻ د سزا نیته ټاکلې ده چې اوس ، لا نه ده راغلې] ﴿وَمَا أَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ إِلَّا وَلَهَا كِتَابٌ مَعْلُومٌ﴾ او مونږ چې څومره آبادیانې [دکفر په وجه هلاکې کړې دی هغې ټولو دپاره یوه ټاکلې نیټهٔ لیکلې شوې او راغلې ده ﴿مَا تَسْبِقُ مِنْ أُمَّةٍ أَجَلَهَا وَمَا يَسْتَأْخِرُونَ﴾ او [زمونږ اصول دادی چې] هیڅ یو امت د خپلې ټاکلې نیټې نه وړاندې هلاك شوې نه دی او نه روستو پاتې شوی دی [بلکه په مقرر وخت باندې هلاك شوی دی دغه شان په وخت به دوئ ته هم سزا ورکولې شی] ۵

## معارف او مسائل

﴿ذَرْهُمْ يَأْكُلُوا﴾ څخه معلومه شوه چې خوراك څکاك خپل اصل مقصد او اصلی کار جوړول او ددنیوی مزو په وجه د مرګ څخه بې غمه کیدل او په اوږدو منصوبو کښې اخته کیدل صرف د کافرانو کارکیدې شی ولې چې هغوئ په حساب ،کتاب او جزاء ، سزا باندې ایمان نه لری. مؤمن هم اګر چې خوراك څکاك کوی دژوند تیرولو ضروری سامان ځان دپاره تیاروی او راتلونکې کار دپاره منصوبې هم جوړوی خو دمرګ او آخرت د فکر څخه په غافله کیدو سره دا کار نه کوی ، هم دغه وجه ده چې په هره موقعه د حلالو ، حرامو فکر کوی ، په فضول منصوبو جوړولو باندې وخت نه تیروی . او نبی اکرم ﷺ فرمائیلی دی چې څلور څیزونه د بدبختئ او بد نصیبئ نخښې دی .

① یو دا چې سترګو څخه اوښکې نه جاری کیږی ② دویم د زړهٔ سختوالې ③ دریمه نخښهٔ اوږدې منصوبې جوړلو او ④ څلورمه دا چې ددنیا لالچ او حرص .[ قرطبی د مسند بزار د انس ؓ څخه].([1])

د طول امل مطلب دادې چې ددنیا په حرص او مینه کښې دومره ورډوبشت شی[ورننوځی] چې مرګ او آخرت څخه بې پرواه کیدو سره ډیرې اوږدې اوږدې منصوبې جوړوی .[قرطبی].([2]) کومې منصوبې چې دینی مقصدونو یا د یو قوم او ملك د راتلونکو فائدو په غرض ترلې شی هغه په دې کښې داخلې نه دی ، ولې چې دا هم د آخرت د فکر کولو یو صورت دې . نبی اکرم ﷺ فرمائیلی دی چې ددې امت د رومبئ ډلې خلاصې به پدې وجه وی چې کامل ایمان به لری او دنیا څخه به مخ اړوی . او د آخری ډلې هلاکت بهٔ ځکه وی چې بخیلی او طول امل کښې بهٔ ګرفتار وی .

[1]) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة[ ج:۱۰ص:۲]
[2]) تفسیر القرطبی [ ج:۱۰ص:۳،۲]

د ابو الدرداء رضي الله عنه څخه منقول دی چې هغوئ رضي الله عنه د دمشق دجامع مسجد په منبر باندې اودریدل او وې فرمائیل چې ائې د دمشق خلقو! تاسو به دیو همدرد و خیرخواه رور خبرې آؤرئې. نو واؤرئې چې ستاسو څخه وړاندې ډیر خلق تیر شوی دی، چا چې مال، سامان، ډیر جمع کړو او د لوئې لوئې شان محلونه ئې جوړ کړل، ډیرې اوږدې اوږدې منصوبې ئې جوړې کړې، نن هغوئ ټول هلاك شو. د هغوئ مکانونه اوس دهغوئ قبرونه جوړ شوی دی. او د هغوئ اوږده امیدونه ټولې تګئ او دهوکې ثابتې شوې دی. ستاسو په خوا کښې چې عادیان اوسیدل، هغوئ ټول ملك د خپلو خلقو هر قسم مال، سامان، وسلې او اسونو څخه ډك کړې وو. څوك شته چې دهغوئ میراث رانه په دوه درهمه واخلی؟

حسن بصری رحمه الله اوفرمائیل چې څوك په خپل ژوند کښې اوږده اوږده امیدونه لری دهغه عمل ضرور خرابیږی. [قرطبی].(۱)

| |
|---|
| وَقَالُوْا |
| اووایې دا خلق |
| اودوئ وائی |
| يَاَيُّهَا الَّذِیْ نُزِّلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ اِنَّكَ لَمَجْنُوْنٌ ۞ لَوْمَا تَاْتِيْنَا |
| اے هغه سړیه \| چې نازل شوې دې \| په هغه باند \| ذکر \| بیشکه ته \| خامخا لیونې ئې \| ولې نه راولې ته |
| چې ائې هغه سړیه! چې په تا قران نازل شوې دې \| ته خو تیار لیونې یې \| که چرې ته رشتینې یې |
| بِالْمَلٰٓئِكَةِ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ۞ مَا نُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِكَةَ اِلَّا بِالْحَقِّ |
| فرښتې \| که چرې ئې ته \| دصادقانو نه \| نه نازلوؤ مونږ \| فرښتې \| مګر \| دحق سره |
| نو مونږ ته فرښتې ولې نه راولې \| ...[ورته اووایه] مونږ فرښتې صرف په حقې خبرې سره رالیږو |
| وَمَا كَانُوْٓا اِذًا مُّنْظَرِيْنَ ۞ |
| اونه به وی دا خلق \| په دغه وخت کښی \| مهلت ورکړې شوی \| |
| اوهغه وخت به دوئ ته هیڅ مهلت نشي ورکولې |

**آسان ترجمه قرآن**

او دا خلق وائی چه: اې هغه سړیه په چا باندې چه دا ذکر (یعنی قرآن) نازل کړې شوې دې ته یقینی لیونې ئې. که ته واقعی رشتینې ئې نو مونږ ته ملائک ولې نه راولې؟ مونږ چه ملائک رالیږو نو برحق فیصلې ورکولو سره ئې رالیږو، او که داسې وې نو هغوی ته به مهلت هم نه وې ملاؤ شوې.

**خلاصه تفسیر**

[ ﴿اِلَّا بِالْحَقِّ﴾ کښې د ،الحق، نه مراد یا خو دعذاب فیصله کول دی او ځینې مفسرینو ددې مراد قرآن پاك یا پیغمبری ګرځولې ده، خو بیان القرآن رومبئ معنی غوره کړې ده چې دحسن بصری رحمه الله نه منقول ده .(۲) د آیتونو تفسیر دادې:] ﴿وَقَالُوْا﴾ او [ دمکې ] دې کافرانو [ رسول

۱) تفسیر القرطبي تحت هذه الآية [ج:۱۰ص:۳]

۲) بیا ن القرآن تحت هذه الآية [ج: ۶ ص:۲۱]

اکرم ﷺ ته] داسې اووئیل ﴿يَأَيُّهَا الَّذِي نُزِّلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ إِنَّكَ لَمَجْنُونٌ﴾ اۓ هغه سړیه چې دربانديې [ستاسو د دعوې په جوړ] قرآن پاك نازل کړې شوې دې، تاسو ﷺ [نعوذ باالله] لیونی یې [او د پیغمبرۍ دعوی مو په غلطه ده کړی] ﴿لَوْ مَا تَأْتِينَا بِالْمَلَائِكَةِ إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ﴾ که تاسو ﷺ [په دې دعوی کښې] ریښتونی یې نو مونږ له فرښتې ولې نه راولې [چې زمونږ په وړاندې ستاسو ﷺ دریښتینولۍ ګواهی ورکړی لکه بل ځائې کښې چې قرآن پاك فرمائي ﴿لَوْلَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مَلَكٌ فَيَكُونَ مَعَهُ نَذِيرًا﴾ (۱) الله ﷻ ددې جواب داسې ورکوی چې] ﴿مَا نُنَزِّلُ الْمَلَائِكَةَ إِلَّا بِالْحَقِّ﴾ مونږ فرښتې [د دوئ دخواست په طریقه] صرف د فیصلې کولو دپاره نازلوؤ او [که داسې وې نو] ﴿وَمَا كَانُوا إِذًا مُّنظَرِينَ﴾ دغه وخت به دوئ ته مهلت هم ورکولې نشی [بلکه د حالاتو نه په نازلولو سره ئې هم ایمان نه راوړلې څنګه چې ددوئ د حالاتو نه یقینا هم دا معلومیږی نو سمدستی به هلاك کړې شوی وو څنګه چې د سورة انعام د ړومبۍ رکوع په آخری آیتونو کښې ددې وجه بیان کړې شوې ده]

| إِنَّا | نَحْنُ | نَزَّلْنَا | الذِّكْرَ | وَإِنَّا | لَهُ | لَحَافِظُونَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه مونږه | | نازل کړې دې | دا ذکر | او بیشکه مونږه | هغه لره | خامخا حفاظت کونکی یو |
| بیشکه دا قرآن مونږ نازل کړې دې او هم مونږ د دې حفاظت کونکی یو | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

**حقیقت دا دې چه دا ذکر (یعنی قرآن) مونږ نازل کړې دې، او هم مونږ د دې حفاظت کونکی یو.**

## خلاصه تفسیر

﴿إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ﴾ مونږ قرآن پاك نازل کړې دې [دا هسې بې دلیله دعوی نه ده بلکه ددې عاجزه کول ددې خبرې دلیل دې او دقرآن پاك یو قسم عاجزه کول په نورو سورتونو کښې په دې شان بیان شو یدی چې څوك انسان ددې د یو سورت پشان نشی جوړولې، دبل قسم عاجزه کول ئې داسې دی چې] ﴿وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ﴾ مونږ ددې [قرآن پاك] حفاظت کوؤنکی [او څارنه کوؤنکی] یو [په دې کښې څوك کمې زیاتې نشی کولې څنګه چې په نورو کتابونو کښې کیدیشی، دایو داسې ښکاره معجزه ده چې هر خاص و عام پرې پوهیږی، په ړومبۍ معجزه باندې [چې د قرآن پاك د فصاحت او بلاغت او دجامعیت څوك مقابله نشی کولې] صرف د علم خاوندان پوهیدې شی خو په دې کښې د کمی زیاتی نه راتلو معجزه ئې هر څوك [یعنی نا لوستې او جاهل] هم وینی ګوری.

## معارف او مسائل

**د مامون د دربار یوه عجیبه واقعه::** دلته امام قرطبی په متصل سند سره د امیر المؤمنین مامون الرشید د دربار یوه واقعه نقل کړې ده، هغه داسې ده چې کله کله به ددوئ دربار کښې په علمی مسئلو بحث او مباحثې او مذاکرې کیدلې. او هغې ته به هر قسم عالم راتلې شو. یو خل دربار ته یو یهودی راداخل شو او د هغه شکل و شباهت او جامې وغیره داسې وې چې یو

---

(۱) ترجمه:-دوئ ته یوه فرښته ولې او نه لیږلې شوه چې دوئ سره وې او دوئ ئې ویرولې وې.(الفرقان:۷)

ښه سرې معلومیدو. کله چې ئې خبرې شروع کړې نو ښه د عقل مندئې خبرې ئې کولې. کله چې مجلس ختم شو نو مامون راؤغوښتلو او تپوس ئې ترې اوکړو چې ته اسرائیلی یئ؟ هغه اقرار اوکړو چې آؤ. مامون ورته د آزمیښت په طور اووئیل چې که ته مسلمان شوې نو مونږ به تاسره ښه سلوك اوکړو. هغه جواب کښې اووئیل چې د خپلو مشرانو دین هیڅکله نه پرېږدم. کله چې خبرې اترې ختمې شوې نو دغه کس لاړو او یو کال پس بیا راغلو او مسلمان شوې وو. او هم په دغه مجلس کښې ئې د اسلامی فقهې په موضوع ئې ډیر ښکلې تقریر او کړو او اعلی قسم تحقیقات ئې وړاندې کړل. کله چې مجلس ختم شو نو مامون راؤبللو او ورته ئې اووئیل چې ته هغه کس نه یئ چې تیر شوی کال هم راغلې وې؟ هغه اووئیل چې زه هم هغه کس یم. مامون ورته اووئیل چې تا خو هغه وخت د اسلام قبلولو نه انکار کړې وو. اوس څنګه مسلمان شوې؟ هغه اووئیل چې هغه وخت ددې ځائې نه لاړم نو د موجوده مذهبونو د تحقیق اراده مې اوکړه.زه یو اوچت کاتب او اعلی خوشنویس یم. زما د لاس لیکلی کتاب په ډیر ښه قیمت خرڅیږی ، د آزمیښت په غرض مې د تورات درې نسخې اولیکلې ، ډیرو ځایونو کښې مې ئې تبدلی اوکړه چې د یهودیانو عبادت خانې ته مې یوړل ، نو یهودیانو رانه په ډیر ښه قیمت سره واخستل. دغه شان درې نسخې د انجیل مې هم اولیکلې او په هغې کښې مې هم د ځانه بدلون راوستو. کله چې د نصراؤ ګرجې ته ورغلم نو هغوئ رانه په ښه قیمت واخستې. بیا هم دغه شان مې د قرآن عظیم الشان درې نسخې مې اولیکلې ، کله چې بۀ مې یو مسلمان ته د خرڅولو دپاره وړاندې کړې نو کله چې به هغه په دې کښې کمې زیاتې اولیدلو نو ماته به ئې واپس کړې. په دې بنا ماته اندازه اوشوه چې دا کتاب محفوظ دې. او ددې حفاظت صرف او صرف الله تعالی کوی.

ددې واقعې راوی قاضی یحیی بن اکثم فرمائی چې ناګهانه په دغه کال زه حج ته لاړم هلته مې سفیان بن عینیه سره ملاقات اوشو ، چې دا قیصه مې ورته واؤروله نو وې فرمائیل چې داسې کیدل پکار وو ځکه چې په قرآن عظیم الشان کښې ددې تصدیق راغلې دې. یحیی بن اکثم ترې تپوس اوکړو چې هغه آیت کوم یو دې؟ نو هغه اوفرمائیل چې قرآن عظیم الشان د تورات اوانجیل د بیان کولو نه پس فرمائیلی دی چې :

﴿بِمَا اسْتُحْفِظُوا مِن كِتَابِ اللهِ﴾ [یعنی یهودو او نصاراؤ ته د کتاب الله تورات او انجیل ]د حفاظت کولو ذمه واری حواله شوې ده همدغه وجه ده چې کله یهود او نصرانیان د حفاظت ذمه داری ادا نه کړی نو دغه کتابونه کډوډ کیدو او بدلیدو سره ضائع شو ، خو د قرآن عظیم الشان په باره کښې الله ﷻ فرمائی چې : ﴿وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ﴾[هم مونږ ددې حفاظت کوؤونکی یو] هر کله چې د قرآن عظیم الشان حفاظت الله ﷻ پخپله کوی[1] نو د دښمنانو د هر قسم کوششونو باوجود ددې په یوه نقطه او یو زور اوزیر کښې فرق رانغلو. د پیغمبرئ د زمانې نه تر څوارلس کاله پس پورې هم په ټولو دینی او اسلامی کارونو کښې د مسلمانانو د کوتاهئ او غفلت باوجود د قرآن عظیم الشان د حفظ کولو سلسله د ټولې دنیا په مشرق او مغرب کښې هم هغسې قائمه ده. په هره زمانه کښې په لکهونو نه بلکه کروړونو مسلمانان ځوانان ، بوډاګان ، هلکان ،

[1]) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة [ ج:۱۰ص:۵،۶]

جینکۍ داسې موجود وی چې په سینو کښې ئې پوره قرآن پاك محفوظ دې . لوئې نه لوئې عالم هم ددې د یو حرف غلط وئیلو وس نه لری ، که داسې اوشو نو ډیر مشران ، کشران ، ماشومان او لوئې مسلمانان به ددۀ غلطی اونیسی .

**د قرآن پاك د حفاظت وعده د حفاظت د حدیث دپاره هم ده ::** ټول اهل علم په دې خبره متفق دی چې قرآن عظیم الشان یوازې د الفاظو نوم نه دې اونه یوازې د معنو نوم دې بلکه په یو ځائې دې دواړو ته قرآن عظیم الشان وئیلې شی . ولې چې د قرآن عظیم الشان معنې او مضمونونه خو په نورو کتابونو کښې هم موجود دی او اسلامی تصنیفونو کښې خو عموماً قرآنی مضمونونه وی خو قرآن عظیم الشان ورته نشی وئیلې ولې چې د قرآن عظیم الشان الفاظ ورسره یو ځائې نه وی . دغه شان که څوك د یو ځائې بل ځائې نه خالص د قرآن کریم جملې او الفاظ راجمع کړی او ددې نه مقاله یا رساله جوړه کړی نو هغې ته هم قرآن عظیم الشان نشې وئیلې اګر چې ددې یو لفظ هم د قرآن عظیم الشان نه بهر نه وی ، دې نه معلومه شوه چې قرآن عظیم الشان یوازې د ربانی مصحف نوم دې چې الفاظ او معنی ئې په یو ځائې سره محفوظ دی .

هم دې نه دا مسئله هم معلومه شوه چې په انګریزی یا اردو وغیره کښې د قرآن عظیم الشان صرف لیکلې ترجمې ته قرآن وئیل ناروا دی ځکه چې دې سره د قرآن عظیم الشان الفاظ نشته دې . په دې بنا څنګه چې د قرآن عظیم الشان د الفاظو د حفاظت ذمه داری الله ﷻ اخستې ده . هغې سره ئې دمعنو د حفاظت ذمه داری هم پخپله ذمه اخستې ده .

د ابښکاره خبره ده چې د قرآن عظیم الشان معناګانې هغه دی چې د هغې تعلیم ورکولو دپاره رسول کریم ﷺ رالیږلې شوې دې . لکه قرآن عظیم الشان پخپله فرمائی چې : ﴿لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ﴾ [تاسو دې دپاره لیږلې شوی یئ چې تاسو خلقو ته ددې کلام مفهوم او مطلب بیان کړئی چې ددوئ دپاره نازل کړې شودې]

او هم د غه معنې ددې آیت هم دی چې : ﴿وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ﴾(۱) او په دې وجه رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې ﴿انما بعثت معلما﴾(۲) [زه دمعلم په حیثیت سره لیږلې شوې یم] او کله چې رسول کریم ﷺ لره د قرآن عظیم الشان د معنو بیانولو او ددې د خودلو دپاره رالیږلې شوې دی نو د رسول کریم ﷺ خودلې قولونو او فعلونو ته حدیث وئیلې کیږی د کوم په ذریعه ئې چې امت ته تعلیم ورکړې دې .

**څوك چې د نبی کریم ﷺ مطلق احادیثو ته محفوظ نه وائی هغه په حقیقت کښې قرآن کریم ته محفوظ نه وائی ::** څوك چې نن صبا خلق په دې غلطوی چې د احادیثو کومه ذخیره چې په مستندو کتابونو کښې موجوده ده ، هغې لره ځکه اعتبار نشته دې چې دا د رسول کریم ﷺ د زمانې مبارکې نه ډیر روستو په کتابی شکل کښې راجمع کړې شوی دی . اول خو ددوئ داسې وئیل هم غلط دی ځکه چې د احادیثو حفاظت او لیکل پخپله د هغوئ په زمانه کښې شروع شوی وو ، او روستو ئې تکمیل شوې دې . دې نه سوا د رسول کریم ﷺ حدیث پاك په حقیقت کښې

---

(۱) ترجمه:-د کتاب او حکمت خبرې ورته وائی.

(۲) سنن ابن ماجة، باب فضل العلماء والحث على طلب العلم رقم الحديث:[۲۲۹] و سنن الدارمی کتاب العلم ، باب فی فضل العلم والعالم رقم الحديث[۳۶۱].

د قرآن عظیم الشان معنې او تفسیر دی ، په دې بناء ددې د حفاظت ذمه هم الله ﷻ اخستې ده بیا دا څنګه کیدې شی چې د قرآن عظیم الشان صرف الفاظ دې محفوظ پاتې شی او معنی دې ئې ضائع شی.

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ

| او بیشکه لیږلی دی مونږه | مخکښې ستانه

اوبیشکه مونږ ستا نه وړاندې ............ |

فِيْ شِيَعِ الْاَوَّلِيْنَ ⑩ وَمَا يَأْتِيْهِمْ مِّنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا كَانُوْا بِهٖ

په ډلودړومبنو خلقوکښې | اونۀ به راتلوهغوئ ته | یورسول | مګر | وو به هغوئ | چې په هغه پورې به ئې

پخوانو خلقو ته هم پیغمبران لیږلی وو | اهغوی ته چې به کوم پیغمبر هم راغلو نو هغوی به ورپورې

يَسْتَهْزِءُوْنَ ⑪ كَذٰلِكَ نَسْلُكُهٗ فِيْ قُلُوْبِ الْمُجْرِمِيْنَ ⑫ لَا يُؤْمِنُوْنَ

توقې کولې | ادارنګې | ورننباسومونږه داذکر | په زړونودمجرمانو کښې | هغوئ ایمان نۀ راوړی

توقې کولې | دغه شان مونږ دا [توقې] د هغه مجرمانو په زړونو کښې ورننباسو | کوم چې په

بِهٖ وَقَدْ خَلَتْ سُنَّةُ الْاَوَّلِيْنَ ⑬ وَلَوْ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَابًا

په دې باند | اوتیره شوی ده | طریقه | دړومبنوخلقو | اوکه پرانستې وې مونږه | په هغوئ | یوه دروازه

[قران پاک] ایمان نه راوړی | اودپخوانو خلقو نه داسې طریقه راروانه ده | اوکه مونږ دوئ ته

مِّنَ السَّمَاۤءِ فَظَلُّوْا فِيْهِ يَعْرُجُوْنَ ⑭ لَقَالُوْٓا اِنَّمَا

داسمان نه | اوشروع کړی وه هغوئ | په هغې کښې | چې بره ختلې | نوخامخا به ئې ونیلی وو | بیشکه

داسمان دروازې پرانیزو | او دوئ په هغې کښې بره اوخیژی | ........نوبیا به هم دوی دا وائی چې

سُكِّرَتْ اَبْصَارُنَا بَلْ نَحْنُ قَوْمٌ مَّسْحُوْرُوْنَ ⑮

چې ترلې شوی دی یعنی دوکه کیږی | سترګې زمونږه | بلکه | مونږه | قوم یو | چې جادوراباندشوې دي

زمونږ نظر بندی اوکړې شوه | .........بلکه په مونږ خو جادو شوې دي

## آسان ترجمه قرآن

او (اې پیغمبره!) مونږ ستا نه مخکښې هم په تیرو قومونو کښې په مختلفو ډلو کښې خپل پیغمبران لیږلې دي. او هغوی ته به هیڅ یو رسول داسې نه راتلو چه په هغه پورې به هغوی توقې او مسخرې نه کولې. د مجرمانو خلقو په زړونو کښې دا خبره مونږ هم داسې داخلوو چه هغوی په دې باندې ایمان نه راوړی. او د مخکښې خلقو هم دا طریقه راروانه ده. او که (بالفرض) مونږ د هغوئ دپاره د آسمان یو دروازه پرانیزو، او هغوئ (اهل مکه) د ورځې په رڼرا کښې هغې ته اوخیژی هم نو بیا به هم دا وائی چه زمونږ نظر بند کړې شوې دي، بلکه مونږ د جادو په اثر کښې راغلي یو.

**ځینو لفظونو معنې:** ﴿شِيَعِ﴾ د شیعة جمع ده ، معنی ئې تابعدار او مددګار ده او د اسې ډلې ته هم وئیلې شی چې په خاصو عقیدو او نظریو باندې اتفاق لری ، مراد دادې چې مونږ په هرې ډلې او ټولې کښې دننه رسولان لیږلی دی.

د الی په څانې کښې فی راوړلو کښې دې ته اشاره ده چې هرې ډلې ته مو هم ددغې ډلې څخه رسول لیږلې دې. چې خلق پرې په آسانه اعتبار کولې شی ، او رسول کریم ﷺ هم د هغوئ د طبیعتونو نه د واقف کیدو په وجه د هغوئ د اصلاح اوښیګړې دپاره مناسب پروګرام جوړولې شی.

**خلاصه تفسیر**

﴿وَلَقَدۡ أَرۡسَلۡنَا مِن قَبۡلِكَ فِي شِيَعِ ٱلۡأَوَّلِينَ﴾ او [ اې محمد ﷺ دوئ چې تاسو لره دروغژن بولی نو غم مه کوئی ځکه چې تولو پیغمبرانو ﷺ سره په مخه هم داسې شوی دی نو] مونږ تاسو نه وړاندې هم پیغمبران ﷺ د وړاندینو خلقو په ډیرو ډلو کښې لیږلی وو[ او دهغوئ د احالت وو] ﴿وَمَا يَأۡتِيهِم مِّن رَّسُولٍ إِلَّا كَانُواْ بِهِۦ يَسۡتَهۡزِءُونَ﴾ چې څوك رسول ﷺ هغوئ ته داسې نه وو راغلې چې ورپورې هغوئ خندا نه وی کړې [چې د دروغژن کولو زیات خراب قسم دې نو ځنګه چې ددغې خلقو په زړونو کښې داخندا پیدا شوی وه] ﴿كَذَٰلِكَ نَسۡلُكُهُۥ فِي قُلُوبِ ٱلۡمُجۡرِمِينَ﴾ دغه شان مونږ دا خندا کول د هغه مجرمانو [یعنی دمکې مکرمې دکافرانو] په زړونو کښې اچوؤ [ چې دهغې په وجه] ﴿لَا يُؤۡمِنُونَ بِهِۦ وَقَدۡ خَلَتۡ سُنَّةُ ٱلۡأَوَّلِينَ﴾ دا خلق په قرآن عظیم الشان باندې ایمان نه راوړی او دا دستور هم د رومبو نه په مخه راروان دې [ چې پیغمبران ﷺ به ئې دروغژن بلل ، نو تاسو غم مه کوئی] ﴿وَلَوۡ فَتَحۡنَا عَلَيۡهِم بَابٗا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ﴾ او [ددوئ د ضد شان دادې چې د آسمان نه دفرښتو راتلل خو پریږده ددې نه زیات] که پخپله آسمان ته په دې شان اولیږلې شی چې ] مونږ دوئ دپاره په آسمان کښې دروازه پرانیزو ، ﴿فَظَلُّواْ فِيهِ يَعۡرُجُونَ﴾ بیا به دوئ د ورځې په وخت [ چې په کښې د خوب او پرکالئ وغیره شبه نه وی] ددغې [ دروازې] نه [یعنی دهغې په لار آسمان ته] اوخیژی ، ﴿لَقَالُوٓاْ إِنَّمَا سُكِّرَتۡ أَبۡصَٰرُنَا بَلۡ نَحۡنُ قَوۡمٞ مَّسۡحُورُونَ﴾ بیا به هم داسې وائی چې زمونږ نظر بندی کړې شو ې وه [ چې هسې راته آسمان ته ختل ښکاری لیکن په حقیقت کښې ختل نه دی [ بلکه [یوازې نظر بندی خو لا څه کوې ] په مونږ خلقو خو بالکل جادو شوې دې [ که مونږ ته ددې نه زیاته معجزه اوخودلې شی هغه به هم په واقع کښې معجزه نه وی].

| وَلَقَدۡ جَعَلۡنَا | فِي ٱلسَّمَآءِ | بُرُوجٗا | وَزَيَّنَّٰهَا | لِلنَّٰظِرِينَ |
|---|---|---|---|---|
| اوخامخا جوړې کړې مونږه | په آسمان کښې | مضبوط قلاګانې | اوښائیسته کړې مونږه هغه | دپاره دکتونکو |
| اومونږ په آسمان کښې غټ غټ ستوری جوړ کړی دی \| اوهغه مود کتونکو دپاره ښائسته کړی دی | | | | |

**آسان ترجمه قرآن**

**اومونږ په آسمان کښې ډیر برجونه جوړ کړې دی، او هغه مو د کتونکو دپاره ډولی کړې دې.**

**خلاصه تفسیر**

په ذکر شوؤ آیتونو کښې د منکرانو د ضد بیان وو او س په دې آیتونو کښې د الله ﷻ د دوجود ، توحید ، علم ، قدرت او ښکاره دلیلونه د آسمان زمکې او ددې تر مینځه د مخلوقاتو اومشاهداتو بیان کړې شوی دی . که هغې ته لږ شان ژور نظر اوکړې شی نو د عقل هیڅ خاوند به ترې انکاراونه کړې شی فرمائی: ﴿وَلَقَدۡ جَعَلۡنَا فِي ٱلسَّمَآءِ بُرُوجٗا﴾ اوبیشکه مونږ په آسمان کښې لوئې لوئې ستوری پیدا کړل ﴿وَزَيَّنَّٰهَا لِلنَّٰظِرِينَ﴾ اوکتونکو دپاره مو آسمان [په ستوروسره] ښائسته کړو.

## معارف او مسائل

﴿بُرُوْجًا﴾ دبرج جمع ده چې لوئې محل اوقلاګانو وغیره ته وئیلې شي. دتفسیر امامانو، مجاهد رحمه الله، قتاده رحمه الله، ابو صالح رحمه الله وغیره دلته د ﴿بُرُوْج﴾ تفسیر په لويو ستورو سره کړې دې، دلته چې په آسمان کښې د ستورو پیدا کیدل بیان شوی دی دهغې څخه مراد آسماني فضا ده چې دنن صبا په اصطلاح کښې ورته خلا وئیلې شي. د سماء اطلاق په دواړ معنو کښې عام او معلوم دې. د آسمان ذات ته هم سماء وئیلې شي. اود آسمان نه ډیره ښکته آسماني فضا او خلا ته هم ځائې په ځائې په قرآن عظیم الشان کښې سماء وئیلې شوی دی. د سیارو او ستورو په آسمان کښې نه بلکه په آسماني فضا کښې کیدل او ددې مکمل تحقیق د قرآني آیتونو د قدیم او جدید علم فلکیات تر مخه انشاء الله د سورة فرقان د آیت ﴿تَبٰرَكَ الَّذِيْ جَعَلَ فِي السَّمَآءِ بُرُوْجًا وَّجَعَلَ فِيْهَا سِرٰجًا وَّقَمَرًا مُّنِيْرًا﴾ په تفسیر کښې به راشي.

| وَحَفِظْنٰهَا | مِنْ كُلِّ شَيْطٰنٍ | رَّجِيْمٍ | اِلَّا مَنِ | اسْتَرَقَ | السَّمْعَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اومحفوظ کړې مونږه هغه | دهر شیطان | رټلی شوی نه | سوادهغه شیطان نه | چې غلاکړي | خبره |
| اوهغه مو دهر رټلی شوی شیطان نه محفوظ کړې دی مګر څوک چې په غلا خبره آور یدل غواړي | | | | | |
| فَاَتْبَعَهٗ | شِهَابٌ | مُّبِيْنٌ | | | |
| نو وریسې شي په هغه پسې | شعله | روښانه | | | |
| نو روښانه شعله وریسې شي | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

**او هغه مو د هر مردود شیطان نه محفوظ کړې دې، څوک چه څوک په غلا بآندې د اوریدلو کوشش کوي نو یو روښانه شعله هغه پسې ورځي.**

## خلاصه تفسیر

﴿وَحَفِظْنٰهَا مِنْ كُلِّ شَيْطٰنٍ رَّجِيْمٍ﴾ آسمان مو [دستورو په ذریعه] د هرشیطان رټلی شوی نه محفوظ کړو [چې هلته پورې د وئ رسیدل نشی کیدې] ﴿اِلَّا مَنِ اسْتَرَقَ السَّمْعَ﴾ مګر څه خبره [د فرښتو چې] په غلا آوریدو سره په تیښته شي ﴿فَاَتْبَعَهٗ شِهَابٌ مُّبِيْنٌ﴾ نو وریسې یوه روښانه شعله وی [ اودهغې اثر نه هغه شیطان هلاك یا اوتر شي ] .

## معارف او مسائل

**شهاب ثاقب:** دې آیتونو څخه یو خوا دا ثابته شوه چې آسمانونو ته د شیطان رسیدل نشی کیدې، د آدم علیه السلام د پیدا کیدو په وخت چې ابلیس ملعون په آسمانونو کښې وو، او آدم علیه السلام او حوا علیها السلام لره دهوکه کول وغیره دهغه وخت واقعات دی چې آدم علیه السلام زمکې ته نه وو راکوز شوي. تر دغې وخت پورې د پیریانو او شیطانانو په آسمانونو کښې داخلیدل منع نه وو. کله چې آدم علیه السلام زمکې ته راکوز شو او شیطان هم د آسمانونو څخه راوښکلې شو نو هله د دوئ داخلیدل په آسمانونو کښې بند شو. سورة جن کښې چې داسې راغلی دی: ﴿وَّاَنَّا كُنَّا

﴿نَقْعُدُ مِنْهَا مَقَاعِدَ لِلسَّمْعِ ۖ فَمَنْ يَسْتَمِعِ الْآنَ يَجِدْ لَهُ شِهَابًا رَصَدًا﴾[1] نو دې څخه دا معلومېږي چې د نبی اکرم ﷺ د پیغمبر کیدو څخه وړاندې پورې به شیطانانو د آسمانونو هغه خبرې آوریدلې چې فرښتو به هلته خپل مینځ کښې کولې دې څخه دا لازمی طور نه ثابتیږي چې آسمانونو کښې په داخلیدو به ئې دغه خبرې آوریدلې بلکه د : ﴿نَقْعُدُ مِنْهَا مَقَاعِدَ الخ﴾ څخه دا مطلب راخیژي چې په آسمانی فضا کښې به هلته د غلو پشان کیناستل چرته به چې وریځې وې او آوریدلې به ئې ددې الفاظو څخه پخپله هم داسې ښکاري چې د نبی اکرم ﷺ د پیغمبر کیدو څخه وړاندې هم د پیریانو او شیطانانو داخله په آسمانونو کښې بنده وه ، مگر آسمانی فضا ته به رسیدو به ئې په غلا څه آوریدل،د پیغمبرکیدو څخه روستو ئې د وحی دحفاظت زیات انتظام دااوشو چې شیطانان ددغې غلا کولو څخه هم د شهاب ثاقب په ذریعه ایسار کړې شو.

دا سوال پیدا کیدې شی چې آسمان څخه ښکته به شیطانانو د فرښتو خبرې په څه شان آوریدلې شوې ؟، نو دا څه ناممکنه څکه نه ده کیدې شی چې د آسمانونو د أجرام د خبرو آوازونه اوریدلو دپاره نشی مانع کیدلې. اودا هم کیدې شی چې څه وخت فرښتې د آسمانونو ښکته هم خپل مینځ کښې خبرې کوی نو شیطانان به ئې په غلا باندې د آوریدو څخه روستو هلته نه تښتې. صحیح بخاری کښې د عائشه صدیقه رضی الله عنها دحدیث څخه ددې تائید کیږي چې فرښتې کله خو د آسمان څخه لاندې وریځو ته راښکته کیږي او آسمانی خبر خپل مینځ کښې کوی. شیطانانو به هلته په پټه دا خبرې آوریدلې چې هغه هم د شهاب ثاقب په ذریعه بندې کړې شوې. ددې پوره تفصیل به انشاء الله په سورهٔ جن کښې د ﴿وَأَنَّا كُنَّا نَقْعُدُ مِنْهَا مَقَاعِدَ لِلسَّمْعِ﴾ په تفسیر کښې راشي.

**دویمه مسئله** په دې آیتونو کښې د شهاب ثاقب ده ، د قرآن عظیم الشان د ارشاداتو څخه معلومیږي چې د وحی د حفاظت په غرض دا شهاب ثاقب د شیطانانو د ویشتلو دپاره پیداکیږي شیطانان په دې تمبولې شی چې هغوئ د فرښتو خبرې واؤ نه ړی.

دلته یو قوی او مضبوط اشکال دا راپورته کیږي چې هر کله شهابونه څه نوی څیزونه نه دی بلکه د نبی اکرم ﷺ د پیغمبر کیدو څخه مخکښې هم دا موجود وو او اوس هم شته دې نو څنگه وئیلې شی چې دا دشیطانانو د ویشتلو او په شا باندې د تمبولو دپاره کیږي دکله څخه چې نبی اکرم ﷺ پیغمبر شو ؟ دې څخه خو ښکاره د فلسفیانو خیال مضبوط ثابتیږي چې په کوم کښې د شهاب ثاقب حقیقت دا بیان شوې دې چې دا د نمر د تاؤ څخه پیدا کیدونکې هغه براس دې چې زمکې څخه پورته کیږي او په کښې اور نیوونکې ماده شامله وی کله چې پورته اوخیژي نو دنمر یا د بل څیز د زیاتې گرمئ څخه هغه اور واخلی او خلقو ته دا ښکاری چې څه ستورې مات شوې دې څنگه چې په محاورو کښې ورته ستورې ماتیدل وائی او په عربی کښې ورته هم انقضاض کوکب وائی.

جواب ئې دادې چې دا دواړه خبرې کیدې شی ، دزمکې هغه براس هم کیدې شی چې په پورته ختو سره اور واخلی او داهم کیدې شی چې د یوې سیارې یا ستوری څخه

---

[1] ) ترجمه:- او مونږ به د آوریدلو دپاره د آسمان په موقعو کښې کیناستو نو څوک چې اوس هم آوریدل غواړی نو خپل ځان دپاره یو تیاره شغله مومی.

راغورزیدونکي شغله وي ، او دا دواړه خبرې د عام عادت په جوړ دهمیشه دپاره جاري وي.
خو د نبي اکرم ﷺ د پیغمبر کیدو څخه وړاندې ددې شغلو څخه څه کار به نه اخستې کیدو ، کله چې نبي اکرم ﷺ ته پیغمبري ورکړې شوه نو دې څخه روستو ددې څخه دا کار واخستې شو چې کوم شیطانان په غلا باندې د فرښتو خبرې اورېدل غواړي هغوئ به په دې شغلو ویشتلې شي.

علامه آلوسي رحمه الله په روح المعاني کښې دا توجیه بیان کړې ده او نقل کړي یې دي چې د حدیث امام زهري رحمه الله څخه تپوس اوشو چې آیا د نبي اکرم ﷺ دپیغمبر کیدو څخه مخکښې به هم ستوري ماتیدل ؟ هغوئ رحمه الله اوفرمائیل چې آؤ ، تپوس کوونکي ورته د سورة جن دغه بیان شوې آیت مبارك په مقابله کښې پیش کړو نو وې فرمائیل چې شهاب ثاقب اگر چې وړاندې به هم وو خو په شیطانانو باندې دسختئ کولو دپاره ترې دهغوئ د تمبولو کار د نبي اکرم ﷺ دپیغمبر کیدو څخه روستو شروع شو.(۱)

د صحیح مسلم په حواله ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دې چې نبي اکرم ﷺ صحابه کرامو رضی الله عنهم په مجمع کښې موجود وو چې پدغې دوران کښې یو ستورې مات شو. نبي اکرم ﷺ خلقو نه تپوس اوکړو چې تاسو به د جاهلیت په زمانه کښې د اسلام څخه وړاندې د ستوري د ماتیدو باره کښې څه خیال لرلو؟ خلقو ورته اووئیل چې زمونږ به دا خیال راتلو چې گني یو لویه پیښه کیدونکې ده. یا بهٔ څوك لوئې بنده مړ کیږي. نبي اکرم ﷺ اوفرمائیل چې دا عبث خیال دې ، دا دچا مرگ سره تعلق نه ساتي او نه دهغه د ژوند سره تعلق ساتي ، بلکه دشیطانانو مخ په شاتمبولو دپاره ویشتلې شي.(۲)

د کلام خلاصه داده چې شهاب ثاقب باره کښې فلسفیانو چې څه وئیلي دي هغه هم قرآن عظیم الشان سره بې سمونه نه دي ، او داهم څه لرې خبره نه ده چې دا شغلې نیغ په نیغه د ځینو ستورو څخه په ماتیدو سره راغورزولې شي او په دې دواړو صورتونو کښې د قرآن عظیم الشان مقصد ثابت او واضح دې.

| فَأَتْبَعَهُ | شِهَابٌ | مُّبِينٌ ﴿۱۸﴾ | وَالْأَرْضَ | مَدَدْنٰهَا | وَأَلْقَيْنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| نو وریسې شي په هغه پسې | شغله | روښانه | او زمکه | خوره کړه مونږه هغه | او وغورزول مونږه |
| نو روښانه شغله وریسې شي | | | او مونږ زمکه خوره کړې ده | | او مونږ په دې کښې |
| فِيهَا رَوَاسِيَ | وَأَنۢبَتْنَا | فِيهَا | مِن كُلِّ شَيْءٍ | مَّوْزُونٍ ﴿۱۹﴾ | |
| په هغې کښې غرونه | او رااوغورزول مونږه | په هغې کښې | دهر ځیز | اندازه کړې شوی نه | |
| غرونه پیدا کړي دي | او په هغې کښې مو هرقسم ځیزونه په اندازه اندازه راټوکولي دي | | | | |
| وَجَعَلْنَا | لَكُمْ | فِيهَا | مَعَايِشَ | وَمَن | لَّسْتُمْ |
| او پیدا کړل مونږه | ستاسو دپاره | په هغې کښې | د ژوند تیرولو سامانونه | او دهغه چا دپاره | چې نه یئ تاسو |
| او په هغې کښې مو ستاسو دپاره د ژوند تیرولو سامان پیدا کړي دي | | | او دهغه چا دپاره هم چې تاسو د هغوی | | |

۱) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۹ ص: ٤٦٤]
۲) صحیح مسلم کتاب السلام، باب تحریم الکهانة واتیان الکهان [ج:۲ص:۲۳۲]

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَهٗ | بِرٰزِقِيْنَ۝ | وَاِنْ مِّنْ شَيْءٍ | اِلَّا عِنْدَنَا | خَزَآئِنُهٗ | |
| هغه لره | رزق ورکونکی | او نشته هیڅ څیز | مګر زمونږ سره | خزانې دهغې دی | |

دپاره د روزئ انتظام نه کوئ | او هیڅ څیز داسې نشته چې د هغې خزانې مونږ سره نه وی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا نُنَزِّلُهٗٓ | اِلَّا | بِقَدَرٍ | مَّعْلُوْمٍ۝ | وَاَرْسَلْنَا | الرِّيٰحَ لَوَاقِحَ |
| اونه نازلوؤ مونږه هغه څیز | مګر | په اندازه | معلومې سره | اوراولیږلې مونږه | هواګانې \| بار دارې |

اومونږ هغه په مناسب مقدار سره نازلوؤ | او مونږ د اوبو نه ډک بادونه رالیږو |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَاَنْزَلْنَا | مِنَ السَّمَآءِ | مَآءً | فَاَسْقَيْنٰكُمُوْهُ | وَمَآ اَنْتُمْ لَهٗ |
| نو نازلې کړې مونږه | دآسمان نه | اوبه | نوڅکوؤ مونږه په تاسو دغه اوبه | اونه یئ تاسو \| دغه اوبولره |

او مونږ د آسمان نه اوبه راوروؤ | بیا مونږ په تاسو باندې هغه اوبه څکوو | او دغه اوبه تاسو پخپله

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِخٰزِنِيْنَ۝ | وَاِنَّا لَنَحْنُ | نُحْيٖ | وَنُمِيْتُ | وَنَحْنُ الْوٰرِثُوْنَ۝ | |
| خزانه کونکی | او بیشکه خامخا مونږه | ژوندی کول کوؤ | او مړه کول کوؤ | او مونږه وارثان یو | |

راجمع کولې نشئ | او بیشکه هم مونږ ژوندی کول کوو او مړه کول کوو | اوهم مونږ وارثان یو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ عَلِمْنَا | الْمُسْتَقْدِمِيْنَ | مِنْكُمْ | وَلَقَدْ عَلِمْنَا | الْمُسْتَاْخِرِيْنَ۝ | |
| او معلوم دی مونږ ته | رومبنی خلق | ستاسو نه | او معلوم دی مونږه ته | روستو راتلونکی خلق | |

اومونږ په تاسو کښې هغه خلق پیژنو کوم چې وړاندې تیر شوی دی | او کوم چې روستو راتلونکی دی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاِنَّ رَبَّكَ | هُوَ | يَحْشُرُهُمْ | اِنَّهٗ | حَكِيْمٌ | عَلِيْمٌ۝ |
| او بیشکه رب ستا | خاص هغه | به راجمع کړی دا خلق | بیشکه هغه | حکمت والا | او پوهه دی |

اوبیشکه ستارب به د اټول راجمع کوی | هغه صاحب د حکمت دی | په هرڅه عالم دی

## آسان ترجمه قرآن

او زمکه مونږ خوره کړې ده، او د هغې د مضبوطولو دپاره مو په هغې باندې غرونه کیخودلې دی ، او په هغې کښې مو هر قسم څیزونه په توازن سره راټوکولې دی. او په هغې کښې مو ستاسو دپاره هم د روزئ سامان پیدا کړی دی، او د هغه (مخلوقاتو) دپاره هم چاته چه تاسو رزق نه ورکوئ او هیڅ (د ضرورت) څیز داسې نشته چه د هغې مونږ سره خزانې نه وی، خو مونږ هغه په یو مقرر مقدار کښې نازلوو او هغه هواګانې کومې چه وریځې د اوبو نه ډکوی، مونږ رالیږلې دی، بیا د آسمان نه مونږ اوبه نازلوو، بیا مونږ تاسو په هغې باندې خړوب کړئ اوستاسو په وس کښې دا نشته چه تاسو هغه ذخیره کړې شئ.بیشکه مونږ ژوند ورکوو، او مونږ مړه کول کوو، او مونږ د ټولو وارثان یو. او په تاسو کښې چه کوم وړاندې لاړل، هغه هم مونږ ته معلوم دی، او کوم چه شاته پاتې شو د هغوی نه هم مونږ واقف یو .او یقین ساتئ چه ستا رب به هغوی ټول په حشر کښې یو ځائې کړی، بیشکه د هغه حکمت هم لوئې دې د هغه علم هم لوئې دې.

## خلاصه تفسير

﴿وَالْأَرْضَ مَدَدْنٰهَا﴾ او مونږ زمکه خوره کړه ﴿وَأَلْقَيْنَا فِيهَا رَوَاسِيَ﴾ او په دې [زمکه کښې] مو درانه درانه غرونه واچول ﴿وَأَنبَتْنَا فِيهَا مِن كُلِّ شَيْءٍ مَّوْزُونٍ﴾ اوپه دې کښې مو د هر قسم [دضرورت پيداوار] په يو ټاکلي اندازه زرغون کړو ﴿وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيهَا مَعَايِشَ وَمَن لَّسْتُمْ لَهُ بِرَازِقِينَ﴾ او مونږ تاسو دپاره په دغه [زمکه] کښې د ژوند سامانونه جوړ کړل [چې د ژوند ټول ضرورتونه په کښې داخل دی کوم چې خوراك څکاك] اغوستنې او استوګنې دپاره پکارولې شی] او [دا د ژوند تيرولو سامان او دژوند ضرورتونه مو يوازې تاسو ته درنه کړل بلکه] هغو [څيزونو] ته مو ورکړل چاته چې تاسو روزی نه ورکوئ [يعني د رزق رسولو خوراك، څکاك او ژوند تيرولو سامان په ظاهره چې ستاسو په لاس کښې نه دې، دلته مو په ظاهره څکه اووئيل چې اګر که د ټول مخلوق روزی او دژوند تيرولو سامان د الله ﷻ د طرفه دې ليکن دانسانانو د پاللې څيزونو روزی او د ژوند تيرولو سامان ئې په ظاهره د انسانانو په لاس کښې دې، دې نه علاوه ددنيا د اوچې، لوندې څناور، مارغان، او درندګان داسې دی چې د هغوئ د ژوند سامان وغيره د انسان په اراده او عمل هيڅ اړه نه لری، دا قسم څناور دومره دی چې د انسان د پيژندلو او شمير نه هم بهر دی] ﴿وَإِن مِّن شَيْءٍ إِلَّا عِندَنَا خَزَائِنُهُ﴾ او څومره څيزونه [چې د ژوند ضرورتونه پرې پوره کيږی هغه] مونږ سره د ټولو خزانې [ډکې پرتې] دی ﴿وَمَا نُنَزِّلُهُ إِلَّا بِقَدَرٍ مَّعْلُومٍ﴾ او مونږ [دخپل خاص حکم په مطابق] دغه [څيزونه] په يوې ټاکلې اندازې سره راښکته کوؤ ﴿وَأَرْسَلْنَا الرِّيَاحَ لَوَاقِحَ﴾ او مونږ هوائی ليږو چې وريځې د اوبو نه ډکوی ﴿فَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَسْقَيْنَاكُمُوهُ﴾ بيا هم مونږ د آسمان نه اوبه راوروؤ بيا د غه اوبه تاسو ته د څکلو دپاره درکوؤ ﴿وَمَا أَنتُمْ لَهُ بِخَازِنِينَ﴾ او تاسو په خوندی کولو سره د هغې ساتونکی نه يئ [چې تر بل باران کيدو پورې به مو ګنی خوندی کړې وې او دهغې استعمال به مو کولو] ﴿وَإِنَّا لَنَحْنُ نُحْيِي وَنُمِيتُ﴾ او هم مونږ يو چې ژوندی کول او مړه کول کوؤ ﴿وَنَحْنُ الْوَارِثُونَ﴾ او [د ټولو د مړ کيدو نه پس] هم مونږ به پاتې کيږو ﴿وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَقْدِمِينَ مِنكُمْ﴾ او هم مونږ پيژنو په تاسو کښې وړاندې کيدونکی ﴿وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَأْخِرِينَ﴾ او روستو کيدونکی، ﴿وَإِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَحْشُرُهُمْ﴾ اوبيشکه هم ستاسو رب به دا ټول [په قيامت کښې] راپورته کوی [دا ئې څکه اوفرمائيل چې هر کله دې نه وړاندې توحيد ثابت شوې وو نو د هغې [توحيد] د منکرانو سزا ته ئې اشاره اوکړه] ﴿إِنَّهُ حَكِيمٌ عَلِيمٌ﴾ بيشکه هغه د حکمت خاوند دې [هر چا ته به دهغې مناسب بدله ورکوی او] د علم خاوند دې [د ټولو د عملونو نه هغه پوره خبر دې].

## معارف او مسائل

**د الله تعالى حکمت، د ژوند تيرولو په ضروریاتو کښې مناسبت او سمون راوستل** :: ﴿مِن كُلِّ شَيْءٍ مَّوْزُونٍ﴾ د دې يو مطلب هغه دې چې ترجمه کښې داسې بيان شوې چې دحکمت په جوړ يئ د هر راټوکيدونکی څيز معين اندازه ئې راټوکوله که دهغې نه يې کمه راټوکولې نو په ژوند کښې به ډير مشکلات راپيښ شوی وو، دغه شان ددې په زياتيدو سره به هم مشکلات راپيښ شوی وو. يعنی د انسانی ضرورت نه زيات که غنم، وريژې وغيره اوغوره اعلى ميوې ئې دومره زياتې پيدا کولې چې د انسانانو او څناورو د خوړلو څکلو نه هم پاتې کيدې نو ښکاره

خبره ده چي هغه به سخا کیدي دهغې سنبالول به ګران وو ، او دغورزولو ځایونه بهٔ ئې هم په لاس نه راتلل .

دې نه دا معلومه شوه چې الله ﷻ خو دا قدرت هم لری چې په کومو غلو او میوؤ باندې د انسان ژوند ولاړ دې ، که هغه ئې دومره زیاتې پیدا کولې چې هر چا ته ، په هر ځائې کښې هر وخت بې قیمته ملاویدې او ډیرې ملاویدې د هغې استعمال نه پس هم دهغې لوئې ذخیرې پرتې وې بیا به هم انسان دپاره عذاب جوړیدې ،نو ځکه په یوه خاص ا ندازه کښې نازلې کړې شوې چې ددې قدر او قیمت هم په ځائې پاتې شی اوبې کاره هم پاتې نشی .

د ﴿مِنْ كُلِّ شَيْءٍ مَّوْزُوْنٍ﴾ بل مطلب دا هم کیدې شی چې الله ﷻ ټول ټو کیدونکی څیزونه په داسې روغ او مناسب شان کښې پیدا کړی دی چې په هغې سره ښائست ، ښکلا او زړه راښکل پیدا کیږی، د مختلفو او نوؤ ځانګو پاڼې ، ګلونه اومیوې په مختلفو اندازو ، مختلفو شکلونو ، مختلفو رنګونو او خوندونو کښې پیدا کړې چې دهغې د تناسب اوښکلې ننداري نه خو انسان فائده پورته کوی ، خو ددې تفصیلی حکمتونه معلومول دانسان د وس نه بهر دی .

**ټول مخلوق دپاره د اوبو رسولو او اوبه خور کولو د الله تعالیٰ عجیبه انتظام:** ﴿وَاَرْسَلْنَا الرِّيٰحَ تر وَمَآ اَنْتُمْ لَهٗ بِخٰزِنِيْنَ﴾ کښې دالله تعالیٰ دقدرت هغې حکیمانه نظام ته اشاره ده چې دهغه په ذریعه په مخ د زمکې اوسیدونکو ټولو انسانانوو ځناورو ، څریدونکو الوتونکو او درندګانو دپاره د ضرورت په جوړ د اوبو رسول داسې یو مضبوط نظام قائم کړې شوې دې چې هر چاته په هر ځائ او هر حال کښې د خپل ضرورت په جوړ د څکلو ، لامبلو وینځلو ، پټیو[فصلونو] باغونو او ونو ته اوبه ورکولو دپاره بې د څه قیمت ادا کولو نه اوبهٔ ملاویږی . په کوهیانو جوړولو پائپ لګولوباندې خرچ کول دخپلې آسانئ حاصلولو قیمت دې ، ولې چې د اوبو د یو ځاڅکی قیمت هم څوك نشی اداکولې او نه چا نه طلب کولې شی .

په دې آیت مبارك کښې اول ددې بیان شوې دې چې د الله ﷻ په قدرت ټولې زمکې ته د سمندرد اوبو رسولو انتظام په څه عجیبه طریقې سره جوړ کړې دې اول ئې سمندر نه براسونه پیدا کړل ، د باران سامان ، ئې دهغې نه پیدا کړو ، پورته نه پرې هواګانې اوچلولې چې د وریځو په شکل کښې ترې د اوبو ډکې وریځې د جهازوو په شکل کښې جوړې کړې ، بیا ئې د اوبو ډك دغه هوائی جهازونه ددنیا ګوټ ګوټ [کونج کونج] ته اورسیدل چرې ته ئې چې رسول غوښتل ، بیا د الله ﷻ په حکم سره دغه خودکار هوائی جهازونو هلته اوبه اوورولې .

په د غه شان دسمندر اوبه دزمکې په هره حصه کښې اوسیدونکو انسانانو ځناورو ته پخپل کور ملاویږی ، په دې انتظام کښې یوهٔ عجیبه بدلون د اوبو په خوند او نورو کیفیتونو کښې پیدا کولې شی ، ولې چې الله تعالیٰ د سمندر اوبه داسې تروې او ترخې جوړې کړی دی چې په زرګونو ټنه مالګه ددې نه راؤښکلې او استعمالولې شی ، په دې کښې یو حکمت دادې چې په دې عظیم الشانه زمکه کښې په کروړونو قسمونه ځناور اوسیږی ، په دې کښې مری ، سخا کیږی ، ورستیږی او رژیږی ، او دغه شان د ټولې زمکې ګنده اوبه بالاخر هم په دې کښې پریوزی ، که دا اوبه خوږې وې نو په یوه ورځ کښې بهٔ د سمندر اوبه بې خونده اوسخا شوې دې او دومره سخته بدبوئی به ترې راتلله چې په اوچه د اوسیدونکو حیواناتو او سادارو څیزونو روغتیا او ژوند بهٔ تباه شوې وو ، قدرت د سمندر اوبه داسې تیزابی او تروې جوړې کړې چې د

ټولې دنیا داټولې ګندګئ دې ته په رارسیدو سره بالکل ختمې شی. غرض ددې حکمت په بنا د سمندر اوبه تروې بلکه ترخې جوړې کړې شوې، چې دا نه تنده ماتولې شی او نه دې سره تنده ماتیږی .د الله ﷻ قدرت چې کوم داوبو هوائی جهازونه د وریځو په شکل کښې جوړ کړی دی دا یې نه صرف دسمندر خزانه جوړه کړې ده بلکه کله چې مون سون هواګانې راپورته شی نو د زمکې د پورته څخه واخله تر راوریدو پورې یې په دې کښې داسې انقلابات بغیر د څه مشین څخه پیدا کړې دی چې ددې اوبو څخه مالګه جدا شوه اودا اوبه خوږې پاتې شوې.سورة مرسلات کښې ورته داسې اشاره شوې ده: ﴿وَأَسْقَيْنَاكُم مَّاءً فُرَاتًا﴾ . د لته د فرات نه معنی داسې خوږې اوبه دی چې تنده ورسره ماتیږی ، معنی ئې داده چې مونږ دغه وریځې د قدرتی مشینونو څخه اوویستلې اود سمندر تروې او ترخې اوبه مو ستاسو د څکلو دپاره خوږې کړې سورة واقعه کښې هم دا مضمون داسې بیان شوې دې چې:

﴿أَفَرَأَيْتُمُ الْمَاءَ الَّذِي تَشْرَبُونَ ۝ أَأَنتُمْ أَنزَلْتُمُوهُ مِنَ الْمُزْنِ أَمْ نَحْنُ الْمُنزِلُونَ ۝ لَوْ نَشَاءُ جَعَلْنَاهُ أُجَاجًا فَلَوْلَا تَشْكُرُونَ ۝﴾ [ښه دې اوبو ته خو اوګورئ چې تاسو ئې څکئ آیا دا تاسو د وریځو نه راوروئ که د دې نه ورونکی هم مونږ یو؟! که مونږ اوغواړو نو دا به ترخې کړو نوبیا تاسو شکر نه اوباسی]

دلته خو تاسو دالله ﷻ دقدرت نظاره اوکړه چې د سمندر اوبه په خوږو اوبو کښې بدلوی اوبیا دا د ورځو په ذریعه څومره په ښکلی نظام سره ټولې زمکې ته رسوی ، او په هره ځائې کښې نه صرف انسانانو ته بلکه هغه ځناورو ته هم چې انسان لا دریافت کړی نه دی ، کورونو ته یې ورله اوبه اوررسولې ، او دا هم بالکل مفت بلکه جبری طور سره یې اوررسولې.

لیکن د انسانانو او ځناورو مسئله یوازې په دومره خبرې سره نه حل کیږی څکه اوبه ددوئ یو داسې ضرورت دې چې دوئ هره ورځ بلکه هره ساعت ددې محتاج دی. ددې یوطرفته خو دا وه چې د کال دولس میاشتې یې په هر ځائې کښې باران کیدلې ، خو پدې صورت کښې به ددوئ د ابو دا حاجت پوره شوې وې خو په نورو معاشی صورتونو کښې به خلل راتلو ،ددې اندازه کول د یو تجربه کال دپاره ګرانه نه ده ، ټول کال هره ورځ باران په صحت باندې څومره اثر غورزوی او بیا په کاروبار او تګ راتګ باندې څومره اثر انداز کیږی.

بله طریقه ئې داوه چې په خاص خاص میاشتو کښې دومره بارانونه کیدلې چې هر چاته ترې خپله خپله حصه ورکولې شوې ، او هغه به د نورو میاشتو دپاره خوندی ساتلې ، خو په دې صورت کښې دې دپاره د لوښو کلك پاتې کیدل وغیره ، ضرورتونه پوره کول به دهر چا په وس کښې نه وو که ددې انتظام به د چا په وس کښې وو نو هغوئ ته به دغه خوندی کړې اوبه سخا شوې وې او د څکلو دپاره خو لا څه کوې بلکه د نور استعمال جوګه به هم نه وې پاتې شوې ، څکه دالله تعالی قدرت ددې د محفوظ ساتلو اود ضرورت په وخت په هر ځائې کښې ددې د ملاویدو یو بل عجیبه نظام جوړ کړو ، هغه داسې چې د وریدو اوبو څه حصه خو زر تر زره د ونو فصلونو ،انسانانو اوځناورو دڅروبولو اوپنړه کولوپه کار راځی، څه په تالابونو ، ډنډونو کښې محفوظ شی ، او ددې غټه حصه دواوُرو په شکل یو چکه شوې دریاب د غرونو په څوکو باندې جمع کولې شی چرته چې ګرد نشی رسیدلې او نه څه ګند وغیره رسیدلې شی. که د بهیدونکو اوبو په صورت کښې دا پاتې شوې وې نو د هوا په ذریعه به ورته ګردوغبار یا نور خراب څیزونه ور رسیدل ، د مارغانو او نورو ځاروؤ او سادارو څیزونو د پریوتو خطره به په

کښې وه چې دهغې په مړ کيدو او سخا کيدو سره به اوبه بدبويه شوې وې او خوند رنګ به ئې هم خراب شوې وې. ليکن د واوړو په صورت کښې داغه خزانه شوې اوبه د غرونو په رګونو کښې جذب کيږي او بيا د چينو په صورت کښې هر ځائې ته رسيږي، او چرته چې دا چينې هم نشته دې نو هلته د زمکې بيخ کښې دغه اوبه د انسان د رګونو پشان دزمکې هرې حصې ته رسيږي او د کوهيانو په کنستلو سره ددې نه بهر راويستلې کيږي.

خلاصه دا ده چې د اوبو رسولو د الله ﷻ دې انتظام په زرګونو نعمتونه خپل ځان کښې ځائې کړي دي. اول خو اوبه پيدا کول يو ډير لوئې نعمت دې. بيا د وريځې په ذريعه د زمکې هرې حصې ته رسول بل ډير لوئې نعمت دې. بيا دا د انسان د څکلو دپاره تيارول دريم نعمت دې. بيا انسان ته ددې د څکلو موقعه ورکول څلورم نعمت دې. بيا د ضرورت مطابق اوبوس کښې خوند اچول او ددې د ساتلو دپاره يو مربوط نظام جوړل پنځم نعمت دې. بيا انسان ته ددې د څکلو موقعه ورکول شپږم نعمت دې. ولې چې اوبو د موجودګئ په صورت کښې هم داسې آفتونه کيدې شي چې د هغې په وجه انسان ددې په څکولو قدرت نشي بيا مونديې، نو د قرآن عظيم الشان په دې آيت مبارك:

﴿فَأَسْقَيْنَٰكُمُوهُ وَمَآ أَنتُمْ لَهُۥ بِخَٰزِنِينَ﴾ کښې هم د الله ﷻ دې نعمتونو ته اشاره شوې ده او خبرداري ورکړې شو بدې. ﴿فَتَبَارَكَ ٱللَّهُ أَحْسَنُ ٱلْخَٰلِقِينَ﴾

**په نيکو کارونو کښې د وړاندې کيدو او دروستو پاتې کيدو په درجو کښې فرق:** ﴿وَلَقَدْ عَلِمْنَا ٱلْمُسْتَقْدِمِينَ مِنكُمْ وَلَقَدْ عَلِمْنَا ٱلْمُسْتَـْٔخِرِينَ﴾ کښې د مستقدمين او مستاخرين څو تفسيرونه د صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعينو رحمهم الله امامانو نه مختلف منقول دي، مستقدمين هغه دي چې تر اوسه پيدا شوي دي اومستاخرين هغه دي چې تر اوسه پورې نه دي پيدا شوي [قتاده رضي الله عنه، عکرمه رضي الله عنه]
مستقدمين نه مراد مړهٔ شوي او مستاخرين نه مراد اوسنی ژوندی خلق دي [ابن عباس رضي الله عنه، ضحاك رضي الله عنه].

مستقدمين نه مراد هغه امتونه دي چې د امت محمديه نه وړاندې وو او مستاخرين نه مراد امت محمديه دې [مجاهد رحمه الله].

مستقدمين نه مراد تابعدار او نيك خلق دي او مستاخرين نه مراد نافرمانه او غافله خلق دي [حسن رضي الله عنه، قتاده رضي الله عنه].

مستقدمين هغه خلق چې د مونځ يا جهاد په صفونو او په نورو نيکو کارونو کښې وړاندې کيدونکی دي او مستاخرين هغه خلق دي چې په دغې ځيزونو کښې روستو پاتې کيدونکي او مهلت کوونکي دي. [د حسن بصری رحمه الله، سعيد المسيب رحمه الله، قرطبی رحمه الله او شعبی رحمه الله وغيره تفسير دې چې د تفسير امامان دي] [1]

او دا ښکاره خبره ده چې په حقيقت کښې په دې اقوالو کښې څه خاص اختلاف نشته دې ځکه چې دا ټول جمع کيدې شي. ولې چې د الله ﷻ راچاپيره کيدونکي علم د مستقدمين او مستاخرين ټولو نه راچاپيره دې.

[1] تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۰ص:۱۹]

قرطبی رحمه الله پخپل تفسیر کښې فرمائیلي دي چې دې آیت نه په مونځ دجمع کښې د اول صف په اول وخت کښې د مونځ د اداکولو فضیلت ثابتیږي. لکه یو حدیث پاک کښې رسول کریم ﷺ فرمائي چې: که خلقو ته د اذان کولو او د اودریدو لوئې فضیلت معلوم وې نو ټول خلق به په دې کوشش کښې وو چې په اول صف کښې اودریږي او که ټولو ته ځائې نه ملاویدې نو په دې باندې به ئې خسنړې اچولو.(١)

امام قرطبی رحمه الله دې سره د کعب دا قول هم نقل کړې دې چې په دې امت کښې څه داسې خلق هم شته دې چې سجدې ته لاړ شي نو وروسته ټول خلق بخښلي شي هم دغه وجه ده چې کعب به د مونځ په آخري صف کښې اودریدل ځکه خوښول چې کیدې شي په رومبو صفونو کښې د الله ﷻ څه بنده ددې شان وي چې د هغوئ برکت سره زه اوبخښلې شم [انتهی کلامه].(٢)

او ښکاره خبر ده چې اصل فضیلت خو هم په اول صف کښې دې لکه چې د آیت مبارك او حدیث د ښکاره بیان نه ثابت شو لیکن چاته چې په څه وجه اول صف کښې ځائې ملاؤ نشو نو د نیکانو بندګانو په برکت دې اوبخښلې شي ، په آیت مبارك کښې څنګه چې د مونځ د رومبی صف فضیلت ثابت شو دغه شان دجهاد د رومبی صف غوروالې هم ثابت شو.

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُوْنٍ ﴿٢٦﴾ وَالْجَانَّ

اوپه تحقیق سره جوړکړو مونږه | انسانان | دوچ ټیکرې نه | دختې نه | اخمیره شوې نه | اوپیرې چې وو

اوبیشکه مونږ انسان د وچ ټنګیدلې خمبیرې ختې نه پیدا کړې دې | ..........اوپیریان

خَلَقْنٰهُ مِنْ قَبْلُ مِنْ نَّارِ السَّمُوْمِ ﴿٢٧﴾ وَاِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ

پیدا کړې وو مونږ هغه | مخکښې ددې نه | د شغلې دوورنه | اوکله چې | اووئیل | رب ستا | فرښتو ته

موددې نه وړاندې د بې لوګې اور نه پیدا کړې ووا | ........اوکله چې ستا رب فرشتو ته اووئیل

اِنِّىْ خَالِقٌۢ بَشَرًا مِّنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُوْنٍ ﴿٢٨﴾ فَاِذَا

چې بیشکه زهٔ | پیداکونکې یم | یو بشرلره | دوچ ټیکرې نه | توري ختې نه | خمیره شوې نه | نوکله چې

چې بیشکه زه کرنګیدونکې خمبیرې ختې نه انسان پیدا کوونکې یم | ..........نوکله چې زه هغه

سَوَّيْتُهٗ وَنَفَخْتُ فِيْهِ مِنْ رُّوْحِيْ فَقَعُوْا لَهٗ سٰجِدِيْنَ ﴿٢٩﴾

ماپوره برابر کړو هغه | اوماپوك وهو | په هغه کښې | دروح خپل نه | نو پریوزئ تاسو | هغه ته | سجده کونکې

چې زه هغه برابر جوړ کړم | اود خپل طرفنه په کښې روح پوک وهم | نوتاسو ورته په سجده پریوځئ

فَسَجَدَ الْمَلٰٓئِكَةُ كُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ ﴿٣٠﴾ اِلَّآ اِبْلِيْسَ ؕ اَبٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ

نوسجده او کړو | فرښتو | ټولو | په جمع | مګر | ابلیس | هغه انکاراوکړو | چې شي

نو ټولو فرښتوپه یو ځل سجده اوکړه | خویو ابلیس اونه کړه | هغه سجده کونکو سره

١) صحيح البخاري كتاب الأذان، باب الإستهام في الإذان [ج:١ص:٨٦]
٢) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:١٠ص:٢٠]

مَعَ السّٰجِدِيْنَ ۝ قَالَ يٰٓاِبْلِيْسُ مَا لَكَ اَلَّا تَكُوْنَ

دسجده کونکو سره | نواووئیل الله | اے ابلیس | څه وو | تالره | چې نه شوې ته ملګری

دشاملیدونه انکار اوکړو | الله ﷻ اوفرمائیل ابلیسه دا په تاڅه اوشول چې په سجده کوونکو

مَعَ السّٰجِدِيْنَ ۝ قَالَ لَمْ اَكُنْ لِّاَسْجُدَ لِبَشَرٍ خَلَقْتَهٗ

دسجده کونکوسره|اووئیل شیطان| نه یم زهٔ | چې اوکړم سجده | داسې بشرته| چې تاپیداکړې دې هغه

کښې شامل نه شوې |هغه اووئیل چې دانه شي کیدې چې زهٔ داسې انسان ته سجده اوکړم| چې هغه دې د

مِنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَاٍ مَّسْنُوْنٍ ۝ قَالَ فَاخْرُجْ مِنْهَا فَاِنَّكَ

دټیکری نه | چې دختې | خمیره شوی نه | اووئیل الله | نواوځه ته | ددې ځائې نه | بیشکه ته

دکړنګیدونکې خمبیرې ختې نه پیداکړې دې | الله ﷻ اوفرمائیل چې [جنت نه ] اوځه | بیشکه ته

رَجِيْمٌ ۝ وَّاِنَّ عَلَيْكَ اللَّعْنَةَ اِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ ۝ قَالَ رَبِّ

رټلې شوې ئې | او بیشکه | په تاباند| لعنت دې | دورځې | دجزا پورې | اووئیل شیطان| اے ربه زما

رټلې شوې یې | اوپه تابه ترقیامته پورې لعنت وی | ............هغه اووئیل ائې ربه

فَاَنْظِرْنِيْٓ اِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ ۝ قَالَ فَاِنَّكَ

پس مهلت راکړه ماته | دهغه ورځې پورې | چې دوباره راپورته کړې کیږی دا خلق | اووئیل الله | نوبیشکه ته

ماته د هغه ورځې پورې مهلت راکړه چې دوی به دوباره ژوندی کیږی | الله ﷻ اوفرمائیل [بنه ده]

مِنَ الْمُنْظَرِيْنَ ۝ اِلٰى يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُوْمِ ۝ قَالَ رَبِّ

دمهلت ورکړې شوونه ئې | دهغه ورځې دوخته پورې | چې معلوم دې | اووئیل شیطان | اے ربه زما

تاته ترهغه ورځ پورې مهلت دې چې د هغې وخت ماته معلوم دې | شیطان اووئیل ائې زما ربه

بِمَآ اَغْوَيْتَنِيْ لَاُزَيِّنَنَّ لَهُمْ فِي الْاَرْضِ

په سبب دهغې| چې بې لارې کړوتامالره| نوخامخا به ښائسته والې پیدا کوم زهٔ |دپاره ددوئ | په زمکه کښې

لکه څنګه چې تازه ګمراه کړم | نوزه به هم دغسې دوئ ته د مزکې په مخ[ګناهونه]

وَلَاُغْوِيَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ ۝ اِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِيْنَ ۝

اوخامخابه بې لارې کوم زهٔ دوئ| تول |ماسواد بندګانوستا | چې دهغوئ نه | خالص کړې شوی وی

ښائسته ښکاره کوم | اوستا د مخلص بندګانو نه سوا بهٔ نور تول خامخا ګمراه کوم

قَالَ هٰذَا صِرَاطٌ عَلَيَّ مُسْتَقِيْمٌ ۝ اِنَّ عِبَادِيْ لَيْسَ لَكَ

اووئیل الله | دالاره ده | چې رارسی ماته | نیغه | بیشکه| بندګان زماچې دی | نشته| تالره

الله ﷻ اوفرمائیل چې زماطرف ته دراسیدو دا نیغه لاره ده | زما په بندګانو به یقینا ستا څه غلبه

عَلَيْهِمْ سُلْطٰنٌ اِلَّا مَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْغٰوِيْنَ ۝ وَاِنَّ

په هغوئ باند| طاقت| ماسوا | دهغه چانه | چې پیروی ئې اوکړه ستا | دبې لارې خلقو نه| اوبیشکه

نه وی| مګر په هغه خلقو چې پخپله ستا تابعداری کوی | اوګمراه شوی وی [نوهغوی به ستا تابعدار وی]

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| جَهَنَّمَ | لَمَوْعِدُهُمْ | أَجْمَعِينَ ۝ | لَهَا | سَبْعَةُ | أَبْوَابٍ ط | لِكُلِّ بَابٍ | |
| دوزخ | خائي دوعدې دهغوئ دي | دټولو | ادى دغه دوزخ لره | اوه | دروازې | ادپاره دهرې دروازې | |
| او دوزخ يقينا ددې ټولو د وعدې ځائې دې \| د هغې اووۀ دروازې دی \| د هرې دروازې دپاره | | | | | | | |
| مِّنْهُمْ | جُزْءٌ | مَّقْسُومٌ ۝ | | | | | |
| ددې ګمراهانو نه | يو حصه ده | مخصوص کړې شوی \| | | | | | |
| په دوئ کښې جدا جدا حصه مقرر ده \| | | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

مونږ انسان د زړې شوې ختې د ټنګيدلې خاورې نه پيدا کړو او جنات د دې نه مخکښ مونږ د اور د شعلې نه پيدا کړی وو .او هغه وخت ياد کړه چه کله ستا رب ملائکو ته فرمائيلې وو چه: زه د ټنګيدلې خاورې د ختې نه يو انسان پيدا کونکې يم. لهٰذا چه کله زه هغه پوره جوړ کړم. او په هغه کښ د خپل طرف نه روح اوپوکم نو تاسو ټول د هغه مخې ته په سجده پريوځئ. پس ټولو ملائکو سجده اوکړه سوا د ابليس نه چه هغه سجده کونکو سره د شامليدلو نه انکار اوکړو. الله پاک اوفرمائيل : اې ابليسه! په تا باندې څه چل اوشو چه ته په سجده کونکو کښ شامل نه شوې؟ هغه اووئيل : زه داسې (سپک) نه يم چه يو داسې بشر ته سجده اوکړم کوم چه تا د ټنګيدلې خاورې د زړې ختې نه پيدا کړې دې. الله پاک اوفرمائيل : ښه د دې ځائې نه اوځه، ځکه چه ته مردود کړې شوې ئې. او په تا باندې به ترقيامته پورې لعنت وريږي. هغه اووئيل : اې ربه ! بيا ماته د هغه ورځې پورې (د ژوندې پاڅې کيدو) مهلت راکړه چه کله خلق دوباره ژوندی کړې شی. الله پاک اوفرمائيل چه : ځه تاته مهلت (خو) درکړې شو. (خو) د يو داسې ليټې د ورځې پورې کومه چه مونږ ته معلومه ده ــ وې وئيل : اې ربه! چونکه تا زه ګمراه کړې يُم، په دې وجه اوس زه قسم خورم چه د انسانانو دپاره به په دنيا کښ رغبت پيدا کوم او ټول به ګمراه کوم. سوا ستا د هغه بندګانو نه کوم چه تا په هغوی کښ د خپل ځان دپاره مخلص کړې وی. الله پاک اوفرمائيل دا ده هغه نيغه لاره کومه چه ماته را رسيدلې ده .يقين اوساته چه کوم زما بندګان دی، په هغوی باندې به ستا هيڅ زور نه چليږی ، سوا د هغه ګمراهانو خلقو نه کوم چه به ستاپسې روان وی. او جهنم د داسې خلقو مقرر شوې استوګنه ده د هغې اووۀ دروازې دی، هرې دروازې (کښ داخليدو) دپاره د هغه (دوزخيانو) يو يو ډله تقسيم کړې شوې ده.

## خلاصه تفسير

﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ ۝﴾ او مونږ انسان لره [ يعنی د بنيادمو رومبې بنياد آدم ﷺ ] د کړنګيدلې خاورې نه چې د سخا شوې ختې نه جوړه شوې وه ، پيدا کړو [ يعنی اول مو خټه ښه خمبيره کړه چې بوئی تري ختلو بيا هغې په اوچيدو سره د اسې کړنګار شروع کړو څنګه چې په تينګړئی وهلو سره لوښې کړنګار کوی ، بيا مو ددغې اوچې ختې نه د آدم ﷺ کالبوت جوړ کړو چې د لوې قدرت نخښه ده ] ﴿وَالْجَآنَّ خَلَقْنٰهُ مِنْ قَبْلُ مِنْ نَّارِ السَّمُوْمِ ۝﴾ او پيری [ يعنی د پيريانو اصل ددوئ رومبې نيکه دې نه وراندې [ يعنی آدم ﷺ نه وراندې ] د اور نه چې هغه ]

د زيات نازك والى په وجه] يوه ګرمه هوا وه پيدا کړې وو [ مطلب دا چې په دغه اور کښې څه قسم لوګۍ نه وو څکه د هوا پشان نه ښکاريدو ولې چې اور هله په نظر رازى چې زيګ څيزونه ورسر ګډ شوى وى ، څنګه چې په يو بل آيت مبارك کښې داشان فرمائى چې ﴿وَخَلَقَ الْجَآنَّ مِنْ مَّارِجٍ مِّنْ نَّارٍ﴾ [۱] ﴿وَاِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ﴾ او هغه وخت د يادولو قابل دې چې کله ستاسو رب فرښتو ته اووئيل ﴿اِنِّیْ خَالِقٌۢ بَشَرًا مِّنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَاٍ مَّسْنُوْنٍ﴾ چې زه يو بشر لره ] يعنى د هغه کالبوت لره] د کړنګيدلې ختې نه چې د سخا شوى خمبيرې نه جوړه وى پيدا کوونکې يم ، ﴿فَاِذَا سَوَّیْتُهٗ وَنَفَخْتُ فِیْهِ مِنْ رُّوْحِیْ فَقَعُوْا لَهٗ سٰجِدِیْنَ﴾ نو کله چې زه دهٔ لره [يعنى دد اندامونو لره] پوره کړم او په دې کښې خپل [يعنى د خپله طرفه ] روح واچوم نو ټول د هغه مخې ته په سجده پريوزى ﴿فَسَجَدَ الْمَلٰٓئِكَةُ كُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ﴾ نو [ کله چې الله ﷻ دې جوړ کړو نو] ټولو فرښتو [ آدم ؈ ته ] سجده اوکړه ﴿اِلَّآ اِبْلِیْسَ ؕ اَبٰۤى اَنْ یَّكُوْنَ مَعَ السّٰجِدِیْنَ﴾ مګر ابليس هغه دا خبره او نه منله چې سجده کوونکو سره شامل شى [ يعنى سجده ئې اونه کړه ] ﴿قَالَ یٰۤاِبْلِیْسُ مَا لَكَ اَلَّا تَكُوْنَ مَعَ السّٰجِدِیْنَ﴾ الله ﷻ ورته اوفرمائيل چې ائې ابليسه ! په تا څه اوشو چې په سجده کوونکو کښې شامل نشوې؟ ﴿قَالَ لَمْ اَكُنْ لِّاَسْجُدَ لِبَشَرٍ خَلَقْتَهٗ مِنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَاٍ مَّسْنُوْنٍ﴾ وې وئيل چې زه داسې نه يم چې بشر ته سجده اوکړم [ چې تا د کړنګيدلې ښاوړې نه چې د سخا خمبيرې نه جوړه وه پيدا کړې دې [ يعنى دداسې سپك او ذليل څيز نه جوړ شوې دې، ولې چې زه د نورانى څيز اور نه پيدا يم او د نورانى کيدو په وجه د تيرې څيز ته څنګه سجده اوکړم . ] ﴿قَالَ فَاخْرُجْ مِنْهَا فَاِنَّكَ رَجِیْمٌ﴾ نو ارشاد اوشو چې [ښه ده ] د آسمان نه اوځه چې بيشکه ته [ په دې حرکت سره ] نا قبول شوې اوګرځيدلې ﴿وَّاِنَّ عَلَیْكَ اللَّعْنَةَ اِلٰى یَوْمِ الدِّیْنِ﴾ او بيشکه په تا باندې [زما] لعنت به تر قيامت پورې وى [ لکه په يو بل آيت مبارك کښې فرمائى چې [وَّاِنَّ عَلَیْكَ لَعْنَتِیْۤ] يعنى تر قيامته پورې به زما د رحمت نه لرې پاتې کيږې، د توبې توفيق به نشى درکولې ، ناقبول به اوسيږې ، رحمت به درباندې نشى کولې ، دا خبره ښکاره خبره ده چې تر قيامت پورې چې په چا رحمت اونشى نو به قيامت کښې به هغوئ باندې د رحمت کيدو څه احتمال نشته . نو تر څو چې د دې احتمال کيدې شو هغه ئې نفى کړو ، او په دې سره دا شبه دې نشى کولې چې ده سره خود مهلت غوښتلو نه وړاندې د مهلت ورکولو وعده اوشوه ، خبره داده چې تر قيامت پورې عمر ورکول مقصود نه دى چې دا شبه اوکړې شى بلکه مطلب دا دې چې په دنيوى ژوند کښې خو به لعنتى وى اګر چې تر قيامت پورې ژوندې وى ] ﴿قَالَ رَبِّ فَاَنْظِرْنِیْۤ اِلٰى یَوْمِ یُبْعَثُوْنَ﴾ وې وئيل [ چې که زه دې د آدم ؈ په وجه رټلې يم] نو بيا ماته [ په مړ کيدو کښې ] مهلت راکړې د قيامت د ورځې پورې [ د پاره ددې چې د دوئ او ددوئ د اولاد نه ښه بدل واخلم ] ﴿قَالَ فَاِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِیْنَ ۙ اِلٰى یَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُوْمِ﴾ وې وئيل چې [ کله چې ته مهلت غواړې ] نو [ځه] تاته د ټاکلى وخت د نيتې پورې مهلت درکړې شو ، ﴿قَالَ رَبِّ بِمَاۤ اَغْوَیْتَنِیْ﴾ وې وئيل ائې زما ربه په سبب ددې چې تا زه [ په تکوينى حکم سره] ګمراه کوم ، ﴿لَاُزَیِّنَنَّ لَهُمْ فِی الْاَرْضِ وَلَاُغْوِیَنَّهُمْ اَجْمَعِیْنَ﴾ زه قسم خورم چې زيه په دنيا کښې د دوئ] يعنى د آدم ؈ او اولاد آدم په نظر کښې به ګناهونه او معاصى ښائسته کوم او دا ټول

---

[1] ترجمه:- او جنات مو خالص د اوور نه پيدا کړى دى (الرحمن:۱۵)

به گمراه کړم ﴿إِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِينَ﴾ سوا ستا دهغه بندگانو نه چې په دوئ کښې چونړ کړې شوی دی [ په دې شان چې زما د اثر کیدو نه دې ساتلی دی ] ﴿قَالَ هَٰذَا صِرَاطٌ عَلَيَّ مُسْتَقِيمٌ﴾ وې وئیل چې [آؤ] دا [ چونړ کیدل چې هغه طریقه نیك عملونه او کامله تابعداری ده ] یوه نیغه لار ده چې ماته رارسی [ یعنی په دې باندې روانیدو سره زما نزدې بندگان جوړیږی ] ﴿إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ﴾ واقعی زما په دې [ بیان شوؤ] بندگانو به ستا پوتې وس هم نه رسیږی ﴿إِلَّا مَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْغَاوِينَ﴾ البته په گمراه خلقو کښې چې څوك ستا په لار روان شی [ نو روان د ې شی ] ﴿وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمَوْعِدُهُمْ أَجْمَعِينَ﴾ او څوك چې ستا په لار باندې ځی دهغې ټولو ځائې جهنم دې ﴿لَهَا سَبْعَةُ أَبْوَابٍ﴾ چې اوؤه دروازې ئې دی ﴿لِكُلِّ بَابٍ مِنْهُمْ جُزْءٌ مَقْسُومٌ﴾ هر دروازې [باندې د ورننوتلو] دپاره ددې خلقو جدا جدا حصې دی [ مطلب دا چې څوك به په یوې دروازه ورننوځی او څوك په بله دروازه].

## معارف او مسائل

**د انسان په بدن کښې روح پوك وهل او فرښتو دپاره ئې د سجدې د رخ جوړولو مختصر تحقیق** :: روح څه جسم دې او که جوهر مجرد دې ؟ د پخوا زمانې راسې په دې کښې علماء کرامو او حکیمانو اختلاف د پخوا زمانې راسې راوران دې ، شیخ عبدالروف مناوی اوفرمائیل چې په دې کښې د حکیمانو قولونه زرو ته رسیږی خو ټول قیاسونه او اټکلونه دی ، یو هم په کښې یقینی نشی گرځیدې ، امام غزالی رحمه الله ، امام رازی رحمه الله او عموما د صوفیانو او فلسفیانو قول دادې چې دا جسم نه دې بلکه جوهر مجر دې ، ، امام رازی رحمه الله ددې دولس دلائل وړاندې کړی دی. خو جمهور علماء امت دې ته لطیف جسم وائی.

د نفخ معنی پوك وهل دی ، که د جمهورو په قول باندې روح ته لطیف جسم اووئیلې شی نو دهغې پوك وهل ښکاره دی ، او که جوهر مجرد او منلې شی نو د پوك وهلو مطلب به ئې د بدن سره تعلق پیدا کول و ی [بیان القرآن].([1])

**د روح او نفس په باره کښې د قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله تحقیق** :: دلته دې اوږد بحث پریښودلو سره یو خاص تحقیق په تفسیر مظهری کښې قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله قلم بندکړې دې.

قاضی صاحب رحمه الله دوه قسمه بولی . یو علوی ، بل سفلی . علوی روح د مادې نه خالی د الله ﷻ داسې یو مخلوق دې چې دحقیقت درك لگول ئې گران دی . د کشف خاوندانو ته ددې اصل مقام دعرش دپاسه ښکاری ځکه چې دا دعرش نه زیات لطیف دې، او علوی روح نظر کشفی سره ښکته پورته پنځو درجو کښې محسوسیږی چې قلب ، روح ، سر ، خفی او اخفی دی.اودا ټول دعالم امر لطیائفو نه دی چې الله ﷻ ورته داسې اشاره کړې ده([2]): ﴿قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي﴾.

او سفلی روح هغه لطیف بخار دې چې انسانی بدن د څلورو عنصرونو ، اور ، اوبو ، ښاؤرې او هوا نه پیدا کیږی ، دې سفلی روح ته نفس وئیلې شی.

دې روح سفلی لره الله ﷻ دبیان شوؤ ارواح علویه آئینه جوړه کړیده ، لکه که هر څومره نه لرې شیشه نمر ته مخامخ کړشی نو اگر چې هغه هر څومره زیات لرې دې خو بیا هم د نمر

---

[1]) بیان القرآن تحت هذه الآیة ج٦ ص: ٢٦.

[2]) ترجمه:- ته ورته اوویه چې روح زما د رب په حکم سره جوړ شوې دې.

عکس په کښې راځي اود رڼا په وجه هغه هم دنمر پشان ځليږي او دنمر ګرمي او تاؤ هم په دې کښې راځي چې جامه سوځولې شي، دغه شان علوي ارواح اګرچې د مجرد کيدو په وجه ډير اعلى لوړ، او ډير لرې دي خو عکس ئې دروح سفلي په آئينه کښې راځي چې دهغې اثرات او حالتونه هم دې ته منتقل کيږي، په نفسونو کښې دا اثرات هر يو کس دپاره ځان ځان له ارواح جزئيه بللې شي، بيا اروح سفلي چې کوم ته نفس وئيلي شي ارواح علويه سره ددې د اثراتو او حالتونو نه حاصل کړې وی نو د ټولو نه اول ددې تعلق په انساني بدن کښې د زړه تکې سره وی چې حيات نوميږي، د سفلي روح په تعلق سره د ټولو نه وړاندې د انسان په زړه کښې ژوند او هغه ادراکات پيدا کيږي کوم چې نفس د ارواح علويه نه حاصل کړې دي.

دا سفلي روح د ټول بدن په نرو رګونو کښې ورننوځي چې شرائين نوميږي او په دې شان دا د ټول انساني بدن هرې حصې ته رسي. روح سفلي چې د انسان بدن کښې داخل شي نو دغې ته نفخ روح وئيلې شي، ولې چې ددې مثال داسې دې لکه يو څيز د پوکۍ نه ډک کړې شي.

دلته په آيت کښې الله ﷻ ﴿مِنْ رُّوْحِىْ﴾ اوفرمائيل او روح ئې ځان ته منسوب کړو چې په ټول مخلوق کښې د انساني روح زيات شرافت او اعلى کيدل واضح شي، ولې چې دا بغير د څه مادې نه خاص د الله تعالى په حکم سره پيدا شوې دې، دغه شان دا ددې جوګه دې چې رحماني تجليات قبول کړي، او دانسان نه علاوه د بل ساه والا مخلوق روح داشان نه لري.

انسان پيدائش کښې اګر چې غالب عنصر خاوړې دی او هم په دې وجه قرآن عظيم الشان کښې د انسان پيدا کيدل دخاوړې نه بيان شوې دی، خو په حقيقت کښې انسان په لسو څيزونو ولاړ دې، پنځه د عالم خلق څيني دی، يعنې څلور عنصرونه اور، اوبه، خاوره او هوا او پنځم هغه لطيف بخار دې چې ددې څلورو عنصرونو نه پيدا کيږي. او سفلي روح يا نفس نوميږي. او پنځه د عالم امر دی چې هغه قلب، روح، سر، خفي، اخفى دی.

ددې جامعيت په وجه انسان د الله تعالى د خليفه کيدو جوګه شو د معرفت د نور او د عشق او محبت د اور برداشت لرونکې شو، چې نيتجه کښې ورته د الله تعالى بې کيفه يو ځائې والې حاصليدې شي، څکه رسول کريم ﷺ فرمائيلي دي چې: ﴿المرء مع من احب﴾ [يعنې انسان به هر هغه چا سره وی چې چاسره ئې چې مينه وی]

هر کله چې انسان دالله تعالى د تجلياتو جوګه وو او د الله ﷻ د يو ځائې والى درجه ورته حاصليدې شوه، په دې وجه د الله ﷻ دحکمت تقاضا دا شوه چې د فرښتو د سجدې کولو ځائې جوړ شي لکه الله ﷻ فرمائي چې: ﴿فَقَعُوْا لَهٗ سٰجِدِيْنَ﴾.[1]

**د سجدې حکم فرښتو ته شوې وو او ابليس په کښې ددوئ د ملګرتيا په وجه شامل کړې شو:** په سورۀ اعراف کښې د الله ﷻ ددې خطاب ﴿مَا مَنَعَكَ اَلَّا تَسْجُدَ اِذْ اَمَرْتُكَ﴾ نه معلوميږي چې د فرښتو په ملګرتيا کښې ابليس ته هم د سجدې کولو حکم شوې ووا و دې آيتونو نه معلوميږي چې يوازې فرښتو ته ددې حکم شوې وو نو ددې مطلب دا کيدې شي چې اصل حکم فرښتو ته وو خو هر کله چې فرښتو ته دا حکم اوشو چې د آدم ؑ تعظيم او قدر عزت دې اوکړی نو بل مخلوق دې حکم لاندې دا خليدل بالکل ښکاره څکه وو چې هغه د فرښتو نه په درجه کښې کم دی څکه خو

---

[1] تفسير المظهرى تحت هذه الآية [ج:۵ص:۳۰۰، ۳۰۱]

ابلیس په جواب کښي دا او نه وئیل چي ماته د سجدي حکم د سره نه دې راکړې شوې نو په هغې باندې د عمل نه کولو جرم په ما باندې نشي راتلې او کیدې شي چي د قرآن عظیم الشان په الفاظو ﴿اَبٰۤى اَنْ یَّكُوْنَ مَعَ السّٰجِدِیْنَ﴾ کښي هم دې ته اشاره وی چي آدم ﷺ ته د سجدې کولو حکم په اصل کښي فرښتو ته وو مګر د عقل د مخي د ابلیس داخلیدل په کښي ځکه راغلل چي هغه دوئ سره یو ځائې پاتې کیدو چي دهٔ سجده اونه کړه نو ځکه ورته زور نه ورکړې شوه.

**د الله تعالى په مخصوص بندګانو باندې شیطان قبضه نشي کولې ، ددې معنى څه ده ؟** ﴿اِنَّ عِبَادِیْ لَیْسَ لَكَ عَلَیْهِمْ سُلْطٰنٌ﴾ نه معلومیږي چي د الله ﷻ په مخصوص اوغوره کړو بندګانو باندې د شیطان د دهوکه کولو څه اثر نشي کیدې ، مګر په دې قصه کښي دا بیان شوی دی چي آدم ﷺ او حواء ﷺ باندې دهغه دهوکه اوچلیدل ، دغه شان د صحابهٔ کرامو ﷺ باره کښي د الله ﷻ ارشاد دی چي : ﴿اِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّیْطٰنُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوْا﴾ (۱) [آل عمران] دې نه معلومیږي چي صحابه کرامو ﷺ باندې هم د شیطان دهوکه کول په دې موقعه اوچلیدل ، لهذا په دې آیت مبارك کښې چې دا بیان شوی دی چي د الله ﷻ په مخصوص بندګانو باندې د شیطان قبضه نشي کیدې نو دهغه مطلب دادې چي ددې په عقلونو او زړونو باندې دشیطان داسې قبضه نشي کیدې چي په خپلې غلطئ باندې هیڅ وخت خبر نشي چې په دغې وجه دهغه توبه نصیب نشي یا داسې څه ګناه اوکړي چي بخښنه ئې نشي کیدې ، په دې بنا دغه شان بیان شوی واقعات دې سره بې سمونه دی ولې چې آدم ﷺ توبه اوکړه چې قبوله هم شوه ، دغه شان صحابهٔ کرامو ﷺ هم توبه کړې وه او د شیطان په دهوکه کولو چي کومه ګناه دوئ نه شوې وه هغه معاف کړې شوه.

**د جهنم اووه دروازې:** ﴿لَهَا سَبْعَةُ اَبْوَابٍ﴾ ، امام احمد ابن جریر ﷫ ، طبرى او بیهقى ﷫ په روایت د علی ﷺ لیکلی دی چي د جهنم اووه دروازې دی چي د لاندې باندې اووهٔ درجو د جهنمیانو په اعتباره سره دی او ځینې حضراتو د عامو دروازو پشان خودلی دی چي هره دروازه به د خاص قسم مجرمانو دپاره مخصوص وی [قرطبی] (۲)

| | | |
|---|---|---|
| اِنَّ | الْمُتَّقِیْنَ | فِیْ جَنّٰتٍ |
| بیشکه | پرهیزګار خلق به | په جنت کښی وی |

..... بیشکه پرهیزګاران به په باغونو اوچینو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَّعُیُوْنٍ | اُدْخُلُوْهَا | بِسَلٰمٍ | اٰمِنِیْنَ | وَنَزَعْنَا |
| او په چینو کښی به وی | ننوځئ دې ته | په سلامتیا سره | په امن سره | او اوبه باسو مونږه |

کښې اوسیږی [اوبه وئیلې شی] چې تاسو دې ته په امن اوسلامتیا سره داخل شئ | اومونږ به

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مَا | فِیْ صُدُوْرِهِمْ | مِّنْ غِلٍّ | اِخْوَانًا | عَلٰى سُرُرٍ |
| هغه | چې په زړونو دهغوئ کښی وی | څه کینه | رونړه به وی | ناست به وی په تختونو باند |

د دوئ په زړونو کښې چې کومه کینه وی هغه اوباسو | د رونړو په شان به یوبل ته مخامخ

(۱) ترجمه: ددې نه سوا بله څه خبره نشته ، صرف دا چې شیطان دوئ په خطاء کښې واچول د بعضې اعمالو په وجه سره.
(۲) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة [ج:۱۰ص:۱۰] وشعب الإیمان للبیهقي رقم الحدیث:[٤١١]

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مُّتَقٰبِلِيْنَ۝ | لَا يَمَسُّهُمْ | فِيْهَا | نَصَبٌ | وَّمَا | هُمْ | |
| یو بل ته مخامخ | نۀ به رسيږي هغوئ ته | په هغې کښې | څه تکليف | اونۀ به وي | هغوئ | |

په تختونو ناست وي | هلته به دوی ته هيڅ تکليف نه رسيږي | .................. اونه بۀ د هغې نه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِّنْهَا | بِمُخْرَجِيْنَ۝ | نَبِّئْ | عِبَادِيْٓ | اَنِّيْٓ | اَنَا | الْغَفُوْرُ |
| د هغې نه | ايستلې کيدونکي | خبر ورکړه | بندګانو زما ته | چې بيشکه زۀ | هم زۀ | بخښونکي |

بهرته ويستلې شي | ..................[ائې نبي] زمابندګانو ته خبر ورکړه | چې زۀ ډير بخښونکې يم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الرَّحِيْمُ۝ | وَاَنَّ | عَذَابِيْ | هُوَ | الْعَذَابُ | الْاَلِيْمُ۝ |
| رحم کونکې يم | او بيشکه | عذاب زما | هم هغه | عذاب | دردناك دې |

زيات رحم کونکې يم | اوزما عذاب هم ډير دردناک عذاب دې |

## آسان ترجمه قرآن

(بل طرف ته به) متقيان خلق د باغونو او چينو ترمينځه وي. (هغوی ته به اوويلې شي چه) په دې (باغونو) کښې په سلامتۍ سره بې ويرې داخل شئ. او د هغوی په سينو کښې چه کوم خفګان وي، هغه به مونږ اوباسو، هغوی به ورونړه ورونړه يو بل ته مخامخ په اوچتو تختونو باندې ناست وي. هلته به نه څه سترې والې هغوی ته راشي، او نه به هغوی د هغه ځائې نه ويستلې شي زما بندګانو ته اووايه چه زۀ ډير زيات بخښونکې او رحم کونکې يم. او دا هم ورته اووايه چه زما عذاب دردونکې عذاب دې.

## خلاصه تفسير

﴿اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ جَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ۝﴾ بيشکه د قرآن عظيم الشان نه ويريدونکي [يعنی ايماندار] بۀ باغونو او چينو کښې [ديره] وی [خوا اول د سره وی که معصيت نه وی يا خو معاف شوی وی يا وی دګناه سزا تيرولو نه پس دوئ ته به وئيلې شی چې] ﴿اُدْخُلُوْهَا بِسَلٰمٍ اٰمِنِيْنَ۝﴾ تاسو په دغې جنتونو کښې او چينو کښې] په سلامتئ او امن سره داخل شئ [يعنی دا وخت هم د ناخوښه خيز نه سلامتی ده او راتلونکی وخت کښې د څه سزا انديښنه هم نشته] ﴿وَنَزَعْنَا مَا فِيْ صُدُوْرِهِمْ مِّنْ غِلٍّ اِخْوَانًا عَلٰى سُرُرٍ مُّتَقٰبِلِيْنَ۝﴾ او [په دنيا کښې د طبيعت په تقاضا] د دوئ په زړونو کښې چې کينه وه مونږ بۀ هغه تول [هر څه جنت کښې د د اخليدو نه وړاندې ددوئ د زړونو نه] لرې کړو چې د رونړو پشان به [په مينې محبت سره] اوسيږی په تختونو باندې بـه سره مخامخ کينی ﴿لَا يَمَسُّهُمْ فِيْهَا نَصَبٌ﴾ او هلته به دوئ ته لږ تکليف هم نه رسيږی ﴿وَّمَا هُمْ مِّنْهَا بِمُخْرَجِيْنَ۝﴾ او نه به دوئ ددغه ځائې ځخه ويستلې شی. [ائې محمد ﷺ] ﴿نَبِّئْ عِبَادِيْٓ﴾ تاسو زما بندګانو ته خبر ورکړئ ﴿اَنِّيْٓ اَنَا الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ۝﴾ چې زه لوئې د بخښنې او درحمت خاوند يم ﴿وَاَنَّ عَذَابِيْ هُوَ الْعَذَابُ الْاَلِيْمُ۝﴾ او [داشان] داچې زما سزا [هم] دردناکه سزا دد [دپاره ددې چې په دې باندې په خبريدو سره ئې د ايمان اوتقوی شوق پيدا شی او د کفر او نا فرمانئ نه ويره پيدا شی].

## معارف او مسائل

ابن عباس رضی الله عنه فرمائیلي دي چې کله به جنتیان په جنت کښې داخل شي نو د ټولو څخه وړاندي به ددوئ مخي ته د اوبو دوه چینې پیش کړې شي، د رومبۍ چنې څخه به اوبو څکلو سره په دنیا کښې زړه ته راپیښ شوي خپل مینځ خفګان ټول اوزي. د کوم طبعي اثر چې په دنیا کښې تر آخره پورې پاتې شوي وو. یعني دغه به ټول اووینځلې شي او د ټولو په زړونو کښې به یو تر بله مینه محبت پیدا شي. ولې چې یو تر بله خفګان کول هم یو تکلیف او عذاب دې او جنت د هر تکلیف څخه پاك دې. او یو حدیث پاك کښې راغلي دي چې د چا په زړه کښې لږ شان کینه هم یو مسلمان سره وي هغه به جنت ته نه ځي. دې څخه مراد هغه کینه او بغض دې چې دنیاوي غرض دپاره په خپل قصد او اختیار سره وي. او هم دهغې په بنا دغه کس دې پسې وي چې په لاس بر کیدو سره خپل دښمن ته تکلیف او نقصان ور اورسوي. هسې طبعي زړه بدیدل چې انساني خصوصیت اوغیر اختیاري دې هغه په دې کښې داخل نه دي. همداشان چې څه شرعي وجه ددې باعث وي نو ددغسې خفګان لرې کولو بیان په د ې آیت مبارك کښې راغلي دې، هم علي رضی الله عنه فرمائیلي دي چې امید لرم چې زه رضی الله عنه او طلحه رضی الله عنه او زبیر رضی الله عنه به دهغې خلقو څیني یو چې د زړونو خیرې به ئې د جنت دداخلیدو په وخت کښې لرې کړې شي.(۱) په دې کښې هغه اختلافونو او جګړو ته اشاره ده چې د حضراتو او علي رضی الله عنه په مینځ کښې شوې وي.

﴿لَا يَمَسُّهُمْ فِيهَا نَصَبٌ وَّمَا هُم مِّنْهَا بِمُخْرَجِينَ ۝﴾ دې آیت مبارك څخه د جنت دوه خاصیتونه معلوم شو. ① یو دا چې یو جنتي به ستړې والي او کمزوري نه محسوسوي، څنګه چې په دنیا کښې کله خو کار ورزګار، خوارئ او محنت سره ستړې والي رازي اوکله په دمې [آرام] کولو سره هم انسان ته وخت ستړې کیږي او کمزوري محسوسوي اګر چې دا ډیر خوندناك کار او شغل وي. ② دویم خصوصیت ئې دا معلوم شو چې کوم نعمتونه آرام او راحت وغیره به په جنت کښې ورکړې شي نو هغې کښې به نه څه کمي کولې شي او نه به ترې جنتي اوښکلې شي او نه به ترې دغه نعمتونه واپس اخستې شي بلکه هغه به همیشه وي. او د جنتي استوګنه به هم په جنت کښې همیشه وي، لکه په سورة صاد کښې هم راغلي دي چې: ﴿إِنَّ هَٰذَا لَرِزْقُنَا مَا لَهُ مِن نَّفَادٍ ۝﴾ [یعني دا زمونږ ورکړې رزق دې چې هیڅکله او په هیڅ شان ئې ختمیدل نشته] او دې آیت مبارك کښې فرمائي چې: ﴿وَمَا هُم مِّنْهَا بِمُخْرَجِينَ ۝﴾ [جنتیان به د دغې نعمتونو او راحتونو نه نشي اوښکلې پخلاف د دنیوي معاملو څخه چې که دلته څوك لوئې څخه لوئې نعمت هم چاته ورکړې نو دا خطره خامخا وي چې هغه به ترې څه وخت خفه شي او هغې نه به ئې اوباسي] ③ دریم احتمال چې نه جنت څخه څوك ایستلې کیږي او نه دجنت نعمتونه ختمیږي لیکن پخپله که د جنتي زړه راؤچت شي، په ډیرو پاته کیدو او هلته ستړي شي هلته اوسیدل نه غواړي او بهر ته ترې راؤتل غواړي نو قرآن عظیم الشان دغه احتمال په یو جمله کښې په دې الفاظو سره ختم کړو.

﴿لَا يَبْغُونَ عَنْهَا حِوَلًا﴾ [ یعني دا خلق به دغه ځائې نه مخ په شا راؤتل هیچرې او نه غواړي].

---

۱) مصنف ابن ابی شیبة رقم الحدیث [۶۵]

وَاَنَّ عَذَابِيْ هُوَ الْعَذَابُ الْاَلِيْمُ ﴿٥٠﴾ وَنَبِّئْهُمْ

| اوبيشكه | عذاب زما | هم هغه | عذاب | دردناك دي | او خبر كړه دوئ

| اوزما عذاب هم ډير دردناک عذاب دي | ..............اودوئ ته د

عَنْ ضَيْفِ اِبْرٰهِيْمَ ﴿٥١﴾ اِذْ دَخَلُوْا عَلَيْهِ فَقَالُوْا سَلٰمًا ط

دميلمنو | دابراهيم عليه السلام نه | كله چي | ورننوتل هغوئ | په هغه باند | نو اووئيل هغوئ | سلام دوی په تا

ابراهيم عليه السلام د ميلمنو قصه واوروه | څه وخت چي دوئ هغه ته ورغلل | نو دوئ سلام واچولو

قَالَ اِنَّا مِنْكُمْ وَجِلُوْنَ ﴿٥٢﴾ قَالُوْا لَا تَوْجَلْ اِنَّا

اووئيل هغه | بيشكه مونږه | ستاسو نه | يريدونكي يو | اووئيل هغوئ | مه يريږه ته | بيشكه مونږه

[ابراهيم عليه السلام] اووئيل چي مونږ خو ستاسو نه ويريږو | دوئ اووئيل چي ته مه ويريږه | مونږ

نُبَشِّرُكَ بِغُلٰمٍ عَلِيْمٍ ﴿٥٣﴾ قَالَ اَبَشَّرْتُمُوْنِيْ عَلٰٓى اَنْ

زيري دركوو تاته | په هلك پوهه سره | اووئيل هغه | آيا زيري راكوئ تاسو مالره | سره ددي چي

تا ته ديو هوښيار څوئي د پيداكيدو زيري دركوو | ابراهيم عليه السلام اووئيل چي تاسو ما ته

مَّسَّنِيَ الْكِبَرُ فَبِمَ تُبَشِّرُوْنَ ﴿٥٤﴾ قَالُوْا بَشَّرْنٰكَ

رسيدلي دي ماته | بوډاوالي | نو په كومه وجه | تاسو زيري راكوئ | اووئيل هغوئ | چي زيري دركوو مونږ تاته

په دي حال كښي زيري راكوئ | چي زه بوډا يم انو د څه خبري زيري راكوئ | فرشتو اووئيل چي مونږ د يوې

بِالْحَقِّ فَلَا تَكُنْ مِّنَ الْقٰنِطِيْنَ ﴿٥٥﴾ قَالَ وَمَنْ يَّقْنَطُ

په حقه سره | نو مه كيږه ته | دنااميده خلقو نه | اووئيل ابراهيم عليه السلام | او څوك به نااميده كيږي

ريښتيني خبري زيري دركوو | نو ته نااميده كيږه مه | ابراهيم اووئيل چي د ګمراهانو نه سوا بل هيڅ

مِنْ رَّحْمَةِ رَبِّهٖٓ اِلَّا الضَّآلُّوْنَ ﴿٥٦﴾ قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ

درحمت درب خپل نه | مګر | ګمراهه خلق | بيا اووئيل ابراهيم عليه السلام | نور څه دي | مطلب ستاسو

څوک د خپل رب د رحمت نه نه نااميده كيږي | اوبيا ابراهيم اووئيل اې فرښتو تاسو څه دپاره راغلي يئ |

اَيُّهَا الْمُرْسَلُوْنَ ﴿٥٧﴾ قَالُوْا اِنَّآ اُرْسِلْنَآ اِلٰى قَوْمٍ مُّجْرِمِيْنَ ﴿٥٨﴾ لا اِلَّآ

اې راليږلي شوو | اووئيل هغوئ | بيشكه راليږلي شوى يو مونږه | قوم مجرم ته | مګر نه

..........هغوی اووئيل چي مونږ د يو نافرمانه قوم طرفته راليږلي شوي يو | سوا

اٰلَ لُوْطٍ ط اِنَّا لَمُنَجُّوْهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿٥٩﴾ لا اِلَّا امْرَاَتَهٗ

ال دلوط ته | بيشكه مونږه | خامخا بچ كونكي يو مونږ دهغوئ | ټولو | بغير | دښځي دهغه نه

د لوط عليه السلام د كور والو نه مونږ به دوئ ټول بچ كړو | ..............سوا د هغه د ښځي نه

قَدَّرْنَآ لا اِنَّهَا لَمِنَ الْغٰبِرِيْنَ ﴿٦٠﴾ فَلَمَّا جَآءَ

چي اندازه كړي ده مونږه | چي بيشكه هغه | دروستو پاتي كيدونكو نه ده | نو كله چي راغلل

مونږ فيصله كړې ده چي هغه به په روستو پاتي كيدونكو خلقو كښي وی | كله چي

آلَ لُوطٍ الْمُرْسَلُونَ ۝ قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ مُّنكَرُونَ ۝

آل دلوط علیہ السلام ته | رالیږلی شوی استاذی | اووئیل لوط علیہ السلام | بیشکه چې تاسو ایو قوم یئ | ناآشنا

فرشتې د لوط علیہ السلام کورنۍ ته راغلې | لوط علیہ السلام ورته اووئیل چې تاسو خوناآشنا خلق ښکاریږئ

قَالُوا بَلْ جِئْنَاكَ بِمَا كَانُوا فِيهِ يَمْتَرُونَ ۝

اووئیل هغوئ | بلکه | راغلي یو مونږ تاته | په هغه سره | چې وو دوئ | په هغې کښې | چې شك به ئې کولو

فرشتو ورته اووئیل نه | بلکه مونږ خودرته هغه څیز راوړې دې چې دوئ به په کښې شک کولو

وَآتَيْنَاكَ بِالْحَقِّ وَإِنَّا لَصَادِقُونَ ۝ فَأَسْرِ

| او راغلي یو مونږ تاته | په حق سره | او بیشکه مونږه | خامخا رښتینې یو | نو بوځه

اومونږ تاته یوه حق خبره راوړې ده | ........ اومونږ بالکل ریښتونی یو | ......... نو د شپې

بِأَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِّنَ اللَّيْلِ وَاتَّبِعْ أَدْبَارَهُمْ وَلَا يَلْتَفِتْ

کور والا خپل | په لږ حصه دشپې کښې | او ځه | روستو په هغوئ پسې | او نۀ دګوری واپس

په یوه حصه کښې خپل کور والا اوباسه | اوته هغوی پسې روستو ځه | او په تاسو کښې دې

مِنكُمْ أَحَدٌ وَامْضُوا حَيْثُ تُؤْمَرُونَ ۝ وَقَضَيْنَا

ستاسونه | هیڅوك | او ځئ | هغه ځائ ته | چې تاسو ته حکم کیږی دهغې | او فیصله اورسوله مونږه

هیڅوک شاته نه ګوری | اود کوم ځائې حکم چې درته شوې دې | هلته لاړشئ | اومونږ هغه [لوط]

إِلَيْهِ ذَٰلِكَ الْأَمْرَ أَنَّ دَابِرَ هَٰؤُلَاءِ مَقْطُوعٌ مُّصْبِحِينَ ۝ وَجَاءَ

هغه ته ددې کار | چې بیشکه | جرړې | ددې خلقو | به پرې کړې کیږی | په صباصبا کښې | اوراغلل

ته د دې خبرې فیصله اولیږله | چې صبا راخیژی نو د دې خلقو به جرړې کټ کړې شوې وی | اود ښار

أَهْلُ الْمَدِينَةِ يَسْتَبْشِرُونَ ۝ قَالَ إِنَّ هَٰؤُلَاءِ ضَيْفِي

دښار خلق | چې زیری نې ورکول یو بل ته | اووئیل لوط بیشکه دا کسان | میلمانه زما دی

خلق په خوشحالۍ خوشحالۍ راغلل | [لوط علیہ السلام] اووئیل دا خو زما میلمانه دی

فَلَا تَفْضَحُونِ ۝ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَلَا تُخْزُونِ ۝ قَالُوا أَوَلَمْ نَنْهَكَ

نوبې عزتی مۀ کوئ زما | او اوبیریږئ دالله نه | اومۀ شرمنده کوئ ما | هغوئ اووئیل | آیانۀ وې منع کړې مونږ ته

نو تاسو ما مه شرموئ | اود الله نه اوویریږئ | اوزما بې عزتی مه کوئ | هغوی اووئیل آیا مونږ ته د خلقو د

عَنِ الْعَالَمِينَ ۝ قَالَ هَٰؤُلَاءِ بَنَاتِي إِن كُنتُمْ فَاعِلِينَ ۝

دخلقو نه | اووئیل لوط علیہ السلام | دا | لونړه زما دی | که یئ تاسو | کونکی

حمایت نه نه وې منع کړې [الوط] اووئیل دا زمالونړه دی [دوئ وادۀ کړئ] که تاسو خامخاخه کول غواړئ

لَعَمْرُكَ إِنَّهُمْ لَفِي سَكْرَتِهِمْ يَعْمَهُونَ ۝

زمادې قسم وی په ژوندستا اے نبی | چې بیشکه هغوئ | خامخا په نشه خپله کښې | سرګردانه ګرزیدل

[ائې نبی ﷺ] ستا په ژوند مې دې قسم وی | چې هغوئ په خپله نشه کښې ړانده کانړه شوی وو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَأَخَذَتْهُمُ | الصَّيْحَةُ | مُشْرِقِينَ ۝ | فَجَعَلْنَا | عَالِيَهَا | |
| نواونيول هغوئ لره | يوهيبتناك آواز | په وخت نمر دختلو كښې | نو كړومونږه | پورته طرف دهغې ښار | |
| نو د نمر ختلو سره په هغوی باندې يوه هيبتناكه چغه راغله | بيامونږ ددې كلوپورته طرف لاندې | | | | |
| سَافِلَهَا | وَأَمْطَرْنَا | عَلَيْهِمْ | حِجَارَةً | مِّن سِجِّيلٍ ۝ | إِنَّ |
| لاندې طرف دهغې | اواوورول مونږه | په هغوئ باند | كانړی | چې جوړوۍ دپخې ختې نه | بيشكه |
| كړل | اومونږ په هغوی باندې د پخې ختې كانړې اوورول | ........... يقينا په دې | | | |
| فِي ذَٰلِكَ | لَآيَاتٍ | لِّلْمُتَوَسِّمِينَ ۝ | وَإِنَّهَا | لَبِسَبِيلٍ | |
| په دې واقعه كښې | ډيرې نښې دی | دپاره دپوهې دخاوندانو | اوبيشكه هغه كلې | پروت دی په لاره | |
| كښې د غور او فكر كونكو دپاره نخښې دي | او بيشكه هغه [كلې] په نيغه آباده لاره باندې | | | | |
| مُّقِيمٍ ۝ | إِنَّ | فِي ذَٰلِكَ | لَآيَةً | لِّلْمُؤْمِنِينَ ۝ | |
| چلنده باند | بيشكه | په هغې كښې | خامخا نښه دعبرت ده | دپاره دمومنانو | |
| پراته دی | بيشكه په دې كښې دايماندارو دپاره نخښې دي | | | | |

### آسان ترجمه قرآن

او دوی ته د ابراهيم عليه السلام د ميلمنو خبر وركړه .د هغه وخت حال چه كله هغوی ابراهيم عليه السلام ته راغلل.اوسلام ئې اوكړو ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل چه: مونږخو ستاسونه ويريږو. هغوی اووئيل: ويريږه مه مونږ خو تا ته ديو علم لرونكي بچي (د پيدائش) زيرې دركوو. ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل : آيا تاسو ماته په دې حالت كښې خوشخبری راكوئ چه په ما باندې بوډا توب راخور شوې دې بيا په كوم بنياد زيرې راكوئ.هغوی اووئيل: مونږ تا ته رشتينې زيرې دركړې دې، لهٰذا ته په هغه خلقو كښې شامل نه شې كوم چه نااميده كيږی. ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل: د خپل رب د رحمت نه د گمراهانو نه سوا څوک نااميده كيدې شی؟ (بيا) هغوی تپوس اوكړو: اې د الله پاک راليږلې شوو ملائكو! اوس ستاسو مخې ته څه مهم دې؟ هغوی اووئيل : مونږ د يو مجرم قوم طرف ته (د عذاب نازلولو دپاره) راليږلې شوې يو.خو د لوط عليه السلام د كور خلق د هغې نه مستثنٰی دی مونږ به هغوی ټول بچ كړو، سوا د هغوی د بی بی نه. مونږ دا مقرر كړې ده چه هغه به په هغه خلقو كښې شامله وی (چه په عذاب كښې گيريدلو دپاره) په روستو پاتې شی پس چه كله دا ملائک د لوط عليه السلام د كور خلقو ته راغلل. نو لوط عليه السلام اوفرمائيل: تاسو نااشنا خلق معلوميږئ هغوی اووئيل: نه! بلكه مونږ تا ته هغه (عذاب) راوړلې دې په كوم كښې چه به دې خلقو شک كولو . اومونږ تا ته مضبوطه فيصله راوړې ده، او يقين ساتئ چه مونږ رشتينی يو. لهٰذا تا ته د شپې په څه حصه كښې د خپل كور د خلقو سره اوځه. او تا ته خپله په هغوی پسې شاته شاته ځه او په تاسو كښې دې څوک هم شاته نه گوری، او هم هلته د تلو دپاره روان اوسئ چرته چه تاسو ته حكم دركولې شی او(دغه شان) مونږ لوط عليه السلام ته خپله دا فيصله اوفرمائيله چه صبا كيدوسره به د هغوی جرړه پرې كړې شی. او د ښهر خلق په خوشحالئ سره

(لوط عليه السلام ته) راغلل. لوط عليه السلام (هغوی ته) اوفرمائيل چه: دا خلق زما ميلمانهٔ دی لهٰذا ما مهٔ رسوا کوئ او د الله پاک نه اويرېږئ او ما مهٔ ذليله کوئ. وې وئيل: آيا مونږ ته د دنيا جهان د خلقو (د ميلمستيا) نه منع کړې نه وې؟ لوط عليه السلام اوفرمائيل: که تاسو زما په وينا باندې عمل اوکړئ نو دا زما لونړه (کومې چه ستاسو په نکاح کښې دی تاسو سره) دی (اې پيغمبره) ستا په ژوند قسم کوم حقيقت دا دې چه هغه خلق په خپله مستۍ کښې رانده شوې وو. پس د نمر راختلو سره هغوی چغې اونيول. بيا مونږ هغه زمکه لاندې باندې کړه، او په هغې باندې مو د پخ شوې خاورې د کاڼړو باران اوکړو حقيقت دا دې چه په دې ټوله واقعه کښې د هغه خلقو دپاره ډيرې نخښې دی څوک چه د عبرت په نظر ګوری. او دا علاقې په يو داسې لاره باندې واقع دی چه په هغې باندې خلق مستقل روان وی. يقيناً په دې کښې د ايمان والو دپاره ډير عبرت دې.

## خلاصه تفسير

﴿وَنَبِّئْهُمْ عَنْ ضَيْفِ إِبْرٰهِيْمَ۝﴾ او [اې محمد ﷺ] تاسو ﷺ دې [خلقو] ته دابراهيم ؑ د ميلمنو [دقيصې] هم خبر ورکړئ [دا قيصه هغه وخت راپيښه شوه] ﴿إِذْ دَخَلُوْا عَلَيْهِ﴾ کله چې دغه ميلمانه چې په اصل کښې فربنتی وې خوچې په شکل د بنيادمو وې څکه ابراهيم ؑ هغوئ له ميلمانه اوګنړل] دهغوئ [يعنی د ابراهيم ؑ] خواته راغلل ﴿فَقَالُوْا سَلٰمًا﴾ بيا [په راتلو سره] هغوئ السلام عليکم اوئيل [ابراهيم ؑ هغوئ له ميلمانه اوګنړل زر تر زره ئې تيار کړې خوراك ورته راوړو مګر هر کله چې هغه فربنتې وې، هغوئ چې خوراك اونکړو نو] ﴿قَالَ إِنَّا مِنْكُمْ وَجِلُوْنَ۝﴾ ابراهيم ؑ په زړه کښې اوويريدو چې دا خلق خوراك ولې نه کوی [ولې چې د انسان په شکل کښې فربنتې وی]، هغوئ ؑ چې انسانان اوګنړل او د دوئ د خوراك په نه کولو سره ئې شك شو چې دا خلق چرې مخالف نه وی او] هغوئ وئيل چې مونږ خو تاسو نه ويريږو ﴿قَالُوْا لَا تَوْجَلْ﴾ هغوئ اووئيل چې تاسو ؑ مه ويريږئ ﴿إِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلٰمٍ عَلِيْمٍ۝﴾ ولې چې مونږ [فربنتې يو د الله ﷻ د طرفه مو يو زيرې راوړې دې او] تاسو ته د يو ځوئې زيرې درکوؤ چې لوئې عالم به وی [مطلب دا چې پيغمبر به وی ولې چې په انسانانو کښې تولو نه زيات د لوئې علم خاوندان پيغمبران وی، ددې ځوئې نه مراد اسحاق ؑ دې او په نورو آيتونو کښې اسحاق ؑ سره د يعقوب ؑ زيرې هم راغلې دې] ﴿قَالَ أَبَشَّرْتُمُوْنِيْ عَلٰى أَنْ مَّسَّنِيَ الْكِبَرُ﴾ ابراهيم ؑ اوفرمائيل چې آيا تاسو ماته په دې حالت کښې [د ځوئې] زيرې راکوئی چې ما باندې بوډاتوب راغلې دې نو [په داسې حال کښې ماته] ﴿فَبِمَ تُبَشِّرُوْنَ۝﴾ د څه څيز زيرې راکوئی؟ [مطلب دا چې داکار پخپله عجيبه دې، دا مطلب نه دې چې قدرت نه لرې دې] ﴿قَالُوْا بَشَّرْنٰكَ بِالْحَقِّ﴾ هغوئ [فربنتو] اووئيل چې مونږ درته د واقعی کار زيرې درکوؤ [يعنی ځوئې به دې يقينا پيدا کيږی] ﴿فَلَا تَكُنْ مِّنَ الْقٰنِطِيْنَ۝﴾ نو تاسو مه نااميده کيږئی [يعنی خپل بوډاتوب ته څکه مه ګورئی چې داسې عادی اسبابو باندې نظر کولو سره د نا اميدئی وسوسې غالبې کيږی] ﴿قَالَ وَمَنْ يَّقْنَطُ مِنْ رَّحْمَةِ رَبِّهٖٓ إِلَّا الضَّآلُّوْنَ۝﴾ ابراهيم ؑ اوفرمائيل چې بنه د خپل رب د رحمت څخه څوك نااميده کيږی سوا دګمراهانو خلقو نه [يعنی هر کله چې زهٔ پيغمبر يم نو د ګمراهانو صفت به په ما کښې څنګه راتلې شی؟ ددې کار خالص مقصد ددې عجيبه کيدل دی، باقی د

الله ﷻ وعده رېښتوني ده او زه د امید نه زیات په دې کامل یقین لرم ، دې نه پس د پیغمبرۍ په هوښیارتیا سره دوئ ﷺ ته معلومه شوه چې ددې فرښتو په راتلو کښې سوا د زیرې ورکولو نه یو بل لوئي کار مقصد دې ځکه ئي ] ﴿قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ اَيُّهَا الْمُرْسَلُوْنَ﴾ او فرمائیل چې [کله په قرینو سره ما ته معلومه شوه چې ستاسو د راتلو څه بل مقصود هم شته ] نو [اووښائې چې] اوس تاسو ته څه مهم په وړاندې دې ائې فرښتو ، ﴿قَالُوْۤا اِنَّاۤ اُرْسِلْنَاۤ اِلٰى قَوْمٍ مُّجْرِمِيْنَ﴾ فرښتو اووئیل چې مونږ یو مجرم قوم ته [د دوئ د سزا ورکولو دپاره] رالیږلې شوی یو [ مراد ترې د لوط ﷺ قوم دې ] ﴿اِلَّاۤ اٰلَ لُوْطٍ﴾ مګر د لوط ﷺ خاندان ﴿اِنَّا لَمُنَجُّوْهُمْ اَجْمَعِيْنَ﴾ چې مونږ به دوئ ټول [ د عذاب نه ] بچ کړو [ یعنی د ځان ساتلو طریقه به ورته اوښایو چې دغه مجرمانو نه بیل بیل شي ] ﴿اِلَّا امْرَاَتَهٗ﴾ سوا د ددوئ ﷺ [ یعنی د لوط ﷺ ] د بی بی نه ﴿قَدَّرْنَاۤ ۙ اِنَّهَا لَمِنَ الْغٰبِرِيْنَ﴾ چې د هغې په باره کښې مونږ تجویز کړی دی چې هغه به ضرورهم په دې مجرمانو کښې پاتې کیږی [او دوئ سره به په عذاب کښې اخته کیږی ] ﴿فَلَمَّا جَآءَ اٰلَ لُوْطِ ِۨالْمُرْسَلُوْنَ﴾ بیا چې کله فرښتې د لوط ﷺ خاندان ته راغلې [او هر کله چې د بنیادمو په شکل کښې وې ځکه ] ﴿قَالَ اِنَّكُمْ قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ﴾ دې وئیل چې تاسو خو ناآشنا خلق یئ [ګورئې چې د ښار خلق به تاسو سره څه کوی ولې چې دوئ خو ناآشنا خلقو لره پریشانه کوی] ﴿قَالُوْا بَلْ جِئْنٰكَ بِمَا كَانُوْا فِيْهِ يَمْتَرُوْنَ﴾ هغوئ اووئیل چې نه [مونږ بنیادم نه یو] بلکه مونږ [ فرښتې یو ] تاسو ته مو هغه څیز [یعنی هغه عذاب ] راوړې دې چې په کښې به دې خلقو شك کولو ﴿وَاَتَيْنٰكَ بِالْحَقِّ﴾ او مونږ تاسو ته یقیني کیدونکې څیز [یعنی عذاب مو] راوړې دې ﴿وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ﴾ او مونږ [ په دې خبرو درکولو کښې ] بالکل رېښتوني یو ﴿فَاَسْرِ بِاَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِّنَ الَّيْلِ﴾ نو تاسو دشپې په څه حصه کښې خپل دکور خلق ځان سره کړئی [ د دې ځائې نه ] لاړ شئ ﴿وَاتَّبِعْ اَدْبَارَهُمْ﴾ او تاسو د ټولو روستو روان شئ [ دپاره ددې چې څوك پاتې نشي یا بیرته راؤ نه ګرځي او ستاسو د رعب او دبدبې په وجه څوك مخ په شا اړولو سره هم نه ګوری ولې چې داسې کول منع دی] ﴿وَلَا يَلْتَفِتْ مِنْكُمْ اَحَدٌ﴾ او په تاسو کښې دې څوك مخ په شا اړولو سره هم نه ګوری [یعنی ټول دې زر تر زره اوځی] ﴿وَّامْضُوْا حَيْثُ تُؤْمَرُوْنَ﴾ او چرته چې [دتلو] تاسو ته حکم شوې دې هغې طرفته ټول په ټوله لاړشئ [ په تفسیر در منثور کښې په حواله د سدی نقل شوی دی چې دغه ځائې د شام ملك دې چې هغې ته د هجرت کولو دوئ ﷺ ته حکم شوې وو] ﴿وَقَضَيْنَاۤ اِلَيْهِ ذٰلِكَ الْاَمْرَ اَنَّ دَابِرَ هٰۤؤُلَآءِ مَقْطُوْعٌ مُّصْبِحِيْنَ﴾ او مونږ [ددغې فرښتې په ذریعه] لوط ﷺ ته دا حکم اولیږلو چې صبا کیدو سره به هغوئ تباه اوبرباد شی [ یعنی بالکل به هلاك او برباد شی ، د فرښتو دا خبرې دهغې قصې نه پس شوی دی چې بیان ئې راروان دې لیکن په بیانولو کښې ځکه وړاندې کړې شوې چې د قیصې بیانولو اصلی مقصود ] په نافرمانو خلقو باندې عذاب راتلل د فرمانبردارو خلقو خلاصې او کامیابی کیدل دی [د ړومبې نه په ښه شان سره واضح کړې شی وریسې نوره قصه داسې ده ] ﴿وَجَآءَ اَهْلُ الْمَدِيْنَةِ يَسْتَبْشِرُوْنَ﴾ او دښار خلق [ددغې خبر په آوریدو سره چې د لوط ﷺ کورته ښکلی ښکلی هلکان راغلی دی ] ښه په خوشحالئ خوشحالئ [ په غلط نیت او ارادې سره د لوط ﷺ کور ته ورغلل ] ﴿قَالَ اِنَّ هٰۤؤُلَآءِ ضَيْفِيْ﴾ لوط ﷺ [ چې تر اوسه پورې ئې دوئ بنیادم میلمانه ګڼړل چې ددغې خلقو په خرابو ارادو پوهه شو نو] وې فرمائیل چې دا خلق زما میلمانه دی [ د دوئ په پریشانه کولو سره]

﴿فَلَا تَفۡضَحُونِ﴾ ما [ په عامو خلقو كښې ] مه رسوا كوئى [ ولې چې د ميلمه سپكاوى كول دكوربه سپكاوې كول دى ، كه په دې راغلو خلقو نه زهيريږئى نو كم از كم زما خيال خو اوساتئ ځكه چې زه خو ستاسو ددې كور كلى بنده يم ، ددې نه علاوه ستاسو د ناكاره كار ارادو لرل د الله ﷻ د قهر او عذاب سبب دې ] ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَلَا تُخۡزُونِ﴾ تاسو دالله ﷻ نه ويريږئى او ما [ دې خپلو ميلمنو ته] مه شرمنده كوئى [ ميلمانه به دا گڼړى چې د كور كلى خلق مې هم څه لحاظ نه ساتى ] ﴿قَالُوۡۤا اَوَلَمۡ نَنۡهَكَ عَنِ الۡعٰلَمِيۡنَ﴾ هغوئ اووئيل [ چې دا ستا شرمنده كيدل ستا دخپله لاسه ځكه دې چې دوئ دې ميلمانه كړى دى] آيا مونږ تاسو ﷺ دټولې دنيا د خلقو [ دميلمه كولو ] نه [څو څو ځل ] نه يئ منع كړى [ كه دوئ نه وې ميلمانه كړې نو داسې به نه شرمنده كيدلې] لوط ﷺ اوفرمائيل چې [ داخو اوښائى چې دداسې خراب قدم اوچتولو څه ضرورت دې چې ما د چا ميلمستيا كولو ته هم نه پريږدئ غرض مو خپل گنده شهوتونه پوره كول دى ] ﴿قَالَ هٰۤـؤُلَاۤءِ بَنٰتِىۡۤ﴾ دا زما [انړينديې] [مرندې] لونړه [ چې ستاسو په كورونو كښې ] دى ﴿اِنۡ كُنۡتُمۡ فٰعِلِيۡنَ﴾ كه تاسو زما خبره منئ [ نو په شرافت سره ددغې خپلو ښځو نه خپل طلب پوره كوئى ، خو هغوئ د چا آؤر يدل ؟ ] ﴿لَعَمۡرُكَ اِنَّهُمۡ لَفِىۡ سَكۡرَتِهِمۡ يَعۡمَهُوۡنَ﴾ ستاسو په ژوند مې دې قسم وى چې هغوئ په خپلې مستئ كښې بې خوده وو ، ﴿فَاَخَذَتۡهُمُ الصَّيۡحَةُ مُشۡرِقِيۡنَ﴾ نو دنمر راختلو په وخت هغوئ سخت آواز راگير كړل [ د مشرقين لفظ ترجمه ده ، دې نه وړاندې د مصبحين لفظ ترجمه د صبا كيدو په وخت شوې ده دادواړه معنې په دې شان جمع كيدې شى چې د صبا راختلو نه شروع شو او دا اشراق تر وخته پورې ختم شو ] ﴿فَجَعَلۡنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا﴾ بيا [ددغې سخت آواز نه پس ] مونږ ددغې آباديانو [ زمكه داسې الټه كړه چې ] بره مو ښكته كړه او [ښكته مو بره كړه ] ﴿وَاَمۡطَرۡنَا عَلَيۡهِمۡ حِجَارَةً مِّنۡ سِجِّيۡلٍ﴾ او په دغه خلقو مو د كانړو ورول شروع كړل ﴿اِنَّ فِىۡ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّلۡمُتَوَسِّمِيۡنَ﴾ په دې واقعه كښې ډيرې نخښې دى د بصيرت والو دپاره [ لكه يوه دا چې د بدو انجام آخر بد وى په دې كښې په مهلت راتلو باندې دهوكه كيدل نه دى پكار ، دويمه دا چې هميشه راحت او عزت صرف الله ﷻ باندې په ايمان راوړلو او دهغه په فرمانبردارئ كولو باندې انحصار لرى ، دريمه دا چې د الله ﷻ قدرت په انسانى قدرت باندې د قياس كولو غلطى ځكه مه كوئى چې ټول هر څه د الله ﷻ په قبضه قدرت كښې دى كه ظاهرى اسباب د څه خلاف هم وى نو الله ﷻ هغه څه هم كولې شى وغيره وغيره .

## معارف او مسائل

﴿لَعَمۡرُكَ﴾ روح المعانى د جمهورو مفسرينو دقول مطابق نقل كړيد ى چې الله ﷻ د نبى اكرم ﷺ په حيات طيبه قسم خوړلې دې .[1] بيهقى په دلائل النبوة كښې او ابو نعيم او ابن مردويه وغيره د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما څخه روايت كړى دى چې الله ﷻ په ټولو مخلوقاتو او كائناتو كښې د محمد ﷺ څخه زياته مرتبه او عزت بل چا ته نه دې وركړې . ځكه ئې د بل پيغمبر ، فرښتې وغيره په ژوند قسم نه دې خوړلې ،[2] دا څومره لوئې عزت شو چې يوأځې د نبى اكرم ﷺ په ژوند مبارك باندې ئې قسم اوخوړو.

---

[1] ) روح المعانى تحت هذه الآية [ج: ۱۰ ص:۵۰]
[2] ) دلائل النبوية رقم الحديث [۲۲٤۱]

**په غیر الله باندې قسم خوړل:** یو انسان لره د الله ﷻ د ذات او صفاتو څخه سوا بل هیڅ یو څیز باندې قسم خوړل ځکه ناروا دی چې قسم په هغه ذات خوړلې شي چې د ټولو څخه لوئې وي اوداسې یوازې الله ﷻ کیدې شي.

یو حدیث پاك کښې نبی اکرم ﷺ فرمائیلی دی چې په خپل مور پلار او بتانو باندې قسمونه مه خورئی، صرف په الله ﷻ باندې قسم خورئی او داسې هم هله خورئی چې ستاسو خبره رښتیا وی. [ابو داؤد، نسائی د ابی هریره رضی الله عنه څخه]. ([1])

صحیحینو کښې منقول دی چې نبی اکرم ﷺ د عمر بن الخطاب رضی الله عنه څخه واورېدل چې پخپل پلار ئې قسم خوړلو نو نبی اکرم ﷺ پرې آواز اوکړو چې خبردار! الله ﷻ په پلارانو باندې قسم خوړل منع کړی دی. قسمونه یوازې د الله ﷻ په نوم پکار دی، ګنی چپ او خاموش دې اوسیږی. [قرطبی، مائده]. ([2])

خو الله ﷻ په هر هغه څیز قسم خوری چې زیات شرافت او لویه فائده ئې چې څرګندول وی، وړاندې بیان شوې حکم یوازې بندګانو دپاره دې خو هر کله چې الله ﷻ د هر چا څخه لوئې دې ځکه د هغه د قسم خوړلو مطلب دا نه وی چې ګنی هغه ته دغه څیز د ځانه هم لوئې ښکاری، ځکه چې مطلق لوئی صرف الله تعالی لره ده.

**چې په کومو کلو باندې عذاب نازل شوې دې دهغې نه عبرت حاصلول پکار دی:** ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّلْمُتَوَسِّمِينَ ۝ وَإِنَّهَا لَبِسَبِيلٍ مُّقِيمٍ ۝﴾ دې کښې الله ﷻ ددغې ودانیانو دواقع کیدو ځائې اوخودلو چې سعودی عرب څخه شام ته د تلو په لار دې، ورسره داهم فرمائی چې په دې کښې دبصیرت خاوندانو دپاره د الله ﷻ د کامل قدرت لوئې نخښې دی.

یوبل آیت کښې داسې هم فرمائی چې: ﴿لَمْ تُسْكَن مِّن بَعْدِهِمْ إِلَّا قَلِيلًا﴾ چې دغه ودانیانې د تباه کیدو څخه روستو دوباره نه دی ودانې شوی سوا د یو څو آبادیانو څخه، چې داهم ورسره یو ځائې شی نو ترې معلومیږی چې الله ﷻ دا ودانیانې اودهغې مکانونه د راتونکو نسلونو دپاره د عبرت سامان جوړ کړې دې.

هم دغه وجه ده چې نبی اکرم ﷺ کله په دغې ځایونو باندې تیر شو نو د هیبت په وجه د نبی اکرم ﷺ دا حال شو چې سر مبارك به ئې ښکته شو، خپله سورلی به ئې ددغې ځایونو څخه په تیزئی سره تیروله. ځکه د نبی اکرم ﷺ دې عمل مبارك مونږ ته اوخودل چې دداسې ځایونو څخه په تیزئ وتل سنت طریقه ده، څوك چې هلته تماشو ته ایساریږی نو دا ډیره سخت دلی ده. بلکه دغه ځایونه دعبرت حاصلولو طریقه داده چې هلته په رسیدو سره د الله ﷻ کامل قدرت ځان ته مخې ته کړی او د عذاب ویره پرې راشی.

د لوط علیه السلام التبه شوې علاقه د قرآن عظیم الشان د ارشاد مطابق د عربو څخه شام ته تلونکی لاره باندې د اردن په علاقه کښې نن هم دا مقام د سمندر د سطح څخه په کافی ژور والی کښې د یو لوئې صحراء په صورت کښې موجود دی. ددې په لویه رقبه باندې د اوبو ډنډ د

---

[1] ) سنن ابوداود، کتاب الإیمان والنذور، باب فی کراهیة الحلف بالآباء [ج:۲ص:٤٦٣] و سنن النسائ کتاب الإیمان والنذور باب الحلف بالأمهات [ج: ۲ص:١٤٢]

[2] ) تفسیر القرطبی سورة المائدة [ ج:٦ص:۲۷۰، ۲۷۱] و صحیح البخاری کتاب الإیمان والنذور ،باب لا تحلفوا بآبائکم [ج:۲ص:۹۸۳]

دریاب په شکل کښې خور دې، په دې کښې هیڅ سادار ځیز ، کب[] ماهئ، چینډخه وغیره ژوندئ نشی پاتې کیدې، ځکه دغه بحر لوط او بحر میت نومیږی، تحقیق څخه معلومه شوه دې د ابو اجزاء ډیر کم او د تیلو برخې ډیرې دی، ځکه په کښې د اوبو هیڅ حیوان ژوندي نشي پاتې کیدې.

نن صبا د آثار قدیمه محکمې په دې کښې د اوسیا.و څه ځایونه ، هوټلونه وغیره هم جوړ کړی دی، د آخرت څخه بې پرواه ماده پرستو خلقو دغه ځایونو څخه نن صبا د سیل او تماشې ځایونه ګرځولی دی او خلق ورته د سیل او تماشې دپاره ورځی، قرآن عظیم الشان په دې حالت د بې پروایئ باندې د خبرداره کولو دپاره په آخر کښې فرمائی چې: ﴿اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰیَةً لِّلْمُؤْمِنِیْنَ﴾ یعنی په حقیقت کښې دا واقعات او ځایونه د هر خاوند د بصیرت دپاره دعبرت اخستو ځیزونه دی خو ددې څخه عبرت اخستونکی یوازې مؤمنان وی، نور خلق دیو تماشګیر په حیثیت اوګوری او ترې لاړشی.

| وَاِنْ كَانَ | اَصْحٰبُ الْاَيْكَةِ | لَظٰلِمِيْنَ | فَانْتَقَمْنَا | مِنْهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| او بیشکه چی وو | خاوندان دایکې | خامخا ظالمان | نو بدله واغستله مونږه | دهغوئ نه |
| اود بڼرو اوسیدونکی [قوم دشعیب ﷺ] ډیر ظالمان وو نو مونږ د هغوی نه انتقام واخستل | | | | |
| وَاِنَّهُمَا | لَبِاِمَامٍ | مُّبِيْنٍ | وَلَقَدْ كَذَّبَ | اَصْحٰبُ الْحِجْرِ |
| او بیشکه علاقې ددواړو | په لاره | ښکاره کښې دی | او دروغ ګڼړلی دی | اوسیدونکو دحجر |
| اودا دواړه [هلاک شوی] کلی په لویه لار پراته دی او دحجر اوسیدونکو خلقو پیغمبران ([1]) | | | | |

[1] دَ ثمودیانو دردناک انجام:- دَ حجر والا نه مراد ثمودیان دی کومو چه خپل نبی حضرت صالح ﷺ دروغژن ګڼړلې وو او دا ښکاره خبره ده چه دَیونبی دروغ ګڼړل لکه دَټولوانبیاء کرامو نه انکار دې. په دې وجه اوفرمائیلې شو چه هغوی نبیان دروغژن اوګڼړل یا هغوی له داسې معجزې راغلې په کوموسره چه دَ حضرت صالح ﷺ صداقت په هغوی ښکاره شو لکه دَ یوسخت کاڼړي نه دَ اوښې راوتل چه هم دَ هغوی په ښارونوکښې ځریدله اویوه ورځ به هغې اوبه څکلې او یوه ورځ دَ قوم ځناورو. خو بیا هم دا خلق نافرمانه وواو هغه اوښه ئې اووژله هغه وخت حضرت صالح ﷺ اوفرمائیل بس اوس به په دریو ورځو کښې دننه په تاسو دَ الله تعالی قهر نازلیږی دا بالکل رښتوني وعده ده او اټل عذاب دې. دې خلقو دَ الله تعالی په لارخودلو سره هم خپل روندتوب له ترجیح ورکړه. دې خلقو به صرف دَ خپل طاقت دَ ښکاره کولود پاره اودَ ریاکارئی کولو دَ پاره په کبر او لوئی سره په غرونوکښې کورونه جوړول. دَ څه ویرې یا ضرورت دَ پاره دا نه وو. کله چه رسول الله ﷺ جنګ تبوك له تلو نو په لارکښې دا کورونه اوکتل نو حضور ﷺ په سرباندې کپړا واچوله اوسورلی ئې تیزه کړه او خپلو ملګرو ته ئې اوفرمائیل په چا چه عذاب راغلې دې د هغوی په کلوباندې په ژړاسره تیریږئی که ژړا نه درځی نو د ژړا شکل جوړکړئی او تیرشئی داسې نه چه هم دَ دې عذابونو تاسو هم ښکار شئی. (صحیح بخاری:۴۴۱۹، صحیح مسلم: ۲۹۸۰، مسند حمیدی:۶۵۳) آخر په څلورمه ورځ سحر په هغوی باندې دَ الله تعالی عذاب دَ یو چغې په شکل کښې راغلو هغه وخت دَ هغوی ګټې هیڅ په کار رانغلې دَ کومو فصلونو او میوو دَ حفاظت دَ پاره اودَ هغې دَ زیاتولودَ پاره دَ اوبې اوبه څکل نه خوښولوسره هغه قتل کړې وه هغه ټول نن بې فائدې ثابت شو اودَ رب امر خپل کار اوکړو.

الْمُرْسَلِينَ ﴿٨٠﴾ وَآتَيْنَاهُمْ آيَاتِنَا فَكَانُوا عَنْهَا مُعْرِضِينَ ﴿٨١﴾

رسولانو لره | او ورکړل مونږه هغوئ ته | نښې خپلې | نو وو هغوئ | دهغې نه | مخ اړونکی

دروغژن ګڼړلي وو | اومونږ هغوی ته خپلې نخښې ورکړې | خو هغوی ترې مخونه اړوونکې وو

وَكَانُوا يَنْحِتُونَ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا آمِنِينَ ﴿٨٢﴾ فَأَخَذَتْهُمُ

اوو هغوئ | چې کنستل به ئې | دغرونو نه | کورونو | په امن کښې وو | نو اونیول هغوئ لره

اوهغوی به په غرونو کښې کورونه تراشل | او هغوي بې غمه وو | ............ نو په هغوی باندې

الصَّيْحَةُ مُصْبِحِينَ ﴿٨٣﴾ فَمَا أَغْنَىٰ عَنْهُمْ مَا كَانُوا

یو هیبتناك آواز | په وخت دصبا کښې | نو دفع نهٔ کړو عذاب | دهغوئ نه | هغې کارونو | چې وو هغوئ

د سحر په وخت کښې یوه چغه اوشوه | نو هغوی چې څه کړي وو هغه ئې هیڅ په کار

يَكْسِبُونَ ﴿٨٤﴾ وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا

چې کول به ئې | اونهٔ دي پیداکړي مونږه | آسمانونه | اوزمکه | اوهغه څهٔ | چې په منځ ددې دواړو کښې دي

رانغلل | اومونږ آسمانونه او زمکه او د دې دواړو په مینځ کښې چې څه دي (١) بې کاره

إِلَّا بِالْحَقِّ ۗ وَإِنَّ السَّاعَةَ لَآتِيَةٌ ۖ فَاصْفَحِ الصَّفْحَ الْجَمِيلَ ﴿٨٥﴾

مګر | په حقه | او بیشکه | وخت دفیصلې | خامخا راتلونکې دې | نوڅنګ کوه | څنګ | ښکلې

نه دي پیدا کړي | اوبیشکه قیامت خامخا راتلونکې دې | نو ته په ښکلې طریقه د دوئ نه ډډه اوکړه

---

(١) **مشرکانونه دَ سترګوپټولوحکم**:- الله تعالیٰ ټول مخلوق په عدل سره جوړکړې دې. قیامت راتلونکې دې. بدوته به بده او نیکانوته به نیکې بدلې ملاویدونکې دی. مخلوق په باطل سره نه دی پیداکړې شوې داسې دَ کافرانوګمان دې اودَ کافرانو د پاره ویل او دوزخ دې. بل آیت کښې دی آیا تاسو داګڼړئ چه مونږ تاسو بې کاره پیداکړی ئې اوتاسو به زمونږ طرف ته واپس نه راګرځئ. اوچت دې الله او مالك دَ حق دې د چا نه بغیرچه بل څوك د عبادت لائق نشته اودَ عرش کریم مالك هم هغه دې. (٢٣/المؤمنون:١١٥-١١٦) بیا خپل نبی ﷺ ته حکم ورکوی چه دَ مشرکانونه سترګې پټې کړه دَ هغوی تکلیف او دروغ ګڼړل او بده وینا برداشت کړه لکه چه په بل آیت کښې دی دوی نه سترګې پټې کړه او سلام ورته اووایه دوی ته به اوس معلومه شی. (٤٣/الزخرف:٨٩) داحکم دَ جهاد د حکم نه وړاندې وو دا آیت مکی دې او جهاد پس دَ هجرت نه مقرر او شروع شوې دې. ستا رب خالق دې او خالق دَ وژلونه پس هم په پیداکولوباندې قادر دې هغه دَ یوڅیز باربار پیداکول سترې کولې نه شی. ذرې کومې چه خورې شی هغه راجمع کول او په هغې کښې سا اچولې شی. لکه چه ارشاد دې ﴿أَوَلَيْسَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِقَادِرٍ﴾ (٣٦/یٰس:٨١) دَ آسمان او زمکې خالق ولې دَ دې په شان دَ پیداکولوقدرت نه لری؟بې شکه هغه پیداکونکې اوعلم والا دې. هغه چه کله د یوڅیز دَ کولواراده کوی نوهغې ته دَ کیدلو حکم فرمائی بس هغه کیږی. پاك ذات دې دَهغه الله تعالی دَ چا په لاس کښې چه د هرڅیز ملکیت دې اوهم دَ هغه طرف ته به تاسو ټول ورواپس کولې شئ.

| اِنَّ رَبَّكَ هُوَ الْخَلّٰقُ الْعَلِيْمُ ۝ |
|---|
| بیشکه \| رب ستا \| هم هغه \| ښه پیدا کونکي دی \| او پوهه دی \| |
| بیشکه ستا رب د هر څیز خالق دی \| په هر څیز پوهه دی \| |

## آسان ترجمه قرآن

او د آیکه اوسیدونکی (هم) ډیر ظالمان وو .پس مونږ د هغوی نه هم انتقام واخستلو. او د هغه دواړو قومونو علاقې په ښکاره لاره باندې واقع دی او د حجر اوسیدونکو هم د پیغمبرانو تکذیب کړې وو .او مونږ هغوی ته خپلې نخښې ورکړې نو هغوی د هغې نه مخ واړولو او هغوی به غرونو تراشلو تراشلو سره بې ویرې کورونه جوړول. آخر دا چه هغوی ته سحر په وخت کښې چغې راونیول او نتیجه دا شوه چه په کوم هنر باندې هغوی کسب کولو، هغه د هغوی هیڅ بکار رانغلو. او مونږ آسمان او زمکه او څه چه د دې ترمینځه دی دا د یو حق مقصد نه بغیر نه دی پیدا کړی . او د قیامت وخت به ضرور راځی. لهذا (اې پیغمبره! د کافرو په طرز عمل باندې) په ښکلی انداز سره درګذر (معاف) کوه .یقین ساته چه ستا رب هر څه لره پیدا کونکې دې په هر څه باندې پوهه دې.

## خلاصه تفسیر

**اصحاب ایکه او اصحاب حجر:** ﴿وَاِنْ كَانَ اَصْحٰبُ الْاَيْكَةِ لَظٰلِمِيْنَ ۝﴾ او د بنړ اوسیدونکی [ یعنی د شعیب ﷺ امت هم ] ډیر ظالمان وو ﴿فَانْتَقَمْنَا مِنْهُمْ ۘ﴾ نو مونږ د هغوئ نه [هم] بدله واخستله [ او هغوئ مو په عذاب سره هلاك كړل] ﴿وَاِنَّهُمَا لَبِاِمَامٍ مُّبِيْنٍ ۝﴾ او د دواړو [قومونو ] ودانئ په صفا سړك باندې [واقع] دی [ او شام ته د تلو په لاره كښې ليدلې شی ] ﴿وَلَقَدْ كَذَّبَ اَصْحٰبُ الْحِجْرِ الْمُرْسَلِيْنَ ۝﴾ او د حجر خلقو [ هم ] پیغمبران ﷺ دروغژن اوبلل [ ولې چې صالح ﷺ ته درغژن وئیل ټولو پیغمبرانو ﷺ ته دروغژن وئیل څکه دی چې اصل دین د ټولو پیغمبرانو ﷺ یو دې ] ﴿وَاٰتَيْنٰهُمْ اٰيٰتِنَا﴾ او مونږ هغوئ ته [د خپل طرفنه] نخښې ورکړې [ چې ورسره د الله ﷻ توحید او د صالح ﷺ پیغمبری ثابتیده لکه د توحید دلیلونه او اوښه چې د صالح ﷺ معجزه وه] ﴿فَكَانُوْا عَنْهَا مُعْرِضِيْنَ ۝﴾ نو دغې خلقو ددغې [نخښو ] نه [ په مخه باندې] مخ اړولو ﴿وَكَانُوْا يَنْحِتُوْنَ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوْتًا اٰمِنِيْنَ ۝﴾ او دغې خلقو به په غرونو كښې كنستلو سره په هغې كښې كورونه جوړول چې [ په كښې د ټولو آفتونو نه ] په امن پاتې كيږی ﴿فَاَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ مُصْبِحِيْنَ ۝﴾ نو هغوئ د صبا په وخت [ خواه د صبا راختلو په اول سر كښې يا دنمر راختلو په وخت چې دا دواړه احتمالونه كيدې شی ] سخت آوازونو راونيول ﴿فَمَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ۝﴾ نو د هغوئ [ دنياوی هنرونه هغې له هيڅ په كار رانغلل [ هم په دې محكمو كورونو كښې ئې په عذاب راوستو سره كار خلاص كړو ، دغې آفت نه ئې كورونو خلاص نه كړل بلكه د دغې آفت راتلل ئې په خوب وخيال كښې هم نه وو كه وې هم نو بيا به ئې څه كړی وو؟ ]

﴿وَمَا خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ اِلَّا بِالْحَقِّ ۭ﴾ او [ ائې محمد ﷺ تاسو ددې خلقو د ضد او مخالفت كولو نه مه ويريږئ چې يوه ورځ به فيصله كيږی چې هغه د قيامت ورځ ده دهغې د راتلو بيان داسې درته كوؤ چې ] مونږ آسمانونه او زمكه او ددې مينځ كښې څيزونه بغير د مصحلت

[ښیګړې] نه پیدا نه دی پیدا کړي [ بلکه ښیګړه په کښې دا وه چې ددې په لیدو سره ددنیا د پیداکوونکي په شته والی اود هغه په یو والی او لوئې والی باندې دلیل جوړ کړې شي او دهغه حکمونو منلو ته غاړه کیږدي ، ددې دلیل قائمیدو نه پس چې څوك داسې نه کوي هغه ته به عذاب ورکولې شي ] ﴿وَاِنَّ السَّاعَةَ لَاٰتِيَةٌ﴾ او [ کله چې په دنیا کښې پوره عذاب ورکول نشته نو بل ځائې کښې ئې ورکول پکار دی ځکه دې دپاره قیامت تاکلې شوې دې پس] ضرور قیامت راتلونکې دې [ هلته به ټولو سره کتلې شي ] ﴿فَاصۡفَحِ الصَّفۡحَ الۡجَمِيۡلَ﴾ نو تاسو ﷺ [هیڅ غم مه کوئی بلکه] په ښه شان سره [ ددې ورانکارو] د درګزر معنی مطلب دا دې چې [ په دې غم مه کوئې ، دې پسې مخه مه اوړئې اوښه خبره داده چې شکایتونه هم مه کوئې ځکه چې ] ﴿اِنَّ رَبَّكَ هُوَ الۡخَلّٰقُ الۡعَلِيۡمُ﴾ بیشکه ستاسو رب [ هر کله چې ] لوئې پیدا کوونکې [ دې ددې نه ثابته شوه چې ] لوئې عالم [هم] دې [ دټولو حال ورته معلوم دې ستاسو صبر کول او ددوئ ورانې کول هم ورته معلوم دی ځکه به ترې پوره پوره بدله اخلی ].

## معارف او مسائل

﴿الۡاَيۡكَةِ﴾ بنړ ، یعنی ګڼړ ځنګل ته وئیلې شي . ځینې وائی چې د مدین په خوا کښې یو بنړ وو ځکه د مدین خلقو ته هم ﴿اَصۡحٰبُ الۡاَيۡكَةِ﴾ وئیلې شي . ځینې حضرات فرمائی چې دا دواړه بیل بیل قومونه وو ، د یو قوم د هلاکیدو ځخه روستو شعیب ﷺ بل قوم ته د پیغمبر په حیثیت اولیږلې شو.

تفسیر روح المعانی کښې د ابن عساکر په حواله دا مرفوع حدیث نقل کړې شوې دې چې: ﴿ان مدین واصحاب الایکة امتان بعث الله تعالی الیهما شعیبا﴾ [1] والله اعلم. او حجر یو وادی ده چې د حجاز او شام ترمینځه واقع ده ، په دې کښې ثمود قوم آباد وو.

دسورت په اول سر کښې نبی اکرم ﷺ سره د مکې دکفارو د سخت ضد او مخالفت کولو بیان وو ، نبی اکرم ﷺ ته تسلی ورکولو اجمالی مضمون هم په کښې بیان شوې وو ، اوس د سورت په ختمیدو سره نبی اکرم ﷺ ته د تسلئ ورکولو مضمون په تفصیل سره بیانولې شي.

| اِنَّ | رَبَّكَ | هُوَ | الۡخَلّٰقُ | الۡعَلِيۡمُ ۞ | وَلَقَدۡ اٰتَيۡنٰكَ | سَبۡعًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه | رب ستا | هم هغه | ښه پیدا کونکې دې | او پوهه دې | او درکړی دی مونږ تاته | اوه |
| بیشکه ستا رب د هر څیز خالق دې | | | په هرڅیز پوهه دې | | ............ | اومونږ تاته داسې اووۀ |

| مِّنَ الۡمَثَانِيۡ | وَالۡقُرۡاٰنَ | الۡعَظِيۡمَ ۞ | لَا تَمُدَّنَّ | عَيۡنَيۡكَ |
|---|---|---|---|---|
| دبار بار لوستونکو آیتونونه | او درکړي مو دې قرآن | چې لوئ دې | مۀ اوږد وه | سترګې خپلې |
| آیتونه درکړی دی | چې دوه دوه خله لوستلې شي | اولوئې قرآن | مو درکړې دې | ته خپلې سترګې |

| اِلٰى مَا | مَتَّعۡنَا | بِهٖۤ | اَزۡوَاجًا | مِّنۡهُمۡ | وَلَا تَحۡزَنۡ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه سامان ته | چې نفع ورکړی ده مونږ | په هغې سره | مختلف قسم خلقوله | ددوئ نه | اوخفګان مۀ کوه |
| په هغه څیزونو پسې مه پورته کوه | | کوم چې مونږ د دې کافارنو مختلفو قسمونو ته ورکړی دی | | | |

[1] ) روح المعانی تحت هذه الآیة [ج: ۱۰ ص:۵۸]

عَلَيۡهِمۡ وَاخۡفِضۡ جَنَاحَكَ لِلۡمُؤۡمِنِينَ ۝ وَقُلۡ إِنِّيٓ أَنَا ٱلنَّذِيرُ

په هغوئ باند | اوښکته کړه | وزر خپل | دپاره دمومنانو | اووایه چي بیشکه زهٔ | هم زهٔ | یرونکي یم

اوددوئ په باره کښې غم مکوه | اود ایماندارو سره نرمی کوه | اودا اووایه چې زهٔ ښکاره

ٱلۡمُبِينُ ۝ كَمَآ أَنزَلۡنَا عَلَى ٱلۡمُقۡتَسِمِينَ ۝ ٱلَّذِينَ

ښکاره | لکه څنګه | چي نازل کړې وو مونږه | په ډله بازو باند | هغه

ویرونکې یم | لکه څنګه چې مونږ په هغه قسم خوړونکو باندې عذاب نازل کړو چا چې

جَعَلُوا۟ ٱلۡقُرۡءَانَ عِضِينَ ۝ فَوَرَبِّكَ لَنَسۡـَٔلَنَّهُمۡ

چي جوړ کړو هغوئ | قرآن | ټوټې ټوټې | نو قسم دې په رب ستا | چي خامخابه تپوس کوو مونږه دهغوئ له

قرآن ټکړې ټکړې کړو | ..................زما دې ستا په رب قسم وی | چې مونږ به د ټولونه

أَجۡمَعِينَ ۝ عَمَّا كَانُوا۟ يَعۡمَلُونَ ۝ فَٱصۡدَعۡ بِمَا

دټولو نه | دهغه عملونو | چي وو هغوئ | چي کول به ئې | نو په ښکاره اووایه اے نبی | هغه

دهغه کارونو په باره کښې پښتنه کوو کوم چې دوئ کول | ..........نوتاته چې دکوم کار

تُؤۡمَرُ وَأَعۡرِضۡ عَنِ ٱلۡمُشۡرِكِينَ ۝ إِنَّا كَفَيۡنَٰكَ

چي حکم کیږي تاته دهغې | او مخ اوګرځوه | دمشرکانو نه | بیشکه مونږه کافي یو ستادطرفنه

حکم شوې دې هغه ښکاره باره آوروه | او دمشرکانو پرواه مکوه | مونږ ستادپاره د ټوقو کونکو په مقابله

ٱلۡمُسۡتَهۡزِءِينَ ۝ ٱلَّذِينَ يَجۡعَلُونَ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ ۚ فَسَوۡفَ

ټوقو کونکو خلقو لره | هغه خلق | چي جوړوی | دالله سره | معبود بل | نو ډیر زر به

کښې کافي یو | اوکوم کسان چې د الله ﷻ سره نور معبودان جوړوی | ..........نو ډیر زر به

يَعۡلَمُونَ ۝ وَلَقَدۡ نَعۡلَمُ أَنَّكَ يَضِيقُ صَدۡرُكَ بِمَا

پته اولږی دوئ ته | او معلوم دی مونږ ته | چی بیشکه تهٔ چې نې | تنګیږی | سینه ستا | په هغه خبرو

ورته معلومه شی | او مونږ ښه پوهیږو چې ددوئ په ویناګانو باندې ستا زړه

يَقُولُونَ ۝ فَسَبِّحۡ بِحَمۡدِ رَبِّكَ وَكُن مِّنَ ٱلسَّٰجِدِينَ ۝

چي وائي نې هغوئ | نو تسبیح وایه | سره دحمد | درب ستا | اوشه | دسجده کونکونه

تنګیږی | نو ته د خپل رب تعریف سره پاکی بیانوه | او سجده کونکو خلقو کښې شامل شه

وَٱعۡبُدۡ رَبَّكَ حَتَّىٰ يَأۡتِيَكَ ٱلۡيَقِينُ ۝

اوبندګی کوه | درب خپل | دهغې وخته پورې | چي راشی تاته | هغه وخت چې دهغې راتلل یقیني دی

اوتر یقین [مرګه] پورې د خپل رب عبادت کوه

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ تاته داسې اووهٔ آيتونه درکړی دی کوم چه بار بار لوستلې شي، او د عظمت والا قرآن مو درکړې دې او ته هغه څيزونو ته سترګې مه وراړوه کوم چه مونږ د(کافرانو) له د مختلفو خلقو د مزو کولو دپاره ورکړې دی، او مه په دوی باندې خفه کيږه، او کومو خلقو چه ايمان راوړې دې، هغوی دپاره د خپلې مهربانئ وزر خور ساته. او (کفر کونکو ته) اووايه چه زهٔ بس په ښکاره الفاظو باندې ويره ورکونکې يم. (دا تنبيه د قرآن کريم په ذريعه هم دغه شان نازل کړې شوې ده) لکه مونږ چه په هغه تفرقه کونکو باندې نازل کړې وو. چا چه (خپل) لوستلې شوې کتاب بيلې بيلې حصې کړو پس ستا په رب قسم! مونږ به د هغوی يو يو نه تپوس کوو. چه هغوی به څه کول. لهٰذا د کومې خبرې چه تاته حکم درکولې شي هغه په ښکاره خلقو ته واوروه اوکوم خلق چه (بيا هم) شرک کوی، د هغوی پرواه مه کوه. يقين اوساته چه مونږ ستا د طرف نه هغه خلقو دپاره کافی يو کوم چه (تا پورې) ټوقې کوی. چا چه د الله پاک سره بل معبود نيولې دې. پس زر به هغوی ته پته اولګی يقينًا مونږ ته معلومه ده چه کومې خبرې دوئ جوړوی، په هغې باندې ستا زړه تنګيږی. نو (د هغې علاج دا دې چه) ته د خپل رب د حمد سره د هغه تسبيح کوه، او په سجده کونکو کښې شامل شه. او د خپل رب عبادت کوه، تر دې چه هغه څيز در ته راشی د کوم راتلل چه يقينی دی.

## خلاصه تفسير

﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنٰكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِيْ﴾ او [ تاسو د دوئ په خرابو خبرو پسې مه څئ چې خفه به شئ ، زمونږ سلوك ته ګورئی چې څومره نرمي او مهرباني درسره کوؤ نو] مونږ تاسو ته [ يو ډير لوئې نعمت يعنې] اووهٔ آيتونه درکړل چې [ په مونځ کښې ] بيا بيا لوستلې شي او [ هر کله چې په دې کښې ټول مکمل مضامين دی نو په دې باره کښې داسې وئيل مناسب دی چې ] ﴿وَالْقُرْاٰنَ الْعَظِيْمَ﴾ قرآن عظيم مو درکړو [ مراد ترې سورۀ فاتحه څکه دې چې ددې د لويئ له کبله ورته ام القرآن هم وئيلې شی ، نو دې نعمت او نعمت درکوؤنکی ته ګورئی چې زړه مو خوشحاله او په تسلئ وی ، ددې خلقو ضد پسې مه څئ او ] ﴿لَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ اِلٰى مَا مَتَّعْنَا بِهٖۤ اَزْوَاجًا مِّنْهُمْ﴾ تاسو خپلو سترګو پورته کولو سره هم هغې څيز ته مه ګورئی [ نه د افسوس په غرض او نه د خفګان په غرض] چې مونږ مختلف قسم کافرانو ته ] لکه يهودو ، نصاراؤ ، مشرکانو او مجوسيانو ته] د استعمال دپاره ورکړی دی [او ډير زر به ترې واخستې شی ] ﴿وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ﴾ او ددوئ [ د کفر په حالت باندې هيڅ ] غم مه کوئی [ د خفګان په غرض د کتلو مطلب دادې چې هر کله دوئ د الله ﷻ دښمنان دی څکه د الله ﷻ د رضا دپاره دوئ سره دبغض کولو په وجه تاسو ته غصه درشی چې دا نعمتونه دوئ سره ولې دی ، ددې جواب ته په متعنا کښې اشاره داسې ده چې دا څه ډير لوئې دولت نه دې چې ګنی دې خلقو سره دې نه وې ، دا خو فنا کيدونکی څيز دی ، ډير زر به ئې د لاسه اوځی ، او د افسوس په غرض ورته د کتلو مطلب دادې چې ګنی ستاسو په خيال کښې دې څيزونو د ايمان راوړلو نه دوئ منع کړی دی که دا څيزونه نه وې ورکړې شوې نو غالبًا چې دوئ به ايمان راوړې وو ، ددې جواب په لاتحزن کښې داسې دې چې د دوئ په خمير کښې انتهائی ضد دې ، د ايمان راوړلو اميد ترې نشي کيدې ، نو دداسې خلقو غم خوړل بې د

چې دی او د حرص په غرض خو ستاسو د نظر کولو دسره احتمال نشته څکه په هیڅ شان سره دې کافرانو پسې مخه مه اوړئ] ﴿وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِلْمُؤْمِنِينَ﴾ او په مسلمانانو باندې غم کوئ [یعنی د ښیګړې او د غم کولو د پاره مسلمانان کافی دی ولې چې د دې نه ورته فائده هم شته] ﴿وَقُلْ إِنِّي أَنَا النَّذِيرُ الْمُبِينُ﴾ او [کافرانو د پاره هر کله چې ددغې غمونو څه نتیجه نشته څکه ورپسې مخه مه اوړئ، البته خپل فرض منصبی یعنی تبلیغ کول ورته جاری لرئ او دومره] وایئ چې زه په ښکاره [دالله ﷻ د عذاب نه ستاسو] ویرونکې یم [او دالله ﷻ د طرفه درته دامضمون دررسوم چې هغه عذاب به درباندې راښکته کوم کوم نه چې تاسو لره زما رسول ﷺ ویره وی] ﴿كَمَا أَنزَلْنَا عَلَى الْمُقْتَسِمِينَ﴾ څنګه چې مونږ [دغه عذاب] په هغه خلقو باندې [په مختلفو تیر شوؤ وختونو کښې] راښکته کړې دې، ﴿الَّذِينَ جَعَلُوا الْقُرْآنَ عِضِينَ﴾ چا چې [دالله ﷻ د حکمونو] حصې جوړ کړې وې یعنی د آسمانی کتاب مختلفې حصې ئې ګرځولې وې [چې طبیعت ته به ئې برابر هغه به ئې منل او چې په طبیعت به ئې ښه نه لګیدل هغې نه به ئې انکار کولو، مراد تېرې پخوانی یهود او نصاری دی، په هغوئ باندې په دې وجه مختلف عذابونه راغلی وو چې د پیغمبرانو ﷺ مخالفت به ئې کولو لکه شکلونه ئې د شادوګانو او خنزیرانو شوی وو، بندیوان کیدل، وژلې کیدل، او ذلیله کول ئې مشهور عذابونه دی، مطلب دادې چې عذاب نازلیدل پرې څه لرې خبره نه ده څنګه چې ړومبی شوی وو که په تاسو هم اوشی نو د تعجب څه خبره ده خواه دغه عذاب په دنیا کښې وی اوکه په آخرت کښې او کله چې تیر شوی بیان نه داخبره ښکاره شوه چې څنګه پخوانی خلق د پیغمبرانو ﷺ دمخالفت کولو په سبب د عذاب حقدار وو دغه شان موجوده خلق هم د عذاب حقدار دی] ﴿فَوَرَبِّكَ لَنَسْأَلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ نو [ائې محمد ﷺ! زمونږ دې] ستاسو پروردګار [یعنی پخپل ځان مې دې باندې] قسم وی مونږ به دې ټولو [رومبو روستو] نه د دوئ د عملونو [دقیامت په ورځ] ضرور تپوس کوؤ [بیا به هر چا ته د هغې مناسب سزا ورکوؤ] ﴿فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ﴾ غرض [حاصل د کلام دا شو چې] تاسو ته د کومې خبرې [درسولو] حکم چې د رکړې شوې دې هغه [خو صفا صفا آوروئ] ﴿وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ﴾ او [که دوئ ئې نه منی نو] ددې مشرکانو [د نه منلو بالکل] پروا مه کوئ [یعنی غم مه کوئی څنګه چې وړاندې تیر شو چې لا تحزن او مه په طبعی طور سره ویره کوئی چې دا مخالفین ګنړ دی ولې چې] ﴿إِنَّا كَفَيْنَاكَ الْمُسْتَهْزِئِينَ﴾ دا خلق کوم چې [ستاسو او د الله ﷻ مخالف دی نو تاسو پورې] خاندی [او] ﴿الَّذِينَ يَجْعَلُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ﴾ الله ﷻ لره بل معبود ګرځوی ﴿فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ﴾ د دوئ [د شر او نقصان رسولو] نه ستاسو [د محفوظ کولو] د پاره [او ددوئ نه دبدلې اخستلو دپاره مونږ کافی یو نو دوئ ته به اوس معلومه شی] چې پیغمبر پورې د ټوقو کولو او الله ﷻ سره د شرك كولو څه انجام وی، غرض دا چې کله ﴿وَلَقَدْ نَعْلَمُ أَنَّكَ يَضِيقُ صَدْرُكَ بِمَا يَقُولُونَ﴾ او واقعی مونږ ته مونږ کافی یو نو بیا ویره د څه خبرې ده] معلومه ده چې داخلق چې [د کفر او ټوقو] خبرې کوی دهغې نه تاسو تنګ زړئ کیږئ [چې دا طبعی خبره ده] ﴿فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَكُن مِّنَ السَّاجِدِينَ﴾ نو [ددې علاج دادې چې] تاسو د خپل پروردګار تسبیح او تحمید په مخه کوئی او د مونځ ادا کوونکو کښې پاتې کیږی ﴿وَاعْبُدْ رَبَّكَ

﴿حَتّٰى يَأْتِيَكَ الْيَقِيْنُ﴾ او دخپل رب عبادت په مخه کوئی تر هغې وخته پورې چې [ په دغې حالت کښې ] تاسو ته مرګ راشي .

## معارف او مسائل

**سورة فاتحه د ټول قران پاك متن او خلاصه ده ::** په دې آيتونو کښې سورة فاتحه ته قرآن عظيم فرمائيلو سره دې ته اشاره ده چې سورة فاتحه په يو حيثيت سره ټول قرآن دې ، ولې چې د اسلام ټول اصول په دې کښې ښائې کړې شوی دی .

**په محشر کښې به تپوس د څه څيز کيږي ::** دې آيت مبارك کښې دلته الله ﷻ په خپل پاك ذات باندې قسم خوړلو سره فرمائيلی دی چې د ټولو وړاندې روستو خلقو څخه به خامخا تپوس کيږي. صحابه کرامو ﷺ نبي اکرم ﷺ څخه تپوس اوکړو چې دا تپوس بهٔ د څه په باره کښې وی ؟ نبي اکرم ﷺ اوفرمائيل چې د لااله الا الله باره کښې به وی .([1])

تفسير قرطبي ددې روايت په نقل کولو سره فرمائيلی دی چې زمونږ په نزد ددې څخه مراد هغه لوظ په عمل کښې راوستل دی دکوم نخښه چې کلمه طيبه ده ، خاص په خله باندې وئيل مقصود نه دی ، ولې چې په ژبې سره منافقانو هم اقرار کولو. حسن بصری رحمه الله فرمائيلی دی چې ايمان په دې باندې يواځې نه جوړيږي چې خاص شکل صورت جوړ کړی اودين صرف په آرزو ګانو کولو نه جوړيږي بلکه ايمان دهغه يقين نوم دې چې په زړه کښې اچولې شوی اوښائې کړې شوې وی . او عملونه دهغې په جوړ کوی لکه چې د زيد بن ارقم ﷺ په روايت نبي اکرم ﷺ فرمائيلی دی چې څوك په اخلاص سره لا اله الا الله وائی هغه بهٔ ضرور جنت ته داخليږي. خلقو تپوس اوکړو چې يارسول الله ﷺ ! کلمه کښې د اخلاص څه مطلب دې ؟ نبي اکرم ﷺ اوفرمائيل چې ددې د اخلاص مطلب دادې چې دا کلمه خپل ويونکی لره د حرامو او ناکاره کارونو څخه منع کړی . [قرطبي].([2])

**د خپل توفيق په جوړ درجه په درجه تبليغ او ارشاد کول ::** ﴿فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ﴾ ددې آيت مبارك د نازليدو څخه وړاندې به نبي اکرم ﷺ او صحابه کرامو ﷺ پټ په پټه عبادت او تلاوت کولو او تبليغ او ارشاد ئې هم په پټه په يو يو دوؤ دوؤ کسانو سره جاری وو ، څکه چې په ښکاره کولو کښې ئې د کافرانو د طرفه د زيان رسولو خطره وه ، هر کله چې په دې آيت مبارك کښې الله ﷻ د توقو کوؤنکو او زيان ورکوؤنکو کافرانو د زيان څخه د محفوظ ساتلو ذمه داری پخپله واخستله ، څکه دغه وخت نه په آزادئ او بې غمئ سره په ښکاره ډول د تلاوت ، عبادت ، تبليغ او بلنې سلسله شروع شوه .

﴿إِنَّا كَفَيْنٰكَ الْمُسْتَهْزِءِيْنَ﴾ کښې د بيان شوؤ خلقو مشران او سرکرده خلق پنځه وو .

① عاص بن وائل ② اسود بن المطلب ③ اسود بن عبد يغوث ④ وليد بن مغيره ⑤ حارث بن طلحه ، دا پنځه کسان په يو ځل د معجزې په ډول د جبرائيل عليه السلام په اشارې سره هلاك کړې شو ، ددغې واقعې څخه دتبليغ اوبلنې په باره کښې دا معلومات حاصل شو چې که يو انسان په داسې ښائې يا حال کښې راګير شی چې په جهر په حق خبرې کولو سره ورته د زيان

[1] ) مسند ابي يعلى الموصلي رقم الحديث[۳۹۴۹]
[2] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۰ص:۵۹، ۶۰]

او تکليف رسيدو انديښنه وی نو په داسې حالت کښې دا کار په پټه کول هم درست او روا دی ، البته که په جهر کولو ئې څه قدرت را شی نو بيا په جهر باندې ددې په ادا کولو کښې کوتاهی او نه کړې شی.

**د دښمنانو د زبان رسولو په وجه د زړه تنګېدو علاج:** ﴿وَلَقَدْ نَعْلَمُ﴾ څخه تر ﴿فَسَبِّحْ﴾ څخه معلوم شو چې د دښمنانو د خبرو په وجه انسان ته د غم او خفګان راولاړيدو په صورت کښې کله چې ئې زړه تنګ شی نو د هغې روحانی علاج دا دې چې د الله ﷻ په تسبيح او عبادت کښې مشغول شی، الله ﷻ به پخپله د هغه تکليف لرې کړی.

| آيا تونه | | | ﴿سورة النحل مكية وهي مائة وثمان وعشرون اية وست عشر ركوعات | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | ﴿ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴾ | | |

| |
|---|
| ﴿۞ شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې ﴿۱﴾ |
| اَتٰۤی اَمْرُ اللّٰهِ فَلَا تَسْتَعْجِلُوْهُ ؕ سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰی عَمَّا |
| راغې \| حکم دالله \| نو تاسو تلوار مه کوئ هغې ته \| پاکی ده هغه لره \| او لوئ دې \| دهغه [خبرو] نه |
| دالله ﷻ حکم راغلو \| نو تاسو دې ته تلوار مه کوئ \| هغه دپاره پاکی ده \| اودوی چې ورسره څه شريکوی |
| يُشْرِكُوْنَ ۝ يُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِكَةَ بِالرُّوْحِ مِنْ اَمْرِهٖ عَلٰی مَنْ |
| چې داخلق ئې شريکوی دهغه سره \| نازلوی هغه \| فرښتې \| دروح سره \| په حکم خپل سره \| په هغه چاباند |
| د هغې نه اوچت دې \| ..................هغه فرښتې په وحی سره په خپلو بندګانو کښې هغه چا ته |
| يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖۤ اَنْ اَنْذِرُوْۤا اَنَّهٗ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّاۤ اَنَا |
| چې غواړی هغه \| دبندګانو خپلو نه \| چې اويروی داخلق \| چې بيشکه \| نشته لائق دعبادت \| مګر \| زهٔ يم |
| راليږی چې وې غواړی \| چې خلق اويروی چې زما نه سوا بل څوک معبود نشته \| نو هم خاص زما نه |
| فَاتَّقُوْنِ ۝ |
| نو اويريږئ زمانه \| |
| اوويريږئ \| |

## آسان ترجمه قرآن

دالله پاک حکم رارسيدلې دې، لهٰذا د هغې دپاره تونده ی مه کوئ کوم شرک چه داخلق کوی هغه د دې نه پاک او ډير اوچت دې هغه په خپل حکم باندې ملائک په خپلو بندګانو کښې چه په چا باندې غواړی د دې ډوله ورکونکې وحی سره نازلوی چه: خلق خبر کړئ چه زما نه سوا هيڅوک معبود نشته. لهٰذا تاسو زمانه اويريږئ.(دبل چانه نهٔ).

## خلاصه تفسير

ددې سورة نوم نحل ځکه کيخودې شوی چې په دې کښې د نحل يعنی د شاتو د مچو بيان دې الله ﷻ دعجيبې کاريګرئ دبيان په لړکښې شوې دې ، ددې بل نوم سورة نعم هم دې [ قرطبی ]

نعم په کسرې دنون سره د نعمت جمع ده ، هر کله چې په دې سورة کښې په خاص ډول دالله ﷻ د عظيم نعمتونو بيان شوې دې په دې لحاظ سره ددې سورت بل نوم سورة نعم شو.[1]
﴿أَتَىٰٓ أَمْرُ ٱللَّهِ﴾ دالله ﷻ حکم [ يعنى دکفر د سزا وخت نزدې ] راؤرسيدو ﴿فَلَا تَسْتَعْجِلُوهُ﴾ نو تاسو په دې کښې [ د منکرکيدو په وجه ] تيزی مه کوئی [بلکه توحيد اختيار کړئی او ددې حقيقت واؤرئی چې] ﴿سُبْحَـٰنَهُۥ وَتَعَـٰلَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾ هغه د خلقو د شرك نه پاك او زيات پورته دې ﴿يُنَزِّلُ ٱلْمَلَـٰٓئِكَةَ بِٱلرُّوحِ مِنْ أَمْرِهِۦ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦٓ﴾ هغه الله ﷻ فرښتو [ د فرښتو جنس يعنى جبرائيل ﷺ] ته وحى يعنى خپل حکم ورکړی پخپلو بندګانو کښې په چاچې خپله غواړی [ يعنى په پيغمبرانو ﷺ باند] نازلوی [ اوهغه حکم] ﴿أَنْ أَنذِرُوٓا۟ أَنَّهُۥ لَآ إِلَـٰهَ إِلَّآ أَنَا۠ فَٱتَّقُونِ﴾ دا [ دې ] چې خلق خبردار کړئ چې ما نه سوا څوك د عبادت لائق نشته ، نو هم زما نه په مخه ويرېږئی [يعنى ما سره څوك شريك مه ګرځوئی ګنی سزا به ئې درکړې شی ].

## معارف او مسائل

دا سورة بغير د څه تمهيد څخه په سختې درکې او هيبتناك عنوان سره شروع شوې دې ، چې وجه ئې د مشرکانو دا وئيل وو چې محمد ﷺ مونږ ، دقيامت اود الله ﷻ د عذاب څخه هم داسې ويروی او دا راباندې ضباطوی چې الله ﷻ ددې وعده کړې ده چې دوئ به بر کوی او مخالفينو ته به ئې سزا ورکوی ، مونږ ته خو داسې څه کيدل هډو ښکاری نه . ددې جواب کښې الله ﷻ فرمائی چې ، د الله ﷻ حکم راغلو تاسو تادی مه کوئی .
دلته د الله ﷻ دحکم څخه مراد هغه وعده ده چې الله ﷻ خپل رسول ﷺ سره کړې ده چې د نبی اکرم ﷺ دښمنان به پاتې اولاندې راوستې شی ، مسلمانان به فتح ، د الله ﷻ مدد ، عزت او دبدبه بيا مومی . په دې آيت مبارك کښې الله ﷻ په هيبتناك انداز سره فرمائی : د الله ﷻ حکم راؤرسيدو ، يعنى رارسيدونکې دې چې تاسو به ئې زر اووينئ .
څينې حضراتو فرمائيلی دی چې دلته د الله ﷻ د حکم څخه مراد قيامت دې ، ددې د رارسيدو مطلب نزدې راتلل دی ، که ددنيا ټول عمر ته اوکتلې شی نو د قيامت نزدې راتلل يا رارسيدل څه لرې خبره نه ده ، [بحر محيط].[2]
دې پسې فرمائی چې : الله ﷻ د شرك څخه پاك دې ، دې څخه مراد داد چې دا خلق چې د الله ﷻ وعده غلطه ګڼړلی نو دا کفر او شرك دې چې الله ﷻ ددې څخه پاك دې ، [بحر].[3]
بل آيت مبارك خلاصه داده چې د يوې سختې درکې په ذريعه د توحيد بلنه ورکول دی ، په بل آيت مبارك کښې په نقلی دليل سره توحيد داسې ثابتول دی چې د آدم ﷺ څخه تر خاتم الانبياء ﷺ پورې ددنيا په مختلفو حصو ، په مختلفو زمانو کښې چې کوم رسول ﷺ راغلې دې ، هغوئ ﷺ هم د توحيد عقيده وړاندې کړې ده ، سره ددې چې يو بل ته د حال د معلوميدو اوخودنې کولو په ظاهره هيڅ اسباب نه وو . که ژور نظر اوکړې شی چې کم از کم يو لك شل زره هوښياران چې په مختلفو وختونو ، مختلفو ملکونو ، مختلفو علاقو کښې

[1]) تفسير القرطبي ج:۱۰ص:۶۵
[2]) تفسير بحر المحيط تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۲۱۳]
[3]) تفسير بحر المحيط تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۲۱۵]

پیدا شوی وی او ټول هم دغه یو شان خبره کوی نو په فطری ډول انسان په دې پوهیدو مجبور کیږی چې دا خبره غلطه نشی کیدی دایمان راوړلو دپاره یوازې دا دلیل هم کافی دې.

د روح لفظ څخه په دې آیت مبارک کښې د ابن عباس رضي الله عنهما په قول وحی او د ځینو مفسرینو په قول هدایت مراد دې. [بحر] [1]

دې آیت مبارک کښې د توحید د روایتی او نقلی ثبوت پیش کولو څخه پس په وروسته آیتونو کښې په داسې ثابتوې شی چې عقل څخه کار واخلئ، د الله ﷻ نعمتونه خپلې مخې ته راولئ او توحید اومنئ. فرمائی:

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ؕ تَعٰلٰی عَمَّا

| پیدا کړی دی هغه | آسمانونه | او زمکه | په حق سره | اوچت دې هغه | دهغې نه

هغه آسمانونه او زمکه په مقصد سره پیدا کړی دی | هغه د دوی د شریکانو نه ډیر اوچت

یُشْرِکُوْنَ ۝ خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ نُّطْفَةٍ فَاِذَا هُوَ خَصِیْمٌ

چې داخلق ئې شریکوی | پیدا کړو هغه | انسان | دمنئ دڅاڅکی نه | نو اوس هغه | جګړه کونکې دې

دې | ............ هغه انسان د منئ دڅاڅکی نه پیدا کړې دې | نو بیا هغه [دالله ﷻ په باره کښې] ښکاره

مُّبِیْنٌ ۝ وَالْاَنْعَامَ خَلَقَهَا ۚ لَکُمْ فِیْهَا دِفْءٌ وَّمَنَافِعُ

ښکاره | او خناور | پیدا کړل هغه | دې ستاسره دپاره | په هغې کښې | سامان دګرموالی | او فائدې

جګړه کونکې دې | او هغه څاروی پیدا کړل | په هغې کښې ستاسو دپاره ګرمه جامه ده | او نورې فائدې هم دی

وَمِنْهَا تَاْکُلُوْنَ ۝ وَلَکُمْ فِیْهَا جَمَالٌ حِیْنَ

او دهغې نه | تاسو خورئ | او دې ستاسو دپاره | په هغې کښې | ښائست | څه وخت چې ئې |

اودهغې نه تاسو خوراکونه کوئ | اوستاسو دپاره په دې [څاروو] کښې ښائست دی

تُرِیْحُوْنَ وَحِیْنَ تَسْرَحُوْنَ ۝ وَتَحْمِلُ اَثْقَالَکُمْ

ماښام واپس راولئ کورته | اوڅه وخت چې ئې | بهرته شړئ تاسو په سحر کښې | اووړی | درانه بارونه ستاسو

څه وخت چې ئې ماښام کورته واپس راولئ | اوڅه وخت چې ئې سحر شړیدو ته بوځئ | اوهغه ستاسو درانه

اِلٰی بَلَدٍ لَّمْ تَکُوْنُوْا بٰلِغِیْهِ اِلَّا بِشِقِّ الْاَنْفُسِ ؕ اِنَّ

هغه ښار ته | چې نه وئ تاسو | رسیدونکی هغې ته | مګر | په سخت مشقت | دنفسونو | بیشکه

بوجونه هغه لرې ښارته اوړی چې تاسو ورته د ډیر مشقت نه بغیر نشئ رسیدلې | ............ بیشکه

رَبَّکُمْ لَرَءُوْفٌ رَّحِیْمٌ ۝ وَّالْخَیْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِیْرَ

چې رب ستاسو | خامخا مهربانه دې | رحم کونکې دې | اوآسونه | او قچر | او خره

ستاسو رب مهربان رحم کونکې دې | ............ اوهغه آسونه، قچرې اوخرونه پیدا کړی دی

---

[1] تفسیر بحر المحیط تحت هذه الآیة [ج:۷ ص:۲۱٤]

| لِتَرْكَبُوْهَا | وَزِيْنَةً ؕ | وَيَخْلُقُ | مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ⑧ |
|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې تاسو سوريږئ په هغې باندې | اووی ښائست | او پيدا کوی هغه | هغه څه چې معلوم نه دی تاسو ته |
| چې تاسو پرې سورلئ کوئ | او ښائست هم دې | او هغه داسې څيزونه پيدا کوی | چې ئې نه پيژنئ |

## آسان ترجمه قرآن

هغه اسمانونه او زمکه د حق مقصد دپاره پيدا کړی دی، کوم شرک چه دا خلق کوی، هغه د دې نه ډير اوچت دې. هغه انسان د نطفې نه پيدا کړو، نو اوس هغه ښکاره په ښکاره جهګړې ته تيار شو اوڅاروی هم هغه پيدا کړل چه په هغې کښې ستاسو دپاره د يخنۍ نه د بچ کيدو سامان دې او د دې نه علاوه هم ډيرې فائدې دی هم د هغې نه تاسو خوراک هم کوئ. او کله چه تاسو هغه د ماښام په وخت کور ته واپس راولئ، او کله چه ئې سحر د څرولو دپاره بوځئ نو په دې کښې ستاسو دپاره يو ښکلې منظر دې. او دوی ستاسو بوجهـ بارولو سره داسې ښهر ته اوړی چرته چه ئې تاسو بغير د سخت مشقت نه نهٔ شئ اوړلې. حقيقت دا دې چه ستاسو رب ډير شفيق، او ډير مهربان دې. او اسونه خچر او خرهٔ هم هغه پيدا کړی دی چه تاسو په هغې باندې سورلی اوکړئ، اوهغه د ډول سامان شي، او هغه ډير داسې څيزونه پيدا کوی چه د هغې تاسو ته علم هم نشته.

**مشکل الفاظ اود هغې معنې::** ﴿خصيم﴾ دخصومت نه مشتق دې ، معنی ئې جنګ کوونکې ده. ﴿انعام﴾ د نعم جمع ده په څاروؤ کښې اوښ ، چيلۍ ، غواګانې وئيلې شي ، [مفردات راغب][1] ﴿دف﴾ ګرمی او د ځان ګرمولو څيز ، مراد ترې وړئ ده چې ګرمې جامې ترې جوړولې شی. ﴿تريحون﴾ د رواح نه او ﴿تسرحون﴾ د سراح نه مشتق دې ، د ړومبئ معنی د ماښام په وخت څاروی د څرند نه راوستل او د دويم معنی د صبا په وخت څاروی څرندله بوتلل ، ﴿شق الانفس﴾ سخت کړاؤ او خواری

## خلاصه تفسير

﴿خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ؕ﴾ [الله ﷻ] آسمانونه او زمکه په حکمت سره جوړ کړه ﴿تَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ③﴾ هغه ددوئ د شرك نه پاك دې [او] ﴿خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ نُّطْفَةٍ﴾ انسان ئې د نطفې څخه جوړ کړو ﴿فَاِذَا هُوَ خَصِيْمٌ مُّبِيْنٌ ④﴾ بياهغه ناڅاپه په ښکاره [ هم د الله ﷻ په ذات اوصفتونو کښې ] جګړې کول شروع کړې [يعنی ځينې داسې هم شو ، مطلب دادې چې زمونږ دا نعمتونه او د انسان ناشکری] ﴿وَالْاَنْعَامَ خَلَقَهَا ۚ﴾ او هم هغه څاروی جوړ کړل ﴿لَكُمْ فِيْهَا دِفْءٌ﴾ په دې کښې ستاسو د ژمی سامان دې [ د څاروؤ د وړئ ، پشم او څرمنو څخه جامې او پوستين جوړولې شی ] ﴿وَمَنَافِعُ وَمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ ⑤﴾ او نورې هم ډيرې فائدې دی [ لکه پئ ، سورلی ، پيټی پرې اوړل وغيره] ﴿وَلَكُمْ فِيْهَا جَمَالٌ حِيْنَ تُرِيْحُوْنَ وَحِيْنَ تَسْرَحُوْنَ ⑥﴾ او په دې کښې [ دخوراك جوګه څيزونه تاسو خورئی هم او ددې په وجه ستاسو رونق [ډول] هم دې ، کله چې د ماښام په وخت ئې [د ځنګل نه کور ته ] راولئ او کله چې د سبا په وخت ئې [ د کور نه ځنګل ته] بوځئ ﴿وَتَحْمِلُ اَثْقَالَكُمْ

---

[1] مفردات القرآن للراغب الأصفهانی[ج:۱ ص:۴۹۹]

﴿إِلَىٰ بَلَدٍ لَّمْ تَكُونُوا بَالِغِيهِ إِلَّا بِشِقِّ الْأَنفُسِ﴾ اودا [بار كړي] ستاسو پيټي هم داسې ښارونو ته اوړي چرته چې تاسو د بې ځان پاڼاوبونه نشئ رسيدې ، ﴿إِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ﴾ واقعي ستاسو رب ډير شفقت او رحمت كوونكې دې [ چې ستاسو د آرام دپاره ئې قسم قسم سامانونه پيدا كړل ] ﴿وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ لِتَرْكَبُوهَا وَزِينَةً﴾ او آسونه ، قچرې او خرۀ ئې هم پيدا كړل چې تاسو پرې سوريږئ او داشان د زينت [ سنګار] دپاره هم ﴿وَيَخْلُقُ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾ اوهغه داسې څيزونه [ستاسو د سورلئ وغيره دپاره] جوړ وی چې د هغې تاسوته پته هم نشته دې .

## معارف او مسائل

دې آيتونو كښې كائناتو پيدا كولو دلويو نخښو په دليل ګرځولو سره توحيد ثابتول داسې دی چې اول خو ئې دټولونه د ړومبی مخلوق آسمان او زمكې بيان اوفرمائيلو ، دې پسې د انسان د پيدا كولو بيان ئې اوفرمائيلو چې الله ﷻ د كائناتو مخدوم جوړ كړې دې ، د انسان شروع ئې د يوې سپكې ، ذليلې نطفې نه اوڅودلو او وې فرمائيل چې :

﴿فَإِذَا هُوَ خَصِيمٌ مُّبِينٌ﴾ [يعنی د كله چې دغسې كمزورئې پيدا كيدونكې انسان ته طاقت او د خبرو كولو طاقت وركړې شونوهم د الله ﷻ په ذات اوصفتونو كښې ئې جګړې كول شروع كړې] د انسان نه پس ئې دهغې څيزونو د پيدا كولو بيان اوفرمائيلو چې د انسانانو دفائدو دپاره په خصوصي توګه جوړ كړې شوې دی ، اود قرآن كريم د ټولو نه ړومبی مخاطبين هر كله چې عرب وؤ اود عربو د ژوند زيات ګذران به د څاروؤ په پاللو وو ، اوښانو پاللو ، غواګانو پاللو ، چيلو پاللو باندې وو څكه ئې اول ددې بيان اوكړو فرمائی چې : ﴿وَالْأَنْعَامَ خَلَقَهَا﴾

بيا دانعام نه حاصليدونكې دوه فائدې ئې په خصوصيت سره بيان كړې ، لكه فرمائی چې ﴿لَكُمْ فِيهَا دِفْءٌ﴾ [ په هغې كښې ستاسو دپاره ګرمه جامه ده]

دويمه فائده ئې دا بيان كړه چې : ﴿وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ﴾ [ اودهغې نه تاسو خوراكونه كوئ] اوتر څو چې ژوندي وی نو د پيو نه ئې څانونو دپاره ښكلي ښكلي خوراكونه جوړوی ، لكه پئ ، ماسته ، كچ ، غوړی ، پنير او داسې نور ډير څيزونه شو.

او د پاتې عامو فائدو دپاره ئې اوفرمائيل چې ﴿وَمَنَافِعُ﴾ يعنی بې شميره فائدې د انسان ، د څاروؤ ، غوښې ، چمړې ، هډوكی ، او ويښتو سره تړون لری ، په داسې ابهام او اجمال كښې هغه ټولو نوؤ نوؤ ايجادونو ته اشاره ده چې د څاروؤ د بدن او د برخو نه تر اوسه پورې ايجاد شوی دی . لكه د انسان د خوراک څيزونه ، اغوستن ، داروګان او نورد استعمال څيزونه چې تر اوسه پورې ايجاد شوی يا ترقيامته پورې به ايجاد كيږی.

دې پسې د عربو د طبيعت په جوړ ددې څاروؤ يوه بله فائده دا بيان كړې ده چې دا ستاسو د ښائست د رونق ذريعه دی ، خصوصا كله چې د څريدو نه پس ستاسو كورونو ته مابښام راشی ، يا دصبا په وخت څريدو دپاره ستاسو كورونو نه بهر صحرا ته اووځی نو دغه ئې د مالكانو شان شوكت او مهلت پرې جوړيږی.

په آخر كښې ددې څاروؤ يوه بله غټه فائده ئې دابيان كړه چې دا څاروی ستاسو درانه وزنونه لرې لرې ښارونو ته رسوی . چرته چې تاسو پخپله او ستاسو سامانونه بغير د خوارئی او ځان پريشانئ نه شو رسيدې . نو دا قسم خدمت او كار د اوښانو او غوايانو نه په خصوصيت سره ا

خستې شي ، نن چې ریل ګاډي ، ټرکونه ، او بحري هوائي جهازونو شته دې خو بیا هم انسان دې څاروؤ ته حاجت لري ، بالکل بې حاجته ترې نه دی ، بل خوا په دنیا کښې داسې ډیر ځایونه هم شته دې چې هم دې څاروؤ نه کار اخستې شي او نوې ایجاد شوې سورلۍ وغیره یا هلته رسید نشي یا هلته کار نشي کولې او د انسان هلته یوازې ددې څاروؤ نه په کار اخستلو مجبوره وی.

﴿اَلْاَنْعَامَ﴾ یعنی د اوښانو ، غوایانو د پیتی بیان چې راغلو نو هغې نه پس دهغې څاروؤ بیان هم مناسب پکار دې چې یوازې د پیتی اوړلو دپاره پیدا شوی ، د هغې غوښو او پیئو وغیره سره د انسان فائده تړلې نه ده بلکه د شریعت تر مخه هغه د اخلاقی بیماریانو سبب جوړیږی ځکه هغه منع اوګرځولې شو ، فرمائی چې :

﴿وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيْرَ لِتَرْكَبُوْهَا وَزِيْنَةً﴾ [ او هغه آسونه ، قچرې اوخرونه پیدا کړی دی چې تاسو پرې سورلۍ کوئ ] اوښائست هم دې ]دلته د ښائست نه مراد هغه شان وشوکت دې چې په عرف کښې ددې څاروؤ مالکانو ته په دنیا کښې حاصلیږی.

**قرآن پاك کښې د ریل ، موټر او هوائی جهاز بیان::** په آخر کښې د درې قسمه څاروؤ ، اسونو ، قچرو او خرونو بیان په خاص ډول سره د بیانولو نه پس د مستقبل په صیغې سره داسې بیان کړو:

﴿وَيَخْلُقُ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ﴾ [ او هغه به داسې څیزونه پیدا کړی چې تاسو ئې نه پیژنئ ] پدې کښې هغه نوې سورلۍ اوګاړی هم داخل دی چې پخوا زمانه کښې دهغې څه وجود نه وو او نه یې څه تصور وو ، لکه ریل ګاډئی ، موټر ، هوائی جهاز وغیره تر اوسه پورې ایجاد شوی دی. ولې چې ددې ټولو څیزونو حقیقی او مطلق پیدا کوؤنکې یوازې الله تعالی دې، قدیم او جدید سائنس په کښې صرف دومره کار کړې دې چې د قدرت پیدا کړې شوی دهاتونو کښې هم دقدرت د ورکړې شوی عقل او فهم په ذریعه جوړ کړل او ددې مختلفې پورزې یې جوړې کړې ، اوبیا یې په دې کښې دالله ﷻ بخښلې شوی هوا ، اوبه ، اور وغیره سره یې پدې کښې برقی رو پیدا کړی ، یا د قدرت د خزانو څخه پیټرول راوباسی او په دې سورلو کښې یې استعمال کړی ، او جدید او قدیم سائنس که رایوځائې شی خو بیا هم اوسپینه اوپیتل نشی جوړولې او نه د ایلومونیم پشان سپك دهات جوړولې شی ، نه لرګې پیدا کولې شی ، او نه هوا او اوبه پیداکول ددهٔ د وس کار دې ددهٔ کار ددې څخه زیات بل څه نه دې چې دې صرف دومره کولې شی چې قدرت کوم څیزونه پیدا کړی دهغې استعمال زده کړی ، ددنیا ټول ایجادونه صرف ددې استعمال تفصیل کښې شامل دی ، په دې وجه که څوك لږ هم سوچ څخه کار واخلی نو ددهٔ په سوچ کښې به بل څه نه راځی سوا ددې څخه چې ددې ټولو ایجادونو پیدا کوؤنکۍ صرف الله ﷻ دی.

دې ځایې کښې دا خبره قابل نظر ده چې د ړومبی ټولو څیزونو په تخلیق کښې لفظ د ماضی خَلَقَ استعمال شوې دې ، او دمشهور سورلو ذکر کولو څخه وروستو د مستقبل په صیغه کښې د يَخْلُقُ لفظ استعمال شوې دې. د عنوان ددې بدلون څخه دا واضح شو چې دا لفظ هغه سورلو او څیزونو دپاره دې چې کوم په معرض وجود کښې نه دی راغلی . او دا صرف دالله ﷻ په علم کښې دی چې راتلونکې زمانه کښې به څه سورلۍ او نور څیزونه پیدا کول دی ، ددې اظهار یې په دې مختصر جمله کښې فرمائیلې دی.

الله ﷻ دا هم کولې شو چې راتلونکې زمانه کښې کوم نوی ایجادونه کیدونکی دی دهغې ذکر یې په نوم اخستلو سره کړې وې مګر که په هغه زمانه کښې یې ریل ، موټر ، جهاز وغیره الفاظ ذکر کړی هم وې نو ددې فائده به هیڅ نه وه سوا ددې څخه چې په ذهنونو کښې به یو تشویش پیدا شوې وو. ځکه چې ددې څیزونو تصور هم دهغه خلقو دپاره آسان نه وو. او نه دا الفاظ د هغه څیزونو دپاره په هغه وخت استعمال شوی وو ، چې ددې څخه په پوهه کښې څه راغلې وې.

زما والد محترم حضرت مولانا محمد یاسین صاحب رحمه الله فرمائیلي دي چې زمونږ استاذ استاذالکل حضرت مولانا محمد یعقوب صاحب نانوتوی رحمه الله به فرمائیل چې په قرآن پاك کښې د ریل ذکر موجود دې . او هم ددې آیت مبارك څخه به یې استدلال کولو. په هغه وخت کښې موټرې عام نه وې ، او هوائی جهاز نه وو ایجاد شوې ، په دې وجه یې صرف د ریل په ذکر کولو اکتفاء اوکړه.

**مسئله:** قرآن عظیم الشان اول د انعام څاروؤ بیان اوکړو چې اوښانو ، غوایانو ، او چیلو ته وئیلې شي ، او ددې یوه غټه فائده ئې دا هم بیان کړه چې ددې غوښه هم خوړلې شي یا: ﴿وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ﴾ ئې جدا داسې بیان کړې دي چې په دې سورلی کولې شي ، او زینت اوښائست هم پرې جوړیدې شي خو ددې د غوښې خوړلو بیان ئې اونه فرمائیلو بنا په دې باندې دا ، ددې خبرې دلیل شو چې د اس ، قچر او خر غوښه حلاله نه ده ، د جمهورو فقهاء کرامو اتفاق دې چې د قچر او خر غوښه حلاله نه ده او یو مستقل حدیث کښې ددې د حراموالی بیان په ښکاره طور سره راغلې دې ،[1] مګر د اس په باره کښې روایات یو بل سره متعارض راغلی دی چې یو نه ددې د غوښې حلالوالې معلومیږی او بل نه ئې حراموالې معلومیږی ، په دې وجه دامت د فقهاء کرامو اقوال په دې مسئله کښې مختلف شو ، څینې ورته حلال وائی او څینې ورته حرام وائی ، امام ابوحنیفه رحمه الله خو د روایتونو د تعارض په وجه قچر او دخر غوښې پشان حرام اونه وئیل مګر مکروه ئې ورته اوفرمائیل ، [احکام القرآن از جصاص رحمه الله].[2]

**مسئله:** دې آیت مبارك نه د جمال ، زینت او ښائست روا کیدل معلومیږی اګر چې فخر او تکبر کول حرام دی ، فرق دادې چې جمال او زینت دا مطلب لری چې زړه پرې خوشحاله شي یادالله تعالی نعمت ښکاره کړې شي ، په زړه کښې دا نعمت خپل حق نه ګڼړی او نه نور خلق سپک ګڼړی ، بلکه دې نعمت لره د ورکړه او انعام ګڼړی ، او د فخر او تکبر مطلب دا وی چې خپل ځان ددې نعمت حقدار ګڼړی او نور خلق سپک ګڼړی او دا حرام دی [بیان القرآن].[3]

| وَلَوْ شَآءَ | جَآئِرٌ | وَمِنْهَا | قَصْدُ السَّبِيلِ | وَعَلَى اللهِ |
|---|---|---|---|---|
| او که غوښتلې هغه | کږې [هم] دی | او څینی ددې لارونه | نیغه لار [ښودل] | او دالله ذمه ده |
| او که هغه غوښتلې | او په دې کښې څینې لارې کږې هم دی | | نیغه لاره الله ﷻ ته رسیږی | او |

(۱) سنن ابوداود، کتاب الأطعمة، باب فی أکل لحوم الخیل إلخ [ج:۲ص:۵۳۱]
(۲) أحکام القرآن للجصاص تفسیر سورة النحل[ج: ۷ص:۲۶۶]
(۳) تفسیر بیان القرآن تحت هذه الآیة [ج:۶ص:۳۶]

| لَهَدٰىكُمْ | أَجْمَعِيْنَ ۝ |
| --- | --- |
| نو خامخا به ئې هدايت كړې وې تاسو ته | تولو ته |

نو تاسو ټولو ته به ئې هدايت كړې ووا

## آسان ترجمه قرآن

او د نيغې لارې ښودلو ذمه دارى الله پاک اخستلې ده، او ډيرې لارې كږې دى او كه هغه خوښتله نو تاسو ټول به ئې په نيغه لاره باندې روان كړى وې.

## خلاصه تفسير

﴿وَعَلَى اللّٰهِ قَصْدُ السَّبِيْلِ﴾ او [ په بيان شوؤ او بيانيدونكو دليلونو سره كومه ] نيغه لاره [ د دين چې ثابتيږى هغه خاص ] الله ﷻ پورې رسيږى ﴿وَمِنْهَا جَآئِرٌ﴾ او ځينې لارې [ كومې چې د دين خلاف دى ] كږې هم دى [ چې هغې سره الله ﷻ ته رسيدل نشى كيدې نو ځينې خلق خو په نيغه لار روا ن وى او ځينې په كږه لار ] ﴿وَلَوْ شَآءَ لَهَدٰىكُمْ أَجْمَعِيْنَ ۝﴾ او كه الله ﷻ غوښتلې نو تاسو ټول به ئې [منزل] مقصود ته رسولى وې [ مگر هغه يوازې هغه خلق منزل مقصود ته رسول چې د صراط مستقيم طلبگار وى لكه فرمائى چې [وَالَّذِيْنَ جَاهَدُوْا فِيْنَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا] (١) ځكه تاسو له هم پكار دى چې په دليلونو كښې غور اوكړئى او په هغې سره حق تلاش كړئى چې منزل اصلى ته رسيدل در ته آسان شى ].

## معارف او مسائل

په دغې تيرو شوؤ آيتونو كښې د الله ﷻ د عظيم الشان نعمتونو بيان اوشو د توحيد عقلى دليلونه جمع كړې شو، وروستو هم د دغه نعمتونو بيان دې، په مينځ كښې دا آيت مبارك د جملې معترضې په ډول راوړلې شوې، دې كښې خبردارې وركړې شوې دې چې الله ﷻ د خپلې پخوانۍ وعدې په وجه خلقو ته د صراط مستقيم واضح كول په خپله ذمه اخستى دى، چې هغه الله ﷻ ته رسوؤنكې لار ده. ځكه د الله ﷻ د نعمتونو په پيش كولو سره د الله ﷻ د وجود او توحيد دليلونه جمع كولې شى.

ليكن د دې په عكس ځينې خلقو نورې كږې لارې هم اختيار كړى دى، هغوئ د دې ټولو ښكاره آيتونو مباركو او دليلونو څه فائده نه پورته كوى، بلكه په گمراهئ كښې همداسې بيدركه پاتې كيږى.

بيا ارشاد فرمائى چې كه الله ﷻ غوښتې چې ټول په نيغه لار باندې مجبوره كولو سره راولى نو دا اختيار هم لرى، مگر د حكمت او مصلحت تقاضا داده چې جبر اونكړې شى، د واړه لارې مخې ته كړې شى چې پخپله خوښه او اختيار سره هر څوك يوه لار اختيار كړى صراط مستقيم به ئې الله ﷻ او جنت ته رسوى او كږې لارې به ئې جهنم ته داخلوى. انسانانو ته اختيار وركړې شو چې كومه لاره يې خوښه وى هغه دې اختيار كړى.

---

(١) ترجمه: او كوم خلق چې زمونږ په لاره كښې تكليفونه برداشت كوى مونږ به هغوئ ته ضرور خپلې لارې ښايو.(العنكبوت:٦٩)

هُوَ الَّذِيٓ اَنۡزَلَ

| هغه | هغه ذات دي | چي نازلې ئې کړې

| ..................الله ﷻ داسې ذات دي چې ستاسو دپاره د

مِنَ السَّمَآءِ مَآءً لَّكُمۡ مِّنۡهُ شَرَابٌ وَّمِنۡهُ شَجَرٌ

دآسمان نه | اوبه | دی ستاسو دپاره | ددغه اوبو نه | دڅکلو اوبه|اوددغه اوبو نه| پيداکيږي وني

د آسمان نه اوبه راوری | تاسو دهغې نه څکاک کوئ | اوپه هغې اوبو سره وني زرغونيږي

فِيۡهِ تُسِيۡمُوۡنَ ۝ يُنۡۢبِتُ لَكُمۡ بِهِ الزَّرۡعَ

|چی په هغې کښی| تاسوڅاروی څروئ | هغه زرغونوی| ستاسو دپاره | په دغه اوبو سره | فصل

چې تاسو په کښې څاروی څروئ | ..........اوددې اوبو په ذريعه تاسو دپاره فصلونه

وَالزَّيۡتُوۡنَ وَالنَّخِيۡلَ وَالۡاَعۡنَابَ وَمِنۡ كُلِّ الثَّمَرٰتِ ؕ اِنَّ فِيۡ ذٰلِكَ

اوزيتون | او کجوري | او انګور | او دهر قسم ميوونه | بيشکه | په دې کار کښی

زيتون ، کهجورې ،انګور اوهرقسم نورې ميوې راتوکوی |....... ..........بيشکه په دې کښې

لَاٰيَةً لِّقَوۡمٍ يَّتَفَكَّرُوۡنَ ۝ وَسَخَّرَ لَكُمُ

خامخا غټه نښه ده | دپاره دهغه خلقو | چی غور فکر کوی | او تابع ئې کړل| ستاسو دپاره

د غور اوفکر کوونکو دپاره لويه نښه ده | ..........اوهغه ستاسودپاره شپه او

الَّيۡلَ وَالنَّهَارَ ۙ وَالشَّمۡسَ وَالۡقَمَرَ ؕ وَالنُّجُوۡمُ مُسَخَّرٰتٌۢ بِاَمۡرِهٖ ؕ

|شپه | او ورځ | او نمر | او سپوږمۍ | او ستوری هم |ټول مسخر دی |په حکم دهغه سره

ورځ اونمر اوسپوږمۍ تابع کړی دی| ..........اوستوری هم د هغه د حکم تابعدار دی

اِنَّ فِيۡ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوۡمٍ يَّعۡقِلُوۡنَ ۝ ۙ

|بيشکه | په دې کار کښی | ډيرې نښې دی | دپاره دهغه خلقو| چی هغوئ دعقل نه کار اخلی

بيشکه په دې کښې د علقمندو دپاره ډيرې نخښې دی [يعنی چې د عقل نه کار اخلی]

وَمَا ذَرَاَ لَكُمۡ فِي الۡاَرۡضِ مُخۡتَلِفًا اَلۡوَانُهٗ ؕ

او هغه څيزونه| چی پيداکړی دی هغه| ستاسودپاره | په زمکه کښی|چی مختلف دی|رنګونه دهغې

اوالله تعالی چې ستاسو دپاره کوم قسما قسم رنګونو والا څيزونه په زمکه کښې پيداکړی دی

اِنَّ فِيۡ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوۡمٍ يَّذَّكَّرُوۡنَ ۝ وَهُوَ الَّذِيۡ

|بيشکه| په دې کښی| ضرورنښه ده| دپاره دهغه خلقو| چی سبق حاصلوی| اوهغه| هغه ذات دې

بيشکه په دې کښې دهغه خلقو دپاره نخښې دی چې سوچ فکر کوئ| اوالله هغه ذات دې چې

| سَخَّرَ | الْبَحْرَ | لِتَأْكُلُوْا | مِنْهُ | لَحْمًا | طَرِيًّا |
|---|---|---|---|---|---|
| چي مسخرني كړو | درياب | دپاره ددې چي تاسو اوخورئ | ددغه درياب نه | غوښه | تازه |
| سمندر ئي تابع كړې دې | ..............چي تاسو تري [دكبانو] تازه غوښهٔ اوخورى | | | | |
| وَتَسْتَخْرِجُوْا | مِنْهُ | حِلْيَةً | تَلْبَسُوْنَهَا | وَتَرَى الْفُلْكَ | |
| اوتاسو اوباسئ | دهغې نه | دښائست څيزونه | چي تاسو اغوندئ هغه | اوته وينې كشتئ | |
| اوتاسو د دې نه كالي راوباسئ | چي تاسو ئي استمالوئ | اوته ګورې چي بيړئ [ددرياب] اوبه | | | |
| مَوَاخِرَ | فِيْهِ | وَلِتَبْتَغُوْا | مِنْ فَضْلِهٖ | | |
| څيرونكي اوبولره | په هغې كښې | اودپاره ددې چي تلاش كړئ تاسو | دفضل دالله نه | | |
| څيرې كوي او [رواني دي] | او د دې دپاره چي تاسو [دسمندري تجارت په ذريعه] د الله فضل لټوئ | | | | |
| وَلَعَلَّكُمْ | تَشْكُرُوْنَ ۝ | وَاَلْقٰى | فِي الْاَرْضِ | رَوَاسِيَ | اَنْ تَمِيْدَ |
| اودپاره ددې چي تاسو | شكراوباسئ | اووې غورزول | په زمكه كښې | دغرونوميخونه | چي اونهٔ خوزى |
| اوچي د هغه شكراداكوئ | او په زمكه كښې ئي دغرونو ميخونه ښخ كړي دى | چي تاسو باندې اونه خوزى | | | |
| بِكُمْ | وَاَنْهٰرًا | وَّسُبُلًا | لَّعَلَّكُمْ | تَهْتَدُوْنَ ۝ | |
| په تاسو باند | اوجړى ئي كړل نهرونه | اوجوړې ئي كړې لارې | دپاره ددې چي تاسو | هدايت بيامومئ | |
| اودريابونه [ئي روان كړي دي] | اولارې ئي جوړې كړې | د دې دپاره چي تاسو لاربيامومئ | | | |

## آسان ترجمه قرآن

هم هغه ذات دې چه د اسمان نه ئې اوبه نازلې كړې چه په هغې سره تاسو ته د څكلو څيزونه حاصليږى، او هم په هغې سره هغه اوښې راټوكيږى په كومو كښې چه تاسو څاروى څروئ. هم په هغې سره الله پاك ستاسو دپاره فصلونه، زيتون، د كهجورو اونې، انګور او هر قسم ميوې راټوكوى حقيقت دا دې چه په دې ټولو خبرو كښې د هغه خلقو دپاره لويه نخښه ده چه سوچ او فهم لرى. او هغهٔ ورځ او شپه او نمر او سپوږمۍ ستاسو په خدمت كښې لګولې دى او ستورى هم د هغه په حكم باندې په كار لګيدلې دى. يقيناً په دې خبرو كښې د هغه خلقو دپاره ډيرې نخښې دى چه د عقل نه كار اخلى. هم دغه شان هغه ټول رنګ په رنګ څيزونه كوم چه هغه ستاسو دپاره په زمكه كښې خوارهٔ كړى دى، هغه هم د هغه په حكم باندې په كار لګيدلې دى. بيشكه په دې ټولو څيزونو كښې دهغه خلقو دپاره نخښه ده چه پند اخلى او هم هغه دې چا چه سمندر په كار لګولې دې، چه تاسو دهغې نه تازه غوښه اوخورئ او د هغې نه هغه كالى (زيورات) راوباسئ كوم چه تاسو اچوئ او تاسو ګورئ چه په هغې كښې كشتئ اوبو شلولو سره روانې وى، چه د الله پاك فضل تلاش كړئ، او د دې دپاره چه تاسو شكر ګزار شئ او هغه په زمكه كښې د غرونو لنګرې اچولې دى چه هغه په تاسو باندې خوزى نه، او درياب ونه او لارې ئې جوړې كړې دى چه تاسو منزل مقصود ته اورسئ. او (د لارو د پيژندګلو دپاره) ډيرعلامات ئې جوړكړى دى او په ستورو سره هم خلق لاره معلوموى.

## خلاصه تفسير

﴿هُوَ الَّذِيْ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً لَّكُمْ﴾ هغه [الله ﷻ] داسې ذات دې چې چا ستاسو [دفائدې] دپاره د آسمان نه اوبۀ راؤرولې ﴿مِّنْهُ شَرَابٌ وَّمِنْهُ شَجَرٌ فِيْهِ تُسِيْمُوْنَ﴾ چې دهغې نه تاسو ته د څکلو دپاره ملاويږي او په كومو [د كومو په سبب] سره چې ونې [پيدا] كيږي چې په كښې تاسو [خپل څاروی] څريدو سره پريږدئی [او] ﴿يُنْۢبِتُ لَكُمْ بِهِ الزَّرْعَ وَالزَّيْتُوْنَ وَالنَّخِيْلَ وَالْاَعْنَابَ وَمِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ﴾ د دې [اوبو] نه تاسو [ستاسو د فائدې] دپاره فصل او زيتون او قجورې او انګور او هر قسم ميوې [د زمكې نه] راتوكيږي ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ﴾ بيشكه په دې [بيان شوؤ] كښې دسوچ د خاوندانو دپاره [دتوحيد] دليل [موجود] دی ﴿وَسَخَّرَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ﴾ هغه [الله ﷻ] تاسو [ستاسو دفائدې] دپاره شپه او ورځ او نمر او سپوږمئ [خپله] تابع [د قدرت] جوړه كړه ﴿وَالنُّجُوْمُ مُسَخَّرٰتٌۢ بِاَمْرِهٖ﴾ او [دغه شان نور] ستوری [هم] د هغه په حكم سره تابع [د قدرت] دی ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ﴾ بيشكه په دې [بيان شوؤ] كښې [هم] د عقل د خاوندانو د پاره [دتوحيد] څو دليلونه [موجود] دی ﴿وَمَا ذَرَاَ لَكُمْ فِي الْاَرْضِ مُخْتَلِفًا اَلْوَانُهٗ﴾ او [دغه شان] هغه څيزونه ئې هم تابع [دقدرت] جوړ كړل چې ستاسو [دفائدې] دپاره ئې په داسې شان پيدا كړی دې چې قسمونه [يعنې جنسونه ، انواع او اصناف] ئې مختلف دی [په دې كښې ټول سادار څيزونه ، ټوكيدونكی ، جمادات ، مفردات ، او مركبات داخل دی] ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّذَّكَّرُوْنَ﴾ بيشكه په دې [بيان شوؤ] كښې [هم] پوهه خلقو دپاره [دتوحيد] دليل [موجود] دې ﴿وَهُوَ الَّذِيْ سَخَّرَ الْبَحْرَ لِتَاْكُلُوْا مِنْهُ لَحْمًا طَرِيًّا﴾ او هغه [الله ﷻ] داسې دې چې هغه درياب لره [هم] تابع [او قدرت] جوړ كړو دپاره د دې چې د دې څخه تازه تازه غوښه [يعنې كبان په راښكلو سره] خورئی ﴿وَتَسْتَخْرِجُوْا مِنْهُ حِلْيَةً تَلْبَسُوْنَهَا﴾ او [دپاره د دې چې] د دې څخه [د ملغلرو] كالی راؤباسی چې هغه تاسو [سړي اوښځې ټول اچوئی ﴿وَتَرَى الْفُلْكَ مَوَاخِرَ فِيْهِ﴾ او [ائې مخاطبه ! د درياب يوه فائده د اهم ده چې] ته كشتئ [ورې يا لوئې لكه لوئې جهازونه] وينې چې په دې [درياب] كښې [د دې] اوبه څيرې كوی او روانې وی ﴿وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ﴾ او [داشان ئې درياب د خپل قدرت] تابع [څكه جوړ كړو چې تاسو [د تجارت مال څان سره واخلئ او سفر كوئی او په دې ډول] د الله ﷻ روزی لټوئی ﴿وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ﴾ او څكه چې [د دې ټولو فائدو په ليدو سره دهغه] شكر ادا كړئی ﴿وَاَلْقٰى فِي الْاَرْضِ رَوَاسِيَ﴾ او هغه په زمكه كښې غرونه كيخودل دپاره د دې چې هغه [زمكه] تاسو سره ديكې وهل [اوخوزيدل] شروع نه كړی ﴿اَنْ تَمِيْدَ بِكُمْ وَاَنْهٰرًا وَّسُبُلًا لَّعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ﴾ او هغه [اوړه واړه] نهرونه او لارې جوړې كړې دپاره د دې چې [د دې لارو په ذريعه خپل] منزل مقصود ته اورسيدې شئ ] ﴿وَعَلٰمٰتٍ﴾ او [د دې لارو دپيژندلو دپاره ئې] ډيرې نخښې جوړې كړې [لكه غرونه ، ونې ، تعميرات ، وغيره چې په هغې سره لار پيژندې شی ګنې كه ټول مخ د زمكې په يو حالت وې نو لار به نشوه پيژندلې كيدې] ﴿وَبِالنَّجْمِ هُمْ يَهْتَدُوْنَ﴾ او په ستورو سره هم خلق لار معلوموی [څنګه چې ښكاره او معلومه خبره ده ].

## معارف او مسائل

﴿مِنْهُ شَرَابٌ وَّمِنْهُ شَجَرٌ فِيْهِ تُسِيْمُوْنَ۝﴾ د شجر لفظ اکثر ونې دپاره استعمالولې شی چې په تنه باندې اړه لري ، او کله هغه څيز ته هم وئيلې شی چې دزمکې نه پيدا کيږي چې واښه او جيلغدار بوټي په کښې هم شامل وی ، په دې بنا آيت کښې ترې دا معنی څکه مراد اخستې شی چې وريسې د څاروؤ د څرولو بيان دې چې زيات تعلق ئې وښو سره وی .

﴿تُسِيْمُوْنَ﴾ د اسامت نه مشتق دې ، ددې معنی داده چې څاروی د څريدو په څائې کښې څرند دپاره پريښودې شی .

﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ۝﴾ په دې ټولو آيتونو کښې د الله ﷻ د نعمتونو او په عجيبه حکمت سره د کائناتو دپيدا کولو بيان دې چې په کښې غور ، فکر کوؤنکو ته داسې دليلونه او ثبوتونه په ګوتو ورځی چې په هغې سره ګويا کښې دالله تعالی توحيد په سترګو ليدلې شی څکه ددې نعمتونو په بيانولوسره بيا بيا په دې باندې خبرداري ورکړې شوې دې ، ددې آيت مبارک په آخر کښې فرمائی چې په دې کښې د سوچ کوؤنکو دپاره دليل دې ، ولې چې فصل ، ونې او ددې ګلونه او ميوې وغيره د الله ﷻ کاريګرئی او حکمت سره د تړون لرلو په وجه څه قدرې غور فکر کول غواړی ، لکه دا چې دانه هډوکې چې په زمکه کښې اوکرلې شی او اوبه ورکړې شی نو پخپله دهغې نه يو عظيم الشان ونه نشی جوړيدې چې رنګارنګ ګلونه په کښې لګی ، پدې کښې د کروندګرو او زميندار څه دخل نشی کيدې ، ددې تړون يوازې د قادر مطلق کاريګرئی او حکمت سره دې ، دې پسې د ليل ونهار او ستورو بيان راغلو چې دا ټول د الله ﷻ د حکم تابع چليږی . نو په آخر کښې ئې ارشاد اوفرمائيلو چې :

﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ۝﴾ [يعنی په دې څيزونو کښې د عقل د خاوندانو دپاره يو څو دليلونه دی] په دې کښې اشاره دې خبرې ته اوشوه چې ددې څيزونو د الله ﷻ د حکم تابع کيدل داسې ښکاره دی چې په کښې د زيات غور ، فکرکولو ضرورت نشته ، د لږ عقل خاوند هم پرې پوهيدې شی . ولې چې د توکيدونکو څيزونو او د ونو په راټوکولو کښې خو په ظاهره د انسانی عمل دخل کيدې شو چې دلته هغه هم نشته .

دزمکې د مختلف قسمه پيداوار بيانولو نه پس فرمائی چې :

﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّذَّكَّرُوْنَ۝﴾ [يعنی په دې کښې هغه خلقو لره دليل دې چې نصيحت اخلی] مطلب دادې چې دلته هم د ژورنظر اوفکرکولوضرورت څکه شته چې ددې دلالت بالکل ښکاره دې ، خو په شرط ددې چې څوک ورته په مخه کولو سره ګوری او نصيحت حاصلوی ، ګنی نو بيوقوف ، بې فکره انسان چې دې طرفته مخه نه کوی نو هغه ته ددې نه څه فائده کيدې شی؟

﴿وَسَخَّرَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ﴾ د شپې اود ورځې د تابع کولو مطلب دادې چې د انسان په کار کښې ئې د لګولو په غرض د خپل قدرت تابع جوړې کړې په دې بنا شپه ، د انسان دپاره د آرام سامان برابروی او ورځ ئې د کار کولو دپاره لارې هوارې وی ، ددې دا معنی نه ده چې ګنی شپه او ورځ چليدل ئې دانسان د حکم تابع کړځولی دی .

﴿وَهُوَ الَّذِيْ سَخَّرَ الْبَحْرَ لِتَاْكُلُوْا﴾ د آسمان او زمکې د مخلوقاتو بيانولو سره ئې د انسان فائدې بيان کړې ، دې پسې ئې سمندر نه د انسان د فائدې بيان داسې اوفرمائيلو چې دې نه دانسان دخوراک ښکلې انتظام کړې شوې دې يعنی دې نه انسان ته خوراک دپاره تازه غوښه ملاويږی .

﴿لِتَأۡكُلُواْ مِنۡهُ لَحۡمٗا طَرِيّٗا﴾ په الفاظو کښې هر کله چې د کب یعنی مهی غوښې ته تازه اووئیلې شو نو په دې کښې دې خبرې ته اشاره مونده شی چې د نورو څاروؤ او حیواناتو پشان د کب د ذبح کولو شرط نشته ، ګویا کښې هغه تیاره جوړه کړې غوښه ده .

﴿وَتَسۡتَخۡرِجُواْ مِنۡهُ حِلۡيَةٗ تَلۡبَسُونَهَاۖ﴾ دلته د دریاب بله فائده دابیانوی چې انسان په غوپې وهلو سره ددې نه خپل ځان دپاره حلیه راوباسی ، دحلیه لفظی معنی زینت دې . مراد ترې هغه موتیانې، ملغلرې او جواهرات دی چې سمندر نه راوښکلې شی او ښځې ترې د امیل جوړولو یا په نورو طریقو سره د غاړې او غوږونو وغیره کالی[زیورات] جوړوی . کالی اګر چې ښځې اچوی خو قرآن کریم دې دپاره د نارینؤ لفظ داسې استعمال کړو:﴿تَلۡبَسُونَهَاۖ﴾ [تاسو نارینه ئې اچوئې] دې کښې اشاره دې خبرې ته شوې ده چې ښځې کالی اچوی نو دې کښې د نارینؤ فائده داسې ده چې د ښځو زینت کول په حقیقت کښې د نارینؤ حق ځکه دې چې یو خاوند خپلې ښځې لره د زینت د جامو په اغوستلو او په کالو اچولو مجبوره کولې شی ، دې نه علاوه نارینه پخپله هم په ګوتمه وغیره کښې جواهرات استعمالولې شی .

﴿وَتَرَى ٱلۡفُلۡكَ مَوَاخِرَ فِيهِ وَلِتَبۡتَغُواْ﴾ د سمندر دا دریمه فائده ښائی د فلک معنی کشتئ ، مواخر د ماخره جمع ده ، د مخر معنی اوبهٔ څیرې کول دی ، دې نه مراد هغه کشتئ او سمندری جهازونه دی چې د اوبو چپې څیرې کوئ او په اوبو کښې روانې وی. د آیت مبارک مطلب داشو چې الله ﷻ دریابونو لره د لرې لرې د سفر لاره جوړه کړې یده ، دلرې لرې ملکونو سفرونه د دریاب په ذریعه کول ئې آسان کړی دی . تجارتی مال اوړل راوړل ئې آسان کړی دی د روزئ ګټلو او حاصلولو ذریعه ئې جوړه کړې ده ځکه چې د دریاب په لاره تجارت کول ډیر فائده مند دی .

﴿وَأَلۡقَىٰ فِي ٱلۡأَرۡضِ رَوَٰسِيَ أَن تَمِيدَ بِكُمۡ﴾ رواسی، د راسیة جمع ده، معنی ئې درونډ غردې، تمید د مید مصدر نه مشتق دې، معنی ئې انډول په انډول آوړیدل او په دیکو دیکو سره حرکت کول دی .
د ټول آیت معنی دا شوه چې الله ﷻ د زمکې کره د ډیرو حکمتونو په بنا ، کلکه او د یو شان برخو نه نه ده جوړه کړې څینې برخې ئې درنې او څینې ئې سپکې دی ، ددې لازمی نتیجه دا راوختله چې د عامو فلسفیان پشان که زمکه په ځائې ولاړه اومنلې شی یا د زړو او نوؤ فلسفیانو پشان غونډه مونډه حرکت کوؤنکې اومنلې شی په دواړو حالتونو کښې به په زمکه کښې یو ناقلاره حرکت وو چې ورته پرغز یا تیندوکونه وئیلې شی . ددې ناقلاره حرکت بندولو دپاره الله ﷻ په زمکه باندې د غرونو درونډوالې کیښودو.
د زمکې غونډ مونډ حرکت کول ځنګه چې نورې سیارې ئې کوی او په پخوانو فلسفیانو کښې د فیثاغورث تحقیق دې او نوی فلسفیانو ټول پرې اتفاق کوی ، نوؤ تجربو هم ښکاره کړی دی ، نو قرآن پاک دې لره نه خو ثابتوی او نه ئې رد کوی . ځکه به دغه ناقلاره حرکت د غونډ مونډ حرکت دپاره نور زیات مددګار وی کوم چې د نورو سیارو پشان ثابتولې شی ، والله اعلم.

﴿وَعَلَٰمَٰتٖۚ وَبِٱلنَّجۡمِ هُمۡ يَهۡتَدُونَ﴾ هر کله چې بره د تجارتی سفر بیان راغلې دې ، نو د هغې

آسانتیاو بیانول هم مناسب اوګنړلې شو چې الله ﷻ د مسافرو د مزل غوڅولو او منزل مقصود ته د رسیدو دپار په زمکه او آسمان پیدا کړی دی. څکه فرمائی چې ﴿وَعَلٰمٰتٍ﴾ یعنی مونږ په زمکه باندې د لارې پیژندلو دپاره ګڼړی نخښې ، غرونه ، دریابونه ونې او مکانات وغیره قائم کړی دی. ښکاره ده که زمکه یو قسم هوار پنډوس یعنی غونډه سکه وې نو انسان به یو پراؤ ته رسیدو دپاره په څه شان دلارې نه بې لارې کیدو.

﴿وَبِالنَّجْمِ هُمْ يَهْتَدُونَ﴾ یعنی سفر کوونکی څنګه چې د زمکې په نخښو سره لارې پیژندې شی دغه شان د ستورو په ذریعه هم طرف معلومولو سره لار پیژندې شی ، په دې عنوان کښې دې ته هم اشاره معلومیږی چې د ستورو د پیدا کولو اصل مقصد خو څه بل دې ، دې سره یوه فائده ئې داهم ده چې دې سره لارې هم پیژندلې کیدې شی

أَفَمَنْ يَّخْلُقُ

| آیا هغه څوک | چې پیدا کول کوی

| نو څوک چې پیدا کول کوی

كَمَنْ لَّا يَخْلُقُ ط أَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ﴿۱۷﴾ وَإِنْ تَعُدُّوْا

پشان دهغه چادې | چې پیدا کول نشی کولې | آیا نو تاسو نصیحت نه قبلوئ | او که تاسو شمارئ

دهغه چا په شان کیدیشی چې هیڅ نه نشی پیدا کولې | نو تاسو ولې نصیحت نه قبلوئ | او که تاسو د الله ﷻ

نِعْمَةَ اللّٰهِ لَا تُحْصُوْهَا ط إِنَّ اللّٰهَ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۸﴾ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ

نعمت دالله | نو نه شئ شمارلې هغه | بیشکه چې الله | ښښونکې | رحم کوونکې دې | او الله | پوهیږی

نعمتونه شمیرل غواړئ | نو د هغې شمیر به او نکړې شئ | بیشکه الله بخښونکې دیر رحم کوونکې دې او الله ﷻ

مَا تُسِرُّوْنَ وَمَا تُعْلِنُوْنَ ﴿۱۹﴾ وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ

په هغه کارونو | چې تاسوئې پټوئ | او په هغه | چې تاسوئې ښکاره کوئ | او هغه | چې رابلی ئې خلق

هغه څه پیژنی چې تاسو ئې پټوئ او څه چې تاسو ښکاره کوئ | .........اوکوم بتان چې دوئ دالله ﷻ

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ لَا يَخْلُقُوْنَ شَيْئًا وَّهُمْ يُخْلَقُوْنَ ﴿۲۰﴾ أَمْوَاتٌ

ماسوادالله نه | نه پیداکوی هغوئ | هیڅ څیز | بلکه هغوئ پخپله | پیداکړې کیږی | هغوئ مړه دی

نه سوا رابلی | هغوئ هیڅ نشی پیداکولې | بلکه هغوئ پخپله پیدا کړې شویدی | هغوی مړه دی

غَيْرُ أَحْيَاءٍ ج وَمَا يَشْعُرُوْنَ لا أَيَّانَ يُبْعَثُوْنَ ﴿۲۱﴾ إِلٰهُكُمْ

نه دی ژوندی | او نه پوهیږی هغوئ | چې کله به | هغوئ راپوته کړې کیږی | معبود ستاسو

ژوندی نه دی | او هغوی نه پوهیږی چې کله به دوباره راژوندی کولې شی | ستاسو معبود

إِلٰهٌ وَّاحِدٌ ج فَالَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ قُلُوْبُهُمْ

| معبود | یودې | نو هغه کسان | چې نه راوړی ایمان | په آخرت باند | زړونه دهغوئ

هم یو معبود دې | نو څوک چې په آخرت باندې ایمان نه راوړی | د هغوئ زړونه

مُّنكِرَةٌ وَّهُمْ مُّسْتَكْبِرُوْنَ۝ لَاجَرَمَ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا

په انکار ټینګ دی | اوهغوئ | تکبير کونکی دی | حقه ده دا خبره | چې بيشکه الله | پيژنی | هغه څه

منکر دی | اوهغوئ تکبر کونکی دی | ..........یقینی خبره ده | چې الله ﷻ په هغه څه

يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ؕ اِنَّهٗ لَايُحِبُّ الْمُسْتَكْبِرِيْنَ۝

چې پټوی ئې دوئ | اوهغه څه | چې ښکاره کوی ئې دوئ | بيشکه چې هغه | نه خوښوی | تکبر کونکی خلق

چې دوی ئې پټوئ اوپه هغه څه چې دوی ئې ښکاره کوئ پوهيږی | بيشکه هغه تکبر کونکی نه خوښوی

## آسان ترجمه قرآن

اوس اووايئ چه کوم ذات (دا ټول څيزونه) پيدا کوی آيا هغه دهغه چا برابر کيدې شی چه څه هم نه پيدا کوی؟ آيا بيا هم تاسو هيڅ سبق نه اخلئ؟ او که تاسو د الله پاک نعمتونه شمار کول شروع کړئ، نو هغه نه شئ شمار کولې حقيقت دا دې چه الله پاک ډير بخښونکې، او ډير رحم کونکې دې، او الله پاک ته هغه خبرې هم معلومې دی کومې چه تاسو په پټه کوئ او هغه هم کومې چه تاسو ښکاره کوئ. او الله پاک لره پريښودلو سره دا خلق چه کوم (بتان) رابلی هغوی هيڅ هم نه پيدا کوی، هغه خو خپله مخلوقات دی. هغوئ بې ساه دی، ژوندی نه دی، اوهغوی ته د دې خبرې احساس هم نشته چه هغوی به کله ژوندی اوچتولې شی ستاسو معبود خو بس هم هغه يو الله پاک دې. لهٰذا چه کوم خلق په آخرت بانديې ايمان نه راوړی، د هغوی په زړونو کښې انکار پيوست شوې دې، او هغوی په تکبر کښې اخته دی. ښکاره خبره ده چه الله پاک ته هغه خبرې هم معلومې دی کومې چه هغوی پټې کوی، او هغه هم کوم چه علی الاعلان ئې کوی. هغه يقيناً تکبر کونکی نه خوښوی.

## خلاصه تفسير

﴿اَفَمَنْ يَّخْلُقُ كَمَنْ لَّا يَخْلُقُ ؕ﴾نو [ کله چې دا ثابته شوه چې يوازې الله ﷻ دغه بيان شوی ټول څيزونه پيدا کړی دی نو ] آيا څوك چې پيدا کول کوی [ يعنی الله ﷻ ] هغه به دهغه چا پشان شی چې پيدا کول نشی کولې [ چې تاسو دواړو لره معبودان اوګڼړل دا خو دالله ﷻ سپکاوې دې چې هغه مو بتانو سره يو شان اوګڼړلو ] ﴿اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ۝﴾ نو آيا تاسو [دومره] نه پوهيږئ او [ الله ﷻ چې پورته د د ليلونو په ترڅ کښې خپل نعمتونه خودلی دی په هغې کښې څه حصر نه دې ولې چې هغه دومره زيات دی چې] ﴿وَاِنْ تَعُدُّوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ﴾که تاسو دالله ﷻ [دغه] نعمتونه شمير اوغواړی ﴿لَا تُحْصُوْهَا ؕ﴾ نو [ هيچرې به ئې هم] اونه شميرلې شئ [ مشرکان شکر او قدر نه کوی او دا جرم دومره لوئې وو چې په معافئ غوښتلو بهٔ معاف کيدې نشو او نه پدې مضبوط ا وسيدو سره دغه نعمتونه په ګوتو ورتلل ، ليکن] ﴿اِنَّ اللّٰهَ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ۝﴾واقعی الله ﷻ ډير بخښونکې ، لوئې د رحمت خاوند دې [ چې څوك دشرك نه توبه کړی نو هغه بخښی او که توبه نه کوی نو بيا هم پرې ټول نعمتونه تر مرګه پورې نه بنديږی] ﴿وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُسِرُّوْنَ وَمَا تُعْلِنُوْنَ۝﴾او [ البته دنعمتونو په ورکيدلو سره دې څوك دا نه ګڼړی چې چرې بهٔ سزا نه وی بلکه آخرت کښې به سزا وی څکه چې ] الله ﷻ ستاسو پټ او ښکاره حالات ټول پيژنی [ نو ددې په جوړ به سزا درکوی دابيان ددې وو چې الله ﷻ پيدا کوونکې او انعام ورکوونکې دې] ﴿وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ

اللهِ لَا يَخْلُقُونَ شَيْئًا وَّهُمْ يُخْلَقُونَ﴾ او د چا چې دا خلق دالله ﷻ په پرېښودلو سره عبادت کوی هغه هيڅ څيز پيدا کولې نشی او هغه پخپله پيدا کړې شوی دی [ او بره ، قاعده ، کليه ثابته شوې ده چې نه پيدا کوونکی او پيدا کوونکې برابر نه دی نود ا معبودان څنګه د عبادت خاوندان جوړيدې شی او ] ﴿أَمْوَاتٌ غَيْرُ أَحْيَاءٍ﴾ دغه [معبودان ] مړهٔ [ بې ساه] دی [ چې تل دپاره بې ساه دی لکه بتان يا اوس بې ساه شوی دی لکه مړهٔ شوی خلق يا به بيا بې ساه کيږی لکه پيريان او عيسی ﷺ وغيره هم ] ژوندی [پاتې کيدونکی نه دی [ نو پيدا کوونکی څنګه کيدې شی] ﴿وَمَا يَشْعُرُونَ أَيَّانَ يُبْعَثُونَ﴾او دغه [معبودان دومره هم] خبر نه دی، چې [په قيامت کښې به ] کله راپورته کولې شی ؟ [ يعنی څينې خو ترې بالکل خبر نه دی او څينې ئې په خاص وخت خبر نه دی سره ددې چې د معبود علم دهر څه راچاپيره پکار دې ، خصوصا د قيامت علم خو دده دپاره څکه پکار دې چې د ا د عبادت کولو اونه کولو د جزا وخت دې چې دمعبود پرې خبر اوسيدل ډير مناسب دی نو الله ﷻ سره په علم کښې څنګ برابر کيدې شی ؟ دې بيان نه ثابت شو چې ] ﴿إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ﴾ ستاسو معبود برحق هم يو معبود دې نو] د حق د واضح کولو په دې صورت کښې هم] ﴿فَالَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ قُلُوبُهُمْ مُّنكِرَةٌ وَهُم مُّسْتَكْبِرُونَ﴾ چې کوم خلق په آخرت باندې ايمان نه راوړی [ او هم دغه وجه ده چې دوئ نه ويريږی چې توحيد قبول کړی معلومه شوه چې ] د دوئ زړونه [داسې نامنونکی دی چې د معقولې خبرې نه ] منکريږی او [ معلومه شوه چې ] هغه دحق قبلولو نه تکبر کوی [ او] ﴿لَا جَرَمَ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ﴾ ضروری خبره ده چې الله ﷻ ددې ټولو حالات پټ او ښکاره پيژنی ﴿إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُسْتَكْبِرِينَ﴾ [ او دا هم] يقينی خبره ده چې الله ﷻ تکبر کوونکی نه خوښوی [ نو هر کله چې د دوئ تکبر معلوم دې څکه به دوئ لره هم نه خوښوی او سزا به ورکوی]

### معارف او مسائل

تيرو شوؤ آيتونو کښې د الله ﷻ د نعمتونو اود کائناتو د پيدا کولو په تفصيل سره بيان شوې دې . دې څخه روستو په هغه خبرې خبردارې ورکړې شوې دې دکومې دپاره چې ددغې ټولو نعمتونو تفصيلی بيان اوشو. هغه د الله ﷻ توحيد دې چې د هغه څخه سوا بل هيڅوك د عبادت لائق نشته ، څکه فرمائی چې هر کله ثابت شو چې يوازې الله ﷻ زمکه ، آسمانونه جوړ کړل ، غرونه او دريابونه ئې جوړ کړل ، نباتات او حيوانات ئې پيدا کړل ، او ونې او ميوې ئې پيدا کړې ، نو آيا کوم پاك ذات چې ددې ټولو څيزونو پيدا کوونکې دې ، دهغې بتانو پشان به شی کوم چې هيڅ نشی پيدا کولې ، نو آيا تاسو دومره نه پوهيږئ .

| وَإِذَا | قِيلَ | لَهُمْ مَّاذَآ | أَنزَلَ | رَبُّكُمْ | قَالُوٓا | أَسَاطِيرُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او کله چی | اووئيلې شی | دوئ ته څه څيز | نازل کړې دې | رب ستاسو | نووائی دوئ | چی قيصې دی |
| او کله چې ددوئ نه تپوس اوشی | چې ستاسو رب څه نازل کړی دی | نودوی وائی چې د پخوانو خلقو | | | | |

| الْأَوَّلِينَ | لِيَحْمِلُوٓا | أَوْزَارَهُمْ كَامِلَةً | يَوْمَ الْقِيَامَةِ | وَمِنْ أَوْزَارِ |
|---|---|---|---|---|
| دړومبنو خلقو | دپاره ددې چې بار کړی دوئ | پيتی خپل ‌‌| تول | په ورځ دقيامت | او پيتی |
| قيصې دی | [د دې انجام به داوی] چې دقيامت په ورځ به د خپلو گناهونو او د هغه خلقو د گناهونو | | | |

ٱلَّذِينَ يُضِلُّونَهُم بِغَيۡرِ عِلۡمٍۗ أَلَا سَآءَ مَا

دهغه کسانو | چې دوئ ګمراهه کوی هغوئ لره | په وجه دناپوهئ | خبردار واورئ | ډیر بد دي | هغه

پیتی اوچتوی | چې هغوی ئې بغیر دعلم نه ګمراه کړی دی | دوی چې کوم پیتی اوچتوی هغه ډیر

يَزِرُونَ ۝ قَدۡ مَكَرَ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡ فَأَتَى ٱللَّهُ

چې باروی ئې دوئ دوکه بازی کړی ده | هغه کسانو | چې مخکښې ددوئ نه وو | نو راغې الله

خراب دی | ددوئ نه وړاندې خلقو هم [دپیغمبرانو خلاف] سازشونه کړی وو | دهغوی په آبادئ دالله

بُنۡيَٰنَهُم مِّنَ ٱلۡقَوَاعِدِ فَخَرَّ عَلَيۡهِمُ ٱلسَّقۡفُ مِن فَوۡقِهِمۡ وَأَتَىٰهُمُ

آبادئ دهغوئ ته | دبیخ نه | نوراپریوت | په هغوئ باند | چت | دپاسه دهغوئ نه | اوراغې هغوئ ته

[قهر] د بنیادونود طرفه راغلو | نو په هغوی باندې د پورته نه چت راپریوتلو | او په هغوی د هغه طرف نه عذاب

ٱلۡعَذَابُ مِنۡ حَيۡثُ لَا يَشۡعُرُونَ ۝ ثُمَّ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ يُخۡزِيهِمۡ

عذاب | دهغه طرفنه | چې هډوګمان نه وۀ دهغوئ | بیا | په ورځ دقیامت | به رسوا کړی هغوئ لره

راغلو | چې دهغوی په ګمان کښې هم نه وو | بیا د قیامت په ورځ بهٔئې الله ﷻ ذلیله کړی

وَيَقُولُ أَيۡنَ شُرَكَآءِيَ ٱلَّذِينَ كُنتُمۡ تُشَٰٓقُّونَ

او ورته به وائی | کوم ځائې دی | شریکان زما | هغه | چې وئ تاسو | چې مخالفت به موکوۀ

او ورته به اووائی اوښایئ زما هغه شریکان کوم ځائې دی اچې تاسو به دهغوئ دپاره [دمومنانو سره] جګړې

فِيهِمۡۚ قَالَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا ٱلۡعِلۡمَ إِنَّ ٱلۡخِزۡيَ

په حق دهغوئ کښې | اوبه وائی | هغه کسان | چې ورکړې شوې وۀ هغوئ ته | علم | بیشکه | رسوائی ده

کولې | نود علم خاوندان به اووائی | چې د نن ورځې پوره رسوائی اوبدبختی د هغه کافرانو دپاره

ٱلۡيَوۡمَ وَٱلسُّوٓءَ عَلَى ٱلۡكَٰفِرِينَ ۝ ٱلَّذِينَ تَتَوَفَّىٰهُمُ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ

نن ورځ | اوبدبختی ده | په کافرانو باند | په هغه باند | چې کله روح قبض کوی دهغوئ | فرښتې

ده | ...........چې فرښتې ئې په داسې حال کښې روحونه اخلی |

ظَالِمِيٓ أَنفُسِهِمۡۖ فَأَلۡقَوُا ٱلسَّلَمَ مَا كُنَّا

په دا حال چې ظلم کونکې دی | په ځانونو خپلو باندې | نو وړاندې به کړی | صلحه | چې نهٔ وۀ مونږ

چې په خپلو ځانونو باندې ئې ظلم کولو (۱) | نو بیا به هغوئ دصلحې خبره پیش کړی | چې مونږ

---

(۱) **دَ مرګ په وخت کښې دَ ظالمانو کیفیت:-** دَ مشرکانودَ مرګ په وخت کښې حال بیانیږی چه کله فرښتې دَ هغوی دَ روح ویستلودَ پاره راځی نودې هغه وخت کښې دَ اوریدلوعمل کولو او منلواقرار کوی او دې سره خپل کارونه پټوی او خپله بې ګناهی بیانوی. دَ قیامت په ورځ به هم دَ الله تعالی په وړاندې قسمونه خوړلوسره خپل مشرک نه کیدل بیانوی څنګه چه په دنیا......[باقی په راروانه صفحه...

نَعۡمَلُ مِنۡ سُوۡٓءٍ ؕ بَلٰٓى اِنَّ اللّٰهَ عَلِيۡمٌ ۢ بِمَا

| چی کول به مو څه بدی | ولې مونږ کوله | بیشکه الله | ښه خبر دې | په هغه کارونو

خو هیڅ بد عمل نه دې کړی| ......بیشکه الله ﷻ ستاسو د ټولو عملونو نه

كُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ ۝ فَادۡخُلُوۡۤا اَبۡوَابَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيۡنَ فِيۡهَا ؕ

چې وئ تاسو| چې کول به تاسو|اوس ننوځئ| دروازو| ددوزخ ته| چې همیشه به اوسئ| په هغې کښې

خبر دې | نو اوس ددوزخ دروازو ته ورداخل شئ| تاسو به په دې کښې همیشه پراته یئ | د تکبر کونکو

فَلَبِئۡسَ مَثۡوَى الۡمُتَكَبِّرِيۡنَ ۝

نو ډیر خراب دې | ځائې داوسیدو| دتکبر کونکو خلقو |

دپاره خو مره خراب ځائې دې

## آسان ترجمه قرآن

او کله چه هغوی ته او وئیلې شو چه: ستاسو رب څه خبره نازله کړې ده؟ نو هغوی او وئیل چه: د تیرې شوو خلقو قصې. (د دې خبرو) نتیجه دا ده چه هغوی به د قیامت په ورځ بالدې دَخپلو ګناهونو پوره پوره بوجهونه هم په ځان بالدې بارَوی او د هغه خلقو د بوجونو یو حصه هم څوک چه دوی بغیر د څه علم نه ګمراه کوی. یاد ساتئ چه ډیر بد بوج دې کوم چه دوی بارَوی. د دوی نه مخکښې خلقو هم دیمکر منصوبې جوړې کړې وې. بیا دا اوشوه چه (د منصوبو) کومې ماڼۍ چه هغوی جوړې کړې وې، الله پاک هغه د جرړې او بنیاد نه راوُیستلې، بیا دهغوی دپاسه چهت هم راپرېوتلو او په هغوی بالدې د داسې ځائې نه عذاب راغلو چه د هغې هغوی ته هیڅ احساس نه وو بیا د قیامت په ورځ بالدې به الله پاک هغوی رسوا کړی، او د هغوی نه به تپوس وکړی چه: چرته دی هغه زما شریکان د چا دپاره چه تاسو (مسلمانو سره) جهګړې کولې؟ کومو خلقو ته چه علم ورکړې شوې دې، هغوی به (په هغه ورځ) وائی چه: نو په رسوائی او بدحالی مسلط ده نن په هغه کافرانو بالدې. دچا روحونه چه ملائکو په داسې حالت کښې قبض کړل چه کله هغوی په خپلو ځانونو بالدې (د کفر د وجې نه) ظلم کړې وو. په دې موقع

....باقی حاشیه د تیرمخ]...کښې دَخلقویه وړاندې خپله بې ګناهئ باندې قسمونه خوری. دوی ته به جواب ملاویږی چه دروغژن ئی او په ښه کولاوزره مو بدعملئ کړی دی الله تعالی غافل نه دې چه ستاسو په خبروکښې به راشې په هغه باندې هریوعمل ښکاره دې اودَ خپلو کړو سزا اوخورئی اودَ دوزخ دروازو ته لاړ شئی اودَ همیشه دَ پاره دې خراب ځائې کښې پراته اوسئی. مقام خراب مکان خراب دَ ذلت او رسوائې والا دابدله دَ الله تعالی دَ آیاتونو تکذیب اودَ هغې ته کبر کونکو اودَ هغه دَ رسولانودَ تابعدارئی نه ځان پټولو. مره کیدوسره دَ هغوی روحونه دوزخ ته اورسیدل او په بدنونوباندې په قبرونوکښې دَ دوزخ ګرمی اودَ هغې لمبې راځی. دَ قیامت په ورځ به روحونه بدنونوسره یوځائ شی او دَ دوزخ په اورکښې به ورځی چه نه به مرګ وی اونه څه کمې. لکه چه دَ الله تعالی فرمان دې ﴿اَلنَّارُ يُعۡرَضُوۡنَ عَلَيۡهَا غُدُوًّا وَّعَشِيًّا﴾ (۴۰/المؤمن:۴۶) دوی دَ دوزخ اور له هرسحر اوماښام راوړلې شی دَ قیامت قایم کیدو سره به ای آل فرعون تاسو سخت عذاب ته ورځئ.

باندې به کافران ډېر د فرمانبردارۍ خبرې کوي چه موږ خو به هیڅ بد کار نه کولو. (هغوی ته به اوویلې شي : ) ولې به مو نه کولو؟ الله پاک ته هر څه معلوم دي چه تاسو به څه څه کول. لهٰذا اوس همیشه جهنم کښې داوسیدلو دپاره هغې ته داخل شئ. څکه چه دتکبر کونکو هم دا بده استوګنه ده.

## خلاصه تفسیر

﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ﴾ اوکله چې دوئ ته اوویلې شي [ یعنی څوك ناآشنا بنده د تحقیق په غرض یا واقف بنده د آزمیښت په غرض د دوئ نه تپوس کوي ] ﴿مَّاذَا أَنزَلَ رَبُّكُمْ﴾ چې ستاسو رب څه څیز نازل کړې دې؟ [ یعنی قرآن عظیم الشان چې ورته رسول اکرم ﷺ د الله ﷻ نازل کړې کتاب وائی ، آیا دا صحیح دی ؟ ] ﴿قَالُوا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ﴾ نو وائی چې [ صاحبه ! هغه د رب نازل کړې چرته دې ] هغه خو خالص بې سنده خبرې دی چې د پخوانو [خلقو] نه [نقل شوې] راروانې دی [ یعنی د تولو دینونو خاوندان پخوا راسې د توحید ، پیغمبرئی او قیامت دعویداران ] راروان د ی چې اوس دوئ هم دا خلقو نقش قدم باندې په روا ن دی دالله ﷻ د طرفه دوئ سره هیڅ داسې حکم [یا دعوی نشته دې ] ﴿لِيَحْمِلُوا أَوْزَارَهُمْ كَامِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ نتیجه ددې [وینا ] به داوی چې دا خلق به د قیامت په ورځ د خپلو ګناهونو سراسر پیتې ﴿وَمِنْ أَوْزَارِ الَّذِينَ يُضِلُّونَهُم بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ او چاله چې دې خلقو د بې علمئ نه ګمراه کول دهغوئ د ګناهونو څه پیتې هم په دوئ باندې پورته کول رازی [ د ګمراه کولومطلب دادې چې دوئ به ورته اساطیر الاولین یعنی زړې قیصې وئیلې څکه چې په دې سره د نورو خلقو عقیده خرابیږی مطلب دا چې ګمراه کوونکې پخپله هم ګمراه وی چې دا خپله ګنابه تولـه پرې باروی او د بل د ګمراه کولو څه ګناه به پرې هم باروی] ﴿أَلَا سَاءَ مَا يَزِرُونَ﴾ ښه یاد ساتئ چې کومه ګناه پخپل ځان باندې دوئ باروی هغه خراب پیتې دې [ او دبل د ګمراه کولو ددوئ د اچلونه به د حق په مقابله کښې نه چلیږی بلکه ددې پیتې به هم د دوئ په دوئ پریوزی چنانچه] ﴿قَدْ مَكَرَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾ کوم خلق چې د دوئ نه وراندې تیر شوي دی هغوئ [ دپیغمبرانو ﷺ په مقابله کښې او مخالفت کښې ] لوئې لوئې چلونه اوکړل ﴿فَأَتَى اللَّهُ بُنْيَانَهُم مِّنَ الْقَوَاعِدِ﴾ خو الله ﷻ دهغوئ [ ددغې چلونو] جوړ کړې کور د بیخ بنیاد نه وران کړو [ هغوئ داسې ناکام شو ګویا کښې ] ﴿فَخَرَّ عَلَيْهِمُ السَّقْفُ مِن فَوْقِهِمْ﴾ چې د پورته نه په هغوئ باندې [ددغې کورا] چت راپرېوتې وی [ یعنی څنګه چې د چهت راپرېوتلو سره تول لاندې دباؤ شی داسې هغه خلق بالکل ورك شو چې نامراد او تاوانیان شوا ] ﴿وَأَتَاهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُونَ﴾ او [ د نامراده کیدو نه علاوه] په هغوئ باندې [ دالله ﷻ ] عذاب په داسې شان راغلو چې د دوئ ورته پام هم نه وو [ولې چې هغوئ خو دخپلو چلونو د کامیابیدو په امید کښې وو خو التټه ورته راپیښ داسې شو چې یو خوا نامراده شو او بل طرفته داسې عذاب راغلو چې په وهم او ګمان کښې هم نه وو. دا خو معلومه خبره ده چې په پخوانو کافرانو باندې عذابونه راغلی دی ، دائې ددنیا حالت شوا ] ﴿ثُمَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُخْزِيهِمْ﴾ بیا به د قیامت په ورځ [ د دوئ د احال وی چې] الله ﷻ به ئې شرموی ﴿وَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَائِيَ الَّذِينَ كُنتُمْ تُشَاقُّونَ فِيهِمْ﴾ او [ یو قسم شرمول به ئې د اسې وی چې ورته] داسې به وائی چې [ تاسو کوم] زما شریکان [ جوړ کړی وو] د هغې په باره کښې مو [ پیغمبرانو مؤمنانو سره] جنګ جګړې کولې [ هغه اوس چرته دی

[ددې نه په لیدو به ] ﴿قَالَ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ﴾ حق پيژندونکي اووائي چې ﴿إِنَّ الْخِزْيَ الْيَوْمَ﴾ نن پوره شرميدل ﴿وَالسُّوءَ عَلَى الْكَافِرِينَ﴾ او عذاب په کافرانو دې ﴿الَّذِينَ تَتَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِي أَنفُسِهِمْ﴾ چې ساه ئې فرښتو د کفر په حالت کښې اوښکلې وه [ يعنى تر آخر وخته پورې کافران پاتې شوی وو د پيژندنکو خلقو دا وينا په مينځ مينځ کښې راؤړل په دې غرض کيدې شي چې د کافرانو شرميدل په ښکاره او عامه کيدل ښکاره کړې شی ] ﴿فَأَلْقَوُا السَّلَمَ مَا كُنَّا نَعْمَلُ مِن سُوءٍ﴾ بيا به کافران خلق [ دخپلو شريکانو په جواب کښې ] د صلحې پيغام رامخې ته کړی [ او وائي به ] چې [ د شرك پشان ډيره لويه گناه او دالله ﷻ مخالفت کول مونږ هيڅرې نشو کولې [ مونږ خو څه خراب کار [ چې دالله ﷻ معمولی مخالفت پرې کيدې شی هغه هم ] نه کولو [ دې ته د صلح مضمون ځکه اووئيلې شو چې هر کله دوئ په دنيا کښې ښه په ښکاره د شرك يعنى د الله ﷻ د مخالفت اقرار کولو او داسې به ئې وئيل چې [لوشآء الله مااشركنا]([1]) خصوصا پيغبرانو ﷺ سره خو پخپله د ښکاره مخالفت کولو د عويدار وو خو بيا چې د قيامت په ورځ د شرك نه کولو په ترڅ کښې مخالفت نه کول څرګند کړی نو ځکه ورته صلح اووئيلې شو ، نو د اشرك نه د انکار بيان يو آيت کښې داسې راغلې دې [وَاللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ]([2]) خو الله ﷻ به ئې داخبره اونه منی او فرمائی چې [ ﴿بَلَىٰ﴾ ولې نه [ بلکه واقعی چې تاسو د مخالفت لوئې لوئې کارونه کړی وو] ﴿إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ بيشکه الله ﷻ ستاسو په ټولو عملونو پوره خبر دې ﴿فَادْخُلُوا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا﴾ نو [ ښهٔ ده] د جهنم په د روازوباندې [ جهنم] کښې داخل شئ [او] په دې کښې تل ترتله پاتې کيږی ﴿فَلَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ﴾ غرض دا چې [ حق سره] تکبر [مخالفت او مقابله ] کوونکوو لره دا [جهنم] خراب ځائې دې [ دا دآخرت د عذاب بيان شو نو د آيتونو حاصل دا شو چې تاسو د وړاندينو کافرانو حال ، زيانکاری ، د دنيا و آخرت دعذاب بيان واؤريدو هم دغه حال اوانجام بهٔ ستاسو هم ځکه وی چې تاسو هم د حق دين په مقابله کښې چلونه او دهوکې کوئ او خلق ګمراه کوئ].

## معارف او مسائل

تيرو شوؤ آيتونو کښې د الله ﷻ د نعمتونو او ددې بيان وو چې د ټول جهان پيدا کولو کښې هغه يوازې وو او د مشرکانود خپلې ګمراهئ بيان وو ، اوس په دې آيتونو کښې نورو لره د ګمراهه کولو او دهغې د عذاب بيان دې ، او ددې ځخه وړاندې يو سوال د قرآن عظيم الشان باره کښې دې چې اول خو ددې مخاطب مشرکان دی، دغلته د دوئ جاهلانه جواب اوپه هغې ددوئ د وعيد بيان دې، پنځو آيتونو ځخه روستوروستې هم ددغې سوال مخاطب متقيان او مؤمنان ګرځولې شوی دی ، د دوئ جواب او په هغې باندې د انعاماتو د وعدې بيان دې.

قرآن عظيم الشان دا نه دی ښکاره کړی چې سوال کوؤنکې څوك وو ؟ ځکه په کښې د مفسرينو اقوال مختلف دی ، چا خو سوال کوؤنکی مسلمانان ګرځولی دی ، چا يو سوال د مشرکانو اوبل ئې د مؤمنانو ګرځولې دې ، ليکن قرآن عظيم الشان هر کله چې سوال کوؤنکې

---

[1]) ترجمه:- که الله تعالى ته منظوره وی نو مونږ به شرك نه کولو.(الانعام:۱۴۸)
[2]) ترجمه:-قسم په الله ، دخپل رب چې مونږ مشرکان نه وو.(الانعام:۲۳)

په کوته نکړو ئو په دې سره اشاره دې خبرې ته اوشوه چې په دې بحث کښې د پريوتو څه ضرورت دې؟ مطلبی خبره ئې د جواب اود هغې دنتيجې ده کومه چې قرآن عظيم الشان پخپله بيان کړې ده.

د مشرکانو د طرفه جواب خلاصه داده چې هغوئ د الله ﷻ د طرفه دڅه کلام نازليدل نه منی، بلکه نازل شوې کلام الله قرآن دپخوانو خلقو رارواني زړې قيصې بولی، دې باره کښې قرآن عظيم الشان اوفرمائيل چې په دې وينا کولو سره دوئ نورو لره هم گمراه کوی، چې په نتيجه کښې بهٔ د قيامت په روځ د خپلې گناه ټول وبال هم په دوئ وی او څوك ئې چې گمراه کړی دی څه وبال د هغوئ دگناهونو به هم په دوئ وی، ورپسې داسې هم فرمائی چې کوم پيتې دوئ په ځان باندې بار کوی هغه ډير ناکاره پيتې دې.

| |
|---|
| وَقِيْلَ　　لِلَّذِيْنَ |
| اوچې اوويلې شو \| هغه کسانو ته |
| او متقيانو ته [د تپوس په طور] اووئيلی شو ......................... \| |
| اتَّقَوْا　مَاذَآ　اَنْزَلَ　رَبُّكُمْ ۭ　قَالُوْا　خَيْرًا ۭ |
| چې ځان ئې اوساتودشرك نه \| څه څيز \| نازل کړې دې \| رب ستاسو \| نو اوويئيل هغوئ \| چې بهتره څيز |
| چې ستاسو رب څه رانازل کړې دی \| نو جواب ورکوی چې ډير ښه کلام يې نازل کړې دې |
| لِلَّذِيْنَ　اَحْسَنُوْا　فِيْ هٰذِهِ الدُّنْيَا　حَسَنَةٌ ۭ　وَلَدَارُ　الْاٰخِرَةِ |
| دپاره دهغه کسانو \| چې نيکي اوکړه هغوئ \| په دې دنيا کښې \| نيکه جزاده \| اوخامخا کور \| داخرت ئې |
| د نيکو کارو دپاره (١) په دې دنيا کښې نيکه بدله ده \| اوخامخا د اخرت کور [جنت] د ټولونه |

(١) **دَ نيکانوخلقو بهترين انجام:-** دَ بدانوحال بيانولو سره اوس دَنيکانوحالات چه بالکل دَ هغوی نه بدل دی بيانولې شی. دَ بدانوخلقو جواب خودا وو چه دَ الله تعالی کتاب صرف دَ وړاندينوقصې نقل کول دی خودانيکان خلق جواب ورکوی چه دا خو سراسر برکت او رحمت دې څوك هم چه دا اومنی په دې عمل اوکړی هغه به دَ برکت او رحمت نه ډك شی. بيا فرمائی چه ماخپلو رسولانوسره وعده کړې ده چه نيکانوته به دَ دواړو جهانوخوشحالئی حاصليږی. لکه چه ارشاد دې چه کوم سړې نيك عمل اوکړی که هغه ښځه وی که سړې اودا ضروری دی چه هغه مؤمن وی نومونږ به هغوی ته ډير پاك ژوندون ورنصيب کړو اودَ هغوی دَ بهترين عملونوبدله به هم ضرور ورکوو. (١٦/النحل:٩٧) په دواړو جهانونوکښې به بدله بيامومی. يادساتئی چه دَ آخرت کور دَ دنيادَ کورنه ډير غوره او ښه دې دَ هغه ځائ بدله ډيره ښکلې او دَ هميشه دَ پاره ده. لکه چه دَ قارون دَ مال خواهش کونکوته علماؤ کرامو فرمائيلې وو چه دَ الله تعالی ثواب بهتردې الخ. دَ قرآن کريم ارشاد دې ﴿وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ لِّلْاَبْرَارِ﴾ (٣/آل عمران:١٩٨) الله تعالی سره دَ نيکوکاروخلقو دَ پاره اعلی څيزونه دی بل ځائ ارشاد دې آخرت خير او باقی دې. خپل نبی ﷺ ته ئی خطاب کولو سره اوفرمائيل ستادَ پاره آخرت دَ دنيا نه بهتردې. بيا فرمائی چه دَ آخرت کور دَ متقيانودَ پاره ډير ښه دې جنات عدن بدل دې دَ ﴿دَارُ الْمُتَّقِيْنَ﴾ يعنی د دوی د پاره دَ آخرت په کور کښې جنت عدن دې کوم ځائ چه به هغوی اوسيږی دَ کومې دَ ونو او محلونو لاندې چه يوشان او هروخت چينې روانې دی چه څه غواړی ...... [باقی په راروانه صفحه......

خَيْرٌ ط وَلَنِعْمَ دَارُ الْمُتَّقِينَ ۝ لا جَنّٰتُ عَدْنٍ يَّدْخُلُوْنَهَا

ډير غوره دي | او ډيرښه دي | كوردمتقيانو | باغونه | دهميشه اوسيدو | چي ننوځي به هغې ته

بهتردي | اودپرهيزګارو هغه كور ډير ښهٔ كوردي | د هميشه اوسيدوباغونه دي | هغې ته به دوی

تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ لَهُمْ فِيْهَا مَا يَشَآءُوْنَ ط

بهيږي به | لاندې هغې نه | نهرونه | وی به هغوئ لره | په هغې كښې | هغه چي | غواړي هغوئ

ورداخليږي | ددې لاندې به نهرونه بهيږي | دوی چې هلته څه غواړي | هغه به ورته ملاويږي

كَذٰلِكَ يَجْزِي اللّٰهُ الْمُتَّقِيْنَ ۝ لا الَّذِيْنَ تَتَوَفّٰهُمُ

دارنګې بدله وركوی الله | پرهيزګارانوته | هغه پرهيزګاران | چی كله روحونه قبض كوی دهغوئ نه

پرهيزګارانوته الله ﷻ دغه شان بدله وركوی | دا هغه خلق دی چې فرښتې د دوی روحونه

الْمَلٰٓئِكَةُ طَيِّبِيْنَ لا يَقُوْلُوْنَ سَلٰمٌ عَلَيْكُمُ لا ادْخُلُوا الْجَنَّةَ

فرښتې | په حالت دپاكيزګی كښی | نووائی ورته | سلام دوی | په تاسوباند | ننوځئ تاسو | جنت ته

په د اسې حال كښې قبض كوی | چې پاكان وی | فرښتې ورته اووائی چې په تاسو دې سلام وی اودخپلونيكو

بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝ هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ

په سبب د هغې عملونو | چې وئ تاسو | چې كوئ به تاسو | آيا انتظاركوی دوئ | بس دې خبری ته

عملونو په بدله كښې جنت ته ورداخل شئ | ......... آيا دا كافران صرف په دې انتظار كښې دی

اَنْ تَأْتِيَهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ اَوْ يَأْتِيَ اَمْرُ رَبِّكَ ط كَذٰلِكَ فَعَلَ الَّذِيْنَ

چې راشی دوئ ته | فرښتې | ايا راشی | حكم | درب ستا | دارنګې | كارونه كړی وو | هغه كسانو

چې دوئ ته فرښتې راشی | ياستا د رب حكم [چې عذاب ياقيامت دی] ورته راشی | دغه شان د هغوخلقو

مِنْ قَبْلِهِمْ ط وَمَا ظَلَمَهُمُ اللّٰهُ وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ

چې مخكښې ددوئ نه وو | اونه ووكړې ظلم په هغوئ باند الله | وليكن | ووهغوئ | په ځانونوخپلوباند

كردار هم ووا چې ددوئ نه وړاندې تيرشوی وو | اوالله ﷻ په هغوی هيڅ ظلم نه ووكړې | بلكه هغوی پخپله په

....باقی حاشيه د تيرمخ]...ملاويږی به دَ سترګوهريوپخوالې به ملاويږی اوهغه هم دَ هميشه دَ پاره. په حديث شريف كښې دی چه جنتيان به ناست وی په سرباندې به ئې اُوريځې راوچتيږی اوچه دوی كوم يوخواهش كوی هغه به په دوی باندې. راوروی تردې پورې چه كه څوك اووائی چه هم عمر پيغلې دې راووريږی نودا به هم كيږی. پرهيزګارو او تقوی دارو خلقوِ ته الله تعالی هم داسې بدلې وركوی څوك چه ايمانداروی ويريدونكې وی او نيك عمل وی دَ هغوی دَ وفات په وخت كښې دوی دَ شرك دَ ګندګی نه پاك وی. فرښتې راځی سلام كوی دَ جنت زيرې ورته اوروی لكه څنګه چې دَ الله تعالی ارشاد دې ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ قَالُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ﴾(۴۱/حٰم السجدة:۳۰) كوم خلقو چه الله تعالی رب اومنلو او بيا په دې باندې قايم پاتې شوهغوی له فرښتې راځی او ورته وائی چه غم او ويره مه كوئ دَ جنت زيرې واورئ دَ كوم چه تاسو سره وعده وه مونږ په دنيا او آخرت كښې ستاسو خيال ساتونكی يو چه تاسو څه غواړئ بياموميې به او چه څه غواړئ ملاويږی به تاسو دَ الله تعالی چه ښښونكې اومهربان دې ميلمانه ئی.

يَظْلِمُوْنَ۝ فَاَصَابَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا عَمِلُوْا وَحَاقَ

چي ظلم به ئې كوؤ | نواورسيده هغوئ ته | ناكاره بدله | دهغې عملونو | چې كړي ووهغوئ | اوچاپيره شو

خپلوځانونو ظلم كولو | نونتيجه دا شوه چې آخر هغوى ته د خپلو ګناهونو سزا اورسيده | اوهغه عذاب ترې

بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ۝

دهغوئ نه | هغه عذاب | چې وؤ هغوئ | چې په هغې پوري به ئې توقې كولې |

راچاپيره شو | چې دوئ به ورپورې توقې كولې |

## آسان ترجمه قرآن

او (بل طرف ته) د متقيانو خلقو نه تپوس اوكړې شو چه: ستاسو رب څه څيز نازل كړې دې؟ نو هغوى اووئيل: ټول په ټوله خير ئې نازل كړې دې. (دغه شان) چا چه د نيكئ طريقه خپله كړه، د هغوى دپاره په دې دنيا كښې هم ښهترى ده او د آخرت كور خو دې ټول د غوره والى. يقينًا د متقيانو كور ډير غوره دې. دهميشه هميشه اوسيدو دپاره هغه باغونه دى چه هغې ته به هغوى داخليږى چه دهغې لاندې به نهرونه بهيږى او هلته چه هغوى څه هم غواړى ورته به ملاويږى متقيانو خلقو ته الله دغسې بدله وركوى. دا هغه خلق دى چه د هغوى روحونه ملائك په داسې حالت كښې قبض كوى چه هغه پاك صفا وى. هغوى دوى ته وائى چه سلامتى دې وى په تاسو باندې! كوم عمل چه تاسو كولو دهغې په بدله كښې جنت ته داخل شئ دا (كافر) خلق اوس (د ايمان راوړلو دپاره) د دې نه سوا د كومې خبرې منتظر دى چه هغوى ته ملائك راشى يا (د قيامت يا دعذاب په صورت كښې) ستاسو د رب حكم راشى. كوم امتونه چه د دوئ نه مخكښې تير شوې دى، هغوى هم دغه شان كړې وو او الله پاك په هغوى باندې هيڅ ظلم نه دې كړې، خو هغوى خپله په خپلو ځانونو باندې ظلم كولو. په دې وجه د هغوى د بدو اعمالو وبال په هغوى واقع شو، او په كومو څيزونو پورې چه هغوى توقې كولې، هم هغې راتلو سره هغوى راګير كړل.

## خلاصه تفسير

﴿وَقِيْلَ لِلَّذِيْنَ اتَّقَوْا مَاذَآ اَنْزَلَ رَبُّكُمْ﴾ او كوم خلق چې د شرك څخه ځان ساتى هغوئ ته [ چې د قرآن پاك په باره كښې ] اووئيلې شى چې ستاسو رب څه څيز نازل كړې دې ﴿قَالُوْا خَيْرًا﴾ هغوئ وائى چې لوئې خير [او د بركت څيز] ئې نازل كړېدې ﴿لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا فِىْ هٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ﴾ كومو خلقو چې نيك كارونه كړى دى [ چې په كښې دغه بيان شوې وينا او ټول نيك عملونه راغلل] هغوئ لره په دې دنيا كښې هم ښيګړه ده [ ښيګړې نه مطلب د ثواب وعده او زيرې دې ] ﴿وَلَدَارُ الْاٰخِرَةِ خَيْرٌ﴾ او د آخرت جهان خو نور [هم ] زيات غوره [ او د خوشحالئ سبب] دې [ چرته به چې د غه وعده پوره كيږى او ښكاره كيږى ] ﴿وَلَنِعْمَ دَارُ الْمُتَّقِيْنَ۝﴾ او واقعى هغه د شرك نه د ځان ساتونكو ښه كور دې ﴿جَنّٰتُ عَدْنٍ يَّدْخُلُوْنَهَا﴾ دغه ښكله كور دې ] د هميشه استوګنې باغونه دى چې په كښې به هغوئ داخليږى ﴿تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ﴾ ددغې باغونو [ د ونو او محلونو ] لاندې به نهرونه جارى وى كوم څيز ته ئې چې زړه به كيږى ﴿كَذٰلِكَ يَجْزِى اللّٰهُ الْمُتَّقِيْنَ۝﴾ او خاص د دوئ څه تخصيص دې چې د چا قول دلته ذكر دې بلكه دغسې عوض به هلته الله ﷻ شرك نه ځان

ساتونکی ټولو خلقو ته ورکوی ﴿الَّذِينَ تَتَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ طَيِّبِينَ﴾ د چا روح چې فرښتې په دې حالت کښې قبض کوي چې هغوئ به [ د شرك نه ] پاك [ او صفا [ وی ] مطلب دا چې د مرګ تر وخته پورې په توحید باندې کلك پاتې کېږی او ] ﴿يَقُولُونَ سَلَامٌ عَلَيْكُمُ﴾ دغه [ فرښتې] به په مخه وائی السلام علیکم ﴿ادْخُلُوا الْجَنَّةَ بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ تاسو [ د روح قبض کېدو نه پس] د خپلو عملونو په سبب جنت ته داخلېږی، ﴿هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا أَن تَأْتِيَهُمُ الْمَلَائِكَةُ أَوْ يَأْتِيَ أَمْرُ رَبِّكَ﴾ دا خلق [ چې په خپل کفر، عناد او جهالت باندې کلك ولاړ وی او سره د حق د دلیلونو د واضح کېدو نه ایمان نه راوړی نو معلومېږی چې دا صرف] هم ددې خبرې په انتظار کښې دی چې دوئ ته [دمرګ] فرښتې راشی یا ستا د پروردګار حکم [یعنی قیامت ] راشی [ ښه ، نو دمرګ په وخت یا د قیامت په ورځ به دا یمان راوړی کله به چې ایمان قبلېږی اګر چې دغه وخت به ټول کافران هم ایمان څکه راوړی او توبه به اوباسی چې کله حقیقت ښکاره شی څنګه چې دا خلق اوس په کفر باندې کلك ولاړ دی ] ﴿كَذَٰلِكَ فَعَلَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾ دغه شان دهغوئ نه وړاندې چې کوم خلق وو هغوئ هم [ په کفر باندې کلك ] ولاړ وو او [ ددغې کلکېدو په وجه ئې سزاګانې بیا موندې نو] ﴿وَمَا ظَلَمَهُمُ اللَّهُ﴾ په هغوئ باندې الله ﷻ لږ [هم] ظلم او نه کړو ﴿وَلَٰكِن كَانُوا أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ﴾ لیکن هغوئ پخپله [ پخپلو زانونو باندې ظلم کولو [ چې د سزا کارونه به ئې سره د پوهې کول] ﴿فَأَصَابَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا عَمِلُوا﴾ آخر د دوئ د ناکاره عملونو سزاګانې هغوئ ته ملاؤ شوې ﴿وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ﴾ او کوم عذاب [ یعنی د عذاب په راتلو ] پورې چې هغوئ به خندا کوله هغوئ لره هم هغې [ عذاب] راګیر کړل او هم دغسې حال به ستاسو هم وی].

| وَقَالَ الَّذِينَ | أَشْرَكُوا | لَوْ | شَاءَ اللَّهُ | مَا عَبَدْنَا |
|---|---|---|---|---|
| او وویل هغه کسانو | چې شرك ئې کړې وو | که چرې | غوښتلې الله | نو عبادت به نه وو کړې مونږه |

اوهغه کسانو اوويل چې شرک ئې کړې دې اکه چرې الله غوښتلې نو نه به مونږ دالله ﷻ نه سوا د بل چا عبادت کړې وې

| مِن دُونِهِ | مِن شَيْءٍ | نَّحْنُ | وَلَا آبَاؤُنَا | وَلَا حَرَّمْنَا |
|---|---|---|---|---|
| بغیر دهغه نه | دهیڅ څیز | مونږه هم | اونه پلارانو زمونږه | اونه به وو حرام کړې مونږه |

اونه به زمونږ پلار نیکونو [دبل چا عبادت کړې وې] او نه به د هغه د حکم نه بغیر مونږ څه څیز

| مِن دُونِهِ | مِن شَيْءٍ | كَذَٰلِكَ | فَعَلَ | الَّذِينَ | مِن قَبْلِهِمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| بغیر دحکم دهغه نه | هیڅ څیز | همدارنګې | کارکړې وو | هغه کسانو | چې مخکښې ددوئ نه وو |

حرام کړې وو [هم دغسې بهانې هغې خلقو هم کړې وې اچې د دوئ [اهل مکه] نه وړاندې تیر شوی وو

| فَهَلْ | عَلَى الرُّسُلِ | إِلَّا | الْبَلَاغُ | الْمُبِينُ ﴿٣٥﴾ | وَلَقَدْ بَعَثْنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| نو آیا شته | په رسولانو باندې ذمه واری | بغیر | درسونې | ښکاره نه | او بیشکه اولیږو مونږه |

د پیغمبر په ذمه خو بس [دالله احکام] ښکاره رسول دی ........ اومونږ په هر قوم کښې یو نه یو

| فِي كُلِّ أُمَّةٍ | رَّسُولًا | أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ | وَاجْتَنِبُوا | الطَّاغُوتَ | فَمِنْهُم |
|---|---|---|---|---|---|
| په هرامت کښې | یو رسول | چې بندګی کوئ دالله | اوخان اوساتئ | دسرکشانو نه | نوځینې دهغوئ نه |

پیغمبر ضرور لیږلې دې [چې ائې خلقو] د الله ﷻ عبادت کوئ | او د بتانو دعبادت نه ځان بچ ساتئ

مَّنْ هَدَى اللَّهُ وَمِنْهُم مَّنْ حَقَّتْ عَلَيْهِ

هغه څوک ووا | چې ورته لاراوښودله الله | اوځينې دهغوئ نه | هغه څوک ووا | چې ثابته شوه | په هغه باند

په دوئ کښې بعضې داسې دی | چې الله ﷻ ورته هدايت اوکړو | اوبعضې داسې دی چې په هغوی

الضَّلَالَةُ ۚ فَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَانظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ

گمراهي | نو اوگرځئ | په زمکه کښی | پس اوگورئ | چې څرنگې | ووا | انجام |

گمراهي واقع شوې ده | نو تاسو په زمکه کښې اوگرځئ | اواوگورئ چې د دروغ گڼرونکو

الْمُكَذِّبِينَ ۝ إِن تَحْرِصْ عَلَىٰ هُدَاهُمْ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي مَن

ددروغ گڼرونکو | که ته حرص اوکړې | په هدايت ددوئ باند | نو بيشکه الله | نه ښائي لار | هغه چاته

خلقوانجام څۀ شو؟ | که ستاسو دا خواهش وی | چې دوئ به په نيغه لار روان شي | نو الله هغه څوک په نيغه لار

يُضِلُّ ۖ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ۝ وَأَقْسَمُوا

چې گمراهه کوی ئې الله | اونۀ به وی هغوئ لره | دمددگارانو نه هيڅوک | اودې خلقو قسمونه اوخوړل

نه روانوی | چې يو ځل ئې گمراه کړې وی | اوداسې خلقو دپاره څوک مددگار نشته | اودا خلق په الله

بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ ۙ لَا يَبْعَثُ اللَّهُ مَن يَمُوتُ ۚ بَلَىٰ

په الله باند | په سختو | قسمونو خپلوسره | چې ژوندی به نۀ کړی الله | هغه څوک | چې مری | ولې نه

سخت قسمونه خوری | چې الله به هغه څوک دوباره راژوندې نکړی څوک چې يو ځل مرشی | ولې نه

وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ۝ لِيُبَيِّنَ

داوعده ده | په هغه باند | حقه | وليکن | زيات دخلقو نه | نۀ پوهيږی | دپاره ددې چې ښکاره کړی

داوعده خو دالله ﷻ په ذمه لازمه ده | خو زيات خلق نه پوهيږی | دې دپاره به ئې ژوندی کوی چې دوی

لَهُمُ الَّذِي يَخْتَلِفُونَ فِيهِ وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ

هغوئ ته | هغه حقيقت | چې دوئ اختلاف کوی | په هغې کښې | اودپاره ددې چې معلوم شي | هغه خلقوته

ته د هغه څيز حقيقت ښکاره کړی | په کوم کښې چې دوئ اختلاف کولو | اودې دپاره به ئې ژوندی کوی

كَفَرُوا أَنَّهُمْ كَانُوا كَاذِبِينَ ۝ إِنَّمَا قَوْلُنَا

چې دحق نه ئې انکار کړې دی | چې بيشکه هغوئ | ووا | دروغژنان | بيشکه | چې خبره زمونږ

چې دکافرانو يقين راشی چې هم دوئ دروغژن ووا | ............مونږ چې د يو څيز د پيدا کولو

لِشَيْءٍ إِذَا أَرَدْنَاهُ أَن نَّقُولَ لَهُ كُن فَيَكُونُ ۝

يو څيز ته | کله چې | اراده اوکړه مونږ هغه | داده چې | اووايو مونږه | هغه څيزته | شه | نو هغه شی |

اراده اوکړو | نو دومره ورته اووايو | چې موجود شه | نو هغه موجود شی | بلکه دې ته هم ضرورت نه وی؛

## آسان ترجمه قرآن

او کومو خلقو چه شرک اختيار کړې دې، هغوی وائی چه : که الله پاک غوښتلې وې نو مونږ به د هغه نه سوا د بل څيز عبادت نه کولې، نه مونږ، نه زمونږ پلار نيکۀ. او نه به مونږ د هغه د (حکم نه) نه بغير يو

ځیز حرامولې. کوم امتونه چه د دوئ نه مخکښې تېر شوي دي، هغوی هم داسې کړي وو. خو د پیغمبرانو ذمه داري د دې نه سوا هیڅ هم نه ده چه هغوی په صفا صفا طریقې سره پیغام اورسوي او واقعه دا ده چه مونږ په هر امت کښې یو نه یو پیغمبر د دې هدایت دپاره رالیږلې دې چه تاسو د الله پاک عبادت کوئ. او د طاغوت نه ځان ساتئ . بیا په دوي کښې بعض هغه وو کوم ته چه الله پاک هدایت ورکړې وو او څه داسې وو چه ګمراهي پرې مسلط شوه. نو لږ په زمکه کښې وګرځئ او اوګورئ چه د (پیغمبرانو د) تکذیب کونکو څه انجام شو؟ (اې پیغمبره!) که ستا دا حرص وي چه دا خلق په هدایت بانديې راشي، نو حقیقت دا دې چه الله پاک چه څوک (د هغه دعناد دوجې نه) ګمراه کوي، هغوی هدایت ته نه رسوي، او داسې خلقو ته څوک مددګار هم نه ملاویږي. او دې خلقو ډیر زور لګولو سره د الله پاک قسمونه خوړلې دي چه کوم خلق مړه شي الله پاک به هغوی دوباره نه ژوندي کوي. ولې به ئې نه کوي؟ دا خو یو حقه وعده ده چه د هغې د پوره کولو وعده الله پاک کړې ده، خو اکثر خلق نه پوهیږي. (د دوباره ژوندي کیدو دا وعده الله پاک په دې وجه کړې ده) چه هغه د خلقو مخکښې هغه خبرې ښه واضحه کړي په کومو کښې چه هغوی اختلاف کولو او د دې دپاره چه کافر خلق پوهه شي چه هغوی دروغژن وو. او کله چه مونږ د یو ځیز د پیدا کولو اراده اوکړو نو زمونږ د طرف نه صرف دومره خبره وي چه مونږ هغې ته وایو: "اوشه" پس هغه اوشي.

## خلاصه تفسیر

﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا لَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا عَبَدْنَا مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ شَيْءٍ﴾ او مشرکان خلق دا شان وائي چې که الله ﷻ ته [په خوشحالئ دا] منظور وې چې مونږ دې دغیر الله عبادت اونه کړو چې زمونږ د طریقې یو اصول دی او ځینې ځیزونه حرام نه کړو چې زمونږ د طریقې یوه فرع ده مطلب دا چې که زمونږ موجوده اصول او فروع دالله ﷻ خوښ نه وې ] نو د الله ﷻ نه سوا به د څه ځیزونه خو مونږ عبادت کړې وې ﴿نَحْنُ وَلَآ اٰبَآؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ شَيْءٍ﴾ نه مونږ نه زمونږ پلرونو نیکونو اونه به مونږ دهغه [دحکم] نه بغیر څه ځیز ته حرام وئیلي شو [ دې نه معلومه شوه چې زمونږ طریقه د الله ﷻ خوښه ده ګنی مونږ به ئې داسې کولو ته ولې پریښودو ؟

[ اې محمد ﷺ ! تاسو په دې غم مه کوئی ولې چې دا عبث جګړې کول څۀ نوې خبره نه ده بلکه] ﴿كَذٰلِكَ فَعَلَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ﴾ کوم [کافران] چې ددوئ نه وړاندې وو داسې حرکت هغوئ هم کړې وو [ یعنی پیغمبرانو ﷺ سره ئې عبث جګړې کړې وې] ﴿فَهَلْ عَلَى الرُّسُلِ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ﴾ نو د پیغمبرانو ﷺ [ په دې څه اوشو؟ دهغوئ په هغه طریقه څه اثر پریوتو کومې ته ئې چې خلق رابلل؟ ،هغې ته څه زیان اورسیدو؟ دهغوئ ﷺ] په ذمه خو صرف [ حکمونه] صفا صفا رسول دی [صفا صفا دا چې دعوی واضحه وی او صحیح دلیل په هغې قائم وی ، دغه شان ستاسو په ذمه هم دغه کار وو چې تاسو ئې کوئی نو که بیا هم د ضد په وجه دعوې او دلیل باندې دوئ غور نه کوی نو ستاسو بلا ورپسې شه] ﴿وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِيْ كُلِّ اُمَّةٍ رَّسُوْلًا﴾ او [څنګه چې تاسو سره د دوئ دا جګړې کول څه نوې کار نه دې دغه توحید او حق دین ته ستاسو رابلل دوئ لره څه نوې کار نه دې بلکه ددې تعلیم هم دپخوا راسې راروان دی نو ] مونږ په هر امت کښې [ د پخوانو امتونو څښې] یو نا یو پیغمبر ﷺ [ ددې خبرې دتعلیم دپاره ] په مخه لیږلې دې ﴿اَنِ

اعْبُدُوا اللَّهَ﴾ چې تاسو [خاص ] د الله ﷻ عبادات کوئی ﴿وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ﴾ او شیطان [یعنی د شیطان د لارې] نه [چې شرك او کفر دې] ځان ساتلې لرئی [ په دې کښې د ځیزونو هغه حرامول هم راغلل چې مشرکانو به خپلې رائې سره حرامول ، ولې چې دا د شرك اوکفر یوه حصه وه] ﴿فَمِنْهُمْ مَنْ هَدَى اللَّهُ﴾نو په هغوئ کښې ځینې داسې هم وو چې ورته الله ﷻ هدایت اوکړو[چې هغوئ حق قبول کړو ] ﴿وَمِنْهُمْ مَنْ حَقَّتْ عَلَيْهِ الضَّلَالَةُ﴾ او ځینې په کښې داسې هم وو چې هغوئ باندې د ګمراهئ ثبوت اوشو [ مطلب دا چې د کافرانو او پیغمبرانو تر مینځه دا معامله هم دغه شان راروانه ده ، او دهدایت کولو او ګمراه کولو دغه معامله دالله ﷻ هم په مخه جاری ده، یعنی د کافرانو جګړې کول هم زړه خبره ده، د پیغمبرانو ﷺ تعلیم ورکول زړه خبره او د ټولو هدایت نه موندل هم زړه خبره ده ، نو تاسو ولې غم کوئی؟ تردې پورې تسلی ورکړې شوه چې ددې د آخر په مضمون کښې ددې شبهې اجمالی جواب هم اوشو چې داسې خبرې کول ګمراهی ده ځنګه چې وړیسې ئې تائید او د جواب زیات وضاحت په دې شان دې چې که پیغمبرانو ﷺ سره جګړه کول درته ګمراه نه ښکاری] ﴿فَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ﴾نو په زمکه کښې اوګرځئ راؤګرځئ ﴿فَانْظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ﴾ بیا [ نخښو ته] اوګورئی چې [ پیغمبرانو ﷺ لره] په دروغه د بلونکو ځنګه [ خراب ] انجام شو [که هغوئ ګمراهان نه وو نو دا عذاب پرې ولې راغلو؟ او ناڅاپی واقعات ورته ځکه نشی وئیلې کیدې چې د عادت نه خلاف شوی وو ، او پیغمبرانو ﷺ ئې پیشنګوئی د وړاندې نه کړې وې او مؤمنان ترې ساتلې شوی وو، نو دا ځنګه عذاب نه شو ؟ چونکه چې رسول اکرم ﷺ به د امت د یو کس په ګمراه کیدو باندې سخت خفه کیدو، په دې وجه مخ ته بیا هغوئ ته داسې خطاب دې چې ځنګه پخوانو ځینې خلقو باندې ګمراهی قائمه شوې وه هغه شان دا خلق هم دی نو] ﴿إِنْ تَحْرِصْ عَلَى هُدَاهُمْ﴾ که د دوئ په سمه لار د راتلو تاسو خواهش لرئی نو ] دا بې نتیجې ځکه دی چې ] ﴿فَإِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي مَنْ يُضِلُّ﴾ الله ﷻ داسې کس ته هدایت نه کوی څوك چې [ هغه د ضد په وجه] ګمراه کړی [ البته که هغه ضد پریږدی نو هدایت ورته کوی خو دوئ ضد نه پریږدی ، ځکه به هدایت هم ورته نه کیږی ] ﴿وَمَا لَهُمْ مِنْ نَاصِرِينَ﴾ او[دګمراهئ اوعذاب په پاره کښې که دوئ دا ګمان کوی چې ددوئ معبودان بۀ ئې په دې حالت کښې دعذاب نه اوساتی نو په دې خبره دې پوهه شی چې د الله ﷻ په مقابله کښې] د دوئ څوك مددګار بۀ نه وی [ تر دې پورې د دوئ د ړومبئ شبهې بیان وو، وړیسې د دویمې شبهې باره کښې بیان دې] ﴿وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ﴾ او دا خلق په الله ﷻ باندې مضبوط قسمونه خوری ﴿لَا يَبْعَثُ اللَّهُ مَنْ يَمُوتُ﴾ چې څوك [ یو ځل ] مرشی الله ﷻ بۀ ئې دوباره نه ژوندی کوی [او قیامت به نه رازی ، جواب ئې دادې چې ] ﴿بَلَى وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا﴾ ولې به نه ژوندی کوی ؟ [ یعنی ضرور به ئې ژوندی کوی] دا وعده الله پخپله ذمه لازمه کړې ده ﴿وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ﴾ لیکن اکثر خلق [ سره ددې چې صحیح دلیل پرې قائم شوې دې خو بیا هم ] یقین پرې نه کوی ﴿لِيُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِي يَخْتَلِفُونَ فِيهِ﴾[ او دا دوباره ژوندی کول به دې دپاره وی ] چې [ ددین په باره کښې ] په کومو ځیزونو کښې چې دې خلقو [ په دنیا کښې ] اختلاف کولو ، [او دپیغمبرانو ﷺ فیصلې سره په لار نه راتلل] د دوئ په مخامخ دا حقیقت د معائنې په دول] ښکاره کړی ﴿وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّهُمْ كَانُوا كَاذِبِينَ﴾ او دپاره ددې چې [ ددې حقیقت د ښکاره کولو

په وخت ] کافران خلق [پوره] یقین اوکړی چې واقعی هم دغه خلق دروغژن وو [ او پیغمبران ﷺ او مؤمنان رینبتونی وو نو د قیامت راتلل یقینی او عذاب سره فیصله کیدل ضروری دی ، دا د لایبعث الله جواب شو او هرکله چې دغې خلقو د قیامت نه په دې وجه انکار کولو چې مړ کیدو نه پس بیا ژوندی کیدل د دوئ په خیال کښې د چا د وس خبره نه وه ، څکه اوس دخپل کامل قدرت په اثبات سره ددې دغه شبه یې پورته کوی چې زمونږ قدرت داسې لوئې دې چې ] ﴿إِنَّمَا قَوْلُنَا لِشَيْءٍ إِذَا أَرَدْنَاهُ﴾ مونږ کوم څیز [ پیدا کول] غواړو [ نو د څه محنت او مشقت کولو ضرورت راته په دې کښې نه راپیښیږی ] ﴿أَنْ نَقُولَ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ﴾ هغې ته صرف زمونږ دومره فرمائیل [کافی ] وی چې ته [ پیدا] شه ، بس هغه [ موجود] شی [ نو دداسې قدرت کامله په وړاندې بې روحه څیزونو کښې دوباره روح راوستل څه گرانه خبره نه ده څنگه چې موپه اول ځل په کښې روح اچولې وو اوس د دواړو شبهو پوره جواب اوشو ، ولله الحمد]

## معارف او مسائل

ددې کفارو ړومبئ شبه خو دا وه چې که زمونږ کفر ، شرك او ناروا کارونه د الله ﷻ خوښ نه وی نو مونږ دهغې څخه په زور ولې نه اړوی ؟ هر کله چې دا شبه په ښکاره ډول عبث او بې مطلبه وه څکه ددې د جواب ورکولو په ځائې صرف نبی کریم ﷺ ته تسلی ورکړې شوه چې دداسې عبث سوالونو څخه مه غمژن کیږئ .

ددې شبهې عبث والې څکه ښکاره دې چې الله ﷻ ددې دنیا نظام په دې بنیاد قائم کړې دې چې انسان ئې بالکل بې اختیاره نه دې گرځولې ، بلکه یو قسم اختیار ئې داسې ورکړې دې چې که هغه د الله ﷻ په فرمانبردارئی کښې استعمالوی نوثواب به ورکولې شی ، اوکه په نافرمانئی کښې ئې استعمالوی نو عذاب به ورکوی ، دې باره کښې د الله ﷻ ړومبئ قسم وعدې ته وعد او دویم قسم ته وعید وئیلې شی ، او ددې په نتیجه کښې بهٔ د قیامت او حشر ، نشر تولې هلې ځلې کیږی .

که الله ﷻ انسان لره واقعی بې اختیاره گرځولې وې نو پخپلې فرمانبرداریٔ کولو باندې ئې مجبوره کړې وې نو د چا څه قدرت وو چې د فرمانبرداریٔ نه به بهر وتلې وو ، خو الله ﷻ د خپل حکمت د تقاضا مطابق انسان لره مجبوره اونه گرځولو ، څکه ورته دغه اختیار ورکړې شو ، بیا د کافرانو دا وئیل د دوئ بې وقوفی ده چې که الله ﷻ زمونږ دا طریقه نه خوښولې نو مونږ ئې بیا دخپلې خوښې طریقې ته ولې مجبوره نکړو .

**آیا پاکستان هندوستان کښې هم د الله تعالی خوا رسول راغلې دې:** ﴿وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَسُولًا﴾ ددې آیت اودبل آیت مبارك ﴿وَإِنْ مِنْ أُمَّةٍ إِلَّا خَلَا فِيهَا نَذِيرٌ﴾ نه په ظاهره دامعلومیږی چې دپاکستان او هندوستان په علاقو کښې بهٔ د الله ﷻ څوك پیغمبران ضرور راغلې وی ، دهغې یو صورت دا هم کیدې شی چې هم ددې ځایونو اوسیدونکی وی او بل صورت ئې د اکیدې شی چې اوسیدونکی د بل ملك وی . او دهغوئ نائبان او مبلغان دلته رارسیدلې وی . د آیت مبارك ﴿لِتُنْذِرَ قَوْمًا مَا أَتَاهُمْ مِنْ نَذِيرٍ﴾ څخه دا خبره معلومیدل چې د نبی کریم ﷺ دې امت ته د نبی کریم ﷺ څخه وړاندې بل یو پیغمبر چرې نه دې راغلې نو دهغې څخه د امت هغه خلق مراد دی چې کوم دتولو څخه ړومبنی مخاطب ووکوموته چې د اسماعیل ﷺ څخه روستو بل یو پیغمبر

نه وو راغلي او هم په دې وجه دغې خلقو ته د امیین لقب ورکړې شوې دې ، دېد نه دا لازمیږي چې ګنې د هغوئ څخه وړاندې په پاتې توله دنیا کښې څوک پیغمبر نه وو راغلي . والله اعلم.

وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا فِي اللهِ مِنْۢ بَعْدِ مَا ظُلِمُوْا

اوهغه کسان | چې هجرت ئې اوکړو | په لاره دالله کښې | روستو دهغې نه | چې ظلم اوکړې شو په هغوئ

اوچا چې د الله ﷻ دپاره هجرت کړې دې | د دې نه روسته چې ظلمونه پرې شوی وو

لَنُبَوِّئَنَّهُمْ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً ؕ وَلَاَجْرُ الْاٰخِرَةِ اَكْبَرُ

خامخا به ځائې ورکړومونږ هغوئ له | په دنیا کښې | ښه | او خامخا اجر داخرت | ډیرلوئ دې

نومونږ به ورته خامخا په دنیا کښې هم ډیره ښه تیکاؤنړه ورکړو | اود آخرت بدله خو ډیره لویه ده

لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ۙ الَّذِيْنَ صَبَرُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ

کاش چې وې | چې پوهیدئ هغوئ | هغه | چې هغوئ صبراوکړو | اوپه رب خپل باندې | بروسه کوی هغوئ

که [هغه هجرت نه پاتې کیدونکی] پوهیدلې | داهغه کسان دی چې صبر ئې کړې دې | اوپخپل رب توکل کوی

## آسان ترجمه قرآن

او کومو خلقو چه د لورو د ظلم برداشت کولو نه پس خپل وطن پریخودلې دې، یقین ساتئ چه مونږ به هغوی ته په دنیا کښې هم ښه ځائې ورکړو، او د آخرت اجر خو دې یقیناً د ټولو نه لوئې، کاش چه دې خلقو علم لرلې! داهغه خلق دی چا چه د صبر نه کار واخستلو، او کوم خلق چه په خپل پروردګار باندې اعتماد ساتی.

## د تفسیر خلاصه

﴿وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا فِي اللهِ مِنْۢ بَعْدِ مَا ظُلِمُوْا﴾ اوکومو خلقو چې دالله ﷻ دپاره خپل وطن [ مکه مکرمه ] پریښودو [ او حبشې ته لاړل ] پس دهغې نه چې په هغوئ باندې [ دکافرانو د طرفه ] ظلم اوکړې شو [ ولې چې په داسې مجبورئې کښې وطن پریښودل ډیر ګران پریوزی ] ﴿لَنُبَوِّئَنَّهُمْ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً﴾ مونږ به دوئ ته په د نیا کښې ضرور ښه ځائې ورکړو [ یعنی مدینې منورې ته په رسولو سره به ورته ښه امن او آرام ورکړو ځنګه چې بیا اوشو او مدینه منوره د دوئ اصلی وطن اوګرځولې شو ځکه دې ته استوګنه اوونیلې شوه چې هلته ئې په هر شان سره وده او ترقی اوکړه او ځکه ورته حسنة اوونیلې شو چې په حبشه کښې د دوئ استوګنه عارضی وه ځکه هغې ته استوګنه اونه وئیلې شوه ] ﴿وَلَاَجْرُ الْاٰخِرَةِ اَكْبَرُ﴾ او د آخرت ثواب [ ددې نه ] په ډیرو درجو لوئې دې [ چې غوره هم دې او ښه په ځائې پاتې کیدونکې استوګنه هم ده ] ﴿لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ﴾ کاش ، چې [ دآخرت ددې اجر دغې [ ناخبره کافرانو ] ته [ هم ] خبر وې [ او ددې د حاصلولو په شوق کښې مسلمانان شوې وې ] ﴿الَّذِيْنَ صَبَرُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ﴾ هغوئ [ مهاجرین ددې وعدو حقدار ځکه دی چې هغوئ ] داسې دی چې [ خرابو واقعاتو باندې ] صبر کوی [ نو وطن پریښودل اګر چې د دوئ زړه نه منل خو سوا ددې نه په د ین باندې د عمل کولو بل څه صورت نشو جوړیدې ځکه ئې خالص ددین په خاطر وطن پریښودلو او صبرېې اوکړو ] او [ دوئ په هر حالت کښې ] پخپل رب باندې تکیه لری [ د وطن پریښودلو په وخت ورسره د افکر نه وی چې چرته به خوراک څکاک کوؤ ].

## معارف او مسائل

**تشریح او تفسیر:** ﴿وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا﴾ دا دهجرت نه مشتق دې ، د هجرت لغوی معنی وطن پریښودل دی، دالله تعالی په خاطر وطن پریښودل په اسلام کښې د لوئې عبادت شان لری ، رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې ﴿الهجرة تهدم ماكان قبلها﴾ [د هجرت کولو سره کړی ګناهونه هوارېږی اوختمیږی] (۱)

ځینې صورتونو کښې هجرت د فرضو او واجبو شان لری او په ځینې صورتونو کښې مستحب او غوره حسابیږی . ددې تفصیلی احکام خو د سورت نساء د آیت نمبر ۹۷ ﴿أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُوْا فِيْهَا﴾ لاندې بیان شویدی چې د لته صرف د هغې وعدو بیان دې کومې چې الله ﷻ مهاجرینو سره کړی دی .

**آیا هجرت کول په دنیا کښې هم د فراخ ژوند ابرولو سبب جوړیږی؟** دې آیتونو کښې څو شرطونو سره مهاجرینو دپاره دوه عظیم الشان وعدې کړې شوی دی.اوله داچې هم په دې دنیا کښې به ورته ښه ځائې ورکولې شی . دویم دا چې په آخرت کښې به ورته بې حسابه لوئې ثواب ورکولې شی.

په دنیا کښې د ښه استوګنې ورکول دا یو جامع لفظ دې په دې کښې داهم داخل دې چې مهاجرو ته استوګنې دپاره مکان او ښهٔ ژوند په ګوتو ورشی . ښه روزی ملاویدل په کښې هم داخل دی ، په دښمنانو باندې برې او غلبه موندل هم په کښې داخل دی . او داهم په کښې داخل دی چې عام خلق د دوئ تعریفونه او ښیګړې بیانوی ، عزت او شرافت ورته ملاؤ شی چې دهغوئ خاندان او اولاد پورې چلیږی [قرطبی].(۲)

اصل کښې د آیت شان نزول حبشې ته په رومبی ځل هجرت کول دی ، دا احتمال هم شته چې دغه هجرت او مدینې منورې ته هجرت کول دواړه ترې مراد دی ، په دې لحاظ ځینې علماء کرامو اوفرمائیل چې دواړه قسمه مهاجرینو ته دا وعده په دنیا کښې هم پوره شوه چې ټولو په خپلو سترګو اولیدله ، یعنی الله ﷻ د زیان رسوؤنکو ګواندیانو په ځائې ئې ورته غمخواره ، په خوږ ، درد کښې شریک او فدایان ګواندیان ورکړل ، په دښمنانانو ئې بر او غالب راوستل ، د هجرت نه پس په لږه زمانه کښې پرې د روزئ دروازې پرانستې شوې ، فقیران او مسکینان ئې په کښې د مال خاوندان کړل ، ددنیا ملکونه ئې ورته په فتح کښې ورکړل ، د دوئ ﷺ ښه خویونه کارونه او ښې کارنامې ئې تل دپاره ټول خلق بیانوی که هغه ئې دښمنان وی اوکه نیک خواه وی، رسول کریم ﷺ ته او د رسول کریم ﷺ نسلونو ته الله ﷻ په دنیا کښې ډیر لوې عزت او شرافت ورکړو ، دا خو په د نیا کښې کیدونکې ځیزونه وو چې اوشو اود آخرت وعد ه پوره کول ئې هم یقینی دی لیکن په تفسیر بحر محیط ابوحیان فرمائیلی دی چې:

﴿والذين هاجروا عام فى المهاجرين كائنا ما كانوا فيشمل اولهم واخرهم﴾ [د وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا لفظ ددنیا د ټولو مهاجرینو دپاره عام دې خواه هغه د هر ځائې او د هرې زمانې مهاجر وی ځکه ددې نه مطلب دغه اول مهاجرین هم کیدیشی او ترقیامته پورې هجرت کوؤنکی هم دې داخل دی]

(۱) صحیح مسلم کتاب الأیمان ،باب کون الإسلام یهدم ماکان قبله إلخ [ج:۱ص:۷۶]
(۲) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة [ج:۱۰ص:۱۰۷]

د عامې تفسيرى ضابطې تقاضا هم داده چې د آيت شان نزول اګر چې څه خاص واقعه او يو خاص جماعت وى مګر په دې کښې د لفظ د عاموالى لحاظ ساتلې شى ، په دغې لحاظ سره هم دا وعده د ټولې دنيا د هر ځائې او د هرې زمانې دمهاجرينو دپاره پوره کيدل يقينى دى.
دغه شان د مهاجرينو دپاره يو وعده په سورة نساء کښې داسې شوې ده ﴿وَمَنْ يُّهَاجِرْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يَجِدْ فِي الْاَرْضِ مُرٰغَمًا كَثِيْرًا وَّسَعَةً﴾(¹) چې په کښې داستوګنې او دژوند د فراخئ وعده په خاص شان سره کړې شوې ده . مګر قرآن پاک دې وعدو سره سره د مهاجرينو څه صفات اودهجرت څه شرائط هم بيان کړى دى په دې وجه ددې وعدو مستحقين هم هغه مهاجرين کيدې شى کوم چې دغه صفات لرى او دغه شرطونه ئې پوره کړى وى.
په دې ټولو کښې اول شرط د فى الله دې ، دې لفظ نه دا ښکاره کيږى چې په هجرت سره ئې صرف الله ﷻ راضى کول مطلب وى دنيوى فائده ، تجارت او ملازمت وغيره نفسانى خواهشات ئې په کښې مطلب نه وى.
دويم شرط دادې چې ظلم پرې شوې وى ځنګه چې د ﴿مِنْۢ بَعْدِ مَا ظُلِمُوْا﴾ نه ښکاره کيږى.
دريم صفت ئې دادې چې په ابتدائى تکليفونو او مصيبتونو صبر کوونکى او کلک پاتې کيدونکى وى لکه فرمائى چې :﴿الَّذِيْنَ صَبَرُوْا﴾ .
څلورم صفت ئې دادې چې ټولو مادى انتظاماتو کولو نه پس ئې يوازې په الله ﷻ باندې تکيه وى، برې او کاميابى يوازې د الله ﷻ د طرفه ګنړى ، او بولى لکه فرمائى چې :
﴿وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ﴾
ددې څخه معلومه شوه چې ابتدائى تکليفونه او مشکلات په کار کښې وړى او ددې په برداشت کولو که بيا هم يو مهاجر ته ښه ځائې او ښه حالات ملاؤ نشى نو د قرآن عظيم الشان په وعده کښې د شک کولو په ځائې دې هغه خپل نيت او اخلاص او دهغه ښه عمل جائزه واخلى په کوم چې دا وعدې شوې وى نو ده ته به معلومه شى چې قصور دده خپل دې، چرته به ئې په نيت کښې څه فرق وى او کله بدئې صبر ، طاقت او توکل کښې څه کمې راغلې وى.
**د وطن پريښودو او هجرت کولو مختلف قسمونه او دهغې احکام:** په دې موقعه امام قرطبى رحمه الله د هجرت کولو او وطن پريښودلو قسمونه او دهغې احکام په مفيد شان سره تحرير کړى دى ، فائدې ورکولو په خيال ئې زه نقل کوم.
قرطبى رحمه الله دابن عربى رحمه الله په حواله ليکلى دى چې وطن نه وتل او په زمکه کښې سفر کول کله خو د څه څيز نه د تښتيدو او ځان بچ کولو په غرض کولې شى او کله د يو څيز د طلب او تلاش دپاره کولې شى . د اول صورت شپږ اقسام دى.
اول قسم ئې دار کفر نه دارالاسلام ته تلل دى ، چې د پيغمبرئ په زمانه کښې هم دافرض وو ، او ترقيامته پورې فرض دى خو هغه چا دپاره چې ددې توفيق او وس هم لرى اوکه سره ددې په دار حرب کښې په دې مقام پاتې شو نو ګناهګار به وى.
دويم قسم د بدعت د علاقې نه وتل دى ، ابن قاسم رحمه الله فرمائيلى دى چې ما د امام مالک رحمه الله نه آوريدلى دى چې يو مسلمان دپاره په هغه مقام کښې پاتې کيدل حلال نه دى چې پخوانى

---

¹) ترجمه:اوکوم کس چې دالله له لاره کښې هجرت اوکړى هغه په زمکه باندې ښه فراختيا اور غټ ګنجائش بياموى.

بزرګانو ته په کښې کنځلې کولې شی او بدرد ورته وئیلې شی . ابن عربی رحمه الله ددې قول په نقل کولو سره لیکی چې دا بالکل صحیح ځکه دی چې هر کله څوک د څه بد کار بندیز نشی راوستې نو هغه لره دا ضروری دی چې پخپله د هغه ځائې نه اوځی لکه الله تعالیٰ فرمائی چې:
﴿وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ فِي آيَاتِنَا فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ﴾.([1])

دریم قسم د هغې علاقې نه وتل دی چې چرته زیات کاروبار د حرامو وی ولې چې حلاله روزی حاصلول په هر مسلمان باندې فرض دی.

څلورم د هغه ځائې نه وتل دی چې چرته بدن ته نقصانونه وی . دا قسم وتل جائز او د الله تعالیٰ د طرفنه انعام دې ، داسې وتل په ړومبی ځل ابراهیم علیه السلام کړی وو. کله چې د قوم د زیانونو نه د ځان خلاصولو په غرض د عراق نه شام طرفته په روانیدو ئې اوفرمائیل چې:
﴿انی مهاجرالی ربی﴾([2]) بیا داسې وتل موسی علیه السلام د مصر نه مدین ته کړی وو لکه فرمائی چې: ﴿فَخَرَجَ مِنْهَا خَائِفًا يَتَرَقَّبُ﴾.([3])

پنځم قسم دآب وهوا د خرابئ او د مرضونو د خطرې په وجه د یوځائې نه وتل دی . په اسلامی شریعت کښې ددې هم اجازت ورکړې شوې دې ، لکه رسول کریم ﷺ داسې شپنو ته د مدینې منورې نه بهر صحرا ته د وتلو دپاره فرمائیلی وو. ځکه چې د مدینې منورې هوا په هغوئ باندې صحیح نه وه راغلې.فاروق اعظم رضی الله عنه، ابوعبیده رضی الله عنه ته حکم اولیږلو چې د اردن په ځائې دې دارالحکومت داسې پورته علاقې ته یوسی چې چرته چې آب وهوا خرابه نه وی.

خو دا هله چې دغه ځائې کښې طاعون یا بل وبائی مرض نه وی راغلې . ولې چې.وبائی مرض د راتلو د ځائې نه د مقامی خلقو وتل منع کړې شوی دی ، او دا هم منع کړې شوی دی چې بهرنی خلق دغه ځائې ته ورځی ، عمر فاروق رضی الله عنه کله چې دشام سرحد ته وراورسیدو نو هلته د طاعون د خوریدو خبر ورکړې شو نو شام ته په داخلیدو کښې یې شک شو ، په آخر کښې ورته عبدالرحمان بن عوف رضی الله عنه د رسول کریم ﷺ داحدیث واورلو چې:
﴿اذاوقع بأرض وانتم بها فلاتخرجوا منها واذاوقع بأرض ولستم بها فلاتهبطوا علیها﴾([4])[کله چې په یوه علاقه د طاعون وبا راشی او تاسو هلته موجود یئ نو هغې نه مه اوځئ او کله چې تاسو هلته نه یئ نو هلته مه داخلیږئ] [ترمذی دې حدیث ته حسن وئیلی دی]

نودغه وخت عمرفاروق رضی الله عنه په حدیث باندې د عمل کولو په خاطر سره د ټولې قافلې دغه ځائې نه د واپسئ اعلان اوکړو.

ځینې علماء کرامو فرمائیلی دی چې ددې حدیث په دې حکم کښې خاص حکمت داهم دې چې هر کله ددغه ځائې په خلقو کښې ددغې وبائی مرض د جراثیمو د موجودګئ غالب ګمان وی که دې بل ځائې ته لاړ شی بیا به هم پخپله ترې بچ نشی . او چرته چې ورشی نو هلته به هم د وبائی مرض او اثر خور شی ځکه ددې د منع په غرض دغه حکم ورکړې شو.

---

[1] ترجمه:-او کله چې ته هغه خلق اووینې چې زمونږ په آیتونو کښې عیبونه لټوی نو ددې خلقو نه یو طرفته شه.
[2] ترجمه:-زه خپل رب طرفته هجرت کوم او ځم.
[3] ترجمه:-موسی علیه السلام په ویره ویره د حالاتو جائزه یامعلومات واخستو او دښارنه یې کوچ اوکړو.
[4] جامع الترمذی ، ابواب الجنائز باب ماجاء فی کراهیة الفرار من الطاعون [ج:۱ ص:۲۰۱]

شپږم د خپل مال د حفاظت په غرض د يو ځائي نه وتل دی ، لکه هلته ورته د غلو ډکوانو نه خطره وی نو اسلامی شريعت ددې اجازت هم ځکه ورکړې دې چې د مسلمان مال هم لکه د هغه د ځان پشان قابل قدر دې .

دا شپږ قسمه وتل او هجرت کول په دې غرض بنا وو چې د يو مضر او د نقصانی څيز نه ځان او مال ساتی، او کوم سفر چې د څه څيز د طلب او تلاش پسې اوکړې ی دهغه نهه قسمونه دی.

① يو د عبرت سفر کول په دې غرض چې د الله ﷻ مخلوقات اووينی دهغه د قدرت کامله نظارې اوکړی او دپخوانو قومونو حالات اوګوری او دهغې نه عبرت حاصل کړی ، قرآن عظيم الشان دداسې سفر کولو شوق راپورته کړې دې لکه فرمائی چې :

﴿اَوَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ﴾[1]

ځينې علماء کرام د ذی القرنين سفر ته هم داسې قسم سفر وئيلې دې ا وځينو فرمائيلی دی چې د هغوئ د غه سفر په دې غرض وو چې په زمکه کښې د الله ﷻ قانون جاری کړی .

② بل د حج سفر کول چې په څو شرطونو سره خو اسلامی فرض دی کيدل ټولو ته معلومه دی .

③ د جهاد سفر د راپيښو حالاتو په جوړ ، کله خو فرض ، کله واجب او کله مستحب وی څنګه چې ټولو مسلمانانو ته معلومه دی .

④ څلورم قسم د معاش سفر دې ، کله چې چاته د ژوند تيرولو ضروری سامان په يو ځائي کښې نشی حاصليدې ، نو هغه له ضروری دی چې د دغه ځائي نه اوځی او بل چرته روزګار تلاش کړی .

⑤ پنځم قسم د تجارت سفر دې په کوم کښې چې د ضرورت نه زيات مال حاصلول غرض وی ، داهم په شريعت کښې روا دی لکه پخپله الله ﷻ فرمائی چې ﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَبْتَغُوْا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ﴾[2] دلته دالله ﷻ د فضل تلاش کولو نه مراد تجارت کول دی ، کله چې الله ﷻ د حج په سفر کښې هم د تجارت اجازت ورکړې دې نو خالص د تجارت په غرض سفر کول خو په بهتره طريقه رواشو.

⑥ شپږم قسم د علم حاصلولو په غرض سفر کول څنګه چې ددينی ضرورت په خاطر فرض عين کيدل او د ضرورت نه زيات د علم ، فرض کفايه کيدل معلومه او مشهوره دی .

⑦ د يو مقام د پاکوالی او برکت په خيال هغې ته سفر کول دا سفر سوا د درې مسجدونو نه بل ځائي ته کول صحيح نه دی، دا درې مساجد مسجد حرام ، مسجد نبوی او مسجد اقصی دی.
دا رائې د قرطبی او ابن عربی رحمه الله ده نورو پخوانو او اوسنو علماء کرامو عامو برکتی مقاماتو ته سفر کول هم جائز ګرځولی دی [محمد شفيع رحمه الله ].

⑧ د اسلامی سرحدونو د حفاظت دپاره سفر کول چې رباط ورته وئيلې شی ، په ډيرو احاديثو کښې ددې لوئې فضيلت راغلې دې .

[1] ترجمه:-آيادا خلق په دې ملك كښې ګرځی راګرځی نه چې اوګوری چې د هغه خلق څه انجام شو چې کوم ددوی نه وړاندې تير شوې دی.
[2] ترجمه:-تاسو په دې کښې څه ګناه نشته چې ته رزق تلاش کړی هم چې ستا د رب دطرفنه دې.

⑨ د دوستانو عزیزانو دملاقات دپاره د سفر کولو هم په حدیث کښې د اجر او ثواب بیان راغلې دې ، د صحیح مسلم د یو حدیث پاک مطابق د خپلوانو او دوستانو د ملاقات په غرض سفر کوونکو دپاره دفرښتو د دعا بیان راغلې دې .(۱) خو دا هله چې د ملاقات غرض ئې د الله ﷻ رضا وی څه مادی غرض ئې په کښې نه وی، والله اعلم [قرطبی ص:۳۴۹ تا ۱۵۱ ج:۵ سورة نساء]

| وَمَآ اَرۡسَلۡنَا　مِنۡ قَبۡلِكَ　اِلَّا رِجَالًا　نُّوۡحِیۡۤ　اِلَیۡهِمۡ　فَسۡـَٔلُوۡۤا |
|---|
| اونه وولیږلی مونږ \| مخکښې ستانه \| مګر \| سړی \| وحی به کوله مونږه \| هغوئ ته \| نو تپوس اوکړئ |
| او مونږ ستانه مخکښې صرف سړی پیغمبران لیږلی دی \| چې وحی به موورته کوله \| نو د عالمانو |
| اَهۡلَ الذِّكۡرِ　اِنۡ كُنۡتُمۡ　لَا تَعۡلَمُوۡنَ ۝　بِالۡبَیِّنٰتِ　وَالزُّبُرِ |
| دعالمانونه \| که یئ تاسو \| چې نه پوهیږئ \| دغه رسولان لیږلی وو مونږ دروښانه نښو \| اوکتابونوسره |
| نه تپوس اوکړئ \| که تاسو پخپله نه پوهیږئ \| [هغوئ مود] په ښکاره دلیلونو اوکتاسونو سره [لیږلی وو] |
| وَاَنۡزَلۡنَاۤ　اِلَیۡكَ الذِّكۡرَ　لِتُبَیِّنَ　لِلنَّاسِ　مَا　نُزِّلَ |
| اونازل کړومونږه \| تاته \| داذکر \| دپاره ددې چې ته بیان کړې \| خلقوته \| هغه \| چې نازل کړې شوې دې |
| اومونږ تا ته کتاب رانازل کړې دې \| چې خلقو ته هغه کلام ښکاره کړې کوم چې د دوئ طرفته |
| اِلَیۡهِمۡ　وَلَعَلَّهُمۡ یَتَفَكَّرُوۡنَ ۝ |
| هغوئ ته \| دپاره ددې چې هغوئ فکراوکړی \| |
| نازل شوې دې \| اوچې دوئ سوچ او فکر اوکړی \| |

### آسان ترجمه قرآن

او (اې پیغمبره) مونږ ستا نه مخکښې هم بل څوک نه، هم انسانان پیغمبران لیږلې دی په چا باندې چه مونږ وحی نازله کړې وه (اې منکرو!) اوس که تاسو ته د دې خبرې علم نشته نو کوم چه د علم والا خلق دی د هغوی نه تپوس اوکړئ. هغه پیغمبران روښانه دلائلو او آسمانی کتابونو سره لیږلې شوې وو او (اې پیغمبره!) مونږ په تا باندې هم دا قرآن کریم دې دپاره نازل کړې دې چه ته د هغه خبرو واضحه تشریح اوکړې کوم چه هغوی ته نازلې کړې شوې دی، او دې دپاره چه هغوی د غور او فکر نه کار واخلی.

### د تفسیر خلاصه

﴿وَمَآ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِكَ اِلَّا رِجَالًا نُّوۡحِیۡۤ اِلَیۡهِمۡ﴾ او [ دامنکران خلق چې ستاسو د پیغمبرئ نه پدې انکار کوی چې تاسو بشر او انسان یئ او د دوئ په خیال کښې څوک انسان پیغمبر جوړیدل نه دی پکار نو دا جاهلانه خیال دې څکه چې ] مونږ تاسو نه وړاندې هم یوازې بنیادم رسولان جوړ کړل په معجزو او کتابونو ورکولو سره مو لیږلی دی چې ورته به مو وحی لیږله ﴿فَسۡـَٔلُوۡۤا اَهۡلَ الذِّكۡرِ اِنۡ كُنۡتُمۡ لَا تَعۡلَمُوۡنَ ۝﴾ [ نو اې د مکې منکرانو ] که ستاسو علم نشته نو نورو عالمانو نه تپوس اوکړئ ﴿بِالۡبَیِّنٰتِ وَالزُّبُرِ﴾ او ګورئ [ چا ته چې د پخوانو پیغمبرانو ﷺ حالات معلومه دی او ستاسو په خیال کښې هغوئ د مسلمانانو طرفدار نه وی او دغه شان تاسو هم رسول

---

(۱) صحیح مسلم، کتاب البر والصلة، باب فی فضل الحب فی الله [ج:۲ص:۳۱۷]

جوړ کړئ او ] ﴿وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ﴾ په تاسو مې دا قران پاك نا زل كړي دې ﴿لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ﴾ دپاره ددې چې کوم هدايات [ ستاسو په واسطهٔ] خلقو ته ليږلي شوي دي هغه هدايات تاسو دوئ ته په واضح کولو سره پرې دوئ پوهه کړئ ﴿وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ﴾ او دپاره ددې چې دوئ په دې کښې غور کوي.

## معارف او مسائل

روح المعاني کښې راغلي دي چې ددې آيت مبارک د نازليدو نه پس ، دمکې مشرکانو خپل قاصدان دمدينې منورې يهودو ته د حال معلومولو دپاره اوليږلو چې آيا واقعي ړمبې هم ټول پيغمبران ﷺ بنيادمان تير شوي دي ؟[1] اګر چې ﴿أَهْلَ الذِّكْرِ﴾نه مراد اهل کتاب او مسلمانان عالمان دواړه کيدې شي خو ښکاره ده چې د مشرکانو تسلي د غير مسلمو په خبره کيدې شوه ولې چې د دوئ د رسول کريم ﷺ په خبره تسلي نه کيده نو د نورو مسلمانانو خبره به ئې څنګه منلې وه ؟ د ﴿أَهْلَ الذِّكْرِ﴾ لفظ څو معنې کيدې شي، يوه معنی ئې اهل علم هم کيدې شي څنګه چې په قرآن پاک کښې په دې اعتبار سره تورات ته هم ذکر وئيلې شوي دی فرمائی چې: ﴿وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُورِ مِن بَعْدِ الذِّكْرِ﴾[2] او قرآن پاک ته هم ذکر وئيلې شوي دی لکه په وړيسې آيت مبارک کښې فرمائی چې ﴿وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ﴾دلته د الذکر نه مراد قرآن عظيم الشان دې ، په دې بنا د ﴿أَهْلَ الذِّكْرِ﴾ لفظي معنی اهل علم او عالمان شو او دلته داهل علم نه کوم خلق مراد دي ؟ ظاهره داده چې داهل کتاب ، يهودو نصاراؤ عالمان ترې مراد دی ، دا دابن عباس ﷺ ، حسن ﷺ او السدی وغيره قول دې . ځينې حضراتو دلته هم د ذکر نه قرآن کريم اخستې دې او د ﴿أَهْلَ الذِّكْرِ﴾ تفسر ئې په اهل القرآن سره کړې دې ، په ټولو کښې زياته ښکاره خبره د رماني ، زجاج او ازهري ده هغوئ وائی چې:

﴿المراد بأهل الذكر علماء اخبار الامم السالفة كائنا من كان فالذكر بمعنى الحفظ كانه قيل اسألوا المطلعين على اخبار الامم يعلموكم بذلك﴾[3]

[يعنی دلته د اهل الذکر نه مراد د پخوانو امتونو په حالاتو باندې خبر دار عالمان دي چې هر څوک وی نو مطلب به ئې دا وی چې د پخوانو امتونو په حالاتو باندې خبردار عالمانو نه تپوس اوکړئ چې تاسو په دې باندې پوهه کړي].

د بينات معنی معلومه ده چې مراد ترې دلته معجزې دی ، زبر په اصل کښې د زبر جمع ده چې د اوسپنې لويو ټکړو ته وئيلې شی لکه قرآن عظيم الشان فرمائی چې ﴿آتُونِي زُبَرَ الْحَدِيدِ﴾[4] دټکړو راپيوند کولو په وجه ليکلو ته زبر وئيلې شی ، او ليکلی کتاب ته زبر او زبور وئيلې شي ، دلته تر مراد د الله ﷻ کتاب دې چې په کښې تورات ، انجيل ، زبور او قرآن عظيم الشان ټول داخل دی .

---

[1] ) روح المعانی تحت هذه الآية [ج: ۱۰ ص: ۱۷۰]
[2] ) ترجمه:- او مونږ دلوح محفوظ نه پس په کتابونو کښې ليکلی دی.
[3] ) روح المعانی تحت هذه الآية [ج: ۱۰ ص: ۱۷۴]
[4] ) ترجمه:- تاسو ماله د اوسپنې ځادرونه راوړئ.

**د مجتهدينو امامانو تقليد غير مجتهد باندې واجب دې** :: د آيت دا جمله چې: ﴿فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾ اګر چې د يو خاص مضمون په باره کښې راغلې دې خو الفاظ ئې عام دي چې ټولو معاملاتو لره شامل دي ، په دې وجه د قرآني طرز په لحاظ سره په حقيقت کښې دا يوه اهمه ضابطه ده . چې عقلي او نقلي دواړه ده ، چې احکام نه پيژندونکي خلق دې د پيژندونکو نه په تپوس کولو سره پرې عمل کوي . او د ناپيژندونکو خلقو فرض دادی چې د پيژندونکو په خودلو دې عمل کوي ، ددې نوم تقليد دې ، دا دقرآن پاک واضح حکم دې ، او عقلي هم ، ددې نه سوا دعمل عام کولو څه صورت نشي کيدې .

امت کښې د صحابه کرامو رضي الله عنهم د زمانې نه تر ننه پورې بې د څه اختلاف نه په دې ضابطه باندې عمل کول بې د څه اختلاف نه راروان دی ، تر دې چې د تقليد نه منکر خلق هم ددې تقليد نه انکار نه کوی چې بې عمله خلق دې د علماء کرامو نه په تپوس کولو سره د هغوئ په فتوی باندې عمل کموی او دا ښکاره خبره ده چې ناواقفه عوامو ته که علماء د قرآن و حديث دليلونه هم اوښائي نو هغوئ نه په دليلونو پوهيږی او نه دهغې د جاج اخستو باندې پوهيږی ، او تقليد خو هم دې ته وئيلې شی چې ناپوهه بنده د يو پوهه بنده په اعتماد باندې يو حکم لره د شريعت حکم او بولي او عمل پرې اوکړی ، دا تقليد هغه دې چې په روا والي بلکه په واجبوالي کښې ئې د چا د اختلاف څه ګنجائش نشته دې ، البته هغه علماء کرام چې پخپله په قرآن عظيم الشان او حديث باندې پوهيږی او د اجماع د موقعو پيژندلو صلاحيت لری ، په هغې حکمونو کښې د نيغ په نيغه په قرآن پاک او حديث او اجماع باندې عمل کوی چې په قرآن عظيم الشان او حديث کښې په ښکاره او صفا ټکو کښې بيان شوی دی . او د عالمانو ، صحابه کرامو رضي الله عنهم ،او تابعينو ترمينځه په دغې مسئلو کښې څه اختلاف هم نشته ،په دې کښې علماء کرامو ته د چا مجتهد د تقليد کولو ضرورت نشته . ليکن کوم حکمونه او مسئلې چې په قرآن عظيم الشان او حديث پاک کښې په ښکاره نه دی بيان شوی . يا په کومو کښې چې د قرآن عظيم الشان د آيتونو او د حديث پاک د روايتونو په مينځ کښې په ظاهره څه تضاد ښکاری ، يا په کښې د صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعينو تر مينځه د قرآن عظيم الشان او سنت د معنې په ټاکلو کښې څه اختلاف راپيښ شوې وی . په داسې مسئلو او حکمونو کښې اجتهاد کيدې شی چې په اصطلاح کښې ورته مجتهد فيه مسئلې وئيلې شی ، دهغې حکم دادې چې کوم عالم د مجتهد په درجه کښې نه وی هغه لره هم په داسې مسئلو کښې د يو مجتهد امام د تقليد کولو ضرورت دې ، خالص د ذاتي رائې په بنياد باندې يو آيت يا روايت لره د بل نه غوره ګڼړل او هغې لره اختيارول او دهغې په مقابله کښې بل لره ناغوره ګڼړل او پريښودل ددهٔ دپاره جائز نه دی .

دغه شان کوم حکمونه چې په قرآن عظيم الشان او سنت کښې په ښکاره نه دی بيان شوی هغې لره په هغې اصولو سره راؤويستل چې قرآن عظيم الشان او سنت بيان کړی دی او دهغې شرعی حکم ټاکل هم دامت دهغه مجتهدينو کار دې چې په عربی ژبه ، عربی لغت ، محاوره د استعمال په طريقو ئې په ښه شان پوهه وی ، قرآن او سنت سره د ټولو ټولو علمونو معياری پوهه لری ، د پرهيزګارئ او تقوی لوړ مقام لری لکه امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله ، شافعی رحمه الله ، مالک رحمه الله ، احمد بن حنبل رحمه الله يا فقيه ابو الليث رحمه الله او اوزاعی رحمه الله وغيره شو چې د

پیغمبرئ زمانې سره د نږدې والي ،صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعینو سره د ناستې پاتې په برکت سره د شریعت په اصولو او مقصدونو باندې د پوهیدو خالص ذوق او په منصوصي حکمونو باندې د غیر منصوصي حکمونو په قیاس کولو سره دحکمونو راؤښکلو طریقه ورته الله ﷻ ورکړې وه ، په داسې اجتهادي مسئلو کښې عامو علماء کرامو لره هم لازم دي چې د مجتهدیو امامانو ځینې د یو امام تقلید اوکړي ، د مجتهد امامانو په خلاف څه نوې رائې اختیارول غلط دي .

هم دغه وجه ده چې د امام غزالي رحمه الله ، رازي رحمه الله ، ترمذي رحمه الله ، طحاوي رحمه الله ، مزني رحمه الله ، ابن همام رحمه الله ، ابن قدامه رحمه الله پشان د امت لویو لویو علماء کرامو ، محدثینو او فقهاء کرامو او ددوئ د درجې په لکونو علماء کرامو پخوانو او روستنو عالمانو په داسې اجتهادي مسئلو کښې همیشه دپاره د مجتهدینو امامانو تقلید کړې دې ، سره ددې چې د عربیت او شریعت په علمونو کښې اعلی ماهران وو دوئ د ټولو مجتهدانو خلاف په خپلې رائې سره څه فتوی ورکول جائز نه دي ګڼرلي .

البته دې صاحبانو د علم او تقوی هغه معیاري درجه لرله چې د متجهدینو داقوالو او رائې جاج به ئې د قرآن عظیم الشان او سنت په دلیلونو سره اخستلو ، په دې شان به چې مجتهدینو امامانو ځینې د یو امام قول ، قرآن عظیم الشان او حدیث سره زیات نږدې موندلو ، هغه به ئې اختیارولو مګر د مجهتدینو امامانو دمسلک نه وتل ددوئ ټولو په خلاف څه رائې قائمول به ئې هیچرې جائز نه ګڼرل ، په دې شان د تقلید اصل حقیقت هم دومره قدر دې .

وریسې ورځ تر ورځې علمي معیار په مخه کمیدو او د تقوی او خدا ترسئ په ځائې نفساني غرضونه غالب شو ، په داسې حالت کښې که دا آزادي ورکړې شي چې په خپله خوښه په یوه مسئله کښې د بل امام قول اختیار کړي ، نو ددې لازمي نتیجه دا راختله چې د شریعت د تابعدارئ په نوم به خلق د خواهش په تابعدارئ کښې اخته کیدل چې د کوم امام رحمه الله په قول کښې ورته خپل خواهش پوره کیدل ښکاریدل هغه به ئې اختیارولو ، دا ښکاره خبره ده چې په دې سره ددین او شریعت تابعداري نه شي کیدې ، بلکه دا دخپل غرض او خواهش تابعداري شوه چې د امت په اجماع سره حرامه ده ، علامه طبي رحمه الله په موافقات کښې په دې باندې تفصیلي کلام کړې دې . او امام ابن تیمیه رحمه الله هم داسې تابعداري په خپلې فتوی کښې دامت په اجماع سره حرام بللې ده ، سره ددې چې هغه د عام تقلید مخالف وو ، په دې بنا متاخرینو فقهاء کرامو د اضروري اوګڼرله چې عمل کوؤنکي دې د امامانو څخه هم د یو مجتهد امام دتقلید پابند جوړ کړې شي . هم ددې ځائې نه د شخصي تقلید شروع اوشوه چې په حقیقت کښې انتظامي حکم دې چې ددین انتظام ورسره قائم پاتې شي او خلق ددین د تابعدارئ په نوم د خواهشاتو د تابعدارئ ښکار نشي ، ددې مثال بعینه هغه دې چې عثمان رضي الله عنه دصحابه کرامو رضي الله عنهم په اجماع سره د قرآن عظیم الشان د اوؤ لغوتونو ځینې یو لغت مخصوص کړو اګر چې دغه اوؤ واړه لغتونه هم د قرآن عظیم الشان لغتونه وو ، د جبرائیل علیه السلام په ذریعه د رسول کریم ﷺ د خواهش مطابق نازل شوي وو ، خو کله چې قرآن عظیم الشان په عجمو کښې هم خور شو او په مختلفو لغتونو سره د ددې د لوستلو نه د قرآن عظیم الشان د بدلیدو خطره محسوسه کړې شوه نو د صحابه کرامو رضي الله عنهم په اجماع سره په مسلمانانو باندې لازم کړې شو چې صرف په

يو لغت کښې قرآن عظيم الشان اوليکلې او لوستلې شي ، عثمان غني ﷜ هم ددې يو لغت په مطابق ټولې نسخې اوليکلې ، او يو خوا بل خوا ئې اوليږلې او تر ننه پورې ټول امت ددې پابند دې ، ددې مطلب دا نه دې چې نور لغتونه حق نه وو بلکه ددين د انتظام کولو او د بدلون نه د قرآن عظيم الشان د حفاظت کولو په بنا باندې صرف يو لغت اختيار کړې شو ، دغه شان ټول مجتهدين امامان په حقه دی په دې کښې يو امام لره د خپل تقليد دپاره ټاکل هيڅرې دا مطلب نه لرې چې د هغه نه سواکنی نور امامان د تقليد قابل نه دی ، بلکه دخپلې خوښې مطابق د کوم امام په تقليد کښې ئې چې خپله آسانی اوليدله هغه ئې اختيار کړو ، او نور امامان هم دغسې دقدر او عزت قابل دی .

او دا بالکل داسې اوګڼړی چې يو رنځور د خپل ښار په زرګونو حکيمانو او ډاکټرانو کښې د خپل علاج دپاره يو حکيم يا ډاکټر ټاکل څکه ضروری ګڼړی چې کله د يو او کله د بل حکيم يا ډاکټر نه په تپوس کولو او علاج کولو سره ددغه رنځور د مرګ سبب جوړيږی ، ددې دا مطلب هيڅرې نه وی چې ددغې يو حکيم يا ډاکټر نه بغير ګنی نور څه ماهر نه دی ، يا د چا علاج کولو قابل نه دی .

امت کښې د حنفی ، شافعی ، مالکی ، حنبلی تقسيم راولاړيدل ددې حقيقت نه سوا بل هيڅ نه دی ، په دې کښې د فرقه بازئ رنګ اچول او دجنګ جګړو ميدان ګرمول څه ددين کار نه دی، او نه د بصيرت خاوندان علماء کرامو دا غوره ګڼړلی دی ، د ځينې علماء کرامو علمی بحث او علمی تحقيق د مناظرې رنګ اختيار کړو او خبره پيغورونو ، بدو وئيلو او جنګ کولو ته اورسيده ، بيا جاهلانه جنګ دې حد ته اورسيدې چې عام طور د دينداریٔ او د مذهبی تابعدارئ نخښه ګڼړلې شی .

﴿فالی الله المشتکی ولاحول ولاقوة الابالله العلی العظيم﴾

**خبردارې** :: دتقليد او اجتهاد په مسئله باندې دلته چې څه اوليکل شو هغه ددې مسئلې ډيره لنډه خلاصه ده چې د عامو مسلمانانو پوهيدو دپاره کافی ده ، عالمانه تحقيقونه او تفصيلات د اصول فقه په کتابونو کښې په تفصيل سره موجود دی ، خصوصی طور کتاب الموافقات د علامه شاطبی ﷫ جلد رابع باب الاجتهاد ، د علامه سيف الدين آمدی کتاب احکام الاحکام ، جلد ثالث القاعدة الثالثة فی المجتهدين، دحضرت شاه ولی الله دهلوی ﷫ کتابونه حجة الله البالغة او عقد الجيد ، رساله او په آخر کښې د حکيم الامت مولانا اشرف علی تهانوی کتاب الاقتصاد فی التقليد والاجتهاد په دې مسئله کښې په خاص طور سره دکتلو قابل دی ، عالمان دې ورته مخه اوکړی .

**قرآن کريم باندې د پوهيدو دپاره درسول کريم ﷺ حديث ضروری دی د حديثو نه انکار په حقيقت کښې د قرآن کريم نه انکار دې** :: ﴿وَاَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ﴾ دلته د الذکر نه مراد په اتفاق سره قرآن عظيم الشان دې،او رسول کريم ﷺ ته په دې آيت کښې ددې امر شوې دې چې د قرآن عظيم الشان د نازل شوؤ آيتونو بيان او وضاحت خلقوته کوئی ، په دې کښې ددې خبرې ښکاره ثبوت دې چې د قرآن عظيم الشان حقيقتونه ، معرفتونه او حکمونه صحيح ګڼړل د رسول کريم ﷺ په بيان باندې انحصاری لری ، که هر يو انسان صرف عربی ژبه باندې د پوهيدو او د عربی

ادب نه په واقف کیدوسره د الله ﷻ د منشاء مطابق د قرآن عظیم الشان په هغه حکمونو باندې پوره پوهیدلې نو رسول کریم ﷺ ته ددې د وضاحت کولو خدمت سپارل ئې هیڅ معنی نه لرل.

علامه شاطبي رحمه الله په موافقات کښې ښه په تفصیل سره ثابت کړې دی چې د رسول کریم ﷺ سنت ټول دالله ﷻ دکتاب بیان دې، ولې چې قرآن عظیم الشان پخپله فرمائی چې: ﴿إِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ﴾ (۱) او عائشه صدیقه رضي الله عنها د خلق عظیم تفسیر داسې کړې دې چې ﴿كان ( ) خلقه القرآن﴾ (۲) (۳)

ددې حاصل دا شو چې د رسول کریم ﷺ هر ثابت شوې قول او فعل ټول په ټوله قرآنی ارشادات دی، ځینې خو په ظاهری طور د یو آیت تفسیر او وضاحت وی چې عام اهل علم پرې پوهیږی، او ځینې ځایونو کښې خو په ظاهره دهغې بیان په قرآن عظیم الشان کښې چرته هم نه وی خو د هغوئ په زړهٔ مبارک کښې د وحی په طور هغه اچولې شوی وی، ولې چې د قرآن عظیم الشان د ښکاره بیان تر مخه د رسول کریم ﷺ هیڅ بیان د خپلې خوښې نه وی بلکه د الله ﷻ د طرفه وی لکه قرآن عظیم الشان فرمائی چې: ﴿وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ ۝ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ﴾ (۴) دې نه معلومه شوه چې د رسول کریم ﷺ عبادتونه، معاملات، اخلاق، عادتونه، ټول په ټوله د الله ﷻ په وحی او په حکم د قرآن عظیم الشان سره دی، او چرته چې رسول کریم ﷺ پخپل اجتهاد سره څه کار کړې دې نو هغه هم د وحی په ذریعه یا د هغې د غندنې نه کولو په وجه صحیح ثابت شی، اوبیا ئې تائید کولې شی ځکه هغه هم د وحی په حکم کښې شی.

خلاصه دا شوه چې دې آیت مبارک کښې د نبی کریم ﷺ د پیغمبر کیدو مقصد د قرآن عظیم الشان تفسیر کول او بیانول خودلې شوی دی، لکه د سورة جمعه وغیره په ګڼو آیتونو کښې د هغوئ د پیغمبرئ کیدو مقصد تعلیم د کتاب الله خودلې شوې دې اوس موجوده د احادیثو کومه ذخیره چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعینو نه تر متاخرینو محدثینو پورې د امت باکمال خلقو دخپلو ځانونو په زیات حفاظت کښې امت ته رارسولې ده او ددې په چاپېن کولو کښې ئې عمرونه لګوی دی. او دحدیثو د روایتونو درجې ئې قائمې کړی دی د کوم روایتونه چې د سند له مخې ددې قابل اونه مونډل چې په هغې باندې د شرعی احکامو بنیاد کیخودې شی نو هغه ئې د احادیثو د ذخیرې نه جدا کړی دی، اوصرف په هغې روایتونو ئې مستقل کتابونه لیکلې دی چې ټول عمر د تنقیدونو او تحقیقونو نه پس صحیح او قابل اعتماد ثابت شوی دی. که څوک ورته اوس د بهانو او چلونو په زور د اعتماد قابل نه وائی نو ددې مطلب دادې چې رسول کریم ﷺ ګنی د قرآنی حکم خلاف ورزی کړې ده چې د قرآن عظیم الشان مضامین ئې بیان نه کړل یا دا چې رسول کریم ﷺ خو بیان کړی وو خو هغه محفوظ پاتې نشو. په دواړو صورتونو کښې ګنی قرآن عظیم الشان د معنی تر مخه محفوظ پاتې نشو چې الله ﷻ ئې

---

۱) ترجمه:- او بیشکه ته د اخلاقو په اعلی مرتبه باندې فائز یې.
۲) مسند احمد، حدیث السیدة عائشة رضی الله عنها رقم الحدیث [۲۳۴۶۰]
۳) ترجمه:- او ستاسو اخلاق هغه دی چې کوم په قرآن پاك کښې دی.
۴) ترجمه:- اونه دخپلو خواهشاتو نفسونو نه خبرې جوړوی، د دوئ وینا (ارشاد) خالص وحی ده کوم چه دده ته لیږلې شی.

حفاظت پخپله ذمه اخستې دې لکه فرمائي چې ﴿وَإِنَّا لَهُ لَحٰفِظُونَ﴾(۱) اوس دهغه دغه دعوی د قرآن عظیم الشان د نص نه خلاف ده ، دې نه ثابته شوه چې څوک د رسول کریم ﷺ سنت اسلامی حجت نه بولی هغه په حقیقت کښې خالص د قرآن عظیم الشانه منکر دې [نعوذبالله].

| |
|---|
| اَفَاَمِنَ　الَّذِيْنَ　مَكَرُوا |
| آیانوپه امن شوی دی \| هغه خلق \| چې تدبیرونه ئې اوکړل |
| آیا کوم خلق چې خراب سازشونه |
| السَّيِّاٰتِ　اَنْ يَّخْسِفَ اللّٰهُ　بِهِمُ　الْاَرْضَ　اَوْ يَاْتِيَهُمُ　الْعَذَابُ |
| ناکاره \| ددې خبرې نه چې ډوب به کړي الله \| دوئ باندې \| په زمکه کښې \| یابه راشي دوئ ته \| عذاب |
| جوړوی بې ویرې شوی دی \| چې الله دوئ په زمکه کښې ننباسی \| یا دوئ باندې د هغه طرف نه عذاب راشي |
| مِنْ حَيْثُ　لَا يَشْعُرُوْنَ　اَوْ يَاْخُذَهُمْ　فِيْ تَقَلُّبِهِمْ　فَمَا |
| دداسې طرفنه \| چې دوئ به نه پوهیږی \| یا به رااونیسی دوئ لره \| په ګرځیدو ددوئ کښې \| پس نه دی |
| چې د دوی په وهم او ګمان کښې هم نه وی \| یا دوی لره ددوئ په تګ راتګ کښې [ناګهانه] ونیسی \| دوئ په هیڅ |
| هُمْ بِمُعْجِزِيْنَ　اَوْ يَاْخُذَهُمْ　عَلٰى تَخَوُّفٍ　فَاِنَّ رَبَّكُمْ　لَرَءُوْفٌ |
| دوئ \| عاجزه کونکی \| یابه اونیسی دوئ لره \| په یره باند \| پس بیشکه رب ستاسو \| خامخامهربان دی |
| صورت کښې الله ﷻ عاجزه کولې نشي \| اویا د ویرې په حالت کښې یې اونیسی \| بیشکه ستارب ډیر مهربان |
| رَّحِيْمٌ |
| رحم کونکی دې \| |
| رحم کونکې دې \| |

## آسان ترجمه قرآن

نو آیا هغه خلق چه کومې بدې بدې منصوبې جوړوی د دې خبرې نه بالکل بې ویرې شوې دی چه الله پاک هغوی په زمکه باندې ننباسی، یا په هغوی باندې عذاب د داسې ځائې نه راشی چه هغوی ته احساس هم نه وی؟ یا هغوی په ګرځیدو راګرځیدو کښې په ځهل عذاب کښې راونیسی. ځکه چه دوی هغه نه شی عاجز کولې، یا هغوی داسې اونیسی چه په مزه مزه کمیږی؟ ځکه چه ستاسو رب ډیر شفقت کونکې، اورحم کونکې دې.

## خلاصه تفسیر

﴿اَفَاَمِنَ الَّذِيْنَ مَكَرُوا السَّيِّاٰتِ﴾ کوم خلق [ چې د حق دین باطلولو په غرض] خراب خراب چلونه کوی [ چې کله خو په کښې شکونه راښکاره کوی او کله په دې اعتراضونه کوی او دحق نه انکار کوی چې بې لارې کیدل دی او کله نور خلق ایساروی چې بې لارې کول دی ] ﴿اَنْ يَّخْسِفَ اللّٰهُ بِهِمُ الْاَرْضَ﴾ آیا داسې خلق [ دداسې کفری کارونو کولو باوجود ] بیا هم ددې خبرې نه بې فکره [

(۱) ترجمه:- او مونږ ددې محافظ یو.

ناست ] دی چې الله ﷻ دوئ [ د دوئ د کفر په وبال کښې په دوئ باندې ] په زمکه ور او منډي ﴿أَوْ يَأْتِيَهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُونَ﴾ یا پرې دداسې ځایه عذاب راشي چې چرته د دوئ ګمان هم نه وی [ لکه په جنګ بدرچې دداسې تش لاسو مسلمانانو نه ئې سزابیا مونده چې په خیال کښې ئې هم د هغوئ بری کیدل او غالب کیدل نه راتلل] ﴿أَوْ يَأْخُذَهُمْ فِي تَقَلُّبِهِمْ﴾ یا ددوئ په روانه روانه کښې ئې [ په څه آفت کښې ] راؤنیسی [ لکه ناګهانه ورته څه مرض راولاړ شی ] ﴿فَمَا هُمْ بِمُعْجِزِينَ﴾ نو [ که په دې خبرو کښې ورته څه خبره راپیښه شی نو] داخلق الله ﷻ لره رالاندې کولې [ هم ] نشی ﴿أَوْ يَأْخُذَهُمْ عَلَىٰ تَخَوُّفٍ﴾ یا دوئ په کمولو کمولو راؤنیسی [ لکه قحط او وبا پرې راشی او په رو رو ختم شی یعنی زرور کیدل نه دی پکار ، الله ﷻ هر څه کولې شی ] ﴿فَإِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوفٌ رَحِيمٌ﴾ خو [ د مهلت ورکولو وجه داده چې ] ستاسو رب ډیر شفقت والا مهربان دی [ نومهلت ورکولو وجه ئې داده چې اوس هم پوهه شی اودکامیابئ اودخلاصی لاراختیار کړئ]

## معارف او مسائل

تیرو شوؤ آیتونو کښې کفار د آخرت د عذاب څخه ویرولې شوی دی . لکه فرمائی چې : ﴿ثُمَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُخْزِيهِمْ﴾ اوس په دې آیتونو کښې داسې ویرولې شوی دی چې د آخرت د عذاب څخه وړاندې ددنیا عذاب کښې هم راګیر شئ ، لکه په زمکه کښې ور اومنډلې شئ یا په داسې آفت کښې ګرفتار شئ چې دهغې د راتلو لاره به ستاسو ګمان کښې هم نه وی لکه چې د بدر په غزا کښې یو زر په وسلو سنبه ځلمی چې د یو څو تش لاسو مسلمانانو د لاسه داسې خوار وزار شو چې د دوئ په خواب او خیال کښې هم نه راتلل . یا په ګرځیدو راګرځیدو کښې په څه بیماری اخته شئ ، د اوچت ځائي په راپریوتلو یا یوسخت څیز سره د ټکرې خوړو په وجه هلاك شئ او د عذاب بل صورت داسې هم کیدې شی چې زر دربانديې عذاب رانشی بلکه په دمه دمه وربانديې داسې راشی چې مال ، روغتیا ، او د آرام راحت سامونونه مو په کمولو کمولو سره آخر ټول قوم تباه او برباد شی .

آیت مبارك کښې دلته د ﴿تَخَوُّفٍ﴾ لفظ په ظاهره د خوف څخه مشتق دې ، ځینې مفسرینو په دې لحاظ سره ددې تفسیر داسې کړې دې چې یو ډله په عذاب کښې راګیر کړې شی چې دهغه په وجه د بل قوم په ویرولو ویرولو سره آخر ټول قوم تباه اوبرباد شی. خو مفسر قرآن ابن عباس رضي الله عنه او مجاهد رحمه الله وغیره چې د تفسیر امامان دی فرمائیلی دی چې دلته د ﴿تَخَوُّفٍ﴾ مطلب تنقص یعنی کمول د ی او په دې لحاظ سره ترجمه کمول کمول کړې شوېده .

سعید المسیب رحمه الله فرمائیلی دی چې یو ځل عمر رضي الله عنه د ﴿تَخَوُّفٍ﴾ په معنی باندې ځان پوهول غوښتل نو په منبر دپاسه ئې د صحابه کرامو رضي الله عنهم څخه سوال اوکړو چې تاسو د ﴿تَخَوُّفٍ﴾ څه معنی اخلئ ؟ ټوله ډله خاموشه شوه مګر د هذیل قبیلې یو کس اوویل چې دا زمونږ د قبیلې یو خاص لغت دې چې د کمولو او تنقص په معنی کښې استعمالولې شی یعنی په تدریج سره کمول عمر فاروق رضي الله عنه بیا تپوس اوکړو چې آیا ددې څه مثال د عربو په شعرونو کښې موجود دې ؟ هغه کس اوفرمائیل چې آؤ شته دې ، اوبیا ئې دخپلې قبیلې د یو شاعر ابی کبیر هذلی یو شعر پیش کړو چې هم ددې معنی دپاره په کښې ﴿تَخَوُّفٍ﴾ لفظ بتدریج کمولو په معنی کښې استعمال شوې وو ، په دې باندې عمر رضي الله عنه اوفرمائیل چې ائې خلقو د جاهلیت

د اشعارو علم حاصل کړئی ولې چې په دې کښې ستاسو د کتاب تفسیر دې او ستاسو د کلام د معنو فیصله هم په دې سره کیږي .[1]

**په قرآن پاك د پوهیدو دپاره په عربی ژبه باندې معمولی پوهیدل کافی نه دی ::** دې ځخه یوه خبره داهم ثابته شوه چې د عربی ژبې په لیك لوست باندې معمولي پوهیدل په قرآن کریم باندې د پوهیدو دپاره کافی نه دی ، بلکه دومره مهارت او واقفیت ضروری دی چې د عربو دجاهلیت د پخوانۍ زمانې په کلام باندې په پوره شان پوهیږي . ولې چې قرآن عظیم الشان هم ددوئ په ژبه اوهم د دوئ په محاورو کښې نازل شوې دې ځکه ددې درجې عربی ادب ازده کول په مسلمانانو لازم دی .

**د عربی ادب زده کولو دپاره د جاهلیت د شاعرانو کلام لوستل جائز دی اګر چې په هغې کښې کفرې ودې او قچرې خبرې وی ::** په عربی ژبې د هغې په لغتونو او محاورو باندې پوهیدو دپاره د جاهلیت د شاعرانو کلام لوستل [وئیل] او لولول [او بل چا وئیل] جائز دی اګر چې په دې کښې قچرې او دشرك او کفر خبرې هم وی . جاهلانه رسمونه او بې سرېتوبه خبرې په کښې هم وی لیکن په قرآن پاك باندې پوهیدو دپاره ددې ضرورت شته ددې ځکه ددې لوستل او لولول جائز شو .

**ددنیا عذاب یو قسم رحمت دې ::** دې آیتونو کښې مختلف قسم ددنیا عذابونه چې بیان شو هغې ځه روستو فرمائي چې ::

﴿فَاِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ﴾ دلته په لفظ د رب کښې اشاره دې ته ده چې ددنیا عذابونه د انسان د خبرداره کوولو دپاره د پروردګارئ د شان غوښتې دی ، بیا الله ﷻ خپلو دوؤ صفتونو سره لام د تاکید راؤړلو سره اشاره دې ته اوکړه چې دا دنیوی خبرداري ورکول په حقیقت کښې خپل شفقت اورحمت ښکاره کول ځکه دی چې غافل انسان رابیدار شی او د خپلو عملونو اصلاح اوکړی او خراب عملونه پرېږدی .

| |
|---|
| اَوَلَمْ يَرَوْا اِلٰى مَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ شَيْءٍ يَّتَفَيَّؤُا ظِلٰلُهٗ |
| آیانه ګوری داخلق \| هغه ته \| چې پیداکړې دې الله \| یوځیزته \| چې ګرځی \| سوری دهغه |
| \| ایا دوئ داسې ځیزونه نه دی کتلی \| چې الله ﷻ پیدا کړی دی او د هغې سیوری |
| عَنِ الْيَمِيْنِ وَالشَّمَآئِلِ سُجَّدًا لِّلّٰهِ وَهُمْ دٰخِرُوْنَ﴿۴۸﴾ |
| ښی طرفته \| او ګس طرفته \| سجده کونکی \| الله ته \| حال داچې ټول ځیزونه \| عاجزی کونکی دی |
| ښی اوګس طرفته ګرځی \| الله ته سجدې کوی \| اودوئ فرمانبرداردی \| بلکه خامخا به ئې لیدلې وی؟[2] |

[1] ) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة [ ج:۱۰ص:۱۱۰،۱۱۱]

[2] ) **دَ عرش نه دَ فرش پورې هریوځیز الله تعالی ته سجده کوی:-** دَ الله تعالی ذوالجلال والاکرام عظمت جلالت لوئې بې مثالئی ته اوګورئی چه ټول مخلوق دَ عرش نه فرش پورې دَ هغه په وړاندې تابعدار او غلام، کاڼړی بوټی خناور انسانان پیریان فرښتې او ټول کائنات ټول دَ هغه حکم منونکې اوهرځیز سحر ماښام دَ هغه په وړاندې خپله عاجزی او بې کسئی ثبوت پیش کولو سره په ټیټه ټیټه دَ هغه په وړاندې سجده کونکی دی. مجاهد رحمه الله فرمائی چه دَ نمر پرېوتوسره ....

[باقی په راروانه صفحه....

وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ

او الله ته | سجده کوی | هغه څه | چی په آسمانونو کښې دی | او هغه څه | چی په زمکه کښی دی

اوپه زمکه او آسمانونو کښې چې څومره ساه لرونکي څیزونه دی ټول دالله ﷻ تابعدار دی|

مِنْ دَآبَّةٍ وَّالْمَلٰٓئِكَةُ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ۝ يَخَافُوْنَ رَبَّهُمْ

دګرځیدونکونه | او فرښتې هم | او هغوئ | تکبر نه کوی | یریږی هغوئ | درب خپل نه

اوفرښتې هم اودوئ خپل ځان لوئې نه ګڼړی | ............دوی د خپل هغه رب نه ویریږی

مِّنْ فَوْقِهِمْ وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ۝ ۩ وَقَالَ اللّٰهُ

دپاسه دهغوئ نه | اوکوی هغوئ | هغه کارونه | چی دکوم ورته حکم کیدې شی | اواووئیل الله

چې ددوئ دپاسه دې | اود کوم کار چې ورته حکم کولې شی هغه کار کوی | اوالله ﷻ فرمائی

لَا تَتَّخِذُوْٓا اِلٰهَيْنِ اثْنَيْنِ ۚ اِنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ

مه نیسئ | خدایان | دوه | بیشکه هم داخبره ده | چی بس هم هغه | معبود | یو دې

چې تاسو دوه معبودان مه جوړوئ | بیشکه صرف هغه یو معبود دې

فَاِيَّايَ فَارْهَبُوْنِ۝ وَلَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ

| پس خاص زمانه | اویریږئ | او هغه لره دی | هغه څه | چی په آسمانونو کښی دی

نو خاص زما نه اوویریږئ | او په آسمانونو او زمکه کښې چې څه دی دا ټول د هغه

وَالْاَرْضِ وَلَهُ الدِّيْنُ وَاصِبًا ۭ اَفَغَيْرَ اللّٰهِ

او په زمکه کښی دی | او خاص دهغه | دین | همیشه چلیدونکي دې | آیا بیا به هم بغیر دالله نه

ملکیت دې | ............اوهم د هغه دین همیشه قائم دې | ............آیا تاسو د الله ﷻ نه سوا

تَتَّقُوْنَ۝ وَمَا بِكُمْ مِّنْ نِّعْمَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ ثُمَّ اِذَا

تاسو یریږئ | او هغه چی حاصل دی تاسو ته | دنعمت نه | نو هغه دطرفه دالله نه دی | بیا چی کله

د نورو نه یریږئ | اوتاسو باندې چې کوم یو نعمت هم دې نو هغه دالله ﷻ دطرفه دې | بیاچې کله

---

....باقی حاشیه د تیرمخ]...ټول څیزونه الله تعالې ته په سجده راپریوځی. هریودَ رب العالمین په وړاندې خوار او ښکته دې عاجز اوِ بې بس دې دَ غرونو وِغیره سجده دَ هغوِی سورې دې دَ سمندر چپې دَ هغه مونځ دې لکه هغوی دَ عقل والا ګڼړلو سره دِ سجدې نسبت ئی دَ هغوی طرف ته اوکړو ونی فرمائیل دَ زمکې او آسمان ټول ساه لرونکی څیزونه دَ هغه په وړاندې په سجده کښې دی. لکه چه ارشاد دې ﴿وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا﴾ (۱۳/الرعد:۱۵) په خوشحالئی او ناخوشحالئی کښې هریوڅیز دَ ا لله تعالی په وړاندې سر په سجده دې دَ هغوی سورِی سحرماښام سجده کوی فرښتې هم سره دَ خپل قدر او منزلت دَ الله تعالی په وړاندې ښکته دی. دَ هغه دَ عبادت نه مخ اړولې نه شی. دَ الله تعالی نه چه لوئی ذات دې رچیرږی او لړزیږی اوچه کوم حکم ورته دې دَ هغې په پوره کولو کښې مشغولې دی نه نافرمانی کوی اونه سستی کوی.

مَسَّكُمُ الضُّرُّ فَإِلَيْهِ تَجْـَٔرُونَ ۞ ثُمَّ إِذَا كَشَفَ الضُّرَّ

اورسیږی تاسو ته | تکلیف | نو هم هغه ته | فریادکوئ تاسو | بیا | چی کله | لرې کړی | هغه تکلیف

تاسو ته څه مصیبت اورسیږی | نو تاسو هم هغه ته فریاد کوئ | بیا چې کله ستاسو نه مصیبت لرې

عَنْكُمْ إِذَا فَرِيقٌ مِّنْكُمْ بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُونَ ۞ لِيَكْفُرُوا

ستاسو نه | نو فورا | یوه ډله | ستاسو نه | درب خپل سره | شریکوی نور | دپاره ددې نه چی ناشکری اوکړی

کړی | نو په تاسو کښې څه خلق زرد خپل رب سره شریک جوړوی | د دې دپاره چې کوم نعمتونه مونږ

بِمَا آتَيْنَاهُمْ ۚ فَتَمَتَّعُوا ۖ فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ۞

په هغه څیز | چی ورکړې دې مونږ هغوئ ته | نو نفع واخلئ تاسو | ډیر زر به معلوم شی حال تاسو ته

دوئ ته ورکړی دی د هغې ناشکری اوکړی | نو [څو ورځې] مزې واخلئ | تاسو به زر پوهه شئ

وَيَجْعَلُونَ لِمَا لَا يَعْلَمُونَ نَصِيبًا مِّمَّا رَزَقْنَاهُمْ ۗ

اومقرروی دوئ | دپاره دهغه چاچی | خبر نه دی دوئ | حصه | دهغې رزق نه | چی ورکړې دې مونږ هغوئ ته

اودوئ زمونږ په ورکړی رزق کښې د هغه چادپاره چې دوئ ئې پخپله هم نه پیژنی حصې مقرر کړی دی (۱)

---

(۱) **دَ مشرکانو عجیبه دعوی او دَ افسوس قابل رویه:-** دَ مشرکانو بې عقلی او بې وقوفتوب بیانولې شی چه ورکونکې الله او هرڅه دَ هغه ورکړې شوی او دوی دَ هغې نه دَ خپلو دروغو معبودانو په نوم کوی دَ کومو چه دوی ته صحیح علم هم نشته. بیا په دې کښې دومره سختی کوی چه که دَ الله تعالیِ دَ نوم هغه هم دَ دوی دَ معبودانو دَ نوم شی نوخیردې خوچه دَ دوی دَ معبودانووی هغه دَ الله تعالی د نوم نه شی کیدئ. دَ داسې خلقو نه به خامخا تپوس پوښتنه کولې شی. اودَ دې افترا یعنی دَ ځان خبرویه دوی ته پوره پوره بدله ورکولې شی چه دَ دوزخ اور به وی اودوی به په هغې کښې همیشه وی.

بیاد دوی بله بې انصافی او بیوقوفتوب بیانولې شی چه دوئ وائی چه دَ الله تعالی مقرب غلام فرښتې دَ الله تعالی لونړه دی په دې خطاکولوسره بیا دَ هغوی عبادت کوی چه دَ خطا دَ پاسه خطا ده. دلته دَ هغوی نه درې جرمونه اوشو اول دَ الله تعالی دَ پاره اولاد گرځول چه دَ دې نه بالکل پاك دې بیا دَ اولاد نه هم هغه قسم هغه ته ورکول چه پخپله ئې هم دَ ځان دَ پاره نه خوښوي یعنی جینکئی. څه اولته خبره ده چه دَ خپل ځان دَ پاره خو هلکان اودَ الله تعالی دَ پاره جینکئی. بیادَ هغوی عبادت کول دا دَ هغوی سراسر بهتان دې صرف دروغ دی څنگه ممکن دی چه دَ الله تعالی اولادوي؟ اوبیااولاد هم هغه چه دَ هغوي په خیال کښې ردی او ذلیل څیز دې څه بیوقوفتوب دې چه دوی ته الله تعالی هلکان ورکړی اودَ ځان دَ پاره لونړه اوساتی؟الله تعالی دَ دې نه بلکه دَ اولاد نه پاك دې. دوی ته چه کله خبرملاوشی چه دوی کره جینئی پیدا شوه نودَ شرم او پښیمانتیا په وجه ئې مخ تور شی. ژبه ئې بنده شی دَ غم نه ئې ملاتیته شی دَ زهرو گوټ اوڅکی چه خاموش شی دَ خلقو نه مخ پټ گرځی بیا هم په دې سوچ کښې وی چه اوس څه اوکړی که لورژوندئی پریږدم نو لویه رسوائی ده نه وارث جوړیږی نه په څه څیز پوهیږی ځامنوله په دوی باندې ترجیح ورکړی که ژوندئی ساتی نو په ډیر ذلت سره گنی صفاخبره ده چه ژوندئی په کنده کښې ورخښه کړی نوداحال خو ئې خپل دې اودَ الله تعالی دَ پاره هم دغه څیز ثابتوی. څنگه خرابې فیصلې کوی؟ څومره دَ بې حیایئی تقسیم کوی دَ الله تعالی دَ پاره چه څه ثابت کړې دی هغه دَ خپل ځان دَ پاره سخت توهین اوتذلیل گنړی. اصل دا دې چه خراب مثال او نقصان هم دَ دې کافرانو دَ پاره دې دَ الله تعالی دَ پاره کمال دې هغه عزیزدې حکیم دې اوذوالجلال والاکرام دې.

| تَاللّٰهِ | لَتُسْـَٔلُنَّ | عَمَّا | كُنتُمْ | تَفْتَرُونَ۝ |
|---|---|---|---|---|
| قسم په الله | چې خامخا به تپوس کیږي ستاسو نه | دهغې دروغو | چې وئ تاسو | چې جوړول به مو |
| په الله قسم دې | چې تاسو نه به خامخا د داسې بهتانونو په باره کښې تپوس کیږي | | | |

| وَيَجْعَلُونَ | لِلّٰهِ الْبَنٰتِ | سُبْحٰنَهٗ | وَلَهُم | مَّا | يَشْتَهُونَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| او جوړوي دوئ | الله لره | لونړه | پاکي ده هغه لره | او دي دوئ لره | هغه | چې دوئ ئې خوښوي |
| اودوئ دالله دپاره لونړه گرځولې دي | هغه دپاره پاکي ده | اوځان دپاره هغه ځامن غواړي چې دوئ ئې خوښوي | | | |

## آسان ترجمه قرآن

آیا هغوی نه گوری چه الله پاک کوم څیز پیدا کړي دي، د هغې سوری الله پاک ته سجده کوی ښی او گس طرف ته ښکته کیږي، او هغوی ټول د عاجزئ اظهار کوی؟ او په آسمان او زمکه کښې چه څومره د ساه والا دي، هغه او ټول ملائک صرف الله ته سجده کوی، او هغوی لږ هم تکبر نه کوی. هغوی د خپل رب نه ویریږي کوم چه د هغوی دپاسه دي، او هغوی هم هغه کار کوی چه د هغې هغوی ته حکم کولې شي .او الله پاک فرمائیلي دي چه : دوه دوه معبودان مه جوړوئ. هغه خو بس یو معبود دې. په دې وجه بس هم زمانه ویریږئ. او په آسمانونو او زمکه کښې چه څه دي، هم د هغه دي او هم د هغه اطاعت په هر حال کښې لازم دي. آیا بیا هم تاسو د الله پاک نه سوا د نورو څیزونو نه ویریږئ؟ او تاسو ته چه کوم نعمت هم حاصلیږي، هغه د الله پاک د طرف نه وي بیا چه تاسو ته کله څه تکلیف در رسیږي هم نو هغه ته فریادونه کوئ د هغې نه پس چه کله هغه ستاسو نه تکلیف لرې کړي، نو په تاسو کښې یو ډله ناڅاپه د خپل رب سره شرک شروع کړي د دې دپاره چه مونږ هغوی ته کوم نعمت ورکړې دي د هغې ناشکری اوکړي، ښه! څه مزې واخلئ، پس تاسو ته به ډیر زر پته ولگی او مونږ چه کوم رزق هغوی ته ورکړې دې، په هغې کښې د هغه (بتانو) حصه مقرر کوی چه د هغې حقیقت خپله هغوی ته هم معلوم نه دې . قسم په الله! تاسو نه به ضرور تپوس کولې شي چه تاسو به څنگه بهتان تړلو. او د الله پاک دپاره خو هغوی لونړه مقرر کړی دی، سبحان الله! او خپله د ځان دپاره هغه (ځامن غواړي) کوم چه ئې د خواهش مطابق وي!

## د تفسیر خلاصه

﴿اَوَلَمْ يَرَوْا اِلٰى مَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ شَيْءٍ﴾ آیا [دې] خلقو دالله ﷻ پیدا کړي څیزونه نه دي لیدلي [ د هغې په لیدو سره ئې دالله ﷻ په توحید باندې دلیل نه دې جوړ کړې ] ﴿يَتَفَيَّؤُا ظِلٰلُهٗ عَنِ الْيَمِيْنِ وَالشَّمَآئِلِ﴾ چې سوري ئې کله یو طرفته اوکله بل طرفته په دې شان راښکته کیږي ﴿سُجَّدًا لِّلّٰهِ﴾ چې [ بالکل ] د الله ﷻ [د حکم] تابع دي [ یعنی د سورو سببونه چې دنمر روښانتیا ده او د سوری دار د جسم سختوالې دې او دسوری دحرکت سبب د نمر حرکت دې بیا دسوری خصوصیات دا ټول دالله ﷻ په حکم دي] ﴿وَهُمْ دٰخِرُوْنَ۝﴾ او دغه [سوری دار] څیزونه هم [ دالله ﷻ په وړاندې ] عاجز [ او د حکم تابعدار] دي او [څنگه چې دا بیان شوی څیزونه دکومو حرکت چې پخپله اراده نشی کیدې څنگه چې د يتفيؤ اسناد ظلال ته ددې قرینه ده ولې چې کوم څیزونه پخپلو ارادو سره حرکت کوی نو دهغې سوری هم دهغې په حرکت سره اوړی راوړي ، دا څیزونه هم دالله ﷻ د

حکم تابع دی ، دغه شان ] ﴿وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾ هم دالله ﷻ تابعدار [ دحکم] دی څومره څیزونه [چې په ارادې سره ] تلونکی ﴿مِن دَابَّةٍ وَالْمَلٰٓئِكَةُ﴾ په آسمانونوچ کښې [لکه فرښتې ] او زمکه کښې [لکه حیوانات] موجوددی او [ خاص کر] فرښتې [ هم] ﴿وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ﴾ او هغوئ [ فرښتې سره د پورته والی دمکان اوشان دالله ﷻ د فرمانبردارئ نه] تکبر نه کوی [او په دې وجه په خصوصیت سره د دوئ بیان اوکړې شو ، سره ددې چې دوئ هم په [مَا فِي السَّمٰوٰتِ] کښې داخل دسې ] ﴿يَخَافُونَ رَبَّهُم مِّن فَوْقِهِمْ﴾ دوئ دخپل رب نه ویریږی چې په دوئ ئې زور رسی ﴿وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ﴾ او دوئ ته چې څه [ دالله ﷻ دطرفه ] حکم کولې شی ، دوئ هغسې کوی ﴿وَقَالَ اللّٰهُ لَا تَتَّخِذُوا إِلٰهَيْنِ اثْنَيْنِ﴾ او الله ﷻ [تول مکلف مخلوق ته د رسولانو په واسطه] فرمائیلی دی چې دوه [یا زیات] معبودان مه جوړوئ ﴿إِنَّمَا هُوَ إِلٰهٌ وَاحِدٌ﴾ پس هم هغه یو معبود دې [ اوکله چې خبره داسې ده ] ﴿فَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ﴾ نو تاسو خلق هم زما څخه ویریږئ [ ولې چې کله یوازې هم زه الله ﷻ یم نو ددې ټول لوازمات هم ماسره خاص دی لکه کامل قدرت وغیره شو ، په دې وجه د بدلې اخستلو وغیره ویره هم زما څخه پکار ده ولې چې شرک د بدل اخستلو مستدعی شته دې نوپس شرک کول پکار نه دی ] ﴿وَلَهُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ﴾ او هم ددهٔ [ملك دی] ټول څیزونه چې څه آسمانونو او زمکه کښې دی ﴿وَلَهُ الدِّينُ وَاصِبًا﴾ او لازمی فرمانبرداری کول هم ددهٔ حق دې [ یعنی هم یوازې الله ﷻ ددې حقدار دې چې ټول دهغه فرمانبرداری ئې ا وکړی کله چې دا خبره ثابته ده ] ﴿أَفَغَيْرَ اللّٰهِ تَتَّقُونَ﴾ نو آیا بیا هم دالله ﷻ نه سوا نورو نه ویریږئ ؟ [او د ویرې لائق بل څوك نشته چې ویره ترې او کړې شی دغه شان ددهٔ نه سوا بل څوك نعمت ورکوونکې او ددې جوګه نشته چې امید ترې اوکړې شی نو] ﴿وَمَا بِكُم مِّن نِّعْمَةٍ﴾ تاسو سره چې [قسم ] نعمت هم دې ﴿فَمِنَ اللّٰهِ﴾ هغه ټول هم دالله ﷻ د طرفه دې ﴿ثُمَّ إِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فَإِلَيْهِ تَجْأَرُونَ﴾ بیا کله چې تاسو ته [لږ] تکلیف رسی نو [ دهغې د پوره کولو دپاره] هم هغه [ الله ﷻ ته فریاد کوئ [او څه بت وغیره درته دغه وخت نه رایادیږی ، دغه وخت ستاسو د حال د اقرار نه هم د توحید حقوالې معلومیږی لیکن] ﴿ثُمَّ إِذَا كَشَفَ الضُّرَّ عَنكُمْ﴾ بیا کله چې الله ﷻ ستاسو نه دغه تکلیف لرې کړی ﴿إِذَا فَرِيقٌ مِّنكُم بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُونَ﴾ نو په تاسو کښې یوه ده [ چې هم هغه لویه ډله وی ] خپل رب سره [ دوړاندې پشان] په شرك کولو کښې اخته شی ﴿لِيَكْفُرُوا بِمَا آتَيْنَاهُمْ﴾ چې حاصل دادې چې زمونږ د ورکړی نعمت [ چې تکلیف لرې کول دی] ناشکری کوی [ چې د عقل د مخې هم ناکاره کار دې ] ﴿فَتَمَتَّعُوا﴾ خیر یو څو ورځې عیش اوکړئ [اګورئ ] ﴿فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ﴾ اوس به زر [ مره کیدو سره] خبر شئ [ او یوه ډله ئې څکه اوفرمائیل چې څینې خو ددې په لیدو سره په توحید او ایمان باندې اودریږی لکه الله ﷻ فرمائی چې [فَلَمَّا نَجّٰهُمْ إِلَى الْبَرِّ فَمِنْهُم مُّقْتَصِدٌ] [1] ﴿وَيَجْعَلُونَ لِمَا لَا يَعْلَمُونَ نَصِيبًا مِّمَّا رَزَقْنَاهُمْ﴾ او [ د دوئ یو قسم شرك دا هم دې چې] دا خلق زمونږ د ورکړی شوی څیزونو څینې ددغې [ معبودانو ] حصه ټاکی چې دهغې [ دمعبود کیدو] په باره کښې دوئ ته هیڅ علم [ او دهغې د معبود کیدو

[1] ) ترجمه:- بیا چې کله دوئ ته نجات ورکړو اور اوچې طرفته راشی نو څینې خو په دوی کښې اعتدال سره پاتې شی. (لقمان:۳۲)

څه دليل او سند] نشته [څنګه چې هغه تفصيل دا تمې پارې د دويمې رکوع په آيت وجعلو لله الخ کښې تير شوې دی] ﴿تَاللّٰهِ لَتُسْـَٔلُنَّ عَمَّا كُنْتُمْ تَفْتَرُوْنَ﴾ قسم په الله! تاسو نه به ستاسو ددې تور پورې کولو ضرور تپوس کيږی [په قيامت کښې او ددوئ بل قسم يو شرک دا هم دی چې] ﴿وَيَجْعَلُوْنَ لِلّٰهِ الْبَنٰتِ سُبْحٰنَهٗ وَلَهُمْ مَّا يَشْتَهُوْنَ﴾ الله ﷻ لره لونړه تجويز کوی ، سبحان الله [څنګه بې مطلبه خبره ده] او [علاوه دا چې] خپل ځان دپاره دې زړه پورې څيز [يعنی ځامن خوښوی چې مونږ دپاره دې دا] وی.

| وَاِذَا | بُشِّرَ | اَحَدُهُمْ | بِالْاُنْثٰى | ظَلَّ | وَجْهُهٗ | مُسْوَدًّا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او هر کله چې | زيرې ورکړې شی | يو ددوئ نه | په لور سره | نو وګرځی | مخ دهغه | تک تور |
| حال دا چې کله دوئ کښې چاته دلور زيرې ورکړې شی| نو د هغه مخ تک تور شی | | | | | |

| وَّهُوَ | كَظِيْمٌ | يَتَوَارٰى | مِنَ الْقَوْمِ | مِنْ سُوْٓءِ | مَا |
|---|---|---|---|---|---|
| او حال دا چې هغه | وی ځکونکې دغم | پټ ګرځی هغه | دخلقو نه | دوجې دخراب خبر نه | هغه |
| او هغه غمژن وی| ............ دکومې جينئ چې دهٔ ته زيرې ورکړې شی|دهغې د شرم په وجه د قوم نه | | | | | |

| بُشِّرَ | بِهٖ | اَيُمْسِكُهٗ | عَلٰى هُوْنٍ | اَمْ يَدُسُّهٗ |
|---|---|---|---|---|
| چې زيرې ورکړې شوې دی| | په هغې سره | چې آيا اوساتی دغه لور| | دذلت سره| | يا وربنخه کړی هغه |
| پټ ګرځی| او[سوچ کوی] چې آيا د ذلت سره دا [لور ژوندئ] پريږدی | اوکه ژوندئ ئې په | | | |

| فِى التُّرَابِ | اَلَا | سَآءَ | مَا | يَحْكُمُوْنَ | لِلَّذِيْنَ | لَا يُؤْمِنُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په خاورو کښې | خبردار واورئ | چې بد دې | هغه | چې حکم کوی دوئ | | دهغه کسانو | چې ايمان نه لری |
| خاورو کښې ښخه کړی | ياد ساته چې د دوئ دا فيصله ډيره بده ده | کوم خلق چې په آخرت | | | | | |

| بِالْاٰخِرَةِ | مَثَلُ السَّوْءِ | وَلِلّٰهِ | الْمَثَلُ الْاَعْلٰى | وَهُوَ | الْعَزِيْزُ | الْحَكِيْمُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په آخرت باند | مثال | دبدئ دی| | اوالله لره دی| مثال | او چت | او هغه | غالب دی| او کامل حکمت والا دی |
| ايمان نه راوړی|د هغوئ مثال خراب دی|اود الله شان ډير اوچت دی|او هغه زبردست د صاحب دحکمت دی | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او کله چه په هغوی کښې چا ته د لور (د پيدائش) زيرې ورکړې شی نو د هغه مخ تور اوتخق او د هغه زړه د غم نه ډک وی. دا زيرې بد ګڼړی او د خلقو نه پټيږی، (او سوچ کوی چه) ذلت برداشت کولو سره هغه خپل ځان سره پريږدی، يا که په زمکه کښې ئې ښخه کړی. اوګورئ هغوی څومره بدې فيصلې کړی دی. بدې خبرې خو هم په هغه خلقو کښې دی چه په آخرت باندې ايمان نه لری، او داعلی درجې صفات صرف د الله پاک دپاره دی، او هغه د اقتدار هم مالک دی، د حکمت هم مالک دی.

## د تفسير خلاصه

﴿وَاِذَا بُشِّرَ اَحَدُهُمْ بِالْاُنْثٰى﴾ او کله چې په دوئ کښې چاته د لور [دپيدا کيدو] خبر ورکړې شی [چې الله ﷻ دپاره ئې تجويز کوی] ﴿ظَلَّ وَجْهُهٗ مُسْوَدًّا وَّهُوَ كَظِيْمٌ﴾ نو [دومره خفه شی چې] تول ورځ

دهغه مخ بې رونقه وي او هغه په زړه کښې بغض لري [ او] ﴿يَتَوَارٰى مِنَ الْقَوْمِ مِنْ سُوْٓءِ مَا بُشِّرَ بِهٖ﴾ دکوم څیز چې ده ته خبر ورکړې شوی دې [ یعني دلور د پیدا کیدو] دهغې د شرمه د خلقو نه پټ ګرځي [ او په زړه کښې کرې ریبی چې] ﴿اَيُمْسِكُهٗ عَلٰى هُوْنٍ اَمْ يَدُسُّهٗ فِي التُّرَابِ﴾ آیا هغې [ اوسنئ پیدا شوې لور] لره ذلت سره [یعني د ذلت په حالت کښې ] همداسې پریږدی یا دې لره [ ژوندئ یا مړه کړي] په خاورو ورا ومندي ﴿اَلَا سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ﴾ ښه واورئې د دوئ دا تجویز ډیر خراب دې [ اول الله ﷻ ] لره اولاد ثابتول بیا داسې اولاد چې پخپله هم ترې شرمیږی نو ] ﴿لِلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ مَثَلُ السَّوْءِ﴾ کوم خلق چې په آخرت باندې یقین نه لري د دوئ خراب عادت دې [ پدې دنیا کښې هم چې په داسې ناپوهئ کښې اخته دی او په آخرت کښې هم چې په عذاب او ذلت کښې به اخته وی ] ﴿وَلِلّٰهِ الْمَثَلُ الْاَعْلٰى﴾ الله ﷻ لره خو لوئې د اعلی درجې صفات ثابت دی [ نه هغه شان چې مشرکان ئې بکواس کوی] ﴿وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾ او هغه ډیر زبرست دې [ که چرې دوئ ته په دنیا کښې د شرك سزا ورکول غواړی نو څه ګرانه ده لیکن دې سره] د لوئې حکمت خاوند [هم دې څکه ئې په سزا ورکولو کښې مهلت ورکړې دې چې مرګ نه پس به ئې سزا ورکوی]

## معارف او مسائل

دې آیتونو کښې د عربو دکافرانو د دوؤ کارونو بدی داسې بیان شوېده چې اول خو پخپلې لور پیدا کیدو باندې دومره شرمیږی چې خلقو څخه پټ پټ ګرځی او په دې سوچ کښې پریوزی چې آیا په دې شرم صبر اوکړم او که ژوندئ ئې په خاورو ور اومندم او دې زیات جهالت ته ګورئ چې پخپله کوم اولاد چې ځان دپاره نشی زغملې خو هغسې اولاد الله ﷻ پورې تړی چې فرښتې د الله ﷻ لونړه دی.

د دویم آیت مبارك په آخر کښې فرمائی چې: ﴿اَلَا سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ﴾ په تفسیر بحر محیط کښې د ابن عطیه په حواله دا جمله په دغې دواړو خبرو داسې چسپان کړې شوې ده چې اوله ناکاره خبره ئې داده چې الله ﷻ پورې اولاد تړی دویمه ناکاره خبره ئې داده چې په کوم اولاد پیدا کیدو باندې پخپله شرمیږی هغسې اولاد الله ﷻ پورې تړی.(١)

د دریم آیت مبارك په آخر کښې فرمائی: ﴿وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾ په دې کښې هم اشاره دې خبرې ته ده چې د لور پیدا کیدل مصیبت او ذلت ګنړل اوبیا د خلقونه پټ پټ ګرځیدل د الله ﷻ د حکمت سره مقابله کول دی ، ولې چې په مخلوق کښې د نر او ښځې پیدا کول بعینه دحکمت یو قانون دې . [روح البیان].(٢)

**مسئله** :: دې آیتونو کښې دې خبرې ته په ډاګه اشاره موندې شی چې د زنانه اولاد په پیدا کیدو باندې خان پتهوؤ، مصیبت او ذلت ئې ګنړل د کافرانو کار دې. په تفسیر روح البیان کښې د شرعه په حواله لیکلې شوی دی چې مسلمان لره د خپلې لور په پیدا کیدو باندې زیاته خوشحالی کول څکه پکار دی چې د جاهلیت ددغې عادت او رسم رد اوشی.(٣) یو حدیث پاك

---

(١) تفسیر البحرالمحیط تحت هذه الآیة [ج:٧ ص:٢٥١]

(٢) تفسیر روح البیان (المعروف بتفسیر حقی) هذه الآیة [ج: ٧ ص:٤٣]

(٣) تفسیر روح البیان (المعروف بتفسیر حقی) هذه الآیة [ج: ٧ ص:٤٣]

كښې راغلى دى چې هغه ښځه بركتى وى چې ړومبې اولاد ئې جينئ پيداشى د قرآن عظيم الشان په آيت مبارك : ﴿يَهَبُ لِمَنْ يَشَآءُ اِنَاثًا وَّيَهَبُ لِمَنْ يَشَآءُ الذُّكُوْرَ﴾( [1] ) كښې هم دې ته داشان اشاره موندې شى چې اناث لفظ ئې ړومبې راوړې دې.( [2] )
يو حديث پاك كښې راغلى دى چې د چا ددې جينكو نه ديو جينئ سره واسطه شى او بيا هغه ورسره نيكى او ښېګړه كوى نو هغه جينكئ ددهٔ دپاره د جهنم تر مينځه پرده او ديوال جوړ شى . [روح البيان] .( [3] ) خلاصه داشوه چې د خپلې لور پيدا كيدل بدګڼل د جاهليت يو خراب رسم دې ، مسلمانان دې ترې ځان ساتى بلكه بل طرفته د الله ﷻ په وعده باندې تسلى او خوشحالى دې ښكاره كوى .والله اعلم

| وَلَوْ يُؤَاخِذُ | اللّٰهُ | النَّاسَ | بِظُلْمِهِمْ | مَّا تَرَكَ | عَلَيْهَا | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او كه چرې رانيولې | الله | خلق | په سبب دظلم دهغوئ | نونه به ئې ووُ پرېښې | په مخ دزمكې | |
| او كه چرته الله خلق دهغوى د ظلم په وجه نيولې( [4] ) نو په مخ د زمكې به ئې هيڅ ساه لرونكې نه وو پرېښودې | | | | | | |
| مِنْ دَآبَّةٍ | وَّلٰكِنْ | يُّؤَخِّرُهُمْ | اِلٰٓى اَجَلٍ | مُّسَمًّى | فَاِذَا | جَآءَ |
| يو دساه څيز | وليكن | هغه روستو كوى هغوئ لره | دنيتې | مقررې پورې | نو كله چې | راغله |
| ليكن هغه دوئ ته ترېو مقررې نيتې پورې مهلت وركوى | بيا كله چې ددوئ نيته راشي | | | | | |
| اَجَلُهُمْ | لَا يَسْتَاْخِرُوْنَ | سَاعَةً | وَّلَا يَسْتَقْدِمُوْنَ ۝ | وَيَجْعَلُوْنَ | | |
| نيته دهغوئ | نو نشي روستو كيدې هغوئ | يو ساعت | اونه مخكښې كيدې شي هغوئ | او مقرروى دا خلق | | |
| نو نه به يو ګړئ روستو كيديشي | اونه به وړاندې كيديشي | ............... او [تن] دوئ | | | | |

[1] ) ترجمه:-چاته چې اوغواړى نو لونړه وركړى او چا ته چې اوغواړى نو ځامن ورته وركړى.
[2] ) كنز العمال: رقم الحديث[٤٦٠٤٦]
[3] ) صحيح مسلم كتاب التفسير البر والصلة ، باب فضل الإحسان إلى البنات[ج:٢ص:٣٣٠] و روح البيان حواله بالا.

[4] ) **دالله تعالى مهربانى ده چه په ګناه كولوباندې زر رانيول نه كوى:-** دالله تعالى دَحلم كرم لطف اورحم بيان كولې شى چه دَ بنديګانو ګناه وينى او بيا هم هغوى ته مهلت وركوى كه زر ئى نيول كول نو نن به په زمكه باندې يوكس هم ګرځيدونكې راګرځيدونكې نه ښكاريدو.دانسانانوپه خطاكښې به ځناور هم هلاك شى غنموسره به سپګنى هم وره شى. دَ بدانوسره به ښه خلق هم راګيرشى خوولې الله تعالى سبحانه وتعالى په خپل حلم كرم لطف او رحم سره پردې اچوى معافى كوى. د يو خاص وخت پورې مهلت وركړې دې ګنې چينجى وغيره به هم بچ نه شى. دَ بنيادمو دَ ګناهونو په كثرت سره به دَ الله تعالى عذاب داسې راتلو تول به ئى غرق كول.
حضرت ابوهريره رضي الله عنه واوريده چه يوصاحب فرمائى ظالم هم خپل نقصان كوى هغوى اوفرمائيل چه نه نه بلكه مرغئى دَ هغه دَ ظلم په وجه په خپلو جالوكښې هلاك كيږى.
حضرت ابودرداء رضي الله عنه فرمائى چه مونږ يوځل د حضور ﷺ په وړاندې ځه ذكر كولو چه حضور ﷺ اوفرمائيل الله تعالى يونفس ته وخت نه وركوى دَ عمر زياتوالې په نيك اولاد سره كيږى كوم چِه الله تعالى خپلو بنديګانوته وركوى. بيا دَ دې بچو دعاګانې دَ هغوى قبرونوته رسى هم دا د هغوى د عمر زياتوالې دې.( كتاب المجروحين لابن حبان)

لِلّٰهِ مَا يَكْرَهُوْنَ وَتَصِفُ اَلْسِنَتُهُمُ الْكَذِبَ اَنَّ لَهُمُ

الله لره | هغه چې دوئ ئې نه خوښوي | او بیانوي | ژبې ددوئ | دروغ | چې بیشکه | دې دپاره ددوئ

الله ﷻ ته د هغه لونړو نسبت کوي | چې خپل ځان دپاره ئې نه خوښوي | او ددوئ ژبې دروغ وائي چې ددوئ

الْحُسْنٰى ؕ لَا جَرَمَ اَنَّ لَهُمُ النَّارَ وَاَنَّهُمْ مُّفْرَطُوْنَ ﴿۶۲﴾

ښه انجام | خامخا | بیشکه دې دپاره ددوئ | وور | او بیشکه چې دوئ | مخکښې لیږلې کیدونکي دي

دپاره ښکلې انجام دې | دوئ دپاره بس یو څیز دې چې د دوزخ اور دې | او ددوئ به جهنم ته وړاندې لیږلې شي

تَاللّٰهِ لَقَدْ اَرْسَلْنَاۤ اِلٰۤى اُمَمٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ

قسم په الله | لیږلې دي مونږه رسولان | امتونو ته | مخکښې ستانه | نو ښائسته ښکاره کړل | هغوئ ته شیطان

په الله قسم چې مونږ ستا نه وړاندې هم امتونو ته پیغمبران لیږلي وو | بیا شیطان هغوی ته د هغوی

اَعْمَالَهُمْ فَهُوَ وَلِيُّهُمُ الْيَوْمَ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۶۳﴾

عملونه د هغوئ | نو هغه | دوست ددوئ دې | نن ورځ | او دې دوئ لره | عذاب | دردناك

خراب عملونه ښائسته ښکاره کړل | نو نن هغه د دوئ دوست دې | او ددوئ تولو دپاره دردناک عذاب دې

وَمَاۤ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ اِلَّا لِتُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِى

اونه دې نازل کړې مونږه | په تا باند | داکتاب | مگر | دپاره ددې چې ته حقیقت اوښائې | دوئ ته | هغه

او مونږ تاته دا کتاب صرف د دې دپاره نازل کړې دې | ............چې ته د دوئ اختلافي

اخْتَلَفُوْا فِيْهِ ۙ وَهُدًى وَّرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۶۴﴾

چې اختلاف او کړو دوئ | په هغې کښې | او لارښودنکې دې | او رحمت دې | دپاره دهغه خلقو | چې ایمان راوړي

خبرې دوئ ته په ښه تفصیل سره بیان کړې | او [دا کتاب] د مومنانو دپاره هدایت او رحمت دې

وَاللّٰهُ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ؕ اِنَّ

او الله | نازل کړې | د آسمان نه | اوبه | نو ژوندئ ئې کړه | په هغې سره | زمکه روستو د مرگ دهغې نه | بیشکه

او الله د پورته طرف نه اوبه راوروليې | نو د هغې په ذریعه ئې زمکه د اوچیدو نه پس بیا تروتازه کړه

فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّسْمَعُوْنَ ﴿۶۵﴾ ع

په دې کښې | نښه ده | دپاره دهغه قوم | چې اوري |

په دې کښې هغه خلقو دپاره لویه نخښه ده | چې خبرې ته غوږ نیسي

## آسان ترجمه قرآن

او که الله پاک خلق د هغوی د ظلم د وجې نه (فوراً) نیولي نو د زمکې په سر به ئې هیڅ د ساه والا نه وې پریخودلې، خو هغه هغوی ته د یو مقرر وخته پورې مهلت ورکوي. بیا چه کله د هغوی هغه مقرر وخت

راشي نو هغوی به لږ ساعت هم د هغې نه مخکښې روستو نه شي. او هغوی د الله پاک دپاره هغه څيزونه مقرر کړي دي کوم چه خپله ناخوښه ګڼړي، بيا هم د هغوی ژبې (خپل) د دروغو تعريفونه کوي چه ټوله نيکي د هغوی په حصه کښې ده. لازمي خبره ده چه (داسې روئې په وجه باندې) د هغوی په حصه کښې دوزخ دې، او هغوی به هم په دې کښې ځورځيدلې پريښودلې شي. (اې پيغمبره!) قسم په الله پاک! ستا نه مخکښې چه کوم امتونه تير شوې دي مونږ هغوی ته پيغمبران ليږلې وو. نو شيطان دهغوی اعمال ډولی کولو سره دهغوی مخې ته پيش کړل پس هم هغه (شيطان) نن د هغوی سرپرست جوړ شوې دې او (د دې وجې نه) د هغوی دپاره دردناک عذاب تيار دې. او مونږ په تا باندې دا کتاب د دې دپاره نازل کړې دې چه ته د هغوی مخې ته هغه خبرې صفا صفا بيان کړې چه په هغې کښې هغوی مختلفې لارې خپلې کړې دی، او د دې دپاره چه دا د ايمان راوړونکو دپاره د هدايت او رحمت سامان شي. او الله پاک د اسمان نه اوبه نازلې کړې، او د زمکې د اوچيدو نه پس ئې هغه ژوندئ کړه يقينًا په دې کښې دهغه خلقو دپاره نخښه ده چه څوك خبره اوري.

### د تفسير خلاصه

﴿وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللهُ النَّاسَ بِظُلْمِهِمْ﴾ او که الله ﷻ [ ظالمان] خلق د دوئ د ظلم [ يعنی د کفر اوشرك ] په وجه [ زر په دنيا کښې پوره] رانيولې ﴿مَّا تَرَكَ عَلَيْهَا مِن دَآبَّةٍ﴾ نو په مخ د زمکې باندې به ئې څه حرکت کوونکې نه وې پريښودې [ بلکه ټول به ئې هلاك کړی وو] ﴿وَلَٰكِن يُؤَخِّرُهُمْ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ ليکن [زر رانيول نه کوی بلکه] يوې ټاکلې مودې پورې مهلت ورکوی [ دپاره ددې چې که څوك توبه کول غواړی نو ګنجائش به ئې وی] ﴿فَإِذَا جَآءَ أَجَلُهُمْ لَا يَسْتَأْخِرُونَ سَاعَةً وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ﴾ بيا کله چې د دوئ [دغه] ټاکلې موده [نزدې راؤرسی ] دغه وخت به يو ساعت نه [ خو ددې څخه مخ په شا لرې کيدې شی او نه به مخې ته ور وړاندې کيدې شی [ بلکه زر به سزا ورکولې شی ] ﴿وَيَجْعَلُونَ لِلَّهِ مَا يَكْرَهُونَ﴾ او الله ﷻ دپاره هغه څيزونه تجويز کوی کوم چې پخپله [ خپلو ځانونو دپاره] نه خوښوی [ لکه چې وړاندې داسې بيان شو [وَيَجْعَلُونَ لِلَّهِ الْبَنَاتِ] ﴿وَتَصِفُ أَلْسِنَتُهُمُ الْكَذِبَ أَنَّ لَهُمُ الْحُسْنَىٰ﴾ او [ بيا ] په دې باندې پخپلو ژبو سره په دروغه دعوې کوی چې دوئ [ يعنی مونږ] لره [ که واقعی قيامت راشی ] دهر شان ښيګړه ده [ الله ﷻ فرمائی چې ښيګړه چرته نه راغلې وه بلکه ] ﴿لَا جَرَمَ أَنَّ لَهُمُ النَّارَ﴾ لازمی خبره ده چې دوئ دپاره [ دقيامت په ورځ ] دوزخ دې ﴿وَأَنَّهُم مُّفْرَطُونَ﴾ او بيشکه دغه خلق به [ دوزخ ته ] د ټولو خلقو څخه وړاندې ليږلې شی [ اې محمد ﷺ! تاسو ﷺ د دوئ په کفر او جهالت باندې څه غم مه کوئ ځکه چې ] ﴿تَاللَّهِ لَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلَىٰ أُمَمٍ مِّن قَبْلِكَ﴾ قسم په الله ستاسو [د زمانې] وړومبې چې کوم امتونه تير شويدی هغوئ ته هم مونږ رسولان ليږلی وو [ ځنګه چې تاسو ﷺ مو دوئ ته ليږلی يئ ] ﴿فَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ أَعْمَالَهُمْ﴾ نو [ ځنګه چې دا خلق خپل کفريات خوښوی او په دې ولاړ دی دغه شان] هغوئ ته هم شيطان د هغوئ [ کفری] عملونه ښکلی ښکاره کړل ﴿فَهُوَ وَلِيُّهُمُ الْيَوْمَ﴾ پس دغه [ شيطان] نن [يعنی په دنيا کښې ] د دوئ ملګرې دې [ يعنی ملګرې ئې وو چې دوئ به ئې دهوکه کول نو په دنيا کښې ئې دغه شان زيان اوشو] ﴿وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ او [بيا به قيامت کښې] دوئ دپاره

دردناکه سزا [ مقرره] ده [ غرض دا چې دا روستنی خلق هم د وړاندینو پشان کفر کوی او هم دهغوئ پشان به د دوئ سزا هم وی تاسو ولې غم کوئ ؟ ] ﴿وَمَآ أَنزَلْنَا عَلَيْكَ ٱلْكِتَٰبَ إِلَّا لِتُبَيِّنَ لَهُمُ ٱلَّذِى ٱخْتَلَفُوا۟ فِيهِ﴾ او مونږ په تاسو باندې دا کتاب [ چې نوم یې قرآن عظیم الشان دې ، دې دپاره ندې نازل کړې چې په هدایت باندې د ټولو راتلل ستاسو په ذمه شی چې څوك په کښې په هدایت رانشی نو تاسو ﷺ به پرې غمژن شئ بلکه ] صرف په دې وجه مو نازل کړې دې چې په کومو کارونو [ ددین] کښې خلق اختلاف کوی [ لکه توحید ، آخرت ، اود حلال حرام په حکمونو کښې ] ﴿وَهُدًى وَرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ﴾ تاسو ﷺ [عامو ] خلقو ته ښکاره کړئ [ دافائده خو د قرآن عظیم الشان عامه ده ] او د ایمان دخاوندانو د [ خاص] هدایت او رحمت په غرض [ مو نازل کړې دې نو د الله ﷻ په فضل سره دغه څیزونه حاصل شوی دی] ﴿وَٱللَّهُ أَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً﴾ او الله ﷻ د آسمان څخه اوبه راؤرولې ﴿فَأَحْيَا بِهِ ٱلْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَآ﴾ بیا په دې سره زمکه دهغې د مړ کیدو څخه روستو ژوندئی کړه [ یعنی ددې د ودې ورکولو طاقت ئې بیا په ځائې کړو کوم چې د اوچیدو په وجه کمزورې شوې وو ] ﴿إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَةً لِّقَوْمٍ يَسْمَعُونَ﴾ په دې [ بیا نشوې خبره ] کښې داسې خلقو دپاره [ د توحید او ددې خبرې چې الله ﷻ انعام کوؤنکې دې ] لوئې دلیل دې کوم چې [ د زړهٔ څخه داخبرې ] آؤرې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | وَإِنَّ | لَكُمْ | فِى ٱلْأَنْعَٰمِ |
| | | اوبیشکه | دې ستا سو دپاره | په څناروؤ کښې |
| | | اوتاسو دپاره په څاروؤ کښې | | |
| لَعِبْرَةً | نُّسْقِيكُم | مِّمَّا | فِى بُطُونِهِۦ | مِنۢ بَيْنِ |
| یو عبرت | چې مونږ څکوؤ په تاسو باند | دهغې نه | چې په خیټو دهغوئ کښې دی | دمنځ |
| هم لوئې عبرت پروت دې | مونږ چې د هغوئ په خیټو کښې کومې سوتې او وینه وی د هغې د مینځ نه | | | |
| فَرْثٍ | وَدَمٍ | لَّبَنًا خَالِصًا | سَآئِغًا | لِّلشَّٰرِبِينَ ۝٦٦ |
| دسوتونه | او د وینونه | پئ خالصْ | چې آسان تیرونکې دی | دپاره دڅکونکو |
| درکوو خالص پئ د. کوم چې د څکونکو دپاره صفا او مزیدار وی......... | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او بیشکه ستاسو دپاره په څاروو کښې هم د فکر کولو لوئې سامان دې. او د هغوی په خیټه کښې چه کومه سوټه او وینه ده، د هغې د مینځ نه مونږ تاسو ته داسې صفا پئ د څکلو دپاره درکوو کوم چه د څکلو والا دپاره مزیدار وی.

## دتفسیر خلاصه

﴿وَإِنَّ لَكُمْ فِى ٱلْأَنْعَٰمِ لَعِبْرَةً﴾ او [ داشان] تاسولره په څاروؤ کښې هم غور کول پکار دی [ کورئې] ﴿نُّسْقِيكُم مِّمَّا فِى بُطُونِهِۦ مِنۢ بَيْنِ فَرْثٍ وَدَمٍ لَّبَنًا خَالِصًا سَآئِغًا لِّلشَّٰرِبِينَ﴾ ددې په خیټه کښې چې سوتې او وینه [ یعنی ددې ماده] ده ددې د مینځ څخه [ د پئو ماده چې یوه حصه د وینې ده پس د هضمولو څخه

ئې جدا کړې د تيونو دمزاج نه دديږ رنګ بدل شي هغه] صفا او په مرئ کښې په آسانه ښکته کيدونکي پئ [ جوړ کړې] مونږ او تاسو ته د څکلو دپاره درکوو.

## معارف او مسائل

﴿بُطُوْنِهٖ﴾ کښې ضمير انعام ته راجع دې ، انعام دجمع مؤنث لفظ دې ، دديږ تقاضا داده چې د مؤنث ضمير ورته راجع شوې وې لکه په سورة مؤمنين کښې چې راغلى دى چې ﴿نُسْقِيْكُمْ مِّمَّا فِيْ بُطُوْنِهَا﴾ .([1]) قرطبى دديږ توجيه دا کړې ده چې سورة مؤمنين کښې د جمع د معنى په لحاظ سره ضمير د مؤنث ورته راجع شوې دې او دلته په دجمع د لفظ په لحاظ سره د مذکر ضمير ورته راجع شوې دې ، او د عربو په محاوره کښې دديږ بې شميره مثالونه شته دې چې لفظ دجمع ته ضمير د مذکر مفرد راجع کولې شى .([2])

د سوتې او وينې تر مينځه د صفا پئيو راؤښکلو مطلب عبدالله بن عباس ﷺ دابيان کړې دې چې څاروى چې کومه ګياه خورى کله چې هغه ګياه د څاروو په معده کښې جمع شى نو معده هغه پخوى ، دمعدې دديږ عمل نه پورته پئ شى او لاندې زياتى څيز سوټه وغيره شى . ددغې پيئو دپاسه بيا وينه وى ، بيا قدرت دديږ د ويشتلو کار ځيګر ته سپارى ، هغه چې وينه بيله کړى نو رګونو ته ئې منتقله کړى ، پئ د څاروى تيونو او غولانځې ته منتقل کړى ، اوس په معده کښې صرف هغه زياتى څيز پاتې شى چې د څاروى څخه په روستو لار راوځى .

**مسئله** :: دې آيت مبارك څخه معلومه شوه چې خوندناك او خوږ خوراك كول د زهد څخه خلاف نه دى خو هله چې په حلاله طريقه حاصل شوې وى . اسراف او فضول خرچى په كښې هم نه وى څنګه چې حسن بصرى ﷫ فرمائيلى دى .[قرطبى]([3])

**مسئله** :: نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى چې د خوراك كولو څخه روستو دا دعا كوئى : ﴿اللهم بارك لنا فيه واطعمنا خيرا منه﴾ [ ائې الله ﷻ ! مونږ د پاره په دې كښې بركت واچوې ، او په آئنده كښې راته دديږ څخه ښۀ خوراك راكړې ]

اود پيؤ څكلو څخه روستو ئې دا دعا كول امت ته خودلى دى :

﴿اللهم بارك لنا فيه وزدنا منه﴾ [ ائې الله ﷻ ! په دې كښې مونږ دپاره بركت واچوې او نور زيات راكړې] . دلته ئې دديږ([4]) څخه بهتر سوال كولو ځكه اونه فرمائيل چې په انسانى غذا كښې د پيؤ څخه زياته ښكلې غذا بله ځكه نشته چې قدرت د هر يو انسان او حيوان دپاره ړومبى غذا پئ جوړ كړى دى چې د مور د سينې څخه ورته ملاويږى .[قرطبى]([5])

---

[1] ) ترجمه: مونږ خو دووئ په خيټه چې كوم څيز دې (يعنى پئ) دوئ ته د څكلو دپاره وركوو.

[2] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:١٠ص:١٢٤]

[3] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:١٠ص:١٢٧]

[4] ) سنن ابوداود، كتاب الأشربة ، باب ما يقول إذا شرب اللبن [ج:٢ص:٥٢٤ ]

[5] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:١٠ص:١٢٧]

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمِنْ ثَمَرٰتِ | النَّخِيْلِ | وَالْاَعْنَابِ | تَتَّخِذُوْنَ | مِنْهُ | سَكَرًا |
| او د میوږ | د کجورونه | او د انګورونه | چې جوړوئ تاسو | دهغې نه | دنشې څيزونه |
| او د کهجورو او د انګورو د ميوږ نه تاسو د نشې څيزونه جوړوئ \| اوښه رزق هم | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَّرِزْقًا حَسَنًا | اِنَّ | فِيْ ذٰلِكَ | لَاٰيَةً | لِّقَوْمٍ | يَّعْقِلُوْنَ ۝ | |
| او رزق ښه پاک | بيشكه | په دې كښې | يوه نښه ده | دپاره دهغه خلقو | چې دعقل نه کارخلي | |
| حاصلوئ \| بيشكه په دې كښې د هغه خلقو دپاره نښه ده كوم چې د عقل نه كار اخلي | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او د کهجورو د ميوو او انګورو نه هم (مونږ تاسو ته يو مشروب درکوو) چه د هغې نه تاسو شراب هم جوړوئ، او پاک رزق هم بيشکه په دې کښې هم د هغه خلقو دپاره عبرت دې چه د عقل نه کار اخلي.

## د تفسير خلاصه

﴿وَمِنْ ثَمَرٰتِ النَّخِيْلِ وَالْاَعْنَابِ تَتَّخِذُوْنَ مِنْهُ سَكَرًا وَّرِزْقًا حَسَنًا﴾ او [هم داشان] د کهجورو او انګورو [په حالت کښې غور کول پکار دی چې ددې] د ميوږ څخه تاسو خلق د نشې څيز او د ښکلې خوراک څيزونه [لکه او چې کهجورې [چوارې] کشمش [مميز] شربت او سرکه وغيره] جوړوئ، ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ۝﴾ بيشكه په دې كښې [هم د توحيد او د الله ﷻ د منعم والی] هغې خلقو دپاره لوئې دليل دې چې عقل [سليم] لری.

## معارف او مسائل

تيرو شوؤ آيتونو کښې د الله ﷻ د هغې نعمتونو بيان وو چې انسانی غذا پيدا کولو کښې عجيبه عجيبه کاريګرياني او د قدرت تنداري ترې ښکاريږی په دې کښې ئې اول دپيؤ بيان اوکړو چې قدرت الهی د حيوان او څاروؤ په خيټه کښې د وينې او ګند څخه رابيل کړل او انسان ته ئې ترې صفا ستره غذا ورکړه چې په کښې د انسان د څه نورې کاريګرئ ضرورت نشته څکه ئې دلته لفظ د ﴿نُسْقِيْكُمْ﴾ [مونږ درباندې پيئ او څکول] استعمال کړو.

دې پسې فرمائی چې د کهجورو او انګورو د څهٔ ميوژ څينې هم انسان خپله غذا او د نفع څيزونه جوړ وی. په دې کښې اشاره دې خبرې ته هم ده چې کهجورو او انګورو څخه خپل خوراك اود فائدې د څيزونو په جوړولو کښې د انسان عمل او کاريګرئ له څه دخل شته، نو ددې دخل په نتيجه کښې ترې، د دوه قسمه څيزونه جوړلو بيان اوشو. يو د نشې څيز چې خمر او شراب ورته وئيلې شی. اوبل د رزق حسن بيان اوشو، چې کهجورې او انګور تازه استعمالوئ يا په اوچولو سره ئې ذخيره کوئی.

مقصد دادې چې الله ﷻ په خپل کامل قدرت سره د کهجورو او د انګورو ميوې انسان ته ورکړې اودا اختيار ئې هم ورکړو چې دې څخه د خوراك نور څيزونه هم جوړ کړی اوس د انسان خوښه ده چې نشی واله څيزونه ترې جوړوی او خپل عقل پرې خراب کړی يا د خوراك څيزونه ترې څان له جوړوی چې طاقت پرې بيا مومی.

ددې تفسير مطابق ددې آيت مبارك څخه د نشه دار څيز په حلالولو باندې څه دليل څکه نشی نيوې چې دلته ددې څخه مقصود د قدرت د ورکړې او دهغې د استعمال مختلف صورتونه

بیانول دی چې په هر حال کښې د الله ﷻ نعمت دې لکه نورې غزاګانې اود انسان د نفع څیزونه چې دې لره ډیر خلق په ناجائزو طریقو سره هم استعمالوی ، خو د چا د غلط استعمال په وجه یو نعمت په خپل حالت نعمت پاتې وی ، څکه دلته ددې تفصیل بیانولو ضرورت نشته چې په دې کښې کوم یو استعمال حلال دې اوکوم یو حرام دې. بیا هم په کښې یوه باریکه اشاره داسې موجوده ده چې د سکر په مقابله کښې رزق حسن راوړلو سره دا اوخودل چې سکر ښه رزق نه دې جمهورو مفسرینو[1] د سکر معنی نشه دار څیزونه اخستې ده .[روح المعانی و، قرطبی ، جصاص].([2]) خو د لته د دې اختلاف د نقل کولو ضرورت نشته دې

دا آیتونه مبارك په اتفاق سره مکی دی او د شرابو حراموالې دې څخه روستو په مدینه منوره کښې نازل شوې دې ، ددې آیت مبارك د نازلیدو په وخت اګر چې شراب حرام شوی نه وو خو بیا هم په کښې اشاره دې ته اوشوه چې ددې څکل ښه کار نه دې په ډاګه د شرابو د حراموالی حکم په قرآن عظیم الشان کښې په سختئ سره دې څخه روستو نازل شوې دې ، [دجصاص او قرطبی لنډیز]([3])

| |
|---|
| وَاَوْحٰى رَبُّكَ اِلَى النَّحْلِ اَنِ اتَّخِذِىْ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوْتًا |
| او په زړه کښې واچوله \| رب ستا \| دشاتو مچۍ ته \| چې جوړ کړه \| په غرونو کښې \| کورونه |
| اوستارب د شاتو مچئ ته حکم اوکړو\| چې ته په غرونو کښې کورونو کښې ونو کښې او په |
| وَّمِنَ الشَّجَرِ وَمِمَّا يَعْرِشُوْنَ ۙ ثُمَّ كُلِىْ مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ فَاسْلُكِىْ |
| اوپه ونو کښې\| اوپه هغه کښې\| چې خلق جوړوی \| بیا \| خوره \| دهر قسم میووته \| اوځه |
| هغو اوچتو عمارتونو کښې چې خلق ئې جوړوی کور جوړوه \| بیا د هرقسم میوو نه خوراك کوه |
| سُبُلَ رَبِّكِ ذُلُلًا ۗ يَخْرُجُ مِنْۢ بُطُوْنِهَا شَرَابٌ مُّخْتَلِفٌ |
| په لارو\| درب خپل\| چې آسانې کړی دی الله\| راوځی\| دخیتو ددغې مچونه \| شربت \| چې مختلف وی |
| اود خپل رب په آسانو لاروباندې روانه اوسه \| ددوئ دخیتو نه د څکلو یو څیز[شات] راوځی |
| اَلْوَانُهٗ فِيْهِ شِفَآءٌ لِّلنَّاسِ ۗ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ |
| رنګونه دهغې\| په هغې کښې\| شفاده\| دپاره دخلقو \| بیشکه \| په دې کار کښې \| یوه نښه ده \| دپاره دهغه خلقو |
| چې مختلف رنګونه ئې دی \|په هغې کښې خلقو دپاره شفا ده \|بیشکه په دې کښې سوچ او فکر کونکو |
| يَّتَفَكَّرُوْنَ |
| چې غورفکر کوی\| |
| دپاره نښه ده\| |

[1] بعضې عالمانو ددې معنی سرکه یا بې نشې نبیذ هم کړې ده ، [جصاص وقرطبی ] مګر په دې ځائې کښې ددې اختلاف د نقل کولو ضرورت نشته دې.

[2]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۰ص:۱۲۸]و روح المعانی تحت هذه الآية [ج: ۱۰ ص: ۲۲۳، ۲۲٤]و أحكام القرآن للجصاص باب تحريم الخمر[ج: ۷ص:۲۷۱،۲۷۰]

[3]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۰ص:۱۲۸]

## آسان ترجمه قرآن

او الله پاک د شهدو د مچۍ په زړه کښې دا خبره واچوله چه: ته په غرونو اولو او خلق چه کوم څپروله جوړوی په هغې کښې کور جوړ کړه. بیا د هر قسم میوو نه خپل خوراک حاصل کړه. بیا په هغه لارو باندې ځه کومې چه ستا رب ستا دپاره آسانې کړې دی (دغه شان) د دې مچۍ دخیټې نه د مختلفو رنګونو والا مشروب راوځی چه په هغې کښې د خلقو دپاره شفا ده. یقیناً په دې ټولو خبرو کښې د هغه خلقو دپاره نخښه ده کوم چه سوچ او پوهه لری.

## د تفسیر خلاصه

﴿وَاَوْحٰى رَبُّكَ اِلَى النَّحْلِ اَنِ اتَّخِذِيْ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوْتًا وَّمِنَ الشَّجَرِ وَمِمَّا يَعْرِشُوْنَ﴾ او [ دا خبره هم د غور کولو قابله ده چې ] ستاسو رب د شاتو مچۍ په زړه کښې دا خبره واچوله چې ته په غرونو کښې کور [ یعنی ګبین او ګک وغیره] جوړوه په ونو کښې [ هم] او خلق چې عمارتونه جوړوی په هغې کښې [هم ګبین جوړوه نو په دغې ټولو ځایونو کښې دا ګبین جوړوی ] ﴿ثُمَّ كُلِيْ مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ فَاسْلُكِيْ سُبُلَ رَبِّكِ ذُلُلًا﴾ بیا دهر قسم میوؤ [ چې ته ئې خوښوې راچوپه [څبیښه] بیا [ دچوپلو څخه خپل ګبین ته د واپس راتلو په غرض] د خپل رب په لارو کښې روانه اوسه چې [ تالره د تللو اویاد ساتلو دپاره] آسانې دی [ نو د ډیرې لرې لرې ځایونو څخه هم خپل ګبین ته په آسانۍ سره په دې شان رارسی چې لار هم ترې نه هیریږی او] ﴿يَخْرُجُ مِنْ بُطُوْنِهَا شَرَابٌ مُّخْتَلِفٌ اَلْوَانُهٗ فِيْهِ شِفَآءٌ لِّلنَّاسِ﴾ ددې د خیټو څخه د څکلو یو څیز راوزی [ یعنی شات] چې رنګونه ئې مختلف وی چې په دې کښې خلقو [ یعنی ددوئ د بیمارو] دپاره شفاء ده ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ﴾ په دې کښې [ هم] هغې خلقودپاره [د توحیداودمنعم کیدو] لوئې دلیل دې کوم چې سوچ کوی.

## معارف او مسائل

دلته په ﴿اَوْحٰى﴾ کښې د وحی نه مراد اصطلاحی وحی نه ده ، بلکه په لغوی اعتبار سره ئې معنی داده چې یو متکلم ، مخاطب لره په یوه خبره باندې پټ په پټه په د اسې شان پوهه کړی چې بل هیچا ته ئې څه پته او نه لګی.

﴿النَّحْلِ﴾ د شاتو مچۍ ، په ټولو حیواناتو کښې دعقل هوښیارۍ ، زیرکۍ او د ښکلی انتظام په لحاظ سره یو ځانله حیوان دې ، څکه الله ﷻ په ځانله شان سره مخاطب کړې دې . د نورو ټولو حیواناتو په باره کښې ئې د کلی قانون په طریقه داسې اوفرمائیل چې : ﴿اَعْطٰى كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهٗ ثُمَّ هَدٰى﴾(۱) لیکن ددې وړوکی مخلوق په باره کښې ئې په خاص طور سره داسې اوفرمائیل چې : ﴿وَاَوْحٰى رَبُّكَ اِلَى النَّحْلِ﴾ چې په کښې دې ته اشاره ښکاره کیږی چې په نورو حیواناتو کښې د عقل، شعور او پوهې په لحاظ دا یو خاص امتیازی شان لری.

د شاتو د مچو فهم اوفراست انداز ئې د حکومت د انتظام نه پس ښه شان سره لګیدې شی ولې چې ددې وړوکی مخلوق د ژوند انتظام دانسانی سیاست او حکمرانۍ په اصولو باندې چلیږی ، ټول انتظامی اختیارات یوې غټې مچۍ سره وی چې ددې ملکه بللې شی او هم په دې وجه

---

(۱) ترجمه: ددې پوره آیت ترجمه داده:- موسی (ﷺ) اووئیل چې زمونږ رب هغه ذات دې چې هغه هر یو څیز دهغې په مناسب جوړښت سره جوړ کړو او بیا یې رهنمائی اوفرمائیله.

ددې ټول انتظام صحيح سالم روان وي ، ددې عجيبه انتظام او مضبوط قوانينو او ضابطو په کتلو سره انساني عقل حيران پاتې کيږي دغه ملکه په دريو هفتو کښې د شپږو زرو نه تر دولس زرو په شمير کښې اګۍ اچوي ، دا په هر شان سره د نورو ټولو مچو په نسبت غټ بدن لري ، داخپلو ماتحتو مچو لره په مختلفو کارونو باندې مقرر وي ، ځينې په کښې دروانچياني او څوکيداراني جوړوي ، چې نامعلومه او بهرنۍ مچۍ دننه راتلو ته نه پريږدي . ځينې په کښې د اګو ساتنه کوي ، ځينې په کښې د نابالغو اولاد پالنه کوي ، ځينې په کښې د ګلکارۍ او انجنيرۍ کار کوي ، ددې تيار کړي اکثرو ګبينونو خانې ، عموما د شلو زرو نه تر ديرشو زرو پورې وي . ځينې په کښې موم جمع کوي ، او ګلکارانو ته ئې رسوي چې هغه تر مکانونه جوړوي ، دغه موم دبوټو دپاسه سپين قسم پوډرو نه حاصلولې شي ، دغه څيز په ګنو دپاسه زيات ښکاري ، په دې کښې ځينې په جدا جدا قسم ګلونو او ميوؤ باندې کينى ، دهغې نه رس په خله راکاړي چې په خيټه کښې ئې ترې شات جوړيږي ، چې پخپله ددغې مچو او ددې د بچو خوراکه ده . او هم دا زمونږ ټولو دپاره د خوند او غذا جوهر او د دارو او شفاء نسخه ده ، دا مکلمل پارټۍ په خپيل همت او خوارۍ سره خپلې خپلې ذمه دارۍ تر سره کوي ، او د خپلې ملکې حکم په سر او سترګو منى ، که يو مچۍ په څه ګندګى کينى نو هغه دروانچي او څوکيداره مچۍ ئې دننه تلو نه منع کوي او ملکه ئې بيا وژنى . ددې عجيبه انتظام کتلو سره انسان حيران شي ، [از الجواهر] .

[بُيُوتًا] ﴿وَأَوْحَىٰ رَبُّكَ﴾ نه چې کوم هدايت ورکړې شوې دې د هغه تر مخه دې مچود کورونو جوړولو کښې دا رومبې هدايت دلته دا خبره قابل غور ده چې هر کله د دوئ د شاتو پشان ډير زيات ضروري وو اګر چې هر يو حيوان هم خپلو اوسيدلو دپاره يو قسم له ځائې جوړوي خو هغه دغسې محفوظه نه وي ځکه خو دې ته ﴿بُيُوتًا﴾ يعنى کورونه اوويئلې شو حالانکه د بل هيڅ حيوان ديرې ته بيت او بيوت وئيلې شوی ، دې کښې اشاره دې خبرې ته هم اوشوه چې ددې مچو کورونو د انسانانو د کورونه پشان انتظام لري ، دې کورونو ته چې اوګورئي نو انسان يقينا حيرانيږي ولې چې دغه کورونه مسدس وي که په پرکار باندې ميچ کړې شي نو د ويښته هومره فرق به په کښې بيا نه مونده شي ، مربع او مخمس ځکه نه جوړوي چې په دې کښې ځينې ګوټونه بيکاره کيږي .

الله تعالى ورته ددې کورونو جوړولو ځايونه هم پدې شان او خودل ﴿أَنِ اتَّخِذِي مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا وَمِنَ الشَّجَرِ وَمِمَّا يَعْرِشُونَ﴾ [چې دا کورونه دې په غرونو او ونو او لوړو دنګو آباديانو کښې وی چې شات بالکل په محفوظ طريقې سره جوړ شی ] ولې چې په لوړو ځايونو باندې شاتو ته صفا او چاڼ کړې هوا رس هغه د ګند هوا نه محفوظ پاتې کيږي ، او د ګوذار خوړلو او ماتيدو وغيره نه هم محفوظ پاتې کيږي ، بيا فرمائى چې :

﴿ثُمَّ كُلِي مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ﴾ مچۍ ته دا دويم هدايت دې چې پخپله خوښه او شوق دګلونو اوميوؤ نه رزم [رس] راچوپه ، هغه داسې داسې رزمونه راچوپي چې په سائنسى مشينونونو سره هم دغسې رزمونه نشی حاصليدې .

دلته ﴿مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ﴾ کښې د ﴿كُلِّ﴾ نه د ټولې دنيا ميوې مراد نه دی ، بلکه ټولې هغه ميوې مراد دی چې کومو ته رسيدې شی ، اوددوئ د خوښې وی او مطلب يې حاصل شی څنګه چې

د ملکه سبا به باره کښې د ﴿أُوتِيَتْ مِن كُلِّ شَيْءٍ﴾(۱) نه دا مراد نه دی چې ګنی د ټولې دنيا څيزونه د سبا ملکې ته ورکړې شوی وو بلکه مراد دادی چې ددغه ځائې او ضرورت مناسب ټول څيزونه ورکړې شوی وو.

﴿فَاسْلُكِي سُبُلَ رَبِّكِ ذُلُلًا﴾ مچۍ ته دريم هدايت دا ورکړې شو چې الله ﷻ دې مچۍ ته ددې لارو بندوبست داسې اوکړو چې د خپل کور نه ډير لرې ځايونو پورې د رس چوپلو [څښيلو] دپاره لاړې شی نو په واپسئ کښې بيا هم خپل کور ته ډير په آسانه بې دځه منع کولو نه رارسيدې شی ، ګنی په ظاهره خو داسې معلوميده چې دا وړوکی مخلوق چې په ميلونو لرې خپل کور نه بهر تلې ده بيا خپل کور ته يا خو بالکل راؤنه رسی ، يا به په ډيرو تکليفونو او خوارو سره راؤرسی ، ليکن الله ﷻ ورته د هوا لارې داسې آسانې کړی دی چې بغير د څه مشکل او بنديز نه خپل کور ته ډير په آسانه رارسيدې شی ګنی د زمکې لارې خو ډيرې کږې وږې او مشکلې وی چې قسماقسم بنديزونه او مشکلات په کښې وی.

دې پسې ددې وحی او حکم کولو اصلی ثمره او نتيجه الله ﷻ داسې بيانوی چې:

﴿يَخْرُجُ مِن بُطُونِهَا شَرَابٌ مُّخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ فِيهِ شِفَاءٌ لِّلنَّاسِ﴾ [يعنی ددې د خيټو نه په مختلفو رنګونو کښې د څکلو څيز راؤزی چې په هغه کښې ستاسو دپاره شفاء ده ] د شاتو رنګونه ځکه مختلف وی چې دموسمونو بدل بدل اثر په کښې وی يا ددې خوراکونه مختلف وی ، دا معلومه خبره ده چې د شاتو خوند او رنګ هغې ميوؤ او ګلونو پسې ځی چرته چې دغه ميوې او ګلونه زيات وی.

شاتو ته ئې د څکلو څيز ځکه اوئيلو چې دا نرم او بهيدونکې وی ، پدې جمله کښې هم د الله ﷻ د وحدانيت او کامل قدرت پرې کړې دليل موجود دې چې د وړوکو ځناورو د خيټې نه څنګه فائده مند او خوند ناک څيز دڅکلو راؤزی . حالانکه دغه ځناور پخپله د زهرو نه ډک وی ، چې زهرو نه ترياق راؤځی نو واقعی چې دا د الله ﷻ د عجيبه قدرت يو عجيبه مثال دې ، بيا دقدرت دا هم يوه عجيبه کاريګری ده چې د ځاروو پئ د خوند او رنګ په حيثيت هغې ګياه او خوراکې پسې نه ځی چې ددغه ځائې ځاروی ئې خوری چې سور او زيړ رنګ وی او د مچو شات مختلف رنګونه وی.

﴿فِيهِ شِفَاءٌ لِّلنَّاسِ﴾ شات يو خوا طاقت پيدا کوؤنکی او خوندناک خوراک دې ، بل خوا بيمارئ نه د رغيدو يوه نسخه هم ده ځکه چې دا د الله ﷻ په يو لطيف ، ګرځيدنده مشين جوړيږی. کوم چې د هر قسم ګلونو او ميوؤ نه عرق او پاکيزه جوهر راکاږی او پخپلو محفوظو کورونو کښې ئې ذخيره کوی ، که په ونو بوټو کښې د شفا او دوايئ سامان شته نو د هغې په جوهر کښې به ولې نه وی ؟ په بلغمی ناروغتياګانو کښې نيغ په نيغه ا وپه نورو مروضونو کښې نورو څيزونو سره په يو ځائې کولو سره د دارو په طور ، شات استعمالولې شئ ، حکيمان ئې په خصوصی توګه په معجونو کښې ځکه استعمالوی چې دا پخپله هم نه خرابيږی او د نورو څيزونو هم ډير وخته حفاظت کوی ، هم دغه وجه ده چې زرګونه کلونو راسې د الکحل په ځائې استعمالولې شی ، شات د ستونه راولی او خيټې نه د خرابو مادو په اوبڅلو کښې ډير فائده مند دی ، يو ځل رسول کريم ﷺ ته يو صحابی ﷺ د خپل رور د ناجوړتيا حال بيان

---

۱) ترجمه:- او هغه ته مو هر قسمه سامان ورکړو.

کړو رسول کریم ﷺ ورته د شاتو خوړلو مشوره ورکړه ، بله ورځ بیا راغلو او عرض ئې اوکړو چې ناروغتیا ئې هم هغسې ده . رسول کریم ﷺ ورته بیا د شاتو خوړولو مشوره ورکړه . په دریمه ورځ بې چې بیا هم هغسې خبره اوکړه نو ورته ئې اوفرمائیل چې ﴿صدق الله وكذب بطن اخيك﴾ [بیشکه د الله تعالی قول رښتیا دې او ستا د رور خیټه دروغژنه ده ][1] مراد ئې دا وو چې د دارو قصور نه دې د مریض د خاص مزا په وجه ئې اثر زر ښکاره نه شو ، دې نه پس چې بیا دغه رنځور ته ئې شات ورکړل نو هغه ښه شو.

قرآن عظیم الشان کښې د اثبات لاندې ﴿شِفَآءٌ﴾ نکره داسې راوړې شوه چې وې فرمائیل :﴿فِيْهِ شِفَآءٌ لِّلنَّاسِ﴾ دې نه خو دا نه معلومیږی چې شات د هر مرض دپاره شفا ده ، لیکن د شفاء دتوین نه معلومیږی چې په شاتو کښې عظیمه او د امتیازی شان شفاء ده ، ولې چې دلته تنوین تعظیم دپاره کیدې شی ، خو سره ددې ځینې اهل دل بزرگان شاتو ره د هر مرض شفا گڼړی ، او د الله ﷻ ددې قول په ظاهره باندې ئې هم دومره لوئې یقین او مضبوطه عقیده ده چې هغوئ د ځوَ کلئ [دانې] او سترګو علاج په شاتو سره کوی بلکه دبدن د ټولو مرضونو علاج هم په شاتوت سره کوی ، د ابن عمر ﷺ باره کښې روایتونو کښې راغلی دی چې که دهغوئ ﷺ په بدن باندې به دانه او ځوکئ راښکاره شوه نو د شاتو په پټئ کولو سره به ئې د هغې علاج کولو ، ځینې خلقو ترې ددې دوجې تپوس اوکړو نو وې فرمائیل چې آیا الله ﷻ په قرآن عظیم الشان کښې داسې نه دی فرمائی چې :﴿فِيْهِ شِفَآءٌ لِّلنَّاسِ﴾ [قرطبی] .[2]

دحدیث قدسی [انا عند ظن عبدی بی] زه خپل بنده ته د هغه د ګمان مطابق وررسیږم ، مطابق الله ﷻ د خپل بنده د عقیدې په جوړ هغه ته وررسی.

﴿اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰیَةً لِّقَوْمٍ یَّتَفَكَّرُوْنَ﴾ الله ﷻ دخپل کامل قدرت تیر شوی مثالونه بیان کړل دهغه نه پس بې انسان ته په دې باندې د غور فکر کولو دعوت ورکړې دې لکه وې فرمائیل چې ، الله ﷻ په باران وررسولو سره مړهٔ زمکه ژوندئی کوی ، هغه د ګندګئ په مینځ کښې تاسو دپاره د صفا اوپاکیزه پیؤنالئ جاری کوی ، هغه د کهجورو په ونو کښې تاسو دپاره خوږې میوې پیدا کوی چې تاسو ترې نه خوندناک شربتونه او مزیدارې مربې وغیره جوړوئ ، هغه د یو وړوکې ساه دار په ذریعه ، تاسو دپاره د خوراک خوند ، غذا او شفاء ډیر غوره سامان تیاروی ، نو آیا بیا هم تاسو بغیر د الله ﷻ نه نور خدایان بلئ ؟ آیا اوس هم ستاسو عبادت او وفاء دخپل خالق او مالک په ځائې دلرګو او بې ساه بتانو دپاره بهٔ وی ؟ ښه پوهه شئ آیا اوس هم تاسو د عقل نه کار اخستې شئ چې دا ټول هر څه د ړندې ، کڼړې او بې شعوره مادې کار ګذاری کیدې شی ؟ د صنعت او کاریګرئ دا بې شمیره کارونه د حکمت او تدبیر دا حیرانوؤنکې کارنامې دعقل او پوهې دا بهترین فیصلې په خپلې ژبې سره په چغو لګیا دی ، چې زمونږ هم یو خالق شته، بې مثله او دحکمت خاوند خالق هم هغه د عبادت او وفا مستحق دې هم هغه مشکل کشا دې او هم هغه د شکر او ثناء صفت حقدار دې.

---

[1] صحیح البخاری کتاب الطب ،باب الدواء بالعسل [ج:۲ص:۸٤۸]
[2] تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة[ ج:۱۰ص:۱۳٦]

**فوائد** :: ① د آیت مبارک نه معلومه شوه چې سوا د انسان نه په نورو ساداړو کښې هم عقل اوشعور شته ، لکه الله ﷻ فرمائي چې : ﴿وَإِن مِّن شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ﴾ [1] البته د عقل درجې مختلفې دی ، د انسانانو عقل د ټولو ژوندو ځیزونو د عقلونو نه زیات کامل دې ، ځکه په شرعي حکمونو باندې مکلف دې ، هم دغه وجه ده چې که چرې د لیونتوب په وجه د انسان په عقل کښې څه فتور راځي نو د نورو مخلوقاتو پشان نه دې مکلف پاتې شي.

② د شاتوی د مچۍ یو خصوصیت دا هم دې چې ددې فضیلت په حدیث پاک کښې داسې بیان شوېدې :

﴿الذبان کلها في النار یجعلها عذابا لاهل النار الا النحل﴾ [ دنورو ضررې ځناورو پشان به هر قسم مچان په جهنم کښې وی چرته به چې دا په جهنمیانو باندې د عذاب په طور مسلط کولې شی خو د شاتو مچۍ به په جهنم کښې نه وی] [نوادر الاصول بحواله قرطبی] [2]

د غه شان په یو حدیث پاک کښې ددې وژل هم منع کړې شوی دی [ابو داؤد]. [3]

ځینې حکیمان او طبیبان شات د مچۍ فضله او ځینې ئې د خلې لعاب بولی ، ارسطاطالس یو ځل د شیشې یو ښکلې ګبین جوړ کړوو او مچۍ ئې په هغې کښې بندې کړې ، ولې چې هغه د مچو په کارکردګۍ باندې ځان پوهول غوښتل . لیکن دغه مچۍ دننه د ټولو نه مخکې په هغې شیشه باندې خټه اوموموم وراوتپل او ترڅو چې پوره بنه شوې نه وه تر هغې ئې خپل کار شروع نه کړو.

③ علی رضی الله عنه ددنیا د سپکوالی یو مثال داسې ورکړې دې :

﴿اشرف لباس بنی آدم فیه لعاب دودة واشرف شرابه رجیع نخلة﴾ [4] [ په دنیا کښې د ټولو نه اعلی لباس د انسان د یو چینجی دخلې لاړې دی او ددۀ ډیر ښۀ څکاک د مچۍ فضله دی].

④ ﴿فِيهِ شِفَاءٌ لِّلنَّاسِ﴾ نه دا هم معلوم شو چې په دارو سره د مرض علاج کول روا دی ځکه چې الله ﷻ دې لره د انعام په طور بیان کړی دی ، بل ځائې کښې قرآن عظیم الشان فرمائي چې : ﴿وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْآنِ مَا هُوَ شِفَاءٌ وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِينَ﴾. [5]

حدیث پاک کښې د دارو د استعمال او دعلاج کولو شوق پیدا کړې شوې دې ، رسول کریم ﷺ نه یو ځل چا سوال اوکړو چې آیا مونږه دارو استعمالوؤ؟ وې فرمائیل چې ولې نه علاج کوئی ولې چې الله ﷻ کوم مرض پیدا کړې دې هغه دپاره ئې دارو هم پیدا کړی دی ، خو د یو مرض علاج نشته . هغوئ سوال اوکړو چې هغه کوم مرض دې ؟ رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې بوډا توب ، [ابوداؤد ترمذی بحواله قرطبی] [6]

---

[1] ) ترجمه:- او هیڅ یو څیز داسې نشته چې هغه دهغه ذات پاکی ، تعریف نه بیانوی.
[2] ) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة [ج:۱۰ص:۱۳٤] ومصنف عبدالرزاق رقم الحدیث[۸٤۱۷]
[3] ) سنن ابوداود، کتاب الأدب ، باب فی قتل الذر [ج:۲ص:۳۵۸ ]
[4] ) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة [ج:۱۰ص:۱۳۵]
[5] ) ددې پوره آیت ترجمه داده: او مونږ داسې څیز یعنی قرآن نازلوؤ چې د ایماندارو په حق کښې شفا او رحمت دې او دې سره الټا ظالمانو ته نقصان رسی.
[6] ) سنن ابوداود، کتاب االطب ، باب الرجل یتداوی [ج:۲ص:۵۳۹ ]و جامع الترمذی ، ابواب الطب باب ماجاء فی الدواء والحث علیه [ج:۲ ص:۲٤]

خزیمه رضي الله عنه نه هم یو روایت دی هغوئ رضي الله عنه فرمائي چې یو ځل ما د رسول کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چې مونږ د دم کوم عمل چې کوؤ یا په دوایئ سره خپل علاج کوؤ ، دغه شان د خپل ځان ساتلو دپاره او حفاظت دپاره چې کوم انتظامات کوؤ ، آیا دا انتظامونه د الله ﷻ تقدیر بدلولې شی ؟ رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې دا هم د الله ﷻ د تقدیر صورتونه دی .(١)

غرض دا چې د علاج کولو او د دارو د استعمالولو په روا والی باندې ټول علماء اتفاق لری او په دې سلسله کښې بې شمیره احادیث او آثار وارد شوی دی ، د ابن عمر رضي الله عنه په اولاد کښې به چې څوک لړم اوچیچل نو تریاق به ئې پرې څکول ، او په دم به ئې دهغې علاج کولو هغوئ د لقوې مرض ته د علاج په طور داغ ورکړو. [قرطبی].(٢)

د ځینې صوفیاء کرامو باره کښې نقل شوی دی چې هغوئ به علاج نه خوښولو او د ځینې صحابه کرامو رضي الله عنهم د عمل نه هم دا ښکاری . لکه روایت دې چې ابن مسعود رضي الله عنه بیمار شو ، عثمان غنی رضي الله عنه د هغوئ تپوس ته ورغلل او تپوس ئې ترې اوکړو چې تاسو ته څه شکایت دې ؟ هغوئ رضي الله عنه ورته جواب کښې اوفرمائیل چې د خپلو ګناهونو فکر راسره دې ، عثمان رضي الله عنه اوفرمائیل چې بیا د څه خواهش لرې ؟ وې فرمائیل چې زه دخپل رب د رحمت طالب یم . عثمان غنی رضي الله عنه ورته اوفرمائیل چې که ستاسو خوښه وی چې زه یو طبیب راؤغواړم .هغوئ رضي الله عنه اوفرمائیل چې طبیب خو زه څملولې یم [دلته د طبیب نه مجازی طور سره الله ﷻ مراد دې].(٣) خو داسې واقعات ددې خبرې دلیل نه جوړیږی چې دغې صاحبانو به علاج بد ګڼړلو ، کیدې شی چې د هغوئ طبیعت نه منلو ځکه ئې نه خوښولو ، دا یو وختی ډول د حال دغلبې یو کیفیت وی چې دعلاج د ناجائز یا مکروه والی دلیل نشی جوړیدې ، د عثمان رضي الله عنه ابن مسعود رضي الله عنه ته دا وئیل چې طبیب تاسو دپاره راغواړم ، پخپله ددې خبرې دلیل دې چې علاج جائز دې ، بلکه په ځینې صورتونو کښې دا واجب هم ګرځی .

| وَاللّٰهُ | خَلَقَكُمْ | ثُمَّ | يَتَوَفّٰىكُمْ ۙ | وَمِنْكُمْ | مَّنْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوالله | پیدا کړئ تاسو | بیا | مرګ راولی تاسو له | اوځینی ستاسو نه | هغه څوک دی |

اوالله ﷻ تاسو پیدا کړئ ئې | بیا به مو وفات کوی | اوپه تاسو کښې ځینې

| يُّرَدُّ | اِلٰٓى اَرْذَلِ الْعُمُرِ | لِكَيْ لَا | يَعْلَمَ | بَعْدَ عِلْمٍ | شَيْـًٔا ؕ |
|---|---|---|---|---|---|
| چی واپس رسولې کیږی | ناکاره عمرته | دپاره ددې | چی پوهه نه شی | روستو دعلم نه | په څه څیز |

ناکاره عمر [سخت بوډاوالی] ته رسولې شی | چې د پوهې نه پس بیا سره دوباره په څه نه پوهه نشی

| اِنَّ اللّٰهَ | عَلِيْمٌ | قَدِيْرٌ ۝ ع |
|---|---|---|
| بیشکه الله | ښه پوهه دې | ښه قادر دې |

بیشکه الله ﷻ په هرڅه عالم او د قدرت خاوند دې |

---

١) جامع الترمذی ، ابواب الطب باب ماجا فی الرقی والأدوية [ج:٢ ص:٢٧]

٢) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة [ج:١٠ص:١٣٩]

٣) شعب الإیمان للبیهقی رقم الحدیث [٢٣٩٥]

## اسان ترجمه قرآن

او الله پاک تاسو پيدا کړي يئ، بيا هغه ستاسو روح قبض کوي. او په تاسو کښې بعض داسې وي کوم چه د عمر د تولو نه ناکاره حصې ته رسولې شي چه هغې ته رسيدو نه پس هغه په هر څه پاندې د پوهيدو نه پس هم په څه نه پوهيږي بيشکه الله پاک د ډير علم والا او لوئې قدرت والا دې.

## د تفسیر خلاصه

﴿وَاللّٰهُ خَلَقَكُمْ ثُمَّ يَتَوَفّٰىكُمْ﴾ او [ پخپل حالت باندې هم غور کول پکار دی چې ] الله ﷻ تاسو [ اول، پيدا کړئ بيا [ د عمر په ختميدو ] ستاسو روح قبض کوي [ چې په کښې خيني داسې حالت کښې مړۀ شی چې لاسونه پښې او حواس ئې کار کوي ] ﴿وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّرَدُّ اِلٰٓى اَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْ لَا يَعْلَمَ بَعْدَ عِلْمٍ شَيْئًا﴾ او خينې په تاسو کښې هغه دی چې بيکاره عمر ته رسولې شي [ چې د بدن طاقت ئې هم ختم شوې وی ، عقلي طاقت ئې هم کمزورې شوې وی ] دهغې اثر داوی چې د يو څيز په خبريدو سره بيا بې خبره شی [ څنګه چې داسې يوډاګان ليدلې شوی دی چې يوخبره ورته اوشی هغه زر تر زره هيره کړی او بيا دهغې تپوسونه کوی] ﴿اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ قَدِيْرٌ﴾ بيشکه الله ﷻ د لوئې علم قدرت خاوند دې [ په علم سره هر يو مصلحت او نښيګړه پيژنی او قدرت سره ئې هم هغه شان کوی څکه ئې د ژوند او وفات حالتونه مختلف کړل نو دا هم د توحيد دليل دې ]

## معارف او مسائل

دې ځخه وړاندې الله ﷻ د اوبو ، ونو ، بوټو ، څاروؤ او د شاتو دمچۍ مختلف حالتونه بيان کړل او انسان ئې پخپل کامل قدرت او مخلوق لره يې پخپلو انعاماتو خبرداره کړو اوس پدې آيتونو کښې انسان ته پخپلو اندرونی حالتونو باندې د غورو فکر کولو بلنه ورکوی چې انسان هيڅ نه وو ، الله ﷻ هغه شته کړو بيا ئې په مرګ راوستو سره ترې دغه نعمت واخستو او خينې خو د مرګ څخه وړاندې د بوډا توب داسې درجې ته رسوی چې هوش او حواس ئې په ځائې نه وی پاتې شوی . د لاسونو پښو طاقت ئې ختم شی ، په څه خبره نشی پوهيدې او په يوه خبره چې پوهه کړې شی هغه ياده نشی لرلې . دا اندرونی بدلون راوستل په دې دلالت کوی چې علم او قدرت هم د هغې ذات په خزانه دې کوم چې خالق او مالك دې .

﴿وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّرَدُّ﴾ د ﴿يُرَدُّ﴾ لفظ څخه دې ته اشاره موندې شی چې په انسان باندې د ضعف او کمزورئ يو حالت وړاندې هم تير شوې دې اودا دهغه د ماشومتوب ابتدائی حالت کښې وو کله چې په څه شد بد کښې نه وو ، طاقتونه ئې بالکل کمزوری او بېکاره وو ، خپلې لوږې تندې لرې کولو او پخپله ناسته پاسته کښې د نورو محتاج وو ، بيا ورته الله ﷻ ځوانی اوبخښله چې دا دده د ترقئ زمانه ده بيا په دمه دمه د بوډا توب هغه زمانې ته ئې اورسوی چې بالکل هم هغې مخکښنئ کمزورتيا ، بې وسئ او بې کارتيا ته بيرته راؤګرځولې شی کومه چې په ماشومتوب کښې وه.

﴿اَرْذَلِ الْعُمُرِ﴾ دې څخه مراد د بوډا توب هغه عمر دې چې په کښې د انسان ټول بدنی او دماغی قوتونه کډوډ اونقصانی شی،نبی کريم ﷺ به ددې عمر څخه پناه غوښتله لکه فرمائی:

﴿اللهم انی اعوذبك من سوء العمر(¹) وفی روایة من ان اردالی ارذل العمر﴾(²) [یا الله ﷻ ! زه ستا پناه غواړم د خراب عمر څخه او په یو روایت کښې راغلی دی چې پناه غواړم د زیات ذلیل عمر څخه]. او د ﴿اَرْذَلِ الْعُمُرِ﴾ څه ټاکلې تعریف نشته البته هغه تعریف ئې غوره معلومیږی کوم چې قرآن عظیم الشان داسې اشاره کړې ده چې:

﴿لِكَيْلَا يَعْلَمَ بَعْدَ عِلْمٍ شَيْـًٔا﴾ دې عمر کښې عقل او بدنی اندامونه جواب ورکړی ، په نتیجه کښې ټول معلومات هیر شی.

﴿اَرْذَلِ الْعُمُرِ﴾ کښې نور هم اقوال شته دي. ځینې علماء کرامو اتیا کاله بللي دي ، ځینې څلورنیم شلې [۹۰] کاله او د علی رضی الله عنه نه پنځه اویا کاله منقول دی [صحیحین په حواله د مظهری] (³)

﴿لِكَيْلَا يَعْلَمَ بَعْدَ عِلْمٍ شَيْـًٔا﴾ د بوډاتوب آخری حد ته په رسیدو سره د انسان بدنی طاقت ختم شی دعقلی طاقت ئې دا حال وی چې یاده کړې خبره ترې هیره شی ، د یو داسې ماشوم په شان شی چې هیڅ علم او خبر نه لری ، پوهه ، فکر او هوښیارتیا ئې بیکاره شی ، عکرمه رضی الله عنه فرمائیلی دی چې د قرآن عظیم الشان لوستونکی به داحال نه کیږی.

﴿اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ قَدِيْرٌ﴾ [بیشکه الله ﷻ دلوئې علم ، لوئې قدرت خاوند دې] په علم سره د هر بنده عمر پیژنی او په قدرت سره دخپلې خوښې کارونه کوی ، که ئې خوښه شی نو یو طاقتور ځوان باندې ددغې بیکاره عمر نخښې ښکاره کړی او که اوغواړی نو د سلو کالو دعمر انسان هم د طاقتور ځوان پشان لری ، دا ټول هر څه د هغه ذات په قدرت کښې دی چې شریك نه لری.

| |
|---|
| وَاللّٰهُ فَضَّلَ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ |
| او الله \| فضلیت ورکړې دې \| ځینی ستاسو ته \| په ځینو باند |
| او الله ﷻ تاسو ته په یو بل په روزئ کښې |
| فِى الرِّزْقِ ۚ فَمَا الَّذِيْنَ فُضِّلُوْا بِرَآدِّىْ رِزْقِهِمْ |
| په رزق کښې \| نو نهٔ دی هغه کسان \| چې فضیلت ورکړې شوې دې \| ورکونکی \| درزق خپل |
| برتری درکړې ده \| نو چاته چې دا فضیلت ورکړې شوې دې \| هغوئ داسې نه کوی چې |
| عَلٰى مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَهُمْ فِيْهِ سَوَآءٌ ؕ |
| هغه چاته \| چې مالکان شوی دی \| ښئ لاسونه دهغوئ \| چې هغوئ \| په هغه رزق کښې \| برابر شی |
| د خپلې برخې مال خپلو مریانو ته ورکړی \| چې ټول په دې اعتبار سره برابر شی |
| اَفَبِنِعْمَةِ اللّٰهِ يَجْحَدُوْنَ ۝ |
| آیا نو په نعمت دالله باند \| دا خلق انکار کوی \| |
| نو آیا دوئ د الله ﷻ د نعمت نه انکار کوی \| |

(¹) سنن النسائی کتاب الإستعاذة من سوء العمر [ج: ۲ ص: ۳۱۷]
(²) صحیح البخاری کتاب الدعوات ، باب الإستعاذة من ارزل العمر إلخ [ج: ۲ ص: ۹۴۳]
(³) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة [ج: ۵ ص: ۳۵۵]

## آسان ترجمه قرآن

او الله پاک په تاسو کښې څه خلقو ته د رزق په معامله کښې برتري ورکړې ده. نو چه کومو خلقو ته برتري ورکړې شوې ده، هغوی خپل رزق د خپلو غلامانو طرف ته نه واپس کوی چه هغوی ټول برابر شي نو آیا دا خلق د الله پاک د نعمت انکار کوی؟

## د تفسير خلاصه

﴿وَاللّٰهُ فَضَّلَ بَعۡضَكُمۡ عَلٰى بَعۡضٍ فِى الرِّزۡقِ﴾ او [ د توحید ثابتولو سره د شرك خرابی دهغې معاملې په بیان کښې واؤرئی چې ستاسو ترمینځه وی هغه داسې چې] الله ﷻ په تاسو کښې ځینو لره په ځینو باندې روزئ [ یعنی د روزئ په باره کښې ] بهتري ورکړې ده [ لکه څوك ئې مالدار او د غلامانو مالکان جوړ کړل چې د هغوئ دلاسه دغې غلامانو ته ئې هم روزی رسې او څوك ئې غلام جوړ کړو چې ورته هم د مالك دلاسه روزی رسی او څوك ئې دومره مالدار هم جوړ نه کړل چې نورو غلامانو ته ورکړی ، نه ئې غلامان جوړکړل چې دمالك لاس ته ناست وی ] ﴿فَمَا الَّذِيۡنَ فُضِّلُوۡا بِرَآدِّىۡ رِزۡقِهِمۡ عَلٰى مَا مَلَكَتۡ اَيۡمَانُهُمۡ﴾ نو کومو خلقو ته چې [ په روزئی کښې خاص] بهتري ورکړې شوې ده [ چې ورسره مال هم شته او غلامان ئې هم شته] دغه [خلق] خپله حصه مال خپلو غلامانو ته په دې شان کله هم ورکوونکې نه وی ﴿فَهُمۡ فِيۡهِ سَوَآءٌ﴾ چې هغوئ [ مالکان او غلامان ټول په دې کښې سره يو شان شی [ که غلام ته خپل مال ورکړی نو مال به بیا هم د غلام نشی بلکه هم دمالك به ئې وی او که آزادولو نه پس ورکړی نو يو شان كيدې خو شی خو هغه به غلام نه وی پاتې شوې ولې چې آزاد شوې دې ، نو غلامی او مساوات يو شان كيدلې نشی دغه شان دا بتان وغیره د مشرکانو د اقرار په جوړ هر کله چې د الله ﷻ ملك دی نو بیا څنګه الله ﷻ سره يو شان کيدې شی ، په دې کښې د شرك انتهائی خرابی بیانول دی چې کله ستاسو غلامان ستاسو په روزئ کښې تاسو سره شريك نشی جوړيدې نو د الله ﷻ مملوك يعنی غلامان هغه سره څنګه په خدايئ کښې شریکیدې شی ] ﴿اَفَبِنِعۡمَةِ اللّٰهِ يَجۡحَدُوۡنَ﴾ آيا [ د دې مضمونونو په آؤریدو] بیا هم [ الله ﷻ سره شرك كوی چې عقلا ترې دا لازميږی چې ] د الله ﷻ د نعمت [ يعنی د الله ﷻ د نعمت ورکولو] نه انکار کوی.

## معارف او مسائل

دې نه اول تیر شوؤ آیتونو کښې الله ﷻ د خپل علم او قدرت اهمې ننداري او په انسان باندې د کړو نعمتونو بيان کړ يدې ، او په دې شان ئې د خپل توحيد فطری دليلونه بيان کړی دی ، هغې ته په کتلو سره د معمولی عقل فکر خاوند هم د الله تعالى څه مخلوق لره الله ﷻ سره د هغه د علم او قدرت وغيره په صفتونو كښې شريک نشی منلې ، دې آيت مبارک کښې د توحيد دامضمون د يو داسې معاملې په مثال سره واضح کړې شوې دې چې د دوؤ کسانو تر مینځه وی ، لکه فرمائی چې الله ﷻ پخپل حکمت بالغه سره د انسانی ښیګړو په خاطر په روزئ کښې ټول انسانان برابر کړی نه دی ، بلکه ځینې ئې د ځیو نه پورته کړی دی ، او ددې مختلفې درجې ئې جوړې کړې دی ، څوک ئې په دې شان مالدار جوړ کړې دې چې د سازوسامان مالک دې ، او خادمان نوکران او غلامان ئې شته دې . هغه پخپله هم پخپله خوښه خرڅ کوی ، او په غلامانو ، خدمتګارو ، نوکرانو باندې هم خپل مال خرچ کوی ، څوک

ئې غلامان او خدمګاران جوړ کړي دي چې په بل چا باندې به څه خرچ کړي بلکه چې په ده باندې نور خلق خرچ کوي . څوک ئې داسې درمیانه حال جوړ کړي دي چې نه دومره مالداره وی چې په بل باندې خرچ اوکړي ، نه دومره غریب اومحتاج وی چې خپلو ضرورتونو دپاره ئې هم بل ته لاس نیولې وی .

دا قدرتي تقسیم د ټولو په وړاندې دې یعنی مالداره خلق داسې هیچرې نه کوي چې خپل غلامان او خدمتګاران په مالدارئ کښې ځان سره یو شان کړی .

اوس په دې مثال باندې ځان پوهه کړئې چې هر کله مشرکان هم د امنی چې دا بتان او هغه مخلوق چې دوئ ئې عبادت کوي ، ټول د الله ﷻ مخلوق او مملوک دي نو دوئ څنګه دا تجویز کوي چې دغه مخلوق اومملوک دې خپل خالق او مالک سره برابر شی ؟آیا دا ټول خلق ددې ټولو نخښو په لیدو او ددې مضمونونو په آوریدو ، بیا هم الله ﷻ سره چالره شریک او برابر ګرځوي ؟ ددې لازمی نتیجه دا راخیژی چې د الله ﷻ د نعمتونو انکار کوي . ولې چې که دوئ دا اقرار کولې چې دا ټول نعمتونه صرف الله ﷻ ورکړی دی په دې کښې ددوئ د جوړ کړی بت یا دیو انسان یا د پیری هیڅ دخل نشته نو دا څیزونه به ئې د الله ﷻ سره ولې برابرول ؟

هم دا مضمون په سورة روم کښې داشان بیان شوې دې چې :

﴿ضَرَبَ لَكُمْ مَّثَلًا مِّنْ اَنْفُسِكُمْ ۭ هَلْ لَّكُمْ مِّنْ مَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ مِّنْ شُرَكَاۗءَ فِيْ مَا رَزَقْنٰكُمْ فَاَنْتُمْ فِيْهِ سَوَاۗءٌ﴾ [ تاسو دپاره ئې هم ستاسو نه یو مثال درکړې دې ، کوم خلق چې ستاسو د لاس لاندې دی ، آیا هغوئ زمونږ په درکړې روزئ کښې ستاسو داسې شریکان دی چې تاسو په کښې سره برابر یئ ]

ددې حاصل هم هغه دې چې تاسو خپل ماتحت د لاس لاندې خلق هر کله چې ځان سره ئې برابر نه خوښوئ نو دا څنګه خوښوئ چې د الله ﷻ مخلوق او مملوک دې دهغه برابر شی؟

**معاش کښې د درجو اختلاف انسانانو دپاره رحمت دې** :: دې آیت مبارک کښې دا خبره په ښکاره خودلې شوې ده چې فقیری ، امیری اوپه ژوند تیرولو کښې د انسانانو داسې مختلفې درجې کیدل چې څوک په کښې غریب ، څوک متوسط او څوک امیر دې، دا څه اتفاقی پیښه نه ده بلکه د الله ﷻ دحکمت بالغه تقاضا ده چې انسانی ښیګړې پرې بنا دی او دوئ دپاره رحمت دې که چرې داصورت نه وی بلکه ټول انسانان یو شان برابر شی یعنی ټول د مال، دولت خاوندان او ډیرو سامانونو لرلو کښې یو شان شی نو د دنیا په نظام کښې به خلل او فساد پیداشی . په دې وجه ددنیا د پیداکیدو نه تر اوسه پورې بلکه تر قیامته پورې انسانان په هر ځان کښې یو شان اوبرابر نه وی او نه کیدېشی ولې چې که په زبردستئ څه مساوات اوبرابری پیدا کړې شی نو په څو ورځو کښې به ټول انسانی کاروبار په نقصان او خساره کښې شی ، څنګه چې الله ﷻ انسانان د عقلونو د ماغونو ، طاقتونو ، قوتونو او صلاحیتونو اود کار په صلاحیتونو کښې په مختلفو مزاجونو کښې تقسیم کړی دی ، په دې کښې د ادنی ، متوسط او اعلی قسمونه دی چې هیڅ یو د عقل خاوند ترې انکار نشی کولې ، دغه شان داهم ضروری دی چې په مال متاع کښې ئې هم مختلفې درجې وی چې هر یو د خپل خپل صلاحیت او قابلیت مطابق د هغې بدله بیا مومی او که قابل ناقابله د صلاحیت خاوندان او بې صلاحیته خلق یو شان اوګرځولې شی نو د صلاحیت والا خلقو به حوصلې ماتې شی کله چې په ژوند تیرولو

کښې د ټولو خلقو يو شان کيدل وی نو بيا د خوارئ محنت کولو او دفکر وعمل دپاره څه باعث کيدې شی ؟ ددې لازمی نتيجه د کار کولو صلاحيت او استعداد بربادول دی.

**په يو خاص ځائې کښې د دولت ايسارول خلاف قرآنی حکمونه** :: البته چرته چې د کائناتو خالق عقلی او بدنی قوتونه د يو په بل باندې پورته کړی دی او غوره ګرځولی دی او د هغې په بنياد ئې په روزئ او مال کښې فرق او بيلتون قائم کړې دې چې داسې نه وی چې ددولت په خزانو او دروزګارونو په مرکزونو دې د څو کسانو يا ډيوې خاص ډلې قبضه وی ، نورو مستعد خلقو ته دې د کار کولو د سره موقعه ورنکړې شی چې هغوئ ترقی اوکړی خپل عقل او بدنی صلاحيتونه پکار راولی او په معاش کښې څه ترقی او کړی هم ددې دپاره په سورهٔ حشر کښې قرآن عظيم الشان فرمائی چې :

﴿كَيۡ لَا يَكُونَ دُولَةَۢ بَيۡنَ ٱلۡأَغۡنِيَآءِ مِنكُمۡ﴾ [مونږ د دولت د تقسيم قانون څکه جوړ کړو چې دولت يوازې مالدارو خلقو په قبضه کښې پاتې نشی]

نن چې د ژوند تيرولو په انتظامونو کښې چې څومره خرابی موجوده ده دهغې وجه د پروردګار د حکمت ددې قانون شاته غورزول دی ، يو طرفته د پنګې يعنی سرمائې انتظام داسې دې چې يو څو کسانو يا څو ډلو د سود او جوارئ [خمار] په ذريعه د دولت مرکزونو قبضې کړی دی او نور ټول مخلوق ئې مجبوری طور معاشی غلامان داسې جوړ کړی دی چې بغير غلامئ او مزدورئ نه ئې د خپلو ضرورتونو پوره کولو دپاره څه لار ورته نه ده پريښودې. سره ددې چې دغه خلق د اعلی صلاحيتونو او استعداد مالکان دی خو بيا هم د صنعت او تجارت ميدان ته نشی راوتې.

ددې سرمايه دارانو د ظلم او بربريت په رد عمل کښې يو متضاد نظام د اشتراکيت کميونزم يا سوشلزم په نوم سره په وجود کښې راغی . او دهغې نعره داوه چې د غريب او امير فرق ختمول او په ټولو کښې مساوات پيدا کول دی. د سرمايه درائی د ظلم څخه تنګ شوې عوام دې نعرې پسې روانيږی ، مګر په يوه ورځ کښې دوئ ته دا معلومه شوه چې دا نعره يو دهوکه وه. د معاشی مساواتو دا خوب کله هم پورا نشو. اوغريب چې د خپلې غريبئ او ناچارئ په وجه يو انسانی احترام لرلو او دخپلې خوښې مالك وو ، خو اوس يې دا انسانی احترام هم دلاسه اووتلو. د اشتراکيت په نظام د انسان قيمت صرف د مشين د پرزې څخه زيات نه دې. د جائيداد مالك کيدل خو په دې نظام کښې څوك تصور هم نشی کولې . او هلته چې يو مزدور سره کومه معامله کيږی که په هغې باندې غور اوکړې شی نو هغه د يو څيز مالك هم نه دی. ددهٔ اولاد او ښځه هم دده نه ده ، بلکه ټول د رياست د مشين پرزې دی . او مشين چالو کيدلو سره دوئ هم په کار اولګی او ددې څخه سوا ددوئ بله چاره نشته دې. د رياست د مفروضه مقاصدو څخه علاوه دده نه خپل ضمير وی او نه ددهٔ د ضمير آواز وی ، د رياست د جبر او ظلم او ناقابل برداشت محنت څخه مخ اړولو ته يو بغاوت وئيلې کيږی ، او ددې سزا مرګ ده ، داللهﷻ او د مهذب مخالفت کول او خالص ماده پرستی د اشتراکيت د نظام بنيادی اصول دی دا هغه حقائق دی چې ددې څخه څوك اشتراکی انکار نشی کولې. ددوئ د پيشوايانو عمل نامې او کتابونه په دې ګواه دی. او ددوئ حوالې جمع کول د يو مستقل کتاب حيثيت لری.

قرآن پاك د سرمايه دارئی د ظالمانه نظام او احمقانه اشتراکيت نظام دواړو په مقابله کښې يو

داسې نظام جوړ کړې دې چې په رزق او دولت کښې د فطرې تفاوت باوجود هيڅ يو کس ، يا جماعت عام مخلوق لره خپل غلام نشي جوړولې ، او مصنوعي ګراني او قحط کښې نشي اخته کولې ، سود او جوارې يې حرامه اوګرزوله او د يو ناجائزه سرمايه داريانه نظام خاتمه ئې اوکړه ، بيا د هر مسلمان په مال کښې د غريبانانو حصه يې مقرر کړه ، او دا په غريبانانو باندې احسان نه دې بلکه د فرض يو اداثيګې ده آيت ﴿وَفِيٓ أَمۡوَٰلِهِمۡ حَقٞ لِّلسَّآئِلِ وَٱلۡمَحۡرُومِ﴾ [1] په دې باندې ګواه دې . بيا د مرګ څخه وروستو د مرده ټول مال د خاندان په خلقو کښې تقسيمولو سره يې د دولت د جمع کولو خاتمه اوکړه . قدرتي چينو ، سمندرونو او غرونو ، ځنګلونو چې کوم پيداوار په خپله کيږي هغه ته يې د خلقو مشترکه سرمايه وئيلې ده . او په دې باندې د يو کس يا جماعت قبضه جائز نه ده . او په سرمايه داريانه نظام کښې دا ټول څيزونه صرف د سرمايه دارو ملکيت ګرځولې دې .

نود عملي او علمي صلاحيتونو مختلف کيدل دا يو فطري امر دې ، او د معاش حصول هم ددې صلاحيتونو تابع دې ، په دې وجه د مال او دولت دملکيت متفاوت کيدل هم د حکمت مطابق دى . چې څوک ددنيا لږ شان عقل هم لري نو هغه ددې څخه انکار نشي کولې ، اود مساوات نعره وهونکي هم څه وخته پورې د مساوات د دې دعوې په پرينبودلو او معيشت کښې د تفاوت او تفاضل پيدا کولو باندې مجبور شو .

خروشيف په ۵ مئ کال نوولس سوه شپيته د سپريم سوويټ په وړاندې تقرير کښې داسې اووئيل چې : مونږ په اجرتونو کښې د فرق ختمولو د تحريک سخت مخالف يو . مونږ په اجرتونو کښې د مساوات قائمولو او ددې په يو سطح باندې د راوستلو ښه په ښکاره مخالف يو ، دا د لينن تعليم دې ، د هغه تعليم دا وو چې په سوشلسټ معاشره کښې به د مادي محرکاتو پوره لحاظ ساتلې شي . [سويټ ورلډ ص/۳۴۶]

د معاشي مساوات د خوب دا تعبير خو د وړاندې نه سخې ته راغلې وو خو چې لږ وخت تيريدو نو دا عدم مساوات او د امير او غريب فرق په اشتراکي سملکت روس کښې د عام سرمايه دار ملکونو نه هم پرې ورتير شو .

ليون شيډو ليکي دى چې : داسې يو ترقي موندونکې سرمايه دار ملک په نظر کښې نه راځي چې چرته د مزدور په اجرتونو کښې دومره فرق وي چې څومره چې په روس کښې دې .

د واقعاتو دې حق مثالونو د آيت ﴿وَٱللَّهُ فَضَّلَ بَعۡضَكُمۡ عَلَىٰ بَعۡضٖ فِي ٱلرِّزۡقِ﴾ جبري تصديق د منکرانو د طرفه اوکړې شو . ﴿وَٱللَّهُ يَفۡعَلُ مَا يَشَآءُ﴾ د لته خو ددې آيت مبارک لاندې صرف دومره بيانول وو چې په رزق او مال کښې فرق راتلل قدرتي فطري او د انساني ښيګړې سره عين مطابق دى ، خو د دولت د ويش اسلامي اصول او سرمايه دارئ او اشتراکيت نه ددې د خصوصي بيلتون بيان به انشاء الله په سورۀ زخرف پاره نمبر ۲۵ کښې د آيت ﴿نَحۡنُ قَسَمۡنَا بَيۡنَهُم مَّعِيشَتَهُمۡ﴾ [2] لاندې کولې شي ، په دې موضوع باندې د احقر يوه مستقله رساله په دې نوم :
اسلام کا نظام تقسيم دولت ، خوره شوې ده چې د هغې مطالعه کول هم کافي دى .

[1] ترجمه:-اود چا مالونو د سوالګرو اور بې سوالګرو حق دې .
[2] ترجمه:-او مونږ ددې رزق تقسيم کړې دې .

وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ

| او الله | پيدا کړې | ستاسو دپاره | د نفسونو ستاسو نه

| او الله ﷻ ستاسو د نفسونو نه ستاسو دپاره جوړې پيدا کړې

اَزْوَاجًا وَّجَعَلَ لَكُمْ مِّنْ اَزْوَاجِكُمْ بَنِيْنَ وَحَفَدَةً وَّرَزَقَكُمْ

| ښځې | او پيدا ئې کړل | ستاسو دپاره | د ښځو ستاسو نه | خامن | او نمسي | او درئې کړل تاسو ته

او ستاسو ښځو نه ئې ستاسو خامن او نمسي پيدا کړي دي | او تاسو ته ئې د پاکيزه څيزونو

مِّنَ الطَّيِّبٰتِ ؕ اَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُوْنَ وَبِنِعْمَتِ اللّٰهِ هُمْ

| د پاکو څيزونو نه | ايا نو داخلق په باطل باند | ايمان راوړي | او په نعمت دالله باند | دوئ

روزي درکړې ده | ............ نو ايا دوئ په باطلو څيزونو يقين ساتي | او د الله ﷻ د نعمتونو

يَكْفُرُوْنَ ۙ وَيَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَهُمْ

| انکاريان کيږي | او عبادت کوي | ماسوادالله نه | د هغې | چې نه لري اختيار | دپاره د دوئ

نه انکار کوي | او دوئ دالله ﷻ نه بغير د هغه څيزونو عبادت کوي | چې د اسمانونو

رِزْقًا مِّنَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ شَيْـًٔا وَّلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ۚ

| د رزق ورکولو | د اسمانونو نه | او د زمکې نه | هيڅ قدرله | او نهٔ طاقت لري ددې کار

او زمکې نه دوئ ته د رزق ورکولو هيڅ قدرت نه لري | او نه د هغې معبودانو دوس خبره ده

فَلَا تَضْرِبُوْا لِلّٰهِ الْاَمْثَالَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ۞

نو مهٔ بيانوئ | الله لره | مثالونه | بيشکه الله | پوهيږي | او تاسو | نهٔ پوهيږئ

نو تاسو د الله دپاره مثالونه مه بيانوئ | بيشکه الله ﷻ په [هره خبره] پوهيږي | او تاسو نه پوهيږئ

ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا عَبْدًا مَّمْلُوْكًا لَّا يَقْدِرُ عَلٰى شَيْءٍ

بيانوي الله | يو مثال | د غلام | چې د بل په قبضه کښې دې | چې اختيار نهٔ لري | په هيڅ څيز باند

او الله ﷻ يو مثال بيانوي | چې يو غلام د بل په اختيار کښې دې | او په هيڅ قدرت نه لري

وَّمَنْ رَّزَقْنٰهُ مِنَّا رِزْقًا حَسَنًا فَهُوَ يُنْفِقُ

او بل هغه څوک | چې رزق ورکړې دې مونږه هغه ته | د طرفه زمونږنه | رزق ښه | نو هغه | خرچ کوي

او يو هغه څوک دې چاته چې مونږ د خپل طرفنه ښه رزق ورکړې وي | نو هغه د هغې نه

مِنْهُ سِرًّا وَّجَهْرًا ؕ هَلْ يَسْتَوٗنَ ؕ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ

د هغې نه | په پټه | او په ښکاره | آيا برابر دي هغوئ | ثناده الله لره | بلکه | زيات د هغوئ

په پټه او په ښکاره خرچ کوي | آيا دا دواړه برابر دي [نه دي] ټول تعريفونه الله دپاره دي اخو په دوئ کښې

لَا يَعْلَمُوْنَ ۞ وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا رَّجُلَيْنِ اَحَدُهُمَآ اَبْكَمُ لَا يَقْدِرُ

نهٔ پوهيږي | او بيانوي الله | يو بل مثال | د دوو سړو | يو د هغوئ نه | چاړادې | چې نهٔ قادريږي

زيات خلق نه پوهيږي | او الله د دوو سړو يو بل مثال بيانوي | چې په دوئ کښې يو ګونګا وي | په هيڅ

| عَلٰی شَیْءٍ | وَّهُوَ كَلٌّ | عَلٰی مَوْلٰىهُ ۙ | اَیْنَمَا | یُوَجِّهْهُّ | لَا یَاْتِ بِخَیْرٍ ؕ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هیڅ څیز باند | اوهغه | بوج وی | په مالك خپل باند | هرطرفته چی | اولیږی هغه | نه راوړی | څه خیز |

کارقادر نه وی | او په خپل مالک باندې بوج وی | هغه چې کوم خوا هم دې لیږی | نو ښیګړه ئې دلاسه نه کیږی

| هَلْ یَسْتَوِیْ هُوَ ۙ | وَمَنْ | یَّاْمُرُ | بِالْعَدْلِ ۙ | وَهُوَ | عَلٰی صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ ۧ |
|---|---|---|---|---|---|
| آیابرابردې | هغه | اوهغه څوك | چې حکم کوی | په انصاف سره | اوهغه | په لاره | نیغه باندوی |

آیا دې او څوک چې د انصاف حکم کوی او په نیغه لار روان وی دواړه سره برابر کیدې شی [نشی]

## آسان ترجمه قرآن

او الله پاک هم په تاسو کښې ستاسو بیبیانې جوړې کړې دی، او ستاسو د بیبیانو نه ئې ستاسو دپاره ځامن او نمسی پیدا کړی دی، او تاسو ته ئې د ښه ښه څیزونو نه رزق درکړې دې آیا بیا هم دا خلق په بې بنیاده خبرو باندې ایمان راوړی او د الله پاک د نعمتونو ناشکری کوی؟ او دوی الله پاک لره پریخودلو سره د هغه څیزونو عبادت کوی کوم چه هغوی ته د اسمان او زمکې د هیڅ حصې نه د رزق ورکولو څه اختیار نه لری، نه لرلې شی. لهٰذا تاسو د الله پاک دپاره مثالونه مه بیانوئ! بیشکه الله پاک علم لری او تاسو علم نه لرئ. الله پاک یو مثال بیانوی چه یو طرف ته یو غلام دې کوم چه د چا په ملکیت کښې دې، دهغه په یو څیز باندې هم اختیار نشته. او بل طرف ته هغه سړې دې چاته چه مونږ د خپل طرف نه غوره رزق ورکړې دې او هغه د هغې نه پټ او ښکاره خرچ کوی. آیا دا دواړه برابر کیدې شی؟ ټول تعریفونه د الله پاک دپاره دی خو په دوئ کښې اکثر خلق (په داسې صفا خبره باندې هم) نه پوهیږی. او الله پاک یو بل مثال بیانوی چه دوه سړی دی، په هغوی کښې یو ګونګې دې چه هیڅ کار نه شی کولې، او په خپل مالک باندې بوج دې، هغه ئې چه چرته هم لیږی، هغه هیڅ د خیر کار کولو سره نه راځی، آیا داسې سړې د هغه بل سړی برابر کیدې شی کوم چه نورو ته هم د اعتدال حکم کوی او خپله هم په نیغه لار قائم دې؟

## د تفسیر خلاصه

﴿وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ اَزْوَاجًا﴾ او [ د قدرت د د لیلونو او د قسما قسم نعمتونو ځینې یو لوئې نعمت او دالله ﷻ د قدرت دلیل پخپله ستاسو موجودیدل او ستاسو ذاتی او نوعی قائم لرل دی چې [ الله ﷻ هم ستاسو ځینې [ یعنی ستاسو د جنس او نوع څخه] تاسو دپاره بیبیانې جوړې کړې ﴿وَّجَعَلَ لَكُمْ مِّنْ اَزْوَاجِكُمْ بَنِیْنَ وَحَفَدَةً﴾ او [ بیا ] ددغې بیبیانو څخه ئې ستاسو ځامن او نمسی پیدا کړل [ چې دا نوعی بقا ده ] ﴿وَّرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّیِّبٰتِ ؕ﴾ او تاسو ته ئې ښه ښه څیزونه خوراك [څکاك ] له درکړل [ چې دا شخصی او ذاتی بقاء ده او هر کله چې باقی پاتې کیدل په موجودیدو او شته کیدو باندې انحصار لری نو دې ته په کښې هم اشاره شوه] ﴿اَفَبِالْبَاطِلِ یُؤْمِنُوْنَ وَبِنِعْمَتِ اللّٰهِ هُمْ یَكْفُرُوْنَ ۙ﴾ آیا [ ددې ټولو دلیلونو او نعمتونو په آور یدو سره] بیا هم په دې بې بنیاده څیزونو باندې [ یعنی په بتانو وغیره باندې چې د هغې په معبود کیدو باندې هیڅ دلیل نشته بلکه د دلیل څخه خلاف دی ] ایمان لری او دالله ﷻ د نعمت ناشکری [ بې قدری] به په مخه کوی ﴿وَیَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا یَمْلِكُ لَهُمْ رِزْقًا مِّنَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ شَیْـًٔا وَّلَا یَسْتَطِیْعُوْنَ ۚ﴾ او [ ددې

ناشکرئ مطلب دا دي چي] دالله ﷻ په پرېښودو سره دداسې څيزونو په مخه عبادت کوی چي نه خو ورته د آسمانونو څيني دروزئ رسولو اختيار لری او نه د زمکې څيني [ يعنی نه خو دباران ورولو څه اختيار لری او نه دزمکې نه د څه پيدا کولو] او نه [ د اختيار حاصلولو] قدرت لری [ دي نه د اختيار نه لرلو ښه وضاحت داسې اوشو چي کله خو يو کس د يو کار کولو اختيار نه لری خو په کوشش سره ددې اختيار حاصلولې شی څکه ئې ددې څخه هم نفی اوکړه] ﴿فَلَا تَضْرِبُوْا لِلّٰهِ الْاَمْثَالَ﴾ نو [ کله چي د شرك باطليدل ثابت شو نو] تاسو الله ﷻ دپاره مثالونه د څانه مه جوړوئی [ يعنی دالله ﷻ مثال د دنيا د بادشاهانو پشان مه ګنړئی چي هر څوك ورته خپل حاجت نه شی وړاندې کولې بلکه د خپلو خاصو نائبانو په ذريعه ورته وړاندې کولې شی ،(١) دا مثال د دوئ ددې وينا [مَا نَعْبُدُهُمْ اِلَّا لِيُقَرِّبُوْنَآ](٢) او ددې وينا [هٰۤؤُلَآءِ شُفَعَآؤُنَا عِنْدَ اللّٰهِ](٣) څخه معلوميږی [تفسير کبير] ﴿اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ﴾ الله ﷻ [ښه] پيژنی [چي داسې مثالونه هيڅ نه دی ] او تاسو [ دفکر سوچ نه کولو په وجه [ نه پوهيږئ [ پرې بلکه څه چي اوغواړئ هغه شان خبرې کوئی او] ﴿ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا عَبْدًا مَّمْلُوْكًا لَّا يَقْدِرُ عَلٰى شَيْءٍ﴾ الله ﷻ [دشرك د بې بنيادئ ښکاره کولو دپاره [ يو مثال بيانوی چي [ فرض کړئی ] يو [خو] غلام دې [ دچا] مملوك چي د هيڅ څيز انتقام نه لری [ يعنی د خپل مالك د اجازت څخه بغير نه د مال اختيار لری اونه د تصرف کولو] ﴿وَمَنْ رَّزَقْنٰهُ مِنَّا رِزْقًا حَسَنًا فَهُوَ يُنْفِقُ مِنْهُ سِرًّا وَّجَهْرًا﴾ او [ بل] يو کس دې چي مونږ ورته د خپله طرفه ښه روزی ورکړه نو دهغې څيني په پټه او په ښکاره [ څنګه چي غواړی چرته چي غواړی ] خرچ کوی [ هيڅ ايسارونکې نشته ] ﴿هَلْ يَسْتَوٗنَ﴾ آيا داسې کسان پخپل مينځ کښې برابر کيدې شی ؟ [ نو کله چي مجازی مالك او مجازی مملوك يعنی غلام نشی برابر کيدلې نو حقيقی مالك سره به حقيقی مملوك څنګه برابر شی ؟ د عبادت حقدار کيدل په برابرئ باندې انحصار لری چي هغه دلته د سره نشته] ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ ټول تعريفونه هم الله ﷻ دپاره دی [ څکه چي په ذات او صفاتو کښې کامل هم هغه دې څکه هم هغه معبود کيدې شی خو بيا هم مشرکان د غير الله عبادت نه پريږدی] ﴿بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ﴾ بلکه په دوئ کښې اکثر خو [ د بې غورئ په وجه ] د سره پوهيږی نه [ او چونکه د پوهې د نشتوالی سبب ددوئ بې غوری ده څکه به معذوری نه وی] ﴿وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا رَّجُلَيْنِ اَحَدُهُمَآ اَبْكَمُ لَا يَقْدِرُ عَلٰى شَيْءٍ﴾ او الله ﷻ [ددې وضاحت کولو دپاره ددوئ [يو بل مثال بيانوی چي [ فرض کړئی ] دوه کسان وی چي يو خو [ غلام هم وی ] اوسره دهغې ] چاړا [ اوکونړ هم] دې [ او کونړوالی ، ړوندوالی او بې عقل توب ] څه کار[هم] نشی کولې ﴿وَّهُوَ كَلٌّ عَلٰى مَوْلٰىهُ﴾ او [ په دې وجه ] هغه پخپل مالك باندې [ هسې] پيتې دې [ چي هم دغه مالك ئې ددۀ ټول کارونه کوی او ] ﴿اَيْنَمَا يُوَجِّهْهُّ لَا يَاْتِ بِخَيْرٍ﴾ دغه [ مالك ئې ] دۀ له چرته چي ليږی څه کار سم کړې نه راوړی [يعنی پخپله خو هيڅ نه کوی د نورو په خودونه هم ده نه سم کار نه کيږی] ﴿هَلْ يَسْتَوِيْ هُوَ وَمَنْ يَّاْمُرُ بِالْعَدْلِ﴾ آيا دا کس او د اسې کس يو تر بله برابريدې شی چي دخبرو خودنه کوی [ چي دهغې نه دده ناطق عقل مند کيدل د علمی

---

(١) التفسير الكبير تحت هذه الآية [ج:٩ ص:٤٣٥]

(٢) ترجمه:-مونږ ددئ عبادت صرف ددې دپاره کوؤ چي مونږ دالله برګزيده جوړ کړی.(الزمر:٣)

(٣) ترجمه:-دوئ الله جل شانه ته زمونږ سفارشيان دی. (يونس:١٨)

قوت خاوند کیدل معلومیږی ] ﴿وَهُوَ عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾ او پخپله هم [ په هره خبره کښې ] په درمیانه طریقه [ روان] وی.

## معارف او مسائل

﴿وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُم مِّنْ أَنفُسِكُمْ أَزْوَاجًا﴾ دې آیت مبارك کښې د یو اهم نعمت بیان داسې راغلې دې چې فرمائی چې: الله ﷻ هم ستاسو د جنس او قوم څینې ستاسو بیبیانې جوړې کړې ، دپاره ددې چې خپل مینځ کښې مو سره پوره مینه محبت او د انسانی نسل شرافت او بزرګی هم قائمه پاتې شی.

بله اشاره دې ته هم کیدې شی چې ستاسو بیبیانې هم ستاسو د جنسه دی د دوئ ضرورتونه او جذبې هم ستاسو په شان دی د دوئ خیال ساتل په تاسو باندې لازم دی. ﴿وَجَعَلَ لَكُم مِّنْ أَزْوَاجِكُم بَنِينَ وَحَفَدَةً﴾ [یعنی ستاسو دبیبیانو څخه مونږ ستاسو ځامن او نمسی پیدا کړل]

دلته دې خبرې ته هم کتل پکار دی چې اولاد خو د مور پلار څخه په شریکه پیدا کیږی ، دې آیت مبارك کښې یوازې د میاندو نه د دوئ پیدا کیدل بیان شوی دی .دې کښې اشاره ده چې د بچی په پیدا کیدو کښې د مور برخه زیاته ده ځکه چې د پلار څخه خو یو بې ساه څاڅکې د مور خیټې ته لاړ شی نوره ټوله خواری د مور په ذمه ده ، نو هلته د مور په خیټه کښې د منی نه حکه وینه . بیا د هغې څخه جوئیلې غوښه یا هډوکی بیا هډوکو باندې غوښه شی ساه په کښې وا جوړې شی او سمدم بنیادم ترې جوړ شی . په دې شان د بچی په پیدا کیدو کښې د مور د خیټې دحال زیات وی ځکه ئې مور ته نسبت اوکړې شو او همدغه وجه ده چې په حدیث پاك کښې د مور حق دپلار څخه وړاندې ایخودې شوې دې.

دې جمله کښې ځامنو سره د نمسو بیانولو کښې دې طرفته اشاره هم موندې شی چې ددې جوړې جوړولو اصلی مقصد د انسانی نسل باقی لرل دی ولې چې د اولاد څخه اولاد پیداکیدل دې د باقی لرلو سامان دې.

بیا په ﴿وَرَزَقَكُم مِّنَ الطَّيِّبَاتِ﴾ کښې د ده د شخصی او ذاتی بقاء اسباب داسې بیان شو چې د انسان د پیداکیدو څخه روستو ددهٔ باقی لرلو دپاره د غذا ضرورت وی ، هغه هم الله ﷻ ورکړو په آیت مبارك کښې د حفدة اصلی معنی مددګاران او خدمتګاران دی، اولاد دپاره ددې لفظ په استعمالولو کښې دې ته اشاره ده چې اولاد له پکار دی چې د مور پلار خادمان وی [قرطبی]

﴿فَلَا تَضْرِبُوا لِلَّهِ الْأَمْثَالَ﴾ کښې یو اهم حقیقت واضح کړې شوې دې چې د هغې څخه بې پرواه کیدل ټول کافرانه شکونه او شبهې راولاړیدل دی ، هغه داسې چې عموما خلق الله ﷻ لره په انسانانو باندې قیاس کوی چې یو اعلی ترین انسان مثلاً بادشاه او فرمان روا لره د الله ﷻ پشان ګرځوی ، او بیا د الله ﷻ د قدرت انتظام د بادشاه په انتظام باندې قیاس کولو سره وائی چې هر کله یوازې بادشاه پخپله ټول کارونه سرته نشی رسولې ، بلکه د نورو وزیرانو ، افسرانو کارندؤ وغیره په ذریعه د حکومت انتظام چلوی . دغه شان د الله ﷻ څخه ښکته څه نور معبودان دې هم وی چې د الله ﷻ په کارونو کښې د الله ﷻ لاس امداد کوی چې څنګه د ټولو بت پرستو او مشرکانو عامه نظریه هم داده .

لهذا دې جملې د دوئ شبهې د بيخه داسې پريکړې چې الله ﷻ دپاره د مخلوق مثالونه پيش کول پخپله بې عقلي ده هغه د مثال او تمثيل او زمونږ د وهم و گمان نه ډير پورته دې.

په آخري دوؤ آيتونو کښې د انسان په باره کښې د دوؤ ورکړو مثالونو ځينې رومبې مثال داسې دې چې هر کله مالك او مملوك دواړه برابر کيدې نشي ، حالانکه د دوئ جنس او نوع يوه ده نو مخلوق الله ﷻ سره څنگه برابريديشي.

دريم مثال داسې بيان شوې دې چې يو طرفته هم يو داسې انسان دې چې خلقو ته عدل و انصاف اوښکلې خبرې ښائي چې دهغې د علمي قوت کمال دې او پخپله هم په معتدلې لارې باندې روان وي چې دهغه د عملي قوت کمال دې دداسې کس په مقابله کښې بل خوا داسې يو انسان دې چې نه خو پخپله خپل کار کولې شي ، نه د بل چا کار سم کولې شي ، حالانکه دواړه طرفونه انسان دي چې د يو جنس ، يوې نوعې او د يوې برادرئي دي ليکن بيا هم دواړه خپل مينځ کښې برابريدې او يوشان کيدې نشي نو د کائناتو خالق او مالك چې حکيم مطلق ، قادر مطلق او عليم و خبير دې ، هغه سره څوك مخلوق څنگه برابريدې شي.

وَلِلّٰهِ | غَيْبُ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ ۭ | وَمَآ | اَمْرُ السَّاعَةِ اِلَّا

اوخاص الله لره دي | دپټوحقيقتونوعلم | دآسمانونو | اودزمکې | اونۀ دې | حکم دقيامت بس دومره

او دآسمانونو او د زمکې د پټو خبرو علم الله ﷻ سره دې | او د قيامت راتلل بالکل داسې دي

كَلَمْحِ | الْبَصَرِ | اَوْهُوَ | اَقْرَبُ ۭ | اِنَّ اللّٰهَ | عَلٰي كُلِّ شَيْءٍ | قَدِيْرٌ ۝

لکه رپ | دسترگې | يا هغه | ډير نزدې دي | بيشکه الله | په هر څيز باند | قادر دې

لکه دسترگې رپيدل | يا ددې نه هم زيات نزدې | بيشکه الله ﷻ په هرڅيز قادر دې

وَاللّٰهُ | اَخْرَجَكُمْ | مِّنْۢ بُطُوْنِ | اُمَّهٰتِكُمْ | لَا تَعْلَمُوْنَ | شَيْـــًٔا ۙ

اوالله | راوويستې تاسو | دخيټونه | دميندو ستاسو | حال دا چې نۀ پوهيدئ تاسو | په هيڅ څيز

اوالله ﷻ تاسو ستاسو د ميندو د خيټو نه راويستې يئ | په داسې حال کښې چې په هيڅ نه پوهيدئ

وَّجَعَلَ | لَكُمُ | السَّمْعَ | وَالْاَبْصَارَ | وَالْاَفْـِٕدَةَ ۙ | لَعَلَّكُمْ | تَشْكُرُوْنَ ۝

اوهغه درکړل | تاسولره | غوږونه | اوسترگې | اوزړونه | دپاره ددې چې تاسو | شکر اوباسئ

او الله ﷻ ستاسو دپاره غوږونه سترگې او زړونه جوړ کړل | چې تاسو [د دې] شکر ادا کړئ

اَلَمْ يَرَوْا اِلَى | الطَّيْرِ | مُسَخَّرٰتٍ | فِيْ جَوِّ | السَّمَاۗءِ ۭ | مَا يُمْسِكُهُنَّ

آيا نۀ دي کتلي دې خلقو | مارغانو ته | چې تابع دي | په فضا | دآسمان کښې | نۀ ساتي دوئ لره

آيا دوی مارغان نۀ دي ليدلي | چې دآسمان په فضا کښې تابعدار دي | دوئ صرف الله ﷻ

اِلَّا اللّٰهُ ۭ | اِنَّ | فِيْ ذٰلِكَ | لَاٰيٰتٍ | لِّقَوْمٍ | يُّؤْمِنُوْنَ ۝ | وَاللّٰهُ | جَعَلَ

مگر الله | بيشکه | په دې کښې | ډيرې نښې دي | دپاره دهغه خلقو | چې ايمان راوړي | اوالله | جوړ کړو

راتينگ کړې دي | بيشکه په دې کښې دايماندارو دپاره نخښې دي | اوالله ﷻ تاسو

لَكُمْ مِّنْۢ بُيُوْتِكُمْ سَكَنًا وَّجَعَلَ لَكُمْ مِّنْ جُلُوْدِ الْاَنْعَامِ

ستاسو دپاره | د کورونو ستاسو نه | ځائې د آرام | او پیدا ئې کړل | ستاسو دپاره | د څرمنو | د څاروو نه

دپاره ستاسو کورونه د آرام ذریعه گرځولې ده | او ستاسو دپاره ئې د څاروو د څرمنو نه

بُيُوْتًا تَسْتَخِفُّوْنَهَا يَوْمَ ظَعْنِكُمْ وَيَوْمَ اِقَامَتِكُمْ ۙ

کورونه | چې سپک موموئ تاسو هغه | په ورځ | د سفر ستاسو کښې | او په ورځ | د قیام ستاسو کښې

داسې کورونه جوړ کړی دی | چې هغه د سفر په ورځ او د قیام په وخت کښې سپک بیاموموئ

وَمِنْ اَصْوَافِهَا وَاَوْبَارِهَا وَاَشْعَارِهَآ اَثَاثًا وَّمَتَاعًا

او د وړئ د گډو نه | او د وړئ د اوښانو نه | او د ویښتو د چیلو نه | سامانونه د اغوستلو | او سامانونه د استعمالولو دی

او دهغو د وړئ نه او د پشم نه او د ویښتو نه ستاسو د کور سامان او د فائدې څیزونه جوړ وئ | چې تر یو

اِلٰى حِيْنٍ ۝ وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّمَّا خَلَقَ ظِلٰلًا

د یو خاص وخت پورې | او الله | پیدا کړل | ستاسو دپاره | دهغې نه | چې پیدا کړې دی هغه | سورې

وخته پورې [ترې فائده اخلئ] | او الله ﷻ ستاسو دپاره د خپلو پیدا کړو څیزونو سیورې جوړ کړی دی

وَّجَعَلَ لَكُمْ مِّنَ الْجِبَالِ اَكْنَانًا وَّجَعَلَ لَكُمْ سَرَابِيْلَ

او جوړ ئې کړل | ستاسو دپاره | د غرونو نه | ځائې د پناه اغستلو | او جوړ ئې کړل | ستاسو دپاره | قمیصونه

او ستاسو دپاره ئې په غرونو کښې د پناه اخستلو ځایونه جوړ کړی دی | او ستاسو دپاره ئې داسې جامې جوړې

تَقِيْكُمُ الْحَرَّ وَسَرَابِيْلَ تَقِيْكُمْ بَاْسَكُمْ ۭ كَذٰلِكَ

چې ساتي تاسو | د گرمئ نه | او جامې | چې حفاظت کوي ستاسو | په جنگ ستاسو کښې | دا رنگې

دی چې تاسو د گرمئ نه بچ کړي | او څۀ داسې جامې چې په جنگونو کښې ستاسو حفاظت کوي | دغه شان

يُتِمُّ نِعْمَتَهٗ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تُسْلِمُوْنَ ۝ فَاِنْ تَوَلَّوْا

پوره کوي | نعمت خپل | په تاسو باند | د پاره د دې | چې تاسو د الله حکم او منئ | نو که چرې | مخ واړوؤ دوئ

الله ﷻ خپل نعمتونه په تاسو پوره کوي | د دې دپاره چې تاسو تابعدار جوړ شئ | نو که دوئ مخ گرځوي

فَاِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ۝ يَعْرِفُوْنَ نِعْمَتَ اللّٰهِ ثُمَّ يُنْكِرُوْنَهَا

نو بیشکه | په تا باند | رسول دی | ښکاره | پیژني دوئ | نعمت د الله | بیا | انکار کوي د هغې نه

نو ستا په ذمه صرف ښکاره خبره رسول دی | دوئ د الله ﷻ نعمتونه ښه پیژني | او بیا ترې انکار کوي

وَاَكْثَرُهُمُ الْكٰفِرُوْنَ ۝

او زیات خلق د دوئ | انکاریان دی |

او په دوی کښې زیات خلق ناشکره دی |

**آسان ترجمه قرآن**

او د آسمانونو او زمکې ټول رازونه د الله پاک په قبضه کښې دی. او د قیامت معامله به د سترگې د رپ نه زیاته نه وی بلکه د دې نه هم زر. یقین او لرئ چه الله پاک په هر څیز باندې قدرت لری. او تاسو الله

پاک ستاسو د مور د خیټو نه په داسې حالت کښې راؤویستلئ چه تاسو ته هیڅ علم نه وو، او ستاسو دپاره ئې غوږونه، سترګې او زړونه پیدا کړل، چه تاسو شکر ادا کړئ. آیا دوی مارغان نه دی لیدلی چه هغوی د آسمان په فضاء کښې د الله پاک د حکم پابند دی؟ هغوی د الله پاک نه سوا څوک هم نه دی ټینګ کړي، یقینًا په دې کښې د هغه خلقو دپاره ډیرې نخښې دی کوم چه ایمان لری. او هغهٔ ستاسو دپاره ستاسو کورونه د سکون ځائې جوړ کړل. او ستاسو دپاره ئې د څاروو د څرمنو نه داسې کورونه (خیمې) جوړ کړل کوم چه تاسو ته په سفر باندې د روانیدلو په وخت او په یو ځائې کښې د ایساریدلو په وخت سپک محسوسیږی . او د هغوی وړئ او د هغوی د پشمونو او د هغوی د ویښتو نه د کورونو سامان او هم دغه شان څیزونه چه تر یوې مودې پورې تاسو ته فائده رسوی. اوخاص الله پاک د خپلو پیدا کړې څیزونو نه ستاسو دپاره سوری پیدا کړی دی، او په غرونو کښې ئې ستاسو دپاره د پناه ځایونه جوړ کړل، او ستاسو دپاره ئې داسې لباس پیدا کړې دې کوم چه تاسو د ګرمئ نه بچ کوی، او داسې لباس کوم چه ستاسو په جنګونو کښې تاسو محفوظ ساتی دغه شان هغه خپل نعمتونه په تاسو باندې پوره کوی چه تاسو فرمانبردار شئ بیا هم که دا (کافر) مخ اړوی نو (اې پیغمبره!) ستا ذمه داری صرف دومره ده چه په واضحه طریقه باندې پیغام اورسوه دا خلق د الله پاک نعمتونه پیژنی. بیا هم د هغې نه انکار کوی او په دوئ کښې اکثر خلق ناشکره دی.

### د تفسیر خلاصه

﴿وَلِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ او د آسمانونو او زمکې ټولې پټې خبرې [ چې چاته معلومه نه دی د علم په اعتبار ] هم الله ﷻ سره خاص دی [ نو د علم په صفت کښې هغه کامل دې ] ﴿وَمَآ اَمْرُ السَّاعَةِ اِلَّا كَلَمْحِ الْبَصَرِ اَوْ هُوَ اَقْرَبُ﴾ او [ په قدرت کښې دا سې کامل دې چې په دې پټو څیزونو کښې چې کوم یو نوې څیز دې یعنی ] قیامت [ دهغې ] معامله به بس داسې [ سمدستی ] وی لکه دسترګو رپ بلکه ددې څخه هم زر [ دقیامت د معاملې څخه مراد په مړو کښې ساه راتلل دی او دسترګو درپ څخه هم ددې زر کیدل ښکاره څکه دی چې د سترګو رپ حرکت دې چې زمانی وی او ساه راتلل آنې دی چې یقینا د زمانی نه به زر کیږی او په دې باندې تعجب کول څکه پکار نه دی چې ] ﴿اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ﴾ یقینا الله ﷻ په هر څیز باندې قدرت لری [او دقدرت ثابتولو دپاره دقیامت تخصیص په دې و جه کیدې شی چې دا په خاصو پټو څیزونو کښې شامل دې څکه دا د علم او قدرت دواړو دلیل دې د واقع کیدو څخه وړاندې ئې د علم دلیل شو اود واقع کیدو څخه پس ئې د قدرت دلیل شو ] ﴿وَاللّٰهُ اَخْرَجَكُمْ مِّنْۢ بُطُوْنِ اُمَّهٰتِكُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ شَيْئًا﴾ او [ د دلیلونو دقدرت اود نعمتونو د وجهو څینې داخبره ده چې ] الله ﷻ تاسو ستاسو د میندو د خیټوڅخه په داسې حالت کښې راؤښکلئ چې تاسو په هیڅ نه پوهیدئی [ د فلسفیانو په اصطلاح کښې ددې درجې نوم عقل هیولانی دې ] ﴿وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـِٕدَةَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ﴾ او هغه تاسو له غوږونه درکړل ، سترګې او زړونه ، دپاره ددې چې تاسو شکر کوئی [ په قدرت باندې د دلیل نیولو په غرض ] ﴿اَلَمْ يَرَوْا اِلَى الطَّيْرِ مُسَخَّرٰتٍ فِيْ جَوِّ السَّمَآءِ﴾ آیا خلقو مارغان نه

دی لیدلی چې [د آسمان لاندې] فضا کښې [دقدرت] په قبضه کښې مسخر دی [یعنی] ﴿مَا يُمْسِكُهُنَّ إِلَّا اللّٰهُ﴾ دا [په دې ځائې کښې] هیڅوك ټینګ نشی ساتلې سوا دالله ﷻ څخه [ګنی نو لاندې به را غورزیدلی وو، ولې چې د مارغانو بدنونه درانه او هوا نرمه او لطیفه ده څکه په دې بیان شوې خبره کښې] ﴿إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ﴾ د ایمان خاوندانو دپاره [دالله ﷻ د قدرت] څو دلیلونه [موجود] دی [څو نخښې ئې ځکه اوفرمائیل چې مارغان ئې په یو خاص شان سره پیدا کړل چې د هغې په وجه ددې الوتل ممکن شو، دا یو دلیل شو، بیا ئې فضا په داسې شان سره پیدا کړه چې په کښې الوتل ممکن شو، دا دویم دلیل شو، بیا عملی طور د مارغانو الوتل دریم دلیل شو، او کوم اسباب چې په الوتلو کښې دخل لری هغه ټول هم دالله ﷻ پیدا کړې شوی دی، بیا په دې اسبابو باندې مسبب یعنی الوتل مرتب کیدل دا هم د الله ﷻ په اراده دی ګنی اکثر داسې هم کیږی چې د یو څیز اسباب موجود هم شی خو بیا هم هغه په وجود کښې نه رازی نه شته کیږی، ځکه ئې ما یمسکهن الخ اوفرمائیل او منجمله دنعمت او دلیلونو دقدرت ځینې یو دا هم ده چې] ﴿وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْ بُيُوْتِكُمْ سَكَنًا﴾ الله ﷻ تاسو دپاره [د حضر په حالت کښې] ستاسو په کورونو کښې د استوګنې ځائې جوړ کړو [اودسفر په حالت کښې ئې] ﴿وَّجَعَلَ لَكُمْ مِّنْ جُلُوْدِ الْاَنْعَامِ بُيُوْتًا﴾ تاسو د پاره د څاروؤ د څرمنو کورونه [یعنی دخیمو] جوړ کړل ﴿تَسْتَخِفُّوْنَهَا يَوْمَ ظَعْنِكُمْ وَيَوْمَ اِقَامَتِكُمْ﴾ چې تاسو ئې د خپل کوچ او د استوګنې په ورځ سپك [په وزن کښې] بیا مومئی [اوپه دې وجه ددې لیږ دول اودرول ټول آسان معلومیږی] ﴿وَمِنْ اَصْوَافِهَا وَاَوْبَارِهَا وَاَشْعَارِهَا اَثَاثًا وَّمَتَاعًا اِلٰى حِيْنٍ﴾ او ددغې [څاروؤ] دوړئ د هغې پشم او دهغې د ویښتو نه [ستاسو] د کور سامان اود فائدې څیزونه تر یو مودې پورې جوړ کړل [تر څه مودې پورې ئې ځکه اوفرمائیل چې د عادت تر مخه داسامان د مالوچو د کپړو په نسبت څه زیات وخت اړوی او دقدرت د دلیلونو او د نعمت د وجود ځینې یو دا هم ده چې] ﴿وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّمَّا خَلَقَ ظِلٰلًا﴾ الله ﷻ تاسو دپاره د خپلو ځینو مخلوقاتو سیورې جوړ کړې [لکه د ونو او مکانونو دیوالونو وغیره] ﴿وَّجَعَلَ لَكُمْ مِّنَ الْجِبَالِ اَكْنَانًا﴾ او تاسو دپاره ئې په غرونو کښې د پناه ځایونه جوړ کړل [یعنی غارونه، سمستې وغیره چې په کښې د ګرمئ یخنئ، باران، ضرری دښمن ځناور او بنیادم څخه په حفاظت کښې پاتې کیدې شی] ﴿وَّجَعَلَ لَكُمْ سَرَابِيْلَ تَقِيْكُمُ الْحَرَّ﴾ اوتاسو دپاره ئې داسې قمیصونه جوړ کړې دی چې په ګرمئ کښې ستاسو حفاظت اوکړی ﴿وَسَرَابِيْلَ تَقِيْكُمْ بَاْسَكُمْ﴾ او داسې قمیصونه ئې [هم] جوړ کړل چې ستاسو ترمینځه جنګ [کښې د زخمی کیدو] نه حفاظت اوکړی [مراد ترې زغرې دی] ﴿كَذٰلِكَ يُتِمُّ نِعْمَتَهٗ عَلَيْكُمْ﴾ الله ﷻ په تاسو دا شان خپل نعمتونه پوره کوی ﴿لَعَلَّكُمْ تُسْلِمُوْنَ﴾ چې تاسو [ددې نعمتونو په شکریه کښې] فرمانبردار اوسئ [او که په دې نعمتونو کښې ځینې داسې هم وی چې بندګان په کښې کاریګری کړې ده خو ددې ماده او ددې د جوړولو سلیقه خو دالله ﷻ پیدا کړی څیزونه دی ځکه حقیقی انعام

کوونکي هم هغه دي ، بیا ددې نعمتونو نه پس هم ] ﴿فَإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَاغُ الْمُبِينُ﴾ که دا خلق د ایمان څخه مخ واړوی [ نو تاسو غم مه کوئی ستاسو په کښې هیڅ نقصان څکه نشته چې] ستاسو په ذمه خو صفا صفا هغه رسول دی [ او د دوئ د مخ اړولو وجه د ا نه ده چې دانعمتونه دوئ ګنی نه پیژنی بلکه داخلق] ﴿يَعْرِفُونَ نِعْمَتَ اللَّهِ﴾ دالله ﷻ نعمتونه خو پیژنی ﴿ثُمَّ يُنكِرُونَهَا﴾ خو د پیژندلو باوجود بیا [ هم په عمل کولو کښې ] ترې منکر کیږی [ چې کوم سلوك منعم سره کول پکار وو یعنی عبادت او فرمانبرداری ئې کول پکار وو ، هغه نورو سره کوی] ﴿وَأَكْثَرُهُمُ الْكَافِرُونَ﴾ او زیات په دوئ کښې دغسې ناشکره دی

## معارف او مسائل

قوله تعالی : ﴿لَا تَعْلَمُونَ شَيْئًا﴾ دې کښې اشاره ده چې علم د انسان ذاتی هنر نه دې ولې چې د پیدا کیدو په وخت انسان هیڅ علم او هنر نه لری ، بیا دانسانی ضرورت په جوړ په دمه دمه نیغ په نیغه د الله ﷻ د طرفه علم ورخودلې شی ، چې په کښې نه خو د مور پلار څه دخل وی او نه د چا د استاذ د ټولو نه اول ئې ورته ژړیدل اوخودل چې په دې سره په وخت ورته ټول ضروریات حاصلیږی چې اوږې شی نوژاړی . یخنی ، ګرمی ئې چې اوشی نو ژاړی څه بل تکلیف ورته اورسی نو ژاړی ، قدرت هم دده د ضروریاتو دپاره د مور ، پلار ، په زړونو کښې مینه واچوله ، کله چې د ماشوم آواز واؤری نو هغه د هغه تکلیف پیژندلو او دهغې دلرې کولو دپاره ورته مخه کوی ، که د الله ﷻ د طرفه ماشوم ته د ژړیدلو تعلیم نه وې ورکړې شوې ، نو چا به ورته دا کار خودلې وو چې د څه ضرورت په وخت داسې چغې وهه ، دې سره سره ورته الله ﷻ په الهامی طور دا هم اوخودل چې دمور دسینې نه د خپلې غذا د حاصلولو دپاره دخپلو اورو او شونډو نه کار اخله ، که دا تعلیم فطری او نیغ په نیغه نه وې نو کوم یو استاد به یو ماشوم ته په دغه شان خله خوځول او تې رودل خودلی وو. دغه شان د ضرورتونو زیاتیدو په جوړ ورته قدرت د مور پلار د واسطې نه بغیر پخپله هم هغه اوخودل څه موده پس ئې دا سلیقه پیدا شی چې دمورپلار یا د خوأ شا د خلقو د خبرو آؤریدو یا د څیزونو د لیدو نه څه زده کول شروع کړی او بیا دا سلیقه ئې پیدا شی چې په لیدلو څیزونو او په آؤریدلو خبرو باندې د پوهیدو او سوچ کولو کوشش کوی.

څکه خو په دې آیت مبارك کښې ﴿لَا تَعْلَمُونَ شَيْئًا﴾ نه پس فرمائی چې : ﴿وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ وَالْأَفْئِدَةَ﴾ یعنی اګر که انسان د پیدا کیدو په وخت د څه څیز علم نه لرلو قدرت دده په وجود کښې د علم حاصلولو عجیبه عجیبه آلات نصب کړل ، په دغې آلاتو کښې ئې د ټولو نه اول سمع یعنی د آؤریدو د قوت ذکر اوکړو ، شاید ددې اول بیانول په دې وجه وی چې د ټولو نه اول او د ټولونه زیات علم انسان ته د غوږونو په لار راځی . اول کښې سترګې پټې وی خو غوږونه ئې آؤری دې نه پس هم که غور اوکړې شی نو انسان لره په ټول عمر کښې څومره معلومات چې حاصلیږی په هغو کښې اکثر په غوږونو سره د آؤریدو په ذریعه وی ، په سترګو لیدلی معلومات ورته ددې په نسبت ډیر کم وی .

دې دواړو نه پس د هغې معلوماتو نمبر رازی چې انسان ئې خپلو آؤریدلو او لیدلو څیزونو کښې په غور وفکر کولو سره حاصلوی چې د قرآنی ارشاداتو مطابق دا کار د انسان د زړه دې

ځکه ئې په دويم نمبر کښې افئدة اوفرمائيل. دا د فؤاد جمع ده چې معنى ئې زړه ده، فلسفيانو په عام طور باندې د پوهيدو او ادراک مرکز د انسان دماغ ګرځولی دی مګر د قرآنی ارشاد نه معلومه شوه چې دماغ اګر چې په ادراک کښې ضرور دخل لری خو د عمل او ادراک اصلی مرکز زړه دې.

په دې موقعه الله ﷻ د آؤريدلو، ليدو او د پوهيدلو د قوتونو بيان فرمائيلي دې، د ګويايئ او ژبې ذکر ئې ځکه اونه فرمائيلو چې نطق او ګويايئ لره دعلم په حاصلولو کښې دخل نشته بلکه دا د علم د ظاهرولو ذريعه ده.

دې نه علاوه امام قرطبی رحمه الله اوفرمائيل چې سمع سره نطق هم ددې په بيان کښې راغلو ولې چې تجربه ګواه ده چې آؤريدونکې انسان ويونکې هم وی څوک چې چاړا وی هغه په غوږونو کوڼ هم وی،[1] او کيدې شی چې د هغه د خبرو نه کولو سبب هم دا وی چې څه آؤری نه، چې د هغې د آؤريدو په ذريعه وئيل ازده کړې شی. [والله اعلم].

﴿وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْ بُيُوتِكُمْ سَكَنًا﴾ بيوت د بيت جمع ده، معنى ئې د شپې تيرولو ځائې ده. امام قرطبی رحمه الله په خپل تفسير کښې فرمائيلی دی چې: ﴿كل ما علاك فاظلك فهو سقف وسماء وكل ما اقلك فهو ارض وكل ماسترك من جهاتك الاربع فهو جدار فاذا انتظمت واتصلت فهو بيت﴾[2] [ کوم څيز چې ستا د سر دپاسه وی او سيورې درباندې کوی نو چت يا آسمان ورته وئيلې شی اوکوم څيز چې ستا بدن په ځان بار وی هغه زمکه نه او کوم څيز دې چې د څلورو طرفونو په پرده کښې کړی هغه ديوالونه دی او کله چې دا ټول څيزونه په ترتيب رايوځائې شی نو دا بيت دې]

**د کور د جوړولو اصلی مقصد د زړهٔ جسم سکون دې** :: په دې باره کښې الله ﷻ د انسان بيت ته په سکن فرمائيلو سره د کور جوړولو فسلفه او حکمت واضح کړو چې ددې اصلی مقصد د بدن او زړهٔ سکون دې، د عادت تر مخه د انسان کسب او عمل دکور نه بهر وی چې باعث ئې د زړه حرکت وی، د دهٔ د کور اصلی مقصد دادې چې کله د حرکت او عمل نه تنګ شی نو کور ته په راتلو سره آرام کوی، اګر چې کله کله انسان پخپل کور کښې هم په حرکت او عمل کښې اخته وی خو دعادت تر مخه دا کم وی.

دې نه سوا سکون په اصل کښې د زړهٔ او دماغو سکون دې، چې هغه انسان ته هم پخپل کور کښې حاصليږی، دې نه دا خبره هم معلومه شوه چې د انسان د مکان د ټولو نه لوئې صفت دادې چې سکون ورته په کښې حاصليږی نن په دنيا کښې تعميراتو ډيره ترقی کړې ده، ددې په ظاهری ډول ډال باندې ډير زيات لګښتونه کولې شی خو په دې کښې ډير کم مکانونه داسې وی چې انسان ته په کښې د زړه او جسم سکون حاصليږی، کله کله خو مصنوعی تکلفات پخپله آرم او سکون تباه کوی، که دا هم نه وی نو دکور دخلقو ګذران کول ګران شی چې هغه سکون او آرام ختموی دداسې عاليشان مکانونونه خو هغه جونګړه هم ښه ده چې د اوسيدونکی زړه او جسم په کښې آرام وی.

---

[1] تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۰ص:۱۵۱]

[2] تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۰ص:۱۵۲]

قرآن عظیم الشان د هر څیز روح او اصل بیانوي ، د انسان دکور اصلي مقصد او د تولو نه لوئې غرض ئې سکون او آرام اوخودلو څنګه چې د واده د ژوند اصلي مقصد ئې هم سکون او آرام داسې خودلې دې ، فرمائي چې : ﴿لِّتَسْكُنُوٓا۟ إِلَيْهَا﴾(١) دکوم واده په ژوند کښې چې دغه مقصد نشي حاصلیدې هغه د واده د اصل فائدې نه بې نصیب وی ، نن صبا په دې څیزونو کښې رسمي او غیر رسمي تکلفات او ظاهری ډول اګر چې ډیر زیات شو ، یورپي تمدن او معاشرت په کښې د ډول تول سامانونه جمع کړل خو د بدن او زړهٔ د سکون نه ئې بالکل بې نصیبي رامخې نه کړې ده .

**قوله:** ﴿وَمِنْ جُلُودِ الْأَنْعَامِ﴾ او ﴿وَمِنْ أَصْوَافِهَا وَأَوْبَارِهَا﴾ نه ثابته شوه چې د څاروؤ څرمن ، ویښته او وړئ وغیره استعمالول انسان دپاره حلال دی ، که څاروې حلال وی او که حرام ، که هغه ذبح شوې وی او که هم داسې مردار شوې وی . ولې چې په رنګ کولو سره د هر قسم څاروی څرمن پاکیږي . بله خبره داده چې په وړئ پشم او ویښتو باندې د څاروی د مرګ څه اثر نه پریوزي د هغې استعمال په هر صورت کښې جائز دې . د امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله هم دغه مذهب دې البته د خنزیر څرمن او دهغې د بدن د تولو حصو استعمال په هر صورت کښې ناجائز دې او فائده اخستل ترې حرام دی .(٢)

﴿سَرَابِيلَ تَقِيكُمُ الْحَرَّ﴾ دلته ئې د انسان د قمیص اغوستلو غرض د ګرمئ نه ځان ساتل او خودل حالانکه دې کُرتې سره د یخنئ نه هم پرې خلق ځان بچ کوی . ددې یو جواب امام قرطبي رحمه الله اونورو مفسرینو دا ورکړې دې چې قرآن عظیم الشان په عربي ژبه کښې نازل شوې دې چې رومبی مخاطبین ئې هم عرب دی ځکه په دې کښې د عربو د عادتونو او ضرورتونو په جوړ کلام کړې شوې دې ، عرب یو ګرم ملک دې ، هلته د واورو وریدو او د یخنئ د سره تصور نشي کیدې ، ځکه ئې د ګرمئ نه په ځان ساتلو سره خبره ختمه کړه ، تهانوی رحمه الله په بیان القرآن کښې فرمائیلي دی چې قرآن عظیم الشان دداسې سورت په شروع کښې ﴿فِيهَا دِفْءٌ﴾ اوفرمائیل او په دې شان ئې د جامو په ذریعه د یخنئ نه د ځان ساتلو او د ګرمئ د حاصلولو بیان وړاندې کړې وو ، ځکه دلته یوازې د ګرمئ دفع کولو بیان کړې شوې دې .(٣)

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَيَوْمَ | نَبْعَثُ | مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ | شَهِيدًا |
| او په کومه ورځ | چې راپورته کړو مونږه | د هر امت نه | یو ګواه |

او په کومه ورځ چې به مونږ د هریو امت نه یو ګواه راپاڅوو (٤)

---

(١) ترجمه:- چې تاسو نه دوئ سره آرام درشي.

(٢) البحر الرائق کتاب الطهارة باب الطهارة بالدباغ إلخ [ج: ١ص:٣٨٢]

(٣) بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:٦ ص:٥٦]

(٤) **مشرک دَ ټولونه زیات ګمراه دي :-** دَ قیامت په ورځ چه به دَ کافران کوم بد حال وی دَ هغې ذکر کولې شی په هغه ورځ به په هریوامت باندې دَ هغوی نبی ګواهی ورکوی چه هغه دَ الله تعالی کلام هغوی ته رسولې وو بیابه کافرانو ته دَ هغوی عذر معذرت اجازت هم نه شی ورکولې ځکه چه دَ هغوی باطل کیدل او دروغ بالکل ښکاره دی. په سورت المرسلات کښې هم دغه فرمان دې چه په هغه ورځ به نه هغوی خبرې کوی نه به هغوی ته دَ عذر اومعذرت اجازت .... [باقی په راروانه صفحه..

...باقي حاشيه د تيرمخ]... ملاويږي. (۷۷/المرسلات:۳۵-۳۶) مشركان به عذابونوته گوري خوبيابه څه كمې نه وي. يوساعت به هم عذاب نه سپكيږي نه به هغوی ته څه مهلت ملاويږي ناڅاپي به راونيولې شي دوزخ به موجودشي چه د اوياؤزرو واگو والا به وي د هغې په هره يوه واگه به اويا زره فرښتې وي. (صحيح مسلم:۲۸۴۲، حاكم:۴/۶۳۷) د دې نه به يوسټ راوخي هغه به داسې خوره كړې وي چه د محشر ټول مخلوق به اوويريږي او په زنگونوبه راپريوځي هغه وخت به دوزخ په خپله ژبه په اوچت آواز اعلان كوي چه زه د هريوسركش ضدى د پاره مقرر كړې شوې يم چا چه الله تعالى سره بل څوك شريك كړې اوداسې داسې كارونه ئې كړې وي هغه به د ډيرو قسمونوگناهگارانو ذكر كوي.( ترمذي: ۲۵۷۴، باختلاف يسير ، احمد:۲/۳۳۶) لكه چه په حديث كښې دي چه بيا به هغه دغه ټولو خلقو پورې اونخلي اود ميدان حشر نه به ئې اوچت كړي لكه څنگه چه مرغئى دانه راغونډوي. د الله تعالى فرمان دې ﴿إِذَا رَأَتْهُم مِّن مَّكَانٍ بَعِيدٍ سَمِعُوا لَهَا تَغَيُّظًا وَزَفِيرًا﴾ (۲۵/الفرقان:۱۲) اوهغه به د لرې نه ښكاري د هغه شور ژوگ (زغ) شغلې وهل به هغوی اوري اوچه كله د هغې په تيارو او تنگو كوټونو كښې ورننه باسى نو مرگ ته به چغې وهي خوكه نن څوك مرگ هم غواړي نو څه كيدې شي؟ بل آيت كښې دی ﴿وَرَأَى الْمُجْرِمُونَ النَّارَ﴾ (۱۸/الكهف:۵۳) گناهگار چه دوزخ اووينى نو پوهه به شي چه دوی به په دې كښې وردوبولې شي خو هيڅ د بچ كيدو لار به نه ويني په يوبل آيت كښې دی ﴿لَوْ يَعْلَمُ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ (۲۱/الانبياء:۳۹) افسوس چه كافرانو هغه وخت معلوم كړې وې چه كله به هغوی د خپلومخونونه اود خپلو شاگانونه اُور لرې نه كړې شي نه به څوك امدادى موندې شي ناڅاپي به د الله تعالى عذاب هغوی حيران اوپريشان كړي نه به د هغوی د دې د لرې كولو طاقت وي نه به د يومنټ مهلت ملاويږي په هغه وخت كښې به د هغوی باطل معبودان د كومو چه ئې ټول عمر عبادتونه كړي اود هغوی نذرونه ئې منل بالكل به د هغوی نه ويزاره شي اود هغوی د حاجت په وخت كښې به بالكل د هغوی په هيڅ كار نه راځي هغوی ته به په كتو سره وائي چه اې الله هم دا دي هغه دكومو چه په دنياكښې مونږ عبادتونه كول نو هغوی به وائي دروغژن ئې مونږ كله تاسو ته ونيلي ووچه الله تعالى پريږدئى او زمونږ عبادت اوكړئى هم دا الله سبحانه وتبارك وتعالى فرمائي ﴿وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّن يَدْعُو مِن دُونِ اللَّهِ مَن لَّا يَسْتَجِيبُ لَهُ﴾ (۴۶/الاحقاف:۵) يعني د دوی نه زيات څوك گمراه نشته چه د الله تعالى نه بغيرهغه چاته آواز كوي چه د قيامت پورې به هم هغوی ته جواب ورنه كړي بلكه هغوی د دوی د چغونه هم ناخبره دي. اود حشر په ورځ به د دوی دښمنان وي اود هغوی د عبادت نه به انكاريان وي. په نورو آياتونوكښې دي چه خپل حمايتي دي او د عزت سبب ئې څوك گنړل او چاته ئې چغې وهلې هغوی خوبه د دوی دعبادتونونه داسې منكرشي چې د هغوی مخالفين به جوړشي. (۱۹/مريم:۸۱-۸۲) خليل الله ﷺ هم دا فرمائيلي ﴿ثُمَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكْفُرُ بَعْضُكُم بِبَعْضٍ﴾ (۲۹/العنكبوت:۲۵) يعني د قيامت په ورځ به د يوبل منكرشي. بل آيت كښې دي چه دوی ته به د قيامت په ورځ حكم وي چه خپل شريكان راوبلئى الخ. (۱۸/الكهف:۵۲) نور هم د دې مضمون آياتونه په كلام الله كښې موجود دي په دغه ورځ به ټول مسلمانان تابع فرمان شي لكه چه ارشاد دې ﴿أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ يَوْمَ يَأْتُونَنَا﴾ (۱۱/مريم:۳۸) يعني په كومه ورځ چه دوی زمونږ خوا ته راشي په هغه ورځ به ښه اوري او گوري. بل آيت كښې دی ﴿وَلَوْ تَرَىٰ إِذِ الْمُجْرِمُونَ نَاكِسُو رُءُوسِهِمْ عِندَ رَبِّهِمْ﴾ (۳۲/السجدة:۱۲) ته به گورې چه په دغه ورځ به گناهگار خلقو سرونه ټيټ كړې وائي به چه اې الله مونږ واوريده مونږ اوكتل الخ. بل آيت كښې دي چه په دغه ورځ به ټول مخونه د الله تعالى چه حي او قيوم دې مخكې ټيټ شوې وي. [۲۰/طه:۱۱۱].

تابعدار او تابع فرمان به وي د حكم لاندې به وي د هغوی ټول بهتانونه اود خان نه خبرې به ختمې شي ټولې چالاكئى به ئې ختمې شي هيڅ امدادى به ئې نه وي ولاړ. چاچه كفر كړې هغوی ته به د كفر سزا وركولې شي او په خپلو كښې به د نورو خلقو په مقابله كښې ....[باقي په راروانه صفحه.

ثُمَّ لَا يُؤْذَنُ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَلَا هُمْ

بیا | به اجازت ورنکړې شي | هغه کسانوته | چې کافران شوي دي | اونهٔ به دهغوئ نه

بیا به کافرانو ته د [حجت پیش کولو] اجازت ورکولې نشي | اونه به ددوئ نه

يُسْتَعْتَبُوْنَ ﴿٨٤﴾ وَإِذَا رَاَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوا الْعَذَابَ

طلب دتوبې ایستلواوکړې شي | اوهرکله چې | اووینی | هغه کسان | چې ظلم ئې کړې دې | عذاب لره

عذر قبول کړې شي | ..................اوکله چې ظالمان خلق عذاب اووینی

فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ ﴿٨٥﴾ وَإِذَا رَاَ

| نو سپك به نه كړې شي | دهغوئ نه | اونهٔ به هغوئ ته | انتظار اوكړې شي | هر كله چې | اووينى

نو نه خو به د هغوی نه سپکولې شي | اونه به دوئ ته مهلت ورکولې شي | او څه وخت چې مشرکان

الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا شُرَكَآءَهُمْ قَالُوْا رَبَّنَا هٰٓؤُلَآءِ شُرَكَآؤُنَا

هغه کسان | چې شرك ئې كړې دې | شريكان خپل | نواوبه وائى | اے ربه زمونږه | دادي شريكان زمونږه

خپل شريكان [معبودان] اووينى | نو دا به اووائى ائې زمونږ ربه ! | ..........دا زمونږ

الَّذِيْنَ كُنَّا نَدْعُوْا مِنْ دُوْنِكَ ۚ فَاَلْقَوْا اِلَيْهِمُ الْقَوْلَ

هغه | چې وو مونږه | چې رابلل به مونږه دوئ | بې له تانه | نواوبه غورزوئ | دوئ ته خبره |

هغه معبودان دي | كوم چې به مونږ ستا نه سوا رابلل | بيا به معبودان دوئ ته دا جواب وركړى | چې

اِنَّكُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿٨٦﴾ وَاَلْقَوْا اِلَى اللّٰهِ يَوْمَئِذِ السَّلَمَ

چې بيشكه تاسو | خامخا دروغژن يئ | اواوبه غورزوى | الله ته | په دغه ورځ | صلحه

بيشكه تاسو درغژن يئ | ..........اومشركان به الله تعالى ته په دغه ورځ صلح پش كړى

وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿٨٧﴾ اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا

اوورك به شي | دهغوئ نه | هغه | چې وو هغوئ | چې دروغ به ئې تړل | هغه كسان | چې دكفرپه لاره لاړل

اوخپل ټول دروغ به تري هير شي | اچا چې دكفر لاره اختيار كړه | او نور خلق ئې د الله تعالى د لاري

....باقي حاشيه د تيرمخ]...دوچنده سزا خوری دا هم هغه وو چه پخپله به هم لرې تختیدل او نور به نی هم دَ حق نه لرې تختول. په اصل کښې هغوي پخپله دَ تباهنی په بوختـه کښې انختی خو دوی بې وقوف وو. دَ دې نه معلومیږی چه دَ کافرانو دَ عذابونو به هم درجې وی څنګه چه دَ مؤمنانو دَ بدلې درجې وی. لکه چه دَ الله تعالی ارشاد دې ﴿لِكُلٍّ ضِعْفٌ وَّلٰكِنْ لَّا تَعْلَمُوْنَ﴾ [الاعراف:۷/۳۸] دَهریو دپاره دوچند دې خو تاسوته علم نشته. ابویعلی کښې دحضرت عبدالله رضی الله عنه نه روایت دې چه دَ جهنم دَ عذاب سره به دَ زهرژنومارانو تکونه زیاتیږی چه دومره لوئ لوئ به وی لکه څومره چه دَ لویو کهجورو ونې وی. (مجمع الزوائد:۷/۴۸، مسندابی یعلی:۲۶۵۹) دَ ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه دَ عرش لاندې به پنځه نهرونه وی په کوم چه به دوزخیانوته عذاب ورکولې شی دَشپې هم اودَ ورځې هم.

وَصَدُّوْا　عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ　زِدْنٰهُمْ　عَذَابًا　فَوْقَ الْعَذَابِ

[او منع ئي كړل نورخلق] دلارې دالله نه | زيات به وركوو موږ هغوئ ته | عذاب | دپاسه دعذاب

نه منع كړل [هغوئ ته به موږ د يوې دپاسه بله سزا زياته كړو [اخكه چې هغوئ به په دنيا كښې فسادونه

بِمَا　كَانُوْا　يُفْسِدُوْنَ ۝　وَيَوْمَ　نَبْعَثُ

په سبب دهغې | چې وو هغوئ | چې فسادبه ئې كوو | اوخبرې ئې كړه دهغه ورځ نه | چې راپورته به كړو موږ

كول [اوهغه ورځ هم دياد ولو لائقه ده | چې موږ به د هر يو امت نه يو يو گواه هم د هغوئ د مينځ

فِيْ كُلِّ اُمَّةٍ　شَهِيْدًا　عَلَيْهِمْ　مِّنْ اَنْفُسِهِمْ　وَجِئْنَا

[په هر امت كښې | يو گواه | په هغوئ باند | دنفسونو دهغوئ نه | او رابه ولو موږ

نه راوچت [پيش] كړو | اوتابه د دې خلقو په مقابله كښې گواه را رواندې كړو | اوموږ په تاباندې

بِكَ شَهِيْدًا. عَلٰى هٰٓؤُلَآءِ ؕ　وَنَزَّلْنَا　عَلَيْكَ　الْكِتٰبَ　تِبْيَانًا

تالره | گواه | په دې خلقو باند | او نازل كړې دې موږه | په تاباند | داكتاب | چې وضاحت كونكې دې

داكتاب قرآن نازل كړې دې | په دې كښې د هر [ديني] څيز [حسب ضرورت] واضحه بيان موجود دې

لِّكُلِّ شَيْءٍ　وَّهُدًى　وَّرَحْمَةً　وَّبُشْرٰى　لِلْمُسْلِمِيْنَ ۝

دپاره دهر څيز | او هدايت دې | او رحمت دې | او زيرې دې | دپاره دمسلمانانو |

........او [دا قران] مسلمانانو دپاره هدايت اورحمت او زيرې دې

## آسان ترجمه قرآن

او هغه ورځ ياد ساته چه موږ به په هر امت كښې گواه اودروو بيا چه كومو خلقو كفر خپل كړې وو، هغوی ته به (د عذر پيش كولو) اجازت ورنكړې شي اونه به هغوی ته دا فرمائش اوكړې شي چه هغوی توبه اوباسي. او كله چه دا ظالمان خلق عذاب په خپلو سترګو باندې ويني نو نهٔ خو به ترې هغه عذاب سپک كړې شي، او نه به هغوی ته مهلت وركړې شي. او كومو خلقو چه د الله پاک سره شرک كړې دې چه كله هغوی خپل (مقرر كړی) شريكان ويني نو وائي به چه : اې زموږ ربه! دا دی هغه شريكان كوم چه به موږ ستا نه سوا رابلل په دې موقع باندې به (هغه جوړ كړې شوې شريكان) په هغوی باندې اوړه پړه درواچوی چه تاسو بالكل دروغژن يئ اوهغه ورځ به د الله پاک مخكښ د فرمانبردارئ خبرې كوی، او كوم بهتان چه هغوی تړلو. دهغې به هغوی ته هيڅ درک نه ملاويږی كومو خلقو چه كفر خپل كړې وو، او نورخلق ئې د الله پاک د لارې نه منع كړې وو، د هغوی په عذاب باندې به موږ د نور عذاب اضافه كوو، ځكه چه هغوی به فسادونه كول. او هغه ورځ هم ياده اوساتئ چه په هر امت كښې به يو گواه هم د هغوی نه اودرولې شی، او اې پيغمبره موږ به تا د دې خلقو خلاف د گواهئ دپاره راولو. او موږ په تا باندې دا كتاب نازل كړې دې چه هغه هره خبره ښكاره ښكاره بيان كړی، او د مسلمانانو دپاره د هدايت، رحمت او زيری سبب شي.

## د تفسیر خلاصه

﴿وَيَوْمَ نَبْعَثُ مِن كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا﴾ او [هغه ورځ د یادولو قابله ده] په کومه ورځ به چې مونږ د هر هر امت ځیني یو یو ګواه [ چې هغه امت پیغمبر به وی ] راپورته کړو [ چې دهغوئ د بدو عملونو ګواهی به ورکوی] ﴿ثُمَّ لَا يُؤْذَنُ لِلَّذِينَ كَفَرُوا﴾ بیا به دغې کافرانو ته [ د عذر معذرت کولو] اجازت نشی ورکولې ﴿وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ﴾ او نه به ورته دالله ﷻ دراضی کولو فرمائش کولې شی [ یعنی داسې به ورته نشی وئیلې چې تاسو په توبې یا په بل نیک عمل کولو سره الله ﷻ خوشحاله کړئی ، ددې وجه په ښکاره داسې ده چې آخرت دارالجزاء دې دارالعمل نه دې] ﴿وَإِذَا رَأَى الَّذِينَ ظَلَمُوا الْعَذَابَ﴾ او کله چې به ظالمان [ یعنی کافران ] خلق عذاب اووینی ] یعنی په عذاب کښې به وریږیوزی ] ﴿فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ﴾ نو دغه عذاب به نه دهغوئ سپکولې شی ﴿وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ﴾ اونه به هغوئ ته [ په هغې کښې ] څه مهلت ورکولې شی [ چې څو ورځې پس پرې دغه عذاب جاری کړې شی ] ﴿وَإِذَا رَأَى الَّذِينَ أَشْرَكُوا شُرَكَاءَهُمْ﴾ او کله به چې مشرکان خلق خپل شریکان [د کومو عبادت به ئې چې د الله ﷻ نه سوا کولو] اووینی نو [ دخپل جرم د اقرار په ډول] ﴿قَالُوا رَبَّنَا هَٰؤُلَاءِ شُرَكَاؤُنَا الَّذِينَ كُنَّا نَدْعُو مِن دُونِكَ﴾ وائی به چې ائې زمونږ پروردګاره هغه زمونږ شریکان هم دادی چې ستاسو ﷻ په پرېښودو سره مو ددوئ عبادت کولو ﴿فَأَلْقَوْا إِلَيْهِمُ الْقَوْلَ إِنَّكُمْ لَكَاذِبُونَ﴾ نو هغوئ [ یعنی شریکان به اوویریږی چې هسې نه په مونږ باندې څه کم بختی راشی څکه ] به هغوئ خبره هم دوئ ته [داسې] راواړوی چې تاسو دروغژن یئ [ اصل مطلب به ئې دا وی چې زمونږ درسره هیڅ کار نشته چې مطلب به ئې د خپل ځان غم کول وی خو دا مطلب ئې صحیح وی چې لکه پیغمبران ﷺ اوفرښتې به دغسې وائی کله الله ﷻ فرمائی چې [﴿بَلْ كَانُوا يَعْبُدُونَ الْجِنَّ﴾](۱) او که غلط وی لکه چې شیطانان ئې اووائی او خوا هغوئ ته د صحیح او غلط کیدلو هیڅ څیز خبر هم نه وی لکه چې بتان او ونې وغیره به ئې وائی] ﴿وَأَلْقَوْا إِلَى اللَّهِ يَوْمَئِذٍ السَّلَمَ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ﴾ او دا مشرکان او کافران خلق به په دغه ورځ دالله ﷻ په وړاندې د فرمانبردارئ خبرې کول شروع کړی او په دنیا کښې به ئې څه تورونه پورې کول [دغه وخت] هغه به ټول [هر څه] ورك شی [ او په دوئ کښې ] ﴿الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ﴾ کومو خلقو به چې [پخپله هم] کفر کولو او نور به ئې هم ] د الله ﷻ د لارې [ یعنی دین] نه ایسارول ﴿زِدْنَاهُمْ عَذَابًا فَوْقَ الْعَذَابِ بِمَا كَانُوا يُفْسِدُونَ﴾ هغوئ دپاره به مونږ یوې سزا [ چې د کفر سزا به وی] دپاسه بله سزا دهغوئ دفساد [ چې د الله ﷻ دلارې نه به ئې ایسارول کول] پرې سوا کړو ﴿وَيَوْمَ نَبْعَثُ فِي كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا عَلَيْهِم مِّنْ أَنفُسِهِمْ﴾ او [ هغه ورځ هم د یادولو اودخلقو د ویریدو ده ] په کومه ورځ به چې مونږ په هرهر امت باندې یو یو ګواه چې هم د هغوئ ځیني [څخه] به وی د هغوئ په مقابله کښې اودروؤ [مراد به ترې ددغه امت نبی وی او هم ددوئ نه کیدل عام دی خوا ورسره په نسب کښې شریك وی او یا به ئې استوګنه ورسره شریکه او یو ځائې وی] ﴿وَجِئْنَا بِكَ شَهِيدًا عَلَىٰ هَٰؤُلَاءِ﴾ او ددغې خلقو په مقابله کښې به تاسو لره ګواه جوړ کړې راولو [او ستاسو ددې ګواهئ د خبر ورکولو نه چې ستاسو د پیغمبرئ خبر ورکول معلومیږی د هغې دلیل دادې چې ] ﴿وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ تِبْيَانًا

(۱) ترجمه:- بلکه دې خلقو به شیطانانو ته سجدې کولې.(سبا:۴۱)

﴿لِّكُلِّ شَيْءٍ﴾ مونږ په تاسو قرآن پاك نازل كړې دې [دا معجزه ده او د پيغمبرۍ ثابتيدل پرې انحصار لرى ددې څخه علاوه په كښې داسې خوبيانې راجمع دى] چې د ټولو [ددين] د خبرو [په واسطې يا بې واسطې د عامو خلقو دپاره] بيانوونكې دې ﴿وَهُدًى وَرَحْمَةً وَبُشْرَىٰ لِلْمُسْلِمِينَ﴾ او [خاص] مسلمانانو دپاره لوئې هدايت اولوئې رحمت او [په ايمان باندې] زيرې وركوونكې دې

## معارف او مسائل

﴿وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ تِبْيَانًا لِّكُلِّ شَيْءٍ﴾ دلته د قرآن عظيم الشان د هر څيز بيانوونكى مطلب د ټولو دينى خبرو بيانوونكې څكه دې چې د وحى او پيغمبرۍ مقصد هم دينى څيزونه او دينى خبرې دى ، په دې وجه معاشى فنون او ددې مسئلې په قرآن كريم كښې لټول غلط دى ، البته كه ضمناً دې ته په كښې څه اشاره راشى نو هغه هم دې سر دبې سمونه نه دى ، دلته يو سوال دا راپورته كيږى چې په قرآن عظيم الشان كښې خو ټولې دينى خبرې او څيزونه هم موجود نه دى نو قرآن عظيم الشان د ټولو دينى څيزونو بيانوونكې څنګه كيدې شى ؟

ددې جواب دادې چې په قرآن عظيم الشان كښې د ټولو خبرو اصول موجود دى چې دهغې په رڼا كښې د نبى كريم ﷺ احاديث دغه مسئلې بيانوى څه تفصيلات اجماع او شرعى قياس ته سپارلې شى ، په دې وجه د احاديثو ، اجماع او قياس په ذريعه راويستې مسئلې هم ګويا كښې قرآنى مسئلې شوې .

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ اللَّهَ | يَأْمُرُ | بِالْعَدْلِ | وَالْإِحْسَانِ | وَإِيتَاءِ | ذِي الْقُرْبَىٰ |
| بيشكه الله | حكم كوى | په عدل كولوسره | اوپه احسان كولو سره | او په وركولو سره | رشته دارانو ته |
| الله تعالى يقيناً تاسو ته دانصاف او د نيكۍ او خپلوانو ته د مال وركولو حكم كوى | | | | | |
| وَيَنْهَىٰ | عَنِ الْفَحْشَاءِ | وَالْمُنكَرِ | وَالْبَغْيِ | يَعِظُكُمْ | |
| اومنع كوى | دبې حيايۍ دكارونونه | اودبدوكارونونه | اودظلم زياتى نه | هغه نصيحت كوى تاسو ته | |
| او دبې حيايۍ د بدو كارونو او د سركشۍ نه مو منع كوى | اوتاسو ته نصيحت كوى | | | | |
| لَعَلَّكُمْ | تَذَكَّرُونَ ﴿۹۰﴾ | | | | |
| دپاره ددې چې تاسو | نصيحت قبول كړئ | | | | |
| دې دپاره چې تاسو نصيحت حاصل كړئ | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

**بيشكه الله پاک د انصاف، احسان او رشته دارو ته (د هغوى حقوقو د) وركړې حكم كوى، او د بې حيايۍ، ګناه او ظلم نه منع كوى. هغه تاسو ته نصيحت كوى، چه تاسو نصيحت قبول كړئ.**

## د تفسير خلاصه

﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ وَإِيتَاءِ ذِي الْقُرْبَىٰ﴾ بيشكه الله ﷻ [په قران كريم كښې] د برابرۍ ، احسان او نزدې خپلوانو ته د وركړې حكم كوى ﴿وَيَنْهَىٰ عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنكَرِ وَالْبَغْيِ﴾ او دبدكاره او هرې

خرابئ او [ په چا باندې ] ظلم او زياتي كولو نه منع كوى دا په ماموراتو او منهياتو مذكوراؤ كښې دى او نيك او بدعملونه ټوله راغلل ، ددې ټول اړخير والى په وجه د قرآن عظيم الشان تبيان كيدل بالكل ښكاره دى ﴿يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ۝﴾[الله ﷻ تاسوته [ ددغې بيان شوؤ څيزونو] څكه نصيحت كوى چې تاسو نصحيت قبول كړئى [ او عمل اوكړئى څكه چې هدى ، رحمت او بشرى كيدل هم په دې باندې اړه لري]

## معارف او مسائل

د قرآن عظيم الشان دا آيت مبارك د ټولو څخه زيات ټول اړخيز داسې دې چې ټول اسلامي تعليمات په څو الفاظو كښې راوستې شوى دى ، هم دغه وجه ده چې د پخوانو بزرګانو د زمانې راسې تر ننه پورې د جمعو او اخترونو د خطبو په آخر كښې دا آيت مبارك لوستلې شي. عبدالله بن مسعود ﵁ فرمائي په قرآن عظيم الشان كښې د ټولو څخه زيات ټول اړخيز آيت مبارك هم دا آيت د سورة نحل بللې شي . [ابن كثير]

د اكثم بن صيفى د مسلمانيدو باعث هم دا آيت مبارك جوړ شو ، امام ابن كثير ﷫ د حافظ ابى يعلى د كتاب معرفة الصحابه په سند سره نقل كړى دى چې اكثم بن صيفى د خپل قوم سردار وو كله چې اكثم بن صيفى ﵁ د نبى كريم ﷺ د پيغمبرئى ددعوې كولو او د اسلام د خوريدو څخه خبر شو ،نو د اراده ئې اوكړه چې د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شي خو خپل قوم ئې ورته اوويل چې زمونږ سردار يې تا لره پخپله هلته تلل مناسب نه دى ، اكثر اوويل چې ښه ده نو تاسو دخپلې خوښې دوه كسان هلته ورتلو دپاره اوټاكئ چې د هغه ځائې د پوره حالاتو څخه مو خبر كړى ، دغسې دوه كسان چې د هغوئ په خدمت كښې حاضر شو نو عرض ئې اوكړو چې اكثم بن صيفى ﵁ د دوؤ خبرو دپاره پوښتلو راغلى يو ، داكثم دوه سوالونه دادى:

﴿من انت وما انت﴾[ تاسو څوك او څه يئ]

نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې زه محمد بن عبدالله ﷺ يم ، او د دويم تپوس جواب دادې چې زه د الله ﷻ بنده او دهغه رسول يم ، بيا نبى كريم ﷺ د سورة نحل دا ﴿اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْاِحْسَانِ﴾ آيت اولوستلو دغې دوؤ ريبارانو يعنى قاصدانو ددې آيت د دوباره لوستلو خواست تر اوكړو ، نبى كريم ﷺ بيا بيا دا آيت مبارك اولوستو تر دې چې دوئ ته هم دغه آيت مبارك ياد شو.

دغه ريباران يعنى قاصدان چې بيرته اكثم بن صيفى ﵁ ته اؤرسيدل نو وې وئيل چې اول تپوس زمونږ په دې غرض وو چې د نبى كريم ﷺ نسب معلوم كړو خو هغوئ ورپسې ډيره مخه يو نه ړه ، صرف د خپل باباجى نوم ئې راته اوخودلو خو د نورو خلقو څخه تپوس كولو راته معلوم شوه چې نبى كريم ﷺ د ډير لوړ نسب والا او شريف خاندان غړى دى ، او بيا ئې اوويل چې حضرت محمد ﷺ مونږ ته يو څو كلمې هم آؤرولى دى و چې هم مونږ بيانه وو، قاصد دا مذكوره آيت اكثم بن صيفى ته واؤرولو.

اكثم بن صيفى ﵁ ددې په آؤريدلو سمدستى اوويل چې نبى كريم ﷺ د غوره اخلاقو خودنه كوى،اوبدو ناكاره اخلاقو څخه خلق منع كوى،تاسو ټول دهغه په دين كښې زردا خل شئ دپاره ددې چې تاسو د نورو خلقو څخه وړاندې او مخكښې شئ .روستو پاتې جوړنشئ [ابن كثير]

دغه شان عثمان بن مظعون ﷺ فرمائي چې په اول سر کښې مې صرف د خلقو د شرمه سرسري اسلام قبول کړې وو ، زړه کښې مې پوره نه وو ورننوتې په دې دوران کښې يو ځل د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر ووم ، ناڅاپه پرې دوحی راتلو نخښې ښکاره شوې ، د ځينې عجيبه حالاتو څخه روستو ئې اوفرمائی چې د الله ﷻ قاصد ماته راغلو او دا آيت په ما نازل شو. عثمان بن بن مظعون فرمائيلی دی چې ددې واقعې په ليدو او ددې آيت مبارك په آوريدو مې په زړه کښې ايمان مضبوط او قوی شو. او د نبی کريم ﷺ مينه مې هم په زړه کښې کلکه اوښخه شوه ، [ابن کثير ددې واقعې نقل کولو څخه روستو فرمائی چې ددې اسناد جيد دې]

داشان هرکله چې وليد بن مغيره ﷺ د نبی کريم ﷺ د خلې مبارکې څخه دا آيت مبارك واؤريدو نو پخپله ددې د اثر شان داسې بيانوی :

﴿والله ان له لحلاوة وان عليه لطلاوة وان اصله لمورق واعلاه لمثمر وما هو بقول بشر﴾ [په الله ﷻ مې دې قسم وی چې په دې کښې يو خاص حلاوت دې ، او په دوئ باندې يو خاص رونق او نور دې ، ددې د جرړې څخه ښاخونه او پاڼې راوتونکې دی ، او په ښاخونو باندې ميوې کيدونکې دی ، دا د يو انسان کلام نشی کيدې]

**د درې څيزونو حکم او د درې څيزونو منع** :: دې آيت مبارك کښې الله ﷻ د درې څيزونو حکم ورکړې دې چې عدل ، احسان او نزدې خپلوانو ته بخشش ورکول دی ، او د درې څيزونو څخه ئې منع کړې ده چې هغه فحش کار ، هر يو خراب کار او ظلم زياتی کول دی. ددې شپږو نقظونو شرعی مطلب او ددې دحدونو تشريح داده :

**عدل** :: ددې اصلی او لغوی معنی برابرول دی ، په دې مناسبت سره د حاکمانو هغې فيصلې ته عدل وئيلې شی چې د خلقو په جګړو ختمولو کښې ئې انصاف کړې وی. قرآن عظيم الشان کښې ﴿اَنْ تَحْكُمُوْا بِالْعَدْلِ﴾ هم دا معنی ورکوی. دې لحاظ سره د زياتی کمی تر مينځه حالت او صورت ته هم اعتدال وئيلې شی. او هم په دې مناسبت سره ځينې مفسرينو ددې تفسير د ظاهر او باطن په برابرئ سره کړې دی ، مطلب ئې دادې چې د انسان اندرونی عقيده او د بيرونی اندامونو عمل يو شان وی او خپل مينځ کښې سره پوره جوړښت لری ، په دې بنا حقيقت دادې چې د عدل معنی عامه شی او هغه ټول صورتونه په کښې شامل کړې شی چې مختلفو امامانو د تفسير څخه منقول دی او په دې کښې هيڅ تضاد يا اختلاف نشته دې.

ابن عربی ﷫ فرمائی چې د عدل اصلی معنی برابری کول دی ، خو د مختلفو نسبتونو په وجه ددې مطلب مختلف راوځی. لکه چې انسان دخپل ځان او دخپل رب تر مينځه عدل اوکړی نو ددې مطلب دا راخيژی چې د الله ﷻ رضا لټول ئې پخپلو خواهشاتو باندې وړاندې کړل ، د الله ﷻ په حکمونو ئې عمل اوکړو ، او دهغه دمنع کړو شوؤ او حرامو کړو شوؤ څيزونو څخه ئې ښه پوره پوره ډډه اوکړه.

د عدل بل مطلب دادې چې انسان د خپل ځان باره کښې د عدل څخه په دې شان کار واخلی چې خپل نفس د ټولو هغه څيزونو څخه ساتی کوم چې ددهٔ د جسمانی يا روحانی هلاکت سبب وی. داسې خواهشات نه پوره کوی چې په نتيجه کښې ددهٔ دپاره ضرر وی. د قناعت او صبر څخه کار اخلی او په نفس باندې بې ضرورته پيټې نه اچوی.

عدل دې ته هم وائي چې د خپل ځان او د مخلوق تر مينځه دهغه معامله داسې وي چې د مخلوق خيرخواه او همدرد وي ، او په هيڅ لوې ، ورې خبرې کښې چا سره خيانت نه کوي ،ټولو خلقو سره د انصاف کولو ، ځان ذمه دار ګڼړي ، هيڅ يو انسان ته دده د قول ، فعل څخه په ښکاره يا په پټه ، په ظاهره او باطن کښې څه تکليف يا زيان نه ور رسي.

دا هم عدل دې چې دوه کسان يا دوه ډلې خپله څه مقدمه چاته پيش کړي نو هغه په بې طرفئ سره دهغې حق فيصله اوکړي. دعدل دا معنی هم ده چې په هره معامله کښې د کمی زياتی تر مينځه ،منځوميانه [درميانه] لار اختيار کړي.

ابوعبدالله رازی همدغه معنی اختيار کړې ده او فرمائيلی ئې دی چې د عدل په لفظ کښې د عقيدې اعتدال دعمل اعتدال او داخلاقو اعتدال ټول شامل دی. [بحر محيط]

امام قرطبی رحمه الله د عدل په باره کښې ددې تفصيل بيانولو څخه روستو فرمائيلی دی چې داتفصيل ډير غوره دې ، دې څخه دا هم معلومه شوه چې ددې آيت مبارك يوازې د عدل لفظ دټولو نيكو عملونو او اخلاقو پابندی ، د بدوعملونو او اخلاقو څخه ډډه کول په دې يو ټکی کښې رايو ځائې کړي او جمع کړي دی.

د الاحسان :*: اصلی لغوی معنی ښه کول ، دی او دهغې دوه قسمونه دی ، يو دا چې کارونه ، خويونه اوعادتونه ټول ئې مکمل او ښه وی. دويم قسم ئې دادې چې بل چا سره سلوك او معامله ښه کوی او دې دويمې معنې دپاره احسان سره د الی حرف استعماليږی لکه الله ﷻ فرمائی چې : ﴿وَأَحْسِنْ كَمَا أَحْسَنَ اللَّهُ إِلَيْكَ﴾.

امام قرطبی رحمه الله فرمائيلی دی چې په دې آيت مبارك کښې دا لفظ خپل عام مفهوم دپاره استعمال شوې دې ځکه د احسان دواړه قسمونه ترې مراد اخستې شی ، بيا د ړومبی قسم احسان هم ډير قسمونه دی ، لکه عبادتونه ، اخلاق او معاملات ښه کول

د جبرائيل عليه السلام په مشهور حديث کښې د نبی کريم ﷺ د احسان بيان کړې معنی د احسان د عبادت دپاره ده. ددغې ارشاد نبوی ﷺ خلاصه داده چې د الله ﷻ عبادت په دې شان سره کوی چې ګويا ته الله ﷻ لره وينې اوكه دا درجه درته نصيب نه وی نو دومره يقين لرل خو هر چا لره ضروری دی چې الله ﷻ ما وينی. ولې چې داد اسلامی عقيدې ډيره ضروری برخه ده چې د الله ﷻ د علم او ليدلو څخه دکائناتو يوه ذره هم بهر نه ده.

خلاصه داده چې دلته دويم حکم د احسان کولو راغليدی د احسان څخه په آيت مبارك کښې مطلب د عبادت احسان هم مراد دې ځنګه چې په آيت مبارك کښې ئې تشريح شوې ده او د ټولو عملونو ، اخلاقو او عادتونو احسان هم ترې مراد دی ، داشان په دې کښې ټولو مخلوقاتو سره ښه سلوك کول هم په کښې داخل دی خواه هغه مسلمان وی که کافر وی ، انسان وی که حيوان وی.

امام قرطبی رحمه الله فرمائيلی دی چې د چا په کور کښې پيشو ته خوراك او ضرورت نه ملاويږی ، د چا په کور کښې د بندو او ساتلو شوو مارغانو ضرورت نشی پوره کولې که هغه هر څومره عبادتونه کووی بيا به مې په محسنينو کښې نه حسابيږی.

دې آيت مبارك کښې اول د عدل حکم ورکړې شوې دې بيا د احسان. دتفسير ځينې امامانو فرمائيلی دی چې عدل دادې چې د هر چا حق پوره پوره ادا کړی ، او خپل حق پوره پوره دبل

ښخه وصول کړي . لکه کـه د چا ښخه د نقصان خپل بدل اخلي نو هومره نقصان دې ورکوي ښومره چې بل ورته نقصان ورکړې وي ، نه ترې زيات اخلي اونـه ترې کم اخلي . اود احسان معنى داده چې بل چا ته دهغه د حق ښخه زيات ورکړې شي او خپل ښان دپاره د خپل حق ښخه کم وصول کړئي ، د نقصان په بدلې اخستلو کښې دمعافۍ ښخه کار اخلي بلکه د بدۍ بدله په نيکۍ سره ورکوي ، داشان د عدل حکم د فرضو او واجبو په درجه کښې شو او د احسان حکم دنفلو په درجه کښې شو.

﴿وَإِيتَآيِٕ ذِى الْقُرْبٰى﴾ دريم حکم چې دې آيت مبارك ورکړې شوې دې هغه د ﴿إِيتَآيِٕ ذِى الْقُرْبٰى﴾ دې د ايتـاء معنى عطاء کول يعنى د يو ښيز ورکولو ده ، او د قربى معنى د قرابت دارئى او رشته دارئى ده . د ذى القربى معنى رشته دار ،ذى رحم ، د ايتـاء ذى القربى معنى دا شوه چې رشته دارو ته ښه ورکول ، دې ښائې کښې يې ددې وضاحت نه دې کړې چې ښه ښيز ورکول دى ، خو يو بل آيت مبارك کښې ددې مفعول مذکور دې ﴿فَاٰتِ ذَا الْقُرْبٰى حَقَّهٗ﴾ . يعنى رشته دارو ته دهغوئ حق ورکوئى . ظاهره خبره د ه چې دې ښائې هم کښې هم مفعول مراد دې ، چې رشته دارو ته د هغوئ حق ورکړئى ، په دې حق کښې رشته دارو ته مال ورکول او مالى خدمت کول هم داخل دى . او بدنى خدمت هم ، بيمار پرسى او د هغوئ خير خبر اخستل هم . په خوله ورته تسلى ورکول هم . اود احسان په لفظ کښې درشته دارو ته حق اداکول هم داخل وو خو د زيات اهميت ورکولو دپاره ئې ښان له مستقل بيان کړل.

دا درې حکمونه ايجابى وو، وروستو دا بيان شوى حکمونه د منع او حراموالى دى.

﴿وَيَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ﴾ [پس الله ﷻ منع کوى د فحشاء ، منکر او بغى ښخه]

فحشاء هر داسې ناکاره کار يا خبرې ته وئيلى شى چې دهغې خرابوالې ښه ښکاره او په ډاګه وى ، هر ښوك ئې ناكاره ګنړى او بولى.

منکر هغه قول ته او عمل تـه وائى چې د هغې په حراموالى او ناجائز والى باندې ټول اهل شرع اتفاق لرى ، په دې وجه اجتهادى اختلافاتو کښې بل طرفته منکر نشى وئيلې . دمنکر وئيلو په لفظ کښې ټول ظاهرى ، باطنى ، عملى او اخلاقى ګناهونه داخل دى.

د بغى اصل معنى د حد ښخه ورتيريدل دى چې مراد ترې زور ظلم کول دى دلته اګر چې د منکر لفظ په مفهوم کښې فحشاء هم داخل دى او بغى هم ، ليکن د ډير ناکاره والى په وجه ښان له او دټول ښخه زيات وراندې بيان شو ، او بغى يې ښکه ښان له بيان کړې شو چې ددې اثر نورو ته وررسيږى اوښى او ښينې وختونه دا وررسيږي دجنګ جګړو صورت اختيار کړى ، او کله خو دې ښخه هم زيات دعالمى فساد صورت اختيار کړى.

يو حديث پاك کښې نبى کريم ﷺ ارشاد فرمائيلى دې چې د ظلم ښخه سوا داسې بله ګناه نشته چې بدله او عذاب ئې زر ورکولې شى ، دې ښخه معلوم شو چې د ظلم سخت عذاب خو په آخرت کښې بهٔ وى خو په دنيا کښې هم الله ﷻ ظالم ته دظلم سزا ورکوى . اګر چې په دې نه پوهيږى چې دا د فلانى ظلم سزا ده ، او الله ﷻ د مظلوم مدد کولو وعده فرمائيلې ده.

دې آيت مبارك كښې چې كوم شپږ حكمونه ايجابي او تحريمي بيان شوي دي نو دا د انساني ژوند او مكملې كاميابۍ دپاره اكسير او اثرناكه نسخه ده ، الله ﷻ دې ددې تابعداري زمونږ نصيب كړي .

وَاَوۡفُوۡا　بِعَهۡدِ اللّٰهِ　اِذَا　عٰهَدۡتُّمۡ

| او پوره كوئ | وعده دالله | كله چې | وعده اوكړئ تاسو

| او دالله تعالى وعده پوره كوئ | هر كله چې تاسو وعده اوكړئ

وَلَا تَنۡقُضُوا　الۡاَيۡمَانَ　بَعۡدَ　تَوۡكِيۡدِهَا　وَقَدۡ جَعَلۡتُمُ　اللّٰهَ

او مه ماتوئ تاسو | قسمونه | روستو | دمحكم كولو دهغې نه | حال دا چې جوړ كړې وي تاسو | الله

او د پخولو نه پس قسمونه مه ماتوئ | حال دا دې چې تاسو په خپل ځان باندې

عَلَيۡكُمۡ　كَفِيۡلًا ؕ　اِنَّ اللّٰهَ　يَعۡلَمُ　مَا　تَفۡعَلُوۡنَ ﴿۹۱﴾　وَلَا تَكُوۡنُوۡا

په ځانونو خپلو باندې گواه | بيشكه الله | پوهيږي | په هغه عملونو | چې كوئ ئې تاسو | او مه كيږئ تاسو

الله تعالى ضامن جوړ كړې دې | بيشكه الله تعالى ستاسو په ټولو كارونو پوهيږي | او تاسو د هغې

كَالَّتِيۡ　نَقَضَتۡ　غَزۡلَهَا　مِنۡۢ بَعۡدِ　قُوَّةٍ　اَنۡكَاثًا ؕ

پشان د هغه ښځې | چې وې سپړدل | ريښلي تارونه خپل | روستو دمحكموالي نه | ټوټې ټوټې

ښځې په شان مه كيږئ | چې خپل تارونه به ئې دمضبوطولو نه پس بيا ريښه ريښه كړل | چې پخپل چل ول

تَتَّخِذُوۡنَ　اَيۡمَانَكُمۡ　دَخَلًاۢ　بَيۡنَكُمۡ　اَنۡ تَكُوۡنَ　اُمَّةٌ هِىَ اَرۡبٰى

نيسئ تاسو | قسمونه خپل | ذريعه دټگۍ | په منځ خپل كښې | چې شي | يوه ډله هغه زياته گټوره

تاسو هم خپل قسمونه د فساد ذريعه اوگرځوئ | په دې غرض چې يوه ډله د بلې ډلې نه زياته فائده

مِنۡ اُمَّةٍ ؕ　اِنَّمَا　يَبۡلُوۡكُمُ اللّٰهُ　بِهٖ ؕ　وَلَيُبَيِّنَنَّ　لَكُمۡ

دبلې ډلې نه | بيشكه | آزمائي تاسو لره الله | په دې وعده سره | او خامخا به بيان كړي | تاسو ته

واخلي | الله تعالى هم دغه شان په تاسو امتحان كوي | او د قيامت په ورځ به درته هغه ټول

يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ　مَا　كُنۡتُمۡ　فِيۡهِ　تَخۡتَلِفُوۡنَ ﴿۹۲﴾　وَلَوۡ　شَآءَ

په ورځ دقيامت | هغه څه | چې وئ تاسو | په هغې كښې | چې اختلاف به موكوؤ | او كه چرې | غوښتلې

حقيقت ښكاره كړي | په كوم كښې چې تاسو اختلاف كولو | ............او كه الله تعالى غوښتلې

اللّٰهُ　لَجَعَلَكُمۡ　اُمَّةً وَّاحِدَةً　وَّلٰكِنۡ　يُّضِلُّ　مَنۡ

الله | نو خامخا به ئې جوړ كړې وئ تاسو | امت يو | وليكن | گمراهه كوي هغه | هغه څوك

نو تاسو ټول به ئې يو امت كړې وئ | خو هغه چې چا لره اوغواړي | نو هغه گمراه كړي | ا و چا لره

يَّشَآءُ　وَيَهۡدِيۡ　مَنۡ　يَّشَآءُ ؕ　وَلَتُسۡـَٔلُنَّ

چې غواړي هغه | او نيغه لار ښائي | هغه چاته | چې غواړي هغه | او خامخا به تپوس كيږي ستاسو نه

او غواړي نو هدايت ورته اوكړي | او ستاسو نه به ستاسو د عملونو خامخا تپوس كيږي

عَمَّا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝ وَلَا تَتَّخِذُوْٓا اَيْمَانَكُمْ دَخَلًاۢ

دهغه کارونو | چې وئ تاسو | چې کول به موا | اومهٔ جوړوئ تاسو | قسمونه خپل | ذريعه ددوکې

......اوتاسوخپل قسمونه په خپل مينځ کښې د دهوکې ذريعه مه جوړوئ | هسې نه چې د چا قدم

بَيْنَكُمْ فَتَزِلَّ قَدَمٌۢ بَعْدَ ثُبُوْتِهَا وَتَذُوْقُوا السُّوْٓءَ

په منځ خپل کښې | نواوبه خوئيږي | قدم | روستو | دمحکموالي دهغې نه | اواوبه څکئ تاسو | خراب انجام

د مضبوطيا نه پس بيا اوخوئيږي | او تاسو ته به دې خبره تکليف اورسي | چې خلق به مو

بِمَا صَدَدْتُّمْ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ وَلَكُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ۝

په سبب دهغې | چې منع کړل تاسو خلق | دلارې دالله نه | اودې ستاسو دپاره | عذاب لوئ

د الله تعالى دلارې نه منع کول | اوستاسو دپاره ډير لوئې عذاب مقرردې | که داسې مو اوکړو |

وَلَا تَشْتَرُوْا بِعَهْدِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيْلًا ۭ اِنَّمَا عِنْدَ اللّٰهِ هُوَ خَيْرٌ

اومهٔ اخلئ تاسو | په وعده دالله باندې | قيمت | لږ | بيشکه هغه څه | چې دالله سره دی | هغه | بهتردی

اودالله تعالى په وعده ددنيا لږه فائده مه اخلئ | ..........بيشکه کوم عوضونه چې الله تعالى

لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝ مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ وَمَا

ستاسودپاره | که چرې يئ تاسو | چې پوهيږئ | هغه څه | چې ستاسوسره دی | هغه ختميږي | اوهغه څه

سره دی هغه ستاسو دپاره ډير بهتر دی | که تاسو پرې پوهيږئ | چې څه تاسو سره دی | هغه ختميږي

عِنْدَ اللّٰهِ بَاقٍ ۭ وَلَنَجْزِيَنَّ الَّذِيْنَ صَبَرُوْٓا

چې دالله سره دی | هغه باقي دی | اوخامخا به بدله ورکوو مونږ | هغه کسانوله | چې صبر ئې اوکړو

اوڅه چې الله تعالى سره دی هغه هميشه باقي پاتې کيدونکی دی | اوخوک چې ثابت قدم شو هغوئ ته

اَجْرَهُمْ بِاَحْسَنِ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝

اجردهغوئ | مطابق دبهتره | هغه عمل | چې ووهغوئ | چې کوؤ به ئې |

به مونږ خامخا د هغه ښه کارونو په بدله کښې خپل اجرورکوو کوم چې هغوی کول

## آسان ترجمه قرآن

اوکله چه تاسو يو معاهده کړې وی نو الله پاک سره کړې شوې عهد پوره کړئ. او قسمونه د ټکولو نه پس مه ماتوئ. په داسې حال کښې چه تاسو په ځان باندې الله پاک ګواه کړې وی. تاسو چه څه کوئ يقينًا الله پاک ته هغه معلوم دی. او کومې زنانه چه خپله وړئ پس د غښتلو نه اوسپږ دله تاسو د هغې په شان مه کيږئ چه تاسو هم خپل قسمونه (په ماتولو) په خپلو کښې د فساد ذريعه جوړه کړئ. صرف د دې دپاره چه څه خلق د نورو نه زياته فائده اوچته کړی. الله پاک د دې په ذريعه په تاسو باندې ازميښت کوی. او د قيامت په ورځ باندې به تاسو ته هغه خبرې ضرور ښکاره کوی په کومو کښې چه تاسو اختلاف کولو. او که الله پاک غوښتلې نو تاسو به ئې يو امت (يعنى د يو دين تابعدار) کړې وې، خو هغه چه څوک غواړی (د هغه د ضد د وجې نه) ګمراهئ کښې اچوی، او څوک چه غواړی هغه هدايت ته رسوی. او تاسوچه څه عمل هم کولو د هغې په باره کښې به ستاسو نه ضرور تپوس کيږی. او تاسو خپل

قسمونه خپل مینځ کښې د فساد اچولو ذریعه مه جوړوئ، چه د هغې په نتیجه کښې د چا خپې د ټکلیدو نه پس اوخوئیږی، بیا به تاسو ته (هغه لره) د الله پاک د لارې نه د منع کولو په وجه باندې یو لوئې سزا څکل وې، او تاسو ته به (په داسې صورت کښې) لوئې عذاب وی. او د الله پاک لوظ په لږ شان قیمت باندې مه خرڅوئ. که تاسو حقیقت باندې پوهیږئ نو کوم (اجر) چه الله پاک سره دې، هغه ستاسو دپاره ډیر غوره دې څه چه تاسو سره دی، هغه به ختم شی او څه چه الله پاک سره دی هغه باقی پاتې کیدونکې دی. او کومو خلقو چه صبر کړې وی مونږ به هغوی ته دهغوی د بهترینو کارونو مطابق دهغوی اجر ضرور ورکوو.

## د تفسیر خلاصه

**دلوظ پوره کولو حکم او دلوظ ماتولو بدی بیانول**: ﴿وَأَوْفُوا بِعَهْدِ اللَّهِ إِذَا عَاهَدتُّمْ﴾ او تاسو د الله ﷻ لوظ [ یعنی د کوم لوظ دپوره کولو حکم چې الله ﷻ درکړې دې هغه] پوره کوئ [ په دې کښې د شریعت نه خلاف کړې لوظ داخل نه دې خو هغه ټول روا لوظونه په کښې داخل شو چې د حقوق الله یا دحقوق العباد په باره کښې وی] کله چې تاسو دې لره [ په خصوصی یا په عمومی ډول ] پخپله ذمه کړئی [ تحصینا داسې چې صراحةً دیو کار ذمه یې واخستل او په عمومی ډول دا مطلب دې چې ایمان یې راوړو نود تمام واجبو حکمونو ذمه داری ددې په ترڅ کښې رازی ] ﴿وَلَا تَنقُضُوا الْأَيْمَانَ بَعْدَ تَوْكِيدِهَا﴾ او [ خصوصا په کومو لوظونو باندې چې قسمونه خوړلې شوی وی د هغې پوراکول خو ډیر ضروری دی نو په دې کښې ] قسمونه لره پس ددې د مضبوطولو [ یعنی د الله ﷻ په نوم باندې د قسم خوړلو نه پس] مه ماتوئی ﴿وَقَدْ جَعَلْتُمُ اللَّهَ عَلَيْكُمْ كَفِيلًا﴾ او تاسو [ددغې قسمونو په وجه په دغې لوظونو کولو کښې ] الله ﷻ لره ګواه هم جوړ کړې دی [ او بعد توکیدها او قد جعلتم واقعی قیدونه دی چې لوظ پوره کولو باندې د خبردارئی ورکولو په غرض ښکاره کړې شو ] ﴿إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا تَفْعَلُونَ﴾ بیشکه الله ﷻ ته معلوم دی چې څه تاسو کوئی [ چې لوظ پوره کول وی او که ماتول وی نو د هغې په جوړ څه چې تاسو کوئی جزا او سزاء درکولې شی ] ﴿وَلَا تَكُونُوا كَالَّتِي نَقَضَتْ غَزْلَهَا مِن بَعْدِ قُوَّةٍ أَنكَاثًا﴾ او تاسو [ په لوظ ماتولو سره ] دهغې [ پاګلې ] ښځې په شان مه جوړیږی [ کومه چې په مکه مکرمه کښې استوګن وه هغه داسې ] چې خپل پنړسی [څرخې] ئې د وریشلو نه پس په ټوټې ټوټې کولو سره اوشوکول ﴿تَتَّخِذُونَ أَيْمَانَكُمْ دَخَلًا بَيْنَكُمْ﴾ چې [ داشان] تاسو [هم] خپل قسمونه پس د سمولو څخه مات کړئی [او هغې لره] پخپل مینځ کښې دفساد اچولو ذریعه جوړه کړئی [ ولې چې قسم او لوظ ماتولو سره خپل خلق بې اعتباره کیږی او مخالفین راپاره کیږی چې دا دفساد بنیاد دې او ماتول هم خالص په دې وجه چې ] ﴿أَن تَكُونَ أُمَّةٌ هِيَ أَرْبَىٰ مِنْ أُمَّةٍ﴾ یوه ډله د بلې ډلې څخه [ په ګڼړوالی یا دولت کښې ] زیات شی [یعنی لکه د کافرانو دوؤ ډلو ځینې چې دواړه خپل مینځ کښې سره مخالف وی، ستاسو یو ې سره صلح شی بیا بل اړخ ته په تول درنیدو سره دغې ډلې سره صلحې څخه عذر اوکړئی او بلې سره سازباز اوکړئی یا لکه په مسلمانیدو سره یو کس مسلمانانو سره بیا مرتدشی او دا چې یوه ډله د بلې نه ګڼړه وی یا د بلې ډلې په شاملیدو سره هغه ډله زیاته شی نو ] ﴿إِنَّمَا يَبْلُوكُمُ اللَّهُ بِهِ﴾ بس دې [ زیاتیدو] سره الله ﷻ ستاسو آزمینت کوی [ چې اوګوری لوظ پوره کوئ یا تولې درنیدو پسې اخوا ورماتیږئی ؟ ] ﴿وَلَيُبَيِّنَنَّ لَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَا كُنتُمْ

﴿فِيهِ تَخْتَلِفُونَ﴾ او په کوم څيز چې تاسو په مخه اختلاف کولو [ او په مختلفو لار روان وئ] د قيامت په ورځ ددغې ټولو [حقيقت] ستاسو مخې ته [ د عمل د مخې] راښکاره کړی [ چې په حقه خلقو ته به جزاء او په باطله خلقو ته سزا ا وشي وروسته د جملې معترضې په ډول ددغې اختلاف حکمت اجمالي ډول بيانوی] ﴿وَلَوْشَآءَ اللهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَّاحِدَةً﴾ او [هر څنګه چې الله ﷻ ددې اختلاف کيدو هم قدرت لرلو نو [ که الله ﷻ ته منظور وې نو تاسو ټول به ئې هم يوې طريقې جوړ کړې وئ﴿وَّلٰكِنْ يُّضِلُّ مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ﴾ ليکن [ دحکمت په تقاضا چې تفصيل اوټاکل ئې د لته ضروری نه دی ] چالره اوغواړی بې درګه ئې کړی او چالره چې اوغواړی په سمه لار ئې راولی [ نو د هدايت څيني يو څيز لوظ پوره کول او ګمراهئ څيني يوه حصه لوظ ماتول هم دې او دا ګمان نه دی کول پکار چې څنګه په دنيا کښې ګمراهانو ته پوره سزا نه وی داسې به په آخرت کښې هم بې واکو پاتې کيږی خو داسې هيچرې نه ده بلکه په قيامت کښې به] ﴿وَلَتُسْئَلُنَّ عَمَّا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ﴾ تاسو څخه به ستاسو د ټولو عملونو ضرور تپوس کيږی [ او څنګه چې د لوظ او قسم په ماتولو سره په سترګو ليدلو ضرور محسوس راولاړيږی کوم بيان چې پورته تير شو د غه شان تري معنوی ضرر هم راولاړيږی ، وروسته هم ددې بيان دې يعنی ] ﴿وَلَا تَتَّخِذُوْٓا اَيْمَانَكُمْ دَخَلًا بَيْنَكُمْ فَتَزِلَّ قَدَمٌۢ بَعْدَ ثُبُوْتِهَا﴾ تاسو خپل قسمونه په خپل مينځ کښې د فساد راپورته کولو ذريعه مه جوړوئی [ يعنی قسمونه او لوظونه مه ماتوئی هسې نه چې ددې په ليدو سره د چا پښې د کلکيدو نه پس بيا اونه خوئيږ چې نور هم وروسې درروان شي او لوظ ماتول شروع کړی ] ﴿وَتَذُوْقُوا السُّوْٓءَ بِمَا صَدَدْتُّمْ عَنْ سَبِيْلِ اللهِ﴾ بيا تاسو ته په دې وجه تاسو [نورو دپاره] دالله ﷻ د لارې نه ايساروونکي شوئ تکليف تيرول راپيښ شي [ ولی چې لوظ پوره کول د الله ﷻ لار ده او تاسو ددې د وړانولو سبب جوړ شوئ داهم هغه معنوی يعنی اندرونی] ضرر دې چې نور ئې لوظ ماتولو ته راولاړول او تکليف به داوی چې په دې حالت کښې به] ﴿وَلَكُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ﴾ تاسو لره لوئي عذاب وی [ څنګه چې د يوې ډلې په غالب کيدو سره د مرتبې تر لاسه کولو په خاطر په هغې کښې شامليدو سره لوظ ماتول منع دی چې پورته ئې بيان اوشو دغه شان د مال حاصلولو په غرض د لوظ ماتولو نه هم منع فرمائی چې ] ﴿وَلَا تَشْتَرُوْا بِعَهْدِ اللهِ ثَمَنًا قَلِيْلًا﴾ اوتاسو خلق دالله ﷻ دلوظ ماتولو په بدل کښې [ددنيا] لږه شان فائده مه حاصلوئ دالله ﷻ د لوظ ماتولو معنی خو د آيت مبارك په شروع کښې معلومه شوه او د ثمن قليل نه مراد دنيا ده چې سره د ډيروالی هم لږه ده ، ددې حقيقت ئې داسې بيان کړو چې] ﴿اِنَّمَا عِنْدَ اللهِ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ﴾ پس الله ﷻ سره چې کوم څيز دې [ يعنی د آخرت ذ خيره] هغه تاسو دپاره [ د دنيوی سامان نه ] په ډيرې درجې زيات ښه دې که تاسو پوهيدل غواړئ [ نو د آخرت فائده زياته شوه او دنياوی فائدې که هر څومره وی بيا هم هغه لږې دی ] ﴿مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ وَمَا عِنْدَ اللهِ بَاقٍ﴾ او [ د لږ والی او ډير والی فرق څخه علاوه يو بل فرق داهم دې چې] څه هم تاسو سره [ په د نيا کښې ] دی هغه به [ يوه ورځ ] ختم شی [ که په ژوند تاسو څخه واخستې شی يا په مرګ تاسو څخه پاتې شی ] او څه چې الله ﷻ سره دی هغه به همېشه وی ﴿وَلَنَجْزِيَنَّ الَّذِيْنَ صَبَرُوْٓا اَجْرَهُمْ بِاَحْسَنِ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ﴾ او کوم خلق [ چې په لوظ پوره کولو وغيره ددين په حکمونو باندې ] کلك دی مونږ به دهغوئ د ښو کارونو په بدل کښې دهغوئ بدله [ يعنی باقی

پاتې کیدونکې هغه نعمت] هغوئ ته ضرور ورکووؤ [ کوم چې وړاندې بیان شو په دې وجه په لوظ پوره کولو سره نه فانی کیدونکې ډیر دولت حاصل کړئ او د لږ فانی کیدونکی دولت دپاره لوظ مه ماتوئ]

## معارف او مسائل

**لوظ ماتول حرام دی ::** دعهد لفظ کښې ټول معاملات او وعدې شامل دی چې په ژبه سره ئې په ځان لازم کړی ، که قسم پرې اوخوری یا اونه خوری ، د څه کار کولو په باره کښې وی او که نه د کولو په باره کښې وی.

دا آیتونه په حقیقت کښې د تیرو شوؤ آیتونو تشریح او تکمیل دی ولې چې په د غې آیتونو کښې د عدل و احسان حکم وو د عدل په مفهوم کښې ایفاء عهد یعنی وعده پوره کول هم داخل دی [قرطبی].

چا سره د لوظ کولو نه پس د هغې ماتول لویه ګناه ده خو ددې په ماتولو باندې څه کفاره مقرر نه ده بلکه د آخرت عذاب ئې دې. رسول کریم ﷺ یو حدیث پاک کښې فرمائیلی دی چې د قیامت په ورځ به د لوظ ماتوؤنکو شا کښې یوه جنډه ښخه کړې شی چې په میدان محشر کښې به ددهٔ د شرمیدو سبب به وی .

دغه شان په یو کار قسم اوخوری نو دهغې خلاف کول هم لویه ګناه ده ، آخرت کښې هم لوئې وبال دې او په دنیا کښې هم په خاص صورتونو کښې پرې کفاره لازمیږی [قرطبی].

﴿اَنْ تَكُوْنَ اُمَّةٌ هِیَ اَرْبٰی مِنْ اُمَّةٍ﴾ په دې آیت مبارک کښې مسلمانانو ته دا هدایت ورکړې شو بدې چې کومې ډلې سره ستاسو لوظ اوشی نو هغه معاهده ددنیوی غرضونو او فائدې دپاره مه ماتوئ ، لکه تاسو ته دا محسوس شی چې کومې ډلې یا پارټئ سره ستاسو معاهده شوې ده ، دا کمزورې او په تعداد کښې هم کمه ده یا د مال په اعتبار سره غریبه ده . او ددې په مقابله کښې بله ډله زیاته او قوی ده.یا ورسره مال دولت ډیر دې ، نو صرف په دې طمع چې دې مالدارې پارټئ او قوی ډلې سره به فائده زیاته حاصله شی ،صرف په دې غرض ړومبئ ډلې سره معاهده ختمول جائز نه دی. بلکه پخپل لوظ باندې هغوئ سره کلک اوسیږئ او فائده ، نقصان الله ﷻ ته حواله کړئ ، البته چې کومې ړومبئ ډلې سره مو معاهده شوې ده هغه دشریعت نه خلاف څه کار پخپله اوکړی یا بل چا ته دداسې کار کولو اووائی نوبیا معاهده ختمول واجب دی خو شرط دادې چې په ښهٔ ښکاره به ورته وایی چې مونږ اوس ددغې کړی لوظ پابند پاتې نه شو څنګه چې : ﴿فَانْبِذْ اِلَیْهِمْ عَلٰی سَوَآءٍ﴾ کښې ئې چې بیان شوې دې .

په آخر د آیت مبارک کښې دا بیان شوې صورت حال د مسلمانانو د آزمیښت ذریعه داسې خودلې شوې ده چې آیا مسلمانان خپلو خواهشاتو پسې ځی او لوظ ماتوی یا د الله ﷻ د حکم منلو په غرض خپل نفسانی خواهشات قربانوی .

**چاته د دهوکې ورکولو په غرض قسم خوړلو کښې د ایمان ختمیدو خطره وی:** ﴿لَا تَتَّخِذُوْنَ اَیْمَانَكُمْ دَخَلًاۢ بَیْنَكُمْ﴾ په دې آیت مبارک کښې د یوې لوئې ګناه او وبال نه د ځان ساتلو هدایت دې ، هغه دا چې دقسم کولو په وخت دهغې دخلاف کولو اراده وی ، صرف مخاطب ته په قسم خوړلو دهوکه ورکول وی،نو داسې قسم ماتول دعام قسمونو ماتولو په نسبت زیاته خطرناکه ګناه داسې لری چې په هغې سره د ایمان نه محرومه کیدو خطره وی لکه فرمائی چې : ﴿فَتَزِلَّ قَدَمٌۢ بَعْدَ ثُبُوْتِهَا﴾ [قرطبی]

**رشوت اخستل سخت حرام او الله تعالى سره لوظ ماتول دي** :: ﴿وَلَا تَشْتَرُوا بِعَهْدِ اللَّهِ ثَمَنًا قَلِيلًا﴾ [يعنى لږ شان قيمت سره الله تعالى سره كړي لوظ مه ماتوى].

دلته د لږ شان قيمت نه مراد دنياوى فائده اخستل دي چې د آخرت د فائدو په مقابله كښې ټوله دنيا او ټول اموال هم لږ دي، د آخرت په مقابله كښې دنيا اخستل د لوئي نقصان سودا ځكه ده چې د هميشه پاتې كيدونكې ډير زيات نعمت او دولت ئې په زر فنا كيدونكې لږ ځيز باندې خرچ كړو، كوم لره چې داسې انسان نشى خوښولې چې لږ شان عقل سوچ لرى.

ابن عطيه رحمه الله فرمائيلى دى چې د يو انسان په ذمه د يو كار پوره كول واجب دى دغه د الله ﷻ سره يو لوظ دې چې د هغې په پوره كولو باندې بدله اخستل يا بغير د بدل د هغې نه كول د الله ﷻ لوظ ماتول دى دغه شان چې د كوم كار نه كول د چا په ذمه واجب وى د هغې په كولو باندې بدل اختسلو سره هغه كول هم د ا الله ﷻ لوظ ماتول دى.

دې نه معلومه شوه چې د رشوت ټول رواجى قسمونه حرام دى، لكه يو سركارى ملازم چې په كوم كار ياخدمت باندې سركار نه تنخواه اخلى بيا هم د هغې په كولو باندې چا نه بدل اخستل، غوښتل او بغير بدل اخستلو د هغې اټاله كول د الله ﷻ لوظ ماتول دى، دغه شان دهغې كار په بدل سره كول هم رشوت اخستل او د الله ﷻ لوظ ماتول دى دكوم كولو اختيار چې ورته نه وى وركړې شوې [بحر محيط].

**درشوت جامع تعريف** :: د ابن عطيه رحمه الله په دې كلام كښې جامع مانع هغه تعريف هم راغلو چې د تفسير بحر محيط په الفاظو كښې داسې بيان شوى دى چې:

﴿اخذ الاموال على فعل ما يجب على الاخذ فعله اوفعل ما يجب عليه تركه﴾ [بحر محيط ص: ۵۳۳ ج: ۵].

[دكوم كار كول چې د چا په ذمه واجب وى دهغې په پرېښودو بدل اخستل يا دكوم پرېښودل چې په چا واجب وى د هغې په كولو باندې بدل اخستل رشوت دې، او ددنيا د ټولو نعمتونو قليل كيدل وروسته آيت كښې داسې بيانيږى]

﴿مَا عِندَكُمْ يَنفَدُ وَمَا عِندَ اللَّهِ بَاقٍ﴾ [څه چې تاسو سره دى هغه ټول ختميدونكى او فنا كيدونكى دى او څه چې الله ﷻ سره ده هغه هميشه باقى پاتې كيدونكى دى]

**ددنيا آرام تكليف دوستى او دښمنى ټول هر څه فنا كيدونكى دى او هغې ثمرات او نتائج چې الله تعالى سره د ی هغه پاتې كيدونكى دى** :: ﴿مَا عِندَكُمْ يَنفَدُ﴾ نه ذهن عام طور صرف د دنيا مال، سامان ته ځى استاد محترم مولانا سيد اصغر حسين رحمه الله او فرمائيل چې د لغت په اعتبار سره د ما لفظ عام دې، ددې عامې معنى اخستلو كښې هيڅ شرعى ځيز منع كيدونكى نشته دې، په دې لحاظ سره دې نه مراد ددنيا مال، سامان هم دې، په دې كښې راپيښيدونكى ټول ځيزونه حالات، معاملات، خوشحالى، غم، تكليف، مرض، راحت، روغتيا، فائده، نقصان د چا دوستى يا دښمنى داخل دى، كوم چې ټول په ټوله فنا كيدنكى دى البته په دې باندې مرتب كيدونكى اثرات او په قيامت كښې پدې باندې ثواب وعذاب كيدل باقى پاتې كيدونكى دې، فنا كيدونكو ځيزونو او حالاتو او معاملاتو كښې ډوب پاتې كيدل خپل ټول ژوند او ددې طاقت ټول هم په دغې فكر كښې لګول او د هميشه ثواب او عذاب نه بې غمه كيدل دعقل د خاوند كار نه دې

دوران بقاء چو باد صحرا بگذشت تلخی و خوشی وزشت وزیبا بگذشت

[ددنیا دوران لکه دصحرا د باد پشان تیرشو تریخوالي، خوږوالي خراب او ښهٔ ټول تیر شو]

پنداشت ستمگرکه جفا ب رماد کرد برگردن وے بماند وبرمابگذشت

[د ظالم داخیال ووچي په مونږ ئي زیاتي اوکړوخو هغه دهغه په مرئ پاتي شو او په مونږ تیرشو]

| مَنۡ | عَمِلَ |
|---|---|
| هرچاچي | عمل اوکړو |
| هرچا چي نیک | |

| صَالِحًا | مِّنۡ ذَکَرٍ | اَوۡ اُنۡثٰی | وَهُوَ | مُؤۡمِنٌ | فَلَنُحۡيِيَنَّهٗ | حَيٰوةً |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نیک | دنارینو نه | یادزنانونه | او هغه وی | مومن | نومونږبه ژوندون ورکړوهغه له | ژوندون |

عمل اوکړو که نارینه وی اوکه زنانه خو چي هغه مومن وی نو مونږبه ورته ضرور په دنیا کښي پاک ژوند

| طَيِّبَةً | وَلَنَجۡزِيَنَّهُمۡ | اَجۡرَهُمۡ | بِاَحۡسَنِ مَا | كَانُوۡا |
|---|---|---|---|---|
| پاکیزه | او خامخا به ورکړو مونږ هغوئ ته | اجر دهغوئ | مطابق دبهتره هغه عمل | چي وؤ هغوئ |

ورکړو او په آخرت کښي به ورته خامخا د هغوئ د ښو کارونو په عوض کښي اجر ورکړو

| يَعۡمَلُوۡنَ ۝ |
|---|
| چي کوؤ به ئي |

## آسان ترجمه قرآن

**کوم انسان هم چه د مومن کیدو په حالت کښی نیک عمل کړې وی که سړې وی که ښځه، مونږ به هغه ته د هغه د بهترینو کارونو مطابق اجر ضرور ورکوو.**

## د تفسیر خلاصه

دې نه وړاندې تیرو شوؤ آیتونو کښې د لوظ پوره کولو تاکید او د وعدې ماتولو د بدئی بیان وو چې یوخاص عمل دې ، په دې آیت مبارك کښې د ټولو نیك عملونو او د نیك عمل کوؤنکو عمومی بیان دې ، د آیت مبارك مضمون دادې چې د آخرت اجر ، ثواب او ددنیا برکتونه صرف په لوظ پوره کولو سره نه حاصلیږی او نه څه عمل کؤونکې تحصیص دی بلکه قاعده کلیه داده چې ] ﴿مَنۡ عَمِلَ صَالِحًا مِّنۡ ذَکَرٍ اَوۡ اُنۡثٰی وَهُوَ مُؤۡمِنٌ﴾ څوك هم چې څه نیك کار کوی که سړې وی او که ښځه ، په شرط ددې چې د ایمان خاوند وی [ ولې چې د کافرانو نیك عملونه نشی قبلولې] ﴿فَلَنُحۡيِيَنَّهٗ حَيٰوةً طَيِّبَةً﴾ نو مونږ دغې کس ته [ په دنیا کښې ] خوندناك ژوند ورکوؤ ﴿وَلَنَجۡزِيَنَّهُمۡ اَجۡرَهُمۡ بِاَحۡسَنِ مَا كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ ۝﴾ او [ په آخرت کښې به] د دوئ د ښو کارونو په بدل کښې د دوئ اجر ورکړو .

## معارف او مسائل

**حیات طیبه څه څیز دې؟:** د جمهورو مفسرینو په نزد حیات طیبه څخه مراد ددنیا پاکیزه او مزیدارژوند دې، خینې اماً مانو د تفسیر ترې دآخرت ژوند مراداخستې دې ، خو د جمهورو د تفسیر دمخې ددې دامطلب هم نه دې چې دوئ ته به په دنیا کښې نیستی ، لوږه ، تنده او

بیماری تکلیف نه راپیښیږي بلکه مطلب دادې چې که داسې حالات پرې راشي نو د دوؤ ځیزونو په برکت به نه پریشانه کیږي ، یو قناعت او سادګي عادت جوړیدل چې په تنګدستئ کښې هم کار کوی . بل دا عقیده لرل چې ماته به ددې تنګدستئ او بیمارئ ، تکلیف په بدله کښې د آخرت عظیم الشان نعمتونه راکولې شي خو کافر او فاجر ته چې داقسم حالونه راپیښ شي نود تسلئ هیڅ ذریعه نه وی، په عقل،فکر ئې تندر راپریوزي چې کله خوخپل ځان هم اووژني،د فراخ ژوند په صورت کښې هم د زیات حرص په وجه په آرام نشي کیناستې که کروړپتی شي نود ارب پتی جوړیدو په غم کښې وی خوپه هرحالت کښې ئې ژوند خراب وی .

ابن عطیه فرمائیلی دی چې مؤمنانو صالحانو ته الله ﷻ په دنیا کښې هم خوشحالی ، فراخه زړهٔ او خوندناك ژوند ورکوی چې په هیڅ حال کښې بدلون په کښې نه رازی . د فراخئ او روغتیا په حالت کښې ورته د ژوند خوند حاصلیدل ښکاره دی . خصوصا په دې بنا چې بې ضرورته دمال زیاتولو لالچ نه کوی کوم چې دانسان دپریشانئ موجب جوړیږی.اوکه تنګسیا یا بیماری ،تکلیف ورته راپیښ شي نود الله ﷻ په وعده ئې یقین وی چې الله ﷻ به ئې رانه لرې کړي نو په دې وجه ئې ژوند بې مزې نه وی ، لکه کرونده ګر چې پټې اوکری دهغې په خصمانه کښې که ورته هرڅومره تکلیفونه راپیښ شي خوبیاهم په دې باندې تسلی کیږی چې څوورځې پس به راته ددې بدله ملاویږی . دغه شان سوداګر او ملازم هم وی چې په دغې کار کښې ورته څه تکلیف راپیښ شي نو بیا هم په دې ئې تسلی وی چې څه وخت به راته د تجارت فائده او د ملازمت تنخواه ملاویږی چې دا هر څه تکلیف لرې لرې شي ، دغه شان د مؤمن هم دا عقیده وی چې ماته به په هر تکلیف باندې د الله ﷻ د طرفه اجر ملاویږی چې په آخرت کښې به د عظیم الشان او دائمی نعمتونو په شکل کښې وی او په دې ئې پوره تسلی وی چې ددنیا ژوند دآخرت په مقابله کښې هیڅ حیثیت نه لری ، هم دغه وجه ده چې ددې ځائې آرام ، تکلیف او یخ او ګرم ټول په آسانه تیرولې شي . او په هیڅ حالت کښې ئې ژوند بې خونده او پریشانه کوونکې نه وی نو دا هغه حیات طیبه دې چې په دنیا کښې ورته نغد ورکولې شي .

| فَإِذَا | قَرَأْتَ الْقُرْآنَ | فَاسْتَعِذْ | بِاللَّهِ | مِنَ الشَّيْطَانِ |
|---|---|---|---|---|
| نو کله چې | لولې ته قرآن | نو پناه اوغواره | په الله سره | دشیطان |

| نو هر کله چې ته د قرآن پاک لوستلو اراده اوکړې نو د شیطان مردود د شرنه ........ |
|---|

| الرَّجِيمِ ﴿٩٨﴾ | إِنَّهُ | لَيْسَ | لَهُ سُلْطَانٌ | عَلَى الَّذِينَ | آمَنُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| رټلی شوی نه | بیشکه دې چې دې | نشته | ده لره قدرت | په هغه کسانو باندې | چې ایمان ئې راوړې وی |

| پناه غواره | د هغه وس په داسې خلقو نه چلیږی | چې ایمان ئې راوړې وی |
|---|---|---|

| وَعَلَى رَبِّهِمْ | يَتَوَكَّلُونَ ﴿٩٩﴾ | إِنَّمَا | سُلْطَانُهُ | عَلَى الَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|
| اوپه رب خپل باند | توکل کوی | بیشکه | قدرت دهغه | په هغه کسانو باندې |

| او پخپل رب بهروسه کوی | ........ د هغه وس خو بس په هغه چا چلیږی | چې هغه |
|---|---|---|

| يَتَوَلَّوْنَهٗ | وَالَّذِيْنَ | هُمْ | بِهٖ | مُشْرِكُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| چې هغوئ دوستي کوي دهغه سره | او په هغه کسانو باندې | چې هغوئ | دهغه په لمسه | شرک کونکي دي |
| خپل دوست گنړي | او د [هغه په وسوسو] الله دپاره شريکان جوړوي | | | |

## آسان ترجمه قرآن

**پس چه کله تاسو قرآن لولئ نو د شيطان مردود نه په الله پاک سره پناه نيسئ . د هغه وس په هغه کسانو باندې نه رسي چا چه ايمان راوړې دې او په خپل رب باندې اعتماد ساتي. د هغه وس خو په هغه خلقو باندې رسي کوم چه هغه لره خپل دوست جوړوي، او الله پاک سره د شرک ارتکاب کوي.**

**دآيتونو ربط:** په تيرو شوؤ آيتونو کښې اول د لوظ پوره کولو تاکيد او مطلقا د نيکو عملونو تاکيد او ورته شوق راپورته کول بيان شوي دي ، د شيطان په دهوکه کولو سره انسان په دې حکمونو کښې غافله او بې غمه کيږي ، ځکه په دې آيت مبارک کښې د شيطان رجيم نه دپناه غوښتلو تعليم ورکړې شوې دې چې په نيک عمل کښې ورته ضرورت وي ، خو په دې آيت مبارک کښې ددې بيان په خاص طور سره قرآن کريم سره کړې شوې دې،ددې تخصيص وجه دا هم کيدې شي چې دقرآن عظيم الشان تلاوت داسې يوعمل دې چې شيطان ترې پخپله تښتي.

د يو بگريزدزان قوم كه قرآن خوانند

[شيطان هم دهغه قوم نه تښتي کوم چې قرآن پاک لولي]

ځينې خاص خاص آيتونه او سورتونه خو دا خصوصيت لري چې شيطاني اثراتو لرې کولو دپاره پرې تجربه شوې ده او تاثير کول او فائده ورکول ئې په شرعي نصوصو سره ثابت دي [بيان القرآن]. په دې بنا هر کله چې د قرآن کريم تلاوت سره شيطان نه د پناه غوښتلو حکم ورکړې شو نو نورو عملونو سره نور هم زيات ضروري شو.

دې نه علاوه پخپله د قرآن عظيم الشان په تلاوت کښې هم د شيطاني وسوسو خطره وي ، کله د تلاوت په آدابو کښې کمي راځي ، کله په کښې تدبر او فکر خضوع او خشوع نه راځي ، دشيطان دوسوسو نه په کښې پناه غوښتل ضروري دي . [ابن کثير ، مظهري وغيره] .

## د تفسير خلاصه

او کله چې د نيک عمل فضيلت معلوم شو چې کله کله په کښې شيطان خلل اچوي ، کله د لوظ په پوره کولو کښې هم شيطان خلل اچوي او کله په نورو عملونو لکه د قرآن عظيم الشان په لوستلو کښې هم شيطان خلل اچوي [ ﴿فَاِذَا قَرَاْتَ الْقُرْاٰنَ﴾ نو [ ائې محمد ﷺ ! تاسو ﷺ اوستاسو ﷺ په ذ ريعه ستاسو ﷺ امت دې واوړي چې ] کله تاسو ﷺ [ هر څنگه نيک کار کول غواړئ تر دې چې] قرآن عظيم الشان لوستل [هم وي ] غواړئ ﴿فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ﴾ نو شيطان رټلي شوي [ دهغه د شر څخه] دالله ﷻ پناه غواړئ [ په اصل کښې خو توجه د زړۀ الله ﷻ ته کول دي چې دغه حقيقت د پناه غوښتلو واجب دې او په قرآت کښې په ژبې سره ئې لوستل هم سنت دي اود پناه غوښتلو حکم مونږ ځکه درکوؤ چې] ﴿اِنَّهٗ لَيْسَ لَهٗ سُلْطٰنٌ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ﴾ يقينا د هغه قابو په هغې خلقو نه رازي چې ايمان لري او په خپل رب باندې [د زړه څخه] تکيه کوي ﴿اِنَّمَا سُلْطٰنُهٗ عَلَى الَّذِيْنَ يَتَوَلَّوْنَهٗ﴾ بس دده قابو خو يوازې هم په هغې خلقو رازي چې

ده سره تعلق لري ﴿وَالَّذِينَ هُم بِهِ مُشْرِكُونَ﴾ او په هغې خلقو [رازي] چې الله ﷻ سره شرک کوي

## معارف او مسائل

ابن کثیر دتفسیر په مقدمه کښې لیکي چې د انسان دښمنان دوه قسمه دي ، یو پخپله د انسانانو څېنې ، لکه عام کافران ، او بل د پیریانو څېنې ، کوم چې شیطانان او نافرمانه دي، د رومبي قسم د ښمن په شا تمبولو دپاره خو اسلام د جهاد حکم ورکړې دې ، مګر دویم قسم دپاره صرف الله ﷻ نه د پناه غوښتلو حکم دې ، ددې وجه داده چې رومبې قسم دښمن چې حمله کوي نو انسان ته په سترګو ښکاري . څکه ورسره جهاد کول فرض کړې شو او شیطاني دښمن انسان ته په نظر نه ښکاري څکه د هغه په شا تمبولو دپاره دداسې یو ذات پناه غوښتل واجب کړې شو چې د انسان او شیطان دواړو په نظر نه راځي .

دشیطان تمبول الله ﷻ ته په حواله کولو کښې دا خیر دې چې شیطان ته پاتې راتلونکې د الله ﷻ رټلې شوې او د عذاب حقدار وي او که د انساني دښمن په مقابله کښې ماتې اوخوري نو هغه شهید اود ثواب حقدار شي څکه دانسان مقابله په اندامونو سره کول په هرحال کښې سراسر فائده ده. که په دغې دښمن بر شي نو دهغه طاقت به ختم کړي او دجهاد ثواب به ورته هم حاصل شي ، او که دهغه د لاسه مړ شي نو د شهادت درجه به ورته ملاؤ شي چې ډیر زیات ثواب دې .

**مسئله** : د قرآن عظیم الشان د تلاوت شروع کولو نه رومبې اعوذ بالله من الشیطان الرجیم ، لوستل په دې آیت مبارک باندې دعمل کولو په غرض د رسول کریم ﷺ نه ثابت دی خو کله کله ددې پرېښودل د صحیح احادیثو نه ثابت دی ، په دې وجه د امت جمهورو علماء کرامو دې حکم لره واجب نه بلکه سنت بللې دی ، او ابن جریر رحمه الله ، طبري رحمه الله په دې باندې د امت اجماع نقل کړې ده ، دې باره کښې د حدیث قولي او عملي روایتونه چې په اکثرو حالتونو کښې اعوذ بالله وئیلې شوې ده او په څینو حالتونو کښې نه ده وئیلې شوې ، دا ټول روایات ابن کثیر رحمه الله د خپل تفسیر په شروع کښې په تفصیل سره ذکر کړي دي .

**مسئله** : امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائیلي دي چې د مونځ یوازې په رومبي رکعت کښې اعوذ بالله وئیل پکار دي ، او د امام شافعي رحمه الله په نزد په هر رکعت کښې ئې لوستل مستحب دي ، د دواړو امامانو دلیلونه په تفسیر مظهري کښې په تفصیل سره لیکلي شوي دي [ص ۴۹ ج ۵] .

**مسئله** : د قرآن عظیم الشان تلاوت شروع کولو نه وړاندې اعوذبالله لوستل سنت دي که په مونځ کښې وي او که بهر د مونځ نه وي که هر څومره تلاوت ورپسې جاري اولري اوکه په مونځ کښې ورپسې هر څو رکعتونه کوي نو هم دغه رومبې ځل اعوذ بالله لوستل کافي دي البته که د مونځ نه بهر په مینځ کښې چا تلاوت پرېښودو په څه دنیوي کار کښې مشغول شو او بیا ئې دوباره شروع کول غوښتل نو دغه وخت دوباره اعوذبالله او بسم الله لوستل پکاردي .

**مسئله** : د قرآن عظیم الشان د تلاوت نه علاوه د بل کلام یا کتاب لوستلو نه رومبې اعوذبالله لوستل سنت نه دي صرف بسم الله لوستل پکار دي [درمختار ، شامي] .

البته په مختلفو عملونو او حالتونو کښې د اعوذبالله لوستلو خودنه په حدیث پاک کښې منقول ده . لکه یو حدیث پاک کښې راغلي دي چې د سختې غصې ورتلو په وخت کښې په اعوذ بالله لوستلو سره غصه کمېږي [ابن کثیر] .

دغه شان يو حديث پاک کښې راغلی دی چې اودس ماتی ته د کيناستول او بيت الخلاء ته د داخليدو نه مخکښې : ﴿اللهم انی اعوذبك من الخبث والخبائث﴾ لوستل مستحب دی [شامی].

**په الله تعالی باندې ايمان لرل او تکيه لرل د شيطان د قبضې نه د ځان ايستلو لار ده ::** دې آيت مبارک کښې دا ښکاره کړې شوه چې الله ﷻ شيطان ته داسې طاقت نه دې ورکړې چې يو انسان لره په بدئ کولو مجبوره اوبې اختياره کړې ، که دا انسان ورته پخپله ډال اوغورزوی خپل اختيار اوقدرت استعمال نهٔ کړی خواه د بې پروايئ نه يا دنفسانی غرض د راولاړيدو په وجه وی نو پخپله د انسان قصور دې ځکه الله ﷻ فرمائی چې : څوک چې په الله ﷻ ايمان لری او خپلو حالتونو او عملونو کښې د خپل قوت ارادی په ځائې په الله تعالی تکيه لری چې هم هغه د هر خير توفيق ورکوؤنکې او دهر شر نه ساتونکې دې ، پداسې خلقو باندې د شيطان قبضه نشی راتلې البته که څوک د خپلو نفسانی غرضونو په سبب هم شيطان سره دوستی کوی هم د هغه خبری خوښوی اوالله ﷻ سره نو مخلوق ئې شريک ګرځوی نو په داسې کس شيطان مسلط کيږی څه نيکيئ کولو ته ئې نه پريږدی ، او په هر ناکاره کار کولو کښې وړاندې وړاندې وی هم دا مضمون د سورۂ حجرات په يو آيت مبارک کښې د شيطان د دعوی په جواب کښې داسې راغلې دې ، الله ﷻ فرمائی چې . ﴿اِنَّ عِبَادِیْ لَیْسَ لَكَ عَلَیْهِمْ سُلْطٰنٌ اِلَّا مَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْغٰوِیْنَ﴾ ازما په خاص بندګانو باندې قبضه نشی راتلې کوم چې ګمراهان دې په هغه يې قبضه راتلی شی چې تاپسې روان وی ].

| وَاِذَا | بَدَّلْنَآ | اٰيَةً | مَّكَانَ | اٰيَةٍ | وَّاللّٰهُ | اَعْلَمُ | بِمَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او کله چې | بدلوؤ مونږه | يو آيت | په ځائې | دبل آيت(۱) | او الله | ښهٔ پوهيږي | په هغه څه |
| اوهر کله چې مونږديو آيت په بدل کښې بل آيت نازل کړو | | | | | او الله تعالی په هغې ښه پوهيږي | | څه چې |

| يُنَزِّلُ | قَالُوْٓا | اِنَّمَآ | اَنْتَ | مُفْتَرٍ | بَلْ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې نازلوی ئې هغه | وايئ دا خلق | بيشکه | چې ته | پخپله جوړونکې ئې [ دقرآن] | بلکه خبره داده |
| رالېږي | نودا خلق اووائی چې ته خو بس صرف دروغ تړونکې يئ | | | | نه ! بلکه په دوئ کښې |

(۱) **دَ منسوخ کيدوحکمت مشرکان نه پيژنی:-** دَ مشرکانو دَ کم عقلتوب بې سروسامانئی او بې يقينئی بيانِ کولې شی چه دوی ته به څنګه ايمان نصيب شی؟ دا خوازلی بدبخت دی. په ناسخ اومنسوخ سره دَ احکامويدلون ته ګوری نوغاپی چه ښه صيب چه دَدوی بهتان کولاوشو. دومره نه پوهيږی چه قادر مطلق الله تعالی چه څه غواړی کوی کومه اراده چه اوکړی نو حکم ورکړی يوحکم اوچت کړی دَ هغې په ځای بل حکم کيږدی. (الطبری:۱۷/۲۹۷) لکه آيت ﴿مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ اَوْ نُنْسِهَا نَاْتِ بِخَيْرٍ مِّنْهَآ اَوْ مِثْلِهَا ۗ اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ﴾ (۲/البقرة:۱۰۶) کښې فرمائی پاك روح يعنی حضرت جبرائيل ؑ دا دَ الله تعالی دَ طرف نه حقانيت صداقت عدل اوانصاف سره راوړی او ستا طرف ته راځې دې دَ پاره چه ايماندار ثابت قدم شی. اوس نازل شو وئی منه بيا نازل شو بيائی اومنه دَ هغوی زړونه دَ خپل رب طرف ته ټيټ دی دَ الله تعالی تازه تازه کلام اوری دَ مسلمانانو دَ پاره هدايت او زيری اوشی دَ الله اودَ رسول ﷺ منونکی لاربيامومی اوخوشحاله شی.

أَكْثَرُهُمْ　لَا يَعْلَمُونَ ﴿١٠١﴾　قُلْ　نَزَّلَهُ　رُوحُ الْقُدُسِ

چې زيات خلق ددوئ | ناخبره دی دحقيقت نه | اووايه | چې نازل کړې دې دا قران | پاک روح

زيات خلق نه پوهيږي | .........ته اووايه چې دا جبريل امين عليه السلام ستا د رب

مِنْ رَّبِّكَ　بِالْحَقِّ　لِيُثَبِّتَ　الَّذِينَ　آمَنُوا

دطرفه درب ستانه | په حقه سره | دپاره ددې چې محکم کړي | هغه کسان | چې ايمان ئې راوړو

د طرفه په حق نازل کړې دې | چې دايماندارو خلقو ايمان پرې مضبوط کړي

وَهُدًى　وَبُشْرَى　لِلْمُسْلِمِينَ ﴿١٠٢﴾　وَلَقَدْ　نَعْلَمُ　أَنَّهُمْ

اولارښودونکې دې | اوزيرې دې | دپاره دفرمانبردارو خلقو | اوبې شکه | پوهيږومونږه | چې بيشکه دوئ

اودمسلمانانو دپاره هدايت او زيرې دې | .........ومونږ ته ښه معلومه ده (۱) چې دوئ وائي

يَقُولُونَ　إِنَّمَا　يُعَلِّمُهُ　بَشَرٌ　لِسَانُ　الَّذِي　يُلْحِدُونَ

وائي | چې بيشکه | ښودنه کوی دۀ ته | يو سړې | ژبه | دهغه سړي | چې اشاره کوی دوئ

چې دۀ ته خويو سړې خودنه کوی | [حال داچې] کوم سړي ته دوئ داسې غلط نسبت کوي

---

(۱) **دکافرانو يوبهتان اودَ هغې رد:-** دَ کافرانو يوبهتان کول بيانولې شي،هغوی وائي چه ده ته دا قرآن يو انسان ښائي. دَ قريشودَ قبيلې يو عجمي غلام وو دَ صفاغرسره ئې اخستل اوخرخول کول. حضور ﷺ به کله کله هغه سره کيناستو اوڅه خبرې اترې به ئې کولې. داسړې په صحيح عربي ژبه وئيلو باندې هم پوره قدرت نه لرلو. په ماته ګوډه ژبه به ئې په ډيرمشکل سره خپل مطلب اداکولو. دَ دې افترا اوخان نه خبرې جواب الله تعالى ورکوی چه هغه به ورته څه اوښائي چه په خپله خبرې کول نه پيژني دَ عجمي ژبې سړې دې. اودا قرآن پاك خو په عربي ژبه کښې دې. بيا دَ فصاحت او بلاغت والا دې ښکلې پاك اوچت معني مطلب الفاظ اوواقعاتو کښې دَ ټولونه جدا دې. دَ بني اسرائيلو دَ آسماني کتابونونه هم په درجوکښې اوچت وقعت اوعزت والا دې. که په تاسوکښې لږ شان هم عقل وې نو داسې ډيوه په لاس به غلا له نه وتلې ئې داسې دروغ به مو نه وئيل چه بې وقوفانو سره هم نه شي چليدې. سيرة ابن اسحاق کښې دي يونصراني غلام کوم ته چه به ئې جبر وئيلو اودَ خضرمي قبيلې دَ يوسړی غلام وو هغه سره به رسول الله ﷺ دَ مروه په غونډئی باندې کيناستلو په دې باندې مشرکانو دادَ دروغوخبرخورکړو چه دا قرآن دَ ده نه زده کوی. دَ دې په جواب کښې دا آيت نازل شو. وائي چه دَ هغه نوم يعيش وو. ابن عباس رضي الله عنه وائي چه په مکه کښې يولوهاروو دَ هغه نوم بلعام وودا عجمي سړې وو ده ته به حضور ﷺ تعليم ورکولو نودحضور ﷺ دَ هغه سره تګ راتګ کتلوباندې قريشو دا مشهوره کړه چه هم دا سړې حضور ﷺ ته څه ښائي اودې هغه دَ کلام الله په نوم په خپلو ملګروکښې ښائي. (الطبری:۱۷/۲۹۸)

چا وئيل چه دې نه مراد سلمان فارسي رضي الله عنه دې خودا قول خو ډير لنډې بوچې دې ځکه چه حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه خو په مدينه کښې حضور ﷺ سره ملاو شوې وو اودا آيت په مکه کښې نازل شوې دې. عبيدالله بن مسلم رضي الله عنه وائي زمونږ دَ کار يودوه سړی دَ روم اوسيدونکی وو چه په خپله ژبه کښې به ئې خپل کتاب لوستلو حضور ﷺ به هم تلوراتلو کله کله به هغوی سره اودريدو اوريدلو به ئې په دې باندې مشرکانو دروغ شروع کړل چه هم دَ دوی نه قرآن زده کوی. په دې باندې دا آيت نازل شو سعيدبن مسيب رحمه الله فرمائي دَ مشرکانو نه يوسړې ووچه وحي به ئې ليکله دې نه پس هغه دَ اسلام نه مرتد شو اوداخبره ئې دَ خان اوکړه دَ الله تعالى لعنت دې په هغه وی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلَيْهِ | أَعْجَمِيٌّ | وَّهٰذَا | لِسَانٌ | عَرَبِيٌّ | مُّبِينٌ ۝ | إِنَّ الَّذِينَ |
| هغه ته | عجمي ژبه ده | او داقرآن | ژبه ده | عربي | صفا | بيشكه هغه كسان |

د هغه ژبه عجمي ده | او دا قرآن خو په صفا عربئ ژبه كښې راغلې دې | څوک چې دالله تعالى

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَا يُؤْمِنُونَ | بِآيَاتِ اللّٰهِ | لَا يَهْدِيهِمُ اللّٰهُ | وَلَهُمْ | |
| چې نه راوړي ايمان | په آيتونو دالله | نه كوي هدايت هغوئ ته الله | اومقردې دپاره دهغوئ | عذاب |

په آيتونو ايمان نه راوړي | الله تعالى هغوئ په سمه لار نه روانوي | اوهغوئ دپاره

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝ | إِنَّمَا | يَفْتَرِي الْكَذِبَ | الَّذِينَ | لَا يُؤْمِنُونَ | بِآيَاتِ اللّٰهِ |
| دردناك | بيشكه | جوړوي / دروغ | هغه كسان | چې نۀ راوړي ايمان | په ايتونو دالله باند |

دردناک عذاب مقرر دې|دروغ جوړونكي خو هغه خلق دي | چې دالله تعالى په آيتونو باندې ايمان نه راوړي

| | |
|---|---|
| وَأُولٰئِكَ | هُمُ الْكٰذِبُونَ ۝ |
| اودغه كسان | هم هغوئ دروغژن دي |

اوهم دا خلق پوره درغژن دي |

**آسان ترجمه قرآن**

او كله چه مونږ يو آيت لره په بل سره بدلوو او الله پاک ښه پوهيږي چه هغه څه نازلوي نو دا (كافر) وائي چه: ته خو په الله پاک باندې دروغ تړې. حال دا چه په هغوى كښې اكثر خلق د حقيقت علم نه لري. اووايه چه: دا (قرآن كريم) خو روح القدس (يعنى جبريل عليه السلام) ستا د رب د طرف نه صحيح صحيح راوړې دې، چه ايمان والا ثابت قدم اوساتي، او د مسلمانانو دپاره د هدايت او خوشخبرئ سامان شي. او (اې پيغمبره) مونږ ته معلومه ده چه دا خلق (ستا په باره كښې) دا وائي چه: دۀ ته خو يو انسان ښودنه كوي. (حال دا چه) د كوم سړي چه دوي حواله وركوي د هغه ژبه عجمي ده. او دا (د قرآن ژبه) صفا عربي ژبه ده. كوم خلق چه د الله پاک په آيتونو باندې ايمان نه لري، هغوى الله پاک په هدايت باندې نه راولي، او هغوى دپاره دردناک عذاب دې. په الله پاک باندې دروغ خو (پيغمبر نه بلكه) هغه خلق تړي كوم چه د الله پاک آيتونو باندې ايمان نه لري، او هم هغوى په حقيقت كښې دروغژن دي.

**د تفسير خلاصه**

**دآيتونو ترون**:: په ذكر شوى آيت مبارک كښې د قرآن عظيم الشان د تلاوت په وخت د اعوذ بالله دلوستلو هدايت شوې دې چې په كښې اشاره دې ته ده چې شيطان د تلاوت په وخت د انسان په زړه كښې وسوسې اچوي، اوس په دې آيتونو كښې د دغه شان شيطاني وسوسو جواب دې:

**په پيغمبرئ باندې دكافرانو د شبهو جواب سره د زورنې وركول**:: ﴿وَإِذَا بَدَّلْنَا آيَةً مَّكَانَ آيَةٍ﴾ او كله چې مونږ څه آيت مبارک په ځائې دبل آيت مبارک بدلوؤ [يعنې د يو آيت مبارک الفاظ يا معنې منسوخ كولو سره د هغې په ځائې چې بل حكم ليږو] ﴿وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِمَا يُنَزِّلُ﴾ او حال دادې چې الله ﷻ كوم حكم [ په ړومبى يا دويم خل ] ليږى [ دهغې خير او حكمت] هم هغه ښه پيژنى [ چې چا ته دا

حکم ورکړې شوې دې د هغوئ د حالاتو په اعتبار سره په يو وخت کښې خير څه وو ، بيا دحالت په بدليدو سره خير او حکمت بل شو] ﴿قَالُوٓا اِنَّمَآ اَنۡتَ مُفۡتَرٍ﴾ نو دا خلق وائي چې [معاذ الله] تاسو ﷺ [ په الله ﷻ باندې ] تور پورې کوونکی يئ [چې خپل کلام الله ﷻ ته منسوب کوئ ، که دا الله ﷻ حکم وې نو ددې د بدلولو څه ضرورت وو آيا الله ﷻ ته ړومبې علم نه وو څه؟ او داخلق په دې غور نه کوی چې کله خو داسې هم کيږی چې دا ټول حالات ورته معلوم وی او بيا هم د ړومبی حالت په راپيښيدو ورمبې حکم ورکولې شی او د دويم حالت راپيښيدل ورته دغه وخت اگر چې معلوم وی ، خو د ښيگړې د لحاظ ساتلو په غرض ددغه دويم حالت حکم دغه وخت نشی بيانولې بلکه دغه حالت چې راپيښ شی نو دغه وخت بيانولې شی ددې مثال داسې اوګڼرئی چې يو ډاکټر ، حکيم څه وخت يو دوائی تجويز کړی هغه په دې پوهيږی چې ددې په استعمال سره به د مريض حالت بدليږی ځکه به بله دوائی ورکولې شی خو د اول سر نه پرې مريض نه خبر وی ، هم دغه حقيقت د قرآن پاك او سنت دحکمونو د منسوخ کيدو دې . خو چې څوك دې حقيقت څخه خبر نه وی نو د شيطان په دهوکه کولو سره د نسخ نه انکار کوی ځکه ددې په جواب کښې الله ﷻ فرمائي چې رسول اکرم ﷺ د ځانه خبرې جوړونکې نه دې ] ﴿بَلۡ اَكۡثَرُهُمۡ لَا يَعۡلَمُوۡنَ﴾ بلکه هم په دوئ کښې اکثر خلق جاهلان دی [ کوم چې د يو حکم منسوخ کيدل بې د ليله دالله ﷻ د کلام کيدو خلاف ګڼری] ﴿قُلۡ نَزَّلَهٗ رُوۡحُ الۡقُدُسِ مِنۡ رَّبِّكَ بِالۡحَقِّ﴾ تاسو [ددوئ په جواب کښې ] اوفرمايئ [ چې دا کلام مې د خپله ځانه نه دې جوړ کړې بلکه [روح القدس ] جبرائيل ﷺ ] ستاسو د رب د طرفه د حکمت په جوړ راوړې دې [ ځکه هم دالله ﷻ کلام دې ددې په حکمونو کښې بدلون راوستل د خير ، ښيگړې تقاضا ده ، او دا کلام ځکه ليږلې شوې دې ] ﴿لِيُثَبِّتَ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَهُدًى وَّبُشۡرٰى لِلۡمُسۡلِمِيۡنَ﴾ چې ايماندار [ په ايمان باندې] کلك قدمی لری او هغې مسلمانانو دپاره هدايت او زيرې [ يعنی ددې ذريعه جوړه] شی [ وروسته د کافرانو د يو عبث شبهې جواب دې] ﴿وَلَقَدۡ نَعۡلَمُ اَنَّهُمۡ يَقُوۡلُوۡنَ اِنَّمَا يُعَلِّمُهٗ بَشَرٌ﴾ او مونږ ته معلوم دی چې داخلق [ يوه بله غلطه خبره] دا هم کوی چې دوئ ﷺ ته خوبنيادم ور ازده کوی [ چې مراد ئې ترې د روم اوسيدونکې يو عجمی لوهار دې چې نوم ئې بلعام يا مقيس وو هغه به د رسول کريم ﷺ خبرې مبارکې ښه په غور سره آوريدې نو هغوئ ﷺ به هم کله کله دوئ سره کيناستل ، دې په انجيل وغيره هم څه پوهيدو په دې بنا کافرانو ترې دا خبره جوړه کړه چې ګنې هم دغه کس هغوئ ته د قرآن عظيم الشان کلام ورازده کوی [درمنثور] الله ﷻ ددې جواب په دې شان ورکوی چې قرآن عظيم الشان د الفاظو اومعنو نوم دې که تاسو د قرآن کريم په معنو او معارضو باندې نه پوهيږئ نوکم از کم د عربی ژبې د معياری فصاحت او بلاغت څخه خو بې خبره نه يئ کنه ، آخر تاسو لره خو په دې پوهيدل پکار دی چې که بالفرض دغه سړی ورته د قرآن عظيم الشان معنې ورازده کړی دی نو ددې الفاظ او داسې فصاحت او بلاغت په کښې د کومې راغلو چې د مقابلې څخه ئې ټول عرب پاتې راغلل ؟ دا چرته نه راغلو ولې چې] ﴿لِسَانُ الَّذِيۡ يُلۡحِدُوۡنَ اِلَيۡهِ اَعۡجَمِيٌّ وَّهٰذَا لِسَانٌ عَرَبِيٌّ مُّبِيۡنٌ﴾ کوم سړی ته ددې نسبت کوئ دهغه ژبه خو عجمی ده او دا قرآن پاك صفا عربی دې [ يو عجمی داسې عبارت ځنګه جوړولې شی ؟ اوکه دا اووئيلې شی چې دا عبارت به رسول اکرم ﷺ جوړ کړې وی نو ددې واضحه جواب په هغه تحدی يعنی چيلنج سره ورکړې شوې دې کوم چې په سورة بقره کښې راغلې دې چې نبی کريم ﷺ

د الله ﷻ په حکم سره د خپل نبوت او د قرآن عظیم الشان د حقانیت معیار هم دا کرځولې وو چې ستاسو د وینا مطابق که دا دانسام کلام دې نو تاسو خو هم انسانان یئ او د فصاحت او بلاغت پوره دعوی لرئی نو تاسو ددې کلام برابر خو نشئ راوړلې خو ددې د یو آیت مبارك برابر لیکلې راوړوئی. مګکر تول عرب خپل خانونه او مالونه د نبی کریم ﷺ په مقابله کښې قربانولو ته تیار وو ، خو ددې چیلنج قبلول ددوئ په بس کښې نه وو ، ددې څخه وروستو د نبوت د منکرینو او کوم خلق چې په قرآن باندې اعتراض کوی ، هغوئ ته وعید دې چې [ ﴿إِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ﴾ کوم خلق د الله ﷻ په آیتونو باندې ایمان نه راوړی ﴿لَا يَهْدِيهِمُ اللَّهُ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ دوئ به الله ﷻ چرې هم په لاره نه راولی او دوئ دپاره بهٔ دردناکه سزا وی [ او دا خلق چې درباندې ددې دځانه جوړولو تور پورې کوی نو ] ﴿إِنَّمَا يَفْتَرِي الْكَذِبَ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ﴾ دروغ پورې کوؤنکی خو هم دا خلق دی چې دالله ﷻ په آیتونو باندې ایمان نه راوړی ﴿وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْكَاذِبُونَ﴾ اوهم دا خلق دی پوره درغژن.

مَنْ كَفَرَ بِاللَّهِ مِنْ بَعْدِ إِيمَانِهِ

هغه څوك چې کفرنې اوکړو | په الله | روستو | دایمان خپل نه |

..... چا چې دایمان راوړلو نه پس بیا په الله تعالی باندې کفر اوکړو |

إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ

مګر | هغه څوك | چې زور اوشو په هغه | او حال دا چې زړهٔ دهغه | مطمئن وؤ | په ایمان سره

سوا د هغه چا نه چې مجبوره کړې شی او د هغه زړهٔ په ایمان باندې مطمئن وی

وَلَٰكِنْ مَنْ شَرَحَ بِالْكُفْرِ صَدْرًا فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ مِنَ اللَّهِ

ولیکن هغه څوك | چې فراخه کړی | په کفر سره | سینه | نوپه هغوئ باند | غضب دې | د طرفه دالله نه

نو داسې بنده مستثنی دې | خو چا چې خپله سینه کفر ته پرانستله | نو په هغوئ به دالله تعالی غضب وی

وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمُ اسْتَحَبُّوا الْحَيَاةَ

او دې دپاره دهغوئ | عذاب | لوئ | دا | په سبب ددې چې هغوئ | خوښ کړو | ژوند

اوهغوئ دپاره لوئې عذاب مقرر دې | دا ځکه چې دوئ د آخرت په مقابله کښې

الدُّنْيَا عَلَى الْآخِرَةِ وَأَنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ

ددنیا | په آخرت باندې | او بیشکه چې الله | نهٔ ښائی لار | قوم کافر ته

د دنیا ژوند خوښ کړو | اودا ځکه چې الله تعالی کافرانو ته [ د نیغې لارې ] هدایت نه کوی

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ طَبَعَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ وَسَمْعِهِمْ

داکسان | هغه کسان دی | چې مهر وهلې دې | الله | په زړونو دهغوئ باند | اوپه غوږونو دهغوئ باند

دا هغه خلق دی چې دکومو په زړونو غوږونو اوسترګو باندې

وَأَبْصَارِهِمْ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ ۝ لَا جَرَمَ أَنَّهُمْ

او په سترګو دهغوی باند | اوداکسان چی دی | هم دوی | غافلان دی | لازمه ده داخبره | چی بیشکه دوی

چي الله ﷻ مهرلګولې دي | او دا خلق د خپل انجام نه بې خبره دی | دا یقینی خبره ده | چې په

فِي الْآخِرَةِ هُمُ الْخَاسِرُونَ ۝

په آخرت کښې | هم دوی | نقصانیان دی |

آخرت کښې به هم دا خلق په نقصان کښې وی |

## آسان ترجمه قرآن

کوم سړي چه په الله پاک باندې د ایمان راوړلو نه پس کفر اوکړی خوهغه نه، کوم چه په زوره (د کفر د کلمې په وئیلو باندې) مجبور کړې شو. په داسې حال کښې چه د هغه زړه په ایمان باندې مطمئن وی، بلکه هغه سړي چا چه خپله سینه د کفر دپاره پرانستلې وی... نو په داسې خلقو باندې به د الله پاک د طرف نه غضب نازلیږی، او د هغوی دپاره زبردست عذاب تیار دې. دا په دې وجه چه داسې خلقو د دنیا ژوند د آخرت په مقابله کښې زیات محبوب اوګنړلو، او دا په دې وجه چه الله پاک داسې ناشکره خلقو ته هدایت نه کوی. دا داسې خلق دی چه الله پاک د دوی په زړونو باندې، او ددوی په غوږونو او سترګو باندې مهر لګولې دې، او هم دا هغه خلق دی چه (د خپل انجام نه) بالکل غافل دی لازمی خبره ده چه هم دا خلق دی کوم چه به په آخرت کښې د ټولو نه زیات نقصان اوچتوی.

## د تفسیر خلاصه

﴿مَنْ كَفَرَ بِاللَّهِ مِنْ بَعْدِ إِيمَانِهِ﴾ څوك چې د ایمان راوړو نه پس په الله ﷻ باندې کفر کوی [ دې کښې پیغمبر باندې کفر کول او قیامت څخه انکار کول ټول هر څه راغلل] ﴿إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ﴾ مګر په چا چې [ د کافرانو د طرفه] زور اچولې شی [ که ته په فلانی کلام یا فلانی قول باندې کفر نه کوې نو مونږ تا قتلوؤ مثلا او اندازه هم داسې وی چې دوئ دغسې کولې شی ] ﴿وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ﴾ په شرط ددې چې دهغه زړه په ایمان کلك وی [ یعنی په عقیده کښې ئې څه کمزوری رانشی او دغه کار او خبره ګناه ، او بدګنړی نو هغه دې حکم لاندې نه رازی ، چې د هغه ظاهری طور باندې په کلمه د کفر یا په فعل د کفر کښې مبتلاء کیدل د یو وعدې په بناء بهٔ وی په دې وجه د مرتد والی راتلونکې درکې داسې کس دپاره نه دی ] ﴿وَلَٰكِنْ مَنْ شَرَحَ بِالْكُفْرِ صَدْرًا﴾ خو چې څوك په داده زړه [ داسې هم کفر لره صحیح او غوره ګنړی] کفر کوی ﴿فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ مِنَ اللَّهِ﴾ نو د اسې خلقو باندې به د الله ﷻ غضب وی ﴿وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ۝﴾ او د دوئ بهٔ لویه سزا وی. [او ] ﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمُ اسْتَحَبُّوا الْحَيَاةَ الدُّنْيَا عَلَى الْآخِرَةِ﴾ دا [ غضب او عذاب ] به ځکه وی چې دوئ ددنیا ژوند د آخرت په مقابله کښې خوښ اولرلو ﴿وَأَنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ ۝﴾ او ځکه به وی چې الله ﷻ داسې کافرانو خلقو ته [ چې همیشه دپاره آخرت نه دنیا غوره ګنړی [ هدایت نه ورکوی [ دا دواړه جدا جدا وجې نه دی بلکه یو ځائې یو وجه ده ، ددې حاصل دادې چې دالله ﷻ د عادت مطابق الله ﷻ یو کار پیدا کړی او بیا پرې کار کول مرتب کیږی نو دلته په استحبوا سره د انسان قصد کولو او لایهدی سره دهغې پیداکولو ته اشاره ده چې دې مجموعې یو ځائې کیدو

باندې دناكاره كار صادريدل مرتب دى] ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ طَبَعَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ وَسَمْعِهِمْ وَأَبْصَارِهِمْ﴾ دا هغه خلق دى چې [ په دنيا كښې په كفر باندې ددوئ د كلك والى داحال دې چې] الله ﷻ د دوئ په زړونو په غوږونو په سترګو باندې مهر لګولې دې ﴿وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ﴾ او دا خلق [ د انجام څخه] بالكل بيغمه دى ﴿لَا جَرَمَ أَنَّهُمْ فِي الْآخِرَةِ هُمُ الْخَاسِرُونَ﴾ [څكه] ضرورى خبره د ه چې په آخرت كښې به دا خلق بالكل زيان كښې پاتې كيږى.

## معارف او مسائل

**مسئله**:: ددې آيت مبارک نه ثابته شوه چې څوک د كفر د كلمې په وئيلو داشان مجبوره كړې شى چې ددې نه وئيلو په صورت كښې به ئې اووژلې شى او غالب ګمان هم دا وى چې په وژلو ئې به لاس بر وى ، پداسې حال كښې د كفر د كلمې وئيلو هيڅ ګناه نشته ، اونه پرې خپله ښځه حراميږى خو هله چې د زړه نه د كفر كلمه بده او باطله ګڼړى ، [قرطبى و مظهرى].(¹)

دا آيت مبارک د هغې صحابه كرامو ﷺ باره كښې نازل شوې دې چې مشركانو بنديوان كړى وو او ورته ئې داسې وئيلې وو چې د كفر نه اختيارولو په صورت كښې به مو اووژنو.

دا بنديوان صحابه كرام ﷺ ، عمار ﷺ ، د دوئ والدين ياسر ﷺ ، سميه ﷺ ، صهيب ﷺ ، بلال ﷺ او خباب ﷺ وو. په دوئ كښې ياسر ﷺ او ددوئ بى بى سميه ﷺ د كفر د كلمې وئيلو نه بالكل انكار اوكړو نو ياسر ﷺ اووژلې شو او سميه ﷺ د دوؤ اوښانو په مينځ كښې اوتړلې شوه او ، اوښان اوزغلولې شو او داشان هغه ﷺ په مينځ دوه ټوټې كيدو سره شهيده شوه . اسلام كښې اولنئ شهادت نصيب كيدونكى كسان وو . دغه شان خباب ﷺ د كفر د كلمې نه بالكل انكار اوكړو او ډير په اطمينان سره ئې شهيديدل قبول كړو صرف عمار ﷺ د خپل مرګ د ويرې په خله د كفر كلمه اووئيله ليكن زړه ئې په ايمان سره كلک وو ددغې بند نه چې راخلاص شو نو زر تر زره د رسول كريم ﷺ په خدمت كښې ئې دا واقعه په ډير غم سره بيان كړه ، رسول كريم ﷺ ترې تپوس اوكړو چې ددغې كلمې وئيلو په وخت دې د زړه څه حال وو؟ هغه عرض اوكړو چې زړه مې په ايمان ښه مضبوط وو . رسول كريم ﷺ ورته اوفرمائيل چې غم مه كوه ددې هيڅ ګناه درباندې نشته ، دې پسې دا آيت مبارک د رسول كريم ﷺ په تصديق كښې نازل شو [قرطبى و مظهرى].(²)

**د اكراه پيژندګلې او حد بندى** :: د اكراه لفظى معنى داده چې څوک ناخوښه كار يا ناخوښې خبرې په كولو باندې مجبوره كړې شى ، بيا ددې دوه درجې دى ، يوه دا ده چې زړه خو ئې د كفر دغه كار يا خبره كول نه منى خو داسې بې اختياره او بې قابو هم نه وى چې انكار نشى كولې ، دې ته د فقهاء كرامو په اصطلاح كښې اكراه غيرملجى وئيلې شى ، په داسې حالت كښې د كفر كلمه وئيل يا يو حرام كار كول نه جائز كيږى ، البته په څينې جزئى حكمونو كښې په دې هم څه څيزونه او اثرات اړه لرى چې په تفصيل سره د فقهې په كتابونو كښې بيان شوى دى.(³)

---

(¹) تفسير المظهرى تحت هذه الآية [ج:۵ص:۳۷۷] و تفسير القرطبى تحت هذه الآية [ ج:۱۰ص:۱۸۲]

(²) تفسير القرطبى تحت هذه الآية[ ج:۱۰ص:۱۸۰]و تفسير المظهرى[ج:۵ص:۳۷۶]

(³) تفصيل دپاره اوګورئ: بدائع الصنائع ، كتاب الإكراه: [ج: ۷ ص:۱۷۵] والشامية مع الدر[ج:۶ ص:۱۲۸]

د اکراه دویمه وجه داده چې د هغه څخه اختیار واخستې شو ، که هغه د اکراه کوونکو په وینا باندې عمل نه کوی نو دې به قتل کیږی ، یا به دده یو اندام کټ کیږی ، دې ته د فقهاء کرامو په اصطلاح کښې اکراه ملجی وئیلې کیږی ، ددې معنی ده ، داسې اکراه چې یو کس لره مسلوب الاختیار او مجبور محض کړی ، داسې حالت کښې د کفر کلمه په ژبه وئیل ، په دې شرط چې زړهٔ کښې ایمان وی ، نودا جائز دی ، دغه شان بل انسان لره د قتل کولو څخه علاوه په بل څه حرام کار باندې که مجبوره کړې شی نو په دې کښې هم څه گناه نشته دې .
په دواړو قسمونو اکراه کولو کښې شرط دادې چې په زور کوونکې په دې قدرت لرې چې خپله غصه تر سره کړی او ددغه راگیر بنده غالب گمان هم دا وی چې ددغې زورور کس د خبرې نه منلو په صورت کښې به هغه خپله غصه ضرور سرته رسوی [مظهری].(۱)

**مسئله** :: معاملې دوه قسمه دی ، یو قسم معامله هغه ده چې د زړهٔ رضا مندی هغې دپاره ضروری وی لکهٔ اخستل خرڅول او هبه وغیره شوه چې په کښې د زړهٔ رضا مندی د قرآن عظیم الشان په نص سره داسې ثابته ده فرمائی چې :

﴿إِلَّآ أَن تَكُونَ تِجَٰرَةً عَن تَرَاضٍ مِّنكُمْ﴾ [چا ته تر هغې وخت پورې د بل مال نه روا کیږی تر څو چې د تجارت وغیره معامله دواړه طرفه په رضامندئی سره سر ته اونه رسوی]
او یو حدیث پاک کښې راغلی دی چې :

﴿لایحل مال امرئ مسلم الابطیب نفس منه﴾(۲) [د چا مسلمان مال تر هغې بل ته نه روا کیږی چې د ښه زړهٔ نه ئې ورته نه وی ورکړې]

دغه شان معاملې په زور سره کول د شریعت تر مخه هیڅ حیثیت نه لری ، د زور نه د خلاصیدو په صورت کښې دغه راگیر بنده ته اختیار دې که اوغواړی په دغې شوې معاملې دې په خپله خوښه عمل اوکړی ، یا دې بالکل ختمه کړی .
دویم قسم معامله هغه ده چې صرف د خلې په وینا باندې سرته رسیږی ، د قصد ، ارادې ، رضا او خوښې هیڅ دخل په کښې نه وی ، لکهٔ نکاح ، طلاق ، رجوع کول او آزادول وغیره شو ، یو حدیث پاک کښې رازی چې :

﴿ثلاث جدهن جد وهزلهن جد النکاح والطلاق والرجعة﴾ [رواه ابو داؤد والترمذی وحسنه](۳)
[یعنی که یو سړې او ښځه د شرعی شرطونو مطابق خپل مینځ کښې په ژبې سره د نکاح ایجاب قبول اوکړی ] یا یو خاوند خپلې ښځې ته د خلې په وینا طلاق ورکړی ، یا د طلاق ورکولو نه پس په ژبې سره خپلې ښځې ته رجوع اوکړی ، اگر چې د لوبو ټوقو په شکل کښې وی ، په زړهٔ کښې ئې دنکاح ، طلاق یا رجوع کولو څه اراده نه وی بیا هم نکاح اوشوه ، ښځهٔ طلاقه شوه او رجوع ئې صحیح شوه [مظهری].(۴)

---
(۱) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة [ج:۵ص:۳۷۷]
(۲) مسند احمد حدیث عم ابی حرة رقم الحدیث:[۱۹۷۷۴]
(۳) جامع الترمذی ، ابواب الطلاق باب ماجاء فی الجد والهزل فی الطلاق [ج:۱ ص:۲۲۵]و سنن ابوداود، کتاب الطلاق ، باب فی الطلاق علی الهزل [ج:۱ص:۲۹۸]
(۴) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة [ج:۵ص:۳۸۰،۳۸۱]

د امام اعظم ابی حنیفه رحمه الله ، شعبی رحمه الله ، زهری رحمه الله ، نخعی رحمه الله ، اوقتاده رحمه الله په نزد دطلاق مکره هم دغه دغه حکم دې چې په حالت د اکراه کښې اگر چې هغه په طلاق ورکولو باندې د زړۀ نه تیار نه وو ، دمجبورئی په حالت کښې یې د طلاق الفاظ اووئیل ، او وقوع طلاق تعلق صرف د الفاظو ادا کولو سره دې د زړه قصد او اراده په دې کښې شرط نه ده لکه څنگه چې یو حدیث پاک کښې داسې راغلی دی چې :

﴿رفع عن امتی الخطاء والنسیان وما استکرهوا علیه﴾ [الطبرانی عن ثوبان] (۱)

[زما امت نه خطا هیره او په څه چې مجبوره کړې شي دا ټول ترې پورته کړې شوي دی]

امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد ددې حدیث پاک حکمونه آخرت سره تعلق لری ، چې په دې سره به آخرت کښې څه نیول به ئې نه کیږی چې څه خبره یا کار ئې د شریعت نه خلاف کړې وی ، لیکن د دنیا حکمونه او نتائج به په دې باندې مرتب او واقع کیږی . لکه څوک بې قصده په خطا سره چالره اووژنی نو د وژلو گناه او په آخرت کښې ددې سزا خو به بیشکه نه وی خو محسوس اثر به ئې ضرور وی . یعنې د مقتول ساه به خامخا خیژی دا شرعی اثر به هم پرې ثابتیږی چې د مقتول ښځه به د عدت تیرولو نه پس بل سره نکاح کولې شی ، مال به ئې په وارثانو تقسیمولې شی دغه شان د نکاح ، طلاق یا رجوع الفاظ د خلې نه په ویستلو سره به ددې شرعی اثر هم ثابتیږی [مظهری و قرطبی] (۲) والله سبحانه وتعالی اعلم.

| | | | |
|---|---|---|---|
| لِلَّذِيْنَ | رَبَّكَ | اِنَّ | ثُمَّ |
| دپاره دهغه کسانو | رب ستا | بیشکه | پس بیا |

اود دې په عکس ستا پروردگار د هغه خلقو دپاره

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَصَبَرُوْٓا | ثُمَّ جٰهَدُوْا | فُتِنُوْا | مِنْۢ بَعْدِ مَا | هَاجَرُوْا |
| او صبر ئې اوکړو | بیا ئې جهاد اوکړو | چې تکلیفونه ورکړې شو | روستو دهغې نه | چې هجرت ئې اوکړو |

چې د مظلومیت نه پس ئې هجرت کړې دې او په تکلیفونو باندې ئې صبر کړې دې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَوْمَ | رَّحِيْمٌ | لَغَفُوْرٌ | مِنْۢ بَعْدِهَا | رَبَّكَ | اِنَّ |
| په هغه ورځ | مهربانه دې | خامخا ښښونکې دې | روستو ددغه کارنه | رب ستا | نو بیشکه |

نو ستارب د دې کارونو نه پس بخښونکې مهربان دې ......... په کومه ورځ

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَنْ نَّفْسِهَا | تُجَادِلُ | كُلُّ نَفْسٍ | تَاْتِيْ |
| په باره دبچکیدو دخان خپل کښې | چې جگړه به کوی | هر نفس | چې رابه شی |

چې به هر یو کس پیش شی او د خپل طرفنه به جگړه کوی

---

(۱) المعجم الکبیر للطبرانی (بألفاظ مختلفة) رقم الحدیث:[۱۴۱۴]

(۲) تفسیر المظهری[ج:۵ص:۳۸۰،۳۸۱]و تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة[ ج:۱۰ص:۱۸۴]

وَتُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ

اوپوره به ورکړی کیږی | هرنفس ته | هغه څه | چی هغه کړی وی | اوپه هغوئ به | هیڅ ظلم نهٔ کیږی

او هر چا ته به ددهٔ دعملونو پوره پوره بدله ورکولی شی | او په دوئ به هیڅ ظلم نشی کولی

وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا قَرْيَةً كَانَتْ اٰمِنَةً مُّطْمَىِٕنَّةً يَّاْتِيْهَا رِزْقُهَا

اوبیانوی الله | مثال | دیو کلی | چی وو هغه | په امن | په اطمینان | راتلو به هغه کلی ته | رزق دهغه کلی

اوالله ﷻ دیو کلی د خلقو مثال بیانوی | چې هغوئ په امن او اطمینان سره اوسیدل | د هر طرف نه به

رَغَدًا مِّنْ كُلِّ مَكَانٍ فَكَفَرَتْ بِاَنْعُمِ اللّٰهِ فَاَذَاقَهَا اللّٰهُ

فراخه | دهر ځائې نه | نو ناشکره شو هغه کلې | په نعمتونو دالله | نو اوڅکوله دغه کلی ته الله

ورته فراخه روزی راتله | .........خو هغوئ دالله ﷻ دنعمتونو ناشکری اوکړی | نو الله تعالی د هغوی

لِبَاسَ الْجُوْعِ وَالْخَوْفِ بِمَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ وَلَقَدْ

جامه دلوږې | اودیرې | په سبب دهغې عمل | چی وو هغوئ | چی کول به ئې | اوبه تحقیق سره

دعملونو په وجه په هغوئ باندې لوئې قحط او ویره راوستله | .....................اوبیشکه

جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مِّنْهُمْ فَكَذَّبُوْهُ فَاَخَذَهُمُ

راغې هغوئ ته | یو رسول | دهغوی دخپل قوم نه | نو دروغ اوګنړو هغوئ هغه لره | نواونیول هغوئ لره

هغوئ ته هم د هغوئ د قوم نه یو پیغمبر راغلې وو | نو هغوئ دې دروغژن اوګنړلو | نو په هغوی

الْعَذَابُ وَهُمْ ظٰلِمُوْنَ

عذاب | او هغوئ | ظالمان وو |

باندې په داسې حالت کښې عذاب راغلو چی هغوی ظالمان وو

## آسان ترجمه قرآن

او چا چه په فتنه کښې د اخته کیدو نه پس هجرت اوکړو، بیا ئې جهاد اوکړو او د صبر نه ئې کار واخستلو نو دې خبرو نه پس ستا رب یقینًا بخښونکې، رحم کونکې دې. دا هر څه به په هغه ورځ باندې کیږی چه کله به هر سړې د خپلې دفاع خبرو کولو سره راشی او هر هر کس ته به د هغه د اعمالو پوره پوره بدل ورکړې شی، او په خلقو باندې به هیڅ ظلم نه شی کولې. الله پاک د یو ښهر مثال بیان فرمائی کوم چه ډیر په امن او مطمئن وو، د هغوی رزق به د هر طرف نه ډیر په فراخئ سره رارسیدلو بیا هغوی د الله پاک د نعمتونو ناشکری شروع کړه، نو الله پاک د هغوی د عملونو په وجه باندې هغوی ته دا سزا ورکړه چه لوږه او ډنده ئې جامه جوړه شوه او هغوی ته هم د هغوی نه یو پیغمبر راغلې وو، خو هغوی هغه دروغژن کړو، پس چه کله هغوی ظلم اوکړو نو عذاب هغوی راونیول.

## د تفسیر خلاصه

د تیرو شوؤ آیتونو کښې په کفر باندې د وعید بیان وو که هغه کفر اصلی وی یا ارتدادی کفر وی، دې نه پس په مذکوره درې آیتونو کښې رومبی آیت مبارك کښې فرمائیلې شوی دی چې

ایمان یو داسې دولت دې چې کوم کافر یا مرتد په رښتونی ایمان قبول کړی نو ددهٔ مخکښې ټول ګناهونه معاف کیږی:

دویم آیت مبارك کښې د قیامت ذکر په دې وجه اوشو چې دا سزا او جزا ټول د قیامت څخه وروستو کیدونکی دی ، دریم آیت مبارك کښې اوونیلې شو چې د کفر او ګناهونو دا سفر خو به د قیامت څخه وروستو وی خو د ځینې ګناهونو سزا په دنیا کښې هم ملاویږی ، د درې وارو آیتونو تفسیر دا دې :

﴿ثُمَّ اِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِيْنَ هَاجَرُوْا مِنْۢ بَعْدِ مَا فُتِنُوْا﴾ بیا [ که دکفر څخه پس دا خلق ایمان راوړی نو] بیشکه ستاسو رب داسې خلقو دپاره چې په کفر کښې داخته کیدو څخه روستو [ایمان راوړې او] هجرت ئې اوکړو ﴿ثُمَّ جٰهَدُوْا وَصَبَرُوْٓا﴾ بیا ئې جهاد اوکړو او [ په ایمان باندې ] ولاړ پاتې شو ﴿اِنَّ رَبَّكَ مِنْۢ بَعْدِهَا لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ نو ستا رب [دغسې] خلقو د پاره [ ددې عملونو] نه پس لوئې بخښونکې لوئې رحمت کوونکې دې [ یعنی دایمان اونیك عملونو په برکت به ئې ټول کړی ګناهونه معاف شی او د الله ﷻ په رحمت سره به ورته په جنت کښې لوئې لوئې درجې ملاویږی . دکفر نه وړاندې ګناهونه خو بهٔ ئې صرف په ایمان راوړو سره معاف شی جهاد وغیره نیك عملونه د معاف کیدو دپاره نهٔ دی ، لیکن نیك عملونه دجنت د درجو ملاویدو اسباب دی په دې وجه یې دې سره ذکر کړو او دا جزا او سزا به په هغه ورځ واقع کیږی ] ﴿يَوْمَ تَاْتِيْ كُلُّ نَفْسٍ تُجَادِلُ عَنْ نَّفْسِهَا﴾ په کومه ورځ به چې هر څوك هم دخپلې مرستې خبرې کوی [ او د بل چا تپوس به نه کوی] ﴿وَتُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ﴾ او هر چا ته به د هغه د کړو پوره بدله ملاویږی [ یعنی د نیکئ په بدله کښې ئې کمی نه کیږی اګر چې د الله ﷻ په رحمت سره په کښې زیاتوالې راتلې شی او دبدئ په بدله کښې به ئې زیاتوالې نشی کولې البته دالله ﷻ په رحمت سره په کښې کمې کیدې شی نو په دې وجه فرمائی چې ] ﴿وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ﴾ په دوئ به ظلم نشی کولې [ دې څخه روستو داخودلې شوی دی چې اګر که د کفر او نافرمانئ پوره سزا به د حشر څخه روستو وی مګر په دنیا کښې هم ددې وبال د عذاب په صورت کښې رازی ] ﴿وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا قَرْيَةً كَانَتْ اٰمِنَةً مُّطْمَئِنَّةً﴾ او الله ﷻ د یوې آبادئی د خلقو عجیبه حالت بیانوی چې هغوئ په [ډیر] امن او اطمینان کښې اوسیدل [او] ﴿يَّاْتِيْهَا رِزْقُهَا رَغَدًا مِّنْ كُلِّ مَكَانٍ﴾ دهغوئ د خوارك څکاك او اغوستلو څیزونه په ډیر فراختیا سره د څلورو وارو طرفونو څخه هغوئ ته وررسیدل [ دغې خلقو د الله ﷻ د نعمتونو شکر ادا نه کړو بلکه ] ﴿فَكَفَرَتْ بِاَنْعُمِ اللّٰهِ﴾ هغوئ دالله ﷻ دنعمتونو بې قدری اوکړه [ یعنی په شرك ، کفر او نافرمانئ کښې اخته شو ] ﴿فَاَذَاقَهَا اللّٰهُ لِبَاسَ الْجُوْعِ وَالْخَوْفِ بِمَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ﴾ په دې باندې الله ﷻ ورته د هغوئ د حرکتونو په سبب د یو ټول اړخیز قاطئ او ویرې مزه اوڅکوله [ چې دمال دولت زیاتوالې ترې واخستو په قاطئ او لوږه کښې اخته شو او د دښمنانو ویره ئې پرې غالبه کړه او ددغې آبادئ امن ئې هم واخستو] ﴿وَلَقَدْ جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مِّنْهُمْ﴾ او [ په دې سزا کښې دالله ﷻ د طرفه څخه تادی اونه کړې شوه بلکه اول د هغوئ د خبرداره کولو او ښیګړې دپاره] هغوئ ته هم د هغوئ ځینې یو رسول ﷺ هم [ دالله ﷻ د اړخه] راغلو [چې ددغې قوم دیو غړی په حیثیت ئې رښتنی او دینداری دغې قوم ته ښه معلوم وه] ﴿فَكَذَّبُوْهُ﴾ نو دغه رسول ﷺ [هم] هغوئ دروغژن اوبللو ﴿فَاَخَذَهُمُ الْعَذَابُ وَهُمْ ظٰلِمُوْنَ﴾ بیا هغوئ

لره عذاب راګير کړل ولې چې هغوئ بالکل ظلم [کولو] ته ملا تړلې وه.

## معارف او مسائل

آخري آيت مبارك کښې د لوږې او ويرې مزې څکولو د پاره ئې د لباس لفظ داسې استعمال کړو چې د لوږې او ويرې لباس ئې ورته اوڅکولو ، حالانکه لباس د څکلو څيز نه دې. ددې مطلب دادې چې دلته د لباس لفظ د ټولو د راګيرولو په غرض د تشبيه د پاره استعمال شوې دې. يعني لوږې او ويره د هغوئ ټولو څخه داسې راچاپيره شوه څنګه چې لباس د ټول بدن څخه راچاپيريږي.

دې آيت مبارك کښې بيان کړې شوې دې مثال د څينې امامانو د تفسير په نزد عام دې ، يوې خاص آبادئی سره ئې تعلق نشته ، خو اکثرو حضراتو دې لره د مکې مکرمې واقعه ګرځولې ده ، ولې چې هغه تر اووؤ کالو پورې په سختې قاطئ کښې راګيره وه ، تر دې پورې چې مردار څناور ، سپی ، او نورې ګندګئ خوړل ئې شروع کړل ، او د مسلمانانو ويره پرې سوره شوه بيا د مکې مکرمې سردارانو نبی کريم ﷺ ته عرض اوکړو چې د کفر او نافرمانئ قصور وار خو سړی دی ښځې او ماشومان خو بې قصوره دی. دغه وجه ده چې هغوئ ﷺ ورته د مدينې منورې څخه د خوراك وغيره سامان راؤليږلو. [مظهری].(۱)

او ابو سفيان د کفر په حالت کښې نبی کريم ﷺ ته خواست اوکړو چې تاسو خو د خپلوئ پاللو ، د معافئ ورکولو او په بدو باندې د ښې راښکلو تعليم ورکوئی ، اوس ستاسو ﷺ قوم هر کله چې هلاکيږی نو الله ﷻ څخه ددې قاطئ د لرې کولو دعا اوکړئی په دې وجه نبی کريم ﷺ دوئ د پاره دعا اوکړه او قاطی ختمه شوه . [قرطبی].(۲)

| فَكُلُوْا | مِمَّا | رَزَقَكُمُ اللّٰهُ | حَلٰلًا |
|---|---|---|---|
| نوخورئ | دهغې رزق نه | چی درکړې دې تاسوته الله | حلال |
| نو الله ﷻ چې تاسو ته څه درکړی دی له هغې نه | | | |

| طَيِّبًا ۪ | وَّاشْكُرُوْا | نِعْمَتَ اللّٰهِ | اِنْ كُنْتُمْ | اِيَّاهُ | تَعْبُدُوْنَ ۝ | اِنَّمَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| پاك | او شکر اوباسئ | دنعمت دالله | که يئ تاسو | چی خاص هغه لره | عبادت کوئ | بيشکه |
| حلال پاکيزه څيزونه خورئ | او دالله ﷻ د نعمتونو شکر ادا کوئ | که تاسو په رښتيا د هغه عبادت کوئ | بيشکه | | | |

| حَرَّمَ | عَلَيْكُمُ | الْمَيْتَةَ | وَالدَّمَ | وَلَحْمَ الْخِنْزِيْرِ | وَمَآ | اُهِلَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| حرام کړل الله | په تاسو باند | مرداره | اووينه | اوغوښه دخنزير | اوهغه حلال څناور | چی نوم اغستې شوې وی |
| هغه په تاسو باندې مرداره او وينه اود خنزير غوښه اوکوم څيزونه چې د الله ﷻ | | | | | | |

| لِغَيْرِ اللّٰهِ | بِهٖ ۚ | فَمَنِ | اضْطُرَّ | غَيْرَ بَاغٍ |
|---|---|---|---|---|
| دالله نه سوادبل چا | په هغه باند | نوهغه څوك | چی مجبور شو | په داحال کښې چې نه وی باغی دقانون دالله نه |
| نه سوا د بل چا په نامه منلې شوې وی حرام کړی دی | نو څوك چې مجبوره شی | چی دالله د قانون نه تيريدونکې | | |

(۱) تفسير المظهری تحت هذه الآية [ج:۵ص:۳۸٤، ۳۸۵]
(۲) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:۱۰ص:۱۹۵]

وَّلَا عَادٍ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ﴿۱۱۵﴾ وَلَا تَقُوْلُوْا

او نهٔ زیاتي کونکې وی | نو بیشکه الله | ببښونکې دې | رحم کونکې دې | اومهٔ وایئ تاسو

نه وی|اوحد نه تیریدونکې نه وی |نوبیشکه الله ﷻ بخښونکې مهربان دې | .........اوتاسو

لِمَا تَصِفُ اَلْسِنَتُكُمُ الْكَذِبَ هٰذَا حَلٰلٌ وَّهٰذَا

په باره دهغه څیزونو کښې | چې بیانوی | ژبې ستاسو | دروغ لره | چې دا | حلال دی | او دا

د هغه څیزونو په باره کښې چې ستاسو ژبې ئې په دروغ بیانوی دا مه وایې چې دا حلال دی اودا

حَرَامٌ لِّتَفْتَرُوْا عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ ؕ اِنَّ الَّذِیْنَ یَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ

حرام دی| چې جوړ کړئ| په الله باند| دروغ | بیشکه هغه کسان| چې جوړوی| په الله باند| دروغ

حرام دی|نتیجه به یې دا شی چې تاسو به په الله باندې دروغ اوتړئ|بیشکه څوک چې په الله دروغ جوړوی

لَا یُفْلِحُوْنَ ﴿۱۱۶﴾ مَتَاعٌ قَلِیْلٌ ۪ وَّلَهُمْ عَذَابٌ اَلِیْمٌ ﴿۱۱۷﴾ وَعَلَى الَّذِیْنَ

خلاصې به نهٔ مومی هغوئ| نفعه ده لږه | اودې دهغوئ دپاره| عذاب دردناك|اوپه هغه کسانوباند

هیڅکله به کامیاب نشی|[ددنیا] ژوندلږه شان فائده ده|اوهغوئ دپاره دردناک عذاب دې|اوچا چې

هَادُوْا حَرَّمْنَا مَا قَصَصْنَا عَلَیْكَ مِنْ قَبْلُ ۚ

چې یهودیان شوی وو| حرام کړی وو مونږه | هغه څیزونه | چې بیان کړی دی مونږه | تاته | مخکښې ددې نه

یهودیت اختیار کړې دې(۱)|مونږ په هغوی باندې هغه څیزونه حرام کړی وو کوم چې مووړاندې تاته بیان کړی دی

---

(۱) **دَ بعضو حِرام کړې شوو څیزونو ذکر:-** اللهِ تعالی خپلو مؤمنانوبندیګانوته ورکړې شوی پاك رزق حلالوی اودَ شکرکولوهدایت کوې دَ دې دَ پاره چه د نعمتونوورکونکې هم هغه دې په دې وجه د عبادت لائق هم صرف هغه یودې دهغه څوك شریك اوملګرې نشته. بیادِهغه څیزونوبیان فرمانی کوم چه هغه په مسلمانانو باندې حرام کړی دی په کوم کښې چه دَ هغوی دَ دین نقصان هم دې اودَ دنیا نقصان هم دې. لکه پخپله مړشوې څاروې، دَ حلالولو په وخت کښې بهیدونکې وینه، دَ خنزیر غوښهِ او کوم څاروې چه دَ الله تعالی دَ نوم نه بغیردَ بل چا په نوم باندې حلالول. خوچه کوم سړې د دې دِ خوراك طرف ته بې بس وی لاچاره وی عاجز وی محتاج وې بې قرار وې اودا اوخوری نوالله تعالی دِ بخښنې او رحمت نه کاراخستونکې دې. سورة بقره کښې د دې په شان آیت تیرشوې دې اوهم هلته دِ هغې مکمل تفسیرهم بیان کړې شوې دې بیاسردِوباره کولو ضرورت نشته. فالحمدلله. بیادَ کافرانود رویهٔ نه مسلمانان بندوی لکه څنګه چه هغوی د خپل ځان نهِ حلال والې اوحراموالې قایم کړې دې تاسو داسې مه کوئی چه په خپل مینځ کښې مقرره کړئ چه دِ فلانکې د نوم څناور دَ حِرمت او عزت والا بحیره سائبه وصیله حام وغیره. ارشاددې چه په خپلو خُلوباندې د دروغو مروغو دَ الله تعالی په ذمه الزام لګولوسره پخپله حلال اوحرام مه جوړوئی. په دې کښې داهم داخل دی چه څوك دَ خپل طرف نه څه بدعت راوباسی دَ کوم چه څه شرعی دلیل نه وی یادَ الله تعالی حلال حرام کړی یامباح حرام اوګرځوې اوپه خپله رائې او تشبیه سره اِحکام راپیداکړی **(لما تصف)** کښې مامصدریه دې یعنی تاسو د دروغو صفت په خپله ژبه باندِې حلال اوحرام مه جوړوئی. داسې خلق دَ دنیادَ فلاح نه اودَ آخرت دَ خلاصی نه محروم کیږی. سره د دې که په دنیاکښې هسې څه فائده شان واخلی خومره کیدو سره به دَ سختونو عذابونو لړئی جوړیږی. کِه دلته ئې څه دهوکه داکه اوکړه خو هغه ته به سخت عذاب په بې وسئی سره برداشت کول وی لکه چه دَ الله تعالی ارشاد وې ....[باقی په راروانه صفحه..

| وَمَا ظَلَمْنٰهُمْ وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿۱۱۸﴾ |
|---|
| اونهووکړې ظلم مونږه په هغوئ باند \| ولیکن \| وو هغوئ \| په ځانونو خپلو باند \| چې ظلم به ئې کوو |
| او مونږ په هغوئ باندې هیڅ زیاتې نه ووکړې \| بلکه هغوئ پخپله په ځانونو زیاتې کولو |
| ثُمَّ اِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِيْنَ عَمِلُوا السُّوْٓءَ بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابُوْا |
| بیا \| بیشکه \| رب ستا \| دپاره دهغه کسانو \| چې وې کړو \| عمل بد \| په ناپوهتیاسره \| بیائې \| توبه اوبنکله |
| بیا بیشکه ستارب هغو خلقو دپاره کومو چې په ناپوهۍ سره بدعملونه کړی وی \| د هغې |
| مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ وَاَصْلَحُوْٓا اِنَّ رَبَّكَ مِنْۢ بَعْدِهَا |
| روستو ددغې بدعمل نه \| اوعمل ئې نیک کړو \| نو بیشکه \| رب ستا \| روستو دتوبې ایستلونه |
| نه پس هغوئ توبه اوباسی \| اود خپل حالت اصلاح اوکړی \| نو د دې نه پس ستارب یقینا |
| لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۱۹﴾ |
| خامخا بښونکې \| مهربانه دې \| |
| بخښونکې مهربان دې \| |

## آسان ترجمه قرآن

لهٰذا الله پاک چه کوم حلال او پاک څیزونه تاسو ته د رزق په طور درکړې دی هغه خورئ او د الله پاک د نعمتونو شکر ادا کوئ، که تاسو واقعی هم د هغه عبادت کوئ. هغه خو په تاسو باندې بس مرداره، وینه، د خنزیر غوښه او هغه څاروی حرام کړی دی چه په هغې باندې د الله پاک نه سوا د بل چانوم اخستلې شوې وی پس کوم سړې چه د لوږې نه بدحاله شی، د خوند دپاره ئې نه خوری، او (د ضرورت) د حد نه نهٔ تجاوز کوی نو الله پاک بخښنه کونکې ډیر رحم کونکې دې. او د کومو څیزونو په باره کښې چه ستاسو ژبې دروغژنې خبرې جوړوی، د هغې په باره کښې دا مه وایئ چه دا حلال دی، او دا حرام دی، ځکه چه د دې مطلب به دا وی چه تاسو به په الله پاک باندې د دروغو بهتان تړئ یقین اوکړئ چه کوم خلق په الله پاک باندې بهتان تړی، هغوی کامیابي نه مومی. (په دنیا کښې) هغوی ته چه کومې مزې حاصلې دی، هغه ډیرې لږې دی، او د هغوی دپاره دردونکې عذاب تیار دې. او په یهودو باندې مونږ هغه څیزونه حرام کړی وو د کومو ذکر چه مونږ تاته مخکښې کړې دهٔ. او مونږ په هغوی باندې هیڅ ظلم نه دې کړې، بلکه هغوی به پخپله په خپلو ځانونو باندې ظلم کولو. بیا هم ستارب داسې دې چه کومو خلقو په ناپوهۍ سره ګناه اوکړه، او د هغې نه پس ئې توبه اوکړه، او خپله اصلاح ئې اوکړه نو د دې ټولو خبرو نه پس هم ستارب ډیر بخښونکې، رحم کونکې دې.

---

....باقی حاشیه د تیرمخ]... په الله تعالی باندې دروغ اودَ ځان نه خبرې کونکی د خلاصی نه محروم دی په دنیاکښې به هسې څه فائده واخلی بیابه مونږ هغوی ته د هغوی د کفر په وجه د سخت عذاب مزه ورڅکو.(۱۰/یونس:۶۹-۷۰)

## د تفسیر خلاصه

تیر شوی آیت کښې دکفارو د طرفه د الله ﷻ په نعمتونو باندې د ناشکرئ او دهغې د عذاب بیان وو ، اوس په دې آیتونو کښې مسلمانانو ته هدایت کړې شوې دې چې دوئ دې ناشکری نه کوی ، د الله تعالی د نعمتونو شکر دې ادا کوی ، دې پسې فرمائی چې کافرانو او مشرکانو د الله تعالی د نعمتونو د ناشکرئ یو خاص صورت دا هم اختیار کړې وو چې د الله ﷻ ډیر حلال کړی ځیزونه ئې د ځانه په خپلو ځانونو باندې حرام کړی وو او ډیر حرام کړی ځیزونه ئې خپلو ځانونو دپاره حلال ګرځولی وو ، الله ﷻ مسلمانان په دې هم خبردار کړل چې هغوئ دې داسې نه کوی ، د یو ځیز حلال یا حرام ګرځول صرف د هغه ذات حق دې چا چې دوئ پیدا کړی دی د خپله ځان نه دغه شان کول د الله تعالی په اختیاراتو کښې دخل کول دی او په الله تعالی باندې دروغ تړل دی. آخری کښې فرمائی چې کومو خلقو د ناخبرئ نه دغه شان جرائم کړی دی هغه دې هم د الله تعالی د رحمت نه نه ناامیده کیږي که هغوئ توبه اوکړی او صحیح ایمان راوړی نو الله تعالی به ئې ټول ګناهونه معاف کړی ، د آیتونو مختصر شان تفسیر دا دې:

﴿فَكُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ حَلٰلًا طَيِّبًا﴾ کوم ځیزونه چې تاسو ته الله ﷻ حلال او پاك در کړی دی هغه [حرام مه ګڼرئ ولې چې دا د مشرکانو جاهلانو رسم دې بلکه] هغه خورئ ﴿وَاشْكُرُوا نِعْمَتَ اللّٰهِ﴾ او د الله ﷻ د نعمت شکر ادا کوئ ﴿اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ﴾ که تاسو [ د خپلې دعوې په جوړ] خاص هم دهغه عبادت کوئ ﴿اِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيْرِ﴾ په تاسو باندې خو [ د هغې ځیزونو ځینې چې ورته تاسو حرام وایئ الله ﷻ ] صرف مرداره حرامه کړې ده او وینه او د خنزیر غوښه [وغیره] ﴿وَمَآ اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ﴾ اوکوم ځیزونه چې د غیر الله په نوم ګرځولې شوې وی ﴿فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ﴾ بیا چې ځوك [د لوږې د لاسه] بالکل ناقلاره شی خو شرط دا دې چې طلبګار دخوند نه وی او نه دحد [ضرورت] ځخه تیریدونکې وی [نو ددې ځیزونو په خوړلو سره] ﴿فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ بخښونکې او مهربان دې ﴿وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَا تَصِفُ اَلْسِنَتُكُمُ الْكَذِبَ﴾ او د کومو ځیزونو په باره کښې چې خالص ستاسو په دروغه زبانی دعوی ده [او څه صحیح دلیل پرې قائم نه دې ] ﴿هٰذَا حَلٰلٌ وَّهٰذَا حَرَامٌ﴾ دهغې باره کښې داسې مه وایئ چې فلانې ځیز حلال دې او فلانې حرام دې ] ځنګه چې د اتمې پارې د ړومبۍ ځلورمې حصې سره نزدې آیتونو [وجعلوا لله الخ] کښې د دوئ داسې په دروغه دعوې راغلی دی ] ﴿لِّتَفْتَرُوْا عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ﴾ چې حاصل به ئې دا وی چې په الله ﷻ باندې په دروغه تور پورې کوئ [ ولې چې الله ﷻ خو داسې نه بلکه ددې خلاف فرمائیلی دی ] ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُوْنَ﴾ بیشکه کوم خلق چې په الله ﷻ باندې دروغ تړی هغوئ به خلاصې نه بیا مومی ] په دنیا او آخرت دواړو کښې یا صرف په آخرت کښې ] ﴿مَتَاعٌ قَلِيْلٌ﴾ دا [ په د نیا کښې ] د څو ورځو مزې دی [او وروسې د مرګ نه پس] ﴿وَّلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ﴾ هغوئ لره دردناکه سزا ده ﴿وَعَلَى الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا مَا قَصَصْنَا عَلَيْكَ مِنْ قَبْلُ﴾ او [ دا مشرکان دعوی کوی چې مونږ د ملت ابراهیمی ؑ تابع یو حالانکه د هغوئ په شریعت کښې خو دا ځیزونه حرام نه وو کوم چې دوئ حرام ګرځولی دی البته په دغه ځیزونو کښې ډیره زمانه پس] صرف په یهودیانو باندې مونږ هغه ځیزونه حرام کړی وو چې بیان ئې مونږ ددې ځخه وړاندې [په سورة انعام] کښې تاسو ﷺ ته کړې دې [ او په دغه حراملو کښې هم]

﴿وَمَا ظَلَمْنٰهُمْ وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ﴾ مونږ په هغوئ باندې [صورتاً هم] څه زياتې اونه کړو ليکن هغوئ پخپله پخپلو ځانونو [ د پيغمبرانو ﷺ په مخالفت کولو سره ] په مخه زياتې کولو [ نو معلومه شوه چې پاکيزه څيزونه خو کله هم په قصد سره نه دي حرام کړې شوي او د ابراهيم ﷺ په شريعت کښې خو د يو وختي ضرورت په وجه هم دغسې نه دي شوي بيا تاسو چرته نه دا راؤښکل ] ﴿ثُمَّ اِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِيْنَ عَمِلُوا السُّوْٓءَ بِجَهَالَةٍ﴾ بيا ستاسو رب داسې خلقو دپاره چا چې په غلطئ سره ناکاره کار اوکړو [ که هر څه وي ] ﴿ثُمَّ تَابُوْا مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ وَاَصْلَحُوْٓا﴾ بيا ئې وروسته توبه اوکړه او [ بيا آئنده دپاره ئې ] خپل عملونه درست کړل ﴿اِنَّ رَبَّكَ مِنْۢ بَعْدِهَا لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ نو ستاسو رب ددې څخه روستو لوئې بخښونکې لوئې رحمت کوونکې دې .

## معارف او مسائل

**په دې بيان شوؤ څيزونو کښې حصر اضافي دې حقيقي نه دې** :*: په دې آيت مبارک کښې د ﴿اِنَّمَا﴾ لفظ څخه معلوميږي چې حرام شوي څيزونه صرف دا څلور دي او ددې څخه هم په زيات ښکاره الفاظ کښې دا بيان ﴿قُلْ لَّآ اَجِدُ فِيْ مَآ اُوْحِيَ اِلَيَّ مُحَرَّمًا﴾ څخه معلوميږي چې په دې کښې د بيان شوؤ څيزونو څخه سوا بل څه حرام نه دي. حالانکه د قرآن عظيم الشان او سنت د واضح بيانونو ترمخه په اجماع د امت سره نور هم ډير څيزونه حرام دي. ددې اشکال جواب پخپله هم ددې آيتونو په روانئ او په وړاندې روستو باندې غور کولو سره معلوميږي ، چې دلته د عامو حرامو ، حلالو څيزونو بيانول مقصود نه دي بلکه دهغو ډيرو څيزونو بيانول مقصود دي کوم چې د جاهليت مشرکانو د خپله ځانه حرام ګرځولي وو حالانکه الله ﷻ ددې د حراموالي حکم نه وو ورکړې. ددې بيان مطلب دادې چې کوم څيزونه تاسو د خپله ځانه په خپلو ځانونو حرام ګرځولي دي د هغې څينې صرف دا څيزونه حرام دي ، نو ددې آيت مبارک مکمل تفسير او ددغه څلورو حرام کړو څيزونو تفصيلي احکام د معارف القرآن ددې پښتو ترجمې دويم جلد کښې په سورهٔ بقره کښې د آيت نمبر ۱۷۳ لاندې بيان شوي دي. هغه ځائې کښې ئې اوګورئ.

**په توبې کولو سره ګناه معاف کيدل عام دي که سره د پوهې ئې کړي وي او که په ناپوهئ کښې** :: په آيت ﴿اِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِيْنَ عَمِلُوا السُّوْٓءَ بِجَهَالَةٍ﴾ کښې د جهل لفظ نه بلکه د جهالة لفظ راغلې دې ، ځکه چې جهل د علم په مقابله کښې راځي چې د بې علمئ او ناپوهئ معنى ورکوي. او جهالة لفظ د جاهلانه حرکت دپاره استعمالولې شي اګر چې سره د پوهې ئې کوئ. دې څخه معلوم شو چې توبې سره دګناه معافي د بې علمئ يا بې اختيارئ سره مقيد نده. يوازې هغه ګناه نه معاف کيږي کومه چې د ناپوهئ او د بې اختيارئ د وجې څخه شوې وي.

| اِنَّ | اِبْرٰهِيْمَ | كَانَ | اُمَّةً | قَانِتًا |
|---|---|---|---|---|
| بيشکه | ابراهيم عليه السلام | وو | يو امت | فرمان منونکې |
| بيشکه ابراهيم ﷺ دخلقو لوئې پيشوا دالله ﷻ تابعدار | | | | |

| لِّلّٰهِ | حَنِيْفًا | وَلَمْ يَكُ | مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ | شَاكِرًا | لِّاَنْعُمِهٖ |
|---|---|---|---|---|---|
| الله لره | يو مخيزې | اونه وؤ هغه | دمشرکانو نه | شکر ايستونکې وؤ | دنعمتونو دالله |
| اوصرف حق طرفته مائل وو | | اوهغه د مشرکانو څنې نه وو | | دالله ﷻ دنعمتونو شکر ګزار وو | |

اِجْتَبٰىهُ وَهَدٰىهُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۱۲۱﴾ وَاٰتَيْنٰهُ

| غوره کړو الله هغه لره | او ښودنه ئې اوکړه هغه ته | لارې نيغې ته | اوورکړه مونږ هغه ته

الله ﷻ دې غوره کړې وو | او په نيغه لار ئې روان کړې وو | ......... اومونږ هغه ته

فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً ۖ وَاِنَّهٗ فِي الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۱۲۲﴾

| په دنيا کښې | نيك نامي | او بيشکه وی به هغه | په آخرت کښې | دصالحانونه

په دنيا کښې نيک نامي ورکړې وه | اوپه آخرت کښې خو په صالحانو کښې شمير دې

ثُمَّ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ اَنِ اتَّبِعْ مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ۖ وَمَا كَانَ

بياوحی اوکړه مونږه | تاته | چې پيروی اوکړه ته | د طريقې | دابراهيم ؑ | يو مخيزې | اونۀ وو هغه

بيا مونږ تاته وحی اوکړه | چې دابراهيم په لاره روان اوسه | چې يو مخيز وو | او د مشرکانو څخه

مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۱۲۳﴾ اِنَّمَا جُعِلَ السَّبْتُ عَلَى الَّذِيْنَ

دمشرکانونه | بيشکه | مسلط کړې شوې وۀ | قانون دخالی دورځې | په هغه کسانوباند

نه وو | .......... د خالی د ورځې احترام په هغه چا مقرر شو بدې | چې په هغې کښې ئې اختلاف

اخْتَلَفُوْا فِيْهِ ۖ وَاِنَّ رَبَّكَ لَيَحْكُمُ

اچې هغوئ اختلاف اوکړو | په حکمونو دهغې کښې | اوبيشکه | رب ستا | خامخا به فيصله کوی

کړې وو | .......... او بيشکه ستا رب به دقيامت په ورځ ددوئ په مينځ کښې

بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ

| په مينځ دهغوئ کښې | په ورځ دقيامت | په هغه ټولو خبرو کښې | اچې وۀ هغوئ | په هغې کښې

فيصله اوکړی | .......... په کومو خبرو کښې چې دوئ اختلاف کولو

يَخْتَلِفُوْنَ ﴿۱۲۴﴾

چې اختلاف به ئې کوۀ

## آسان ترجمه قرآن

بيشکه ابراهيم عليه السلام داسې مقتدا وو کوم چه د هر طرف نه مائل کيدو سره ئې د الله پاک فرمان برداری اختيار کړې وه، او د هغه خلقو نه نۀ وو کوم چه د الله پاک سره شرک کوی. هغه د الله پاک د نعمتونو شکر گزار وو. الله پاک هغه منتخب کړې وو، اوپه نيغه لار ئې روان کړې وو. او هغه ته ئې په دنيا کښې هم نيکه بدله ورکړې وه، او په آخرت کښې خو يقيناً د هغوی شمير په صالحينو کښې دې. بيا (اې پيغمبره!) مونږ په تا باندې دا حکم د وحی په ذريعه نازل کړې دې چه ته د دين ابراهيمی اتباع کوه چه مائل وو د الله پاک طرف ته او د هغه خلقو نه نه وو کوم چه د الله پاک سره شرک کوی. د خالی د ورځې احکام خو په هغه خلقو باندې لازم کړې شوې وو چا چه د هغې په باره کښې اختلاف کړې وو. او يقين ساتئ چه ستا رب به د قيامت په ورځ د هغه خبرو فيصله اوکړی په کومو کښې چه هغوی اختلاف کولو.

## د تفسیر خلاصه

**د آیتونو ربط:** په تیرو شوؤ آیتونو کښې د شرک او کفر په اصولو یعنې د توحید او پیغمبرئ نه په انکار کولو باندې رد وو او د کفر او شرک د څینې فروعو د رد کولو او باطلولو تفصیل وو ، دغه فروع حلال ، حرام او حرام حلال ګرځول وو .

د مکې مکرمې هغه مشرکانو کوم چې د قرآن عظیم الشان رومبی اوبې واسطې مخاطب وو د خپل کفر او بت پرستئ باوجود دا دعوی لرله چې مونږ د ملت ابراهیمی پابند یو او مونږ چې څه کوؤ دا ټول د ابراهیم ﷺ تعلیمات وی ، په دې وجه څلورو آیتونو مبارکو کښې د دوئ د غه دعوی رد کړې شوې ده او ددوئ جاهلانه خیالات هم ددوئ په منلو شوؤ څیزونو سره داسې باطل ګرځولې شوی دی چې ددې پنځو آیتونو مبارکو نه په رومبی آیت کښې دا بیان شوې دې چې ابراهیم ﷺ د دنیا د ټولو قومونو منلې شوې پیشوا دې چې د پیغمبرئ اعلې مقام ورته حاصل وو ، په دې سره د هغوئ عظیم الشان پیغمبر کیدل ثابت شو او په ﴿مَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ﴾ سره دا ثابت شو چې ابراهیم ﷺ کامل مؤحد هم وو.

په دویم آیت مبارک کښې دا ثابت شو چې ابراهیم ﷺ شکر ګزار په صراط مستقیم باندې وو ، چې دغه مشرکانو ته یو قسم خبردارې ورکول دی چې تاسو خو دالله تعالی ناشکرئ کښې اخته یئ بیا په کومه خله د هغوئ د تابعدار کیدو دعوی کوئ ؟

دریم آیت مبارک کښې د اثابت کړې شوی دی چې ابراهیم ﷺ په دنیا او آخرت کښې کامیاب دی ، څلورم آیت مبارک کښې دا ثابت کړې شوی دی چې د رسول کریم ﷺ د پیغمبرئ ثابتولو سره دا بیان هم شوې دې چې ابراهیم ﷺ دملت صحیح پابند دی او دا هدایت د غه مشرکانو ته اوکړې شوې چې که تاسو په خپله دعوی کښې رېښتونی یئ نو رسول کریم ﷺ باندې ایمان راوړئ او د تابعدارئ کولو نه بغیر دغه دعوی نشی کیدې .

د پنځم آیت مبارک په ﴿إِنَّمَا جُعِلَ السَّبْتُ﴾ کښې د اشارې په طور دا بیان دې چې په ملت ابراهیمی کښې پاکیزه څیزونه حرام نه وو ، کوم چې تاسو پخپله په خپلو ځانونو حرام کړی دی ، اوس ددې آیتونو مبارکو تفسیر داسې دې :

﴿إِنَّ إِبْرٰهِيْمَ كَانَ أُمَّةً قَانِتًا لِّلّٰهِ حَنِيْفًا﴾ بیشکه ابراهیم ﷺ چې تاسو ئې هم منئ ] لوئې مقتداء [ یعنی اولوالعزم پیغمبر ﷺ او د لوئې امت رهنما او پیشوا ] دالله ﷻ پوره فرمانبردار وو [ د هغوئ هیڅ عقیده او عمل ئې پخپل خواهش نفسانی باندې بنا نه وو نو تاسو صرف د خپلو نفسونو په تابعدارئ کولو سره دالله ﷻ حلال کړی څیزونه حرام او حرام کړی څیزونه مو حلال او ګڼړل ؟ او هغوئ ﷺ ] بالکل یو اړخیز پاتې کیدل [ یعنی د یو الله ﷻ اړخ ته داسې وو چې ] ﴿وَلَمْ يَكُ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ﴾ هغوئ د شرک کوؤنکو څنې نه وو [ نو بیا تاسو شرک څنګه کوئې او هغوئ ﷺ ﴿شَاكِرًا لِّأَنْعُمِهِ﴾ دالله ﷻ د نعمتونو الوئې ] شکر ګذار وو [ بیا تاسو په شرک او کفر کښې اخته کیدو سره ولې نا شکری کوئې ؟ غرض دا چې ابراهیم ﷺ دغه شان او طریقه اولرله او هغوئ ﷺ داسې مقبول وو چې ] ﴿اجْتَبٰهُ وَهَدٰهُ إِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ﴾ الله ﷻ هغوئ لره چونږ کړې وواو په نیغه لار ئې اچولې وو ﴿وَاٰتَيْنٰهُ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً﴾ او مونږ ته ته په دنیا کښې هم خصوصیات [ لکه پیغمبرئ دپاره منتخب کول او په هدایت باندې ئې کیدل وغیره ] ورکړی وو ﴿وَإِنَّهُ فِي الْاٰخِرَةِ لَمِنَ

الصّٰلِحِیْنَ﴾ او هغوئ ﷺ په آخرت کښې هم [ داعلی درجې] په ښو خلقو کښې به وی [ څکه تاسو ټولو لره هم دهغوئ طريقه اختياروَل پکار دی چې هغه يوا زې محمدی ﷺ طريقه ده کومه چې داشان لری چی ] ﴿ثُمَّ اَوْحَیْنَآ اِلَیْكَ اَنِ اتَّبِعْ مِلَّةَ اِبْرٰهِیْمَ حَنِیْفًا﴾ بيا مونږ تاسو ته وحی اولیږله چې تاسو د ابراهيم ﷺ په طريقه باندې چې بالکل يو [ الله ﷻ] اړخ ته پاتې کيدو لاړو [ او هرکله چې ددغه زمانې هغه خلق چې دملت ابراهيمی ﷺ د تابعدارئ کولو دعويدار وو څه نا څه په شرك کښې اخته وو ، څکه دوباره فرمائی چې ] ﴿وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِیْنَ﴾ هغوئ د شرك کوونکو څینې نه وو [ دپاره ددې چې دبت پرستانو سره د يهودو او نصاراؤ په موجوده طريقه هم رد او شی چې د شرك څخه خالی نه دی او هرکله چې دا خلق د پاکيزه څيزونو په حرامولو کښې اخته وو چې جاهلانه او مشرکانه رسمونه وو څکه فرمائی چې ] ﴿اِنَّمَا جُعِلَ السَّبْتُ عَلَى الَّذِیْنَ اخْتَلَفُوْا فِیْهِ﴾ بس دخالی [د دروځې] تعظيم [ دخالی د ورځې د ښکار دکبانو [مهيانو] بنديز چې دپاکيزه څيزونو د حرامولو څينې يو غړې دې هغه خو ] صرف په هغې خلقو لازم کړې شوې وو چاچې په هغې کښې [عملاً] خلاف کړې وو [ چې چا خو اومنل او عمل ئې اوکړو او چا دغسې اونه کړل مراد ددې څخه يهود دی چې د پاکيزه څيزونو د حرامولو داصورت لکه دنورو صورتونو پشان صرف يهودو سره مخصوص وو په ملت ابراهيمی ﷺ کښې دغه څيزونه حرام نه وو ، وروسې د هغې اختلاف کولو بيان دې کوم چې دالله ﷻ د حکمونو په باره کښې کولې شی فرمائی چې ] ﴿وَاِنَّ رَبَّكَ لَیَحْكُمُ بَیْنَهُمْ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ فِیْمَا كَانُوْا فِیْهِ یَخْتَلِفُوْنَ﴾ بيشکه الله ﷻ ستاسورب به د قيامت په ورځ ددوئ ترمينځه [ عملی طور] فيصله کوی په کومه خبره کښې چې دوئ [په د نيا کښې ] اختلاف کولو.

## معارف او مسائل

د﴿اُمَّةً﴾ لفظ څو معنو دپاره استعماليږی ، مشهوره معنی ئې ډله او قوم ده ، ابن عباس رضی الله عنهما څخه دلته هم دامعنی منقول ده. مراد دادې چې ابراهيم ﷺ يوازې يو فرد پوره او قوم د کمالاتو او فضيلتونو جامع وو يوه معنی د قوم مقتداء او جامع د کمالاتو هم کيدې شی. څينې مفسرينو دا معنی دلته مراد اخستې ده . ﴾

د ﴿قَانِتًا﴾ معنی تابع د فرمان ده ، ابراهيم ﷺ پدې دواړو صفتونو کښې خاص ځانله يو حيثيت لرلو. د مقتدا کيدلو خوئې داحالت دې چې د ټولې دنيا دمشهورو او ټولو مذهبونو خلق ټول په دوئ ﷺ باندې عقيده لری ، او د دوئ ﷺ د ملت په تابعدارئی کولو کښې خپل عزت ګڼړی او فخر پرې کوی . يهود نصاری اومسلمانان خو د دوئ تعظيم او تکريم ضروری کوی ، خو دعربو مشرکان چې هم بت پرست وو ، ددې بت شکن عقيدت مند وو او د دوئ ﷺ د ملت په تابعدارئ کيدو به ئې فخر کولو . دقانت او فرمانبردار کيدو امتيازيې د هغې امتحاناتو څخه واضح کيږی کوم چې د الله ﷻ په دې خليل باندې تير شوی دی . د نمرود په اور کښې واچولې شو ، يوه بی بی او يو دغيږې دماشوم څوئې په خوشی ميدان کښې ورته د پريخودو حکم ، په سوالونو باندې د الله ﷻ څخه د غوښتی څوئې قربانولو ته تياريدل ، دا ټول هغه امتيازونه دی چې الله ﷻ ورته د عزت دا خطابونه ورکړل .

**رسول کریم ﷺ دپاره د ملت ابراهیمی تابعداری شول:** د نبی کریم ﷺ د شریعت ځینې حکمونو څخه علاوه د نبی کریم ﷺ د شریعت بنیاد هم په هغې شریعت او حکمونو باندې ایښودې شوې دې کوم چې الله ﷻ ابراهیم ؑ ته ورکړې وو. نبی کریم ﷺ اګر چې د ټولو انبیاء ؑ څخه غوره دې خو بیا هم د ابراهیم ؑ د تابعدارئ اختیارولو حکم ورکولو کښې دوه حکمتونه دي.

یو دا چې هر کله دغه شریعت ابراهیمی رومبې دنیا ته راغلې دې ځکه مشهور دې، د نبی کریم ﷺ شریعت هم هر کله چې دده پشان وو ځکه ورته د هغوئ د تابعدارئ اووئیلې شو.

بل حکمت د علامه زمخشری د قول مطابق دې چې د لته د تابعدارئ په لفظ استعمالولو کښې ابراهیم ؑ ته دا خاص عزت هم ورکول دی چې د ټولو پیغمبرانو ؑ څخه زیات غوره پیغمبر ته ئې د دوئ ؑ دملت د تابعدارئ کولو حکم ورکړو، څنګه چې په ثم سره ورته اشاره کړې شوې ده. (۱)

اُدْعُ ۔ اِلٰى سَبِيْلِ رَبِّكَ ۔ بِالْحِكْمَةِ ۔ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ

| بلنه کوه | لارې درب خپل ته | په حکمت سره | او په نصیحت نیک سره

ته د خپل رب دلارې طرف ته په حکمت او په ښه نصیحت سره بلنه کوه

وَجَادِلْهُمْ ۔ بِالَّتِيْ ۔ هِيَ ۔ اَحْسَنُ ۔ اِنَّ ۔ رَبَّكَ

او بحث کوه دخلقو سره | په هغه طریقه | چې هغه | دټولونه ښه وی | بیشکه | رب ستا چې دي

او دوئ سره په بهتره طریقه بحث کوه | ............بیشکه ستا رب

هُوَ ۔ اَعْلَمُ ۔ بِمَنْ ۔ ضَلَّ ۔ عَنْ سَبِيْلِهٖ ۔ وَهُوَ

| هغه | ښه پوهه دې | په هغه چا | چې بې لارې شوې دې | دلارې دهغه نه | او هغه

هغه ځوک ښه پیژنی | کوم چې د هغه د لارې نه ګمراه شوې دی | او هغه ځوک هم ښه پیژنی چې د هدایت

اَعْلَمُ ۔ بِالْمُهْتَدِيْنَ ۝ ۔ وَاِنْ ۔ عَاقَبْتُمْ ۔ فَعَاقِبُوْا ۔ بِمِثْلِ مَا

ښه پوهه دې | په لارموندونکو باند | او که چرې | سزا ورکوئ تاسو | نو سزا ورکړئ | په مثل دهغې

خاوندان دی | ............او که تاسو بدله اخستل غوارئی نو بس دومره سزا ورته ورکړئ

عُوْقِبْتُمْ ۔ بِهٖ ۔ وَلَئِنْ ۔ صَبَرْتُمْ ۔ لَهُوَ ۔ خَيْرٌ

چې سزا درکړې شوی ده تاسو ته | په هغې سره | او که چرې | صبر اوکړو تاسو | نو هغه | بهتر دی |

خومره چې ئې تاسو ته درکړې ده | او که صبر اوکړئ نو دا صبر کول به د صبر کونکو دپاره

لِلصّٰبِرِيْنَ ۝ ۔ وَاصْبِرْ ۔ وَمَا صَبْرُكَ ۔ اِلَّا ۔ بِاللّٰهِ ۔ وَلَا تَحْزَنْ

دپاره دصبر کونکو | او صبر کوه | او نه دې صبر ستا | مګر | په توفیق دالله دې | او نه غم مه کوه

ډیر بهتر وی | او (ائې پیغمبره) ته صبر کوه او ستا صبر خو بس دالله ﷻ په توفیق دې | او ددوئ په حال غم مه کوه

---

(۱) تفسیر کشاف تحت هذه الآية [ج: ۳ ص: ۴۱۱]

عَلَيْهِمْ　وَلَا تَكُ　فِيْ ضَيْقٍ　مِّمَّا　يَمْكُرُوْنَ۝　إِنَّ اللّٰهَ

په دوئ باند | اومهٔ کیږه ته | په تنګی کښې | دهغه چلونونه | چې دوئ ئې کوی | بیشکه الله

اودوئ چې کوم سازشونه کوی په هغې باندې زړه مه تنګوه | بیشکه الله ﷻ

مَعَ الَّذِيْنَ　اتَّقَوْا　وَّالَّذِيْنَ　هُمْ　مُّحْسِنُوْنَ۝

ملګرې دې دهغه کسانو | چې پرهیزګاری کوی | او دهغه کسانو | چې هغوئ | نیکی کونکی دی |

د هغه چا سره ملګرې دې | چې څوک پرهیزګاره وی اوڅوک نیکی کونکی وی

## آسان ترجمه قرآن

دخپل رب لارې طرف ته خلق په حکمت سره او ښه طریقې سره وعظ کولو باندې راوبله، (او که د بحث ضرورت راشی نو) هغوی سره بحث هم په داسې طریقه اوکړه چه بهترین وی. یقینًا ستا رب هغه خلق هم ښه پیژنی کوم چه د هغه د لارې نه ګمراه شوی دی، او د هغوی نه هم ښه خبر دې کوم چه په نیغه لاره باندې روان دی. او که تاسو د چا نه (د څه ظلم) بدله اخلئ نو هم هغه هومره اخلئ څومره زیاتې چه تاسو سره شوې دې. او که صبر اوکړئ نو یقینًا دا د صبر کونکو په حق کښې ډیره غوره ده. او (اې پیغمبره!) ته د صبر نه کار واخله، او ستا صبر د الله پاک په توفیق باندې دې او په دوی (کافرو) باندې مه خفه کیږه، او کوم مکرونه چه دا خلق کوی، د هغې نه زړه مه تنګوه. یقین ساته چه الله پاک د هغه خلقو ملګرې دې چه تقوٰی اختیاروی، او کوم چه په احسان باندې عمل کونکی دی.

## د تفسیر خلاصه

**دآیتونو تړون:** په ړومبو آیتونو کښې د رسول کریم ﷺ د پیغمبرئ ثابتولو نه مقصد دا وو چې امت دې د دوئ ﷺ په حکمونو باندې عمل کول سره د پیغمبرئ حق ادا کړی او س په دې آیتونو مبارکو کښې پخپله رسول اکرم ﷺ ته د پیغمبرئ د حقونو ادا کولو او آدابو خودنه کول دی چې په عموم کښې ئې ټول مؤمنان هم شریك دی مختصر تفسیر ئې دادې:

﴿اُدْعُ اِلٰى سَبِيْلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ﴾ تاسو د خپل رب د لارې [یعنی د اسلام دین] ته [خلق] په حکمت او ښه نصیحت [کولو] سره رابلئ [د حکمت نه مراد په بلنې ورکولو کښې داسې طرز اختیارول دی چې د مخاطب د حالاتو لحاظ په کښې ساتلې شوې وی او په داسې شان بلنه ورکړې شی چې د مخاطب زړه ته پریوزی .او نصیحت نه مراد دادې چې د خیر خواهئ او همدردی په جذبې سره خبره اوکړې شی او د ښه نصیحت نه مراد دادې چې عنوان ئې هم نرم وی چې زړه پرې نه آزارېږی او سپکاوې ورسره هم د چا نه کیږی] ﴿وَجَادِلْهُمْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ﴾ او دوئ سره په ښې طریقې سره بحث کوئی [که د بحث ضرورت پیښ شی نو هغې کښې دې هم سختی او خشکی نه وی مخاطب په څه راګیرول او بې انصافی کول دې په کښې نه وی، صرف دومره قدرې ستاسو ﷺ کار دې نور دې پسې مخه مه اوړئی چې چا اومنل او نه منل دا د الله ﷻ کار دې نو] ﴿اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيْلِهٖ﴾ ستاسو رب ښه پیژنی هغه څوك هم چې د هغه د لارې نه ورك شو ﴿وَهُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِيْنَ۝﴾ او هم هغه په لار باندې تلونکی هم ښه پیژنی [که په علمی بحث کښې مخاطب د حد نه ورتیریدو سره عملی جګړه کوی په اندامونو او ژبې

سره نقصان در کوی نو په دغه صورت کښې تاسو ﷺ او ستاسو ﷺ تابعدار که بدل اخستل غواړې نو جائز دی او صبر کول هم نو] ﴿وَإِنْ عَاقَبْتُمْ﴾ که [ په رومبی صورت کښې عمل کوئی يعنی] بدلې اخستلو ته تيار شی ﴿فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُم بِهِ﴾ نو هغه هومره بدله اخلئ څومره چې تاسو سره کوم کړې شوی دی [ دهغې نه زياتې مه کوئی ] ﴿وَلَئِن صَبَرْتُمْ﴾ او که [ په دويم صورت کښې يعنی درته په زيان رسيد باندې] صبر کوئی ﴿لَهُوَ خَيْرٌ لِّلصَّابِرِينَ﴾ نو دا صبر کول] د صبر کوونکو په حق کښې ډيره ښهٔ خبره ده [ چې په مخالفو به ئې هم ښه اثر پريوزی او په ليدونکو هم او په آخرت کښې د لوئې اجر باعث به وی ] او [ صبر کول اګر چې تولو دپاره زيات ښه دی خو هر کله چې ستاسو ﷺ شان هم ډير لوړ دې نو په خصوصيت سره تاسو ته حکم دې چې دبدلې اخستلو صورت مه غوره کوئی بلکه ] ﴿وَاصْبِرْ﴾ تاسو صبر کوئی ﴿وَمَا صَبْرُكَ إِلَّا بِاللَّهِ﴾ او ستاسو صبر کول د الله ﷻ په خاص توفيق سره دی [ځکه تاسو ﷺ تسلی لرئی چې په صبر کولو کښې بهٔ تاسو ته سختی نه وی] ﴿وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ﴾ او په دې خلقو [يعنی د دوئ په ايمان راوړلو بهٔ تاسو ته څه مشکل نه وی ] ﴿وَلَا تَكُ فِي ضَيْقٍ مِّمَّا يَمْكُرُونَ﴾ او په دې خلقو [يعنی دوئ چې څه چلونه کوی په هغې باندې زړه مه تنګوئی [ او ددوئ په مخالفو چلونو کولو تاسو ته به څه ضرور نه وی ولې چې تاسو ته د احسان او تقوی صفتونه حاصل دی او ] ﴿إِنَّ اللَّهَ مَعَ الَّذِينَ اتَّقَوا وَّالَّذِينَ هُم مُّحْسِنُونَ﴾ الله ﷻ داسې خلقو سره وی [ يعنی د هغوئ مددګار وی ] چې پرهيزګار او نيك کرداره وی .

## معارف او مسائل

**ددعوت او تبليغ اصول او مکمل نصاب** :: ددې آيت مبارك په يو څو کلمو کښې د دعوت او تبليغ مکمل نصاب ، ددې اصولو او آدابو پوره تفصيل ځائې شوی دې ، په تفسير قرطبی کښې راغلی دی چې هر کله د هرم بن حيان رحمه الله مرګ رانزدې شو نو عزيزانو ورته دوصيت کولو خواست اوکړو ، هغوئ رحمه الله اوفرمائيل چې خلق خو دمال باره کښې وصيت کوی ، هغه ماسره نشته دې ليکن زه درته د الله ﷻ د آيتونو خصوصا د سورهٔ نحل د آخری آيتونو وصيت کوم چې په هغې باندې ښه کلك ولاړ اوسئ ،(۱) هغهٔ آيتونه دادی چې مونږ ئې په بيان کښې لګيا يو.

د دعوة لفظی معنی بلل دی ، د پيغمبرانو ﷺ رومبې فرض منصبی دادې چې خلق د الله ﷻ لارې ته رابلی . بيا د پيغمبرئ نور تول تعليمات ددې بلنې تشريحات دی ، قرآن عظيم الشان کښې د نبی کريم ﷺ خاص صفت الله ﷻ طرفته بلوونکي بيان شوی دې . لکه فرمائی چې :

﴿وَدَاعِيًا إِلَى اللَّهِ بِإِذْنِهِ وَسِرَاجًا مُّنِيرًا﴾ (۲) [احزاب: ۴۶] ﴿يَا قَوْمَنَا أَجِيبُوا دَاعِيَ اللَّهِ﴾ [احقاف: ۳۱] .(۳)

دهغوئ په پل باندې د تلو په غرض په دې امت باندې هم الله ﷻ طرفته بلنه ورکول فرض کړې شو يدی لکه الله ﷻ فرمائی چې : ﴿وَلْتَكُن مِّنكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ﴾

[تاسو يو جماعت داسې پکار دې چې خلق د خير طرفته ددين دعوت[يعنی] د نيکو کارونو

---

(۱) تفسير القرطبی تحت هذه الآية[ ج:۱۰ص:۲۰۳]

(۲) ترجمه:- او دالله دطرفنه د هغه په حکم سره رابلل کوی او ته يو روښانه چراغ يې.

(۳) ترجمه:-اې روڼړو! څوك چې تاسو الله طرفته رابلی نو دهغوئ خبره اومنئ.

حکم کوي او د خرابو کارونو څخه يې منع کوي]
يو بل آيت مبارك کښې الله ﷻ داسې فرمائي چې:
﴿وَمَنْ أَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّن دَعَا إِلَى اللَّهِ﴾ [د خبرو لحاظ سره د هغه کس څخه څوك بهتر کيدې شي چې هغه خلق الله ﷻ طرفته راؤبلل]
په تعبير کښې کله دې عمل ته د دعوت الى الله نوم ورکړې شي، کله د دعوت الى الخير او کله د دعوت الى سبيل الله خو حاصل د ټولو يو دې، ولې چې الله ﷻ ته د رابللو څخه مقصود، دين او صراط مستقيم ته رابلل دي.
﴿إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ﴾ دلته رب چې د الله ﷻ خاص صفتي نوم مبارك دې، نبي کريم ﷺ ته مضاف کولو کښې اشاره دې خبرې ته ده چې د دعوت او بلنې کار، د ربوبيت او تربيت سره تعلق لري، مطلب ئې دا راؤځي چې څنګه ستاسو ﷺ تربيت الله ﷻ فرمائيلي دې، دغسې تاسو ﷺ هم امت ته دبلنې داسې انداز اختيار کړئ چې د مخاطب په زړه کښې پيتې نشي، زيات څخه زيات اثر اوشي، پخپله لفظ د دعوت هم دا مطلب ښکاره کوي چې د پيغمبرانو کار يوازې د الله ﷻ حکمونه رسول او آؤرول نه دي بلکه خلقو ته پرې د عمل کولو بلنه هم ورکول دي. په دې بنا ښکاره خبره ده چې يو بلونکی مخاطب سره په داسې انداز کښې خبره نه کوي چې دهغه نفرت او وحشت وي يا هغه ترې کرکه کوي يا مخاطب پورې په کښې ټوقه او خندا شوي وي.
﴿بِالْحِكْمَةِ﴾ لفظ د حکمة په قرآن عظيم الشان کښې د ډيرو معنو دپاره استعمال شوې دې، دلته ځينې امامانو د حکمت نه قرآن عظيم الشان، ځينې ترې قرآن و سنت، ځينې ترې حجت قطعيه مراد اخستې دې، او روح المعاني په حواله د بحر محيط سره د حکمت تفسير داسې کړې دې:
﴿انها كلام الصواب الواقع من النفس اجمل موقع [روح]﴾(١) [يعنې حکمت دهغه درست کلام دې چې د انسان زړه ته کوز شي]
په دې تفسير کښې ټول اقوال جمع کيږي. او صاحب د روح البيان تقريبا هم دا مطلب په دې الفاظو کښې بيان کړې دې چې حکمت څخه مراد هغه بصيرت دې چې د هغې په ذريعه انسان دحالاتو غوښتنې معلومه کړي او هم دهغې په جوړ کلام اوکړي، داسې وخت او موقع لټوي چې په مخاطب پيتې نه وي، د نرمئ په ځائې نرمي او د سختئ په ځائې سختي اختيار کړي او چرته چې دا اوګڼړي چې په ښکاره تکو وئيلو سره به مخاطب شرمنده شي هلته دې په اشارو کلام کوي، يا څه داسې عنوان اختيار کړي چې نه خو پرې مخاطب شرمنده کيږي او نه دهغه په زړه کښې پخپل خيال باندې د کلك پاتې کيدو ضد پيدا شي.(٢)
﴿وَالْمَوْعِظَةِ﴾ د موعظة او وعظ لغوي معنى داده چې دخير خواهئ څه خبره پداسې شان سره اوکړې شي چې د مخاطب زړه د هغې قبلولو دپاره نرم شي لکه د هغې د قبلولو ثوابونه

١) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٠ ص: ٣٤٠]
٢) تفسير روح البيان تحت هذه الآية [ج: ٧ ص: ١٢٩]

اوفائدې اود نه قبلولو عذابونه او خرابۍ بیان کړې شي [قاموس و مفردات راغب].(۱)

﴿الْحَسَنَةِ﴾ ددې معنی داده چې د وعظ او نصیحت عنوان او بیان هم داسې پکار دې چې ورسره د مخاطب زړهٔ په تسلۍ شي ، دهغه شکونه او شبهې لرېشي ، او مخاطب داهم محسوسه کړي چې دې کښې د وعظ کوؤنکي خپل څه غرض نشته بلکه خالص د مخاطب خیر خواهی په کښې غرض ده.

د ﴿مَوْعِظَةِ﴾ څخه خو واضح شوې وه چې د خیرخواهۍ خبره په اثرناك انداز کښې اوکړې شي خو دې دپاره ځینې وختونو کښې زړه ماتوؤنکی عنوان سره یا په داسې شان سره کولې شي چې مخاطب په کښې سپکاوې محسوس کوي ، [روح المعانی] دداسې طریقې پرېخودو دپاره لفظ د حسنه زیات کړې شو.

﴿وَجَادِلْهُم بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ﴾ لفظ د جادل د مجادله څخه مشتق دې ، دلته ترې مطلب بحث او مناظره کول دی.

د ﴿بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ﴾ څخه مراد دادې چې په بلنه کښې د بحث او مناظرې ضرورت چې راپیښ شي نو هغه په ښه طریقه سره کول پکار دی ، په روح المعانی کښې راغلی دی چې په ښه طریقه سره د خبرو اترو کولو مطلب نرمی په کښې کول دی ، داسې دلیلونه پش کول پکار دی چې مخاطب پرې په آسانۍ سره پوهیدې شی ، په دلیل کښې هغه مقدمات پش کول پکار دی کومې چې مشهورې او معلومې وی ځکه چې د مخاطب شکونه ورسره لرې شی او هغه پریشانی نه پیدا کوی . د قرآن عظیم الشان نور آیتونه مبارك په دې گواه دی چې په ښه طریقه سره مجادله کول یوازې مسلمانانو دپاره مخصوص نه دی بلکه اهل کتابو سره خو په خصوصیت سره د قرآن عظیم الشان ارشاد دې چې : ﴿وَلَا تُجَادِلُوا أَهْلَ الْكِتَابِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ﴾(۲) داشان په یو بل آیت مبارك کښې موسی ﷺ او هارون ﷺ ته هم هدایت دې چې : ﴿فَقُولَا لَهُ قَوْلًا لَّيِّنًا﴾(۳) [چې د فرعون پشان سرکش کافر سره هم داشان معامله کول دی]

**د دعوت اصول او آداب** :: دې مذکوره ایت مبارك کښې د دعوت دپاره درې ځیزونه ذکر دی . اول حکمت ، دویم موعظه حسنه ، دریم مجادله بالتی هي احسن ، بعضو حضراتو مفسرینو فرمائیلی دی چې دا درې ځیزونه د مخاطبینو د درېو قسمونوله کبله دی ، دعو بالحکمة ، اهل علم وفهم دپاره ، دعوت بالموعظة ، عوامو دپاره ، مجادله دهغه خلقو دپاره چې دهغوئ په زړونو کښې شکوك وشبهات وی ، یا هغو دپاره چې د عناد او ضد په وجه انکار کوی . سیدی حکیم الامت تهانوی رحمه الله بیان القرآن کښې فرمائی چې ددې درېو ځیزونو مخاطب جدا جدا درې قسمه ولې کیدل د آیت مبارك دسیاق څخه بعید معلومیږی . [انتهی](۴)

ظاهر دادی چې ددعوت داآداب د هر چا دپاره استعمالول دی . چې په دعوت کښې تولو څخه اول حکمت سره د مخاطب د حالات مشاهده اوکړی او هغه دپاره مناسب کلام تجویز کړی .

(۱) مفردات القرآن للأصفهانی[ج: ۱ ص:۵۲۷]
(۲) ترجمه:-او ته اهل کتابو سره بحث مه کوه سوا د مهذبې طریقی نه.
(۳) ترجمه:-اودوئ سره په نرمۍ خبره کوئ.
(۴) بیان القرآن تحت هذه الآیة [ج:۶ ص:۶۹]

بیا په دې کلام کښې د خیرخواهی او همدردئی جذب څخه ډك داسې شواهد او دلائل راوړل دی چې هغې سره مخاطب مطمئن شی. اود بیان انداز داسې مشفقانه او نرم پکار دې چې مخاطب ته ددې یقین اوشی چې دا څه وائی دا زما د مصلحت او خیرخواهی دپاره وائی، او ددې مقصد ما شرمنده کول یا زما حیثیت ته نقصان رسول نه دی.

البته صاحب د روح المعانی دې ځائې یو ډیره لطیفه نکته بیان کړې ده ، چې د آیت مبارك د نسق څخه معلومیږی چې د دعوت اصول دوه څیزونه دی ، حکمت او موعظت ، دریم څیز مجادله په دعوت په اصولو کښې داخل نه دې. خو کله کله د دعوت په طریقه کښې ددې هم ضرور راپیښیږی.

د صاحب روح المعانی استدلال دادې چې که چرې دا درې واړه څیزونه د دعوت اصول وې نو ددې مقام د تقاضې مطابق به په دریو واړو څیزونو باندې عطف بیان کړې شوې وې. [بالحکمة والموعظة الحسنة والجدال الاحسن] ، مګر قرآن پاك خو حکمت او موعظت عطف سره په یو نسق کښې بیان کړی دی ، او مجادله دپاره یې جدا جمله [وَجَادِلۡهُمۡ بِالَّتِیۡ هِیَ اَحۡسَنُ] اختیار کړې شوه ، ددې څخه معلوم شو چې مجادله فی العلم د دعوت الی الله رکن یا شرط نه دې. بلکه د دعوت په طریقو کښې راپښیدونکې معاملاتو متعلق یو هدایت دې. لکه څنګه چې ددې څخه وروستو آیت مبارك کښې ددې تلقین شوې دې. څکه څکه چې د دعوت په طریقه کښې د خلقو په تکلیفونو باندې صبر کول ضروری دی.(۱)

خلاصه داده چې د دعوت اصول دوه څیزونه دی ، حکمت او موعظت ، او ددې څخه هیڅ یو دعوت خالی نه دې ، که هغه علماء او خواص وی او که عوام الناس ، البته په دعوت کښې کله کله داسې خلقو سره مخامخ کیدل راشی چې هغو په شکونو او شبهاتو کښې اخته وی او داعی سره په بحث مباحثه راضی وی. نو داسې حالت کښې د مجادلې تعلیم ورکړې شوې دې. مګر دې سره د [وبِالَّتِیۡ هِیَ اَحۡسَنُ] قید لګولې شوې دې چې کومه مجادله ددې شرط څخه خالی وی نو هغې په شریعت کښې هیڅ حیثیت نشته دې.

**د دعوت الی الله پیغمبرانه آداب:** دعوت الی الله په اصل کښې د انبیاء ﷺ منصب دې ، د امت عالمانو ددې منصب دپاره دوئ بطور نائب دی ، نو لازم دادی چې ددې آداب او طریقې هم ددوئ څخه زده کول پکار دی. کوم دعوت چې په دې طریقو باندې نه وی نو هغه دعوت نه دې بلکه عداوت او جنګ دې.

د پیغمبرانه دعوت هغه اصول چې قرآن پاك کښې د موسی علیه السلام دپاره نقل کړې شوی دی ، [فَقُوۡلَا لَهٗ قَوۡلًا لَّیِّنًا لَّعَلَّهٗ یَتَذَکَّرُ اَوۡ یَخۡشٰی] [یعنی فرعون سره نرمه خبره کوه کیدیشی چې هغه پوهه شی] هر د حق داعی ته دا اصول مخکښې ایښودل پکار دی. د فرعون سرکشه کافر چې دهغه د مرګ خبر هم د الله ﷻ په علم کښې وو چې دې به کفر باندې وو ، هغه طرفته چې کله الله ﷻ خپل داعی لیږی نو د نرمو خبرو کولو ورته تلقین کوی ، نن چې مونږ کومو خلقو ته دعوت ورکوؤ هغه د فرعون څخه زیات ګمراه نه دی ، او مونږ کښې د موسی علیه السلام او هارون علیه السلام څخه زیات ښه داعی نشته دې. نو کوم حق چې الله ﷻ خپلو دې دواړو پغمبرانو ته ورکړو چې مخاطب سره

(۱) تفسیر روح المعانی تحت هذه الآیة [ج: ۱۰ ص: ۳۴۲، ۳۴۴]

سخت کلامي اوکړه ، دې فقرې باندې غور اوکړئی ، او د دې توهين اوکړئی ، هغه حق به مونږ ته چرته ملاويږي .

قرآن کريم د دعوت وتبليغ او کفارو سره د مجادلو څخه ډك دې ، په دې کښې چرته هم دا په نظر نه رازي چې د الله رسول ﷺ د حق خلاف چې کوم خلق دي هغوئ ته يو ثقيل جمله هم نه ده ونيلې ، د دې څو مثالونه اوګورئی:

د سورة اعراف په اوومه رکوع ايت ۵۹ نه تر ۶۷ پورې دوه د دوؤ پيغمبرانو حضرت نوح عليه السلام او هود عليه السلام سره د قوم د مجادلو او سختو الزاماتو جواب کښې د دې بزرګانو کلمات قابل د کتلو دي .

نوح عليه السلام هغه اولوالعزم پيغمبر دې چې دهغه اوږ عمر په دنيا کښې مشهور دې ، نهه نيم سوه [۹۵۰] کاله يې خپل قوم ته دعوت اوتبليغ اوکړو ،

د هغوئ په اصلاح کښې شپه ورځ مشغول وو ، مګر دې بخته قوم کښې د يو کسانو څخه سوا نورو د دوئ خبره اونه منله . نور لا څۀ کوې ددۀ خپل زوې او ښځه هم د کافرو طرفدار وو ، که دهغوئ عليه السلام په ځائې نن يو دعوت ورکونکئ او صلاح کوؤنکې وی نو دهغه به خپل قوم سره د خبرو انداز څنګه وو ، لږه اندازه اوکړئی، بيا اوګورئی چې د دې ټولې همدردئی او خيرخواهئ د عوت په جواب کښې قوم اووئيل چې :

تر دې چې خپل ځوئې او خپله بی بی ئې کافران وو ، او د کافرانو په ډله وو ،که د نن زمانې بلونکی وې نو هغوئ سره بۀ ئې څومره سخت کلام او سخت سلوك وو اوګورئی د دوئ عليه السلام د همدردئی او خيرخواهئ ، شفقت او مهربانئ په جواب کښې د دغه قوم کافرانو ورته څه اووئيل : ﴿إِنَّا لَنَرَاكَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ﴾ [اعراف] مونږ خو تاسو لره په ښکاره ګمراهئ کښې وينو ،

خو بل خوا اوګورئی چې دغه پيغمبر عليه السلام د سرکش قوم د ګمراهيانو او بدکاريانو رابرخيره کولو په ځائې داسې فرمائی چې :

﴿يَا قَوْمِ لَيْسَ بِي ضَلَالَةٌ وَلَٰكِنِّي رَسُولٌ مِّن رَّبِّ الْعَالَمِينَ﴾ زما رونړو ! زۀ څه ګمراه نه يم زۀ خو د رب العالمين رسول او قاصد يم .

دوئ څخه روستو يو بل راتلونکی پيغمبر هود عليه السلام وو چې قوم يې معجزې اوليدلې بيا هم د عناد او دښمنئ په وجه داسې اووئيل چې تاسو پخپله دعوی باندې څه دليل پيش نکړو او ستاسو په وينا باندې مونږ خپلو معبودانو لره پريخودونکی نه يو ، مونږ خو هم دا وايو چې تاسو عليه السلام زمونږ د معبودانو په شان کښې بې ادبی کړيده دهغې په وجه تاسو عليه السلام ليونی شوی يئ.

هود عليه السلام د دې ټولو خبرو په آؤريدو سره داسې جواب ورکړو چې :

﴿إِنِّي أُشْهِدُ اللَّهَ وَاشْهَدُوا أَنِّي بَرِيءٌ مِّمَّا تُشْرِكُونَ﴾ [هود]. يعنی زه الله ﷻ ګواه کوم او تاسو هم ګواهان اوسئ چې زه د هغې بتانو څخه ويزاره يم چې تاسو ئې الله ﷻ سره شريکان ګرځوئی.

په سورة اعراف کښې دی چې قوم ورته داسې ئې اووئيل چې :

﴿إِنَّا لَنَرَاكَ فِي سَفَاهَةٍ وَإِنَّا لَنَظُنُّكَ مِنَ الْكَاذِبِينَ﴾ [اعراف] يعنی مونږ ته خو شوده ښکارې ، خيال مو دا دې چې تاسو عليه السلام دروغژن يئ .

ددې جواب کښې دهغوئ ﷺ شریفانه جواب ته اوګورئ چې نه ورته څه پیغور ورکوي ، ددوئ دګمراهئ او په الله ﷻ باندې ددوئ د دروغژن ترلو څه خبره نه کوي ، صرف دومره فرمائي چې:

﴿يٰقَوْمِ لَيْسَ بِيْ سَفَاهَةٌ وَّلٰكِنِّيْ رَسُوْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾[اعراف] [اې زما رونړو! ما کښې څه ګمراهي نشته دې ، زه خو د رب العالمين رسول اوقاصد يم ] [ستاسو د فائدې خبرې کوم]

شعيب ﷺ هم د نورو پيغمبرانو ﷺ پشان خپل قوم الله ﷻ طرفته راؤبللو ، په هغوئ کښې لوئې عيب په ناپ تول کښې کمی راوستل وو ، دې څخه د منع کيدو ئې ورته اوفرمائيل نو قوم وريورې خندا اوکړه او سپکاوې ئې اوکړو ، لکه قرآن عظيم الشان فرمائي چې:

﴿يٰشُعَيْبُ اَصَلٰوتُكَ تَاْمُرُكَ اَنْ نَّتْرُكَ مَا يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَآ اَوْ اَنْ نَّفْعَلَ فِيْٓ اَمْوَالِنَا مَا نَشٰٓؤُا ؕ اِنَّكَ لَاَنْتَ الْحَلِيْمُ الرَّشِيْدُ﴾ [اې شعيب! آيا ستا مونځ تاته دا حکم درکوي چې مونږ دخپل پلار نيکه معبودان پريږدو او مونږ چې ددې کومو مالونو مالکان يو پدې د خپلې مرضۍ مطابق چې څه غواړ هغه دې نه کوؤ ، واقعې ته ډير عقل مند يې او په دين باندې روان يې]

هغوئ ورته يو دا پيغور ورکړو چې ستاسو ﷺ مونځ کول درته د بې وقوفئ کارونه ښائي ؟ بل دا اووئيل چې زمونږ مال کښې ستاسو او د الله ﷻ څه کار دې ، مونږ به پخپله خوښه اخستل خرڅول کوؤ ، اوکمې زياتې په کښې کولې شو. بله خبره ئې ورته د خندا دا اوکړه چې تاسو زيات عقل مند او ديندار يئ .

معلومه شوه چې په معاشياتو کښې بې ديني اختيارونکې صرف اوسنی خلق نه دی بلکه ددوئ دغسې پخوانی مشران تير شوی دی کومه نظريه چې د هغوئ وه هغه تش په نوم د ننني مسلمانانو هم ده ، چې وائي مونږ مسلمانان يو ، اسلام منو مګر معاشيات کښې سوشلزم اختيار وؤ. په دې کښې د اسلام څه کار دې ؟ بل طرفته اوګورئ چې ددې ظالم قوم ددې توقو او زړه آزاروونکو خبرو کولو جواب د الله ﷻ رسول څه ورکوي ، فرمائي چې:

﴿يٰقَوْمِ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كُنْتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ وَرَزَقَنِيْ مِنْهُ رِزْقًا حَسَنًا ؕ وَمَآ اُرِيْدُ اَنْ اُخَالِفَكُمْ اِلٰى مَآ اَنْهٰىكُمْ عَنْهُ ؕ اِنْ اُرِيْدُ اِلَّا الْاِصْلَاحَ مَا اسْتَطَعْتُ ؕ وَمَا تَوْفِيْقِيْٓ اِلَّا بِاللّٰهِ ؕ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ اُنِيْبُ﴾[هود:۸۸]. [اې زما قومه ، دا خو اووايې چې زه د خپل رب د طرفه په دليل باندې قائم يم ، او هغه ماته دخپل طرفته ښه دولت يعني نبوت راکړو ، نو بيا زه ولې د دهغه تبليغ اونه کړم ، او زه پخپله هم ددې خلاف څه عمل نه کوم ، څه ته تاسو ته وايم ، زه خو صرف اصلاح غواړم ، ترکومې چې زما لاس رسي ، او ما ته د اصلاح او عمل څه توفيق ملاويږی هغه صرف دالله ﷻ مدد دې ، زه په هغه ذات باندې بهروسه لرم ، او په ټولو کارونو کښې هغه طرفته رجوع کوم]

موسی ﷺ چې الله ﷻ فرعون ته اوليږلو او د نرمو خبرو کولو هدايت ئې ورته اوکړو ، هغوئ ﷺ پدې باندې ښه پوره عمل اوکړو ، بيا هم ورته فرعون داسې خطاب اوکړو چې:

﴿قَالَ اَلَمْ نُرَبِّكَ فِيْنَا وَلِيْدًا وَّلَبِثْتَ فِيْنَا مِنْ عُمُرِكَ سِنِيْنَ ۙ وَفَعَلْتَ فَعْلَتَكَ الَّتِيْ فَعَلْتَ وَاَنْتَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ﴾[سورة شعراء]. [فرعون اووئيل چې آيا مونږ په وړوکوالی کښې ستا پالنه نه ده کړې ، او ته په دې ټول عمر کښې مونږ سره وې ، او تا هغه خپل حرکت هم کړې وو ، چې کړې دې وو ، [يعني قطبی دې وژلې وو] او ته ډير ناشکره يې]

په دې کښې په موسی ﷺ باندې دا ښېګړه هم ضباطه کړه چې په وړوکتوب کښې مې پاللی یې ، بیا ئې پرې ذا احسان هم ضباط کړو چې د لوئیدو څخه روستو هم تر ډیرې مودې پورې مونږ سره وې . بیا ئې ورته ددې زورنه هم ورکړه چې تاسو ﷺ زمونږ یو قطبی وژلې دې . دا غصه ئې پرې هم اوکړه چې تاسو ﷺ په کافرانو کښې شامل شوئ . دلته د کافر کیدو مطلب دا هم کیدې شی چې تاسو ﷺ زمونږ د احساناتو ناشکری اوکړه ، دائې لغوی معنی شوه او اصطلاحی معنی ئې داسې کیدې شی چې هر کله فرعون پخپله هم د خدایئ دعویدار وو نو څکه ئې ددغې باطلې خدایئ څخه منکر ته کافر اووئیل .

اوس په دې موقع باندې د موسی ﷺ جواب واورئی ، داپه پیغمبرانه آداب د دعوت او پیغمرانه اخلاقو سره پوره دې ، او په دې خو د ټولو څخه اول د هغه کمزورئی او کوتاهئ اعتراف دې کومه چې ددهٔ څخه شوې وه ، یعنی یو اسرائیلی سره د جنګ په وخت کښې د قطبی د لرې کولو دپاره یې هغه یوسوك وهلې وو او دې سره مړ شوې وو ، نو ګویا دا قتل په قصد سره نه ووشوې ، مګر په دې څه دینی تقاضا هم نه وه ، بلکه د موسوی شریعت لحاظ سره هم هغه کس د قتل مستحق نه وو ، له دې کبله یې اول دا اعتراف او کړو چې :

[فَعَلْتُهَا إِذًا وَأَنَا مِنَ الضَّالِّينَ] [یعنی مادا کار په وخت کښې کړې وو چې زه ناواقفه اوم]

مراد داوو چې د پیغمبر کیدو څخه وړاندې راڅخه دغه کار شوې وو کله چې په دې باره کښې د الله ﷻ څه حکم معلوم نه وو ، بیا وروسې ئې اوفرمائیل چې :

﴿فَفَرَرْتُ مِنكُمْ لَمَّا خِفْتُكُمْ فَوَهَبَ لِي رَبِّي حُكْمًا وَجَعَلَنِي مِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾[سورة شعراء].[بیا زه ویریدم او ددې خائې څخه مفرور شوم ، بیا زما رب ماته عقل مندی رانصیب کړه او زه یې خپلو پیغمبرانو کښې شامل کړم]

بیا د هغه د احسان ضباطولو جواب ئې دا ورکړو چې ستا دا احسان ضباطول څکه صحیح نه دی چې زما پالنه کول هم ستا د زور ظلم په نتیجه کښې داسې وو چې تا د اسرائیلی ماشومانو وژلو حکم ورکړې وو ، څکه زما والدې صاحبې د مجبورئ څخه زه په سیند لا هو کړم چې ستا کور ته راورسیدم ،لکه قرآن عظیم الشان فرمائی چې :

﴿وَتِلْكَ نِعْمَةٌ تَمُنُّهَا عَلَيَّ أَنْ عَبَّدتَّ بَنِي إِسْرَائِيلَ﴾[سورة شعراء] پاتې شو د پرورش کولو احسان[ نو دا هغه نعمت دې د کومې چې ته په ماباندې احسان کوې ، تاخو بنی اسرائیل په سخت ذ لت اخولی وو]

دې څخه روستو دموسی ﷺ څخه د فرعون داسې تپوس اوکړو چې :﴿وَمَا رَبُّ الْعَالَمِينَ﴾ رب العالمین څوك او څه څیز دې ؟

موسی ﷺ ورته اوفرمائیل چې هغه رب د آسمانونو او زمکې او څه چې ددې دواړو مینځ کښې دی ددې ټولو رب دې ،دغه وخت فرعون د ټوقو په انداز کښې خپلو درباریانو ته اووئیل چې ﴿أَلَا تَسْتَمِعُونَ﴾تاسو آورئی نه ؟ داڅنګه د ناپوهئ خبرې کوی ؟ موسی ﷺ ورته اوفرمائیل چې :﴿رَبُّكُمْ وَرَبُّ آبَائِكُمُ الْأَوَّلِينَ﴾ [یعنی ستا او ستا د پلار نیکه هم هغه رب دې]

فرعون پرې غصه شو او اور پرې بل شو ، وې وئیل : ﴿إِنَّ رَسُولَكُمُ الَّذِي أُرْسِلَ إِلَيْكُمْ لَمَجْنُونٌ﴾ [یعنی ستاسو طرفته چې دالله ﷻ کوم رسول لیږلې شوې دې هغه لیونې دې]

په لیونی وئیلو د فرعون باندې هم څه غصه او تاؤ موسی ﷺ ښکاره نه کړو، داسې ئې هم اونه کړل چې د هغه لیونتوب او خپله هوښیارتیا ئې ثابته کړې وې بلکه د الله ﷻ رب العالمین یو بل صفت ئې داسې بیان کړو چې:

﴿رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۖ إِن كُنتُمْ تَعْقِلُونَ﴾ [سورة شعراء] [هغه د مشرق او مغرب رب دې او څه چې ددې په مینځ کښې دی، که تاسو عقل لرئې]

دا اوږدې خبرې دی چې د فرعون په درباره کښې د موسی ﷺ اود هغه تر مینځه شوې دی چې ددې بیان د سورة شعراء په درې رکوع ګانو کښې شو بېدې. د الله ﷻ د مقبول رسول موسی ﷺ دا خبرې د اول نه تر آخره پورې اوګورئی، نه پرې چرې جذبات ښکاره شوی دی، د فرعون دبدګوئې څه جواب یې نه دې ورکړې د هغه سخت کلامئ په جواب کښې ئې څه سخت لفظ نه دې استعمال کړې، بلکه په مخه ئې دالله تعالی کامل صفتونه بیان کړی دی او د تبلیغ سلسله ئې جاری ساتلې ده.

دا یو لنډه شان نمونه د هغې مجادلو ده چې پیغمبرانو ﷺ د خپلو خپلو ضدی قومونو په مقابله کښې کړی دی او د قرآن تعلیم وَجَادِلْهُم بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ عملی تشریح ده.

د مجادلو نه علاوه په دعوت او تبلیغ کښې د هر مخاطب او هرې موقعې مناسب په کلام کولو کښې چې پیغمبرانو ﷺ کوم حکیمانه اصول اختیار کړی دی او په عنوان او تعبیر کښې د مصلحتونو او حکمتونو لحاظ ئې ساتلې دی، الله ﷻ طرفته د بلنې د مقبول اثرناکې او پائیدارې جوړولو دپاره ئې چې کوم طرز عمل اختیار کړې هم هغه په اصل کښې د بلنې روح دې. دهغې تفصیلات خو د رسول کریم ﷺ په ټولو تعلیماتو کښې خواره شوی موجود دی. د نمونې په طور یو څو څیزونه په کښې دادی:

رسول کریم ﷺ به په دعوت، تبلیغ او وعظ کښې ددې ډیر خیال ساتلو چې په آؤریدونکو مخاطبینو باندې دا بوج جوړ نشی، حالانکه د رسول کریم ﷺ په مخکښې هغه صحابه کرام ﷺ وو چې دهغوئ زبردست عاشقان وو او دا ګمان پرې هیچرې نشو کیدې چې د رسول کریم ﷺ په وعظ، دعوت او تبلیغ په آؤریدو باندې به تنګ شوی وې. خو سره ددې د رسول کریم ﷺ عادت مبارک داوو چې روزانه به ئې صحابه کرامو ﷺ ته وعظ هم نه کولو بلکه د هفتې په خینو ورځو کښې به ئې ورته څکه کولو چې د دوئ په کاروبار کښې څه رکاوټ پیدا نشی او په طبیعت ئې څه بوج نه وی.

صحیح بخاری کښې د عبدالله بن مسعود ﷺ نه روایت دې چې رسول کریم ﷺ بهٔ د هفتې په خینو ورځو کښې مونږ ته څکه وعظ کولو چې زړونه مو تنګ نشی[1] او نورو ته به ئې هم دغه شان هدایت کولو.

انس ﷺ نه روایت دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې:

﴿یسروا ولا تعسروا وبشروا ولا تنفروا﴾ [په خلقو آسانئ کوئ سختئ ورته مه پیدا کوئ درحمت زیرې ورته ورکوئی، نا امیدی اوکرکه ئې مه راپیدا کوئی] [بخاری کتاب العلم][2]

---

[1] صحيح البخاري كتاب العلم، باب ماكان النبي ﷺ يتخولهم بالموعظة إلخ [ج:١ص:١٦]

[2] صحيح البخاري كتاب العلم، باب ماكان النبي ﷺ يتخولهم بالموعظة إلخ [ج:١ص:١٦]

عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمائي چې تاسو لره رباني حکيمان ، عالمان او فقهاء جوړيدل پکار دي ، صحيح بخاری کښې ددې قول په نقل کولو سره د رباني لفظ تفسير ئې داسې کړې دې چې دعوت ، تبليغ او تعليم کښې د تربيت د اصولو لحاظ ساتلې شي ، ړومبې آسانې آسانې خبرې اوښائې کله چې خلق هغې سره عادت شي نو وروسته درنې درنې داسې حکمونه بيانوي کوم چې په ړومبي سر کښې خلقو ته ګران ښکاري .(۱) نن سبا د وعظ او تبليغ د اثر نه کيدو يا ددې د ډير کموالي وجه داده چې خلق عامو طور په دې کار کښې ددغې اصولو او آدابو خيال نه ساتي ، تقريرونه اوږده اوږده کوي ، وخت بې وخته نصيحتونه کوي ، د مخاطبينو حالات ئې معلوم کړې نه وي او عادت ئې دا وي چې مخاطبين په څه کار باندې مجبوره کوي .

رسول کريم ﷺ به ددعوت او تبليغ په کار کښې ددې ډير خيال ساتلو چې مخاطب په کښې کچه يا شرمنده نشي ، يو خراب کار کوؤنکې بنده ته به ئې په نوم يا په ګوته نيولو دهغې په باره کښې څه نه فرمائيل بلکه هغې دپاره به يې عام خلق داسې مخاطب کړل :

﴿ما بال أقوام يفعلون كذا﴾(۲) [په خلقو څه شوی دی چې فلانې کار کوي] [النحل ـ ۱۲]

په دې شان به هغه غرضي کس هم واؤريدل په زړه کښې به شرمنده شو او ددغې خراب کار پريښودو په تکل کښې به شو . څکه خو د پيغمبرانو ﷺ دا عادت وو چې د مخاطب د نه شرمولو په غرض به ئې نسبت څان ته اوکړو او د سمې راوستو کوشش به ئې فرمائيلو لکه سورة ياسين کښې فرمائي چې :

﴿وَمَالِيَ لَآ أَعْبُدُ الَّذِي فَطَرَنِي﴾ [په ما څه شوی دی چې د خپل پيدا کوؤنکي عبادت دې اونه کړم] ښکاره خبره ده چې د رسولانو دغه قاصد او ريبار به هر وخت په عبادت کښې مشغول وو . خو هغه چاته ئې دا خبره آؤرول وو څوک چې د الله ﷻ په عبادت کښې مشغول نه پاتې کيدل .

هرکله چې د دعوت لفظي معنی هم څان ته بل رابلل دي ، خالص دهغه عيب بيانول نه دی ، دا رابلل هله کيدې شي چې د متکلم او مخاطب تر مينځه څه شراکت وي څکه خو قرآن عظيم الشان د پيغمبرانو ﷺ د دعوت طريقه دا خودلې ده چې شروع به ئې په ياقوم سره کوله ، په اول به ورسره خپله رورولي او نزدې والې ضباط کړو چې مونږ او تاسو د يو خاندان او برادرئی خلق يو هيڅ منافرت نه دې کيدل پکار ، هله به ئې د سمې راوستو خبره ورته اوفرمائيله .

دغه شان کله چې رسول کريم ﷺ د روم بادشاه هرقل ته خط مبارک ليږلو نو ددې په سر کښې ئې هغه ته د عظيم الروم لفظ ورکړو(۳) چې جائز عزت ورکول هم وو ، او دې ته اشاره په کښې هم وه چې ته د روم د خلقو لوئې سړې يې زمونږ لوئې سړې څکه نشی کيدې چې مسلمان نه يې هله پس ته ئې دايمان بلنه ورته په دې شان ورکړه چې :

﴿يَٰٓأَهْلَ الْكِتَٰبِ تَعَالَوْا إِلَىٰ كَلِمَةٍ سَوَآءٍۭ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا اللَّهَ﴾ [ اې اهل کتاب هغې کلمې ته زر راشئ چې زمونږ او ستاسو تر مينځه شريکه ده ، يعنی دا چې د الله ﷻ نه سوا د بل چا عبادت نه کوؤ]

---

(۱) صحيح البخاری كتاب العلم ،باب العلم قبل القول والعمل [ج:۱ص:۱۶]

(۲) دداسې قسمه خينې روايتونو دپاره اوګورئ: صحيح البخاری كتاب الصلاة ،باب ذكر البيع والشراء على المنبر في المسجد ، و كتاب الأذان ، باب رفع البصر إلى السماء [ج:۱ص:۱۰۳]و صحيح مسلم كتاب النكاح، باب استحباب النكاح لمن تاقت نفسه إلخ [ج:۱ص:۴۴۸]

(۳) صحيح البخاری كتاب بدء الوحي [ج:۱ص:۵]

په دې کښې ئې اول د يو والي شريکه نقطه بيان کړه چې هغه د توحيد عقيده ده ، دې پسې د عيسايانو په غلطئ خبرداري ورکړې شو.
درسول کريم ﷺ په تعليماتو باندې چې توجه ورکړې شي نو د رسول کريم ﷺ په هر تعليم اوبلنه کښې به همدغه شان آداب او اصول ملاويږي ، نن صبا خو د چا مخه ، دعوت ، اصلاح ، امر بالمعروف او نهی عن المنکر ته نشته او که څوک دا کار کوی نو ټول زور په بحث مباحثه او په مخالفينو باندې الزام لګولو ، پيغورونو ورکولو او د مخاطبينو په سپکاوی باندې ورکوی خو هرکله چې د اطريقه د سنت نه خلاف ده نو د وعظ تبليغ او دعوت اثر او فائده څکه نه وی ، د هغوئ په خيال کښې دا داسلام لوئې خدمت دې خو په حقيقت کښې دې سره خلق متنفر کيږی .

**د رواجی مجادلو دينی او دنياوی نقصانات او ضررونه:**: ددې پورتنی آيت مبارک تفسيرُ نه معلومه شوه چې د شريعت اصلی مقصود د الله ﷻ طرفته بلنه ورکول دی ، چې دوه اصول لری ، حکمت او موعظه حسنه . که مجادلې سره په مخ کيدو کښې څوک مجبوره شی نو بيا هم په هغې کښې د احسن په قيدلګولو سره د هغې اجازت ورکړې شوې دې خو په حقيقت کښې دا د دعوت څه شعبه او څانګه نه ده بلکه ددې د منفی طرفته يو تدبير دې چې قرآن عظيم الشان ورسره ﴿بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ﴾ په قيد لګولو سره خودلی دی چې دې کښې دنرمئ ، خيرخواهئ اوهمدردئ جذبه کار فرما وی ، په دې کښې دې واضح دليلونه د مخاطب د حال په جوړ بيانولې شی ، د مخاطب د سپکاوی کولو او ذليله کولو نه دې پوره ډډه کولې شی ، او ددې د احسن کولو د شان پيدا کولو په غرض دا هم ضروری دی چې پخپله متکلم دپاره هم ضرری جوړ نشی چې په کښې ګنده خويونه ، حسد ، بغض ، تکبر او مرتبه لټول وغيره پيدا نشی ، چې باطنی لوئې ګناهونه دی او د نن زمانې په بحث مباحثه مناظرو او مجادلو کښې ترې په وس سره څوک خلاصيدې نشی ، هغه جدا خبره ده چې الله ﷻ ئې ترې ساتلې اوغواړی.
امام غزالی رحمه الله فرمائيلی دی چې څنګه شراب ام الخبائث دی چې پخپله استعمالول ئې هم دلوئې ګناه کار دې او د نورو لويو لويو بدنی ګناهونو ذريعه هم ده ، دغه شان په بحث مباحثه کښې چې کله په مخاطب باندې برکيدل او خپل علم په خلقو باندې ضباطول وی نو هغه هم باطن دپاره ام الخبائث دی چې په نتيجه کښې ئې ډير روحانی جرمونه پيدا کيږی . لکه حسد ، بغض ، غيبت ، د نورو خلقو عيبونه لټول د نور چا په خرابئ باندې خوشحاليدل او په خير باندې ئې خفه کيدل ، د حق قبلولو نه مخ اړول ، دبل په وينا باندې په انصاف او عدل سره د غور کولو په ځائې هغه ته د جواب ورکولو داسې تکل کول چې په قرآن عظيم الشان او سنت کښې په تاويل کولو باندې هم صرفه نه کوی .
دا خو هغه کوڼکی ځيزونه دی چې په کښې د نامې ، جامې [باوقار] عالمان اخته دی ، کله چې دغه معامله د دوئ بالکيانو [متبعينو] ته ور اورسيږی نو هغوئ په خپل مينځ کښې لاس وګريبان او په جنګ ميدان شی ، جنګ تود شی ، انا لله وانا اليه راجعون.
امام شافعی رحمه الله اوفرمائيل چې علم خو د اهل علمو ترمينځه د روروئ او خپلوئ يو قسم مزې دې ، خو خلقو دغې علم نه دښمنی جوړه کړې ده ، دوئ نورو ته په خپل مذهب کښې د داخليدو بلنه څنګه ورکولې شی ، د دوئ په مخکښې په نورو باندې غلبه حاصلول دی نو بيا

د دوئ نه خپل مينځ كښې د مينې ، محبت او مراني تصور څنګه كولې شي ؟ او د يو انسان د پاره به د دې نه زيات شر او خرابي بله څه وي چې هغه خلقو ته د منافقانو په اخلاقو كښې اخته كوي او د مؤمنانو متقيانو د اخلاقو نه ئې بې برخې كړي .

امام غزالي رحمه الله فرمائيلي دي چې د ديني علم او د حق د بلنې مشغله اختيارووُنكي يا خود صحيح اصولو په تابعدارئ كولو او د هلاكيدونكو خطرو نه په ډډه كولو سره ابدي نيكي حاصلوي ، يا بيا د هغې مقام نه راپريوزي نو د ابدي بد بختئ طرفته ځي ، په اوسط كښې د داسې بنده پاتې كيدل ډيره لرې خبره ده ، ولې چې كوم علم فائده نه وركوي ، هغه سراسر عذاب دې ، رسول كريم ﷺ فرمائيلي دي چې :

﴿اشد الناس عذابا يوم القيامة عالم لم ينفعه الله بعلمه﴾ [1] د ټولو نه زيات په سخت عذاب كښې به د قيامت په ورځ هغه عالم وي چې د هغه د علم نه الله ﷻ هغه ته فائده نه وي وركړې]

يو بل حديث پاک كښې راغلي دي چې :

﴿لا تتعلموا العلم لتباهوا به العلماء ولتماروا به السفهاء ولتصرفوا به وجوه الناس اليكم فمن فعل ذلك فهو في النار﴾ [2] [ديني علم په دې غرض مه حاصلوئ چې د هغې په ذريعه په نورو علماء كرامو باندې فخر او عزت حاصل كړئ يا كم عقل لرونكو خلقو سره جنګ اوكړئ يا په دې سره د خلقو مخونه خان ته راواړروئ او څوک چې داسې كوي ، هغه په اور كښې دې] [ابن ماجه() من حديث جابر باسناد صحيح كذا في تخريج العراقي على الاحياء]

هم د غه وجه ده چې د فقهې د امامانو او د اهل حق مسلک په دې باره كښې دا وو چې په علمي مسئلو كښې به ئې جنګ كول هيڅرې جائز نه ګڼړل ، حق ته د بلنې وركولو كښې د ومره قدرې كافي دي چې څوک په غلطئ اوګڼړي ، هغه د نرمئ او خيرخواهئ په عنوان سره په دليلونو باندې ، د هغه په غلطئ خبرداره كړي ، كه هغه ئې قبوله كړي نو ډيره ښه ده ګنې خاموشي دې اختيار كړي د جنګ كولو او بدو ردو وئيلو نه دې بالكل ډډه كوي .

د امام مالک رحمه الله باره كښې فرمائي چې :

﴿كان مالك يقول المراء والجدال في العلم يذهب بنور العلم عن قلب العبد وقيل له رجل له علم بالسنة فهل يجادل عنها قال لا ولكن يخبر بالسنة فان قبل منه والا سكت﴾ [امام مالک رحمه الله به فرمائيل چې په عمل كښې جنګ كول د علم نور لره د انسان زړه نه اوباسي ، چا عرض اوكړو چې داسې كس كوم چې د سنت عالم وي هغه د سنت حفاظت د پاره جنګ كولې شي ؟ وې فرمائيل چې نه ، بلكه د ده ته پكار دي چې مخاطب د صحيح خبرې نه خبر كړي كه هغه ئې قبوله كړي نو ډيره ښه ده ګنې خاموشي دې اختيار كړي] [اوجز المسالك شرح موطا صفحه ۱۵ جلد : ۱]

په دې زمانه كښې د بلنې او اصلاح كار پوره طور سره اثر نه كولو دوه سبب دي يو خو د فساد زمانه ده چې په كښې حرام څيزونه ډير او عمومي طور د خلقو زړونه سخت او د آخرت نه غافله شوي دي او د حق د قبلولو توفيق د خلقو كم وي ، او څينې خو په دې قهر آوړيدلي دي چې خبر ئې رسول كريم ﷺ داسې وركړې وو چې : په آخره زمانه كښې به د ډيرو خلقو زړونه الته

[1] شعب الإيمان للبيهقي الثامن عشر من شعب الإيمان وهو باب في نشر العلم إلخ رقم الحديث [١٧٣٢]

[2] سنن ابن ماجة المقدمة باب الإنتفاع بالعلم إلخ [ج: ١ ص: ٢٢]

شي ، ښه او بد پيژندل او د جائز او ناجائز فرق کول به ئې د ذره نه پورته شي . بل دا چې امر بالمعروف او نهي عن المنکر او حق طرفته بلنه ورکول ځوک پيژني هم نه عوام خو لا څه کوې چې خواص ، عالمان او نيکان خلق هم ددې ضرورت ډير کم محسوسوي . خلقو دا ګڼرلې دې چې خپل عملونه سمول پکار دي ، که خپل اولاد ، ښځه ، رونړه ، دوستان او خپلوان ئې په ګناهونو کښې اخته وي نو خپل کار به کوي ، ګويا کښې د هغوئ د اصلاح فکر کول د سره ددوئ په ذمه نه دي ، سره ددې چې قرآن عظيم الشان او سنت په ښکاره د يو مسلمان ذمه داري دا هم ګرځولې ده چې د خپل أهل وعيال او متعلقينو اصلاح کول ئې پرې فرض کړي ، لکه قرآن عظيم الشان فرمائي چې : ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا﴾ .(۱)

او که څه خلق د دعوت او اصلاح کولو دپاره کار ته مخه هم کړي نو هغوئ د قرآني تعليماتو او دپيغمبري بلنې د اصولو او آدابو نه ناخبره دي . د سوچ کولو او د ځان پوهولو نه بغير چې څه وخت څه وئيل اوغواړي نو وې وائي ، اودا ګڼړي چې ګني مونږ خپل فرض ادا کړل ، حالانکه دا طرز عمل د پيغمبرانو ﷺ د سنتو نه خلاف دې او هم په دې وجه دې سره خلق په دېن او ددين په حکمونو باندې عمل کولو نه نور زيات لرې غورزوي . خاص کر کله چې په چا باندې د تنقيد کولو ضرورت شي نو د تنقيد په نوم باندې سپکې سپورې وئيل او توقې ورپورې کول شروع کړي ، امام شافعي رحمه الله فرمائيلي دي چې :

په يوه غلطۍ باندې چا لره خبرداره کولو دپاره دې که په تنهائۍ کښې په نرمۍ سره پوهه کړل نو دا نصيحت دې اوکه په ښکاره دې د خلقو په مخکښې هغه ذليله او شرمنده کړو نو دا شرمول دي .

نن صبا خو حال دادې چې د يو بل عيبونه په اخبارونو او اشتهارونو کښې خورول ددين خدمت ګڼرلې شي ، الله ﷻ دې مونږ ټولو ته د خپل دين او ددې دبلنې صحيح بصيرت او د آدابو مطابق ددې دخدمت توفيق راکړي .

تر دې پورې ددعوت اصول او آداب بيان شو ، دې پسې فرمائي چې :

﴿إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَن ضَلَّ عَن سَبِيلِهِ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ﴾

دا جمله د هغه بلونکي د تسلۍ دپاره اوفرمائيلې شوه چې ددغې بيان شوؤ اصولو مطابق چاته بلنه ورکړي ، اوسره دهغې نه ئې هم قبوله نه کړي ، نو دبلونکي طبيعت ته سخته صدمه اوخفګان وي او کله کله ددې په نتيجه کښې په بلونکي باندې ناامېدي غلبه شي او د سره بلنه ورکول پريږدي نوپدې جمله کښې دا اوفرمائيلې شو چې دبلونکي کار دادې چې حق لارې ته بلل دصحيح اصولو مطابق اداکړي ، د هغې قبلول يا نه قبلول دې سره څه تعلق نه لري ، دا ستا ذمه داري نه بلکه د الله ﷻ ذمه داري ده ، هم هغه پوهيږي چې ځوک به ګمراه پاتې کيږي او ځوک به هدايت بيا مومي .

تاسو ﷺ دا فکر مه کوئي خپل کار کوئي ، وار مه خطاکوئي ، مه ناامېده کيږئي ، دې نه معلومه شوه چې دا جمله هم ددعوت د آدابو مکمل والې دې .

(۱) ترجمه :- ته خپل ځان او خپل کور والا د هغه اوور(هور) نه بچ کړه (چې دهغې خشاك بنيادم او کاڼړي دي)

**د حق بلونکي ته چې څومره نقصان ورارسوي نو بدله اخستل هم دده دپاره جائز دي مګر صبر کول زيات بهتر دي ::** هم دې پسې په دريو آيتونو مبارکو کښې حق بلونکي دپاره يو بل هدايت دا هم دې چې کله داسې سخت زړي جاهلان هم پيښ شي چې که په ډيرې نرمئ او په خير خواهئ سره هم پوهه کړې شي ، بيا هم اور پرې بل شي ، بد رد وينا کوي او تکليفونه وررسوي ، کله کله خو داسې هم اوشي چې د حد نه پرې ورتير شي ، بدني تکاليف بلکه په وژلو ئې هم صرفه نه کوي ، په داسې حالاتو کښې بلنې ورکوونکو دپاره څه کول پکار دي ؟

په داسې حالت کښې ﴿وَاِنْ عَاقَبْتُمْ﴾سره خو بلونکي ته دبدلې اخستلو قانوني حق داسې ورکړې شو چې نقصان رسوونکي نه خپله بدله اخستل ددهٔ دپاره جائز کړې شو ، خو شرط دادې چې دهغه دظلم بدله ترې دهغې نه په زيات مقدار کښې وانخستې شي خو په آيت مبارک کښې دا مشوره ورکړې شوه چې دبدلې اخستلو په ځائې ددهٔ دپاره صبر کول زيات غوره دي.

**ددې بيان شوؤ آيتونو شان نزول اود رسول کريم ﷺ او صحابه کرامو ﷺ د طرفه په حکم بآندې عمل کول ::** د جمهورو مفسرينو په نزد دا آيتونه مدني دي داهغه وخت نازل شوي دي چې د احد په غزا کښې اويا صحابه کرام ﷺ شهيدان شو ، حمزه شهيد کړې شو او بيا مثله ئې هم اوکړې شوه ، د صحيح بخاري روايت هم ددې مطابق دې . دار قطني کښې د ابن عباس ﷺ روايت نقل کړی دی چې :

داحد په غزا کښې کله چې مشرکان واپس روان شو د اوياؤ لويو صحابه کرامو ﷺ کالبوتونه [جسدونه] مخې ته وراغلل چې په کښې د نبی کريم ﷺ د محترم ترهٔ حمزه ﷺ کالبوت هم وو ، چونکه چې مشرکان هغوئ ﷺ ته سخت غصه وو ، نو هغوئ د غوصې ايستلو دپاره ئې د هغوئ د کالبوت څخه پوزه ، غوږونه اونور اندامونه پريکړل ، سينه دهغوئ ﷺ ئې څيرې کړه ، نبی کريم ﷺ د هغوئ په ليدلو ډير سخت خفه شو او وې فرمائيل چې د دوئ ﷺ په بدل کښې به زه هم د اوياؤ کسانو کافرانو مثله کوم. هم په دې واقعه کښې دا درې آيتونه نازل شو چې : ﴿وَاِنْ عَاقَبْتُمْ الخ﴾[تفسير قرطبی ][1] څينو روايتونو کښې دی چې نورو حضراتو صحابه کرامو سره دې ظالمانو داشان د مثلې معامله کړې وه.

چونکه نبی کريم ﷺ د زيات غم ، خفګان په وجه دځو صحابه کرامو ﷺ په بدله کښې د اوياؤ مشرکانو د مثلې کولو اراده ښکاره کړه چې الله ﷻ ته منظوره نه وه چې بدله م په هغه اندازه اغستل پکار دی په کومه اندازه چې ظلم شوې دې ،بل دا چې الله ﷻ ته دا منظوره وه ، په دې وجه يو په دې باندې خبرداره کړې شو چې نبی کريم ﷺ دبهترينو اخلاقو مالك دې څکه ئې دا نصيحت اوفرمائيلو چې بدله ترې سر په سر اخستل پکار دی. خو زياته غوره خبره داده چې بدله بالکل وانخلئ اوپه مجرمانو باندې هم احسان اوکړئ. په دې وجه نبی کريم ﷺ هم بدله وانخسته او د خپل قسم کفاره ئې ادا کړه. [مظهری د بغوی څخه][2]

د فتح په موقع کله چې ټول مشرکان پاتې او لاندې راغلل د نبی کريم ﷺ او صحابه کرامو ﷺ په قبضه کښې راغلی وو ، نبی کريم ﷺ هغه اراده پوره کولې شوه کومه ئې چې دغزوهٔ

---

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:١٠ص:٢٠١]و سنن الدار قطني رقم الحديث[٤٢٤٨]

[2]) تفسير المظهری تحت هذه الآية [ج:٥ص:٣٩٢] و دلائل النبوة للبيهقي رقم الحديث:[١١٢٩](باختصار)

احد په موقع کړې وه ، خو نبی کریم ﷺ د فتح مکه په وخت ددې آيتونو مطابق دصبر عمل ئې اختيار کړو ، هم دغه وجه ده چې ځينې روايتونو کښې راغلي دي چې دا آيتونه د فتح مکه په موقع نازل شوي وو. او دا هم څه لرې خبره نه ده چې دا آيتونه دوباره نازل شوي وي ، په اول ځل د احد غزا په موقع او په دويم ځل د فتح مكه په موقع نازل شوي وي. [كما حكاه المظهري عن ابن الحصار](١)

**مسئله** :: ددې آيت مبارك تر مخه په بدلې اخستو کښې د مساوات قانون خودلې شوې دې ، څکه فقهاء کرامو فرمائيلي دي چې څوك چالره اووژنی دهغې په بدل کښې به قاتل قتل کولې شي . د زخم بدل به هم په هغه هومره زخمي کولو سره اخستې شي . څوك چې دچا د لاسونو پښو پرېکولو څخه روستو بيا قتل کړې شي نو د مقتول ولی ته به دا حق ورکولې شي چې هغه دې رومبې د قاتل لاسونه ، پښې پرېکړي او بيا دې قتل کړي ، البته که چا په کاڼړي ويشتو سره څوك مړی کړو يا په غشو ويشتو سره ئې مړ کړو نو په دې کښې د قتل صحيح اندازه لګول نشي کيدې ، چې په څومره ګذارونو مړ شوېدې او مقتول ته به څومره تکليف رسيدلې وي . په دې کښې د حقيقي مساوات هيڅ پيمانه نشته څکه به صرف په توره وژلې شي .[جصاص](٢)

**مسئله** :: آيت مبارك اګر چې د بدني تکليفونو او دبدنی نقصان رسولو په باره کښې نازل شوې دې خو الفاظ ئې عام دي چې مالی نقصان رسول هم په کښې داخل دی ، څکه فقهاء کرامو فرمائيلي دي چې د غصب کړی مال بدل کښې دغاصب څخه دخپل حق په مطابق مال غصب کولې شي . د غلا کړی مال په بدل کښې د غل څخه هم په هغه اندازه کښې د هغې جنس مال غلا کولې شي ، لکه د نغدو روپو په بدل کښې د هغه هومره شمير نغدې روپۍ د غصب يا غلا په صورت کښې ترې اخستې شي ، دغلې جامې په بدل کښې هغه هومره غله او جامه اخستلې شي خود يوجنس په بدل کښې بل جنس نشي اخستې ، او ځينې فقهاء کرامو مطلقا اجازت ورکړې دې که هغه د حق د جنس ځينې وي يا د بل جنس ځينې وي . ددې مسئلې څه تفصيل قرطبی په خپل تفسير کښې ليکلې دې ،(٣) او تفصيلي بحث د فقهې په کتابونو کښې بيان شوې دې .

په آيت مبارك ﴿وَإِنْ عَاقَبْتُمْ﴾ کښې عام قانون بيان شوې وو چې په کښې ټولو مسلمانانو لره بدله اخستل جائز کړې شوې ده خو صبر کول زيات غوره خودلې شوی دی . په وروستي آيت مبارك کښې نبی کريم ﷺ ته په خصوصی خطاب کولو سره د صبر خودنه او مينه ورکړې شوې ده ، ولې چې د دوئ ﷺ لوئې شان او لوړې درجې سره د نورو په نسبت هم دغسې زيات مناسب دی ، نو څکه فرمائی چې ﴿وَاصْبِرْ وَمَا صَبْرُكَ إِلَّا بِاللَّهِ﴾ [تاسو بالکل د بدل اخستلو اراده مه کوئی هم صبر اختيار کړئ] او ورسره ئې دا هم اوخودل چې ستاسو صبر به هم د الله ﷻ په مدد سره وي ، يعنی صبر کول به تاسو لره آسان کړې شي.

---

(١) تفسير المظهري[ج:٥ص:٣٩٣]
(٢) أحكام القرآن للجصاص باب سورة النحل[ج: ٧ص:٣٠١]
(٣) تفصيل د پاره اوګورئ : تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:١٠ص:٢٠١]

آخري آيت مبارك كښې د الله ﷻ د مدد حاصلولو دا عامه قاعده اوخودلې شوه چې:

﴿إِنَّ اللَّهَ مَعَ الَّذِينَ اتَّقَوْا وَّالَّذِينَ هُمْ مُّحْسِنُونَ﴾ ددې حاصل دادې چې د الله ﷻ مدد دهغې خلقو سره وي چې دوه صفات لري، يو تقوى او بل احسان، د تقوى حاصل نيك عمل كول او د احسان مطلب دلته د الله ﷻ مخلوق سره ښه سلوك كول دي. يعني څوك چې د شريعت تابعدار د نيكو عملونو پابند وي او نورو سره د احسان معامله كوي، الله ﷻ هغوئ سره دې او ښكاره خبره ده چې چاته د الله ﷻ ملګرتيا حاصل وي، هغوئ ته څوك زيان رسولې شي.

**الحمد لله د سورة نحل تفسير په ۲۵ شعبان كال ۱۳۸۹ هجري هم د هفتې په شپه پوره شو.**

ولله الحمد اولا واخرا واظاهرا وباطنا

**[ سورة نحل تمام شد]**

| اياتونه | سورة بني اسرآئيل مكية وهي مائة واحدى عشر اٰية واثنا عشر ركوعات | ركوع ګاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ | |
| ۱۱۱ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان ډيات رحم كونكي دې | ۱۲ |

| سُبْحَانَ | الَّذِي | أَسْرَىٰ | بِعَبْدِهِ | لَيْلًا | مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ |
|---|---|---|---|---|---|
| پاك دې | هغه ذات | چې بوتلې | بنده خپل | يوه شپه شپه كښې | دمسجدحرام نه |

الله پاك ﷻ هغه ذات دې چې خپل بنده [محمد ﷺ] (۱) ئې شپه په شپه دمسجد حرام [خانه كعبې] نه

---

(۱) دَ بواوړه روايت ذكر:- په يوبل حديث كښې دى رسول الله ﷺ چه په كومه شپه دَ مسجدحرام نه دَ بيت المقدس جمات ته اورسولې شو په هغه شپه حضور ﷺ دَ زمزم اومقام ابراهيم ﷺ په مينځ كښې وو. چه حضرت جبرائيل ﷺ دَ ښى طرف نه او ميكائيل ﷺ دَ ګس طرف نه والوزولو. تردې چه حضور ﷺ دَ آسمان اوچتوالي ته اورسيدلو. واپس كيدلو سره هغوى دا تسبيحات سره دَ نورو تسبيحاتو واوريدل. دا روايت هم دَ دې سورت دَ آيت ﴿تُسَبِّحُ لَهُ السَّمٰوٰتُ السَّبْعُ﴾ (۱۷/بنى اسرائيل: ۴۴) په تفسيركښې به راځي. مسند كښې دى چه امير المؤمنين حضرت عمر بن خطاب ﷺ په جابيه كښې وو دَ بيت المقدس دَ فتح ذكر اوشو. هغوى دَ حضرت كعب ﷺ نه تپوس اوكړو ستا په خيال كښې ماله هلته په كوم ځاى مونځ كول پكاردي. هغه اوونيل چه كه مانه تپوس كوې نو زه خو وايم چه تاسو دَ صخره نه شاته مونځ اوكړئ دې دَ پاره چه ټول بيت المقدس ستاسو په وړاندې راشي. هغه اوفرمائيل چه تا هم هغه دَ يهوديت مشابهت اوكړو زه به هغه ځاى مونځ كوم چرته چه رسول الله ﷺ كړې دې. نو هغه وړاندې شو او دَ قبله طرف ته ئى مونځ اوكړو پس دَ مونځ اداكولونه هغوى دَ صخره سره خواوشانه ئى ټول خس اوخشاك وغيره راغونډكړل خپل څادركښې واچول او بهر ئى غورزول شروع كړه او نورو خلقو هم هغوى سره امداد اوكړو. (احمد: ۳۸/۱) نو هغوى خونه دَ صخره داسې تعظيم اوكړو لكه چه يهوديانوبه كولو چه مونځ به ئى هم دَ هغې نه شاته كولو اودا به ئى قبله هم ګڼړله. حضرت كعب ﷺ هم دَ اسلام نه وړاندې يهودى وو په دې وجه هغوى دا رائې پيش كړې وه كومه چه دَ مسلمانانو خليفه ردكړې وه اونه هغوى دَ نصرانيانو په شان دَ صخره بې عزتي اوكړه......

[باقي په راروانه صفحه...

....باقي حاشيه د تيرمخ]... چه هغوی صخره بالکل دَ ګند ګريل غورزولو ځایْ جوړ کړې وو. بلکه هغوی پخپله دَ دې ځایْ نه ډکی وغيره اوچت کړل وئی غورزول. دا بالکل دهغه حديث په شان دې چه مه په قبرونو باندې کينئی اومه دَ دې طرف ته مونځ کوئی. (صحیح مسلم:۹۷۲، ترمذی:۱۰۵۱) دَ ابوهريره ﷺ نه دَ معراج متعلق يو اوږد مګر غريب روايت هم نقل دې. په هغې کښې دی چه حضرت جبرائيل ﷺ او حضرت ميکائيل ﷺ حضور ﷺ له راغلل. جبرائيل ﷺ ميکائيل ﷺ ته اووئيل چه ماله دَ زمزم دَ اوبو پيليټ ډك راوړه چه زه دَ ده زړه پاك کړم اودَ ده سينه صفا کولاوکړم. بيائی دَ حضور ﷺ خيټه اوشلوله او هغه ئی درې ځل اووينځلو دريواړه ځل ئی دَ ميکائيل ﷺ دَ راوړلې شوو اوبوسره اووينځلو اودَ حضور ﷺ سينه ئی کولاوکړه. ټول فضوليات ئی ترې لرې کړل دَ علم حلم ايمان او يقين نه ئی ډکه کړه. اسلام نه ئې ډکه کړه او دَ حضور ﷺ دَ دواړو اوږو په مينځ کښې ئې دَ نبوت مهر اولګولو او په يو اس باندې کينولو حضرت جبرائيل ﷺ هغه بوتلو. وئی کتل چه يوقوم دې هغوی فصل ريبی اوديخوا لوئيږی. دَ حضرت جبرائيل ﷺ نه حضور ﷺ تپوس اوکړو دا څوك خلق دی؟ وئی فرمائيل چه دا دَ الله تعالى دَ لارې مجاهدين دی دَ چا نيکئی چه دَ اووه اووه سوو پورې زياتيږی اوچه څه خرچ کړی دَ هغې بدله ورته ملاويږی. الله تعالى بهترين رزق ورکونکې دې.بيادَحضور ﷺ تيريدل په يوداسې قوم باندې اوشو چه دَ هغوی سرونه په کاڼړو چقنړی کيدل (چختانيدل) اوهرځل به بياجوړيدل او بيابه چقنړی کيدل. دَ يوساعت به هغوی ته مهلت نه شو ورکولې. ماتپوس اوکړو دا کوم خلق دی نو جبرائيل ﷺ اووئيل دا هغه خلق دی چه په فرض مونځونو کښې به ئی سرونه درانه کيدل. بياما څه خلق اوليدل چه دَ هغوی وړاندې روستوټکړې زوړند وې او دَ اوښانو او څناورو غوندې ازغنې دوزخې ونو کښې څرن کولواود دوزخ کاڼړی او سروټکې خوړلې. ماوئيل داڅنګه خلق دی؟وئی فرمائيل چه د خپل مال نه زکوة نه ورکونکی دی. الله تعالى په دوی باندې هيڅ ظلم نه وو کړې بلکه دوی په خپلو ځانونوباندې پخپله ظلم کړې وو. بياما څه داسې خلق اوليدل چه دَ هغوی مخې ته په کټونی کښې ښه صفا اوتازه غوښه پرته ده او بل طرف ته سخا مرداره غوښه پرته ده خودوی دَ دې ښې غوښې نه رامنع کړې شوی دی اوهغه بدبوداره سخا اوبې مزې غوښه خوری. ماتپوس اوکړو دا دَ کومې ګناه کونکی دی؟ اوفرمائيلې شو چه دا هغه سړی دی چه خپلې حلالې بيبيانې ئی پريخې وې او دَ حرامو ښځو سره به ئی شپه تيروله. او هغه ښځې دی چه خپل حلال خاوندان به ئی پريخودل او نورو سره به ئی شپې تيرولې. بيا حضور ﷺ اوليدل چه په لارکښې يولرګې دې چه هرِ يوه کپړا شلوی او هريوڅيز زخمی کوی. تپوس مې اوکړوداڅه دی؟ وئی فرمائيل دا ستاسو دَ امت دَ هغه خلقو مثال دې چه لارې رابندې کړې وی ناست وی.

بيائی دا آيت اولوستلو ﴿ وَلَا تَقْعُدُوْا بِكُلِّ صِرَاطٍ تُوْعِدُوْنَ ﴾ (۷/الاعراف:۸۶) يعنی په هره يوه لار باندې خلق ويروی اودَ الله تعالى دَ لارې نه بنديدلو دَ پاره مه کينئی. بيامې اوکتل چه يوسړې ډير لويْ ډيرې جمع کړې دې او اوچتولې نه شی خو بيا هم داډيرې نور هم زياتوی. تپوس مې اوکړوجبرائيل ﷺ دا څه دی؟ وئی فرمائيل دا ستا دَ امت هغه سړې دې چه په هغه باندې دَ خلقو حقونه وی او هغه اداکولې نه شی او نور هم په ځان بار کوی او امانتونه اخلی. بيا حضور ﷺ يوه ډله اوليدله چه دَ هغوی ژبې دَ اوسپنې په قينچوباندې پريکولې شی يوخوا کټ کيږِ بل خوا جوړيږی او هم په دې حال کښې برابر اخته دی. تپوس مې اوکړودا څوك دی؟ وی وئيل دا دَ فتنې وعظ کونکی او خطيبان دی. بيا مې اوکتل يو وړوکی سوری نه يو لويْ دروند غوايه راوځی بيا هغه واپس کيدل غواړی خو نه شې تلې تپوس مې اوکړو جبرائيل ﷺ دا څوك دې؟ وئی فرمائيل دا هغه سړې دې چه څه ډيره لويه خبره به ئی اوکړه نو پښيمانه خو به وو ولې واپس کيدې به نه شو. بيا هغوی يوې وادئی ته لاړل هلته ډيره مزيداره ښکلې يخه هوا زړه خوشحالونکی معطره خوشبوداره د راحت او سکون مبارك......[باقي په راروانه صفحه...

....باقي حاشيه د تيرمخ]... آوازونه مونږ واوريدل تپوس مې اوکړو دا څه دي؟ جبرائيل ﷺ وئيل دا جنت دې دا وائي ياربه ما سره خپله وعده پوره کړه زما بالاخانې به ريښمنې او مرغلرې وی سره زر سپين زرجامونه کټوری شات اوبه پئيی شراب وغيره وغيره نعمتونه به ډير زيات وی. ده ته جواب ورکولې شی چه هريومسلمان ښځې اوسړې چه په ما ايمان لری اوزما رسولان منی نيك عمل کوی نه ماسره څوك شريك ګڼړی اونه زما برابر څوك ګڼړی هغه ټول به تاکښې داخليږی. واوره دَ چا په زړه کښې چه زماويره ده هغه دَ هرې يوې ويرې نه محفوظ دې څوك چه مانه سوال کوی هغه محروم کيږی نه څوك چه ماته قرض راکوی زه هغه ته بدله ورکوم څوك چه په ماتوکل کوی زه دَ هغه کفايت کوم. زه رښتونې معبوديم زما نه بغيرېل معبود نشته. زما وعدې خلاف نه وی. مؤمنان خلاصې بياموندونکی دی الله دَ برکت خاونددې چه دَ ټولونه بهترخالق دې دې اوريدو سره جنت اووئيل بس زه خوشحاله شوم. بيا هغوی بلې وادئی ته اورسيدل چرته چه ډير مکروه او ويرونکی آوازونه راتلل او سخته بدبوئي وه. حضور ﷺ د دې باره کښې هم دَ حضرت جبرائيل ﷺ نه تپوس اوکړو وئی فرمائيل دا دَ دوزخ آواز دې وائی ياربه ما سره خپله وعده پوره کړه او ماته هغه راکړه زما طوق اوزنځيرونه زما شغلې زما ګرمی ترخې اوبه وينې نوونه زمادَ عذاب او سزا سامان ډير زيات شوی دی زما ژوروالې ډير زيات دې . زما اور ډير تيزدې ماته هغه راکړه دَ کوم چه ما سره وعده شوې ده. الله تعالی اوفرمائيل هرمشرك کافر خبيث منکر بې ايمانه سړی او ښځې ستادَ پاره دی. دې اوريدو سره دوزخ خپله رضامندی ښکاره کړه. هغوی بيالاړل او بيت المقدس ته اورسيدل او صخره سره ئې خپل اس اوتړلو دننه لاړو اوفرښتو سره ئې مونځ اداکړو. چه اوزګارشو نو وئې فرمائيل جبرائيل ﷺ دا تاسره څوك دی؟ وئيل محمد ﷺ دې. هغوی وئيل ته دَ ده طرف ته ليګلې شوې وې؟ ما وئيل او ټولو مرحبااووئيل چه بهترين رور اوډيرښه خليفه دې اوډير په ښه طريقه او عزت سره راغلې دې بيا د هغوی ملاقات دَ انبياء کرامو روحونو سره اوشو ټولو دَ خپل پروردګار ثنا بيان کړه. حضرت ابراهيم ﷺ اوفرمائيل چه دَ الله تعالی شکر دې چه زه ئې خپل خليل جوړکړم ماته ئې ډير لوئ ملك راکړو اوزه ئې فرمانبردار امام جوړکړم دَ چا چه اقتداء کولې شی هغه زه د اور نه بچ کړم اوهغه ئې زما دَ پاره يخوالې او سلامتی جوړه کړه. حضرت موسی ﷺ اوفرمائيل چه هم دَ الله تعالی مهربانی ده چه هغه ماسره خبرې اوکړې هغه زما دښمنان ال فرعون هلاك کړل. بنی اسرائيلو له زما سره نجات ورکړو زما په ډله کښې داسې کسان پيداکړل چه دَ حق هدايت کونکی او په حق سره انصاف کونکی وو. بيا حضرت داؤد ﷺ د الله تعالی ثناء خوانی شروع کړه الحمدالله الله تعالی ماته عظيم الشان ملك راکړو ماته ئې دَ زبور علم راکړو زما دَ پاره ئې اوسپنه نرمه کړه غرونه ئې مسخر کړل او مرغويه هم زما سره دَ الله تعالی تسبيح کولې ماته ئې حکمت او زوررور کلام راکړو. بيا سليمان ﷺ ثناخوانی شروع کړه الحمدلله الله تعالی هواګانې زما تابع کړې او شيطانان هم چه هغوی زما په حکم باندې لوئ لوئ محلونه نقشې لوښی وغيره جوړول اوهغه ماته دَ ځناورو په خبروباندې دَ پوهيدلو علم راکړو په هريوڅيز باندې ماته فضيلت راکړو. دَ انسانانو پيريانو مرغو لښکرې زما تابع کړې او په خپلو ډيرو زياتو مؤمنانونی ماته فضيلت راکړو. ماته ئې هغه بادشاهی راکړه چه زما نه پس بل چادَ پاره لائق نه ده اوهغه هم داسې چه په هغې کښې پاکوالې او پاکوالې وو اوهيڅ حساب نه وو. بيا حضرت عيسی ﷺ دَ الله تعالی تعريف بيانول شروع کړه چه هغه زه خپله کلمه جوړکړم اوزما مثال دَ حضرت آدم ﷺ په شان دې څوك ئې چه دَ خاورې نه جوړکړو او ورته ئې اووئيل چه شه نو بس شو. هغه ماته کتاب اوحکمت تورات او انجيل اوخودلو. ما به دَ خاورې مرغئيع جوړوله او بيابه مې په هغې کښې پوکې وهلو نو هغه به دَ الله تعالی په حکم سره ژوندئی مرغئی جوړه شوه......[باقي په راروانه صفحه...

.....باقي حاشيه د تيرمخ]... وابه الوتله. ما به پيدائشي ړانده او دَ جذام بيماران دَ الله تعالى په حكم سره تيك كول مړي به د الله تعالى په حكم سره ژوندي كيدل. زه هغه اوچت كړم زه هغه پاك صفا كړم زه اوزما مورنى دَ شيطان نه بچ كړل. په مونږ باندې دَ شيطان هيڅ دخل نه وو. اوس جناب رسول آخرزمانﷺ اوفرمائيل تاسوټولوخودَ الله تعالى تعريفونه بيان كړل اوس زه بيانوم. هم دَ هغه الله تعالى دَ پاره حمداوثناء ده چاچه زه دَ ټول عالم دَ پاره رحمة للعالمين جوړكړم اودَ ټول مخلوق دَ ويرولو او هغوى ته زيرې وركونكې جوړكړم ونى ليګلم. په مابانديې قرآن كريم نازل كړو په كوم كښې چه دَ هريو څيز بيان دې. زما امت ئى دَ ټولونورو امتونو نه غوره كړو چه كوم دَ نورو دَ نيكود پاره جوړكړې وو هغه ئى بهترين امت اوګرځولو هم دوى دَ اول اوآخر امت جوړكړو. زما سينه كولاوكړې شوه زما بوج لرې كړې شو زما ذكر ئى اوچت كړو زه ئى شروع كونكې او ختمونكې جوړكړم. حضرت ابراهيمؑ اوفرمائيل هم په دې وجوهاتو حضوراكرم حضرت محمدﷺ تاسو ټولونه غوره دې.(امام ابوجعفررازى رحمه الله فرمائي) دَ شروع كونكې خو هغوى دى چه دَ قيامت په ورځ به شفاعت هم دَ هغوى نه شروع كيږى. بيا دَ حضورﷺ په وړاندې درې پټ كړې شوى لوښى پيش كړې شو دَ اوبودَ لوښى نه ئى لږې شان اوڅكلې واپس ئى كړو بيائې دَ پئيو لوښې واخستو او په ډكه خيټه ئى پئيى اوڅكل. بيادَ شرابو لوښې راوړلې شو نو حضورﷺ دَ هغې نه انكار اوكړو چه زما خيټه مړه شوې ده. حضرت جبرائيلؑ اوفرمائيل دا ستا په امت اندې حرام كړې شوى دې اوكه تاسو دا څكلې وې نو ستاسو په امت كښې به ستاسو تابعدار ډير كم خلق وو. بيائى هغوى دَ آسمان طرف ته اوچت كړې شو دروازه ئى كولاوول غوښتل نوتپوس اوشودا څوك دې؟ جبرائيلؑ وئيل محمدﷺ دې. تپوس اوشو چه دَ ده طرف ته ليګلې شوې وې؟وئيل او. هغوى وئيل الله تعالى دې دا رور او خليفه خوشحاله اوساتى دا ډير ښه رور او ډير ښه خليفه دې. هم هغه وخت دروازه كولاوكړې شوه حضورﷺ اوكتل يوسړې دې چه په پوره پيداكيدو باندې دَ عامو خلقو په شان دَ هغه پيداكيدلوكښې هيڅ نقصان نشته. دَ هغه ښى طرف ته يوه دروازه ده چه دَ هغې نه خوشبويانې راځى او ګس طرف ته يوه دروازه ده چه دَ هغې نه خبيثې هواګانې راځي. دَ ښى طرف دروازې ته چه ګورى نو خاندى اوخوشحاليږى دَ ګس طرف دروازې ته چه اوګورى نو ژاړى او خفه كيږى. ماوئيل جبرائيلؑ دا شيخ دَ پوره پيداكيدو والا څوك دې؟ دَ چا په پيداكيدوكښې چه هيڅ كمې نشته اودا دواړه دروازې څنګه دى؟ جواب ملاو شو دا ستا پلار حضرت آدمؑ دې. ښى طرف ته دَ جنت دروازه ده جنتى اولاد ته ګورى خوشحاليږى او خاندى. ګس طرف ته دَدوزخ دروازه ده خپل دوزخى اولاد ته په كتو سره ژاړى او خفه كيږى. بيا دَ دويم آسمان طرف ته لاړو او دغه شان سوال جواب كولونه پس دروازه كولاوشوه. هلته هغوى دوه ځوانان اوليدل په تپوس كولو سره معلومه شوه چه داحضرت عيسىؑ بن مريم او حضرت يحيى بن زكرياؑ دې دادواړه په خپل مينځ كښې دَ ترور خامن دى. دغه شان دريم آسمان ته اورسيدو هلته حضرت يوسفؑ وو دَ چا چه په حسن كښې په نورو خلقو باندې هغه فضيلت وو كوم چه سپوږمئى ته په باقى ستورو باندې دې. بيا دغه شان څلورم آسمان ته اورسيدو هلته كښې ادريسؑ وو څوك چه الله تعالى اوچت مكان ته خيژولې دې. بيا هغوى پنځم آسمان ته هم دَ دغه سوال جواب نه پس اوختل يوصاحب ناست دې هغه سره چاپيره خلق ناست دى هغه سره خبرې كوى تپوس مې اوكړو دا څوك دې جواب ملاوشو حضرت هارونؑ دې په خپل قوم كښې دَ هرچا خوښ وو اودا خلق بنى اسرائيل دى. بيا دغه شان شپږم آسمان ته اورسيدو هلته حضرت موسىؑ ښكاره شو دَ حضورﷺ دَ هغه نه وړاندې وتلوسره هغه په ژړا شو نو تپوس كولو باندې سبب معلوم شو چه بنى اسرائيلو زما متعلق دا ګڼړل چه دَ آدمؑ په ټول اولاد كښې دَ ټولونه بزرګ زه يم خودې دې زما خليفه چه په دنياكښې دې او زه په آخرت كښې يم. خيركه صرف دا وې نو بيا هم څه خبره نه وه خوهريونبى سره....[باقى په راروانه صفحه...

.....باقي حاشيه د تيرمخ]...

دَ هغه امت دې بيا هغوی دغه شان اووم آسمان ته اورسيدل هلته ئې يوصاحب اوليدلو چه دَ هغه په ږيره کښې څه سپين ويښته وو هغه دَ جنت په دروازه کښې کرسئ لګولې ناست وو هغه سره څه نور خلق هم وو. دَبعضو مخونه ډير روښانه وو اوبعضې لږشان کم روښانه وو بلکه څه بل رنګې هم وو. دا خلق پاسيدل او په نهرکښې غوپه اووهله په دې سره دَ هغوی رنګونه لږشان ښکلې شو. بيائې په بل نهرکښې غسل اوکړو نو لږ نور هم ښکلې شو بيائې چه دريم غسل اوکړو نو بالکل روښانه سپين مخونه ئې شو. راغله نوروسره يوځائ شو اوډ هغوی په شان شو. دَ حضور ﷺ په سوال کولو باندې حضرت جبرائيل ﷺ اووئيل دا ستا پلار حضرت ابراهيم ﷺ دې په مخ دَ زمکې باندې سپين ويښته د ټولونه وړاندې صرف دَ ده وو. دا دَ سپين مخونووالا هغه ايماندار خلق دی کوم چه دَ بدونه بالکل بچ شوې وو اوډ چا په رنګونو کښې چه لږ شان فرق وو دا هغه خلق دی چه دَ نيکو سره ترې لږې شان بدئي هم شوې وې د هغوی په توبه باندې الله تعالی مهربان شو. اول نهر دَ الله تعالی رحمت دې دويم دَ الله تعالی نعمت دې او دريم دَ شراب طهور نهر دې کوم چه دَ جنتيانو خاص شراب دی. بيا حضور ﷺ سدرة المنتهى ته اورسيدو نو هغه ته اووئيلې شو چه ستا په سنتوباندې څوك پابندی کوي هغه دلته رارسولې شی دَ دې دَ جرړونه دَ پاکو صفا اوبو صفاپښيو خوندناك او بې نشې شرابو اوډ صفاشاتو نهرونه روان وو. دَ دې ونې دَ سورې لاندې که يوسور اويا کاله پورې هم روان وی نوبيا هم دَ دې سورې نه ختميږی. د دې يوه يوه پاڼړه دومره لويه ده چه يوپوامت به پټ کړی. دَ الله تعالی عزوجل نور دا د هرطرف ته پټه کړې ده اوډ مرغوپه شان شکلونو فرښتو دا پټه کړې وه کومې چه دَ الله تعالی په محبت کښې هلته وې. هغه وخت الله تعالی جل شانه حضور ﷺ سره خبرې اوکړې وئې فرمائيل غواړه څه غواړې؟ حضور ﷺ عرض اوکړو چه ياالله تا حضرت ابراهيم ﷺ خپل خليل جوړکړو هغه ته دې لوئ ملك ورکړو، موسی ﷺ سره تا خبرې اوکړې، داؤد ﷺ له دې عظيم الشان بادشاهی ورکړه اوډ هغه د پاره دې اوسپنه نرمه کړه، سليمان ﷺ ته هم تا بادشاهی ورکړه پيريان انسانان شيطانان او هواګانې دې دهغه تابع کړې اوهغه بادشاهی دې ورکړه چه دَ هغه نه بغيرېل چاله لائقه نه ده. عيسی ﷺ ته دې تورات او انجيل اوخودلو ستا په حکم باندې ړانده او شل ښه کونکې مړی ژوندی کول هغه او دَ هغه مور دې دَ شيطان نه بچ کړل دَ هغه په دوی باندې هيڅ دخل نه وو. زما په نسبت باندې فرمان اوکړه. رب العالمين عزوجل شانه اوفرمائيل ته زما خليل ئې په تورات کښې ماتاته دَ خليل الرحمن لقب درکړې دې ته مې د ټولوخلقو طرف ته بشير او نذير جوړکړې ليګلې ئې. ستاسينه مې کولاوکړې ده ستابوج مې کوزکړې دې ستاذکر مې اوچت کړې دې چرته چه زما ذکر وی هلته به ستاهم ذکر وی ستا امت مې د ټولو امتونونه بهتر کړې دې. چه د خلقو دَ پاره راغوښتې شی ستا امت ما بهترين امت جوړکړې دې ستا هم دا امت مې اولين او آخرين کړې دې دَ هغوی خطبه نه جائزکيږی ترکومې چه هغوی ستاد بنده کيدو اورسول کيدو ګواهی ورنه کړې. ما ستا په امت کښې داسې خلق پيدا کړی دې چه د هغوی په زړونوکښې دَ هغوی کتاب دې. ته مې دَ پيدا کيدو په رو سره دَ ټولونه اول پيداکړې اوډ بعثت په روسره دَ ټولو نه آخر. اوډ فيصله په روسره هم دَ ټولونه اول تاته ما داسې اووه آياتونه درکړی دی چه هغه باربار وئيلې شی چه تانه وړاندې يونبی ته هم نه دی ورکړې شوی. تاته ما دَخپل عرش لاندې دَ سورت بقره دَ خاتمه آياتونه درکړل چه تانه وړاندې يونبی ته هم نه دی ورکړې شوی. ماتاته کوثر درکړې او ما تاته دَ اسلام اته حصې درکړی دی، اسلام هجرت جهاد مونځ صدقه د رمضان روژې دَ نيکئ حکم دَ بدئي نه منع کول اوما ته شروع کونکې او ختم کونکې جوړکړې. نو حضور ﷺ اوفرمائيل ماته زما رب دَ شپږو خبرو فضيلت راکړې. دَ کلام شروع اوډ هغې ختميدل جامع خبرې راکړی دَ ټولوخلقو طرف ته زيرې ورکونکې اوخبرونکې جوړول راليګل.....[باقي په راروانه صفحه...

| لِنُرِيَهُ | حَوْلَهُ | الَّذِي بٰرَكْنَا | إِلَى الْمَسْجِدِ الْأَقْصَا |
|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې موږ ه اوښايو هغه ته | چارچاپيره علاقې ته يې | هغه چې برکت ورکړې دې موږ | مسجد اقصی ته |
| مسجد اقصى [بيت المقدس] ته بوتلو چې دهغې ګير چاپيره علاقه له موږ برکتونه ورکړی دی | | | |

| الْبَصِيرُ ① | السَّمِيعُ | إِنَّهُ هُوَ | مِنْ اٰيٰتِنَا |
|---|---|---|---|
| لیدونکې دې | اورېدونکې | بیشکه هم هغه | څه نښې زموږه |
| چې موږ دهٔ ته خپلې نښې اوښايو بېشکه الله ﷻ اورېدونکې اولیدونکې دې | | | |

## آسان ترجمه قرآن

**پاک دي هغه ذات چا چه خپل بنده د شپې شپې د مسجد حرام نه مسجد اقصى ته بوتلو چه د هغې ګیرچاپیره موږ برکتونه نازل کړي دي، چه موږ هغه ته خپلې بعض نښې اوښايو . بیشکه هغه هره خبره اوریدونکې، او په هر څیز باندې پوهه ذات دې.**

## خلاصه تفسير

﴿سُبْحٰنَ الَّذِيْٓ اَسْرٰى بِعَبْدِهٖ﴾ [هغه ذات پاك دې كوم چه خپل بنده ] محمد ﷺ ﴿لَيْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ [ لره ئې دشپې په وخت كښې مسجدحرام ] يعنى كعبې دمسجد [ نه ﴿اِلَى الْمَسْجِدِ الْاَقْصَا الَّذِيْ﴾ مسجداقصى ]يعنى بيت المقدس پورې دكوم خواؤ شا[چه دشام ملك دې] ﴿بٰرَكْنَا حَوْلَهٗ﴾موږه ديني اودنيوي بركتونه اېښودی دی ديني بركت دادې چه هلته ډيرپيغمبران دفن دی اودنيوی بركت دادی چه هلته باغونه اونهرونه چينې اوپيداوار ډير زيات دې غرض دغه مسجداقصى پورې په عجيبه طور سره موددې دپاره بوتلو ﴿لِنُرِيَهٗ مِنْ اٰيٰتِنَا﴾ [چه موږ ده ته دخپل قدرت څه عجائبات وښايو] چه په دې كښې ځنې خو په خپله ددغه ځاۓ متعلق دی مثلا دومره لوې مسافت په دومره لږ وخت كښې قطع كول اودټولو انبياؤ سره ملاقات كول اوددوی خبرې اورېدل وغيره اوځنې دورانډې سره تعلق لرى مثلا اسمانونوته تلل اودهغه ځاۓ عجائبات ليدل﴿اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ﴾ [بيشكه الله تعالى لوې اورېدونكې ] لوې ليدونكې دې چونكه دنبي كريم ﷺ خبرې ئې اورېدې اوحالات ئې ورله ليدل ددې په مناسبت ئې ده ته داخاص امتياز اوعزت وركړو اودخپل خاص نزديكت هغه مقام ئې وركړو كوم چه هيچاته نه دې ملاؤ شوې

....باقي حاشيه د تيرمخ]... زما دښمنان به زما نه دَ يوې مياشتې په فاصله وی دَ هغوی په زړه کښې زما رعب واچولو زما دَ پاره غنیمتونه حلال کړل چه زما نه اول دَ چا دَ پاره هم حلال نه وو. زما دَ پاره ئې ټوله زمکه جمات او اودس جوړکړو بیا په هغوی باندې دَ پنځوسو مونځونو فرض کیدو اود حضرت موسی علیه السلام په مشوره سره دَ کمی غوښتو او په آخره کښې دَ پنځو پاتې کیدو ذکر دې. لکه چه دَ دې نه وړاندې تیرشوی دی نو پنځه پاتې شو او ثواب دَ پنځوسو. کوم سره چه هغوی ډیر خوشحاله شو دَ تلو په وخت کښې حضرت موسی علیه السلام ډیر سخت اودَ راتلو په وخت کښې ډیر نرم اودَ ټولونه بهتر.

﴿وَآتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ﴾ [اوموږ موسی ] ﷺ [ته کتاب يعنی ] تورات [ورکړو ﴿وَجَعَلْنَاهُ هُدًى لِبَنِي إِسْرَائِيلَ﴾ او موږه] دهٔ[لره د] بنی [اسرائیلو دپاره] آله د[هدایت جوړکړو] ﴿أَلَّا تَتَّخِذُوا مِنْ دُونِي وَكِيلًا﴾ چه په دې کښې دنورو احکامو سره دادتوحیدعظیم الشان حکم هم وو چه [ تاسو زمانه سوا] بل [هیڅوك خپل کارساز مهٔ مقررویٔ ﴿ذُرِّيَّةَ مَنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ﴾ اے دهغوخلقو نسلونو کومولره چه موږ د نوح] ﷺ [سره] په کشتئ کښې [سواره کړی وو] موږ تاسوته خطاب کوو چه دې نعمت لره یادکړئ چه کهٔ موږ دوی په کشتئ کښې سواره کړی اوبچ کړی نهٔ وی نو نن به تاسو دهغوی نسل کوم ځایٔ ویٔ

## معارف او مسائل

﴿سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَى بِعَبْدِهِ لَيْلًا﴾ دې آیت مبارك کښې دمعراج واقعه بیان شویده چې زموږ د نبی اکرم ﷺ یو خصوصی عزت او امتیازی معجزه ده ، ﴿أَسْرَى﴾ لفظ د اسراء نه مشتق دې ، چې لغوی معنی ئې د شپې بوتلل دی ، دې نه پس د ﴿لَيْلًا﴾ په لفظ سره دا مطلب هم ښه په ډاګه کړې شو چې ﴿لَيْلًا﴾ لفظ ئې نکره هم راوړله په دې سره ئې دې ته هم اشاره اوکړه چې دا ټوله واقعه په ټوله شپه کښې نه بلکه د شپې په یوه حصه کښې سرته رسیدلې ده. مسجد حرام نه مسجد اقصی پورې سفر کول ، اسراء اوبللې شو کوم چې ددې آیت مبارك په نص قطعی سره ثابت دی . بیا د مسجد اقصی نه آسمانونو ته پورته سفر کول معراج بللې شی چې د سورة نجم په آیتونو کښې او په متواترو احادیثو مبارکو سره ثابت دی .

﴿بِعَبْدِهِ﴾دعزت او قدر ورکولو په دې مقام کښې د ﴿بِعَبْدِهِ﴾ لفظ راوړل خاص محبوبیت ته اشاره ده ، ولې چې الله ﷻ یو بنده ته خپل بنده اوفرمائی نو دې نه زیات عزت ورکول یو انسان ته بل نشی کیدې . حسن دهلوی رحمه الله څه ښه اوفرمائیل چې :

بنده حسن بصد زبان گفت که بندهٔ توام تو بزبان خود بگو بنده نواز کیستی

[ماحسن بنده خو په سوؤنو ځل اوئیل چې ستابنده یم خو تاسو پخپله هم اووایئ چې بندګی پالونکی د چا ئې ]

ددې مثال داسې دې لکه یو بل آیت مبارك کښې چې الله ﷻ د خپلو بندګانو د عزت زیاتولو دپاره فرمائی چې :

﴿وَعِبَادُ الرَّحْمَٰنِ الَّذِينَ الخ﴾(۱) دې نه دا هم معلومه شوه چې دانسان د ټولو نه لوئې کمال دادې چې هغه د الله ﷻ کامل بنده جوړ شی ، څکه یې د خصوصی عزت ورکولو په موقعه د دوئ ﷺ د ډیرو کاملو صفتونو څینې ور دپاره د عبدیت صفت غوره کړو. او یوه بله فائده په کښې دا هم مقصود ده چې په دې حیران کن سفر کښې چې اول نه اخره پورې خالص د عادت نه خلاف د معجزې دې د دوئ ﷺ د خدایئ ګمان راولاړ نشی ، چې څنګه د عیسی ﷺ آسمان ته د خیژولو نه عیسایانو ته د هغوئ ﷺ د خدایئ ګمان راولاړشوې دې او سخت تیروتلی دی ، په دې بنا نبی اکرم ﷺ ته ﴿بِعَبْدِهِ﴾ فرمائیلو سره دا څرګندول دی چې سره د ټولو کاملو صفتونو دوئ بنده دی ، خدائ نه دی .

(۱) ترجمه:- او د رحمن بندیګان هغه دی چې په زمکه عاجزئ سره قدم ایږدی.

**دمعراج په جسماني کيدو باندې د قرآن عظيم الشان او سنت دليلونه شته او اجماع هم پرې ده.** د قران عظيم الشان او متواترو احاديثو نه ثابته ده چې اسراء او دمعراج ټول سفر صرف روحاني نه وو بلکه جسماني وو څنګه چې عام انسان سفر کوي. نو دلته په اولنی ټکی ﴿سُبۡحَٰنَ﴾ کښې دې ته اشاره داسې موجوده ده چې ﴿سُبۡحَٰنَ﴾ سره تعجب ښکاره کړې شوې دې او تعجب په يو عظيم الشان او خلاف عادت څيز باندې کولې شي. که دا روحاني سفر وې نو د تعجب هيڅ خبره په کښې نه ځکه په خوب کښې خو هر څوك آسمان ته خپل تلل ليدلې شي، په هوا کښې الوتې شي او نور داسې کارونه کولې شی چې په ويښه کول ئې نشی کيدې.

دوېمه اشاره په لفظ د عبد کښې ده ولې چې عبد يواځې روح ته نه بلکه روح او جسم ته وئيلې شی، دې نه علاوه دريمه خبره په کښې داده چې کله نبی اکرم ﷺ ام هانی رضي الله عنها ته دمعراج واقعه بيان کړه نو هغوئ رضي الله عنها نبی اکرم ﷺ ته دا مشوره ورکړه چې بل چاته دې خبره څکه نه کوی، چې خلق به ئې دروغ اوګڼړی.

که دا واقعه د خوب وې نو دې ته د دروغو نسبت کولو هيڅ مطلب نه راوځی، بيا کله چې نبی اکرم ﷺ خلقوته دا واقعه ښکاره کړه نو د مکې کافرانو دروغ اوګڼړل او خنداګانې ئې وريورې شروع کړې. تر دې چې څينې نوی مسلمانان شوی خو دوباره مرتدان شو.

که دا معامله د خوب وې نو ددغې خبرو راپيښيدل څنګه کيدې شو؟(١) او دا خبره دې سره بې سمونه نه ده چې د واقعې څخه وړاندې روستو د نبی اکرم ﷺ روحانی معراج د خوب په شکل کښې هم شوې وی.

د جمهورود امت په نزد د قرآن عظيم الشان په آيت مبارك ﴿وَمَا جَعَلۡنَا ٱلرُّءۡيَا ٱلَّتِيٓ أَرَيۡنَٰكَ﴾ (٢)، کښې د رؤيا نه مراد په سترګو ليدل دی خو د هغې نه تعبير په رؤيا لفظ سره کول دا مطلب لری چې داګويا کښې خوب ليدل دی ولې چې په عادت کښې داد ويښې خبره نشی کيدې که بيا هم دغلته رؤيا د خوب ليدلو په معنی واخستې شی نو دا هم څه لرې خبره نه ده چې جسمانی معراج نه علاوه ددې وړاندې يا روستو، روحاني معراج د خوب په ډول هم شوې وی څنګه چې عبدالله بن عباس رضي الله عنه او عائشه صديقه رضي الله عنها نه منقول دی خو دا ضروری نه ده چې ګنی

جسمانی معراج دې د سره نه وی شوې.

تفسير قرطبی رحمه الله کښې راغلی دی چې د اسراء احاديث متواتر دی او نقاش په دې باره کښې د شلو صحابه کرامو رضي الله عنهم روايتونو نه نقل کړی دی او قاضی عياض رحمه الله په شفاء کښې نور هم زيات تفصيل ورکړې دې. [قرطبی](٣)

او امام ابن کثير رحمه الله پخپل تفسير کښې دغه ټول روايتونه، پوره جرح، او تعديل سره نقل کړی دی، بيا دهغه پنځه ويشتو صحابه کرامو رضي الله عنهم نومونه ئې بيان کړی دی کومو نه

---

١) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:١٠ص:٢٠٨، ٢٠٩]

٢) ددې پوره آيت ترجمه داده:- او مونږ چې تاته کومه تماشه خودلې وه او چې دکومې ونې په قرآن پاك کښې غندنه يعنی مذمت شوې دې مونږ دا دواړه څيزونه ددې خلقو دپاره د ګمراهئ سبب اوګرځول او مونږ دوئ ويروؤ خو دوئ په سرکشئ کښې نور هم زياتيږی.

٣) تفسير القرطبي [ ج:١٠ص:٢٠٨، ٢٠٩]

چې دغه روایتونه منقول دی. ددغې صحابه کرامو رضي الله عنهم نومونه دادي: عمر فاروق بن الخطاب رضي الله عنه، علي المرتضى رضي الله عنه، ابن مسعود رضي الله عنه، ابوذر غفاري رضي الله عنه، مالك بن صعصعه رضي الله عنه، ابوهريره رضي الله عنه، ابوسعيد رضي الله عنه، ابن عباس رضي الله عنه، شداد بن اوس رضي الله عنه، ابی بن کعب رضي الله عنه، عبدالرحمان بن قرظ رضي الله عنه، ابوحیه رضي الله عنه، ابو لیلی رضي الله عنه، عبدالله بن جندب رضي الله عنه، حذیفه بن الیمان رضي الله عنه، بریده رضي الله عنه، ابو ایوب انصاری رضي الله عنه، ابو امامه رضي الله عنه، سمره بن جندب رضي الله عنه، ابوالحمراء رضي الله عنه، صهیب الرومی رضي الله عنه، ام هانی رضي الله عنها، عائشه صدیقه رضي الله عنها، اسماء بنت ابی بکر رضي الله عنها، وروسته ابن کثیر فرمائیلي دي چې:

﴿فحديث الاسراء اجمع عليه المسلمون واعرض عنه الزنادقة والملحدون﴾ [ابن کثیر].(۱)[د اسراء په واقعه باندې د ټولو مسلمانانو اجماع ده، صرف ملحدان او زنديقان دا نه مني]

## د امام ابن کثیر رحمه الله علیه په روایت د معراج مختصر واقعه

امام ابن کثیر رحمه الله علیه پخپل تفسیر کښې ددې آیت مبارك د تفسیر او ورسره د ټولو احادیثو د تفصیل بیانولو نه پس فرمائیلي دي چې حق خبره داده چې نبی اکرم ﷺ د اسراء سفر په بیدارئ کښې کړې دې. خوب کښې ئې نه دې کړې، د مکې مکرمې نه تر بیت المقدس پورې دا سفر په براق شوې دې. کله چې نبی اکرم ﷺ د بیت المقدس دروازې ته اورسیدل نو براق ئې دروازې سره نزدې اوتړلو او پخپله بیت المقدس ته داخل شو او دهغې قبلې طرفته ئې دوه رکعته تحیة المسجد ادا کړل، بیا داسې یو اندرپایه یعنی پورئ [ځینه] راوړئی شوه چې دلاندې نه پورته ختلو دپاره په کښې درجې شوې وې. دهغې په ذریعه نبی اکرم ﷺ پورته آسمان ته تشریف یوړو. ددې نه پس ئې باقي آسمانونو ته تشریف یوړو دهر آسمان فرښتو د نبی اکرم ﷺ په ورتلو باندې د نبی اکرم ﷺ استقبال اوکړو او په هر آسمان کښې ئې پیغمبرانو علیهم السلام سره ملاقات اوشو چې مقام ئې په یو تاکلی آسمان کښې دې، مثلاً په شپږم آسمان کښې موسی علیه السلام، په اووم آسمان کښې ابراهیم علیه السلام سره ئې ملاقات اوشو. بیا نبی اکرم ﷺ د ټولو انبیاء علیهم السلام د مقاماتو نه مخ په وړاندې تشریف یوړلو او داسې یو میدان ته اورسیدل چرته چې د تقدیر د قلم دلیکلو آواز آوریدې شو او نبی اکرم ﷺ سدرة المنتهى هم اولیده چې هغې باندې د الله ﷻ په حکم سره د سرو زرو او د مختلفو رنګونو پتنګان ورپریوتل او هغې نه ګیر چاپیره د الله ﷻ فرښتې وې، دغلته ئې جبرائیل علیه السلام په خپل اصلي شکل کښې اولیدو چې شپږ سوه وزرونه ئې وو، هلته ئې شین رنګې رفرف اولیدو چې افق نه راچاپیره وو، رفرف، شین رنګې تکیه ګاه ده او شین رنګې دولئ ده، او نبی اکرم ﷺ البیت المعمور هم اولیدو چرته چې دکعبې بنا کوؤنکې ابراهیم علیه السلام تکیه لګوؤنکې دیوال ته ناست وو. البیت المعمور ته روزانه اویا زره فرښتې داخلیږی چې د دوباره داخلیدو نمبر ئې تر قیامته پورې نه راځی، نبی اکرم ﷺ دغلته جنت دوزخ په خپلو سترګو مبارکو سره اولیدل، هم دغه ځائې کښې ورته په امت باندې د روميې د پنځوسو مونځونو حکم ملاؤ شو. بیا په کښې کمې راوستې شو او صرف پنځه مونځونه پاتې شو، په دې لحاظ په ټولو عباداتونو کښې د مونځ د عبادت خاص اهمیت او فضیلت ثابتیږی.

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ۵ ص: ۴۵]

و پسئ کښې سره د ټولو پيغمبرانو ﷺ بيت المقدس ته راغلل لکه چې هغوئ ﷺ ورسره د رخصت کولو دپاره په جلب کښې راغلی وی . کله چې د مونځ وخت شو نو دغه ځائی کښې ټول پيغمبرانو سره مونځ اداکړو. دې کښې احتمال شته دې چې دا ددغې ورځې د صبا مونځ وی. امامت هم نبی اکرم ﷺ اوکړو. ابن کثير رحمه الله فرمائی چې ځینې حضرات دا واقعه آسمان ته د ختلو نه مخکښې ښائی خو دا داسې ښکاری چې دا واقعه آسمان ته د ختلو نه پس شوې وی . ولې چې منقول داسې دی چې د نبی اکرم ﷺ پيژندګلی جبرائيل ﷺ د ټولو پيغمبرانو ﷺ سره په آسمانونو کښې کړې وه . که امامت د مونځ ، آسمان ته د ختلو نه ړومبې وی نو دهغې نه پس په آسمانونو کښې د پيژندګلئ کولو څه ضرورت وو؟ بله دا چې اصلی مقصد ملاء اعلی ته تلل وو ، ړومبې د هغې پوره کول ضروری معلوميږی ، دهغې نه پس فارغ شو نو ټول پيغمبران ﷺ د رخصتولو دپاره ورسره دغې پورې جلب کښې راغلی وی ، دغه ځائې د جبرائيل ﷺ په اشارې سره د هغوئ ﷺ امام جوړ کړې شو او داشان په ټولو باندې ددوئ غوروالې اوسرداری ضباط کړې شو. [والله سبحانه وتعالی اعلم]

**د معراج باره کښې د يو غيرمسلم ګواهی ورکول** :: تفسير ابن کثير کښې راغلی دی چې حافظ ابو نعيم اصفهانی رحمه الله پخپل کتاب دلائل النبوة کښې د محمد بن عمر واقدی [۱] په سند سره په روايت د محمد بن کعب قرظی ، دا واقعه نقل کړې ده چې :

نبی اکرم ﷺ دروم بادشاه قيصر ته چې کله خپل خط مبارك دخپل ريبار او قاصد دحيه بن خليفه رضی الله عنه په ذريعه وراوليږلو، دحيه رضی الله عنه خط مبارك وررسولو او شاه روم ته ورسيدو او دهغه د پوره هوښتيارتيا تفصيلی واقعه ئې بيان کړه. کومه چې په صحيح بخاری شريف کښې او د احاديثو په کتابونو کښې موجود ده. هرکله چې هرقل دا خط تر لاسه کړو نو هغه د حالاتو معلومولو په غرض د عربو هغه خلق راؤبلل کوم چې د تجارت په غرض دغه ځائې ته تلی وو. په دې بنا ابوسفيان بن حرب اود هغه ملګری دهرقل په وړاندې حاضر کړې شو ، هرقل ترې څه تپوسونه اوکړل چې تفصيل ئې صحيح بخاری او مسلم شريف وغيره کښې راغلی دی . د ابو سفيان په زړه کښې راغلل چې څه داسې خبرې اوکړم چې هغې سره د نبی اکرم ﷺ سپکاوې اوشی خو پخپله وائی چې بيا مې سوچ اوکړو چې نه داسې نه کوم ، هسې نه چې زما د خلې نه داسې څه خبره اوځی هغې سره زه دروغژن اوبللې شم. او دې سره زه د بادشاه په نظر کښې سپك ښکاره شم. او زما ملګری ماته ټول عمر دپاره د دروغژنتی پيغور راکوی . البته دا خيال مې راغلو چې د معراج د واقعې په بيانولو سره بهٔ د نبی اکرم ﷺ دروغژنی پخپله هرقل ته معلومه شی .

هغه هرقل ته اووئيل چې يو واقعه درته بيانوم چې هغې نه به تاسو ته پخپله د نبی اکرم ﷺ رښتيا دروغ معلوم شی . بادشاه ورته دهغې دبيانولو دپاره اووئيل نو ابوسفيان شروع شو چې د پيغمبرئ دغه دعويدار وائی چې زه يوه شپه د مکې مکرمې نه اووتلم . او بيا هم په دغه شپه د صبا د پوره رڼرا کيدو نه مخکښې مکې مکرمې ته واپس شوم .

---

[۱] ځینې محدثينو واقدی ته په روايت حديث کښې ضعيف وئيلی دی . خو بيا هم ابن کثير رحمه الله غوندې محتاط محدث هم دده روايت خکه نقل کړې دې چې ددې معاملې تعلق د حلالو حرامو يا عقيدو سره نه دې بلکه يو تاريخی معامله ده چې دده روايت په کښې هم معتبر ګڼرلې شی . ۱۲ منه.

دغه وخت د بيت المقدس د ټولو څخه لوئي عالم ايلياء نزدې د هرقل سر غاړې ته ولاړ وو. هغه اووئيل چې ماته ددغې شپې معلومات شته دې. هرقل ترې تپوس کړو چې تاته څنګه معلومه ده. هغه اووئيل چې زه به هله اوده کيدم چې د بيت المقدس ټولې دروازې به مې بندې کړې. نو دغه شان په دغه شپه چې مې ټولې دروازې بندې کړې، خو يوه دروازه مې نشوه بندولې. ددې دپاره مې خپل ماتحت کارکوونکي راوبلل او هغوئ هم راسره کوشش اوکړو خو دروازه بنده نشوه. د دروازې يوه تمبه هم بنده نشوه، لکه چې يو غر خوزول وی.
هرکله چې مونږ ټول ناکام شو نو نور کاريګران، ترکاڼان، لوهاران مو راوبلل، هغوئ چې اوکتل نو وې چې دې باندې د ټولې آبادئي زور راغلې دې. ددې انتظام به سبا سحر کوؤ. د مجبورئي په وجه ټول لاړل او دروازه مو لرې پريښوده. هرکله چې سبا شو او دروازې ته ورنزدې شو نو ما اوکتل چې دروازې سره نزدې يو غټ کاڼې کښې يو سورې شوې وو اوداسې معلوميده چې دې پورې څاروې تړلې شوې دې. ما خپلو ملګرو ته اووئيل چې نن الله ﷻ دا دروازه څکه بنديدو ته پرې نښوده چې څوک پيغمبران ﷺ دلته راتلونکي وو. او بيا ئې بيان کړل چې پدغه شپه هغوئ ﷺ زمونږ مسجد کښې مونځ کړې دې. وړپسې ئې نور تفصيلات هم بيان کړی دی. [ابن کثير][1]

**د اسراء او معراج تاريخ:** امام قرطبی رحمه الله پخپل تفسير کښې ليکلی دی چې د معراج د نيټې په باره کښې روايات مختلف دی. د موسی بن عقبه رضي الله عنه څخه يو روايت دې چې دا واقعه دمدينې منورې د هجرت څخه يوه مياشت وړاندې واقع شوې وه. او عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائی چې د ام المؤمنين خديجة الکبری رضي الله عنها وفات کيدل د مونځونو د فرض کيدو څخه وړاندې شوی دی. اما زهری رحمه الله فرمائی چې د خديجه الکبری رضي الله عنها د وفات واقعه د رسول کريم ﷺ د پيغمبرئی څخه اووۀ کاله پس شوې ده.
څينې رواياتو کښې نقل دی چې پنځه کاله پس شوې ده. ابن اسحاق رحمه الله فرمائی چې د معراج واقعه هغه وخت شوې ده کله چې اسلام د عربو په قبائيلو کښې خور شوې وو. ددې ټولو رواياتو حاصل دادې چې د معراج واقعه دمدينې منورې د هجرت څخه څو کاله آګاهو [مخکښې] راپيښه شوې وه.
حربی وائی چې د اسراء او معراج واقعه د ربيع الثانی په اوويشتمه شپه د هجرت څخه يو کال وړاندې شوې ده. ابن قاسم ذهبی رحمه الله فرمائی چې د نبی اکرم ﷺ د پيغمبر کيدو څخه اتلس مياشتې پس دا واقعه شوې ده.
محدثينو ددې مختلف روايتونو بيانولو نه پس څه فيصله نه ده کړې خو عامه مشهوره داده چې د رجب د مياشتې اوويشتمه شپه د معراج شپه ده. [والله سبحانه وتعالی اعلم].

**مسجد حرام او مسجد اقصٰی:** ابو ذر غفاری رضي الله عنه فرمائيلی دی چې ما درسول کريم ﷺ څخه تپوس اوکړو چې ددنيا دټولو څخه رومبې مسجد کوم يو دې؟ نبی اکرم ﷺ اوفرمائيل چې مسجد حرام. ما تپوس اوکړو چې دې پسې کوم يو مسجد دې؟ نو نبی اکرم ﷺ اوفرمائيل چې مسجد اقصٰی. بيا مې تپوس اوکړو چې ددې دواړو تر مينځه څومره فرق دې؟ نو نبی

[1] ) تفسيرابن کثير تحت هذه الآية [ج:۵ ص:۴۴، ۴۵] و تفسير الدر المنثور تحت هذه الآية [ج: ۶ ص:۲۱۹، ۲۲۰]

کرم ﷺ اوفرمائيل چې څلويښت کاله. بيا ئې اوفرمائيل [ چې دمسجد ترتيب خودادې] ليکن الله ﷻ زمونږ دپاره ټوله زمکه مسجد ګرځولې ده. چرته چې د مونځ وخت شي نو هم هلته مونځ ادا کوئ [مسلم]. (١)

د امام تفسير مجاهد رحمه الله فرمائيلي دي چې الله ﷻ د ټولې زمکې څخه دوه زره کاله اګاهو[مخکښې] د بيت الله شريف ځائې جوړ کړې دې. چې بنيادونه ئې اوومې زمکې ته رسيدلي دي او مسجد اقصٰى سليمان عليه السلام جوړ کړې دې. [نسائي ، په صحيح سند سره د عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت کړې دې ، قرطبي] (٢)

مسجد حرام د هغه مسجد نوم دې چې د بيت الله شريف څخه ګير چاپيره جوړ دې او کله ټول حرم ته هم مسجد حرام وئيلې شي. ددې دوئمې معنې تر مخه دهغې دواړو احاديثو اختلاف هم د منځه اوځي. چې يو په کښې معراج ته تلل د بيت الله شريف د حطيم څخه او بل کښې د اما هاني دکور څخه راغلي دي که د مسجد حرام عامه معنى واخستې شي نو داسې هم کيدې شي چې اول د ام هاني په کور کښې وي ، (٣) بيا دهغې څخه دبيت الله شريف حطيم (٤) ته ئې تشريف راوړې وي او بيا دهغه ځائې څخه د معراج په سفر باندې روان شوي وي. [والله اعلم].

**دمسجد اقصٰى او شام ملک برکتونه** :: ﴿بٰرَكْنَا حَوْلَهٗ﴾ کښې د حول څخه مراد د شام ملك ټول زمکه ده. يو حديث پاك کښې راغلي دي چې الله ﷻ د عرش نه د فرات سيند پورې مبارکه زمکه جوړه کړې ده. اوپه دې کښې د فلسطين زمکې ته خاص تقدس اوپاکوالئ حاصل دې [روح المعانى] (٥)

دې کښې د دين او دنيا دواړو برکتونه دي. د دين برکتونه په کښې دادي چې دا دټولو پخوانو پيغمبرانو عليهم السلام قبله ، دهغوئ عليهم السلام د استوګنې اود د فن کيدو ځائې دې. او ددنيا برکت ئې دادې چې زمکه ئې خيرازه ده ، چينې ، نهرونه او ښکلي باغونه وغيره په کښې دي.

معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روايت دې چې نبى اکرم ﷺ اوفرمائيل چې الله ﷻ فرمائي چې ائې د شام ملکه ! په ټولو ښارونو کښې ته زما چونړ کړې زمکه ئې اوزه به درته خپل چونړ کړې بندګان درليږم. [قرطبي]. (٦)

د مسند احمد په حواله يو بل حديث پاك کښې راغلي دي چې دجال به په ټوله زمکه کښې ګرځي خو څلورو مسجدونو ته به نشي تللې. هغه د مديني منورې مسجد ، دمکې مکرمې مسجد ، مسجد اقصٰى او مسجد طور دې. (٧)

---

(١) صحيح مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة، [ج:١ص:١٩٩]
(٢) تفسير القرطبي [ ج:١٠ص:١٣٧] سورة آل عمران آيت نمبر٩٦. و سنن النسائى كتاب المساجد باب فضل المساجد الأقصى والصلاة فيه: [ج: ١ص:١١٢، ١١٣]
(٣) روح المعانى تحت هذه الآية [ج: ١٠ ص:٣٦٢]
(٤) صحيح البخارى كتاب المناقب ،باب كان النبى تنام عينه إلخ [ج:١ص:٥٠٤]
(٥) روح المعانى تحت هذه الآية [ج: ١٠ ص:٣٦٢]و كنزالعمال رقم الحديث [٣٥١٢٩]
(٦) تفسير القرطبى تحت هذه الآية[ ج:١٠ص:٢١٢] و مجمع الزوائد رقم الحديث:[١٦٦٤٧](تابع كتاب المناقب)
(٧) مسند احمد ، حديث رجل من اصحاب النبى رقم الحديث [٢٤٤٠٥]

وَاٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَجَعَلْنٰهُ هُدًى لِّبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اَلَّا

اوور کړې وه مونږه |موسی ته کتاب |او ګرځولې وو مونږه هغه |ذریعه د هدای |دپاره د بنی اسراءیلو |چې

او مونږ موسی ﷺ ته کتاب ورکړو(۱) او دا کتاب مونږ بنی اسرائیلو دپاره دهدایت ذریعه ګرځولې وه چې خبردار

تَتَّخِذُوْا مِنْ دُوْنِيْ وَكِيْلًا ۝ ذُرِّيَّةَ مَنْ حَمَلْنَا

مه نیسئ تاسو |بغیر زمانه | څوك وكيل |اولادئ | دهغه چا | چې سواره کړی وو مونږ |

زما نه بغیر بل هیڅوک خپل کارساز اونه ګڼړئ ائې دهغه چا اولاده چې مونږ دنوح ﷺ

مَعَ نُوْحٍ ۭ اِنَّهٗ كَانَ عَبْدًا شَكُوْرًا ۝

دنوح سره | بیشکه هغه | وو | بنده شکرایستونکې|

سره په [کشتئ کښې ] سوارهٔ کړی وې بیشکه نوح ﷺ یو شکرګزار بنده وو

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ موسٰی علیه السلام ته کتاب ورکړې وو، او هغه مو د بنی اسرائیلو دپاره د دې هدایت ذریعه جوړهٔ کړې وه چه تاسو زما نه سوا بل څوک خپل کارساز مه جوړوئ اې د هغه خلقو اولاده کوم چه مونږ د نوح علیه السلام سره په کشتۍ کښې سوارهٔ کړې وو! بیشکه هغه ډیر شکر ګزار بندهٔ وو.

## خلاصه تفسیر

﴿وَاٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ﴾ [او مونږ موسی ] ﷺ [ته کتاب یعنی ] تورات [ورکړو ﴿وَجَعَلْنٰهُ هُدًى لِّبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ﴾ او مونږه] دهٔ [ لره د] بنی [اسرائیلو دپاره] الهٔ[ذریعه] د[هدایت جوړ کړو] ﴿اَلَّا تَتَّخِذُوْا مِنْ دُوْنِيْ وَكِيْلًا﴾ چه په دې کښې دنورو احکامو سره دادتوحید عظیم الشان حکم هم وو چه [ تاسو زمانه سوا] خپل [هیڅوك کارساز مهٔ مقرروئ ﴿ذُرِّيَّةَ مَنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوْحٍ ۭ﴾ اے دهغو خلقو

---

(۱) **دَ معراج دَواقعه نه پس دَ موسی ﷺ ذکر:-** دَ حضور ﷺ دَ معراج دَ واقعه نه پس دَ خپل پیغمبر حضرت کلیم الله ﷺ ذکر فرمائی په قرآن کریم کښې عمومًا دا دواړه بیانونه په یوځای راغلی دی دغه شان دَ تورات او قرآن کریم بیان هم نیزدې نیزدې دې. دَ حضرت موسی ﷺ دَ کتاب نوم تورات دې هغه کتاب دَ بنی اسرائیلو دَ پاره دَ هدایت وو هغوی ته حکم شوې وو چه دَ الله تعالی نه بغیر بل څوك ولی امدادی اومعبود مه ګڼړئ. هریو نبی دَ الله تعالی توحیدسره راغلې دې. بیا هغوی ته وئیلې شی چه اې دَ هغه بزرګانو اولاده کوم چه مونږ په خپل احسان سره مشرف کړې وو چه دَ نوح ﷺ دَ تباه کونکی طوفان نه مونږ هغوی بچ ساتلې وو اوخپل خوږ پیغمبر حضرت نوح ﷺ سره مو په کشتئ کښې سواره کړی وو. تاسو له دَ خپلومشرانو په شان زمونږ شکر کول پکاردی. ګورئ ماستاسو طرف ته خپل آخری رسول محمد ﷺ درلیګلی دې. روایت دې چه حضرت نوح ﷺ په خوراك څښاك اواغوستلو غرض په هر وخت کښې دَ الله تعالی حمد او ثناء بیانوله په دې وجه هغه ته شکر کونکې بنده اووئیلې شو (الطبری: ۲۵۴/۱۷، حاکم: ۳۶۰/۲) داهم روایت دې چه هغوی به په هرحال کښې دَ الله تعالی شکر کولو. دَ شفاعت والا اوږدحدیث کوم چه په بخاری وغیره کښې دې په دې کښې دی چه کله خلق دَ شفاعت دَ غوښتلو دَ پاره حضرت نوح ﷺ له راشی نو هغه ته به اووئیلې شی چه دَ زمکې دَ خلقو دَ پاره تاسو رومبې رسول وئی چه الله تعالی ستاسو نوم شکر کونکې بنده کیخودو تاسو دَ خپل رب نه زمونږ دَ پاره سفارش اوکړئ الخ. (صحیح مسلم: ۲۷۳۴، صحیح مسلم: ۱۹۴)

نسلونو كومولره چه مونږ دنوح ] عليه السلام [سره] په كشتئ كښې [سوارهٔ كړي وو] مونږ تاسوته خطاب كوو چه دې نعمت لره يادكړئ چه كهٔ مونږ دوی په كشتئ كښې سوارهٔ كړي اوبچ كړي نهٔ وی نو نن به تاسو دهغوی نسل كوم خائ وئ اونعمت يادكړئ دهغهٔ شكر وكړئ چه لوئ قسم ئې توحيد [دې ﴿إِنَّهُ كَانَ عَبْدًا شَكُورًا﴾ او دغه نوح] عليه السلام [لوئ شكر گذارينده وو] پس هركله چه انبياء عليهم السلام شكر كوی نو تاسو ولې ناشكری كوئ ؟

وَقَضَيْنَآ

اوخبرداري وركړې وۀ مونږه |

اومونږ بنی

إِلَىٰ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ فِي ٱلْكِتَٰبِ لَتُفْسِدُنَّ فِي ٱلْأَرْضِ مَرَّتَيْنِ

بنی اسرائيلوته | په كتاب كښی | چې خامخابه تاسوفسادكوئ | په زمكه كښی | دوه خله

اسرائيلو ته په خپل كتاب كښې داخبره په گوته كړې وه چې تاسو به په ملک كښې دوه خله فسادكوئ

وَلَتَعْلُنَّ عُلُوًّا كَبِيرًا ۝ فَإِذَا جَآءَ وَعْدُ

او خامخا به تاسو سركشی كوئ | سركشی | لويه | نوهركله چې | راغله | وعده |

اوډيره سركشی به كوئ پس هر كله چې په دوؤ كښې د ړومبنئ

أُولَىٰهُمَا بَعَثْنَا عَلَيْكُمْ عِبَادًا لَّنَآ

داولنئ سركشئ په هغه دواړو كښی | نو راپورته كړل مونږه | ستاسو خلاف | داسې بندگان زمونږه

وعدې [دپوره كيدو] وخت راغلو نومونږ په تاسو باندې خپل داسې بنديان

أُولِي بَأْسٍ شَدِيدٍ فَجَاسُوا۟ خِلَٰلَ ٱلدِّيَارِ ۚ وَكَانَ

چې خاوندان | دجنگ سخت وؤ | نو ننوتل هغوئ | په منځ دكورونو ستاسو كښی | اووه

او مسلط كړه چې ډير جنگيالی وونو ستاسو په كورونو درننوتل او دايوه داسې وعده وه

وَعْدًا مَّفْعُولًا ۝ ثُمَّ رَدَدْنَا لَكُمُ ٱلْكَرَّةَ عَلَيْهِمْ

دايوه وعده | چې خامخابه كيدله | بيا | واپس دركړه مونږه | تاسو له | موقع دغلبې | په هغوئ باند

چې خامخا به پوره كيدله بيا مونږ دوباره تاسو له په هغوئ باندې غلبه دركړله او په مالونو او په

وَأَمْدَدْنَٰكُم بِأَمْوَٰلٍ وَبَنِينَ وَجَعَلْنَٰكُمْ أَكْثَرَ

اوامدادمواوكړوستاسو | په مالونوسره | اوپه اولادسره | اوكړئ مونږه تاسو | زيات |

خامنو ستاسومدداوكړو اوتاسو نه مويولوئې تولې

نَفِيرًا ۝ إِنْ أَحْسَنتُمْ أَحْسَنتُمْ لِأَنفُسِكُمْ ۖ

په لحاظ دافرادو سره | كه نيكئ اوكړئ تاسو | نو نيكئ كوئ تاسو | دپاره دخانونو ستاسو |

جوړ كړو كه تاسو ښه كوئ نو خپل خان دپاره ښه كوئ

وَاِنْ اَسَاْتُمْ　فَلَهَاؕ　فَاِذَا　جَآءَ　وَعْدُ　الْاٰخِرَةِ

او که بدی اوکړه تاسو | نوبدئ ده دغه نفس لره | نو کله چی | راغي | وخت دوعدې | روستنۍ |

او که بد کوئ نو ځان سره بد کوئی نو بیا چې د ددویمې نیتې وخت راغلو

لِيَسُوْٓءَا　وُجُوْهَكُمْ　وَلِيَدْخُلُوا　الْمَسْجِدَ　كَمَا

دپاره ددې چی ورانې کړی اګونې دمخونوستاسو | اودپاره ددې چی ننوځی | مسجدته | لکه څنګه چی

چې هغه [دښمن] ستاسو مخونه وران کړی او هغوئ په مسجد اقصی کښې ورننوځی لکه چې

دَخَلُوْهُ　اَوَّلَ مَرَّةٍ　وَّلِيُتَبِّرُوْا　مَا　عَلَوْا

ننوتی ووهغې ته | په اول خل | اوچی تباه کړی | هغه څه | چی غالب شی پرهغې |

هغوئ په اول خل ورننوتی وو او داچې کوم ځائې غلبه بیامومی هغه پوره

تَتْبِيْرًا۝　عَسٰى　رَبُّكُمْ　اَنْ يَّرْحَمَكُمْ　وَاِنْ

په کامل تباه کولوسره | کیدې شی | چی رب ستاسو | رحم اوکړی په تاسو | او که

برباد کړی امید دې چې ستاسو رب په تاسو رحم اوکړی او که

عُدْتُّمْ　عُدْنَاۘ　وَجَعَلْنَا　جَهَنَّمَ　لِلْكٰفِرِيْنَ

واپس اوګرزیدئ تاسو | نومونږ به هم واپس اوګرزو | او جوړکړې دې مونږه | دوزخ | دپاره دکافرانو

تاسو بیاهغه څه اوکړل نومونږ به هم هغه کوؤ اومونږ دوزخ کافرانو دپاره قیدخانه

حَصِيْرًا۝

قیدخانه |

جوړه کړې ده

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ په کتاب کښې فیصله کولو سره بنی اسرائیل خبر کړې وو چه تاسو به په زمکه کښې دوه کرته فساد کوئ، او ډیر د سرکشۍ مظاهره به کوئ. پس چه کله د دې دوه واقعاتو نه اولنۍ واقعه پیښه شوه نو مونږ ستاسو په سرونو باندې خپل داسې بندګان مسلط کړل کوم چه سخت جنګ کونکی وو، اوستاسو په ښهرونو کښې راننوتلو سره خوارهٔ شو او دا یو داسې وعده وه کومه چه به ضرور پوره کیدله. بیا مونږ تاسو ته دا موقع درکړه چه تاسو راواپس کیدو سره په هغوی باندې غالب شئ. او ستاسو په مال او اولاد کښې مو اضافه اوکړه، او ستاسو تعداد مو د هغې نه زیات کړو که تاسو نیک کارونه کوئ نو د خپلې فائدې دپاره به ئې کوئ، او که بد کارونه کوئ نو هغه به هم ستاسو دپاره بد وی. پس چه کله د دویمې واقعې میعاد راغلو (نو مونږ نور دشمنان په تاسو باندې مسلط کړل) چه هغوی ستاسو مخونه وُران کړی او دې دپاره چه مسجد ته هم هغه شان داخل شی څنګه چه مخکښې خلق داخل شوې وو، او په کومو کومو څیزونو چه د هغوی وس اورسی، هغه تباه کړی. عین ممکن ده چه (اوس) ستاسو رب په تاسو باندې رحم اوکړی، خو که تاسو بیا هم هغه کار کوئ، نو مونږ به ئې هم دوباره هم هغه کوو، او مونږ جهنم دکافرانو دپاره قیدخانه جوړه کړې ده.

## خلاصه تفسیر

﴿وَقَضَيْنَآ إِلَىٰ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ فِى ٱلْكِتَٰبِ﴾ [اومونږ بنی اسرائیلوته په کتاب کښې ] خواه په تورات کښې یاد د بنی اسرائیلو دنورو انبیاء کرامو ﷺ په صحیفو کښې دا خبره په طور د پیشین ګوئ [ښودلې وه چه ﴿لَتُفْسِدُنَّ فِى ٱلْأَرْضِ مَرَّتَيْنِ﴾ تاسو به په زمکه ] دشام [کښې دوه پیرې ] دګناهونوپه ډیر والی سره یو ځل دموسیٰ علیه السلام دشریعت نه خلاف اوبل ځل دحضرت عیسیٰ علیه السلام دشریعت نه خلاف [خرابئ وکړئ ] ﴿وَلَتَعْلُنَّ عُلُوًّا كَبِيرًا﴾ [اوپه نوروبه هم لوئ زور چلوونکی شئ] یعنی ظلم اوزیاتې به وکړئ دغه شان په لَتُفْسِدُنَّ کښې دحقوق الله دضائع کولو طرف ته اوپه وَلَتَعْلُنَّ کښې دحقوق العباد دضائع کولو طرف ته اشاره ده اودائ هم ښودلې وه چه دواړه پیرې به په سختوسزاګانوکښې اخته کړې شئ ﴿فَإِذَا جَآءَ وَعْدُ أُولَىٰهُمَا﴾ [بیاپه دې دواړو پیرو کښې چه داولې پیرئ میعاد راشی ﴿بَعَثْنَا عَلَيْكُمْ عِبَادًا لَّنَآ﴾ نو مونږ به په تاسو خپلو داسې بندګانو لره مسلط کړو ﴿أُو۟لِى بَأْسٍ شَدِيدٍ﴾ چه سخت جنګ کوونکی به وی ﴿فَجَاسُوا۟ خِلَٰلَ ٱلدِّيَارِ﴾ بیابه دغه ستاسو [په کورونوکښې ننوځی ] اوتاسو به قتل قید اولوټ کړی ﴿وَكَانَ وَعْدًا مَّفْعُولًا﴾ [اودا] وعده دسزا [ یوه وعده ده چه خامخابه کیږی ﴿ثُمَّ رَدَدْنَا لَكُمُ ٱلْكَرَّةَ عَلَيْهِمْ﴾ بیا] چه کله تاسو په خپلوکړو باندې ستومانه اوتوبه ګارشئ [ نومونږ به بیاپه دوی تاسو لره غالب کړو] اګرچه په واسطه سره وی چه کوم قوم په دوی غالب راځی هغه به ستاسوحمایتی شی دغه شان ستاسو دښمن ددغې قوم اوستاسو دواړو نه مغلوب شی ﴿وَأَمْدَدْنَٰكُم بِأَمْوَٰلٍ وَبَنِينَ﴾ [اوپه مال او ځامنوسره ] کوم چه قیداولوټ شوی وو [به مونږه ستاسومدد وکړو ] یعنی داځیزونه به تاسو ته واپس ملاؤ شی چه تاسوته به پرې قوت ملاؤ شی ﴿وَجَعَلْنَٰكُمْ أَكْثَرَ نَفِيرًا﴾ [ اومونږ به ستاسو جماعت ] یعنی تابعین [زیات کړو] پس په جاه مال او اولاد اوتابعدارانو ټولو کښې به ستاسو ترقی وشی اوپه دې کتاب کښې په طور دنصیحت داهم لیکلې وه چه ﴿إِنْ﴾ [که چرې ] اوس انده ﴿أَحْسَنتُمْ أَحْسَنتُمْ لِأَنفُسِكُمْ﴾ [ښه کارکوئ نو دخپلې نفع دپاره به ښه کارکوئ ] یعنی په دنیا اوپه اخرت کښې به درته ددې نفع حاصله شی ﴿وَإِنْ أَسَأْتُمْ﴾ [ اوکه چرې ] بیا تاسو بدعملونه کوئ نو هم ﴿فَلَهَا﴾ [دخپل ځان دپاره ] به بدکوئ یعنی بیابه ئ سزا وی چنانچه داسې وشوه لکه چه وړاندې یې بیان دې چه ﴿فَإِذَا﴾ [بیا هرکله چه] په ذکرشوو دوه پیرو دفسادکښې ﴿جَآءَ وَعْدُ ٱلْءَاخِرَةِ﴾ [داخری پیرې وخت راشی ] اودغه وخت تاسو دشریعت عیسوی نه مخالفت وکړئ [ نوبیابه مونږ نورو لره په تاسو مسلط کړو ﴿لِيَسُۥٓـُٔوا۟ وُجُوهَكُمْ﴾ چه ] هغوی به په وهلو وهلو [ستاسو مخونه وران کړی ﴿وَلِيَدْخُلُوا۟ ٱلْمَسْجِدَ كَمَا دَخَلُوهُ أَوَّلَ مَرَّةٍ﴾ اولکه څنګه چه دغه ] اولنی [خلق جمات ] دبیت المقدس [ته] په لوټ مارکولوسره [ننوتلی وو دا] وروستی [خلق به هم دې ته ننوځی ﴿وَلِيُتَبِّرُوا۟﴾ اوپه کوم کوم شی چه ددوی وس برشی ټولوله به ] هلاك ﴿مَا عَلَوْا۟ تَتْبِيرًا﴾ او [برباد کړی ] په دې کتاب کښې داهم لیکلی وو چه که ددې دویم وارنه پس هرکله چه دشریعت محمدی ﷺ په دور کښې تاسو دمخالفت اونافرمانئ نه واپس شئ دشریعت محمدی ﷺ تابعداری وکړئ نو ﴿عَسَىٰ﴾ [عجیبه نه ده ] یعنی امیدپه معنی دوعدې دې ﴿رَبُّكُمْ أَن يَرْحَمَكُمْ﴾ [چه ستاسورب به په تاسو رحم وکړی [اوتاسو لره به دذلت اوبدبختئ نه وباسی ﴿وَإِنْ عُدتُّمْ﴾ [اوکه تاسوبیا دغه ] شرارت [وکړئ ﴿عُدْنَا﴾ نومونږبه هم بیادغه ] دسزابرتاؤ[وکړو] چنانچه

دنبی کریم ﷺ په زمانه کښې دغو ددوی ﷺ مخالفت وکړو نو بیا قتل قید او ذلیله شول داخو به ددنیا سزاوی [او] په اخرت کښې ﴿وَجَعَلْنَا جَهَنَّمَ﴾ [مونږ جهنم لره ﴿لِلْكٰفِرِيْنَ حَصِيْرًا﴾ د] داسې [کافرانو د پاره جیل خانه جوړه کړې ده]

**د آیتونو ربط:** تیر شوی آیت مبارک ﴿وَجَعَلْنٰهُ هُدًى لِّبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ﴾ کښې د شرعي احکامو او دالله ﷻ د هدایتونو د تابعدارئ او منلو شوق پیدا کول وو. اوس په دې آیت مبارک کښې د بنی اسرائیلو د پاره دوه واقعې د عبرت او نصیحت بیان کړې شوې دی. هر کله چې یو ځل دوئ دالله ﷻ په نافرمانئ کښې مشغول شو او د الله ﷻ دحکمونو مخالفت ئې اوکړو نو الله ﷻ په دوئ باندې ددوئ دښمنان مسلط کړل چې دوئ ئې تباه وبرباد کړل. کله چې ددې خبرې ورته احساس اوشو نو خپلو ورانکارو کښې ئې کمې راوستو. ځانونه ئې سنبال کړل. خو بیا ئې هم هغه ورانکارئ او بدعملئ شروع کړې نو الله ﷻ پرې بیا هم د دوئ دښمنان مسلط کړل او د هغوئ په لاس ئې ورته سزا ورکړه. قرآن کښې دوه واقعې بیان شویدی خو تاریخ دا قسمه شپږ واقعات په ګوته کړی دی.

**رومبئ واقعه:** کله چې د مسجد اقصیٰ مشر سلیمان ﷺ وفات شو نو د بیت المقدس حاکم بې دینی او بدعملی شروع کړه. د مصر یو بادشاه په ده باندې حمله اوکړه او بیت المقدس څخه ئې د سرو او سپینو زرو سامان لوټ کړو. هغه ئې ترې یوړو خو مسجد ئې وران نه کړو.

**دویمه واقعه:** ددې واقعې څخه څلور سوه کاله روستو دبیت المقدس اوسیدونکو ځینو یهودو بت پرستی شروع کړه او د نورو پخپل مینځ کښې ناچاقی او جنګ شروع شو. دې ځل پرې د مصر بادشاه بیا حمله اوکړه او د ښار سره سره ئې مسجد ته هم نقصان اورسولو. دې څخه ورستو ددوئ څه لږ شان عقل په ځائې شو.

**دریمه واقعه:** دې څخه څو کاله پس کله چې بخت نصر د بابل بادشاه په بیت الله شریف باندې حمله اوکړه او ښار ئې فتح کړو او سامانونه ئې لوټ کړل، ډیر خلق ئې بندیوان کړل او ځان سره ئې بوتلل او د رومبی بادشاه د خاندان یو سړې ئې هغه ځائې کښې د نائب په طور هلته مقرر کړو.

**څلورمه واقعه:** دې نوی بت پرست او بد عمله بادشاه د بخت نصر څخه بغاوت اختیار کړو. هغه پرې دوباره حمله اوکړه او شکست ئې ورکړو او هر څه ئې لوټ کړل، دې ښار ته ئې اور ورته کړو او بالکل ئې تش میدان کړو. دا واقعه په هغه وخت کښې راپیښه شوې وه چې د مسجد پنځلس د پاسه څلور سوه کاله شوی وو. دې څخه روستو یهودیان ددغه ځائې څخه بې درکه کړې شو. بابل ته لاړل او هلته اویا کاله په ذلت او رسوائی کښې اوسیدل. د ایران بادشاه د بابل په بادشاه باندې حمله اوکړه او بابل ئې فتح کړو. په دغه بې وطنه یهودو ئې ترس راغلو او دوئ ئې دشام ملک ته واپس کړل. ددوئ لوټ شوې مال هال ئې ورته هم واپس کړو. اوس یهودیان د خپلو بدو عملونو او نافرمانو څخه توبه ګار شوی وو. دلته آباد شو او د ایران د بادشاه په مدد سره ئې بیا بیت المقدس د مخکښې په شان تیار کړو.

**پنځمه واقعه:** کله چې یهودیان لږ په قلار شو نو تیرې شوې سختئ ئې هیرې کړې، بیا په بد کارئی او بدعملئ کښې اخته شو. دې کښې داسې واقعه راپیښه شوه چې کوم بادشاه انطاکیه

آباده کړې وه هغه په دوئ حمله اوکړه او ځلوېښت زره یهودیان ئې اووژل ، ځلوېښت زره ئې بندیان او غلامان جوړ کړل او ځان سره ئې بوتلل او دمسجد بې عزتی ئې اوکړه. خو ددې عمارت او آبادی ئې ورانه نه کړه. دا واقعه د هغه وخت ده چې دعیسیٰ ﷺ پیدائش ته یو سل پنځه شپېته کاله پاتې وو. بیا ددغه بادشاه په ځائې راتلونکو دا ښار او مسجد لوټې لوټې کړو ، تش میدان پاتې شو ، دې پسې زمانه کښې د روم د بادشاه حکومت راغلو او هغه دا مسجد ښه تیار کړو او ددې څخه اته کاله پس عیسیٰ ﷺ پیدا شو.

**شپږمه واقعه** :: د عیسیٰ ﷺ آسمان ته د پورته ختلو څخه ځلوېښت کاله روستو داسې اوشوه چې یهودیانو د خپلو حکمرانانو څخه بغاوت اوکړو او په دې وجه رومیانو یو ځل بیا دغه مسجد هغه شان ویران ویجاړ کړو لکه څنګه چې مخکښې وو. او ددغه وخت بادشاه طیطس نومیدو. اودا نه یهودی وو او نه نصرانی وو. ځکه چې دده څخه ډیرې ورځې پس قسطنطین اول عیسائی شوې دې. او دهغې څخه روستو د عمر فاروق رضی الله عنه تر زمانې پورې دغه مسجد ویران پروت وو. تر دې چې هغوئ رضی الله عنه آباد کړو. دا شپږ واړه واقعې په تفسیر بیان القرآن کښې د تفسیر حقانی په حواله لیکلې شوی دی.[۱]

اوس دې واقعاتو کښې څنې هغه دوه واقعات په ګوته کول خومشکل دی کوم چې قرآن کریم بیان کړی دی البته په هغې واقعاتو باندې چسپان کول به هم څه بدیت نه لری په کومو کښې چې د یهودیانو ورانکارو زیاتې کړې وو او هغه ځلومه اوشپږمه واقعه ده د کومې واقعې هم چې ډیر سنګینې او لوئې وې. د تفسیر قرطبی په حواله دیو اوږد مرفوع حدیث پاك تر مخه چې د حذیفه رضی الله عنه څخه منقول دې هم د ځلورمې اوشپږمې واقعې په ګوته کولو باندې تائید کیږی ، کومې دوه واقعې چې قرآن کریم بیان کړی دی. ددغې اوږد حدیث پاك ترجمه داده :

حذیفه رضی الله عنه فرمائیلی دی چې ما رسول کریم ﷺ ته عرض اوکړو چې بیت المقدس د الله ﷻ په نزد د لوئې قدر مسجد دې. نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چې دادنیا د ټولو کورونو څینې د یو خانګړی لوئې شان کور دې چې الله ﷻ سلیمان ﷺ بن داؤد ﷺ دپاره د سرو سپینو زرو ، جواهراتو ، یاقوتو او زمردو څخه جوړ کړې وو. کله چې سلیمان ﷺ ددې تعمیر شروع کړو نو الله ﷻ پیریان دهغوئ تابع کړل. دغه جواهرات ، اوسرۀ ، سپین وغیره ټول هر څه پیریانو راجمع کړل او دهغې څخه ئې مسجد جوړ کړو. حذیفه رضی الله عنه تپوس اوکړو چې دبیت المقدس څخه دغه سرۀ او سپین او جواهرات وغیره څه شو او چرته دی ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې کله بنی اسرائیلو د الله ﷻ نافرمانی اوکړه او په ګناهونو او بدوعملونو کښې اخته شو ، پیغمبران ﷺ ئې اووژل، نو الله ﷻ پرې بخت نصر غالب کړو او دې مجوسی وو ، او ده په بیت المقدس باندې اووۀ سوه کاله بادشاهی کړې ده. او قرآن کریم کښې د آیت مبارك ﴿فَإِذَا جَآءَ وَعۡدُ أُولَىٰهُمَا بَعَثۡنَا عَلَيۡكُمۡ عِبَادٗا لَّنَآ أُوْلِي بَأۡسٖ شَدِيدٖ فَجَاسُواْ خِلَٰلَ ٱلدِّيَارِۚ﴾ نه هم دغه واقعه مراد ده :

بخت نصر په مسجد اقدس کښې داخل شو ، سری ئې اووژل ، ښځې او ماشومان ئې قیدل کړل ، د بیت المقدس ټول مالونه سره سپین وغیره ئې په یو لاکهـ اویا زره ګاډو کښې خپل ملك ته اولیږل. سل کاله ئې دغه بنی اسرائیل غلامان جوړ کړی وو. ډیر سخت او ذلیله

[۱] بیان القرآن تحت هذه الآیة [ ج:۶ ص:۷۵]

خدمتونه به ئې تېرې اخستل.

بيا الله ﷻ د فارس يو بادشاه د بخت نصر د مقابلې دپاره راپورته کړو هغه بابل فتح کړو او پاتې بني اسرائيل ئې دهغه د قيد څخه آزاد کړل. او څومره مالونه چې بخت نصر د بيت المقدس څخه راوړي وو هغه ټول ئې بيت المقدس ته واپس کړل. بيا ئې بني اسرائيلو ته اووئيل که تاسو بيا نافرمانئي او بدعملونه شروع کړل نو مونږ به دربانديې بيا د قتل او قيد عذاب په تاسو باندې راګرځوو، او دقرآن پاك د آيت: ﴿عَسٰى رَبُّكُمۡ اَنۡ يَّرۡحَمَكُمۡ ۚ وَاِنۡ عُدۡتُّمۡ عُدۡنَا ۘ﴾ نه هم دغه مراد (ی.

بيا کله چې بني اسرائيل بيت المقدس ته واپس راغلل ټول مالونه او سامانونه ئې پخپله قبضه کښې واخستل نو نافرمانئ او بدعملئ ته ئې بيا مخه اوکړه نو الله ﷻ پرې د ورم بادشاه قيصر مسلط کړو، قرآن کريم کښې ددې بيان داسې راغلې دې چې:

﴿فَاِذَا جَآءَ وَعۡدُ الۡاٰخِرَةِ لِيَسُوۡٓءٗا وُجُوۡهَكُمۡ﴾

د روم دبادشاه ورسره د اوچې او لوندې په دواړو لارو جنګ اوکړو، ډير زيات خلق ئې قتل او قيد کړل، دبيت المقدس دغه ټول مالونه او سامانونه ئې په يو لاکه اويا زره ګاډو کښې خپلې ګرجې کنيسة الذهب ته راوړل. او تر اوسه پورې هلته محفوظ دی. بلکه هلته به تر هغې پورې پراته وی چې امام مهدی ﷫ به ئې په يو لاکه کشتو کښې واپس بيت المقدس ته راوړي. او هم د لته به الله ﷻ ټول اولين او آخرين راجمع کړی. [دا اوږد حديث پاك امام قرطبي ﷫ په خپل تفسير کښې روايت کړې دې].(¹)

بيان القرآن کښې راغلی دی چې د قرآن کريم بيان کړو دوؤ واقعو څخه مراد د دوؤ شريعتونونه مخالفت کول دی چې يو د موسیٰ ؈ او بل د عيسیٰ ؈ شريعت دې. په دې شان په رومبی مخالفت کښې(²) پورته ټولې بيان شوې واقعې شامليدې شی اوس ددې آيتونو تفسير باندې ځان پوهه کړئی.

**معارف او مسائل**

ددې آيتونو د واقعاتو حاصل دادې چې الله ﷻ د بني اسرائيلو په باره کښې دا فيصله کړې وه چې هغوئ تر کومې پورې دالله ﷻ تابعداری کوی، په دين دنيا کښې به کامياب او کامران وی، او چې د دين څخه واوړی نو ذليل او خوار به شی. او صرف دا نه چې دښمن به په دوئ غالب شی او ددوئ ځان او مال ته به نقصان اورسوی. بلکه دې څخه به ددوئ قبله يعنی بيت المقدس هم سلامته پاتې نشی. دښمن به ئې ويرانه ويجاړه کړی، بې عزتی به ئې اوکړی او قيمتی سامانونه به ترې يوسی. اودا به د بني اسرائيلو د سزا يوه برخه وی. دې باره کښې قرآن کريم دوه واقعات بيان کړی دی. رومبئ واقعه د موسیٰ ؈ دشريعت د زمانې وه او بله د عيسیٰ ؈ د زمانې وه. په دې دواړو موقعو باندې دوئ د دواړو دينونو څخه مخ اوګرځولو او سرکشئ ئې اوکړه. په دې بناء په رومبئ واقعه کښې يو مجوسی کافر بادشاه په دوئ او بيت المقدس باندې حمله اوکړه چې هغه ټول هر څه ئې تباه کړل. او په بله واقعه کښې پرې يو

¹) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:۱۰ص:۲۲۲]
²) تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:٦ص:۷۵]

رومي بادشاه حمله اوکړه او دوئ ئې اووژل او هر څه ئې ورله تباه کړل. بيت المقدس ئې ويران کړو. دې سره دابيان هم راغلې دې چې دواړه ځل کله چې بنی اسرائيل په خپلو کړو باندې پښيمانه شو او توبه ګار شو نو بيا الله ﷻ د هغوئ ملك ، دولت او آل اولاد واپس کړل. ددې دواړو واقعاتو بيانولو څخه روستو الله ﷻ خپله ضابطه په دې شان سره بيان کړه چې: ﴿وَاِنۡ عُدۡتُّمۡ عُدۡنَا ۘ﴾ که تاسو بيا هغه نافرمانئ او بدعملئ اوسر کشئ اختيار کړې نو بيا به موږ هم دغه شان سزا او عذاب په تاسو باندې دوباره راولو. دا ضابطه تر قيامته پورې چليدونکې ده. ددې مخاطب هغه بنی اسرائيل وو چې درسول ﷺ په زمانه مبارکه کښې وو ، هغوئ ته دا خبرداري ورکړې شو چې څنګه د موسیٰ عليه السلام او د عيسیٰ عليه السلام د شريعتونو د مخالفت په وجه په تاسو باندې رنګ رنګ عذابونه راغلل ، نو اوس که تاسو د شريعت محمدی ﷺ چې تر قيامته به چليږي هم مخالفت اوکړو نو هغه شان عذابونه به درباندې راولم. او هم دغه شان اوشو ، هغوئ د مسلمانانو دلاسه بې وطنه شو ، ذليل او خوار شو ، او په آخر کښې د دوئ په قبله بيت المقدس باندې هم مسلمانانو قبضه اوکړه. فرق دادې چې د وړاندينی عذابونو په وجه دوئ هم خوار او ذليله شوی وو او ورسره بيت المقدس هم ويران شوې وو ، خو کله چې مسلمانانو بيت المقدس باندې قبضه اوکړه نو بيت المقدس ئې ډير آباد کړو او د پيغمبرانو عليهم السلام ددې قبلې عزت ئې په ځائې کړو.

**د بنی اسرائيلو واقعات مسلمانانو دپاره عبرت دی د بيت المقدس اوسنئ واقعه ددې يوه برخه ده :**

قرآن پاك کښې د بنی اسرائيلو د واقعاتو بيانولو مقصد په ظاهره دا دی چې مسلمانان هم دالله ﷻ د اطاعت سره لګيدلی دی چې کله دوئ دالله ﷻ او د هغه درسول د اطاعت نه انحراف کوی نو الله ﷻ ددې ضابطې څخه مستثنیٰ نه دی ، ولې چې په دين ،دنيا کښې د دوئ عزت ، رعب ، مال ، دولت دالله ﷻ به پرې د دوئ دښمنان او کافران پدوئ غالب او مسلط کړی چې دوئ به هم تباه کړی او مساجد به هم وران کړی او دوئ به بې عزته کړی

د بيت المقدس اوسنی حالاتو ، ديهوديانو پرې قبضه کول ، او بيا پرې قبضه پخول او مضبوطول سرنګونه ورلاندې کنستل. او بيا اورونه وراچول داسې يو دردناك او غم ناك حالات دی چې ددنيا ټول مسلمانان ئې پريشانه کړی دی ، دا په حقيقت کښې د قرآنی ارشاد تصديق داشان لګيا دې کيږی. چې مسلمانانو الله ﷻ او رسول هير کړې دی ، د آخرت هيڅ غم ئې نشته دې ، ددنيا په خوندونو ، مزو او رنګونو په حاصلولو کښې لګيا دی ، د قرآن او سنت د حکمونو نه ئې ځانونه ناخبره کړی دی ، څکه دالله ﷻ دغه ضابطه رامخې ته شوه چې په کروړونو عربونو باندې څو لاکهه يهوديان کامياب شو ، او مسلمانانو ته د ځان او مال نقصانونه ور رسوی. د دنيا د دريو عظيم الشان مساجدو څخه يو مسجد چې د ټولو پيغمبرانو ﷺ قبله پاتې شوې ده هغه يعنی مسجد اقصیٰ د دوئ څخه واخستلې شو. داسې يو قوم پرې راغلو چې په دنيا کښې د ټولو څخه زيات خوار او ذليل ګڼرلې شی. حالانکه په سترګو باندې ليدلې شی چې د ټولو مسلمانانو څه چې د خواؤ شا عربو مسلمانانو په مقابله کښې د دوئ هيڅ حيثيت نشته دې ، د مسلمانانو د سامان جنګ په مقابله کښې دوئ سره هيڅ سامان جنګ نشته دې. دې څخه دا هم معلومه شوه چې دې سره يهوديان عزت مند نشو البته مسلمانانوته ددوئ د سرکشئ او د سزا يوه ننداره ورکول ضروری دی. چې دا ټول هر څه

د مسلمانانو د بدو عملونو نتیجه ده . ددې علاج صرف او صرف دادې چې مونږ بیا په خپلو بدو عملونو باندې پښیمانتیا اختیار کړو او رښتونی توبه اوکړو. دالله ﷻ احکام قبول کړو. رښتونی مسلمانان جوړ شو. دنقالئ او په نورو غیرو خلقو باندې د تکیه کولو لوئې گناه نه منع شو نو انشاء الله چې الله ﷻ به بیا دخپلې وعدې مطابق فلسطین او بیت المقدس زمونږ په قبضه کښې راکړي . خو افسوس دادې چې ننني عرب حکمرانان اودهغې ځائې عام مسلمانان تر اوسه پورې دې حقیقت باندې ځان نه خبروي. دغیرو یعنی کافرانو په مدد انحصار کوي او دهغې په بناء د بیت المقدس د واپسئ منصوبې جوړوي ، حالانکه په ښکاره ددې هیڅ صورت په نظر نه رازي . [فالي الله المشتکي]

د بیت المقدس او فلسطین حاصلولو دپاره د مسلمانانو وسله صرف دا کیدې شي چې الله ﷻ ته ماتې اوکړي ، په آخرت یقین لرل محکم کړي ، دشرعی حکمونو تابعداری کوي ، پخپل معاشرت اوسیاست کښې په غیر قومونو تکیه کول او دهغوئ نقل کول پریږدي ، خالص په الله ﷻ تکیه اولري او خالص اسلامی اوشرعی جهاد ته ځان تیار کړي . الله ﷻ دې زمونږ عرب حکمرانان او نورو مسلمانانو ته ددې توفیق ورکړي .

**یوه عجیبه معامله** :: الله ﷻ په دې مخ د زمکه باندې عبادت کوئنکو دپاره صرف دوه ځایونه قبله گرځولی دی ، بیت الله او بیت المقدس ، خو د قدرت قانون دواړو دپاره جدا جدا دې ، نو د بیت الله شریف حفاظت الله ﷻ پخپل لاس کښې اخستې دې ، په دې باندې حمله کولو الله ﷻ پخپله ، کافران نه پریږدي ، ددې لوئې او ښکاره ثبوت د اصحاب فیل واقعه ده . کومه چې د قرآن کریم په سورة فیل کښې بیان شوې ده. واقعه داسې وه چې د یمن یو نصرانی بادشاه چې بیت الله شریف باندې حمله اوکړه خو بیت الله ته درسیدو نه وړاندې د ورو ورو مارغانو په ذریعه الله ﷻ سره د هاتیانو تباه اوبرباد او تس نس کړل .

لیکن د بیت المقدس باره کښې دا قانون دالله ﷻ بیا بیا زمونږ مخې ته رازي چې کله مسلمانان په گمراهئ اونافرمانئ دالله ﷻ کښې اخته شی نو د سزا په ډول تري دغه قبله بیرته اخستې شی او کافران پرې غالب راولي ، څنگه چې ددې بیان شوؤ آیتونو نه هم معلومیږي .

**کافران هم اگر چې دالله ﷻ بندگان دي خو قبول ورته نه دي** :: دلته په رومبئ واقعه کښې قرآن پاک فرمائی چې کله د دین خاوند په فتنه او فساد کښې اخته شی الله ﷻ پرې خپل داسې بندگان راولي چې ددوئ په کورونو به ورننوؤځی دوئ به لوټ کوي او دوئ به اووژني دلته قرآن کریم ﴿عِبَادًا لَّنَآ﴾ اوفرمائیل . ﴿عِبَادَنَا﴾ ئې نه اوفرمائیل ، سره ددې چې دداسې فرمائیل مختصر وو. حکمت په کښې دادې چې د یو بنده اضافت الله ﷻ ته اوشی نو هغه دپاره دا د ټولو څخه لوئې عزت دې ، لکه ددې سورت په شروع کښې چې د ﴿اسری بعبده﴾ لاندې دا خودلې شوی دی چې هر کله رسول کریم ﷺ ته دمعراج په شپه کوم زیات عزت او الله ﷻ ته زیات نزدیکت حاصل شو نو دهغې د بیانولو دپاره الله ﷻ د هغوئ نوم مبارك یا د بل صفت بیانولو په ځائې صرف عبده اوفرمائیل ، په دې سره ئې دا اوخودل چې دانسان آخری کمال او ډیر زیات اوچت مقام دادې چې الله ﷻ ئې پخپله بنده سره اوبلي ، اوس په دې آیت مبارك کښې د کومو خلقو نه چې د بنی اسرائیلو د سزا کار اخستې شو هغوئ پخپله هم کافران وو څکه الله ﷻ د ﴿عِبَادَنَا﴾ [

خپل ځان ته د اضافت کولو په ځائې] ﴿عِبَادًا لَّنَآ﴾ اوفرمائیل. چي دا اشاره په کښې کول وو چې په تکوینی ډول خو ټول انسانان د الله ﷻ بندګان دی خو هر کله چې ایمان څخه بغیر مقبول بندګان نه دی ځکه الله ﷻ ته اضافت یا نسبت نشي کولي.

| |
|---|
| إِنَّ هَٰذَا الْقُرْآنَ يَهْدِي لِلَّتِي هِيَ أَقْوَمُ |
| بیشکه \| چی دا قرآن \| ښائی \| هغه لار \| چی هغه بلکل نیغه ده |
| بیشکه دا قرآن پاک هغه لاره ښائی چې کومه بالکل نیغه ده |
| وَيُبَشِّرُ الْمُؤْمِنِينَ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ الصَّالِحَاتِ أَنَّ |
| اوزیري ورکوی \| مئونکوته \| هغه مئونکی \| چی هغوئ عمل کوی \| نیک \| چی بیشکه |
| اوکوم ایماندار چې نیک کارونه کوی هغوئ ته زیري ورکوی چې دهغوئ |
| لَهُمْ أَجْرًا كَبِيرًا ۝٩ وَأَنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ |
| دي دهغوئ دپاره \| اجر \| لوئ \| اوبیشکه \| هغه کسان \| چی نه مني \| اخرت لره |
| دپاره ډیر لوئي اجر مقرر دي او دا چي کوم خلق په آخرت باندې ایمان نه راوړی |
| أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ۝١٠ وَيَدْعُ الْإِنسَانُ بِالشَّرِّ |
| تیارکړي دي مونږه \| دپاره دهغوئ \| عذاب \| دردناک \| اوغواړي \| انسان \| شرلره |
| مونږ هغوئ دپاره دردناک عذاب تیار کړي دي اوځیني انسانان دعذاب دپاره داسې دعا غواړي |
| دُعَاءَهُ بِالْخَيْرِ ۚ وَكَانَ الْإِنسَانُ عَجُولًا ۝١١ |
| پشان دغوښتلو دهغه \| خیرلره \| اودي انسان \| تلوارکونکي |
| لکه چې دنیکئ دعا غواړي او انسان ډیر تلوار کوؤنکي دي |

## آسان ترجمه قرآن

حقیقت دا دې چه دا قرآن کریم هغه لاره ښائی کومه چه د ټولو نه زیاته نیغه ده، او کوم خلق چه (په دې باندې) ایمان راوړلو سره نیک عمل کوی، هغوی ته زیرې ورکوی چه د هغوی دپاره لوئې اجر دې. او دا ورته وائی چه کوم خلق په آخرت باندې ایمان نه لری، د هغوی دپاره مونږ یو دردناک عذاب تیار کړې دې. او انسان بدی داسې غواړی څنګه چه هغه له نیکی غوښتل پکار دی . او انسان ډیر تُندی کونکې دې.

## خلاصه تفسیر

**ربط:** ددې سورت په اول سرکښې د معراج د معجزې ترمخه د رسول کریم ﷺ د پیغمبرۍ شان بیان شوی دې اوس په دې آیتونو کښې د قرآن عظیم الشان دمعجزې ترمخه دهغې ثابتول دی. ﴿إِنَّ هَٰذَا الْقُرْآنَ يَهْدِي لِلَّتِي هِيَ أَقْوَمُ﴾ [بیشکه دا قرآن دداسې طریقې ښودنه کوی کوم چه بلکل نیغه ده ]یعنی اسلام ﴿وَيُبَشِّرُ الْمُؤْمِنِينَ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ الصَّالِحَاتِ أَنَّ لَهُمْ أَجْرًا كَبِيرًا﴾ [او] ددې طریقې دمئونکواونه مئونکو جزاء اوسزاء هم ښائی چه [هغه ایماندارو ته کوم چه نیک کارونه کوی

داخوشخبری ورکوی چه دوی ته به ډیرلوئ ثواب ملاویږی ﴿وَاَنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ﴾ اوداهم بیانی چه کوم خلق په اخرت ایمان نه لری ﴿اَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا﴾ مونږ ددوی دپاره یوه دردناکه سزا تیاره کړې ده ﴿وَيَدْعُ الْاِنْسَانُ بِالشَّرِّ﴾ او] خنې [انسانان ] لکه کفارچه دی ﴿دُعَآءَهٗ بِالْخَيْرِ﴾ [بدئ] یعنی عذاب [لره داسې غواړی لکه څنګه چه دښیګړې دپاره غوښتل ] کولې شی ﴿وَكَانَ الْاِنْسَانُ عَجُوْلًا﴾ او[انسان ] څه طبعا [تلوارکونکې دې ]

## معارف او مسائل

**طریق اقوم:** ﴿اِنَّ هٰذَا الْقُرْاٰنَ يَهْدِيْ لِلَّتِيْ هِيَ اَقْوَمُ﴾ قرآن عظیم الشان هغې طریقې ته اقوم فرمائی کومې ته چې خلق رابلی د اقوم تفسیر دادې چې دغه لار ، منزل مقصود ته رسولو دپاره نزدې او آسانه وی او د خطرې نه هم خالی وی [ قرطبی ] ([1])

دې نه معلومه شوه چې قرآن عظیم الشان د انسانی ژوند دپاره کوم احکام ورکوی هغې کښې دادرې واړه صفات راجمع دی اگر چې انسان کله دا لار گرانه یا دخطرې نه ډکه گنړی ، ولې چې دده پوهه لنډه تنګه ده ، خو رب العالمین چې د کائناتو د ذرې ذرې نه خبر دې او تیره شوې او راتلونکې زمانه دده مخې ته یو شان ده هم هغه دې حقیقت لره پیژنی ، چې دانسان نفع په کوم کار او په کوم صورت کښې زیاته ده . او انسان هر کله چې د ټول اړخیز حالاتو نه خبر نه دې څکه هغه خپل ښه او بد نشی پیژندلې . شاید هم ددې مناسبت په وجه ددې آیتونو څینې په آخر کښې ئې دا فرمائیلی دی چې انسان کله په جلد بازئی کښې خپل ځان دپاره داسې دعا غواړی چې هغه دپاره دتباهئ او بربادئی باعث وی که الله ﷻ ئې دغه دعا قبوله کړی نو برباد به شی خو الله ﷻ اکثر داسې دعاګانې ، سمدستی نه قبلوی تر هغې پورې چې انسان پخپله په دې پوهه شی چې زما دغه خواست غلط او ما دپاره نقصانی وو. او د آیت مبارك په آخری جمله کښې د انسان یو طبعی کمزوری ئې د ضابطې په ډول هم بیان کړې ده چې انسان د خپل طبیعت ترمخه تلوار کوونکې واقع شوې دې . په سرسری فائدې نقصان باندې نظر لری ، د انجام په لیدو اوپر غور کولو کښې کوتاهی کوی ، سمدستی نغد آرام که لږ هم وی هغه د لوئې ا و همیشه آرام نه غوره گنړی ، ددې تقریر حاصل دادې چې په دې آیت مبارك کښې د عامو انسانانو د یوې طبعی کمزورئ بیان دې .

او د تفسیر څینې امامانو دا آیت مبارك یو خاص واقعې سره تړلې بللې دې هغه دا چې نضر بن حارث د اسلام په مخالفت کښې یو ځل دا دعا اوکړه چې : ﴿اَللّٰهُمَّ اِنْ كَانَ هٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَاَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَآءِ اَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ﴾ [ائې الله که هم دا اسلام ستا د طرفنه حق وی نو په مونږ باندې د آسمان نه کاڼی راووروې یا بل څه دردناك عذاب راباندې راولې ] ([2]) دې صورت کښې به دالانسان نه دا خاص انسان یاهغه انسان مرادوی چې دده په شان طبیعت لری!

([1]) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة [ ج:۱۰ص:۲۲۵]
([2]) تفسیر البغوی سورة یونس آیت :۱۳ [ج: ۴ص:۱۲۴]

وَجَعَلْنَا

اوجوړې کړې دی مونږه |

اومونږ .

الَّيْلَ وَالنَّهَارَ اٰيَتَيْنِ فَمَحَوْنَآ اٰيَةَ الَّيْلِ وَجَعَلْنَآ اٰيَةَ النَّهَارِ

شپې | او ورځې لره | دوه نښې | نوبې رڼا کړه مونږه | نښه دشپې | اوجوړه کړه مونږ | نښه د ورځې

دشپې اودورځې نه دوه نخښې جوړې کړې دی اود ورځې نخښه مو

مُبْصِرَةً لِّتَبْتَغُوْا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ وَلِتَعْلَمُوْا

روښانه جوړه کړیده | دپاره ددې چې تلاش کړئ تاسو | فضل | درب خپل نه | اودپاره ددې چې معلومه کړئ تاسو

روښانه کړې ده چې تاسو په کښې دخپل رب فضل لټولې شئ او چې دکلونو

عَدَدَ السِّنِيْنَ وَالْحِسَابَ ؕ وَكُلَّ شَيْءٍ فَصَّلْنٰهُ تَفْصِيْلًا ۝

شمار دکلونو | اودحساب | اوهر ځيز | واضحه بيان کړې دې مونږه | په وضاحت سره

شمير او نور حساب درته معلوميږي او هر ځيز مونږ په تفصيل سره بيان کړې دې

وَكُلَّ اِنْسَانٍ اَلْزَمْنٰهُ طٰٓئِرَهٗ فِيْ عُنُقِهٖ ؕ

اوهرانسان چې دې | لازم کړې دې مونږه دهغه سره | قسمت دهغه | په غاړه دهغه کښې

اومونږ دهر چا عملنامه دهغه دغاړې اميل کړې دې

وَنُخْرِجُ لَهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ كِتٰبًا يَّلْقٰىهُ

او را اوباسو مونږه | دپاره دهغه | په ورځ دقيامت | ليکلې شوې کاغذ | چې اوبه وينی هغه کاغذ

اودقيامت په ورځ به ورته يو عملنامه مخامخ کيږدو چې سپړلې

مَنْشُوْرًا ۝ اِقْرَاْ كِتٰبَكَ ؕ كَفٰى بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيْبًا ۝

غوړيدلې | او لوله | عملنامه خپله | کافی دې | نفس ستا | نن ورځ | په تاباند | حساب کونکې

به ئې اووينی او به وئيلې شی! خپله عملنامه اولوله نن ته دخپلې عملنامې دحساب دپاره په خپله کافی يئ

مَنِ اهْتَدٰى فَاِنَّمَا يَهْتَدِيْ لِنَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ

څوک چی | په نيغه لاررروان شو | نوبيشکه | هغه نيغه لارنيسی | دپاره دفائدې دځان خپل | اوڅوک چی

څوک چې په سمه لار ځی نو يقينا د خپلې فائدې دپاره ځی اوڅوک

ضَلَّ فَاِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ؕ وَلَا تَزِرُ

بې لارې شو | نو بيشکه | هغه وبال دګمراهئ ږدی | په دغه نفس باند | اونۀ به اوچتوی |

چې بې لارې شی نو هغه دخپل نقصان دپاره بې لارې شی او هيڅوک به

| وَازِرَةٌ | وِّزْرَ | اُخْرٰیؕ | وَمَا كُنَّا | مُعَذِّبِيْنَ | حَتّٰى |
|---|---|---|---|---|---|
| یو بار اچتونکې | بار | دبل نفس نه | اونه یومونږه | عذاب ورکونکی | ترهغې پورې |

د بل پیټې نه اوچتوی او مونږ عذاب نه ورکوو تر څو (۱)

(۱) **د مشرکانو د ماشومانو باره کښې د حافظ ابن کثیر رحمه الله وضاحت:-** دَ دې تولو بحثونو دَ صفاکیدونه پس اوس واورئ دَ مشرکانو مړو شوو بچوباره کښې هم ګڼر اقوال دی.

① یودا چه دا ټول جنتیان دی دَ دې دلیل هم هغه په معراج کښې دَ حضرت ابراهیم علیه السلام سره دَ مشرکانو او مسلمانانو دَ بچو د حضور ﷺ لیدل دی اودَ دې دلیل دَ مسند هغه روایت دی کوم چه وړاندې تیرشوې دې چه حضور ﷺ اوفرمائیل ماشومان به په جنت کښې وی. اودَ امتحان کیدو چه کوم حدیث تیرشو هغه دَ دې نه مخصوص دې. نودَ چا په نسبت چه رب العالمین ته معلومه ده چه هغه تابعدار او حکم منونکې دې دَ هغوی روحونه په عالم برزخ کښې دَ حضرت ابراهیم علیه السلام سره دی اودَ مسلمانانو ماشومانو روحونه هم اودَ چاباره کښې چه الله تعالی ته معلومه ده چه هغه دَ قبلولووالا نه دې دَ هغوی کار الله تعالی سره دې. هغوی به دَ قیامت په ورځ دوزخیان وی لکه چه دَ امتحان والا دَ حدیث نه ښکاره ده. امام اشعری رحمه الله دا دَ اهل سنت نه نقل کړې ده

وس څوك وائی چه دا په مستقل توګه باندې جنتیان دی اوڅوك وائی چه دوی دَ اهل جنت خادمان دی. داسې حدیث په ابوداؤد طیالسی کښې دې خودَ دې سند ضعیف دې والله اعلم.

② دویم قول دا دې چه دَ مشرکانواولاد به هم خپل پلار نیکه سره دوزخ ته ځی لکه چه دَ مسندوغیره په حدیث کښې دی چه هغوی دَخپل پلارانونیکونوتابعداردی. دې اوریدو سره حضرت عائشه رضی الله عنها تپوس اوکړو سره دَ بې عمل کیدو؟ وئې فرمائیل چه هغوی څه عمل کونکې وو الله تعالی ته ښه معلومه ده.(احمد: ۸٤/٦ وسنده حسن) ابوداؤدکښې دی حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمائی ماد رسول الله ﷺ نه دَ مسلمانانودَ اولادباره کښې سوال اوکړو نوحضور ﷺ اوفرمائیل چه هغوی دَ خپلو پلارانو نیکونو سره دی. ماوئیل دَ مشرکانواولاد؟ وئې فرمائیل چه هغوی دَ خپلو پلارانو نیکونوسره دی. ما تپوس اوکړو چه بغیردَ څه عمل کولو نه؟حضور ﷺ اوفرمائیل هغوی به څه کول دا الله تعالی ته ښه معلوم دی. (ابوداؤد:٤٧١٢) دَ مسندپه حدیث کښې دی چه حضور ﷺ اوفرمائیل که ته غواړې نوزه به دَ هغوی ژړا انګولاچغې صورې هم تاته واوروم. (احمد:٦/٨٤)

دَ امام احمد رحمه الله خوئ روایت راوړې دې چه حضرت خدیجه رضی الله عنها دَخپلو دوو هغه ماشومانوباره کښې تپوس اوکړو کوم چه دَ جاهلیت په زمانه کښې مړه شوی وو حضور ﷺ اوفرمائیل چه هغه دواړه په دوزخ کښې دی کله چه حضور ﷺ اوکتل چه دا خبره خوپه دې ډیره سخته اولګیدله نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه که تادَ هغوی ځائ لیدلې وو نو ته به پخپله دَ هغوی نه ویزاره شوې وې. حضرت خدیجه رضی الله عنها عرض اوکړو اوچه کوم بچې ستانه شوې وو؟ حضور ﷺ اوفرمائیل واوره مؤمن اودَ هغه اولاد جنتی دې او مشرك اودَ هغه اولاد دوزخی دې. بیاحضور ﷺ دا آیت اولوستلو ﴿ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ بِاِيْمَانٍ اَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ ﴾ (٥٢/الطور:٢١) کومو خلقو چه ایمان راوړ اودَ هغوی اولاد دَ ایمان سره دَ هغوی تابعداری اوکړه مونږ به دَ هغوی اولاد هم هغوی سره ملاؤکړو. (احمد:١/١٣٤-١٣٥) دا حدیث غریب دې دَ دې په اسناد کښې محمد بن عثمان راوی مجهول الحال دې اودَ هغه شیخ زاذان حضرت علی رضی الله عنه نه دې لیدلې. والله اعلم. ابوداؤدکښې حدیث دې چه ژوندی خښ کونکې او ژوندی خښ شوی دوزخیان دی. (ابوداؤد:٤٧١٧) حضرت سلمه بن قیس اشجعی رضی الله عنه فرمائی ماخپل رور د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر کړو اواومې وئیل حضور ﷺ زمونږ مور دَ جاهلیت په زمانه کښې مړه شوې ده هغه صله رحمی کونکې اومیلمه دوسته وه. زمونږ یوه...... [باقی په راروانه صفحه...

| نَبْعَثَ | رَسُوْلًا |
|---|---|
| چې را ولیږو مونږه | یو رسول |
| چې یو پیغمبر اونه لیږو | |

.....باقی حاشیه د تیرمخ]... نابالغه خورهغې ژوندې خښه کړې وه نبی ﷺ اوفرمائیل داسې کونکې او چاسره چه شوی دی هغه دواړه دوزخیان دی دا یوه بله خبره ده چه په اسلام کښې راشی او قبول نی کړی. (احمد:۴۷۸/۳)

③ دریم قول دادې چه دَ دوی باره کښې توقف کول پکار دی یوه فیصله کونکې خبره یوطرف ته نه دی کول پکار. دَ هغوی اعتماد دَ حضور ﷺ په دې فرمان باندې دې چه دَ هغوی دَ اعمالوصحیح او پوره علم الله تعالی ته دې. بخاری کښې دی چه دمشرکانو دَ اولاد باره کښې کله دَحضور ﷺ نه تپوس اوکړې شو نو حضور ﷺ هم په دې الفاظوسره جواب ورکړو.( صحیح بخاری:۶۶۰۰، صحیح مسلم:۲۶۶۰) بعضې بزرګان وای چه دوی به اعراف کښې کیخودې شی دَ دې قول نتیجه هم دا ده چه دا جنتیان دی ځکه چه اعراف هم څه دَ استوګنې ځایُ نه دې دَ دې ځایُ والا به هم آخر جنت ته ځی. لکه چه دَ سورت اعراف په تفسیرکښې مونږ دَ دې تقریرکړې دې. والله اعلم.

**دَ مؤمنانو مړه شوی بچی به چرته وی؟:-** دا خواختلاف دَ مشرکانو دَ اولاد باره کښې خودَ مؤمنانو دَ نابالغه بچو باره کښې خودَ علماؤ بغیردَ څه اختلاف دا قول دې چه هغه جنتیان دی. لکه څنګه چه دَ امام احمد رحمه الله قول دې اوهم دا په خلقو کښې مشهوره هم ده اوان شاء الله تعالی زمونږ هم دغه امیددې خودَ بعضې علماؤ نه نقل دی چه هغوی دَ دوی باره کښې توقف کوی......[باقی په راروانه صفحه...

.....باقی حاشیه د تیرمخ]... اووائی چه تول ربنتونی دَالله تعالی دَ مرضئی اودَ هغه دَ خوښې ماتحت دی. اهل فقه اواهل حدیثو یوه ډله دې طرف ته هم تلې ده. موطا امام مالك د ابواب القدر په احادیثوکښې هم څه داسې دی لکه چه دَ امام مالك رحمه الله فیصله په دې کښې نشته خودَ بعضو متاخرینو قول دې چه مسلمانان ماشومان خو جنتی دی اودَ مشرکانو اولاد دَ الله تعالی دَ رضا ماتحت دی. ابن عبدالبر رحمه الله دا خبره داسې وضاحت سره بیان کړې ده خودا قول غریب دې. کتاب التذکره کښې امام قرطبی رحمه الله هم دا فرمائیلی دی. والله اعلم. دَ دې باره کښې دې بزرګانو یوحدیث دا هم نقل کړې دې چه دَ انصارو دَ یوماشوم په جنازه کښې حضور ﷺ راوغوښتلې شو نوام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها اوفرمائیل دې ماشوم ته خودې مرحبا وی دا خود جنت مرغئی ده نه ئی دَ بدئی څه کارکړې اونه هغه وخت ته رسیدلې حضور ﷺ اوفرمائیل دې نه علاوه نورهم څه وائی. اې عائشه! واوره الله تعالی جنت اوجنتیان مقررکړی دی سره دَ دې چه هغه دَ خپل پلار په شاکښې وو دغه شان هغه دوزخ پیداکړې دې اوپه دې کښې سوزیدونکی پیداکړی دی سره د دې چه هغوی اوس هم لاړ پلارانو په شاګانوکښې دی. د مسلم اوسنن داحدیث دې. (صحیح مسلم:۲۶۶۲، ابوداؤد:۴۷۱۳، ابن ماجه:۸۲)

دا مسئله دَ صحیح دلیل نه بغیر ثابتیدې نه شې اوخلق دَ خپلې بې علمئی په وجه بغیردَ شارع دَ ثبوت نه په دې کښې کلام کړې دې په دې وجه د علماؤ ډلې په دې کلام کول ناخوښ کړی دی. ابن عباس رضي الله عنه قاسم بن محمدبن ابی بکر صدیق او محمدبن حنفیه رحمه الله مذهب هم دا دې. حضرت ابن عباس رضي الله عنه خو په منبرباندې په خطبه کښې فرمائیلې وو چه دَ حضور ﷺ ارشاد دې چه دَ امت کار به ټیک ټاك وی ترکومې چه دوی دَ ماشومانوباره کښې څه کلام اونه کړی. (حاکم:۳۳/۱، ابن حبان:۶۷۲۴) امام ابن حبان رحمه الله وائی مراد دې نه دَ مشرکانو دَ بچو باره کښې کلام نه کول دی. په نورو کتابونوکښې دا روایت دَ حضرت عبدالله رضي الله عنه په خپل قول باندې موقوفاً نقل دې.

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ شپه او ورځ د دوه نخښو په طور پیدا کړي دي. بیا مو د شپې نخښه خو تیارهٔ پیدا کړه، او د ورځې نخښه مو روښانه کړه، چه تاسو د خپل رب فضل تلاش کړئ ، او دې دپاره چه تاسو د کلونو شمیر او (د میاشتو) حساب معلوم کړئ او مونږ هر یو څیز بیل بیل واضح کړي دي. او د هر سړي (د عمل) انجام مونږ د هغه په غاړه کښې زوړند کړي دي او د قیامت په ورځ باندې به مونږ (د هغه) اعمال نامه د یو لیک په شکل راویستلو سره د هغه مخې ته کړو کوم چه به هغه کهلاؤ وینی (او به وئیلې شی چه) اولوله خپله اعمال نامه! نن ته خپله د خپل حساب اخستلو دپاره کافی ئې. کوم انسان چه په نیغه لاره باندې ځی، نو هغه د خپلې فائدې دپاره ځی. او څوک چه د گمراهۍ لاره اختیاروی، هغه ئې دخپل نقصان دپاره اختیاروی. او هیڅ بوج اوچتولکې به د بل چا بوج نه اوچتوی. او مونږ چاته تر هغه وخته پورې سزا نه ورکوو تر څو پورې چه یو پیغمبر (هغوی ته) او نه لیږو.

## خلاصه تفسیر

﴿وَجَعَلْنَا الَّيْلَ وَالنَّهَارَ﴾ [مونږ شپې اوورځې لره ] دخپل قدرت ﴿آيَتَيْنِ﴾ [دوه نخښې جوړې کړې ﴿فَمَحَوْنَا آيَةَ الَّيْلِ﴾ پس دشپې نخښه ]یعنی شپې لره [مونږخړه جوړه کړه ﴿وَجَعَلْنَا آيَةَ النَّهَارِ مُبْصِرَةً﴾ اود ورځې نخښې لـه مونږه روښانـه جوړه کړه] چه په دې کښې هرشې بې تکلیف ښکاری ﴿لِتَبْتَغُوا فَضْلًا مِنْ رَبِّكُمْ﴾ [ددې دپاره چه ] دروځې [دخپل رب رزق تلاش کړئ ﴿وَلِتَعْلَمُوا عَدَدَ السِّنِينَ وَالْحِسَابَ﴾ او] دشپې او ورځې په تلو راتلو اود دواړو په رنګ کښې فرق چه یوه روښانه بله تیارهٔ ده اود دواړو په مقدارونو کښې په اختلاف سره [دکلونو شمیر] اونور ورکې ورو کې [حساب معلوم کړئ ] لکه چه دسوره یونس په اوله رکوع کښې یې بیان شوې دي ﴿وَكُلَّ شَيْءٍ فَصَّلْنَاهُ تَفْصِيلًا﴾ [اومونږ هر شی لره ښه په تفصیل سره بیان کړې دي ] په لوح محفوظ کښې خودټولو کائناتو مکمل تفصیل په قدر دضرورت دې په دې وجه دابیان دواړوته منسوب کیدې شی ﴿وَكُلَّ إِنْسَانٍ﴾ [اومونږه دهر ] عمل کوونکی [انسان عمل ] نیك وی اوکهٔ بد ﴿أَلْزَمْنَاهُ طَائِرَهُ فِي عُنُقِهِ﴾ [ددهٔ دغاړې هارجوړکړې دې ] یعنی دهر سړی عمل دده سره لازم اوملزوم دې ﴿وَنُخْرِجُ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كِتَابًا﴾ [او] بیا [دقیامت په ورځ به ددهٔ عمل نامه ددهٔ ] لیدو [دپاره راوباسومخامخ به یې کړو ورته﴿يَلْقَاهُ مَنْشُورًا﴾ چه دې به ښکاره ووینی ] اودهٔ ته به ووئیلې شی چه واخله ﴿اقْرَأْ كِتَابَكَ﴾ [خپله عملنامه ] په خپله [ولوله ﴿كَفَىٰ بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيبًا﴾ نن ته په خپله دخپل حساب معلومولو دپاره کافی یئې] یعنی ددې خبرې ضرورت نشته چه ستا عملونه بل سړی شمیر کړی بلکه ته په خپله خپله عملنامه لوله اوخپل حساب کوه چه تاته څومره سزا اوڅومره جزا ملاویدل پکاردی مطلب دادی چه اګر چه لاتراوسه عذاب مخې ته نه دې راغلې خودغه واپس کیدونکې نه دې یو وخت داسې راتلونکې دې چه انسان به خپل ټول عملونه په ښکاره سترګو ووینی اودعذاب حجت به پرې قائم شی او﴿مَنِ اهْتَدَىٰ﴾ [ کوم سړې چه په ] دنیا کښې په نیغه [لارچلیږی ﴿فَإِنَّمَا يَهْتَدِي لِنَفْسِهِ﴾ هغه دخپلې نفعې دپاره چلیږی ﴿وَمَنْ ضَلَّ﴾ اوکوم سړې چه بې لاری اختیار کړی ﴿فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا﴾ نو دغـه هم دخپل نقصان دپاره بې لارې کیږی] هغه وخت به یې دا سزا ومومی دبل هیڅانقصان نه دې څکه چه زمونږ قـانون دادې چه

﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ﴾ [ بل هیڅوك سرې د] ﴿وِّزْرَ أُخْرَىٰ﴾ چا د ګناه [ بوج نه شي اوچتولې ] او چاته چه څه سزا ورکولې شي هغه به ده ته دحجت تمام کولو نه پس ورکولې شي ځکه چه زمونږ قانون دادې چه ﴿وَمَا كُنَّا﴾ [ مونږه] چرته ﴿مُعَذِّبِينَ﴾ [ سزانه ورکوو ﴿حَتَّىٰ نَبْعَثَ رَسُولًا﴾ ترڅوپورې چه چارسول لره ] ددۀ دهدایت پاره [ ونه لیږو]

## معارف او مسائل

﴿وَجَعَلْنَا اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ آيَتَيْنِ﴾ دې آیتونو کښې اول د شپې ورځې مختلف کیدل د الله ﷻ د کامل قدرت نخښه اوګرځولې شوه ، او بیا اوخودلې شو چې د شپې په توروالی او د ورځې په روښانوالی کښې لوئې حکمتونه دی . د شپې د تور والی حکمت خودلته نه دی بیان شوې خو په نورو آیتونو کښې ددې حکمت داسې بیان شوې دې چې د شپې تیاره د خوب او آرام دپاره مناسب ده او قدرت داسې یو نظام جوړ کړې دې چې خلق په یو وخت خوبولې شی که دخلقو خوب په مختلفو وختونو وې نو د ویښو خلقو د کار روزګار او شور په وجه به د خوبولو خلقو خوبونه خراب شوی وو.

د ورځې د روښانتیا دلته دوه حکمتونه بیان شوی دی . یو دا چې د ورځې په رڼا کښې انسان خپله روزی لټولې شی ، د خوارئ ، مزدورئ روزګار دپاره د رڼا ضرورت وی ، بل دا چې د شپې ورځې په تلو راتلو سره د کلونو شمیر پوره کیږی ، یعنی چې درې سوه شپیته شوا روزه واوړی نو یو کال پوره شی .

دغه شان نور حسابونه د شپوورځو په تلو راتلو باندې اړه لری . که هر وخت ورځ یا هر وخت شپه وې نو دملازمت او مزدورئ وغیره نیتې ټاکل به ګران وو.

**عمل نامه د غاړې هار کیدل مطلب:** انسان چې چرته او په څه حال کښې وی د هغه عمل نامه ورسره وی ، په هغې کښې ددۀ عمل لیکلې شی چې مړ شی نو عمل نامه ئې خوندی کیخودې شی ، د قیامت په ورځ هر چاته خپله خپله عمل نامه ورکولې شی ، چې پخپله ددې په لوستلو سره پخپل زړه کښې دا فیصله اوکړې شی چې دې د ثواب حقدار دې که د عذاب ؟

قتاده رحمه الله فرمائی چې په دغه ورځ بۀ نا لوستې بنده هم خپله عمل نامه لوستلې شی ، په دې موقعه اصبهانی په روایت د ابی امامه رضی الله عنه د اروایت نقل کړې دې چې نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چې د قیامت په ورځ به د ځینې خلقو عمل نامه چې دهغوئ په لاس کښې ورکړې شی نو هغې ته په کتلو سره به وائی چې دې کښې خو زما ځینې نیك عملونه نه دی لیکلې شوی ، د الله ﷻ د طرفنه به ورته دا جواب ورکړې شی چې مونږ دغه عملونه ځکه د مینځه ویستلې دی چې تاسو به د خلقو غیبت کولو . [مظهری][1]

**د رسولانو لیږلو نه بغیر د عذاب د نیشتوالی وضاحت:** ددې آیت مبارك تر مخه د ځینې فقهاء امامانو په نزد هغې خلقو ته به سره د کفر هم عذاب نشی ورکولې چاته چې د یو پیغمبر او رسول بلنه نه وی وررسیدلې ، او د ځینې امامانو په نزد کومې اسلامی عقیدې چې په عقل سره پیژندلې شی ، لکه د الله ﷻ شته والې دهغه توحید وغیره . نو دداسې څیزونو په منکریدو به پرې د کفر عذاب وی ، اګر چې هغه ته د چا نبی یا رسول بلنه هم نه وی رسیدلې

[1] تفسیر المظهری تحت هذه الآیة [ج:۵ص:۴۲۱] و کنزل العمال رقم الحدیث [۸۰۴۷]

البته په عامو گناهونو به سزا نشي ورکولې کله چې ورته د چا پیغمبر بلنه نه وي رسیدلې، او ځینې حضراتو فرمائیلي دي چې دلته د رسول نه مراد عام دې، هغه رسول یا نبي وي او که انساني عقل وي، ځکه په یو حیثیت سره دا هم د الله ﷻ یو رسول دې.

**د مشرکانو نابالغه اولاد ته به عذاب نه وي** :: د ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ أُخْرٰى﴾ لاندې په تفسیر مظهري کښې لیکلي شوي دي چې دې نه دا ثابتیږي چې د مشرکانو هغې اولاد لره به د قیامت په ورځ عذاب نه وي چې نابالغ مړه شوي وي. ولې چې کفر خو ئې د مور پلار وي په هغې به دغه نابالغه اولاد ئې نه شي سزا کولې،(۱) په دې مسئله کښې د فقهاء امامانو اختلاف دې، دلته ئې د تفصیل ضرورت نشته دې.

وَإِذَآ أَرَدْنَآ أَن نُّهْلِكَ قَرْيَةً

| اوکله چې | اراده اوکړه مونږ | چې | هلاك کړو مونږ | یو کلې

او هرکله چې مونږ اراده اوکړو چې یو کلې دې هلاک شي

أَمَرْنَا مُتْرَفِيهَا فَفَسَقُوا۟ فِيهَا

نو حکم اوکړو مونږه | مالدارو خلقو دهغه کلي ته | نو نافرماني شروع کړه هغوئ | په هغې کښې

نو دهغه ځائې مالدارو خلقو ته حکم اوکړو نو دحکمونو منلو په ځائې هغوئ په کښې ورانې

فَحَقَّ عَلَيْهَا الْقَوْلُ فَدَمَّرْنٰهَا تَدْمِيرًا ⑯

نو ثابته شوه | په هغه کلي باند | خبره دعذاب | نوهلاك کړومونږه هغه کلې | په هلاکولو سره

شروع کړې نو د عذاب ئاپه پرې اولګی نو مونږ ئې تباه اوبرباد کړو

وَكَمْ أَهْلَكْنَا مِنَ الْقُرُونِ مِنۢ بَعْدِ نُوحٍ ۗ وَكَفٰى بِرَبِّكَ

اوڅومره ډیرهلاك کړل مونږه | د نسلونو نه | روستو دنوح نه | اوکافي دې | رب ستا |

او مونږ څومره ډیر امتونه دنوح ﷺ نه پس هلاک کړي دي اودا کافي ده چې ستارب

بِذُنُوبِ عِبَادِهِۦ خَبِيرًۢا بَصِيرًا ⑰

په گناهونو | دبندګانوخپلو | په لحاظ دخبردارئ سره | په لحاظ دلیدولو سره |

دخپلو بندګانو دګناهونو نه خبردار دې اوهرڅه ویني ګوري

**آسان ترجمه قرآن**

**اوکله چه مونږ د یو کلي د هلاکولو اراده اوکړو نو د هغې خوشحاله خلقو ته (د ایمان او طاعت) حکم ورکوو. بیا هغوی هلته نافرمانئ کوی، نو په هغوی باندې خبره پوره شي، پس مونږ هغوی تباه کوو او څومره نسلونه دي کوم چه مونږ د نوح علیه السلام نه پس هلاک کړل! او ستا رب د خپلو بندګانو د ګناهونو نه پوره طریقې سره خبر دې، هر څه ویني.**

---

(۱) تفسیر القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۰ص:۲۲۴]

## خلاصه تفسير

**ربط:** ددې څخه په اولنو آيتونو کښې دابيان وو چې الله ﷻ د خپل عادت مطابق تر هغې پورې چاته په گناه کولو څه عذاب نه ورکوی چې د پيغمبر ﷺ په ذريعه ورته د الله ﷻ هدايتونه نه وی رسيدلی ، اوس په دې آيتونو کښې ددې بل طرف داسې بيانيږی چې کله يو قوم ته رسول او د الله ﷻ پيغام اورسيږی او بيا هم هغوئ د سرکشئ څخه کار واخستو نو په هغه قوم باندې عام عذاب راليږلې شی .

﴿وَاِذَآ اَرَدْنَآ اَنْ نُّهْلِكَ قَرْيَةً﴾ [اوهر کله چه موږ يو کلی لره] کوم چه دخپل کفر اونافرمانئ په وجه سره په مقتضاء دحکمت الهی دهلاکولو قابل وی هلاك كول وغواړو نو دوی لره دليږلو درسول نه وراندې نه هلاکوو بلکه اول دچارسول په معرفت ﴿اَمَرْنَا مُتْرَفِيْهَا﴾ [ددغې ]کلی [عيش كوونكو] يعنی اميرانواورئيسانو [خلقوته ] خصوصا اونورو ته عموما دايمان او اطاعت [حکم ورکړوبيا] هرکله ﴿فَفَسَقُوْا فِيْهَا﴾ [چه دغه خلق ] خبره ونه منی بلکه [هلته شرارت شروع کړی ﴿فَحَقَّ عَلَيْهَا الْقَوْلُ﴾ پس په دوی حجت تمام شی ﴿فَدَمَّرْنٰهَا تَدْمِيْرًا﴾ بيادغې کلی لره تباه اوبرباد کړو او] ددې عادت موافق ﴿وَكَمْ اَهْلَكْنَا مِنَ الْقُرُوْنِ مِنْۢ بَعْدِ نُوْحٍ﴾ [مونږ ډيرو امتونولره دنوح ]ﷺ دزمانې [نه پس ]ددوی دکفر اونافرمانئ په سبب [هلاك كړی دی ] لکه عاديان ثموديان وغيره اودنوح ﷺ دقوم غرقول اوهلاك كول خومشهور اومعلوم دی په دې وجه په من بعدنوح باندې ئې بس والئ اوکړو په خپله دنوح ﷺ دقوم ذکر ئې ونه کړو او داهم وئيلې شی چه دسورة په شروع کښې ايت [ذُرِّيَّةَ مَنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوْحٍ] کښې په لفظ دحملنا سره طوفان نوح ﷺ طرف ته اشاره موجوده ده دغه يې دنوح ﷺ دقوم دهلاکت بيان مقرر کړو دلته ئې پس دنوح ﷺ نه ذکر وفرمائيلو ﴿وَكَفٰى بِرَبِّكَ بِذُنُوْبِ عِبَادِهٖ خَبِيْرًاۢ بَصِيْرًا﴾ [اوستاسو رب دخپلو بندگانوپه گناهونو پوهيدونکې ليدونکې کافی دې ] نوچه څنګه ديو قوم گناه وی دغسې سزا ورکوی .

## معارف او مسائل

**يوه شبه او دهغې جواب :** د آيت د الفاظو ﴿وَاِذَآ اَرَدْنَآ﴾ او وروستو د ﴿اَمَرْنَا﴾ نه په ظاهره دا شبه كيدلې شوه چې د الله ﷻ مقصود ددغې خلقو هلاکول وو ، څکه اول ورته په ذريعه د پيغمبرانو ﷺ د ايمان او فرمانبردارئ حکم ورکول ، بيا دهغوئ فسق او فجور د عذاب سبب جوړول ، د الله ﷻ د طرفنه شو نو بيا خو دا عاجزان مجبوره او معذوره شو ؟

د ترجمې او د خلاصې په ترڅ کښې ددې جواب ته دااشاره تيره شوې ده چې الله ﷻ انسان ته عقل او اختيار ورکړې دې . د عذاب او ثواب لارئ ، چارې ئې ورته اوښاکلې ، بيا هم چې څوك پخپل اختيار او قصد سره د عذاب په لار کښې اخته شی نو د الله ﷻ عادت دادې چې هغه ددغې عذاب اسباب ورته برابر وی . په دې بنا د عذاب اصلی سبب پخپله دهغوئ عزم او قصد او کفر او نافرمانئ وی ، خالص اراده ئې نه وی څکه هغه معذوره كيدې نشی.

**ددې آيت مبارك يو بل تفسير :** لفظ ﴿اَمَرْنَا﴾ مشهور مفهوم او معنی ئې هغه ده چې پورته بيان شوه يعنی حکم ورکړو مونږ ، خو دې آيت مبارك کښې ددې لفظ قراءتونه مختلف دی ددې يو قرات ﴿اَمَّرْنَا﴾ هم دې چې ابو عثمان نهدی رحمه الله ، ابورجاء رحمه الله ، ابو العاليه رحمه الله ، او مجاهد رحمه الله اختيار کړې دې . چې ثلاثی مزيد باب تفعيل دې ، معنی ئې داده چې مونږ سرمايه دار

خوش عیش خلق امیران او حاکمان جوړ کړل چې په فسق او فجور کښې لګیا شو او ټول قوم دپاره د عذاب سبب جوړ شو.

علی ﷜ او ابن عباس ﷠ دالفظ ﴿اَمَّرْنَا﴾ په تشدید د میم سره لوستلې دې چې دهغوئ نه ئې تفسیر ﴿اَكْثَرْنَا﴾ نقل شوې دې ، معنی ئې دا ده چې کله الله ﷻ په يو قوم باندې عذاب ليږی نو دهغې اولنئ نخښه دا وی چې دغې قوم کښې مالدار خلق ډیر شی هغوئ د خپل فسق او فجور په ذریعه ټول قوم لره په عذاب کښې د راګیرولو سبب جوړ شی.

دې دواړو کښې د ړومبی قراءت حاصل دا شو چې داسې خوش عیشه او د پنګې خاوندان د قوم حاکمان جوړ کړیشی ، او دبل قرات حاصل دا شو چې په قوم کښې داسې خلق زیات کړې شی.

د ې دواړو نه دا معلومه شوه چې د عیش پسند خلقو حکومت یا داسې خلق په قوم کښې ډیریدل څه د خوشحالئ څیز نه دې ، د الله ﷻ د عذاب نخښهٔ ده کله چې الله ﷻ د يو قوم نه خفه شی او په عذاب کښې ئې ښکیل کول غواړی نو د هغې اولنئ نخښه دا وی چې ددغې قوم حاکمان او رئیسان داسې خلق جوړلوې شی چې عیش کوؤنکی خلق وی ، یا که حاکمان هم نشی جوړ خو په قوم کښې اکثریت ددغسې خلقو وی ، د دواړو صورتونو نتیجه دا وی چې دا خلق په خوندونو مزو او آخستو کښې بوښت شی پخپله هم د الله ﷻ نافرمانئ کوی نورو دپاره هم دهغې لارې جوړوی ، آخر دا چې د الله ﷻ عذاب پرې راشی.

**په قوم باندې د مالدارو خلقو اثر کیدل یو ه طبعی خبره ده ::** آیت مبارك کښې دسرمایه دارو خو ش عیشه خلقو په خصوصیت سره بیان کولو کښې دې ته اشاره ده چې عوام خلق په فطری ډؤل د خپل نوم د مالدارو خلقو او حاکمانو د عملونو او اخلاقو نه اثر قبلوی ، کله چې دغسې خلق بدعمله شی نو ټول قوم بدعمله شی ، پکار دادی چې د مال دولت خاوندان دې ددې زیات خیال فکر ، ساتی چې دخپلو عملونو او اخلاقو اصلاح کوی ، داسې دې نه کوی چې په مزو کښې بالکل بې فکره شی اوټول قوم د دوئ په وجه په کندو ا و غلطو لارو باندې اولګی ، په دې ډول د قوم د خرابو عملونو وبال به هم په دوئ باندې وی.

مَنْ كَانَ يُرِيْدُ　الْعَاجِلَةَ　عَجَّلْنَا　لَهٗ　فِيْهَا　مَا

څوك چې وی چې غواړی | زر حاصلیدونکی دنیا | نو زر به ورکړو مونږه | هغه ته | په هغې کښې | هغه څه

څوك چې په تندئ د دنیا دګټلو خواهش لری مونږ به ورله په تندئ په دنیا کښې ورکړو

نَشَآءُ　لِمَنْ　نُّرِيْدُ　ثُمَّ　جَعَلْنَا　لَهٗ　جَهَنَّمَ

چې غواړومونږه | دپاره دهغه چا | چې غواړو مونږ | بیابه | جوړ کړومونږه | دپاره دهغه | دوزخ

څومره چې اوغواړو اودچا په حقله چې اوغواړو خوبیا به ورله دوزخ تیار کړو

يَصْلٰهَا　مَذْمُوْمًا　مَّدْحُوْرًا ﴿۱۸﴾　وَمَنْ　اَرَادَ　الْاٰخِرَةَ

چې سوزی به په هغې کښې | ملامته | درحمت نه محرومه | او چاچې | اراده اوکړه | دآخرت

چې په هغې کښې به بدحاله او بدچاله ورننوځئ اوڅوك چې دآخرت خواهش ساتی

وَسَعٰى　لَهَا　سَعْيَهَا　وَهُوَ　مُؤْمِنٌ

او کوشش ئې اوکړو | دپاره دهغې | لکه څنګه چې حق دې دکوشش دهغې | او هغه | مومن وی

اوهغې له دهغې په مناسب کوشش کوی اومومن وی

فَأُولٰٓئِكَ　كَانَ　سَعْيُهُمْ　مَّشْكُورًا ﴿۱۹﴾　كُلًّا　نُّمِدُّ

نو دغه کسان چې دی | وی به | کوشش دهغوئ | قبول کړې شوې | دهر يوسره | امداد کوؤ مونږ

نو دداسې خلقو کوششونه به مقبول وی مونږ دهر چا امداد کوؤ

هٰٓؤُلَآءِ　وَهٰٓؤُلَآءِ　مِنْ عَطَآءِ رَبِّكَ ؕ　وَمَا كَانَ　عَطَآءُ　رَبِّكَ

ددوئ سره | اودهغوئ سره | دبخشش د رب ستانه | او نه دې | بخشش | درب ستا |

ددوئ هم او دهغوئ هم چې داستا درب ورکړه ده اوستا درب ورکړه په

مَحْظُوْرًا ﴿۲۰﴾　اُنْظُرْ　كَيْفَ　فَضَّلْنَا　بَعْضَهُمْ　عَلٰى بَعْضٍ ؕ

منع کړې شوې | اوګوره | چې څرنګې | فضليت ورکړې دې مونږه | ځينودهغوئ لره | په ځينوباندې |

چا بنده نه ده ته اوګوره چې مونږ څنګه دوئ ته په دنيا کښې يوبل باندې فضيلت ورکړې دې

وَلَلْاٰخِرَةُ اَكْبَرُ　دَرَجٰتٍ　وَّاَكْبَرُ　تَفْضِيْلًا ﴿۲۱﴾

اوخامخا اخرت ډير لوئ دې | په لحاظ ددرجو سره | او ډير لوئ دې | په لحاظ دغوره والې سره |

اوالبته د آخرت درجې دټولو نه لوئې اوپه فضيلت کښې تولونه زياتې دی

### آسان ترجمه قرآن

کوم انسان چه د دنيا فوری فائدې غواړی نو مونږ چه چاته اوغواړو، څومره چه غواړو، هغه ته ئې هم دلته زر ورکوو بيا دهغه دپاره مونږ جهنم پريخودلې دې چه په هغې کښې به ذليل او خوار داخليږی او کوم سړې چه (د) آخرت (فائده) غواړی، او دهغې دپاره هم هغه شان کوشش هم کوی څنګه کوشش چه ورله کول پکار دی په داسې حال کښې چه هغه مومن هم وی، نو د داسې خلقو د کوشش به پوره قدر کولې شی. (اې پيغمبره!) څو چه (په دنيا کښې) ستا د رب د ورکړې تعلق دې، مونږ دوی ته هم د هغې نه ورکوو، او هغوی ته هم، او (په دنيا کښې) ستا د رب ورکړه دچا دپاره هم بنده نه ده. اوګوره مونږ څنګه په هغوی کښې يو ته په بل باندې فضيلت ورکړې دې او يقين اوساته چه آخرت د درجاتو په لحاظ سره هم ډير لوئې دې، او د فضيلت په اعتبار سره هم ډير زيات دې.

### خلاصه تفسير

﴿مَنْ كَانَ﴾ [کوم سړې چه] په خپل نيك عمل سره صرف ﴿يُرِيْدُ الْعَاجِلَةَ﴾ [ددنيا] دنفع [نيت لری] خواه په دې وجه چه دې داخرت نه منکر دې ياپه دې وجه چه دآخرت نه غافله دې ﴿عَجَّلْنَا لَهٗ فِيْهَا مَا نَشَآءُ﴾ [مونږ داسې سړی ته په دنياکښې څومره چه غواړو] بياداهم دټولو دپاره نه بلکه ﴿لِمَنْ نُّرِيْدُ﴾ [ دچادپاره چه غواړو فی الحال ئې ورکوو ] يعنی په دنيا کښې به ورته څه جزاء ملاؤ شی [بيا] په اخرت کښې به ورته خاوړې ملاؤ شی بلکه هلته ﴿ثُمَّ جَعَلْنَا لَهٗ جَهَنَّمَ﴾ [به مونږ ددۀ دپاره جهنم تجويز کوو ﴿يَصْلٰىهَا مَذْمُوْمًا مَّدْحُوْرًا ﴿۱۸﴾﴾ دې به ورته بدحاله شړلې شوې داخل

شی ﴿وَمَنْ﴾ اوکوم سړی چه ] په خپلو عملونو کښې ﴿اَرَادَ الْاٰخِرَةَ﴾ [دآخرت ] دثواب [نیت لری ﴿وَسَعٰى لَهَا سَعْيَهَا﴾ اوددې دپاره څنګه کوشش چه پکاروی هغسې کوشش هم کوی ] مطلب دادې چه هریو کوشش هم مفید نه وی بلکه کوشش صرف هغه مفید دې کوم چه دشریعت اوسنت موافق وی څکه چه حکم دداسې کوشش ورکړې شوې دې کوم عمل اوکوشش چه دشریعت اوسنت خلاف وی هغه مقبول نه دې ﴿وَهُوَ مُؤْمِنٌ﴾ [په دې شرط چه دغه سړې مؤمن هم وی ﴿فَاُولٰٓئِكَ كَانَ سَعْيُهُمْ مَّشْكُوْرًا﴾ پس دداسې خلقو داکوشش به مقبول وی ] غرض دالله تعالی په نزد دکامیابۍ شرطونه څلور شول اول صحیح نیت یعنی چه نیت خالص داخرت دثواب وی نفسانی غرض په کښې شامل نۀ وی دویم ددې نیت دپاره عمل او کوشش کول صرف په نیت او اراده سره کارنۀ کیږی ترڅوچه ددغې دپاره عمل ونه کړی دریم صحیح والې دعمل یعنی چه کوشش اوعمل دسنت اوشریعت مطابق وی څکه چه دمقصدنه خلاف طرف ته کوشش اومنډې وهل په ځایٔ دفائدې دمقصدنه نور لرې کول کوی څلورم شرط کوم چه ټولو نه اهم اوډټولو مدار دې صحیح کیدل دعقیدې یعنی ایمان دې ددې شرطونونه بغیر یوعمل هم دالله تعالی په نزد مقبول نه دې اوکفاروته ددنیا نعمتونه حاصلیدل ددوی دعملونو دمقبولیت نخښنه ده څکه چه ددنیا نعمتونه دمقبولینو ډپاره مخصوص نه دی بلکه] ﴿كُلًّا نُّمِدُّ هٰٓؤُلَآءِ﴾ مونږ خو ددې مقبولینوهم مدد کوؤ ﴿وَهٰٓؤُلَآءِ مِنْ عَطَآءِ رَبِّكَ﴾ اود هغه غیر مقبولینو هم مدد کوؤ ﴿وَمَا كَانَ عَطَآءُ رَبِّكَ مَحْظُوْرًا﴾ [ستادرب بخشش ] په دنیا کښې په هیچا [بندنه دې ﴿اُنْظُرْ كَيْفَ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ﴾ ته وګوره چه مونږ ] په دې دونیوی بخشش کښې بغیر دشرط دایمان او دکفرنه [یولره په بل څنګه غوره والې ورکړې دې] تردې چه اکثر کافران داکثرو مؤمنانونه زیات نعمت اودولت لری څکه چه داڅیزونه دقدر قابل نه دی ﴿وَلَلْاٰخِرَةُ﴾ [البته اخرت ] کوم چه دمقبولینو دبارګاه سره خاص دې دغه ﴿اَكْبَرُ دَرَجٰتٍ﴾ [ددرجوپه اعتبارسره ډیر لوئ دې او ﴿وَاَكْبَرُ تَفْضِيْلًا﴾ دفضیلت په اعتبار سره هم ] نو په دې وجه اهتمام سره ددغې کول پکاردی .

## معارف او مسائل

دې مذکوره آیتونو کښې په خپل عمل سره ددنیا د ارادې لرونکو او ددوئ د سزا چې کوم بیان راغلې دې د هغې دپاره خو الفاظ ﴿مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعَاجِلَةَ﴾ استعمال شوی دی چې په استمرار ، دوام جاری والی باندې دلالت کوی . د هغې مطلب دا دې چې د جهنم دا سزا به په هغه صورت کښې وی چې ددۀ په هر عمل کښې هر وخت صرف او صرف ددنیا غرض وی ، او آخرت طرف ته یې هډو خیال نه وی . او د آخرت د ارادې اوددې د سزا دپاره لفظ ﴿وَمَنْ اَرَادَ الْاٰخِرَةَ﴾ استعمال شوې دې، ددې مطلب دادې چې مؤمن په کوم وخت کښې هم د آخرت اراده او نیت کوی نو دهغه هغه عمل به مقبول وی ، اګر که د یو بل عمل په نیت کښې ئې فساد او خرابی شامله وی ،

ړومبې حال یوازې دهغه چا کیدې شی چې کافر او د آخرت منکر وی ، اود دې وجې به د هغه هیڅ یو عمل مقبول نه وی ، او دویم حال د مؤمن دې ، دهغه هغه عمل چې په اخلاص د نیت سره وی، او باقی شرطونه هم په کښې موجود وی ، هغه به قبلیږی او په کوم یو عمل کښې ئې چې اخلاص نه وی یا نورضروری شرطونه په کښې بالکل نه وی هغه به نشی قبلولې

بدعتونه او په حیلې رائې باندې بنا شوی عملونه څه هر څومره په ښکاری هغه نه قبلیږي :: دې آیت مبارك کښې د ﴿سَعْيَهَا﴾ لفظ په زیاتولو سره دا اوخودلې شو چې هر یو عمل اوکوشش نه څو فائده ورکولې شي اونه د الله ﷻ په نزد دقبلیدو وړ وی ، بلکه هغه عمل او کوشش معتبر دې چې دمقصد [آخرت] مناسب وی او دمقصد مناسب کیدل یا نه کیدل ،دا یواځې د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ د بیان نه معلومیدې شي ، دغه وجه ده چې کوم نیک عملونه پخپلې رائې یا په حیلو او غلطو طریقو سره اوکړې شي په کومو کښې چې د بدعتونو عام رسمونه شامل دی ، هغه که په نظر کښې ډیر ښکلی او فائده مند راځي څو د آخرت دپاره مناسب سعي نه ده ځکه نه څو د الله ﷻ په نزد مقبول دي او نه په آخرت کښې پکار راځي.

په تفسیر روح المعاني کښې د ﴿سَعْيَهَا﴾ په تشریح کښې دا لیکلې شوی دی چې مقبول عمل به هغه وی چې د سنت مطابق وی او ورسره داسې هم وی چې په استقامت سره تل دپاره کولې شی ، چې کله کول[1] او کله نه کول وی ، پوره انتظام سره همیشه نشي کولې ، نو دهغې پوره فائده نه وی.

لَا تَجْعَلْ | مَعَ اللّٰهِ | اِلٰهًا اٰخَرَ | فَتَقْعُدَ | مَذْمُوْمًا | مَّخْذُوْلًا ﴿۲۲﴾

مه جوړوه ته | دالله سره | معبود بل | کنې نوته به کیني | ملامته | بي امداده پریښودې شوی

الله ﷻ سره څوک شریک مه جوړوئ کنې بدحاله بې مددګاره به ناست پاتې شئ

وَقَضٰى | رَبُّكَ | اَلَّا تَعْبُدُوْٓا | اِلَّآ | اِيَّاهُ | وَبِالْوَالِدَيْنِ

او فیصله کړې ده | رب ستا | چې تاسو عبادت مه کوئ دهیچا | مګر | صرف دهغه | اوکوئ دمور او پلار سره

اوستارب داحکم کړې دې چې بې دهغه نه دبل هیچا عبادت مه کوئ اومورپلار سره

اِحْسَانًا ؕ | اِمَّا | يَبْلُغَنَّ | عِنْدَكَ | الْكِبَرَ | اَحَدُهُمَآ | اَوْ كِلٰهُمَا

احسان | که چرې | اورسیږي | په موجودګئ ستا کښې | بوډاوالی ته | یو دهغوئ نه | یاهغوئ دواړه

احسان کوئ که په دوئ کښې یو یا هغه دواړه ستاپه وړاندې بوډاوالی ته اورسي

فَلَا تَقُلْ | لَّهُمَآ | اُفٍّ | وَّلَا تَنْهَرْهُمَا | وَقُلْ لَّهُمَا | قَوْلًا

نومه وایه ته | هغوئ دواړوته | کلمه داف | اومه رټه هغوئ دواړه | اووایه دواړوته | خبره نرمه

نو تاسو دوئ ته اوف قدرله هم اونه کړئ اودوئ مه رټئ اودوئ سره په نرمئ سره

كَرِيْمًا ﴿۲۳﴾ | وَاخْفِضْ لَهُمَا | جَنَاحَ الذُّلِّ | مِنَ الرَّحْمَةِ | وَقُلْ رَّبِّ

اوښکنته لره | دپاره | ددواړو | او وزر د عاجزئ | د رحمت نه | اووایه چې اے ربه

خبرې کوئ او دهغوئ په وړاندې په مینه محبت سره دعاجزئ نه ټیټ اوسیږئ اوداسې وائې چې ائې زما ربه

ارْحَمْهُمَا | كَمَا | رَبَّيٰنِيْ | صَغِيْرًا ﴿۲۴﴾

رحم اوکړه په دواړوباند | لکه چې | هغوئ پالنه کړې ده زما | په وړوکوالی [زما] کښې

په دوئ دواړو باندې رحم اوکړه لکه څنګه چې دوئ په وړوکوالی کښې زما پالنه کړې وه

[1]) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۰ ص: ۴۲۰]

| رَبُّكُمْ | اَعْلَمُ | بِمَا | فِيْ نُفُوْسِكُمْ | اِنْ تَكُوْنُوْا | صٰلِحِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| رب ستاسو | ښه خبر دې | په هغه څه | چې په زړونو ستاسو کښې دي | که جوړ شوئ تاسو | نیکان |

څه چې ستاسو په زړونو کښې دی ستاسو رب ته هغه ښه معلوم دی که تاسو نیکان یئ

| فَاِنَّهٗ | كَانَ | لِلْاَوَّابِيْنَ | غَفُوْرًا |
|---|---|---|---|
| نو بیشکه الله | دې | دپاره دتوبه ایستونکو | ښښونکې |

نو هغه دتوبې ویستونکو دپاره بخښونکې دې

## آسان ترجمه قرآن

د الله پاک سره بل څوک معبود مه جوړوه، کینې ته به ملامته (او) بې اسرې کینې. او ستا رب حکم کړې دې چه د هغه نه سوا د چا عبادت هم مه کوئ، او د مور پلار سره نیک سلوک کوئ. که په مور پلار کښې یو یا دواړه ستا په موجودګۍ کښې بوډا توب ته اورسیږي نو هغوی ته اوف قدرې هم مه وایه. او مه هغوی ته رټنه کوه بلکه هغوی سره په عزت باندې خبره کوه. او هغوی سره د محبت سلوک کولو سره د هغوی مخې ته خپل ځان په عاجزئ سره ښکته ساته. او دا دعا کوه چه: یا ربه! څنګه چه هغوی زه په وړوکوالی کښې پاللې یم، ته هم هغوی سره د رحمت معامله اوکړه ستاسو رب ته ښه معلومه ده چه ستاسو په زړونو کښې څه دي، که تاسو نیکان شئ، نو هغه د هغه خلقو خطاګانې ډیرې معاف کوي. کوم چه په کثرت سره هغه ته رجوع کوي.

## خلاصه تفسیر

**ربط**: په تیرؤ شوؤ آیتونو کښې د عملونو د قبلیدو دپاره څو شرطونه بیان شوي دي. یو شرط دهغې ځینې دادې چې عمل سره د ایمانه او د شریعت او سنت نبوی ﷺ په جوړ وي، اوس دې آیتونو مبارکو کښې دداسې خصوصي عملونو هدایت کړې شوې دې چې د شریعت خودلې شوي حکمونه دي. په هغې باندې عمل کول د آخرت د کامیابۍ باعث جوړیږي او مخ ترې اړول د آخرت د هلاکت سبب جوړیږي. هر کله چې په دغې بیان شوؤ شرطونو کښې د ټولو څخه زیات ضروري شرط ایمان دې ځکه د ټولو څخه وړومبې حکم د توحید بیانیږي چې ورپسې د بندګانو حقونه بیانولې شي.

**اولنې حکم دتوحید** ﴿لَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ﴾: ﴿لَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ﴾ اے مخاطبه [دالله تعالی سره څوك بل معبود مه جوړ وه ] یعنی شرك مه كوه ﴿فَتَقْعُدَ مَذْمُوْمًا مَّخْذُوْلًا﴾ [ ورنه ته به بدحاله بې یار مددګار پاتې شې ] وړاندې بیا ددې تاکیددې ﴿وَقَضٰى رَبُّكَ﴾ [ ستارب حکم کړې دې ﴿اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ﴾ چه بغیر دده ] معبود برحق [نه دبل چاعبادت مه کوئ دا د سعیٔ د اخرت دلاړې تفصیل دې دویم حکم دوالدینو دحقونو اداء کولو [وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا] [اوتاسو دخپل مور اوپلار سره ښه سلوك کوئ ] ﴿اِمَّا يَبْلُغَنَّ عِنْدَكَ الْكِبَرَ اَحَدُهُمَآ اَوْ كِلٰهُمَا﴾ که هغوئ [ستاپه وړاندې ] وی او [په دوی کښې یو یادواړه ] عمر د [زوړوالی ته ورسی] چه ددې په وجه دوی خدمت ته محتاج شی اوهرکله چه طبعا ددوی خدمت کول ګران معلومیږی [پس ] دغه وخت ئې هم دومره

ادب کوه چه ﴿فَلَا تَقُلْ لَّهُمَآ اُفٍّ وَّلَا تَنْهَرْهُمَا﴾ [دوی ته چرته ] دهاه نه [هوهم مه وایه او دوئ رټه مه ﴿وَقُلْ لَّهُمَا قَوْلًا كَرِيْمًا﴾ ا ودوئ سره ډیر په آدب سره خبره کوه. ﴿وَاخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ وَقُلْ رَّبِّ ارْحَمْهُمَا﴾ او دوی ته په شفقت اوعاجزئ سره ښکته کیږه او] ددوی دپاره دالله تعالی نه [داسې دعاغواړه چه اے زماپروردګاره په دې دواړو باندې رحمت وفرمایه ﴿كَمَا رَبَّيٰنِيْ﴾ لکه چه دوی ماله په] عمرد ﴿صَغِيْرًا﴾ [ورکوټوالی کښې پالنه او پروش کړې دې] او صرف په دې ظاهری عزت اوتعظیم باندې بس وائی مه کوئ په زړه سره هم د دوی داطاعت ادب اوتعظیم قصد ساتئ ځکه چه ﴿رَبُّكُمْ اَعْلَمُ بِمَا فِيْ نُفُوْسِكُمْ﴾ [ستاسو رب ستاسود زړونو خبرې لره ښه پیژنی ] اوپه دې وجه ستاسو دپاره په دې تعمیل دحکم کښې اسانئ پیداکولو دپاره د تخفیف حکم هم کوی چه ﴿اِنْ تَكُوْنُوْا﴾ [که تاسو] په حقیقت کښې په زړه سره ﴿صٰلِحِيْنَ﴾ [سعادتمندئې ] اوپه غلطئ یاتنګ مزاجئ یازړه تنګئ سره څه ظاهری کوتاهی درنه وشی اوبیا ستومانه شئ معذرت وکړئ ﴿فَاِنَّهٗ كَانَ لِلْاَوَّابِيْنَ غَفُوْرًا﴾ [نوهغه دتوبه کوونکوخطالره معاف کوی.

## معارف او مسائل

**دمور پلار د ادب ، احترام او تابعدارئ کولو لوړ شان ::** امام قرطبی رحمه الله د والدینو ادب ، احترام ، او ورسره ښه سلوك كول ، د خپل عبادت سره یو ځائې کړل او واجب ئې اوګرځول ، څنګه چې په سورة لقمان کښې الله ﷻ فرمائی چې : ﴿اَنِ اشْكُرْ لِيْ وَلِوَالِدَيْكَ﴾ یعنی ځما شکر ادا کوه او د خپل مور پلار هم] ، دې څخه ثابته شوه چې د الله ﷻ د عبادت څخه روستو د والدینو فرمانبرداری او تابعداری کول د ټولو څخه زیات ضروری دی ، دغه شان دالله ﷻ شکر ادا کولو سره سره د والدینو شکر ادا کول هم واجب دی . څنګه چې د بخاری شریف یوحدیث پاك كښې دی چې یو خل د رسول کریم ﷺ څخه یو سړی سوال اوکړو چې د ټولو څخه زیات غوره عمل کوم یو دې ؟ نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې پخپل وخت کښې مونځ کول. هغه بیا تپوس اوکړو چې ددې څخه روستو کوم یو عمل زیات خوښ دې؟ هغوئ ﷺ اوفرمائیل : والدینو سره ښه سلوك کول .[قرطبی](1)

**د والدینو د تابعدارئ او خدمت فوروالې دحدیث پاك د روایتونو څخه::**

① مسند احمد ، ترمذی ، ابن ماجه او په مستدرك دحاكم كښې په صحیح سند سره د ابی الدرداء رضي الله عنه څخه روایت دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل : پلار د جنت منځنئ دروازه ده ، اوس ستاسو خوښه ده چې ددې حفاظت کوئی اوکه ضائع کوئی یئی . [مظهری].(2)

② او په جامع ترمذی او په مستدرك د حاكم کښې د عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روایت دې چې حاکم ورته صحیح هم وئیلې دی ، وائی چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل : د الله ﷻ رضا د پلار

---

(1) تفسیر القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۰ص:۲۳۸] و صحیح البخاری کتاب مواقیت الصلاة ،باب فضل الصلاة لوقتها [ج:۱ص:۷۵]

(2) تفسیر المظهری تحت هذه الآية [ج:۵ص:۴۳۲] و جامع الترمذی ، ابواب البر والصلة، باب ماجاء فی فضل فی رضاالوالدین[ج:۲ ص:۱۱] وسنن ابن ماجة، ا کتاب الطلاق،باب الرجل یامره ابوه بطلاق امراته [ج:۱ ص:۱۵۱ ] و مسند احمد رقم الحديث :[۲۰۷۳۳] (باق حديث ابی الدرداء رضی الله عنه)

رضا ده ، او دهغه خفګان د الله ﷻ خفګان دې .([1])

④ ابن ماجه کښې د ابی الدرداء رضي الله عنه څخه روايت دې چې يو کس د رسول کريم ﷺ څخه تپوس اوکړو چې په اولاد باندې د مور پلار څه حق دې ؟ نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې دا دواړه ستاسو جنت دی يا دوزخ .([2]) مطلب دا چې ددوئ په تابعدارئ او خدمت کولو سره جنت ملاويږی او په بې ادبئ او خفګان سره ئې دوزخ بيا مونډې شی .

④ بيهقی په شعب الايمان کښې او ابن عساکر په روايت د ابن عباس رضي الله عنه نقل کړی دی چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې :

څوک چې د الله ﷻ په خاطر دخپل مور اوپلار فرمانبردار پاتې شو ، هغوئ دپاره به د جنت دوه دروازې بيرته کولې شی ، او نافرمانه دپاره به دجهنم دوه دروازې بيرته کولې شی . او که د مور پلار څينې ورسره يو پاتې شی نو دجنت يا دوزخ يوه يوه دروازه به ددهٔ دپاره بيرته کولې [خلاصولې] شی . په دې موقعه يو سړی سوال اوکړو چې دا وعيد په داسې حال کښې هم دې چې مور پلار ظلم کړې وی . نبي کريم ﷺ درې ځله اوفرمائيل چې وان ظلما وان ظلما .([3])

يعنی که دې دواړو ظلم هم کړې وی نو بيا هم دغه وعيد څکه شته چې خپل مور پلار څخه دبدل اخستلو د چا حق نشته دې چې کنی دهغوئ د ظلم کولو په بدل کښې ئې اولاد د هغوئ دخدمت او ادب کولو نه لاس واخلی .

⑤ بيهقی کښې د ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دې چې رسول کريم ﷺ فرمائيلی دی چې کوم خدمت کوؤنکې څوئې چې په خپل مور پلار باندې دشفقت نظر اچوی نو د هر نظر په بدله کښې د يو قبول شوی حج ثواب بيا مومئ . خلقو عرض اوکړو چې که داسې ورته سل ځله امروزه نظر کوی ؟ هغوئ اوفرمائيل چې او سل ځله هم ، په هر نظر به ورته هم دغه ثواب وی . الله ﷻ لوئې دې ،([4]) دهغه په خزانه کښې هيڅ کمې نه رازی .

**دوالدينو د حق تلفئ سزا د آخرت څخه وړاندې په دنيا کښې هم ملاويږی ::** ⑥ بيهقی په شعب الايمان کښې د ابی بکر صديق رضي الله عنه څخه روايت کړې دې چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل : دنورو ټولو ګناهونو سزا خو الله ﷻ چې اوغواړی چا دپاره ئې قيامت پورې ايساره کړی ، سوا د والدينو د حق تلفئ اونافرمانئ څخه ، چه دهغې سزا دآخرت څخه وړاندې په دنيا کښې هم ورکولې شی .([5]) [ دا ټول روايتونه د تفسير مظهری څخه راخستې شوی دی ] .

**د مور پلار فرمانبرداری په کومو څيزونو کښې واجب ده او په کوم ځائې کښې ئې مخالفت کول جائز دی ::**

په دې باندې د ټولو عالمانو او فقهاء کرامو اتفاق دې چې د والدينو فرمانبرداری کول صرف په روا کارونو کښې واجب دی ، په ناروا يا دګناه په کارونو کښې فرمانبرداری کول واجب خو لا څه کوې چې روا هم نه دی بلکه يو حديث پاک کښې راغلی دی چې :

---

[1] ) جامع الترمذی ، ابواب البر والصلة، باب ماجاء فی فضل فی رضاالوالدين[ج:۲ ص:۱۲] والمستدرك للحاكم رقم الحديث:[۷۳۵۸]

[2] ) سنن ابن ماجة، ابواب الأدب،باب بر الوالدين[ج:۲ ص:۲۶۰ ]

[3] ) شعب الإيمان للبيهقی رقم الحديث[۷۶۷۹]

[4] ) شعب الإيمان للبيهقی رقم الحديث[۷۶۱٤]

[5] ) والمستدرك للحاكم رقم الحديث:[۷۳۷۲] و شعب الإيمان للبيهقی رقم الحديث[۷٦٤٦]

﴿لاطاعة لمخلوق في معصية الخالق﴾ (۱) [د خالق په نافرمانئ کښې د چا مخلوق فرمانبرداري کول جائز نه دی]

**پوازې د مسلمان مورپلار خدمت کول او ورسره ښه سلوك كول ضروري نه دی بلکه ددې مستحق کافر والدين هم دی** :: امام قرطبی رحمه الله ددې مسئلې په ثبوت کښې د اسماء رضي الله عنها د اواقعه د صحیح بخاری نه نقل کړې ده چې اسماء رضي الله عنها د رسول کريم ﷺ نه تپوس اوکړو چې زما مشرکه مور، کله چې زما خائې ته راشی آیا دهغې خاطر خدمت کول ما دپاره روا دی؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائيل چې ﴿صلى امك﴾ د مور خدمت او خاطرتواضع کوه. (۲) او د کافر مور پلار باره کښې پخپله د قرآن کريم ارشاد دې چې: ﴿وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا﴾ يعنى د چا مور پلار چې کافران وی او ده ته هم د کافر کیدو حکم ورکړی نو دهغوئ په دې معامله کښې حکم منل جائز نه دی. ددې نه سوا ورسره په دنيا کښې په معروفه طریقه سلوك كول پكار دی چې مطلب ئې خدمت کول او جائز خبره ئې منل دی.

**مسئله** :: تر څو چې جهاد فرض عین شوې نه وی او د فرض کفایه په درجه کښې وی نو تر هغې پورې بغير د مور پلار د اجازت نه په دغه جهاد کښې هم يو سړی لره شريکيدل جائز نه دی. لکه په صحیح بخاری کښې د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې چې يو سړې د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او په جهاد کښې ئې د شامليدو دپاره اجازت اوغوښتو. نبی کریم ﷺ ترې تپوس اوکړو چې مور پلار دې ژوندی دی؟ هغه عرض اوکړو چې ژوندی دی. نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائيل چې ففيهما فجاهد (۳) [هم ددې مور پلار خدمت کولو کښې پاتې کيدو سره جهاد کوه] يعنى چې ثواب د جهاد به درته هم په دې ملاويږی.

يو بل روايت کښې ورسره داسې بيان هم راغلې دې چې دغه سړی اووئيل چې دلته راتلم نو مور پلار مې په ژړا پريښودی وو. نبی کریم ﷺ اوفرمائيلو چې څه لاړشه او هغسې ئې اوخاندوه څنګه چې په ژړا پريښودی وو. (۴)

مطلب دادې چې هغوئ په دې خوشحاله کړه چې ستاسو د اجازت نه بغير جهاد ته نه ځم. [قرطبی] (۵)

**مسئله** :: ددې روايت نه معلومه شوه چې کله يو څيز فرض عين يا واجب على العين نه وی، د کفايه په درجه کښې وی نو د مور پلار د اجازت نه بغير اولاد ئې هغې دپاره بهر نشی تلې، لکه دينی علم حاصلولو يا دينی تبليغ دپاره به هله ځی چې دا پرې فرض عين وی. چا چې فرض علم حاصل کړې وی هغه د عالم جوړيدو دپاره سفر کوی يا تبليغ او بلنې دپاره سفر کوی نو دا اجازت د والدينو نه بغير جائز نه دی.

---

(۱) المعجم الكبير للطبرانی رقم الحديث [۱۴۷۹۵]
(۲) صحيح البخاری كتاب الهبة، باب الهدية للمشركين [ج:۱ص:۳۵۷]
(۳) صحيح البخاری كتاب الجهاد ، باب الجهاد باذن الوالدين [ج:۱ص:۴۲۱]
(۴) سنن ابن ماجة ابواب الجهاد باب الرجل يغزو وله ابوان [ج:۲ص:۱۹۹]
(۵) تفسير القرطبي [ ج:۱۰ص:۲۴۰]

**مسئله** :: والدينو سره په ښه سلوك كولو كښې چې د كوم حكم په قرآن پاك او حديث مبارك كښې راغليدلې داهم داخل دی چې د هغوئ دخپلوانو سره او دوستانو سره هم دهغوئ په ژوند كښې ښه سلوك خصوصا د هغوئ د وفات څخه روستو ښه سلوك كوی ، صحيح بخاری كښې د ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دې چې نبی كريم ﷺ اوفرمائيل : پلار سره لوئې سلوك دادې چې دهغه د مرګ څخه پس د هغه د دوستانو سره ښه سلوك كوی .(۱) او ابو اسيد بدری رضي الله عنه نقل كړی دی چې زه رسول كريم ﷺ سره ناست اووم يو انصاری سړې راغلو او سوال ئې اوكړو : يارسول الله ﷺ ! د مور پلار د وفات كيدو څخه روستو ما باندې دهغوئ څخه حق شته دې ؟ نبی كريم ﷺ اوفرمائيل چې آؤ ، هغوئ دپاره د بخښنې دعا غوښتل ، دهغوئ چا سره كړې وعده پوره كول ، دهغوئ د دوستانو قدر او عزت كول او دهغوئ خپلو خپلوانو سره خپلوی پالل د چا خپلوی چې يوازې د هغوئ په ذريعه وی داهغه حقونه دی چې دهغوئ د وفات څخه روستو هم ستا په ذمه پاتې دی .(۲)

درسول كريم ﷺ عادت مبارك دا وو چې د ام المؤمنين خديجه رضي الله عنها د وفات څخه پس به ئې د هغې سهيلو ته ډالئ په دې غرض ليږلې(۳) چې دهغې رضي الله عنها د دوستئ حق ادا كړې شی .

**دوالدينو د آد ب خيال ساتل خصوصا دهغوئ په بوډا توب كښې** :: د والدينو خدمت اوفرمانبرداری كول د والدينو په حيثيت سره د يو عمر يا زمانې سره مقيد نه دی ، په هر حال او هر عمر كښې د والدينو سره ښه سلوك كول واجب دی . ليكن د واجباتو او فرائضو په ادا كولو كښې چې كوم حالات مشكلات جوړوی نو په هغه حالاتو كښې د قرآن كريم بيان داد چې په احكامو باندې د عمل آسانولو دپاره مختلف اړخونو څخه د ذهنونو تربيت كيږی ، او په د اسې حالاتو كښې د احكامو دمنلو د پابندئ نور تاكيد هم .

په دې بنا هر كله چې بوډاوالی كښې مور پلار دخپل د خدمت زيات محتاج شی د اولاد په رحم وكرم باندې وخت تيروی . په دغې حالت كښې كه اولاد ترې لږ شان هم بې غوری اختيار كړی نو د خفګان نه بهٔ ئې زړهٔ راوپرسيږی . بل طرفته ئې د بوډاوالی په وجه طبيعت كښې چنجنتوب راشی . چې ډير زيات بوډا وی عقل ، فكر ئې كار كول پريږدی . ددوئ غوښتل داسې وی چې د اولاد په وس كښې نه شی ، څكه قرآن پاك پداسې حالاتو كښې د مور پلار دزړونو ساتلو په غرض اولاد ته ئې د دوئ دوړوكتوب خپله زمانه وريادە كړه چې يو وخت كښې تاسو هم ددې والدينو دغسې محتاج وئ څنګه چې نن هغوئ ستاسو محتاج دی ، نو چې هغوئ ستاسو د آرام او راحت دپاره څنګه چجې د خپلو خواهشاتو اوآرام قربانی وركړه او ستاسو د بې عقلئ خبرې ئې په مينې ، محبت سره قبولې كړې اوس دهغوئ د محتاجئ هغسې وخت راغلې دې نو دعقل اوشرافت تقاضا داده چې دهغوئ د پخوانو احسانونو بدله ادا كړی ، څنګه چې په آيت مبارك ﴿كَمَا رَبَّيَانِي صَغِيرًا﴾ كښې ورته اشاره شوېده ، او په دغې آيتونو كښې دمورپلار د بوډا توب حالت ته په رسيدو يوڅوتاكيدی حكمونه وركړې شوی دی .

---

(۱) صحيح مسلم كتاب البر والصلة، باب فضل أصدقاء الأب والأم ونحوهما [ج:۲ص:۳۱۴]

(۲) سنن ابی داود، ابواب الأدب، باب بر في الوالدين[ج:۲ ص:۷۰۰]

(۳) اوګورئ :صحيح البخاری كتاب الأدب ،باب حسن العهد من الإيمان [ج:۱ص:۸۸۸]

**اول حکم** :: اول دا چې اُفٍ به هم ورته نه وايئ. دې نه مراد داسې يوه خبره کول دي چې خپلې ناخوالې او ناراضګئ اظهار ترې کيږي تر دې چې د والدينو د څه خبرې په آوريدو، اوږده شان سا رابښکل په دې کښې داخل ګڼه دې چې دا هم د ناخوښئ ښکاره کولو يوه نخښه ده، نو علی رضي الله عنه څخه روايت دې چې نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې په ضرر رسولو کښې که د اف څخه کمه درجه که څه وې نو هغه به هم بيان شوې وې.(۱) غرض دا چې په کوم ځيز سره مور پلار ته لږ قدرې تکليف رسی هغه هم منع دی.

**دوېم حکم** :: ﴿وَلَا تَنْهَرْهُمَا﴾ دې ، نهر رټلو ته وئيلې شی. ددې د منع کولو سبب دادې چې مور پلار ته پرې خفګان رسی.

**درېم حکم** :: ﴿وَقُل لَّهُمَا قَوْلًا كَرِيمًا﴾ رومبو دوؤ حکمونو د نيشتوالی [منفی] طرفونه لرل چې په کښې د والدينو په زړونو معمولی څخه معمولی پيټې راوستل هم بند کړې شوی دی. دا درېم حکم د شته والی مثبت طرف داسې لرې چې په دې کښې والدينو سره د خبرو اترو کولو ادب او طريقه خودلې شوې ده، دوئ سره د مينې او زړه سواندئ په ژبه کښې خبرې کول پکار دی، سعيد المسيب رحمه الله فرمائيلی دی چې څنګه يو غلام د خپل سخت مزاج آقا سره خبره کوی.

**څلورم حکم** :: ﴿وَاخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ﴾ دې، ددې حاصل دادې چې د دوئ په وړاندې د يو عاجز او ذليل بنده په شان ځان پيش کول پکار دی څنګه چې يو غلام د خپل آقا په وړاندې ځان پيش کوی، د جناح معنی بازو او دې. لفظی معنی ئې داده چې والدينو دپاره دې خپلې وزرې او متې په عاجزئی او ذلت ټيټې لرې په ﴿مِنَ الرَّحْمَةِ﴾ سره ئې په دې خبردارې ورکړې چې دا طريقه دې نمائشی نه وی بلکه د زړه د رحمت او عزت په بنياد دې وی، بله اشاره په کښې دې ته هم کيدې شی چې د والدينو په وړاندې په ذلت سره پيش راتلل د حقيقی عزت دپاره لار جوړل دی، ولې چې دا په اصل کښې ذلت او بې عزتی نه ده بلکه دخپل زړه د شفقت او رحمت ښکاره کول دی.

**پنځم حکم** :: ﴿وَقُل رَّبِّ ارْحَمْهُمَا﴾ دې، حاصل ئې دادې چې هر کله والدينو ته پوره آرام رسول د انسان دوس خبره نه ده، تر خپله وسه د آرام رسولو څخه روستو دا دعا کول هم پکار دي چې الله ﷻ په خپل رحمت سره د دوئ ټول مشکلات آسان او ټول تکليفونه لرې کړی، دا آخری حکم دومره فراخه او عام دې چې د والدينو د وفات څخه روستو هم جاری دې چې ددې په ذريعه هميشه د والدينو خدمت کيدې شی.

**مسئله** :: مسلمانان والدينو دپاره د رحمت دعا دهغوئ په ژوند کښې او مرګ څخه پس هم ښکاره ده. ليکن د غير مسلم والدينو دپاره د هغوئ په ژوند کښې دغسې دعا کول به په دې نيت سره جائز وی چې د دنيا تکليف څخه دې په امن پاتې شی. او د ايمان توفيق دې ئې نصيب شی. خو د مرګ څخه پس دهغوئ دپاره د رحمت دعا کول جائز نه دی [قرطبی].(۲)

---

۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۰ص:۲۴۳] وذكره علامه محمد طاهر الهندى فى كتابه تذكرة الموضوعات [ج:۱ ص:۲۰۲]

۲) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۰ص:۲۴۴]

**یوه عجیبه واقعه** :: قرطبی رحمه الله پخپل متصل اسناد سره د جابر بن عبد الله رضی الله عنه څخه روایت کړی دی چې یو سړی د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او شکایت ئې اوکړو چې زما پلار زما څخه مال اخستې دی. دغه وخت کښې جبرائیل علیه السلام تشریف راوړو او نبی کریم ﷺ ته ئې اوفرمائیل چې پلار ئې راشی نو ورته اوفرمایئ چې هغه کومې خبرې دده په زړه تیرې شوې وې چې خپلو غوږونو هم نه دی آوریدلی. چې پلار ئې راغلو نو نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې خوئې دې شکایت کوی چې مال ئې رانه اخستې دې ؟ ته رښتیا دده مال اخستل غواړې ؟ عرض ئې او کړو چې هم ده څخه تپوس اوکړئ چې دده د یوې ترور یعنی د پلار خور او بلې ترور یعنی د مور خور یا دخپل ځان څخه سوا بل په کوم ځائې کښې دغه مال لګوم ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ایه، [ددې مطلب دا و چې پس حقیقت معلوم شو ، اوس دنور څه وئیلو ضرورت نشته دې ، ددې نه پس دده دپلار څخه تپوس اوکړې شو] چې هغه کومې خبرې دی چې تر اوسه غوږونو هم نه دې آوریدلی ؟ هغه عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ ! الله ﷻ په هره معامله په تاسو باندې زمونږ ایمان او یقین زیاتوی. چې کومې خبرې چا آوریدلې نه وی د هغه تاته اطلاع اوشی چې یو معجزه ده چې بیا هغه عرض اوکړو چې دا یو حقیقت دې چې ما څو شعرونه په زړه کښې وئیلی وو چې زما غوږونو هم نه دی آوریدلی. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې هغه راته واوروه ،

دغه وخت هغه دغه شعرونه واورول چې دادی:

غذوتك مولودا ارمنتك يافعا　　　تعل بما اجنی علیك وتنهل

ما درته په ماشومتوب کښې غذا درکړه او د ځوانیدو څخه روستو هم ستا ذمه مې واخسته ستا ټول خوراك څكاك هم زما د ګټې نه وو.

اذاليلة ضنافتك بالسقم لم ابت　　　لسقمك الا ساهرا اتململ

کله چې درباندې د شپې څه بیماری راغله نو ماټوله شپه ستا دبیمارئ په وجه شوګیره اوکړه او ناقلاره پاتې شوم

كانی انا المطروق دونك بالذی　　　طرقت به دونی فعینی تهمل

ګویا ستا په ځائې زۀ بیمار یم ته نه ئې اود هغې په وجه زه ټوله شپه ژړیدم

تخاف الردی نفسی علیك وانها　　　لتعلم ان الموت وقت مؤجل

زما زړه ستا د هلاکیدو نه ویریدو حالانکه زه پوهیدم چې د مرګ یوه ورځ ټاکلې شوې ده مخکښې نشی کیدې.

فلما بلغت السن والغاية التی　　　اليها مدی ما كنت فيك اؤمل

بیا چې کله ته دې عمر او دې حد ته راورسید دکوم چې ما خواهش کولو

جعلت جزائی غلظة ونظاظة　　　كانك انت المنعم المتفضل

ثا راته د هغې په بدله کښې سختې او سخت کلامی راکړه ګویا کښې تا راباندې انعام او احسان کړې دې

فليتك اذلم ترع حق ابوتی　　　فعلت كما الجار المصاقب

کاش چې کله پلار ولئ حق دې نه شو ادا کولې نودومره خو دې راسره کړې وې څنګه چې یو شریف ګواندې کوی

فاوليتنی حق الجوار ولم تكن　　　علی بمال دون مالك تبخل

او دومره خودې کړې وي چې د يو ګوانډي هومره حق دې راکړې وې او هم زما په مال کښې خو دې ماسره بخيلي نه کولې.
نبی کریم ﷺ ددې شعرونو نه پس د خوټي ګريوان اونيولو او وې اوفرمائيل: ﴿انت ومالك لابيك﴾ ته او ستا مال ستا د پلار دې. [تفسير قرطبي ص/۲۴۶ جلد/۶].[1] دا عربي شعرونه د ادب په مشهور کتاب حماسه کښې هم نقل کړې شو يدى خودا اشعار ئې اميه بن ابی الصلت ته منسوب کړي دي. او څينې وائی چې دا د عبدالاعلی شعرونه دی، څينو ددې نسبت ابوالعباس اعمی ته کړې دې [حاشيه قرطبی].
ددې آيتونو په آخرى آيت مبارك ﴿رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَا فِي نُفُوسِكُمْ﴾ کښې هغه زړه تنګى پورته کړې شوې ده چې د والدينو د ادب او تعظيم په باره کښې د بيان کړې شوؤ حکمونو څخه د اولاد په زړه کښې پيدا کيدې شی. ولې چې والدينو سره هر وخت پاتې کيدل دی د هغوئ او د اولاد خپل حالات هم هر وخت يو شان نه وی، کله د خلې څخه داسې خبره اوځی چې د بيان کړې شوؤ آدابو څخه خلاف وی نو په دې باندې د جهنم وعيد دې، دغه شان د ګناهونو څخه بچ کيدل سخت مشکل وی نو په دې آيت مبارك کښې د دغه شبهې او د زړه تنګوالی لرې کولو دپاره ئې اوفرمائيل چې د بې ادبئ څه خبره يا حرکت د ناخبرئ ياپريشانئ حالت کښې د اولاد څخه اوشی خو توبه ترې اوکړی نو الله ﷻ د زړونو د حالاتو څخه خبر دې چې د غه حرکت د بې ادبئ يا ضرر رسانئ په غرض نه وو، هغه معاف کوونکې دې. ﴿أَوَّابِينَ﴾ په معنى د توابين دې، په يو حديث پاك کښې دمابنام د مونځ څخه روستو شپږو رکعتونو او د اشراق نفلونو ته د صلوة اوابين وئيلې شوی دی. په دې کښې اشاره دې ته موندې شی چې دذې مونځونو توفيق هغه خلقو ته په نصيب کيږی چې اوابين او توابين دی.[2]

| حَقَّهُ | ذَا الْقُرْبَىٰ | وَآتِ | | |
|---|---|---|---|---|
| حق دهغه | خپلوانوته | اوورکوه | | |
| | اورشته دار | | | |
| إِنَّ | تَبْذِيرًا | وَلَا تُبَذِّرْ | وَابْنَ السَّبِيلِ | وَالْمِسْكِينَ |
| بيشکه | په اسراف کولو سره | اواسراف مه کوه | اومسافروته | اومسکينانوته |
| محتاج اومسافر ته دهغوئ حق ورکړه او مال بې ځايه مه خرچ کوه بيشکه | | | | |

| الْمُبَذِّرِينَ | كَانُوا | إِخْوَانَ الشَّيَاطِينِ | وَكَانَ الشَّيْطَانُ | لِرَبِّهِ | كَفُورًا |
|---|---|---|---|---|---|
| اسراف کوونکی خلق | دی | اورونړه د شيطانانو | او دې شيطان | دپاره درب خپل | ناشکره |
| فضول خرچ خلق دشيطانانو رونړه دی اوشيطان دخپل رب ډير زيات ناشکره دې | | | | | |

[1] المعجم الأوسط للطبرانی رقم الحديث [۶۷۵۸]،
[2] كنز العمال رقم الحديث [۱۹٤٢٩] و المستدرك للحاكم رقم الحديث:[۱۱۸۲]

## آسان ترجمه قرآن

او خپلوانو ته د هغوی حق ورکړه، او مسکین او مسافر ته (د هغه حق) او خپل مال په بې ځایه کارونو کښې مه خرچ کوه. یقین او کړئ چه کوم خلق خپل مال په بې هوده کارونو کښې خرچ کوي هغه د شیطان ورونړه دي، او شیطان د خپل رب ډیر ناشکره دې.

## خلاصه تفسیر

په دې دواړو ایتونو کښې دحقوق العباد متعلق دوه نور زیات حکمونه دی اول دمور اوپلار نه علاوه دنوروړشته دارانو اودعامو مسلمانانو حقونه دویم په خرڅ کولو کښې دفضول خرڅئ ممانعت لنډ تفسیر دادې ﴿وَاٰتِ ذَا الْقُرْبٰى حَقَّهٗ﴾ [ اوخپلوانو ته ددوی حق ] مالی او غیر مالی ورکوئ ﴿وَالْمِسْكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ﴾ اومحتاجواومسافروته هم ] ددوی حقونه [ورکوئ ﴿وَلَا تُبَذِّرْ تَبْذِيْرًا﴾ او] مال لره [بې موقعې مه اولوزوئ ﴿اِنَّ الْمُبَذِّرِيْنَ كَانُوْٓا اِخْوَانَ الشَّيٰطِيْنِ﴾ بیشکه بې موقعې مال اولوزونکی دشیطانانو ورونړه دی ] یعنی ددوی په شان دې ﴿وَكَانَ الشَّيْطٰنُ لِرَبِّهٖ كَفُوْرًا﴾ [ اوشیطان دخپل پرودګار لوئ ناشکردې ] چه الله تعالی ده لره دعقل دولت ورکړو ده دغه دعقل دولت دالله تعالی په نافرمانئ کښې خرڅ کړو دغه شان فضول خرڅی کوونکوته الله تعالی مال دولت ورکړو مګر دوی ئې دالله تعالی په نافرمانئ کښې خرڅ کوی

## معارف او مسائل

**د عامو خپلوانو د حقوقو پوره هم کول** :: تیروشوؤ آیتونو کښې د والدینو د حقوقو اود هغوئ د ادب او عزت خودنه وه ، اوس په دې آیت مبارك کښې دعامو خپلوانو د حقوقو بیان دې. هر خپل رشته دار ته دې دهغه حق ورکړې شی چې کم نه کم هغه سره ښه ژوند تیرول او ښکلې سلوك کول دی. که هغه حاجت مند وی نو دخپل وس مطابق هغه سره مالی مدد کول هم په دې کښې دا خل دی. دې آیت مبارك نه معلومه شوه چې په هر کس باندې دهغه د عامو خپلوانو او عزیزانو هم حق شته دې. خو دابیان نشته چې هغه کوم دې او څومره دې. خو په عام ډول خپلوی پالل او ښه ژوند ورسره تیرول په کښې په ډاګه داخل دی. د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد ددې فرمان لاندې د هغې خپلوانو نفقه هم فرض ده چې یو خو نزدې خپلوان ذی رحم محرم وی او هغه زنانه یا ماشوم وی چې ورسره د خپلې ګذارې څه سامان نه وی او کټه وټه هم نشی کولې ، دغه شان کوم نزدې خپلوان چې شل

ګډ یا ړوند وی او پخپل ملك کښې ئې دومره مال نه وی چې ګذاره ئې پرې کوې شی نو د وس په خاوند خپلوانو باندې ددوئ مددکول او خرچ اخراج ئې پوره کول فرض دی. که د یوې درجې ډیر خپلوان ئې وی نو دغه خرچ خوارك ددوئ دې په ویش پوره کوی څنګه چې د سورة بقره د آیت مبارك ﴿وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ﴾ (۱) نه هم دا حکم ثابت دې. [تفسیر مظهری] (۲)
دې آیت مبارك کښې د خپلوانو ، مسکینانو او مسافرو مالی مدد کول او خپلوی ورسره پالل د هغوئ حق بللې شو بدې ، چې دا اشاره په کښې موندې شی چې ددې احسان په هغوئ باندې ضباطول نه دی پکار ولې چې دا د هغوئ فرض شوې حق ادا کول دی نو ددې

---

(۱) ترجمه:- او ددې مذکوره طریقې په مثل دده په ذمه دی کوم چې وارث دې.
(۲) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة [ج:۵ص:۴۳۳]

ضباطول خو پرې د سره کیدې نشي.

**د تبذیر یعنی فضول خرچئ بندیز**: قرآن کریم کښې د تبذیر یعنی فضول خرچئ دپاره دوه لفظونه استعمال شوي دي، تبذیر او اسراف. تبذیر دلته او اسراف په ولا تسرفوا[1] سره منع کرځولې شوې دې. څینې حضراتو ددې هم یوه معنی بیان کړې ده، او مترادف الفاظ ئې بللی دي خو څینې حضراتو د دې ترمینځه فرق داسې بیان کړې دې چې تبذیر هغې خرڅ ته وئیلې شي چې په څه گناه یا بې ځایه ځائې کښې اوکړې شي او اسراف د ضرورت نه زیات خرڅ کولو ته وئیلې شي اګر چې موقعه د جائز خرچ کولو وي. په دې بنا د اسراف نه تبذیر زیات سخت شو څکه مبذرین د شیطانانو رونړه بللې شوي دي.

د تفسیر امام مجاهد رحمه الله فرمائیلي دي چې حق دپاره ټول مال لګول هم تبذیر نه دې، خو باطل دپاره یو مد یعنی نیم سیر څیز هم لګول تبذیر دې، عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائیلي دي چې په ناحق کښې بې موقعې خرچ کول، تبذیر دې. [مظهری][2] امام مالک رحمه الله فرمائیلي دي چې تبذیر دادې چې انسان خو مال دحق مطابق حاصل کړي مګر د حق په خلاف ئې اولګوي چې حرام دي. او ددې بل نوم اسراف هم دې. [قرطبی][3]

امام قرطبی رحمه الله فرمائیلي دي چې په حرام او ناروا کار کښې خو یو درهم لګول هم تبذیر دې، دغه شان په جائز او مباح خواهشونو کښې په دې شان خرچ کول چې په راتلونکې وخت کښې د محتاجه کیدو او فقیر کیدو خطره وي، دا هم په تبذیر کښې داخل دي. البته که څوک اصل مال سنبال لري او دهغې نه حاصل شوې منافع په خپلو جائز خواهشاتو کښې په خلاص مټ خرچ کوي نو دا په تبذیر کښې داخل نه دي. [ قرطبی ج/ ۱۰ ص/۲۴۸].

| مِّنْ | رَحْمَةٍ | ابْتِغَآءَ | عَنْهُمُ | تُعْرِضَنَّ | وَاِمَّا |
|---|---|---|---|---|---|
| دطرفه | درحمت | دپاره دتلاش | ددغو حقدارانونه | ته مخ اړوې | او که چرې |
| او که ته چرته ددوئ نه څنګ کوې دپاره ددې چې ستا درب له طرفنه هغه | | | | | |

| قَوْلًا مَّيْسُوْرًا | فَقُلْ لَّهُمْ | تَرْجُوْهَا | رَبِّكَ |
|---|---|---|---|
| خبره نرمه | نو اووایه هغوئ ته | چې ته امیدلرې دهغې | درب ستانه |
| فراخي راشي چې ستا ورته امید وي نو هغوئ ته په نرمئ سره جواب ورکوه | | | |

## آسان ترجمه قرآن

**او که چرې ته ددې (رشته دارانو، مسکینانو، او مسافرو) نه په دې وجه مخ اړوې چه تا ته د الله تعالی د رحمت د راتلو انتظار وي نو بیا دوی سره په نرمئ سره خبره کوه.**

## خلاصه تفسیر

په دې کښې دحقوق العباد سره متعلق پنځم حکم دا ورکړې شوې دې چه که څه وخت حاجتمندو ته ددوی ذضرورت مطابق دورکولو انتظام نه شي کولې نو دغه وخت هم دوی ته

---

[1] ) ترجمه:- اود حد نه مه اوزئ.

[2] ) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة [ج:۵ص:۴۳۰]

[3] ) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة [ ج:۱۰ص:۲۴۷]

اوچ جواب ورکول نه دی پکار بلکه په همدردئ سره دې ورله دائنده دپاره امید ورکړې شی دایت لنډ تفسیر دادې ﴿وَإِمَّا تُعْرِضَنَّ عَنْهُمُ ابْتِغَاءَ رَحْمَةٍ مِّن رَّبِّكَ﴾ [اوکه چرې] څه وخت تاسو سره دغوخلقو ته دورکولو دپاره مال نه وی اوپه دې وجه[تاسودهغې رزق په انتظار کښې﴿تَرْجُوهَا﴾ دکوم چه دخپل پروردګارنه امیدوی ] ترهغې پورې [ددوی نه ډډه کول غواړئ ] نو دومره خیال ساتئ چه ﴿فَقُل لَّهُمْ قَوْلًا مَّيْسُورًا﴾ [ددوی سره په نرمئ خبره کوئ ] یعنی په دلجوئ سره ددوی سره وعده کوئ چه انشاء الله تعالی که دکوم ځائ نه مال ملاؤ شو نو دربه کړم دل ازاره جواب دې نه ورکوی

## معارف او مسائل

﴿وَإِمَّا تُعْرِضَنَّ عَنْهُمُ ابْتِغَاءَ رَحْمَةٍ مِّن رَّبِّكَ﴾ دې آیت مبارك کښې د نبی اکرم ﷺ او د نبی اکرم ﷺ د امتیانو پوره اخلاقی تربیت داسې شو ېدې چې که څه وخت تاسو نه یو حاجت مند د څه سوال اوکړی او دغه وخت دهغه حاجت پوره کول ستاسو په وس کښې نه وی نو په کرکه ترې مخ مه اړوئی او سپورې ستغې ورته مه وائې. بلکه خپله موجوده بې وسی ورته اوښائې او په نرمئ سره ورته وائې چې که څه مې لاس ته راغلل نو مدد به دې اوکړم.

دابن زید ؓ د روایت مطابق ددې آیت مبارك شان نزول دادې چې ځینې داسې خلق به هم مالی سوال کولو دپاره نبی اکرم ﷺ ته راتلل چې که هغوئ ته څه مال ورکړېشی نو په فساد او وران کار کښې به ئې لګوی ، ځکه به ئې هغوئ ته د څه ورکولو نه په دې غرض انکار اوکړو چې په دې شا ن به هغوئ په فساد کولو قابو بیا موندې شی. نو هم په دغې موقعه دا آیت مبارك نازل شو . [ قرطبی](۱)

دسعید بن منصور نه په مسند کښې په روایت د سباء بن حکم راغلی دی چې نبی اکرم ﷺ ته په لاس راغلې کپړه ئې په حقدارانو اووېشله چې ختمه ئې کړه نو نور خلق هم دهغې د اصلولو په غرض نبی اکرم ﷺ ته حاضر شو په دغې باره کښې دا آیت مبارك نازل شو.(۲)

| | |
|---|---|
| وَلَا تَجْعَلْ | يَدَكَ |
| اومه ګرځوه | لاس خپل |

اوخپل لاس

| مَغْلُولَةً | إِلَىٰ عُنُقِكَ | وَلَا تَبْسُطْهَا | كُلَّ الْبَسْطِ | فَتَقْعُدَ | مَلُومًا |
|---|---|---|---|---|---|
| تړلې شوې | په څټ | پورې | او مه ئې خورپربږده | په کامل خورولوسره | چې کېنې ته | ملامته |

خپل څټ پورې تړلې مه ساته یعنی شوم مه جوړېږه او نه ئې بالکل پرانستئ چلوه ګنې ملامته ش

| مَّحْسُورًا | إِنَّ | رَبَّكَ | يَبْسُطُ | الرِّزْقَ | لِمَن | يَشَاءُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| افسوس کونکې | بیشکه | رب ستا | فراخوی | رزق | دپاره دهغه چا | چې غواړی هغه |

طوربه پاتې شې بیشکه ستارب چا دپاره چې غواړی رزق فراخه کوی

۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۰ص:۲۴۸]
۲) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:۵ص:۴۳۵]

| وَيَقْدِرُ ۚ | اِنَّهٗ | كَانَ | بِعِبَادِهٖ | خَبِيْرًا | بَصِيْرًا ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| او په اندازه کوی رزق دچا | بیشکه هغه | دې | په بندګانو خپلو باند | ښه خبردار | لیدونکې |
| [اوچادپاره چې اوغواړی] تنګوی یقینا هغه له خپلو بندګانو نه ښه خبر دې اوهرڅه وینی ګوری | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او مهٔ خو (داسې بخیل جوړیږه چه) خپل لاس د سټ سره اوتړې او نه (داسې فضول خرچ چه) لاس بالکل فراخه پریږدې چه د هغې په نتیجه کښې ته قابل ملامت او حیران کینې. حقیقت دا دې چه ستا رب چه د چا دپاره غواړی په رزق کښې وسعت پیدا کوی، او (د چا دپاره چه غواړی) تنګی پیدا کوی یقین ساته چه هغه د خپلو بندګانو د حالاتو نه ښه خبر دې، هغوی ته پوره طریقې سره ګوری.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُوْلَةً اِلٰى عُنُقِكَ﴾ [اومه خپل لاسونه دڅټ سره تړلی ساته] چه په انتهائی بخل سره بلکل لاسونه دخرڅ کولو نه بند کړې ﴿وَلَا تَبْسُطْهَا كُلَّ الْبَسْطِ﴾ [اونه ئې بالکل سپړدل او خلاصول پکاردی] چه ضرورت نه زیات خرڅ کړې اسراف وشی ﴿فَتَقْعُدَ مَلُوْمًا﴾ [ورنه الزام خوړلې] او ﴿مَّحْسُوْرًا ۝﴾ [تش لاس بهٔ پاتې شې] اودیو سړی په حاجتمندئ اوفقردومره په خان اثرکول چه خان په پریشانئ کښې واچوئ څه دعقل خبره خونه ده څکه چه ﴿اِنَّ رَبَّكَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ﴾ [ستارب بیشکه چالره چه غواړی زیات رزق ورکوی اوهغه] په چاچه غواړی ﴿وَيَقْدِرُ ۚ﴾ [تنګی راولی ﴿اِنَّهٗ كَانَ بِعِبَادِهٖ﴾ بیشکه هغه دخپلو بندګانو] حالت اوددوی مصلحت لره ﴿خَبِيْرًا بَصِيْرًا﴾ [ښه پیژنی وینی ] دټول عالم حاجتونه پوره کول خودرب العلمین کاردې ته په دې فکرکښې ولې پریوځې چه که درنه کیږی اوکه نه کیږی خوځان په مصیبت کښې اچوې دټولوحاجتونه پوره کوې داصورت په دې وجه بې کاره دې چه ددې هرڅه کولونه پس هم دټولوحاجتونه پوره کول ستادوس خبره نه ده ددې مطلب دانه دې چه څوك دې دچاڅه غم نه کوی اوتدبیر دې ورله نه کوی بلکه مطلب دادې چه دټولو حاجتونه پوره کول دچاانسان دوس خبره نه ده خواه که دې په ځان هر څومره مصیبت برداشت کولوته تیار هم شی څکه چې داټوله دمالك کائنات کاردې چه دټولوحاجتونه ورته معلوم هم دی اودټولوپه مصلحتونو هم خبردې چه کوم وخت چالره څه حاجت په څومره مقدار کښې پوره کول پکاردی په دې وجه دانسان کارخو صرف دومره دې چه دمیانه روئ نه کار واخلی نه دخرڅ په موقع کښې بخل کوی اونه دومره خرڅ وکړی چه صباپه خپله فقیر شی اوداهل وعیال کوم حقونه چه ددهٔ په ذمه دی دهغوی حقونه ترې ادانه شی اوبیا وروستو دې ستومانه وی .

## معارف ا ومسائل

**د درمیانه خرچ کولو هدایت** :: دې آیت مبارك کښې براه راست نبی کریم ﷺ مخاطب دې او هغوئ په واسطه ئې ټول امت مخاطب دې، مقصد ترې د درمیانه خرچ کولو داسې تعلیم دې چې نورو سره په مدد کولو کښې هم بندیز جوړ نشی او پخپله ځان دپاره هم مصیبت جوړ نشی . ددې آیت مبارك په شان نزول کښې ابن مردویه د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه او بغوی په روایت د جابر رضی الله عنه یوه واقعه نقل کړې ده چې درسول کریم ﷺ سره په خدمت کښې یو هلك حاضر شو

او عرض ئې اوکړو چې زما والده تاسو څخه دیو قمیص سوال کوي ، دغه وخت رسول کریم ﷺ صرف هم هغه قمیص وو کوم ئې چې اغوستې وو ځکه ئې هغه هلك ته اوفرمائیل چې بل وخت راشه که وس مې وو نو قمیص به درکړم. هلك کور ته لاړو او واپس راغلو وې وئیل چې مور مې ستاسو دغه اغوستې قمیص غواړي.
ددې په آوریدو سره نبی کریم ﷺ خپل قمیص مبارك اوویستو او هغه هلك ته ئې ورکړو. اوپخپله بې قمیصه پاتې شو. کله چې دمونځ وخت راغلو نو بلال رضی الله عنه اذان اوکړو ، خو نبی کریم ﷺ دخپل عادت مطابق دپاره بهر تشریف نه راوړو نو خلقو سره فکرشو ، ځینې خلق چې دننه ورغلل نو نبی کریم ﷺ ئې بې قمیصه اولیدل ، په دې باندې دا آیت مبارك نازل شو.[1]

**دالله ﷻ په لار کښې دومره خرچ کول چې پخپله پریشانۍ کښې اخته شي ، ددې څه درجه ده ::** ددې آیت مبارك څخه په ظاهره داسې معلومیږي چې داسې خرچ دې نشي کولې چې دهغې په نتیجه کښې محتاج او فقیر شي او په پریشانۍ کښې اخته شي.
امام تفسیر قرطبی رحمه الله فرمائیلي دي چې دا حکم د مسلمانانو د عامو حالاتو دپاره دې. چې څوك د خرچ کولو څخه روستو په تکلیفونو کښې ګیر شي ، کوم خرچ ئې چې کړې وي په هغې باندې ستومانه شي او افسوس کوي. د قرآن عظیم الشان په لفظ ﴿مَّحْسُورًا﴾ کښې هم دې طرفته اشاره دې. [مظهری].[2] البته د لوړې حوصلې خاوند چې د خرچ کولو څخه روستو هم دپریشانۍ څخه نه ویریږي د حقدارانو حقوق هم ادا کولې شي ، هغوئ دپاره دا پابندي نشته دې. هم دغه وجه ده چې د نبی کریم ﷺ عام عادت مبارك داوو چې صبا دپاره به ئې څه ځیز نه خوندي کولو. نننې ځیز به ئې هم نن خرچ کولو، ډیر ځل به لوږې پرې هم راغلې چې د هغې په وجه به ئې په خیټه مبارکه کاڼړي تړل ، د غه شان په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې هم ډیر داسې حضرات وو چې د نبی کریم ﷺ په زمانه مبارکه کښې ئې خپل ټول مال د الله ﷻ په لار کښې خرچ کړو او سره دهغې نبی کریم ﷺ منع نه کړل ، اونه ئې ملامته کړل ، دې څخه معلومه شوه چې ددې آیت مبارك منع هغه چالره ده چې لوږه تنده اوتکلیف نشي تیرولې. او دخرچ کولو څخه روستو دهغوئ ارمان او پښیمانتیا کیدل وي ، ځکه په دې سره ئې د هغې کړې نیك عمل ثواب هم برباد شي.

**په خرچ کولو کښې بد انتظامي منع ده ::** اصل خبره داده چې په دې آیت مبارك کښې بد انتظامۍ سره خرچ کول منع کړې شوي دي چې شته ځیز هم نن خرچ کړي،دصبا خیال اونه ساتي چې بل حاجت مند صبا راشي یابل څه دیني زیات ضرورت راپیښ شي نووس ئې بیانه رسي. [قرطبی].[3]
یا دهغې بال بچ د حقوقو ادا کولو څخه پاتې شي د کوم بال بچ حقوق پوره کول چې دهغه په ذمه واجب وي. [مظهری].[4]

---

[1]) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة[ ج:۳ص:۲۵۰ ] و تفسیر البغوی تحت هذه الآیة[ ج:۵ص:۹۰]
[2]) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة [ج:۵ص:۴۳۶] و تفسیر القرطبي [ ج:۱۰ص:۲۵۱]
[3]) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة[ ج:۱۰ص:۲۵۱]
[4]) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة [ج:۵ص:۴۳۵]

دتفسیر مظهری مطابق په ﴿مَلُوْمًا مَّحْسُوْرًا﴾ کښې د ملوم لفظ تعلق رومبي حالت یعنې بخل سره دې چې د بخل په وجه د خرچ کولو څخه بالکل لاس واخلی نو.دا خلق به ئې ملامته کوی، او د ﴿مَّحْسُوْرًا﴾ لفظ دويم حالت سره تعلق ساتی چې په خرچ کولو کښې دومره زياتوالې کوی چې پخپله فقير شی. ﴿مَّحْسُوْرًا﴾ يعنی ستړې ستومانه، عاجز يا لاس مرورونکې به شی.

| وَلَا تَقْتُلُوْٓا | اَوْلَادَكُمْ | خَشْيَةَ اِمْلَاقٍ ؕ | نَحْنُ | نَرْزُقُهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| اومه وژنئ تاسو | اولاد خپل ديرې | د غريبئ نه | مونږه | رزق وركوونکي دوئ له |
| اوخپل اولاد دغريبئ دويرې نه مه وژنئ مونږ هغوئ له هم رزق وركوؤ | | | | |

| وَاِيَّاكُمْ ؕ | اِنَّ | قَتْلَهُمْ | كَانَ | خِطْاً | كَبِيْرًا۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوتاسوله هم | بيشكه | قتلول دهغوئ | دې | خطا | لوئ |
| اوتاسو له هم بيشكه ددوئ وژل ډير غټ جرم دې | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

**اوخپل اولاد دغريبئ دويرې نه مه وژنې مونږ هغوی ته هم رزق وركوو، او تاسو ته هم. يقين ساتئ چه دهغوی قتل كول ډيره لويه غلطی ده.**

## خلاصه تفسير

﴿وَلَا تَقْتُلُوْٓا اَوْلَادَكُمْ خَشْيَةَ اِمْلَاقٍ ؕ﴾ [اودغريب كيدود يرې نه خپل اولاد مه قتلوئ] ځكه چه دټولو رزق وركوونكی مونږيو ﴿نَحْنُ نَرْزُقُهُمْ وَاِيَّاكُمْ ؕ﴾ [مونږ دوی ته هم رزق وركوو اوتاسو ته هم] كه رزق وركوونكی تاسو وې نو بيابه موداسې سوچ كولو ﴿اِنَّ قَتْلَهُمْ كَانَ خِطْاً كَبِيْرًا۝﴾ بيشكه ددوی قتلول ډيره لويه ګناه ده.

## معارف او مسائل

﴿وَلَا تَقْتُلُوْٓا اَوْلَادَكُمْ خَشْيَةَ اِمْلَاقٍ ؕ﴾ تيرو شوؤ آيتونو كښې د انسانی حقونو باره كښې د هدايا تو يو سلسله ده، دا شپږم حكم د اهل جاهليت ديو ظالمانه عادت داصلاح دپاره دې، ولې چې په جاهليت كښې به ځينې خلقو د خپلو ماشومانو دپيداكيدو په وخت خصوصا جينكئ ددې ويرې نه وژلې چې د دوئ خرچ خوراك پوره كول به زمونږ په ذمه وی، اوس په دې آيت مبارك كښې الله ﷻ ددوئ جهالت داسې ښكاره كړې دې چې روزی وركوونكې خو الله ﷻ دې تاسوخو روزی رسان نه يئ. تاسو ته هم هغه پاك ذات روزی دركوی او هغوئ ته به هم وركوی. تاسو خپل اولاد ددې ويرې نه ولې وژنئ. بلكه الله ﷻ د دوئ اولاد ته رزق وركول رومبې بيان كړل چې اشاره په كښې دې ته ده چې اول به روزی ستاسو دغې اولاد ته وركوؤ ، ددې اصل مطلب دادې چې الله ﷻ كوم بنده وينی چې هغه د خپل اهل و عيال ذمه داری اخستې ده او نوروعاجزانو غريبانانو سره هم مددكوی نو الله ﷻ ورته په هغه حساب وركوی چې خپل ضرورت هم پوره كړی اود بل سره هم مددكوی، نبی اكرم ﷺ فرمائيلی دی چې:

﴿انما تنصرون وترزقون بضعفائكم﴾(۱) [ستاسو د کمزرو او ضعیفانو په وجه درسره الله تعالی مدد کوی او روزی درکوی ] . دې نه معلومه شوه چې ځوك د اهل وعیال د خرچ خوراك ذمه وار وی نو هغه ته چې څه ورکولې شي د زناناو او ماشومانو په خاطر ورکولې شي .

**مسئله** :: د قرآن عظیم الشان ددې ارشاد نه په دې معامله هم رڼا پریوځی په کومه کښې چې خلق نن صبا ګرفتاره دی ، چې د آبادئ د زیاتیدو په وجه د اولاد ځيږولو را ايسارولو او منصوبه بندئی ته رواج ورکوی ، ددې بنیادهم په هغې جاهلانه فلسفې باندې ايښودې شوې دې چې خپل ځانونه ئې د روزئ ذمه داران ګرځولی دی ، دا کار اګر که د اولاد د وژلو هومره ګناه خو نه لری مګر په دې کښې هیڅ شك نشته چې دا یو ناکاره او خراب کار دې .

| وَلَا تَقْرَبُوا | الزِّنٰٓى | اِنَّهٗ | كَانَ | فَاحِشَةً ۭ | وَسَاۗءَ سَبِيْلًا ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| اومه نزدې کیږئ تاسو | زنا ته | بیشکه دا | دې | کارقبیحه | او ډیره ناکاره لاره ده |
| اود زنا خواته هم مه ورنزدې کیږئ داغتېه بې شرمی ده اوډیره خرابه لار ده | | | | | |

### آسان ترجمه قرآن

**اودزنا خواله هم مه ځئ. هغه یقیني طور ډیره بې حیائي ده او بده لاره ده.**

### خلاصه تفسير

﴿وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنٰٓى﴾ [اوزناته مه نزدې کیږی ] یعنی ددې مقدمو اودکومو خبرونه چه ددې لارې هواریږی دهغونه ځان ساتئ ﴿اِنَّهٗ كَانَ﴾ [بیشکه دغه ] په خپله هم ﴿فَاحِشَةً﴾ [الویه دبې حیایئ خبره ده او] دنورو فسادونو په اعتبار سره هم ﴿وَسَاۗءَ سَبِيْلًا﴾ [ناکاره لارده ] ځکه چه په دې سره دښمنئ فتنې راپورته کیږی اونسبونه پرې ضائع کیږی .

### معارف او مسائل

دا اووم حکم دزنا د حراموالی باره کښې دې . ددې د حراموالی دوه وجې بیان کړې شوی دی . اول دا د بې حیایئ کار دې ، ځوك چې بې حیا شی نو ګویا که هغه د انسانیت نه اووتو او هغه د ښه او خراب فرق نشی کولې .

حدیث پاك کښې راغلی دی چې ﴿اذا فاتك الحیاء فافعل ما شئت﴾(۲) کله چې حیا ستا نه لاړه شی نو هیڅ ناکاره کار کښې درته پرده پاتې نشوه . په هر څه چې دې وس بر شو هغه به کوې او هم دغه وجه ده چې نبی اکرم ﷺ حیاء لره دایمان یوه لویه حصه ګرځولې ده . لکه وې فرمائیل چې ﴿والحیاء شعبة من الایمان﴾ [بخاری] .(۳)

دویمه وجه ئې داده چې دې سره معاشرتی خرابی دومره خوریږی چې هیڅ حد ئې نه شته او ددې خرابې نتیجې کله خو پوره قبیلې اوقومونه تباه او برباد کړی . فتنې ، غلاګانې ، ډاکې ، اوقتلونه چې څومره په دنیا کښې زیات شوی دی که ددې حالاتو تحقیق اوکړې شی نو د

۱) المستدرك للحاكم (باختلاف يسير) رقم الحديث:[۲۵۹۳] ومشكوة المصابيح كتاب الرقاق ، باب فضل الفقراء وما كان عيش النبي ﷺ [ج: ۲ ص:۴۴۷]

۲) صحيح البخاري(بألفاظ مختلفة) كتاب الأنبياء ،باب حديث الغار [ج:۱ص:۴۹۳].

۳) صحيح البخاري كتاب الإيمان ،باب امور الإيمان [ج:۱ص:۶]

نیمو نه دزیاتو واقعاتو سبب به څوك داسي سړي یا ښځه راوځي كوم چي په دي جرم او ګناه كښي اخته وي. دا جرم اګر چي نیغ په نیغه د بندګانو حقونو سره تعلق نه لري مګر دلته د بندګانو حقونو سره د تړلي حكمونو په ترڅ كښي ددي بیانول شاید چي په دي بنا وي چي دي جرم سره نور داسي ډیر جرمونه سر راپورته كوي چي دبندګانو حقونه د هغي نه اثر قبلوي او د قتل او لوټ مار غویمي تري راپورته كیږي، ځكه اسلام دي جرم لره د ټولو جرمونو نه زیات ګرځولي دي او ددي سزائي هم د ټولو جرمونو د سزاګانو نه زیاته سخته سزا ایخودي ده .ولي چي دي یو جرم نور په سوؤنو جرمونه په ترڅ كښي نیولي دي.

یو حدیث پاك كښي راغلي دي چي اووه واړه آسمانونه او اووه واړه زمكي په واده شوؤ زنا كوؤنكو باندي لعنت كوي او په جهنم كښي به د زناكارو دشرمګاهونو نه داسي بد بوئي خوریږي چي اهل جهنم به هم هغي نه پریشانه كیږي. اود اوور د عذاب سره سره به په جهنم كښي د دوئ دغه شرمیدل هم كیږي. [بزارد بریده رضی الله عنه نه روایت كړي دي ، مظهری].(۱)

یو حدیث پاك كښي راغلي دي ، ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دي چي نبی اكرم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چي: زنا كوؤنكي د زنا كولو په وخت مؤمن نه وي ، غل د غلا كولو په وخت مؤمن نه وي ، او شراب څكونكي د شرابو څكلو په وخت مؤمن نه وي. ، دا حدیث پاك په بخاری اومسلم كښي دي.(۲)شرح په ابوداؤد كښي داده چي ددي جرمونو كوؤنكي چي كله دا جرمونه كوي نو ددوئ د زړونو څخه ایمان بهر راوځي. او بیا دجرم څخه وروستو ایمان دوئ كښي واپس راځي [مظهری](۳)

| |
|---|
| وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِيْ |
| اومه وژنئ تاسو \| نفس هغه لره |
| اوهغه نفس مه وژنئ |
| حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ ؕ وَمَنْ قُتِلَ مَظْلُوْمًا |
| چي حرام كړي دي \| الله \| مګر \| په حقه سره \| اوهغه څوك \| چي قتل كړي شو \| په ظلم سره |
| دكوم وژل چي الله ﷻ حرام كړي دي مګر په جائزه او څوك چي برناحقه اووژلي شي |
| فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهٖ سُلْطٰنًا فَلَا يُسْرِفْ |
| نوپه تحقیق ورکړي دي مونږ \| ولي دهغه ته \| دقصاص دمطالبي حق \| نو اسراف دنهٔ كوي |
| نومونږ دهغه وارث ته اختیار دقصاص وركړي دي نودهٔ له پكار دی چي دقاتل |

(۱) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة [ج:۵ص:۴۳۷]، و مجمع الزوائد رقم الحدیث:[۱۰۵۴۱] و مسند البزار مسند بریدة بن الحصیب رقم الحدیث [۴۴۳۱]

(۲) صحیح البخاری كتاب المظالم والغضب ،باب النهي بغیر إذن صاحبه [ج:۱ص:۳۳۶] وصحیح مسلم كتاب الإیمان، باب بیان نقصان الإیمان بالمعاصی إلخ[ج:۱ص:۵۵]

(۳) سنن ابوداود، كتاب السنة ، باب الدلیل علی الزیادة والنقصان [ج:۲ص: ۶۴۳]

| فِّي الْقَتْلِ ؕ | اِنَّهٗ كَانَ | مَنْصُوْرًا۝ |
|---|---|---|
| په قتل کښې | بیشکه چې هغه | دې مدد کړې شوې |

په وژلو کښې زیاتې اونه کړي ولې چې دهٔ ته مدد ورکړې شوې دې

## آسان ترجمه قرآن

او کوم نفس ته چه الله پاک حرمت ورکړې دې، هغه مه قتلوئ، مګر دا چه تاسو (شرعًا) د دې حق لرئ او کوم سړې چه مظلومانه طور سره قتل شي نو مونږ دهغه ولي ته (د قصاص) اختیار ورکړې دې. پس په هغه بائدې لازم دی چه هغه په قتل کولو کښې زیاتې اونه کړي. یقینًا هغه د دې لائق دې چه د هغه مدد او کړې شي.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ﴾ [او د کوم سړي] قتل کولو لره [چه الله تعالی حرام کړې دې هغه لره مه قتلوئ ﴿اِلَّا بِالْحَقِّ ؕ﴾ مګر په حقه سره] ئ قتل کول جائز دی یعنی هرکله چه په شرعي حکم سره ئ قتلول واجب یا جائز شي نو دغه په حَرَّمَ اللّٰهُ کښې داخل نه دې ﴿وَمَنْ قُتِلَ مَظْلُوْمًا﴾ [او کوم سړې چه په ناحقه قتل کړې شي ﴿فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهٖ سُلْطٰنًا﴾ نو مونږ دده وارث حقیقي یا حکمي [لره اختیار ورکړې دې] دقصاص اخستو ﴿فَلَا يُسْرِفْ فِّي الْقَتْلِ ؕ﴾ [پس دهٔ لره دقتل په باره کښې دحد] شرعي [نه تجاوزنه دی کول پکار] یعنی چه په قاتل دقتل یقیني ثبوت نه وی ملاؤ شوې نه دې قتلوی اودده خپلوان اودوستان وغیره کوم چه په قتل کښې شریك نه وی محض دانتقام په جوش سره دنه قتلوی اوقاتل لره دهم صرف قتل کړي پوزه غوږونه یا لاس پښه وغیره د ترې نه کټ کوی اومُثله کوی دې نه ځکه چه ﴿اِنَّهٗ كَانَ﴾ [دغه سړې] په قصاص کښې دحدنه دتجاوز نه کولو په صورت کښې خوشرعا ﴿مَنْصُوْرًا۝﴾ [دالله تعالی دمدد قابل دې] او که دې زیاتې وکړي نو بیا به دویم فریق مظلوم شي دالله تعالی دمدد مستحق به شي په دې وجه دمقتول ولي لره پکار دی چه دې دخپل منصور کیدو دحق قدر وکړي دحدنه په تجاوز کولو دداحق نه ضائع کوی.

## معارف او مسائل

**اتم حکم:** دا اتم حکم دې باره کښې دې چې په ناحقه د چا وژل حرام دی. ددې جرم لوئیوالې ددنیا ټول قومونه، مذهبونه او فرقې منی، په حدیث پاك کښې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې د ټولې دنیا تباهی دالله ﷻ په نزد دې ځخه اهون او سپکه ده چې یو مؤمن په ناحقه قتل کړې شي[1] او په ځینې روایتونو کښې دې سره داهم دی چې که د الله ﷻ د اوؤ آسمانونو او اوؤ زمکو ټول مخلوق د یو مؤمن په ناحقه قتل کښې شریك شي نو هغه ټول به الله ﷻ په جهنم کښې داخل کړي. [ابن ماجه په حسن سند سره او بیهقي [د مظهری ځخه].[2] یو بل حدیث پاك کښې راغلی دی چې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې کوم یو کس د چا مسلمان په وژلو کښې په یو کلمې او خبرې سره هم مدد او کړو نو کله چې په میدان حشر کښې د الله ﷻ

[1]) جامع الترمذی، ابواب الديات، باب ماجاء فی تشدید قتل المؤمن [ج:۲ ص:۲۵۹]
[2]) جامع الترمذی، ابواب الديات، باب الحكم فی الدماء [ج:۲ ص:۲۵۹]

په وړاندې پيش شئ دهغه په تندۍ به دا الفاظ ليکلي وي :
﴿آئس من رحمة الله﴾ [دا کس دالله ﷻ د رحمت څخه نااميده کړې شوې دی ] [مظهری د ابن ماجه او اصبهاني څخه] [1] اوبيهقي په روايت د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما او معاويه رضي الله عنه نقل کړی دی چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل :
د هر يو ګناه د بخښنې اميد دالله ﷻ څخه شته دې خو څوك چې د کفر په حال کښې مړ شي يا په قصد او ارادې سره څوك مسلمان په ناحقه اووژني [2] انو ددې دواړو د بخښنې اميد نشته].

**په ناحقه د وژلو تفسير:** امام بخاري او مسلم د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت کړې دې چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې د يوداسې مسلمان وينه تويول حلال نه دی چې د الله ﷻ د يو والی او زما د پيغمبرئ ګواهي ورکوی. سوا ددې صورتونو څخه :
① يو دا چې واده ئې شوی دی او بيا هم زنا کوی. [او دې به سنګسارولې شی ]
② دويم دا چې يو انسان ئې په ناحقه قتل کړې وی [ او دې به د مقتول په قصاص کښې وژلې شی ]. ③ دريم دا چې دين اسلام څخه مرتد شوې وی [3] [ دا اسلام څخه بيا کفر ته آوړيدلې وی ، نود هغه سزا هم قتل دې ].

**د قصاص اخستلو حق د چا دې:** په تير شوی آيت مبارك کښې خودلې شو يدی چې دا حق د مقتول د ولی اووراث دې که نسبي ولی د چا موجود نه وی نو داسلامی حکومت سربراه ته به دا حق حاصل وی ولې چې هغه هم په يو حيثيت د ټولو مسلمانانو ولی دې څکه د تفسير په خلاصه کښې ولی حقيقی يا حکمی ليکلې شوې دې.

**دظلم جواب ظلم نه دې بلکه انصاف دې ، د مجرم په سزا کښې هم د انصاف خيال ساتل پکار دی:** ﴿فَلَا يُسْرِف فِّي الْقَتْلِ﴾ د اسلامی قانون يو خاص هدايت دې. حاصل ئې دادې چې د ظلم بدله په ظلم سره اخستل جائز نه دی. په بدله کښې هم دانصاف څخه کار اخستل پکار دی. تر څو چې د مقتول ولی د شريعت په مطابق قصاص اخستل غواړی نو دالله ﷻ مدد به هم ده سره وی که دې کښې يې څه لږ لاندې باندې هم راوستو اود شرعی قصاص خيال ئې اونه ساتلو نو معامله به ئې خلاف شی د مظلوم په ځائې اوس هم به دې ظالم اوګرځی او الله ﷻ او قانون به ئې دده په ځائې د فريق مخالف مدد کوی چې د ظلم څخه به ئې ساتي.
دعربو په جاهليت کښې دا خبره عامه ده چې دقاتل د طرفه څوك دوست يا خپلوان د مقتول وارثانو ته په ګوتو ورغلل نو هغوئ به ئې وژل او بدل بهٔ ئې تري اخستو. که مقتول به څوك لوئې بنده وو نو دهغه واراثانو به دهغه په بدل کښې هر هغه څوك وژل چې وس به ئې پرې بر شو. د يو دوؤ کسانو په وژولو بهٔ ئې هډو صبر نه کيدو ، ځينې خلق خو به دومره بې صبره وو

[1] ) سنن ابن ماجة، ابواب الديات،باب التغليظ فی قتل مسلم ظلما [ج:۲ ص:۱۸۸ ]
[2] ) سنن ابوداود، کتاب الفتن ، باب النهی عن القتال وفی تعظيم قتل المؤمن [ج:۲ص:۵۸۶ ]
[3] ) صحيح البخاری کتاب الديات ،باب قول الله تعالى ان النفس إلخ [ج:۲ص:۱۰۱۶] و صحيح مسلم کتاب القسامة، باب ما يباح به دم المسلم [ج:۲ص:۵۹].

چې بدل اخستو کښې به ئې صرف د بنده په وژلو زړهٔ نه يخيدو بلکه دهغه مورده غوږونه او
نور اندامونه هم پريکول او مُثله به ئې کوله.

دغه قسم تول څيزونه د اسلامي قصاص د حد څخه زيات بهر او حرام دي چې په ﴿فَلَا يُسْرِفْ فِّي
الْقَتْلِ﴾ سره ئې بنديز کړې شو بدي.

**د ياد لرلو يوه فيصله**:: ديو مجتهد امام رحمه الله په وړاندې يو کس په حجاج بن يوسف باندې څه
الزام اولګولو. حجاج بن يوسف په اسلامي تاريخ کښې د ټولو څخه زيات او لوئې ظالم او
ډير زيات بدنام سړې تير شوي دې ، په زرګونو صحابه کرام رضي الله عنهم او تابعين رحمهم الله په نا حقه
قتل کړي وو ځکه ددهٔ بد ويونکي خلق د چا په نظر کښې بد نه راځي.

خو دغه بد ويونکي سړې نه هغه بزرګ تپوس اوکړو چې په حجاج بن يوسف باندې ددغې الزام
لګولو څه ثبوت يا ګواه تاسره شته دې ؟

دائې هم اوفرمائيل چې ياد لره چې الله ﷻ خو به د حجاج بن يوسف څخه د هغه زرګونو
مظلومانو بدل ضرور اخلي کوم ئې چې بې ګناه قتل او شهيدان کړي دړي ليکن د هغه خلقو
څخه به هم خامخا بدل اخلي چاچې په حجاج بن يوسف باندې ظلم کړي وي ولې چې دالله ﷻ په
عدالت کښې هيڅ يره جنبه نشته دې چې هغه دې خلق د ناکاره اوګناه کارو خلقو بد وئيلو او د
خپلې خوښې الزام لګولو او پې تور پورې کولو ته آزاد پريږدی او چې څه يې خوښه وی
الزامونه او تهمتونه لګوی.

| وَلَا تَقْرَبُوْا | مَالَ الْيَتِيْمِ |
|---|---|
| اومهٔ نزدې کيږئ تاسو | مال ديتيم ته |

اود يتيم مال ته نزدې هم مه ورځئ

| اِلَّا | بِالَّتِيْ | هِيَ | اَحْسَنُ | حَتّٰى | يَبْلُغَ | اَشُدَّهٗ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مګر په هغه طريقې سره | | چې هغه | ډيره ښه ده | ترهغې پورې | چې اورسيږی هغه | حد د بلوغ خپل ته |

مګر صرف په هغه طريقه چې ددهٔ په حق کښې غوره وی تردې چې هغه پوخ عمر ته اورسی

| وَاَوْفُوْا | بِالْعَهْدِ | اِنَّ الْعَهْدَ كَانَ | مَسْـُٔوْلًا | وَاَوْفُوا |
|---|---|---|---|---|
| اووفاکوئ | په وعده باند | بيشکه وعده چې ده | ده تپوسلې شوی | اوپوره ورکوئ |

اود وعدې پابندی کوئ بيشکه دوعدې په حقله به تپوس پوښتنه کيږی او چې څهٔ

| الْكَيْلَ | اِذَا | كِلْتُمْ | وَزِنُوْا | بِالْقِسْطَاسِ | الْمُسْتَقِيْمِ | ذٰلِكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| پيمانه | کله چې | پيمانه کوئ تاسو | اوتول کوئ | په تله | نيغه باند | دا طريقه |

پيمانه کوئ نوپوره پوره ئې پيمانه کوئ او چې تول کوئ نو په سمه برابره تله ئې کوئ دا

| خَيْرٌ | وَّاَحْسَنُ | تَاْوِيْلًا |
|---|---|---|
| بهتره ده | او ډيره ښه ده | په لحاظ دانجام سره |

ډير غوره دې اودانجام په لحاظ سره ډير ښه دې

## آسان ترجمه قرآن

او د یتیم مال ته مه نږدې کیږئ، خو په داسې طریقې سره کومه چه (د هغه په حق کښې) بهترینه وی، تردې چه هغه خپل ګلک وال ته اورسیږی او لوظ پوره کوئ، د لوظ په باره کښې به (ستاسو نه) ضرور تپوس کولې شی. او چه کله یو څیز په پیمانه سره ناپ کوئ نوپوره ناپ کوئ، او د تول دپاره تله صحیح استعمالوئ. هم دا طریقه صحیح ده، او هم ددې انجام غوره دې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَا تَقْرَبُوْا مَالَ الْيَتِيْمِ﴾ [او د یتیم مال ته مه نزدې کیږئ ] یعنی تصرف په کښې مه کوئ ﴿اِلَّا بِالَّتِيْ﴾ [مګرپه داسې طریقه سره کوم چه ] شرعا ﴿هِيَ اَحْسَنُ حَتّٰى يَبْلُغَ اَشُدَّهٗ﴾ [غوره وی تردې چه دوی خپل سن دبلوغ ته ورسی ﴿وَاَوْفُوْا بِالْعَهْدِ﴾ او عهد] جائز [لره پوره کوئی ﴿اِنَّ الْعَهْدَ كَانَ مَسْئُوْلًا﴾ بیشکه دعهدبه دقیامت په ورځ تپوس کیدې شی ] په عهد کښې هغه ټول عهدونه هم داخل دی کوم چه بنده دخپل الله تعالی سره کړی دی او هغه هم کوم چه یې دا یو انسان سره کړی وی ﴿وَاَوْفُوا الْكَيْلَ اِذَا كِلْتُمْ﴾ [او] دناپ څیزونو لره [کله چه ناپ کوئ نو پوره یې ناپ کوئ ﴿وَزِنُوْا بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيْمِ﴾ او] دتول څیزونولره [په برابره تله سره تول کوئ ﴿ذٰلِكَ خَيْرٌ وَّاَحْسَنُ تَاْوِيْلًا﴾ دا] فی نفسه هم [ښه خبره ده او انجام هم ددې ښه دې ] په اخرت کښې خوثواب او په دنیا کښې دنیکنامۍ شهرت کوم چه دتجارت دترقۍ ذریعه ده.

## معارف او مسائل

﴿وَلَا تَقْرَبُوْا مَالَ الْيَتِيْمِ﴾ دې دوؤ آیتونو کښې درې مالی حقونه ، نهم ، لسم او یولسم حکم لاندې بیان شوی دی. په تیرو شوؤ آیتونو کښې بدنی او جسمانی حقونه بیان شوی دی.

**د یتیمانو په مال کښې احتیاط کول ::** دې رومبی آیت مبارك کښې نهم حکم دیتیمانو د مالونو د حفاظت او په کښې د احتیاط کولو بیان دې تاکید په کښې دومره دې چې فرمائی: دیتم مال ته نزدې هم مه ورزئ. هسې نه چې د یتیم په مال کښې د شریعت یا ددغې ماشوم د ښیګړې نه خلاف څه دخل ورکول د هغه چا د طرفنه راپیښ شی چې چا ته د یتیم د مال حفاظت او انتظام حواله وی. هغه ته پکار دی چې په دې باره کښې ډیر محتاط اوسی. خالص د یتیمانو د خیر ښیګړې په خیال دې دهغوئ مال خرچ کوی. پخپله خوښه یا بې پرواهۍ سره دې نه خرچ کوی ، دا احتیاط کول دې تر هغې وخت پورې وی چې یتیم ماشوم ځوان شی او دخپل مال حفاظت پخپله کولې شی دې دپاره د یتیم د بالغیدو کمه درجه داده چې دماشوم عمرپنځلسو کالو ته اورسی او پورته د رجه داده چې عمرئې اتلس کالوته اورسی.

د هر چا مال په ناجائزه طریقې سره لګول جائز نه دی ، دلته په خصوصیت سره د یتیمانو بیان کول ځکه اوشو چې هغه خو پخپله د حساب کتاب کولو جوګه نه دې ، نور څوك پرې نه خبریږی ، په داسې صورت کښې د الله ﷻ مطالبه زیاته سخته شی چرته چې دخپل حق مطالبه کوؤنکې انسان موجود نه وی ، نو په دې کښې د کوتاهۍ کولو ګناه د عامو خلقو د حقونو په نسبت زیاته ګناه وی.

**د لوظونودپوره کولو او په دې د عمل کولو حکم ::** لسم حکم د لوظ د پوره کولو دې. لوظ په دوه قسمه دې. یو هغه دې چې د الله ﷻ او بنده ترمینځه وی لکه په ازل کښې دبنده دا لوظ

کول چې بیشکه الله ﷻ زمونږ رب دی ددې لوظ لازمی اثر د هغه په حکمونو باندې عمل کول او د هغه رضا لټول دی ، دغه لوظ خو هر انسان په ازل کښې کړې دې که هغه په دنیا کښې کافر وی او که مؤمن وی ، بل لوظ د مؤمن دې چې هغه د لا اله الا الله د ګواهۍ ورکولو په ذریعه کړې دې ، حاصل ئې دادې چې د الله ﷻ د حکمونو مکمله تابعداری کول او دهغه رضا لټول دی.

بل قسم لوظ هغه دې چې انسان ئې د بل انسان سره کوی خواه هغه سیاسی لوظ وی او که تجارتی یا معاملاتی وی کوم چې افرادو یا د ډلو ترمینځه په دنیا کښې کیږی .د رومبی قسمه ټولو لوظونو پوره کول په انسان باندې واجب دی. او دویم قسم لوظونو کښې چې کوم لوظونه د شریعت نه خلاف نه وی د هغې پوره کول واجب دی . او که دشریعت نه خلاف وی نو بل فریق ته په اطلاع ورکولو سره دهغې ختمول واجب دی . د کومو لوظونو پوره کول چې واجب وی نو که یو فریق هغه پوره نه کړی نو بل فریق دا حق لری چې عدالت ته لاړشی او دهغې په ذریعه ئې په پوره کولو مجبور کړی . د معاهدې حقیقت دادې چې د دوؤ فریقو ترمینځه دیو کار په کولو یا په نه کولو باندې لوظ شوې وی چې کوم کس د چاسره یکطرفه وعده کوی چې زه تاسو ته فلانۍ څیز درکوم یا فلانی وخت تاسره ملاویږم یا ستا فلانې کار کوم نو دا یو طرفیزه وعده پوره کول واجب دی چې څینې حضرات دې ته هم عهد وائی خو ددې دواړو ترمینځه به دا فریق خامخا وی چې د دوؤ طرفه لوظ قول په صورت کښې که یو فریق خلاف ورزی او کړی نو بل فریق ئې د عدالت په ذریعه په معاهدې پوره کولو باندې مجبوره کولې شی خو یوطرفه وعده ، دعدالت په ذریعه جبرا نشی پوره کولې. البته په داسې خلاف ورزئ کولو به هم د شریعت ترمخه ګناهګار وی خو هله چې عذر شرعی ئې نه نوی ، حدیث پاک کښې دې ته عملی نفاق وئیلې شوې دې .(۱)

د آیت مبارك په آخر کښې فرمائی چې : ﴿إِنَّ الْعَهْدَ كَانَ مَسْئُولًا﴾ یعنی په قیامت کښې چې د نورو فرضو واجبو او نورو د الله ﷻ د حکمونو پوره کولو یا نه پوره کولو باره کښې تپوس کیږی نو دغه شان د هغې دوه اړخیزه معاهدې په باره کښې به هم تپوس کیږی. دلته صرف د تپوس کولو اوفرمائیلې شو خو دا اونه فرمائیلې شو چې د تپوس کولو نه پس به څه کیږی ؟دا مبهم والې دې ته اشاره ده چې خطره په کښې ډیره لویه ده .

یولسم حکم د لین دین په معامله کښې د ناپ تول پوره کولو دې او په دې کښې د کمی کولو نه منع شوې ده چې پوره تفصیل ئې په سورة المطففین کښې بیان شوې دې .

**مسئله** : فقهاء کرامو فرمائیلی دی چې په آیت مبارك کښې د ناپ تول حاصل دادې چې یو حقدار ته د خپل حق نه کم څیز ورکول حرام دی څکه خو په دې کښې دا هم داخل دی چې یو ملازم پخپل سپارلی او ټاکلی کار کښې کمې اوکړی یا دمقرر کړی وخت نه کم وخت ورکړی یا مزدور پخپلې مزدورئ کښې د کام چورئ نه کار اخلی .

(۱) تفصیل دپاره اوګورئ:-صحیح البخاری کتاب المظالم والغضب ،باب إذا خاصم فجر[ج:۱ص:۳۳۲]

**ناپ تول کښي دکمي راوستو نه بندېز: مسئله** ﴿وَأَوْفُوا الْكَيْلَ إِذَا كِلْتُمْ﴾ په تفسير بحرمحيط کښي ابوحيان رحمه الله فرمائيلي دي چې په دې آيت مبارك کښي د ناپ تول پوره کولو پوره ذمه داري په خرڅونکي باندې اچولې شوې ده څکه معلومه شوه چې دا ذمه داري هم په ده ده.[1]

د آيت مبارك په آخر کښې د ناپ تول پوره کولو په باره کښې فرمائي چې: ﴿ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا﴾ دلته د صحيح ناپ تول پوره کولو باره کښې دوه خبرې فرمائي چې:

① ديو حاصل دادې چې داسې کول يوازې د شريعت ترمخه نه بلکه د عقل او طبيعت ترمخه هم، يو شريف انسان په ناپ تول کښې کمي راوستل نه خوښوي.

② بله خبره دا فرمائي چې ددې انجام هم زيات غوره دې، په دې کښې د آخرت انجام، ثواب او جنت حاصلول خو داخل دي خو ددنيا د انجام غوروالی ته په کښې هم اشاره ده څکه چې دې سره د سوداگرئ مشهورتيا اوشي امانتگر او ديانتدار بللې شي چې د سوداگرئ وده په دې باندې پرمختگ کوي.

| |
|---|
| وَلَا تَقْفُ　مَا　لَيْسَ |
| او پيروي مه کوه \| دهغه څيز \| چې نه وي |
| او په هغه خبرې پسې مه څه |
| لَكَ　بِهِ　عِلْمٌ　إِنَّ السَّمْعَ　وَالْبَصَرَ　وَالْفُؤَادَ　كُلُّ أُولَٰئِكَ　كَانَ |
| تالره \| په هغې باند \| علم \| بيشکه \| غوږ \| او سترگې \| اوزړه \| دا ټول چې دي \| دي \| |
| دکومې چې تاته پوخ علم نه وي بيشکه د غوږونو، سترگو، او دزړه ددې ټولو څيزونو |
| عَنْهُ مَسْئُولًا　وَلَا تَمْشِ　فِي الْأَرْضِ　مَرَحًا　إِنَّكَ |
| په باره ددې کښې تپوس کيدونکې \| اومه گرزه ته \| په زمکه کښې \| په غرور سره \| بيشکه ته \| |
| په حقله به پوښتنه کيږي اود زمکې په سر ايغ نيغ مه گرځه بيشکه ته |
| لَنْ تَخْرِقَ　الْأَرْضَ　وَلَنْ تَبْلُغَ　الْجِبَالَ　طُولًا　كُلُّ ذَٰلِكَ |
| هرگزنشې شلولې \| زمکه \| اوهرگزنه شې رسيدې \| غرونوته \| په لحاظ داوچتوالی سره \| داټول چې دی |
| خو نه زمکه شلولې شې اونه په اوږدوالی کښې غرونو ته رسيدلې شې داټول |
| كَانَ سَيِّئُهُ　عِنْدَ رَبِّكَ　مَكْرُوهًا |
| ده بدی ددې \| په نز درب ستا \| نا خوښه دا \| |
| خراب کارونه ستادرب په نزد بالکل ناخوښه دی |

**آسان ترجمه قرآن**

اود کومې خبرې چه تا ته يقين نه وي، (صحيح گنړلو سره) هغې پسې مه کيږه. يقين لره چه غوږونه سترگې او زړه د ټولو په باره کښې به (تاسو نه) سوال کيږي. اوپه زمکه باندې په تکبر مه گرځه. نه خو

---

[1] تفسير البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۳۴۴]

ته زمکه شلولې شې، او نه په اوچت والی کښې غرونه ته رسیدلې شې. دا ټول بد کارونه داسې دی کوم چه ستا رب ته بالکل ناخوښه دی.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ﴾ [ او د کومې خبرې چه حقیقت تا ته نه وی معلوم په دې عمل مه کوه] څکه چه ﴿إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ﴾ [دغوږونو سترګو اوزړه دهرسړی نه به ﴿كُلُّ أُولَٰئِكَ كَانَ عَنْهُ﴾ ددې ټولو ]دقیامت په ورځ ﴿مَسْئُولًا﴾ [تپوس کیږی ] چه غوږونه اوسترګې دی کومو کومو کارونو کښې استعمال کړې دی دغه کارونه ښه وو اوکه بد اودبې دلیله خبرې خیال دپه زړه کښې ولې ځای کړې وو ﴿وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا﴾ [اوپه مزکه په لوئ کولو سره مه ګرځه ] ﴿إِنَّكَ لَنْ تَخْرِقَ الْأَرْضَ﴾ څکه چه [ته خو] په مزکه په زوره په پښو ایښودو سره [ نه مزکې لره څیرولې شې ﴿وَلَنْ تَبْلُغَ الْجِبَالَ طُولًا﴾ اونه ] دځپل بدن په رابنکلوسره [دغرونو وچتوالی ته رسیدې شې] نوستادالوئی عبث ده ﴿كُلُّ ذَٰلِكَ﴾ [داټول] چه ذکرشو ﴿كَانَ سَيِّئُهُ عِنْدَ رَبِّكَ مَكْرُوهًا﴾ [بدکارونه ستادرب په نزد] بلکل [ناخوښه دی ].

## معارف او مسائل

دې آیتونو کښې دوه حکمونه یعنی دولسم او دیارلسم د عام معاشرت باره کښې دی. په دولسم حکم کښې په څه خبره باندې بې تحقیقه عمل کول منع ګرځولې شوی دی.

دلته دا خبره مخې ته ایښودل ضروری ده چې د تحقیق درجې مختلفې وی ، د یو قسم تحقیق نتیجه دا وی چې دکمال درجې ته اورسی او د مخالف اړخ څه شبه هم پاتې نشی ، دویم دا چې ورسره د غالب ګمان درجه حاصله شی ، اګر چې دمخالف طرف احتمال هم موجود وی. دغه شان په حکمونو کښې هم دوه قسمه دی ، یو قسم قطعیات او یقینیات دی لکه عقیدې او د دین اصول شو ، په هغې کښې د ړومبئ درجې تحقیق مطلوب دې. ددې څخه بغیر عمل کول جائز نه دی. بل قسم ظنیات دی لکه د فروعی احکامو په باره کښې حکمونه شو.

ددې تفصیل څخه روستو ددې بیان شوی آیت مبارك مقتضی داده چې یقینی او قطعی حکمونو کښې دې تحقیق هم د اولې درجې داسې وی چې قطعیت او د کامل یقین درجې ته اورسی که داسې نه وی نو په عقیدو او د اسلام په اصولو کښې بل شان تحقیق معتبر نه دې. د هغې په مقتضی باندې عمل کول جائز نه دی او نه په ظنی او فروعی څیزونو کښې د دویمې درجې تحقیق کافی دې [ بیان القران] [1]

**دغوږ، سترګې او زړه باره کښې د قیامت په ورځ تپوس کول** ﴿إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ أُولَٰئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْئُولًا﴾ فرمائی چې د قیامت په ورځ به د غوږ ، سترګې او زړه څخه تپوس کولې شی. مطلب دادې چې د غوږ څخه به سوال کیږی چې تا په عمر کښې څه څه آوریدلی وو؟ د سترګې څخه به تپوس کیږی چې ټول عمر دې په زړه کښې څه څه خیالونه راغلی وو او په کومو کومو څیزونو دې یقین کړې وو؟ که په غوږ دې داسې خبرې آوریدلی وی چې په شریعت کښې دهغې آوریدل جائز نه وو لکه د چا غیبت دې پرې آوریدلی وو یا حرامې سندرې سرودونه دې پرې

[1] تفسیر بیان القرآن تحت هذه الآیة [ج: ٦ ص:٨٤، ٨٥]

آؤریدلی وی یا په سترګو ئې داسې څیزونه اولیدل چې لیدل کتل ئې د شریعت تر مخه حلال نه وو لکه نامحرمې ښځې یا په امرد [مراهق] هلك باندې نظر ښخول وغیره شو. یا په زړه کښې ئې د قرآن پاك او سنت خلاف څه عقیده ځائې کړه ، یا ئې په خپل زړه کښې د چا متعلق بې دلیله څه الزام قائم کړو نو ددې سوال په نتیجه کښې به په عذاب کښې ګرفتار وي.

د قیامت په ورځ به دټولو نعمتونو باره کښې تپوس کولې شی لکه ارشاد دې چې: ﴿ثُمَّ لَتُسْـَٔلُنَّ يَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِيمِ﴾ یعنی قیامت کښې به ستاسو د الله ﷻ د ټولو نعمتونو باره کښې تپوس کیږی، سترګې او زړه په ټولو نعمتونو کښې زیات غوره دی څکه په خصوصیت سره ددې بیان اوشو.

تفسیر قرطبی او مظهری کښې[۱] ددې دا مفهوم بیان کړې شوې دې چې هر کله ﴿وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ﴾ یعنی بې علمه او بې تحقیقه په څه څیز باندې عمل مه کوئی.. دې پسې متصل د غوږونو ، سترګو او زړه څخه د سوال کولو مطلب دادې چې یو کس بې تحقیقه لکه په چا الزام اولګولو او بې تحقیقه ئې په څه خبره باندې عمل اوکړو که هغه دداسې یو څیز په باره کښې وی چې په غوږونو آؤریدلې شی نو غوږونو څخه به سوال کیږی اوکه په سترګو سره د لیدو څیز وی نو دسترګو څخه به سوال کیږی اوکه زړه سره تعلق لرونکې څیز وی نو زړه څخه به سوال کولې شی. چې دا کس په خپل الزام لګولو او په خپل زړه کښې د مضبوط کړی خیال باره کښې ریښتونې دې اوکه دروغژن دې ، په دې باندې د انسان دا اندامونه به پخپله ګواهی ورکوی ې د حشر په میدان کښې به بې تحقیقه الزام لګونکې او بې تحقیقه عمل کوؤنکې لره ډیر د شرمندګئ سبب جوړ شی لکه په سورة یاسین کښې فرمائی چې:

﴿الْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلَىٰ أَفْوَاهِهِمْ وَتُكَلِّمُنَا أَيْدِيهِمْ وَتَشْهَدُ أَرْجُلُهُم بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ یعنی مونږ به نن دقیامت په ورځ د مجرمانو په خلو باندې مهر لګولو سره هغه بندې کړو او دهغوئ لاسونه بهٔ خبرې کوی ، پښې به ئې ګواهی ورکوی چې ده په دې اندامونو سره څه څه ښهٔ یا خراب کارونه کړی دی.

دلته د غوږونو سترګو او زړه تخصیص شاید په دې بنا کړې شوې دې چې الله ﷻ انسان ته دا حواس او د زړه شعور او ادراك څکه وربخښلې دې چې کوم خیال یا عقیده ئې په زړه کښې راشی ددغې حواسو او ادراك په ذریعه د هغې جاج واخلی چې صحیح وی نو عمل پرې اوکړی او که غلط وی نو لاس دې ترې واخلی ، که چا ددې څخه کار وانخستو او بې تحقیقه خبرو باندې عمل اوکړو نو هغه دالله ﷻ ددې نعمتونو ناشکری اوکړه.

بیا هغه حواس چې انسان دهغې په ذریعه مختلف څیزونه معلوموی پنځه دی ، غوږونه ، سترګې ، پوزه ، د ژبې قوتونه او په ټول بدن کښې هغه احساس چې په هغې سره د څه څیز یخوالې ګرموالې وغیره معلومولې شی. خو عادتا انسان ته زیات معلومات په غوږونو یا سترګو سره کیدلې شی په پوزه د بوئی کولو ، په خله د څکلو نه په لاس وغیره لګولو او وراوړلو سره چې د کومو څیزونو علم کیږی هغه دلیدلو او آؤریدلو په نسبت ډیر کم وی ، دلته د پنځو حواسو څینې صر د دوؤ په ذکر کولو سره بسوالې کول شایدهم په دغې وجه وی ، بیا په دې کښې او په نورو ځایونو د قرآن کریم کښې د غوږونو بیان دسترګو څخه د وړاندې کولو وجه غالبا دا وی چې د انسان په معلوماتو کښې د ټولو څخه زیات حصه په غوږونو باندې د

[۱] تفصیل دپاره اوګورئ:-تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة[ ج:۱۰ص:۲۵۹] و تفسیر المظهری[ج:۵ص:۴۴۰]

آوّریدلو ځیز وی ، په سترګو لیدلی ځیزونه ددې په نسبت کم دی.
دې دوؤ آیتونو کښې په دویم آیت مبارك کښې دیارلسم حکم دادې چې په زمکه باندې په مستۍ سره مه ګرځئ ، یعنی داسې تګ مه کوئ چې فخر ، غرور او تکبر په کښې وی. ځکه چې دا د بیوقوفۍ کار دې. ګویا په دې شان ګرځیدو سره هغه زمکه له شلول او ځیرې کول غواړی. چې وس ئې پرې نه رسی. داسې پورته پورته تګ سره هغه ډیر پورته کیدل غواړی خو د الله ﷻ غرونه دده ځخه زیات پورته دی ، تکبر په اصل کښې د انسان د زړه په باره کښې سخته لویه ګناه ده ، د انسان په چال چلن کښې چې کوم ځیزونه په تکبر باندې دلالت کوی هغه هم ناروا دی ، د تکبر په چال سره تلل خواه په هر شان سره وی که زمکه باندې په زوره قدم اړدی او نیغ په نیغه پورته پورته ګرځی که نه ګرځی خو بیا هم ناروا ځکه دی چې تکبر دا هم دې چې خپل ځان د نورو ځخه زیات او غوره ګنړی ، او نور خلق پخپله مقابله کښې ښکته او سپك ګنړی. نو په یو حدیث پاك کښې په دې سخت وعید راغلې دې.
امام مسلم د عیاض بن حمار رضی الله عنه ځخه روایت نقل کړې دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې الله ﷻ ماته د وحی په ذریعه داحکم رالیږلې دې چې تواضع او عاجزی اختیار کړئ،هیڅوك دې دبل ځخه ځان لوئې نه ګنړی او فخردې پرې نه کوی اوڅوك دې په چاظلم نه کوی [مظهری] (۱)
عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائیلی دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل : جنت ته به هغه څوك داخل نشی چې په زړه کښې ئې لږ شان تکبر هم وی. [مظهری په حوالهٔ د صحیح مسلم.(۲)
یو حدیث قدسی کښې چې د ابی هریره رضی الله عنه ځخه روایت دې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې الله ﷻ فرمائی :
لوئې زما ځادراو عظمت زما لنګ [پرتوګ] دې څوك چې رانه دا شوکول غواړی نو زه به ئې په جهنم کښې داخل کړم .(۳) ځادر او لنګ یعنی پرتوګ ځخه مراد لباس دې خو الله ﷻ جسم نه لری چې دلباس ورته ضرورت وی ځکه به د لته تری مراد دالله ﷻ کبریائی اولوئی وی ،څوك چې ورسره په دې صفت کښې شریکیدل غواړی هغه جهنمی دې.
او یو حدیث پاك کښې راغلی دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې د قیامت په ورځ به تکبر کوونکی د ورکوټو میږو هومره انسانانو په شکل کښې پورته کولې شی چې دهر طرفه به پرې ذلت اوخواری وریږی. هغوئ به د جهنم یو قید خانې ته بوتلې شی چې نوم یې بولس دې په هغوئ به د تولو اورونو ځخه زیات اور ورختلې وی او ځکلو دپاره به ورته د جهنمیانو د بدن ځخه راوتلې وینې زوې ورکولې شی .[ترمذی شریف کښې د عمرو بن شعیب عن ابیه ځخه روایت شوې دې ، مظهری].(۴)
عمر فاروق رضی الله عنه منبر باندې خطبه کښې اوفرمائیل چې ما رسول کریم ﷺ ځخه آوّریدلی دی چې څوك د الله ﷻ درضا دپاره عاجزی کول اختیار کړی نو الله ﷻ هغه سربلند کوی ، هغه ته

۱) صحیح مسلم کتاب صفة الجنة ونعیمها وأهلها، باب صفات التی یعرف بها فی الدنیا إلخ [ج:۲ص:۳۸۵]
۲) صحیح مسلم کتاب الإیمان، باب تحریم الکبر وبیانه [ج:۱ص:۶۵]
۳) سنن ابی ابوداود، کتاب اللباس ، باب الکبر إلخ [ج:۲ص:۵۶۵ ]
۴) جامع الترمذی ، ابواب صفة القیامة باب منه (بعد باب ماجاء فی صفة اوانی الحوض) [ج:۲ ص:۷۱]

خپل ځان وروکې اود خلقو په نظر کښې لوئې وي او څوك چې تکبر کوي هغه لره الله ﷻ ذليله کوي ، هغه ته خپل ځان غټ ښکاري او د نورو خلقو په نظر کښې هغه دسپي اوخنزير څخه هم زيات خراب وي [مظهري] (١)

﴿كُلُّ ذٰلِكَ كَانَ سَيِّئُهُ عِنْدَ رَبِّكَ مَكْرُوْهًا﴾ د احکامو مذکورو د تفصيل بيانولو نه پس په آخري آيت کښې فرمائی چې دغه ټول بيان شوي خراب کارونه دالله ﷻ په نزد دکرکې اوناخوښه څيزونه دی. پدغې حکمونو کښې حرام او منع کړی شوی څيزونه خو په ښکاره خراب او ناخوښه دی خو په دې کښې ځينې حکمونه اوامر يعنی د کولو څيزونه هم دی لکه د والدينو او خپلوانو حقوق ادا کول او لوظ پوره کول وغيره شو چې په هغې کښې هم مقصود دادې چې ددې د ضد او خلاف څيزونو څخه ځان اوساتلې شي لکه والدينو ته دزيان رسولو خپلوانو سره د خپلوئی پريښودلو او دلوظ او قول ماتولو څخه ډډه اوکړې شي . دا څيزونه ټول حرام او ناخوښه دی. څکه ټولو ته مکروه اوفرمائيلې شو .[بيان القرآن] (٢)

**خبرداري** :: په دې پنځلسو آيتونو مبارکو کښې بيان شوی حکمونه په يو حيثيت سره د هغې سعی او عمل تشريح ده کوم چې الله ﷻ ته مقبول دی او بيان ئې د اتلسو آيتونو څخه وړاندې راغلې دې ﴿وَسَعٰى لَهَا سَعْيَهَا﴾ چې هغه کښې دا خودلې شوي وو چې هر عمل او سعی د الله ﷻ په نزد مقبول نه ده بلکه صرف هم هغه چې د رسول کريم ﷺ د سنت او تعليم مطابق وی په دې حکمونو کښې د هغې مقبول سعی او عمل ډير ضروری بابونو بيان شوی دی چې اول په کښې د الله ﷻ د حقونو او بيا په کښې د بندګانو د حقونو بيان دې.

**دا پنځلس آيتونه دپوره قرآن پاك خلاصه** :: عبدالله بن عباس رضي الله عنه فرمائيلی دی چې د تورات ټول احکام د سورهٔ بني اسرائيل په پنځلسو آيتونو کښې جمع کړې شوی دی . [مظهري] (٣)

| | | |
|---|---|---|
| ذٰلِكَ مِمَّآ | اَوْحٰۤى | اِلَيْكَ |
| دل دهغه خبرونه دی | چې وحی اوکړه | تاته |

داتولې خبرې په هغه حکمت کښې شمير دی چې ستا پروردګار تاته راليږلې دې او دالله ﷻ سره بل معبود مه شريکوه ګنې په

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| رَبُّكَ | مِنَ الْحِكْمَةِ | وَلَا تَجْعَلْ | مَعَ اللّٰهِ | اِلٰهًا | اٰخَرَ | فَتُلْقٰى | |
| رب ستا | دحکمت دخبرونه | اومه جوړوه | دالله سره | معبود | بل | کنې نواوبه غورزولې شې ته | |

دوزخ کښې به ملامته او ذليل اوغورزولې شې(اې مشرکانو)آيا ستاسو رب تاسوله خو ځامن درکړل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فِيْ جَهَنَّمَ | مَلُوْمًا | مَّدْحُوْرًا | اَفَاَصْفٰىكُمْ | رَبُّكُمْ | بِالْبَنِيْنَ | |
| په دوزخ کښې | ملامته | رټلې شوې | آيانوغوره کړې تاسولره | رب ستاسو | په ځامنوسره | |

---

١) شعب الإيمان للبيهقي السابع والخمسون من شعب الإيمان إلخ، فصل في التواضع رقم الحديث[٧٩١٦]و تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٥ص:٤٤١]

٢ بيان القرآن تحت هذه الآية[ ج:٦ص:٨٥]

٣) تفسير المظهري[ج:٥ص:٤٤١]

وَاتَّخَذَ مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ اِنَاثًا ؕ اِنَّكُمْ لَتَقُوْلُوْنَ قَوْلًا عَظِيْمًا ۝

اووې نيولې | د فرښتو | نه | لونړه | بيشکه تاسو چې يئ | خامخاوايئ تاسو خبره | لويه |

او ېښپله هغه خان له فرښتې لونړه جوړې کړې دي بيشکه تاسو ډيره سخته خبره کوئ

وَلَقَدْ صَرَّفْنَا فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ لِيَذَّكَّرُوْا ؕ

او په تحقيق سره | بار بار پوهه کړل مونړه | په دې قرآن کښې | دپاره ددې چې عبرت حاصل کړي

او مونړ په دې قران پاک کښې [دتوحيد مضمون] په رنګ رنګ بيان کړې دې چې دوئ پرې ښه پوهه شي

وَمَا يَزِيْدُهُمْ اِلَّا نُفُوْرًا ۝ قُلْ لَّوْ كَانَ مَعَهٗٓ اٰلِهَةٌ

اونه زياتوي دوئ لره | مګر | تيښته دحق نه | اووايه | که چرې وې | دهغه سره | نور معبودان |

مګر [ددې نه خو] ددوئ [کفارو] نفرت نور زياتيږي ورته اووايه که چرې الله ﷻ سره نورمعبودان هم وې

كَمَا يَقُوْلُوْنَ اِذًا لَّابْتَغَوْا اِلٰى ذِي الْعَرْشِ سَبِيْلًا ۝

لکه څنګه چې | وائي دوئ | نوبيابه | خامخاتلاش کړې وه هغوئ | مالك دعرش ته | يوه لار

لکه چې دوئ وائي نو پدې صورت کښې به دوئ دعرش دمالک طرفته ضرور څه لار لټولې وه

سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يَقُوْلُوْنَ عُلُوًّا كَبِيْرًا ۝ تُسَبِّحُ

پاک دې هغه | اواوچت دې | دهغه خبرونه | چې وائي داخلق | په اوچت والي ډيرسره | تسبيح وائي

هغه ددا سې خبرونه پاک دې او څه چې دا خلق وائي د هغې نه هغه زيات اوچت اولوئي دې اووۀ

لَهُ السَّمٰوٰتُ السَّبْعُ وَالْاَرْضُ وَمَنْ فِيْهِنَّ ؕ

هغه لره | آسمانونه | اووۀ | اوزمکه | اوهغه څوك | چې په دې کښې دي

آسمانونه او زمکه اوهغه ټول څيزونه چې په دې کښې آباد دي دهغه پاکي بيانوي

وَاِنْ مِّنْ شَيْءٍ اِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهٖ وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ

اونشته هيڅ يوڅيز | مګر | تسبيح وائي هغه | دحمد دهغه سره | وليکن | نۀ پوهيږئ تاسو |

اوداسې څيز نشته چې هغه دالله ﷻ دتعريف سره دهغه پاکي نه بيانوي خو تاسو دهغه په

تَسْبِيْحَهُمْ ؕ اِنَّهٗ كَانَ حَلِيْمًا غَفُوْرًا ۝

په تسبيح دهغوئ باند | بيشکه | هغه دي | صبرناك | ابښونکې |

تسبيح نه پوهيږئ بيشکه هغه ډير حليم او بخښونکې دې

### آسان ترجمه قرآن

(اې پيغمبره!) دا هغه دحکمت خبرې دي کومې چه ستا رب په تا باندې د وحی په ذريعه نازلې کړې دی، او (اې انسانه!) الله پاک سره بل څوک معبود مه جوړوه، ګينې ته به ملامته او ديکو خوړلو سره جهنم ته اوغورځولې شې. آيا پس ستاسو رب تاسو خو د ځامنو درکولو دپاره خوښ کړی يئ، او خپله ئې د ځان دپاره ملائک لونړه جوړې کړې دی؟ حقيقت دا دې چه تاسو ډيره لويه خبره کوئ. او مونړ په دې قرآن

کریمہ کښې قسم قسم وضاحتونه کړی دی، د دې دپاره چه خلق په هوش کښې راشی، خو دا خلق دی چه په دې سره د هغوی په نفرت کښې نوره هم اضافه راځی. او وایه چه: که د الله پاک سره نور هم خدایان وې نو هغوی به په عرش والا (حقیقی الله) باندې د حملې کولو دپاره څه لاره پیدا کړې وې حقیقت دا دې چه کومې خبرې دا خلق کوی د هغه ذات د هغې نه بالکل پاک او ډیر اوچت دې. اووه واړه اسمانونه او زمکې او د هغې ټول مخلوقات د هغه پاکی بیانوی، او هیڅ څیز داسې نشته کوم چه د هغه حمد سره د هغه تسبیح نه کوی خو تاسو خلق د هغوی په تسبیح باندې نه پوهیږئ حقیقت دا دې چه هغه ډیر صبر کونکې، او ډیر بخښنه کونکې دې.

## خلاصه تفسير

اے محمد ﷺ ﴿ذٰلِكَ مِمَّآ اَوْحٰۤى اِلَيْكَ رَبُّكَ مِنَ الْحِكْمَةِ﴾ [داخبرې ] یعنی داذکرشوی احکام [دهغه حکمت نه دی کوم چه خدایٔ تعالی په تادوحی په ذریعه رالیږلی دی ] او اے مخاطبه ﴿وَلَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ﴾ [ دالله تعالی برحق سره بل معبودمه جوړه وه ﴿فَتُلْقٰى فِيْ جَهَنَّمَ مَلُوْمًا مَّدْحُوْرًا﴾ ورنه ته به ملامت شوې او رټلې شوې جهنم ته وغورزولې شې ] د ذکرشوو احکاموشروع یې هم دتوحید دمضمون نه کړې وه اوختم یٔ هم په دې اوکړو اووداندې هم د توحید دمضمون بیان دې چه هرکله بره دشرك قباحت اوباطلوالې د واوریدو بیاهم دادسې خبرو قائل کیږی کومې چه دتوحیدنه خلاف دی مثلا داچه ﴿اَفَاَصْفٰىكُمْ رَبُّكُمْ بِالْبَنِيْنَ﴾ [نوایا ستاسو رب تاسو لره په ځامنو سره خاص کړی دی ﴿وَاتَّخَذَ مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ اِنَاثًا﴾ اوپه خپله یٔ فرښتو لره لونړه جوړې کړې دی ] خپلې لکه چه دعربو جاهلانویه فرښتو ته دخدایٔ پاك لونړه وئیل کوم چه په دوه وجهو سره باطله ده اول خو دالله تعالی دپاره اولاد مقررول بیا اولاد هم جینکۍ کومو لره چه خلق دځان دپاره نه خوښوی اوبدې یٔ ګنړی په دې سره دالله تعالی طرف ته دیویل نقص نسبت کیږی ﴿اِنَّكُمْ لَتَقُوْلُوْنَ قَوْلًا عَظِيْمًا﴾ [بیشکه تاسو لویه خبره کویٔ او] افسوس خودادې چه دې مضمون دتوحیداودشرك باطلوالې لره ﴿وَلَقَدْ صَرَّفْنَا فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ لِيَذَّكَّرُوْا ۭ وَمَا يَزِيْدُهُمْ اِلَّا نُفُوْرًا﴾ [مونږ په دې قرآن مجید کښې په قسم قسم سره بیان کړې دې چه په ښه شان سره پرې پوهه شی ] اوپه مختلفو طریقوسره دباربار توحیدپه ثابتولو اودشرك دباطلولو دپاره دوی ته ﴿قُلْ لَّوْ كَانَ مَعَهٗٓ﴾ [اوفرمایه چه که چرې دده ] معبودبرحق[سره ﴿اٰلِهَةٌ﴾ نورمعبودان هم ] شریك [وې ﴿كَمَا يَقُوْلُوْنَ اِذًا لَّابْتَغَوْا اِلٰى ذِي الْعَرْشِ﴾ لکه چه داخلق وائی نو په دې حالت کښې به دعرش والا ] حقیقی خدایٔ [ته دوی ] یعنی دې نورو معبودانو چرته ﴿سَبِيْلًا﴾ [لارلټولې وه ] یعنی کوم چه تاسو دالله تعالی سره په خدایئ کښې شریك ګنړئ که دوی واقعی دهغه سره شریك وې نو په عرش والا خدایٔ تعالی باندې به یې حمله کړې وه او لاربه یٔ ورته لټولې وه اوکله چه په خدایانو کښې جنګ جوړشوې وې نو د دنیا نظام به څنګه چلیدلې وو کوم چه دیوخاص محکم نظام سره چلیدل هرسړې وینی نو په دې وجه دنظام عالم په صحیح طور سره چلیدل په خپله ددې دلیل دې چه دیو خدایٔ نه سوا څوك بل دهغه سره شریك نه شته ﴿سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يَقُوْلُوْنَ عُلُوًّا كَبِيْرًا﴾ داخلق چې څه وائی الله ﷻ [ددې نه پاك او ډیرزیات بالا وبرتر دې]
هغه داسې پاك دې چه ﴿تُسَبِّحُ لَهُ السَّمٰوٰتُ السَّبْعُ وَالْاَرْضُ وَمَنْ فِيْهِنَّ﴾ [ټول اووه اسمانونه او مزکه اوڅومره ] فرښتې بنیادم پیریان [ چه په دې کښې ] موجود [دی] ټول په ژبه سره یا په حال سره

[دهغه پاکي بيانوي او] داتسبيح دعقل والا انسان اوپيري سره خاصه نه ده ﴿وَاِنْ مِّنْ شَيْءٍ﴾ بلکه په مزکه اواسمان کښې [هيڅ شي داسې نشته ﴿اِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهٖ﴾کوم چه دثنا سره دهغه پاکي نه بيانوي ﴿وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِيْحَهُمْ﴾ليکن تاسو خلق ددوی تسبيح ] پاکی بيانولو[باندې نه پوهيږئ ﴿اِنَّهٗ كَانَ حَلِيْمًا غَفُوْرًا﴾ بيشکه هغه لوئ برد باره لوئ بخښونکې دې.

## معارف او مسائل

د توحيد کوم دليل چې په آيت مبارك ﴿اِذًا لَّابْتَغَوْا﴾ کښې بيان شوې دې چې که ددنيا د ټولو کائناتو ، خالق ، مالك او اختيار لرونکې يوازې ذات د الله ﷻ نه وی بلکه په دې خدايئ کښې ورسره نور هم شريك وی نو ضروری ده چې په دوئ کښې به کله اختلاف هم وی او د اختلاف په صورت کښې به د ټول جهان انتظام برباد شی ، ولې چې ددغې ټولو خدايانو ترمينځه صلح کيدل او د هغې هميشه جاری پاتې کيدل د عادت تر مخه بالکل نشی کيدې . دلته دا دليل اګر چې په امتناعی انداز کښې بيان کړې شوې دې مګر د علم کلام په کتابونو کښې ددې دليل برهانی او منطقی کيدل هم ښه په ښکاره بيان کړې شوې دې د علم خاوندانو ئې هلته کتلې شی .

**د زمکې آسمانونو او په دې کښې د موجود ټولو څيزونو د تسبيح کولو مطلب:** په دې څيزونو کښې ټول په ټوله فرښتې او مؤمنان انسانان او پيريان تسبيح کوونکی کيدل خو بالکل ښکاره خبره ده ټول هر څوك پرې پوهيږی ، د کافرانو انسانانو او پيريانو چې په ښکاره تسبيح نه وائی داشان ددنيا د نورو هغو څيزونو چې عقل او شعور نه لری ، د تسبيح وئيلو څه مطلب کيدې شی .
بعضې علماء کرامو فرمائيلی دی چې د دوئ د تسبيح څخه مراد د حال تسبيح ده يعنی ددوئ حالات د دوئ ګواه دی ، ولې چې د الله ﷻ څخه سوا د هر څيز مجموعی حال دا ښائی چې هغه خو نه پخپله شتهوالی کښې مستقل دې او نه پخپل باقی پاتې کيدو کښې بلکه دا دوې د يو لوئې قدرت د لاندې چليږی ، د دوئ د حال داګواهی ورکول ددوئ تسبيح دې مګر د نورو اهل تحقيق حضراتو قول دادې چې اختياری تسبيح خو صرف د فرښتو او مؤمنانو بنيادمو او پيريانو دپاره مخصوص دې مګر په تکوينی ډول باندې الله ﷻ د کائناتو ذره ذره خپله تسبيح ويونکې جوړه کړې ده کافران هم اول خو عموماً الله ﷻ منی او دهغه د لوئې اقراريان دی او هغه ماده پرست د هريان يا دنن صبا کميونسټ چې د الله ﷻ د شته والی په ښکاره باندې اقرار نه کوی خو ددوئ د وجود هره حصه په بې اختياره ډول د الله ﷻ تسبيح وائی څنګه چې کاڼړی ، ښاوره ، وغيره ټول د الله ﷻ په تسبيح کښې مصروف دی خو هر کله چې ددې تسبيح تکوينی او غير اختياری دې څکه ئې عام خلق نه آوری لکه د قرآن پاك ارشاد: ﴿وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِيْحَهُمْ﴾ هم په دې دلالت کوی چې ددې هرې ذرې تسبيح تکوينی دا يو داسې څيز دې چې عام انسانان په دې نه پوهيږی په تسبيح حالی باندې خو د عقل او پوهې خاوندان پوهيږی.
دې څخه معلومه شوه چې دا تسبيح يوازې حالی نه حقيقی ده خو زمونږ د پوهې او ادراك څخه بهر ده [ذکره القرطبی]. [1]
د نبی کريم ﷺ په موتی مبارك کښې د ګټو تسبيح وئيل چې ټولو صحابه کرامو ﷺ پخپلو

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۰ص:۲۶۸ ]

غوږونو باندې آوریدلې وو د هغه معجزه کیدل خو ښکاره دی[1] لیکن شیخ جلال الدین سیوطی رحمه الله په خصائص کبری کښې لیکلی دی چې ددغې کټهو تسبیح لوستل د نبی کریم ﷺ معجزه ځکه نه ده چې هغه خو هسې هم هروخت تسبیح وائی بلکه د نبی کریم ﷺ معجزه داده چې د نبی کریم ﷺ په موټې مبارك کښې راتلو څخه پس د هغې تسبیح په غوږونو سره واوریدلې شوه.

امام قرطبی دا تحقیق غوره کړې دې او په دې باندې ئې د قرآن و حدیث ډیر دلیلونه پیش کړی دی. لکه په سورة صاد کښې د داؤد علیه السلام باره کښې ارشاد دې چې: ﴿إِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ مَعَهُ يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِشْرَاقِ﴾ [یعنی مونږ غرونه مسخر کړل چې داؤد علیه السلام سره سبا ماښام تسبیح کوی]. او په سورة بقره کښې دغرونو د کاڼړو په باره کښې ارشاد دې چې:

﴿وَإِنَّ مِنْهَا لَمَا يَهْبِطُ مِنْ خَشْيَةِ اللَّهِ﴾ [دالله ﷻ د ویرې څخه ځینې کاڼړی ښکته راږغړی]

چې د هغې نه ثابته شوه چې په کاڼړ کښې شعور ادراك او دالله ﷻ څخه ویریدل شان دې. دغه شان په سورة مریم کښې عیسی علیه السلام ته د الله ﷻ د ځوئې کیدو په رد کولو کښې الله ﷻ د نصاراؤ په باره کښې فرمائی چې:

﴿وَتَخِرُّ الْجِبَالُ هَدًّا ۝ أَنْ دَعَوْا لِلرَّحْمَٰنِ وَلَدًا﴾ [داخلق چې دالله ﷻ دپاره ځوئې تجویز کوی ددوئ ددې کلمې د کفر څخه په غرونو باندې ویره راځی اوهغه د ویرې راتلو په وجه راغوزیږی]

اوښکاره خبره ده چې دا ویره ددې دشعور اوادراك پته ورکوی کله چې داثابت شونوبیا تسبیح کول څه ګران کار پاتې نشو. دغه شان عبدالله بن مسعود رضی الله عنه اوفرمائیل چې یو غر بل غرته و ائی چې ائې فلانیه آیا په تاباندې داسې څوك بنده تیر شوې دې چې الله ﷻ لره یادونکې وی؟ که هغه اووائی چې آؤ نو دغه غر خوشحاله شی، په دې باندې دلیل نیولو د پاره عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دا آیت مبارك اولوستلو ﴿وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمَٰنُ وَلَدًا﴾ او بیا ئې اوفرمائیل چې کله دې آیت څخه د اثابته شوه چې غرونه د کفر په کلماتو په آوریدو اثر قبلوی او ویره باندې رازی نو آیا ستاسو دا خیال دې چې هغه به باطل کلمې آوری او حق خبرې او د الله ﷻ ذکر نه آوری او ددې څخه به اثر نه قبلوی؟ [قرطبی[2] په حواله د رقائق د ابن مبارك رحمه الله].

او نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې څوك پیرې، انسان، ونه، کاڼړې، لوټه داسې نشته چې د اذان کوونکی آواز به نه آوری او دقیامت په ورځ به د هغه د ایمان او دنیك کیدو ګواهی نه ورکوی. [موطا امام مالك، سنن ابی ماجه په روایت د ابی سعید خدری رضی الله عنه][3]

امام بخاری رحمه الله په روایت د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نقل کړی دی چې مونږ به د خوراك د څیز د تسبیح کولو آواز آوریدو کله چې به هغه خوړلې شو[4] او په یوبل روایت کښې راغلی دی چې مونږ به نبی کریم ﷺ سره خوراك کولو نو د خوراك د څیز د تسبیح آواز به مو آوریدو.[5]

---

[1] مسند البزار رقم الحديث:[٤٠٤٠] و مجمع الزوائد[١٤١٠٣]

[2] تفسير القرطبي [ ج:١٠ص:٢٦٨]

[3] موطا امام مالك، رقم الحديث [١٣٨]، كتاب النداء للصلاة باب ماجاء فى النداء للصلاة، وسنن ابن ما جة ابواب الأذان، باب فضل الأذان وثواب المؤذن (بألفاظ مختلفة) [ج:١ ص:٥٣]

[4] صحيح البخارى كتاب المناقب ،باب علامات النبوة فى الإسلام [ج:١ص:٥٠٥]

[5] دلائل النبوة للبيهقى رقم الحديث[١٤٦٤] باب شهود عبدالله بن مسعود إلخ.

او په صحیح مسلم کښې د جابر بن سمره رضي الله عنه څخه روایت دې چې نبی کریم ﷺ او فرمائیل زه په مکه مکرمه کښې هغه کاڼې پیژنم چې زما د پیغمبر کیدو څخه وړاندې به ئې ماته سلام کولو او زه اوس هم هغه پیژنم.(۱) څینې حضراتو وئیلی دی چې دې څخه مراد حجر اسود دې، والله اعلم.

امام قرطبی رحمه الله فرمائیلي دی چې د حدیث داسې روایتونه نور هم ډیر دی د اسطوانه حنانه قصه خو په عامو مسلمانانو کښې ډیره مشهوره ده، چې ددې د ژړیدو آواز پخپله صحابه کرامو رضي الله عنهم آوریدلو کله چې نبی کریم ﷺ ددې په ځائې په منبر باندې خطبه ورکول شروع کړل.

ددې روایتونو څخه روستو هیڅ څخه اشکال نه شي پیدا کیدې چې د زمکې او آسمانونو په هر څیز کښې شعور او ادراك شته او هر یو څیز په حقیقي ډول دالله ﷻ تسبیح کوی. او ابراهیم رحمه الله فرمائی چې دا تسبیح د روح او بې روحه په ټولو څیزونو کښې عام دې. تر دې چې د دروازو د ټمبو په آواز کښې هم تسبیح وی. امام قرطبی رحمه الله فرمائیلي دی چې که د تسبیح څخه مراد حالي تسبیح وې نو د پورته ذکر شوی آیت مبارك په حواله داؤد علیه السلام سره د غرونو د تسبیح لوستلو څه خصوصیت کیدې شو؟ ځکه چې دشعور خاوند هر انسان د هر څیز څخه تسبیح حالي معلوموليې شي. په دې بنا دغه تسبیح قولي وو. انتهی.(۲) او څنګه چې د خصائص کبری په حواله پورته نقل شوی دی چې د ګټو تسبیح وئیل درسول کریم ﷺ معجزه ځکه نه وه چې دا په هر ځائې او هر حال کښې تسبیح وائی البته معجزه ئې داوه چې د نبی کریم ﷺ په موټی مبارك کښې په راتلو د هغې تسبیح نورو هم پخپلو غوږونو واوریده. دغه شان د داؤد علیه السلام معجزه هم هغه وه چې د داؤد علیه السلام په وجه نورو هم د غرونو تسبیح وئیل پخپلو غوږونو سره واوریدله. [والله سبحانه وتعالی اعلم].

| | | |
|---|---|---|
| | قَرَأْتَ | وَإِذَا |
| | لولې تۀ | او هر کله چې |

او هر کله چې ته قرآن پاك

| لَا يُؤْمِنُونَ | الَّذِينَ | وَبَيْنَ | بَيْنَكَ | جَعَلْنَا | الْقُرْآنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې ایمان نۀ راوړی | دهغه کسانو کښې | او په منځ | په منځ ستا کښې | نو جوړوو مونږه | قرآن |

لولې نو مونږ ستا او دهغه خلقو ترمینځه چې په آخرت باندې ایمان

| أَكِنَّةً | عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ | وَجَعَلْنَا | مَسْتُورًا | حِجَابًا | بِالْآخِرَةِ |
|---|---|---|---|---|---|
| پرده | په زړونو دهغوئ باند | او جوړوو مونږه | پټه | پرده | په آخرت باند |

نه راوړی یوه پټه پرده راواچوؤ او مونږ دهغوئ په زړونو کښې داسې پردې واچوؤ

(۱) صحیح مسلم کتاب الفضائل، باب فضائل نسب النبي صلی الله علیه وسلم وتسلیم الحجر [ج:۲ص:۲۴۵]
(۲) تفسیر القرطبي [ج:۱۰ص:۲۶۶ نه ۲۶۸]

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَنْ | يَّفْقَهُوْهُ | وَفِيْۤ اٰذَانِهِمْ | وَقْرًا | وَاِذَا | ذَكَرْتَ |
| دې خبرې نه چې | پوهه شي په قرآن | او په غوږونو د هغوئ کښې | درون والي دې | او کله چې | یاد کړې ته |

چې هغوئ پرې پوهه نشي او د هغوئ په غوږونو کښې درونډوالئ پیدا کوؤ او هر کله چې ته

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رَبَّكَ | فِي الْقُرْاٰنِ | وَحْدَهٗ | وَلَّوْا | عَلٰۤى اَدْبَارِهِمْ | نُفُوْرًا ۝ | نَحْنُ |
| رب خپل | په قرآن کښې | یوازې هغه لره | نو گرځي دوئ | په شاگانو خپلو | په نفرت سره | مونږه |

په قرآن کښې یوازې دخپل رب ذکر کوې نو هغوئ ورته شاکړی او په نفرت سره تري نه روان شي مونږ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَعْلَمُ | بِمَا | يَسْتَمِعُوْنَ | بِهٖۤ | اِذْ | يَسْتَمِعُوْنَ اِلَيْكَ |
| ښه پوهیږو | په هغه غرض | چې اوری هغوئ | په سبب د هغې سره | کله چې | هغوئ غوږ ږدی \| تاته |

ته ښه معلومه ده چې دکوم غرض دپاره داخلق آوریدنه کوی څه وخت چې دوئ تاته غوږ ږونه نیسی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاِذْ | هُمْ | نَجْوٰۤى | اِذْ يَقُوْلُ | الظّٰلِمُوْنَ | اِنْ تَتَّبِعُوْنَ |
| او کله چې | هغوئ | پټې دغوږ خبری کوی | کله چې \| وائی | ظالمان | چې پیروی نه کوئ تاسو |

او څه چې دوئ خپل مینځ کښې پټې پټې صلاح گانې کوی کوم وخت چې دا ظالمان وائی چې تاسوهم

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اِلَّا | رَجُلًا | مَّسْحُوْرًا ۝ | اُنْظُرْ | كَيْفَ | ضَرَبُوْا | لَكَ |
| مگر | ددا سې سړی | چې جادو پرشوې دې | اوگوره | څه رنگې | بیانوی دا خلق | تالره |

په یو داسې سړی پسې روان یئ چې دجادو عمل پرې شوې دې گوره کنه چې داخلق تا دپاره څنگه

| | | | |
|---|---|---|---|
| الْاَمْثَالَ | فَضَلُّوْا | فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ | سَبِيْلًا ۝ |
| مثالونه | نو بې لارې شول دوئ | نو طاقت نه لری دوئ | دلارې نیغې دموندولو |

مثالونه بیانوی نو دوئ پخپله گمراه شوی دی او سمه لار موندلې نشي

## آسان ترجمه قرآن

او (اې پیغمبره!) چه کله ته قرآن لولې نو مونږ ستا او د هغه خلقو تر مینځه چه په آخرت باندې ایمان نه لری، په نظر نه راتلونکې پرده حائل کوو. او مونږ د هغوی په زړونو باندې داسې پردې خیژوو چه هغوی پرې پوهیږی نه او د هغوی په غوږونو کښې درونډوالې پیدا کوو. او کله چه ته په قرآن کریم کښې یواځې د خپل رب ذکر کوې نو دا خلق د نفرت په حالت کښې مخ اړولو سره روان شي. مونږ ته ښه معلومه ده چه کله دا خلق ستا خبرې ته د اوریدلو دپاره غوږ ږدی نو د څه دپاره ئې اوری، او کله چه دوی خپل مینځ کښې خبرې کوی (نو هغه خبرو هم مونږ ته پوره علم دې) چه کله دا ظالمان (دخپلې کورنۍ مسلمانانو ته) داسې وائی چه تاسو خو په یو داسې سړی پسې روان شوی یئ چه په هغه باندې جادو کړې شوې دې. اوگوره دوی ستا په حق کښې څنگه خبرې کوی. دا د لارې نه گمراه شوی دی، پس دوی نه شي په لار کیدې.

## خلاصه تفسير

په تیرو ایتونو کښې دا ذکر وو چه دتوحید مضمون په قرآن کریم کښې په مختلفو عنواناتو اومختلفو د لیلونو سره دبار بار ذکر کیدو باوجود دابد نصیبه مشرکان دانه منی په دې ایتونو کښې ددوی دنه منلو وجه ښودلې شوې ده چه دوی په دې ایتونو کښې غور او فکر نه کوی بلکه ددې نه نفرت کوی او مسخرې ورپورې کوی په دې وجه دوی دحقیقت دعلم نه ړاند ۀ کړې شوی دی ﴿وَاِذَا﴾ [اوهرکله چه ته ] دتبلیغ دپاره ﴿قَرَأْتَ الْقُرْاٰنَ﴾ [قرآن لولې ﴿جَعَلْنَا بَيْنَكَ وَبَيْنَ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ حِجَابًا مَّسْتُوْرًا﴾نومونږ ستا اوددې خلقوپه مینځ کښې یوه پرده حائله کړو کوم چه په اخرت باندې ایمان نه راوړی ] اودغه پرده داده چه ﴿وَّجَعَلْنَا عَلٰى قُلُوْبِهِمْ اَكِنَّةً﴾ [مونږ ددوی په زړونو باندې پردې واچوو ﴿اَنْ يَّفْقَهُوْهُ﴾ ددې دپاره چه دوی په دې ] دقران په مقصد [پوهه نه شی ﴿وَفِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرًا﴾ او ددوی په غوږونو کښې دروند والې راولو] ددې نه چه دوی ئې دهدایت دپاره واوری مطلب دادې چه دغه پرده ددوی دناپوهئ اوددې ده چه ددوی دپوهیدو اراده نه کوی چه په دې سره دوی ستادنبوت شان لره وپیژنی ﴿وَاِذَا ذَكَرْتَ رَبَّكَ فِي الْقُرْاٰنِ وَحْدَهٗ﴾ [اوهرکله چه ته په قرآن کښې صرف دخپل رب ] دصفتونو اوکمالونو [ذکر کوې ] اوداخلق دکومو معبودانو عبادت چه کوی په هغوی کښې دغه صفتونه نشته نو دغه خلق دخپلې ناپوهئ بلکه دکوږ فهمئ په سبب ددې نه﴿وَلَّوْا عَلٰٓى اَدْبَارِهِمْ نُفُوْرًا﴾ [نفرت کوونکی په شاواپس کیږی ] وارندې ددوی په دې باطل عمل باندې دعذاب وعده ده چه ﴿نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا يَسْتَمِعُوْنَ بِهٖٓ اِذْ يَسْتَمِعُوْنَ اِلَيْكَ﴾ [ څه وخت چه داخلق ستاطرف ته غوږونه اږدی نو مونږ ښه پیژنو چه په کوم غرض سره دوی ] قرآن لره [اوری ] چه دغه غرض محض اعتراض طعن اونکته چینی ده [اوڅه وخت چه داخلق ] قرآن اوریدونه پس﴿وَاِذْ هُمْ نَجْوٰٓى﴾ [دیوبل سره پټې مشورې کوی ]مونږ په دغه هم ښه پوهه یو﴿اِذْ يَقُوْلُ الظّٰلِمُوْنَ﴾ [هرکله چه داظالمان داسې وائی چه تاسو خلق ] یعنی ددوی دبرادرئ نه چه کوم خلق نبی کریم ﷺ سره شوی دی ﴿اِنْ تَتَّبِعُوْنَ اِلَّا رَجُلًا مَّسْحُوْرًا﴾ [محض دداسې سړی سره ملګری شوی یئ په کوم چه دجادو ] خاص [اثر] یعنی لیونتوب شوې دې [یعنی دې چه کومې داعجیبه خبرې کوی داټولې دمالیخولیادی لے محمد ﷺ لږشان ﴿اُنْظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوْا لَكَ الْاَمْثَالَ﴾ [ته اوګوره چه دا خلق ستا دپاره څنګه څنګه القاب تجویزکوی پس داخلق ] بلکل ﴿فَضَلُّوْا﴾ [ګمراه شول نو] اوس دحق ﴿فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ سَبِيْلًا﴾ [لارنه شی موندې ]څکه چه داسې نارامی اوضد اوبیادالله درسول الله ﷺ سره داسې معامله په دې سره دانسان دفهم اوهدایت استعداد سلب کیږی .

## معارف او مسائل

**پیغمبر باندې د جادو اثر کیدې شی :** ﴿اِنْ تَتَّبِعُوْنَ اِلَّا رَجُلًا مَّسْحُوْرًا﴾په چا پیغمبر باندې داسې د جادو اثر کیدې شی چې څنګه چې د رنځورتیا اثر پرې کیدې شی ولې چې پیغمبران ﷺ هم بشری او انسانی خصوصیتونه لری . لکه زخمی کیدې شی ، تبه پرې راتلې شی ، بدن ته

ئې خوږ درد رسیدلې شي ، دغه شان پرې د جادو اثر هم کیدې شي . حدیث پاك کښې راغلې دي چې یو ځل نبي اکرم ﷺ باندې د جادو اثر شوې وو ،(۱) په آخري آیت مبارك کښې چې نبي اکرم ﷺ ته کافرانو سحر زېلې اووئیلو او قرآن عظیم الشان ددې تردید اوکړو ، ددې حاصل هم هغه دې چې د تفسیر په خلاصه کښې ورته اشاره شوېده چې د غه ځائې د سحر زېلې نه د دوئ به مراد په حقیقت کښې لیوني ورته وئیل وو ، چې قرآن عظیم الشان ئې تردید اوکړو ، د سحر د حدیث دې سره مقابله او ټکر نشته .

دا آیات مذکورۀ نه اول او دویم آیت کښې چې کوم مضمون راغلې دې دهغه یو خاص شان نزول دې چې قرطبي د سعید بن جبیر ﷺ نه نقل کړې دې چې کله د قرآن عظیم الشان سورة تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ نازل شو چې هغې کښې د ابی لهب دښځې هم مذمت مذکور دې نو د ابی لهب ښځه د نبي اکرم ﷺ مجلس ته ورا غله ، چې کله ابوبکر صدیق ﷺ اولیدله نو نبي اکرم ﷺ ته یې عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ تاسو ددې مجلس نه یو طرفته شئ نو دا به ډیره ښه وي ، ولې چې دا ډیره بد زبانه ښځه ده . هسې نه چې تاسو ته څه بدرد اووائی . او ستاسو زړه مبارك پرې خفه نشي . نبي اکرم ﷺ اوفرمائیل چې نه زۀ هم دې ځائې کښې یم ، الله ﷻ به زما او ددې مینځ کښې داسې پرده حائل کړي چې دا به ما نشي لیدلې . کله چې هغه راؤرسیدله نو هم داشان اوشو چې هغې نبي اکرم ﷺ نشو لیدلې . صدیق اکبر ﷺ سره ئې خبره شروع کړه چې ستاسو ملګري زمونږ بد بیان کړي دي ، صدیق اکبر ﷺ ورته اووئیل چې قسم مې دې په الله وي چې هغه خو هډو شعرنه وائي ،نو هجوه ئې څنګه اوکړه ؟ هغې ابوبکر صدیق ﷺ ته اووئیل چې څه ته هم دهغه رښتینولې بیانوې . دغه ځائې نه روانه شوه . کله چې لاړه نو صدیق اکبر ﷺ عرض اوکړو چې آیا هغې تاسو نه لیدلې ؟ نبي اکرم ﷺ فرمائیل چې ترڅو پورې هغه دلته وه نو یوې فرښتې زما او دهغې ترمینځه پرده راوستې وه .(۲)

**د دښمنانو دنظر نه د پټ پاتې کیدو یو عمل** :: کعب ﷺ فرمائي چې کله به نبي اکرم ﷺ د مشرکانو د نظر نه پټ پاتې کیدل غوښتل نو د قرآن عظیم الشان درې آیتونه مبارك به ئې لوستل ، بیا به مشرکانو نشو لیدلې ، هغه درې آیتونه دا دي :

① ﴿إِنَّا جَعَلْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَن يَفْقَهُوهُ وَفِي آذَانِهِمْ وَقْرًا﴾ [ الكهف : ۵۷]

② ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ طَبَعَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ وَسَمْعِهِمْ وَأَبْصَارِهِمْ﴾ [ النحل : ۱۰۸]

③ ﴿أَفَرَأَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ إِلَٰهَهُ هَوَاهُ وَأَضَلَّهُ اللَّهُ عَلَىٰ عِلْمٍ وَخَتَمَ عَلَىٰ سَمْعِهِ وَقَلْبِهِ وَجَعَلَ عَلَىٰ بَصَرِهِ غِشَاوَةً﴾ [ الجاثية : ۲۳]

کعب ﷺ فرمائي چې د نبي اکرم ﷺ دا معامله مې د شام ملك یو کس ته بیان کړه ، څه ضرورت دپاره هغه د شام ملك ته تلل غوښتل ، هغه ځائې لاړو ، څه موده ئې تیره کړه ، رومي کافرانو چې ډیر تنګ کړو نو هغه راؤتښتیدو ، هغه کافران ورپسې راؤوتل ، دغه سړي ته هغه روایت رایاد شو او دغه درې آیتونه ئې اولوستل ، قدرت د دوئ په سترګو باندې داسې پرده واچوله چې هم په هغه لار دواړه روان وو ، خو دښمنانو نشو لیدلې .

(۱) تفصیل دپاره اوګورئ :- صحیح البخاري کتاب الطب ،باب السحر [ج:۲ص:۸۵۸] و صحیح مسلم کتاب السلام، باب السحر [ج:۲ص:۲۲۱]

(۲) المستدرك للحاكم رقم الحديث :[۳۳۳۳]و تفسیر القرطبي [ ج:۱۰ص:۲۶۹]

امام ثعلبي رحمه الله فرمائيلي دي چې د كعب رضي الله عنه نه كوم روايت نقل كړي شوي دي دا روايت ما د رې اوسيدونكي يو سړي ته اوخودلو ، ناګهانه د ديلم كافرانو هغه ګرفتار كړو خو څه موده د هغوئ په بند كښې پاتې شو ، يو ورځ ورته موقع ملاؤ شوه نو راؤ تښتيدو ، دغه خلق هم ورپسې راوؤتل خو دغه سړي هم دغه درې آيتونه مبارك اولوستل ، الله ﷻ دهغې په اثر كښې د هغوئ په ستركو باندې پرده واچوله هغوئ نشو ليدې ، حالانكه دومره جخت [نزدې] به ورسره په لاره تيريدل چې جامې به يې يوبل سره لګيدلې .

امام قرطبي فرمائيلي دي چې دې دريو آيتونو مباركو سره د سورة ياسين هغه آيتونه دې هم يو ځائې كړې شي كوم چې نبي اكرم ﷺ هغه وخت لوستلي وو چې كافرانو د هغوئ د كور نه ګير چاپيره ولاړ وو ، د وتلو لارې ورته بالكل بنده كړې وه . بيا هم نبي اكرم ﷺ بهر ته راؤتل او د هر څوكيدار په سر ئې خاؤره هم اچوله ، او هيچا هم اونه ليدلو ، او داشان هجرت كولو دپاره په حفاظت سره روان شوي وو ، د سورة ياسين هغه آيتونه مبارك دادي :

﴿يٰسٓ ۝ وَالْقُرْاٰنِ الْحَكِيْمِ ۝ اِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ۝ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۝ تَنْزِيْلَ الْعَزِيْزِ الرَّحِيْمِ ۝ لِتُنْذِرَ قَوْمًا مَّآ اُنْذِرَ اٰبَآؤُهُمْ فَهُمْ غٰفِلُوْنَ ۝ لَقَدْ حَقَّ الْقَوْلُ عَلٰٓى اَكْثَرِهِمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ۝ اِنَّا جَعَلْنَا فِيْٓ اَعْنَاقِهِمْ اَغْلٰلًا فَهِيَ اِلَى الْاَذْقَانِ فَهُمْ مُّقْمَحُوْنَ ۝ وَجَعَلْنَا مِنْۢ بَيْنِ اَيْدِيْهِمْ سَدًّا وَّمِنْ خَلْفِهِمْ سَدًّا فَاَغْشَيْنٰهُمْ فَهُمْ لَا يُبْصِرُوْنَ ۝﴾

امام قرطبي رحمه الله فرمائيلي دي چې پخپل ملك اندلس كښې هم ماته قرطبه سره نزدې په قلعه منثور كښې داسې يوه واقعه راپيښه شوه ، دښمن نه اوتښتيدم په يو ګوټ كښې كيناستم ، د ښمن په آسونو سوارۀ دوه كسان ماپسې راؤليږل زه بالكل په ډاګه ميدان كښې اوم . دپنا كيدو هيڅ څيز دغه ځائې كښې نه وو . ما دسورة ياسين دا درې واړه آيتونه مبارك لوستل ، دغه دواړه سوارۀ زما په خوا كښې تير شو خو زه ئې اونه ليدم ، خپل ځائې ته په واپسئ دغې دوؤ كسانو وئيل چې دا سړې شيطان دې ، ولې چې الله ﷻ ددې آيتونو په خاطر هغوئ زمانه ړانده كړي وو . [قرطبي ] [1]

| وَقَالُوْٓا ءَاِذَا | كُنَّا | عِظَامًا | وَّرُفَاتًا | ءَاِنَّا | لَمَبْعُوْثُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اووائي دوئ آيا چې كله | شومونږه | هډوكي | اوخاوره ميده شوي | آيامونږبه | خامخا راپاسولې شو |
| اودوئ وائي چې آياهر كله مونږ هډوكي اوبيا چوره شو نودنوي سرې به بيا راپيد اكيږو | | | | | |

| خَلْقًا | جَدِيْدًا ۝ | قُلْ | كُوْنُوْا | حِجَارَةً | اَوْ حَدِيْدًا ۝ | اَوْ خَلْقًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په پيدا كولو | نوي سره | ورته اووايه | چې شئ تاسو | كاڼړي | يااوسپنه | ياپل قسم مخلوق |
| اوبيا به راتولېږو ورته اووايه چې تاسوكاڼړي شئ يا اوسپينه شئ ياڅه بل څيز ستاسو | | | | | | |

| مِّمَّا | يَكْبُرُ | فِيْ صُدُوْرِكُمْ | فَسَيَقُوْلُوْنَ | مَنْ |
|---|---|---|---|---|
| دهغې نه | چې لوئ اوسخت ښكاري | په سينو ستاسو كښې | نووائي به هغوئ | څوك به |
| په خيال كښې دهغې ژوندي كيدل ډير ګران وي نودوئ به ضرور اووائي چې بيا به نو مونږ به څوك | | | | |

[1] تفسير القرطبي [ ج:۱۰ص:۲۶۹، ۲۷۰]

| يُعِيدُنَا ط | قُلِ | الَّذِيْ فَطَرَكُمْ | اَوَّلَ مَرَّةٍ |
|---|---|---|---|
| ژوندي کړي واپس مونږه | ورته اووايه | هغه ذات چي پيدانې کړي تاسو | اول خل |
| بيا راژوندي کوی ورته اووايه چې چا تاسو په رومبی خل پيدا کړی وې | | | |

| فَسَيُنْغِضُوْنَ | اِلَيْكَ | رُءُوْسَهُمْ | وَيَقُوْلُوْنَ | مَتٰى | هُوَ ط | قُلْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نوبه خوزوی هغوئ | تاته | سرونه خپل | اووانی به | چی کله به وی | داکار | ورته اووایه |
| نو په تعجب سره ستاسو په مخکښې به سرونه اوخوزوی اوتپوس به اوکړی چې داسې به کله وی ورته اووايه | | | | | | |

| عَسٰى | اَنْ يَّكُوْنَ | قَرِيْبًا ۝ | يَوْمَ | يَدْعُوْكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| کيدې شی | چی وی | نزدې | په هغه ورځ | چی رااوبلی تاسو [الله] |
| چې کيديشی چې هغه وخت نزدې راغلې وی دابه په هغه ورځ وی چې الله ﷻ به تاسو راوغواړی | | | | |

| فَتَسْتَجِيْبُوْنَ | بِحَمْدِهٖ | وَتَظُنُّوْنَ | اِنْ لَّبِثْتُمْ | اِلَّا قَلِيْلًا ۝ |
|---|---|---|---|---|
| نوقبول به کړئ تاسو | دحمد دهغه سره | اوګمان به کوئ تاسو | چی نه دې تیر کړې وخت تاسو | مګر لږ |
| نوتاسو به دهغه تعريفونه کوئ اودهغه حکم به منئ اوداخيال به کوئ چې تاسو خو ډير لږ ساعت په دنيا کښې پاتې شوی وې | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او دوی وائی چه : آیا کله چه زمونږ بدن په هډوکو کښې بدلیدو سره ذره ذره شی نو آیا هغه وخت به مونږ په نوې خلقت سره بیا را پاسولې شو؟ اووایه چه که تاسو کاڼړی یا اوسپنه هم جوړ شئ. یا څه داسې مخلوق جوړ شئ چه دهغې په باره کښې تاسو په زړه کښې سوچ کوئ چه (دهغې ژوندی کیدل) نور هم ګران دی (بیا به هم تاسو ژوندی کولې شئ) اوس به دوئ وائی چه : څوک به مونږ دوباره ژوندی کوی؟ اووایه چه: هم هغه به مو ژوندی کوی چا چه تاسو په اول کرت پیدا کړی وئ. بیا به دوئ ستا مخکښې سر خوزولو سره وائی چه : داسې به کله کیږی؟ اووایه چه : څه لرې ده کیدې شی چه هغه وخت نزدې راغلې وی. په کومه ورځ چه هغه تاسو راوبلی نو تاسو به د هغه حمد کولو سره د هغه د حکم تعمیل کوئ. او داسې به ګنړئ چه تاسو خو (په دنیا کښې) لږ ساعت اوسیدلی وئ.

## خلاصه تفسير

﴿وَقَالُوْٓا ءَاِذَا كُنَّا﴾ [داخلق وائی چه هر کله مونږ ] مړه ﴿عِظَامًا﴾ [هډوکی] اوهډوکی هم ﴿وَّرُفَاتًا﴾ [خس خس ]یعنی ریزه ریزه [شو ﴿ءَاِنَّا﴾نو ایا]ددې نه پس په قیامت کښې [به مونږ ﴿لَمَبْعُوْثُوْنَ خَلْقًا جَدِيْدًا ۝﴾دنوی سرنه پیدا اوژوندی کړې شو ؟ ] یعنی اول خو دمرګ نه پس ژوندی کیدل مشکل دی چه په جسم کښې دژوند صلاحیت پاتې نه وی بیا چه دغه جسم هم خس خس ذره] شی او اجزائې خواره واره شی نو د ده ژوندی کیدل څوك منلې شی [ته] ددوی په جواب کښې [وفرمایه چه] تاسو دهډوکو ژوندی کیدلو لره بعید ګنړئ تاسو ددوئ په جواب کښې اووایئ ﴿قُلْ كُوْنُوْا حِجَارَةً اَوْ حَدِيْدًا ۝﴾ اومونږ وایو چه [تاسو ګټې یا اوسپنه ﴿اَوْ خَلْقًا مِّمَّا يَكْبُرُ فِيْ صُدُوْرِكُمْ ۚ﴾ یا څه بل مخلوق شئ داسې چه ستاسو په ذهن کښې ] دژوند دصلاحیت نه [ډیر لرې وی ] بیا وګورئ چه ژوندی کیږئ اوکه نه اوګټه اواوسپنه خو دحیات یعنی ژوندنه لرې مقررول

ځکه ښکاره دی چه په دوی کښې هیڅ وخت هم حیوانی ژوندنه راخی په خلاف دهډوکونه چه په دوی کښې خواول تردغې وخته پورې ژوندپاتې شوې دې نو هرکله چه ګټه او اوسپنه الله تعالى ته ژوندی کول مشکل نه دی نو انسانی اندامونوله دوباره ژوندورکول به څه مشکل وی اوپه دې ایت کښې لفظ دکونو کوم چه صیغه دامر ده ددې نه مراد دلته امر نه نه دې بلکه یو تعلق اوشرط دې چه که تاسو بالفرض ګټې او اوسپنه هم شئ خوالله تعالى بیاهم دوباره ستاسو په ژوندی کولو باندې قادر دې په دې باندې ﴿فَسَيَقُولُونَ مَنْ يُعِيدُنَا﴾ [دوی به بیاهم تپوس وکړی چه هغه څوك دې كوم چه دوباره به مونږ ژوندی کړی ته ﴿قُلِ الَّذِي فَطَرَكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ﴾ اووایه چه هغه ذات دې چاچه تاسو اول وار پیدا کړی وئ] اصل خبره داده چه دیوشی په وجود کښې دراوستو دپاره دوه څیزونه پکاروی یو ماده اوپه محل کښې دوجودقابلیت دویم دا لره په وجودکښې دراوستو دپاره قوت فاعله اولنې سوال دمحل دقابلیت متعلق وو چه دغه دمرګ نه پس دژوند قابل پاتې نه شو ددې جواب ئې وکړو اودمحل قابلیت ئې ثابت کړو نو دادویم سوال دفاعلیت متعلق وشو چه داسې کوم قوت اوقدرت والا دې چه په خپل قوت فاغلیت سره داعجیبه کاروکړې شی ددې په جواب کښې ئې وفرمائیل چه چا اول تاسو دداسې مادې نه پیدا کړی وئ په کومه کښې چه دحیات قابلیت دهیچا په ګمان کښې هم نه وو نو ددې دوباره پیداکول څه مشکل دی اوهر کله چه دقابل فاعل ددواړو سوال حل شو نو اوس داخلق ددې د واقع کیدو دوخت دتحقیق دپاره ﴿فَسَيُنْغِضُونَ إِلَيْكَ رُءُوسَهُمْ﴾ [تاته به سرونه وخوزوی ﴿وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هُوَ﴾ وبه وائی ] چه ښه ده دا وواپه چه [دا] ژوندې کیدل [به کله وی ﴿قُلْ عَسَىٰ أَن يَكُونَ قَرِيبًا﴾ ته وواپه چه عجیبه نه ده چه دنزدې راغلې وی ] وړاندې دهغو حالاتوبیان دې کوم چه ددغې ژوندنه راپیښیږی ﴿يَوْمَ﴾ [دابه په هغه ورځ وی چه الله تعالى تاسولره ] دژوندی کولو اوپه میدان دحشرکښې راجمع کولو دپاره دفرښتې په ذریعه ﴿يَدْعُوكُمْ﴾ [ راوبلی ﴿فَتَسْتَجِيبُونَ بِحَمْدِهِ﴾ اوتاسو] ناچار [دهغه حمد کوونکی دحکم تعمیل کوئ ] یعنی ژوندی به هم شئ اوپه میدان دحشر کښې به جمع هم شئ [او] ددغه ورځې ویره اوهیبت چه ووینئ نو ستاسو به داحال شی چه ددنیا دټول عمر اوپه قبرکښې دپاتې کیدو دټولې مودې په نسبت ﴿وَتَظُنُّونَ إِن لَّبِثْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا﴾ [تاسو به داخیال کوئ چه تاسودیر کم ] وخت په دنیا کښې [پاتې شوی وئ ] ځکه چه په دنیا اوپه قبر کښې دنن دهیبت په مقابله کښې بیاهم څه نه څه راحت وو اود راحت زمانه انسان ته دمصیبت پریوتو په وخت کښې ډیره لنډه معلومیږی .

### معارف او مسائل

﴿يَوْمَ يَدْعُوكُمْ فَتَسْتَجِيبُونَ بِحَمْدِهِ﴾ ، ﴿يَدْعُوكُمْ﴾ لفظ د دعا نه مشتق دې ، چې معنی ئې په آواز سره رابلل دی ،، دجملې معنی به داشی چې په کومه ورځ الله ﷻ تاسو ټول به محشر ته رابلی چې د اسرافیل عليه‌السلام فرښتې په ذریعه به داسې وی کله چې هغه دویمه شپیلئ پوك وهی نو ټول مړی به په میدان محشر کښې راجمع شی . اودا هم کیدې شی چې د ژوندی کیدو نه پس ، ټولو ته په میدان کښې د راجمع کیدو دپاره آواز اوکړې شی [قرطبی].[1]

یو حدیث پاك کښې راغلی دی چې نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چې د قیامت په ورځ به تاسو

[1] تفسير القرطبي [ ج:۱۰ص:۲۷۵]

پخپل اودخپل پلار په نوم رابللې شي څکه نومونه ښه اږدي ، [ ديهودو نومونو ايخودو نه ډډه کوئی] [قرطبی] (١)

**محشر کښې به کافران هم د الله تعالی ثناء صفت کوونکي راپورته کيږي** : ﴿فَتَسْتَجِيبُونَ بِحَمْدِهِ﴾ د استجابت معنى داده چې د چا په بللو باندې ئې حکم اومنی او ورته حاضر شی ، د ټولې جملې معنى به داشي چې کله په ميدان محشر کښې تاسو راؤبللې شئ نو ټول به په دغې آواز عمل کوئ چې راجمع بۀ شئ ، ﴿بِحَمْدِهِ﴾ د ﴿تَسْتَجِيبُونَ﴾ د فاعل د ضمير نه حال دې په معنى د حامدين مطلب ئې دا راؤتو چې دغې ميدان ته د رابللو په وخت تاسو ټول په ټوله به د الله ﷻ ثنا صفت کوونکی حاضريږئی.

دې آيت مبارك د ظاهر نه دا معلوميږي چې دغه وخت بۀ د کافرانو او مؤمنانو ټولو دغه حال وی چې د الله ﷻ ثناء صفت کوونکی به راپورته کيږی. ولې چې په دې آيت مبارك کښې اصل خطاب کافرانو ته دې هم دهغوئ په باره کښې د اببيان روان دې . د تفسير يو امام سعيد بن جبير ﷬ اوفرمائيل چې کفار به هم دخپلو قبرونو نه د راپورته کيدو په وخت ﴿سبحانك وبحمدك﴾ لولی خو د غه وخت به ئې فائده نه وی . [قرطبی] (٢) څکه چې دا به بې اختياره وائی او ثواب او بدله په اختياری ددنيا په عمل مرتب کيږی . او څينې مفسرينو داحال خاص د مؤمنانو څکه خودلې دې چې د کافرانو په باره کښې قرآن عظيم الشان فرمائی چې کله به دوئ ژوندی کړې شی نو وائی بۀ : ﴿يَاوَيْلَنَا مَنْ بَعَثَنَا مِنْ مَرْقَدِنَا﴾ [ائې افسوس ! چا د خپلو قبرونونه مونږه راپاسولو] او په بل آيت مبارك کښې فرمائی چې ﴿يَاحَسْرَتَىٰ عَلَىٰ مَا فَرَّطْتُ فِي جَنْبِ اللَّهِ﴾ [ائې افسوس ! په دې چې ما د الله ﷻ په معامله کښې ډيره کوتاهی کړې ده] ليکن حقيقت دادې چې په دې دوارو اقوالو کښې هيڅ بې سمونی او تضاد څکه نشته چې دقبرونو نه دراپورته کيدو په وخت به ټول ثناء صفت د الله ﷻ بيانوی . کله چې کافران به دمؤمنانو نه بيل کړې شی لکه چې په سورة ياسين کښې فرمائی چې : ﴿وَامْتَازُوا الْيَوْمَ أَيُّهَا الْمُجْرِمُونَ﴾ [ائې مجرمانو تاسو نن ټول بيل بيل راجمع شئ ] دغه وخت به د افسوس کلمې د دوئ دخلې نه راؤځی . څکه چې دا خبره د قرآن عظيم الشان او سنت بې شميره ښکاره فرمانونو نه معلومه شوې ده . او ثابته شوېده ، چې د محشر د اودريدو ځايونه به مختلف وی ، په هر ځائې کښې به دخلقو حالات مختلف وی ، امام قرطبی فرمائيلی دی چې په محشر کښې به د راپورته کيدو شروع د حمد نه کيږی ، ټول بۀ حمد ويونکی راپورته کيږی ، او دټولو معاملاتو ختميدل به هم حمد سره وی ، لکه قرآن عظيم الشان فرمائی چې : ﴿وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ وَقِيلَ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ [ د ټول اهل محشر فيصله دحق په مطابق کړې شوېده او دا اووئيلې شو چې حمد

---

(١) تفسير القرطبي [ ج:۱۰ص:۲۷۵] و سنن ابی داود، کتاب الأدب ، باب تفسير الأسماء [ج:۲ص:٦٧٦]

(٢) تفسير القرطبي [ ج:۱۰ص:۲۷٦]

او شکر د الله ﷻ دې چې پالونکې د مخلوقاتو دې.[1]

وَقُلْ لِّعِبَادِيْ يَقُوْلُوا الَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ ؕ اِنَّ الشَّيْطٰنَ

او او وايه | بندګانو زما ته | چې واني هغوئ | هغه خبره | چې هغه | ډيره ښه وي | بيشکه چې شيطان

اوزما بندګانو ته او وايه چې هغه خبره کوئ چې ډيره زياته ښه وي بيشکه شيطان

يَنْزَغُ بَيْنَهُمْ ؕ اِنَّ الشَّيْطٰنَ كَانَ لِلْاِنْسَانِ عَدُوًّا

فساد اچوی | په منځ دهغوئ کښی | بیشکه چی شیطان | دې | دپاره دانسان | دشمن |

ددوئ ترمينځه فساد اچوی بيشکه شيطان دانسان ښکاره دښمن

مُّبِيْنًا ۝ رَبُّكُمْ اَعْلَمُ بِكُمْ ؕ اِنْ يَّشَاْ يَرْحَمْكُمْ

ښکاره | رب ستاسو | ښه خبردې | په حال ستاسو | که اوغواړي هغه | نو رحم به اوکړي په تاسو

دې ستاسو رب ته ستاسو حال ښه معلوم دې که چرې هغه اوغواړي نو په تاسو به رحم اوکړي

اَوْ اِنْ يَّشَاْ يُعَذِّبْكُمْ ؕ وَمَآ اَرْسَلْنٰكَ عَلَيْهِمْ

ياکه اوغواړي هغه | نوعذاب به درکړي تاسو له | اونه ئې ليږلې مونږه ته | په دې خلقو باند |

ياکه هغه اوغواړي نو تاسو له به عذاب درکړي او مونږ ته ددوئ دپاسه څه ذمه دار

وَكِيْلًا ۝ وَرَبُّكَ اَعْلَمُ بِمَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ

ذمه وار | او رب ستا | ښه خبر دې | په هغه مخلوق | چې په آسمانونو کښې دی | او په زمکه کښې دی

راليږلې نه يې او ستا رب ته ښهٔ معلومه دی چې څه په آسمانونو او زمکه کښې دی

وَلَقَدْ فَضَّلْنَا بَعْضَ النَّبِيّٖنَ عَلٰى بَعْضٍ وَّاٰتَيْنَا دَاوٗدَ

او فضيلت ورکړې وؤ مونږه | ځينو پيغمبرانو لره | په ځينو باند | او ورکړې وؤ مونږه | داود ته |

او مونږ ځينې نبيانو له په ځينو باندې فضيلت ورکړې دې او مونږ داود ﷺ ته

زَبُوْرًا ۝

زبور |

زبور ورکړې وو

## آسان ترجمه قرآن

زما (مومنانو) بندګانو ته اووايه چه هم هغه خبره کوی چه بهترينه وی. په حقيقت کښ شيطان د خلقو مينځ کښ فساد اچوی. شيطان د انسان يقينی او ښکاره دشمن دې ستاسو رب په تاسو ښه عالم دې، که هغه اوغواړی نو په تاسو باندې به رحم اوکړی.اوکه اوغواړی نو تاسوته به عذاب درکړی او (اې

1) تفسير القرطبي [ ج:۱۰ ص:۲۷۶]

پیغمبرهٔ) مونږ ته د دوی د خبرو ذمه دار نه ئې لیږلې. او ستا رب ښه عالم دې په هغه څیزونوچه په اسمانونو کښې دی اوکوم چه په زمکه کښې دی.او مونږځه نبیانو ته په نورو بانډې فضیلت ورکړې دې،او مونږ داؤد علیه السلام ته زبور ورکړې وو.

## خلاصه تفسير

﴿وَقُلْ لِعِبَادِيْ﴾ [اوته زما] مسلمانانو[بندګانوته ووایه چه ] که کفاروته جواب ورکوئ نو﴿يَقُوْلُوا الَّتِيْ﴾ [ داسې خبره کوئ کومه چه ] داخلاقوپه اعتبارسره﴿هِيَ اَحْسَنُ﴾ [غوره وی ] یعنی کنځل سپکې سپورې او پوچې ردې سختې اوغصه کول نه وی ځکه چه﴿اِنَّ الشَّيْطٰنَ﴾ [شیطان ] په سختوخبروکولو سره ﴿يَنْزَغُ بَيْنَهُمْ﴾ [په خلقو کښې فساد غورزوی ﴿اِنَّ الشَّيْطٰنَ كَانَ لِلْاِنْسَانِ عَدُوًّا مُّبِيْنًا﴾ واقعی شیطان دانسان ښکاره دښمن دې ] اووجه ددې تعلیم داده چه په سختئ سره څه فائده نه شی کیدې اوهدایت اوګمراهی دازلی مشیت تابع دی ﴿رَبُّكُمْ اَعْلَمُ بِكُمْ﴾ [ستاسو دټولو حال ستاسو پروردګارته ښه معلوم دې ] چه څوك دڅه قابل دې بس ﴿اِنْ يَّشَاْ﴾ [که هغه غواړی ﴿يَرْحَمْكُمْ اَوْ اِنْ يَّشَاْ يُعَذِّبْكُمْ﴾ نوپه تاسو] کښې په چا [رحمت اوفرمائی یعنی هدایت ورته اوکړی او یا که چاته اوغواړی عذاب به ورکړی [یعنی دهٔ ته به توفیق ییٔ] اوهرکله چه سره دنبوت نه ته ذمه وار نه یئې جوړشوې نودنور څه مجال دې په دې وجه چاپسې کیدل اوسختی کول بې فائدې دی﴿وَرَبُّكَ اَعْلَمُ بِمَنْ﴾ [اوستارب پیژنی هغه لره ] هم ﴿فِي السَّمٰوٰتِ﴾ [کوم چه په اسمانونو کښې دی ﴿وَالْاَرْضِ﴾ او] هغولره هم کوم چه [په مزکه کښې دی] داسمان والؤ نه مراد فرښتې اودمزکې والؤ نه مرادانسانان اوپیریان دی مطلب دادې چه مونږ ښه پوهه یو چه په دوی کښې کومولره نبی اورسول جوړول مناسب دی اوکومو لره نه په دې وجه که مونږ تالره نبی جوړکړو نو په دې کښې دتعجب څه خبره ده [اودغه شان که مونږ تالره په ] نورو بانډې فضیلت درکړې دې نو تعجب څه دې ځکه چه ﴿وَلَقَدْ فَضَّلْنَا﴾ [مونږ وړاندې هم ﴿بَعْضَ النَّبِيّٖنَ عَلٰى بَعْضٍ﴾ [ځنې نبیانو لره په ځنوفضیلت وکړې دې] اودغه شان که مونږ تاته قران درکړو نودتعجب څه خبره ده ځکه چه تانه وړاندې ﴿وَاٰتَيْنَا دَاوٗدَ زَبُوْرًا﴾ [ مونږ داؤد] ﷺ [اله زبور ورکړې دې] .

## معارف او مسائل

**بد زبانی او سخت کلامی د کفارو سره هم نه ده ښکار** :: رومبی آیت مبارك کښې کافرانوسره د بې ضرورته سخت کلامئ نه منع راغلې ده که ضرورت راشی نودهغوئ دوژلوهم اجازت شته دې.

که بیحکم شرع آب خوردن خطا است وگرخون بفتوی بریزی روا است

[بې دشرع د حکم څخه اوبه څکل ګناه وی لکه روژه کښې ،، اوکه وینه دشرعی فتوې ترمخه جائز شی دهغې تویئول روا دی ]

دقتلولو اوجنګ کولو په ذریعه د کفر رعب داب او اسلام مخالفت بندولې شی ، ځکه ددې اجازت شته دې ، په کنځلو بدو ردو او سخت کلامئ سره نه څه قلعه فتح کېدیشی او نه پرې چاته هدایت کولې شی . ځکه ددې بندیز راغلې دې.

امام قرطبي رحمه الله فرمائيلي دي چې دا آيت مبارك د عمر فاروق رضي الله عنه د يو واقعې باره کښې نازل شوېدې. واقعه داسې وه چې يو سړي فاروق اعظم رضي الله عنه ته کنځل اوکړل د هغه په جواب کښې ورته عمر فاروق رضي الله عنه هم سخت جواب ورکړو، اودهغه د وژلو اراده ئې اوکړه، دهغې په نتيجه کښې خطره راپيدا شوه چې د دوؤ قبيلو ترمينځه جنگ شروع شي، په دغې موقعه دا آيت مبارك نازل شو.

اود امام قرطبي رحمه الله تحقيق دادې چې په دې آيت مبارك کښې مسلمانانو ته خپل مينځ کښې د خطاب کولو باره کښې هدايت دې چې خپل مينځ کښې د خطاب کولو په وخت سخت کلامي مه کوئي، ولې چې ددې په ذريعه شيطان د دوئ ترمينځه جنگ او فساد پيدا کوي.(١)

﴿وَاٰتَيْنَا دَاوٗدَ زَبُوْرًا﴾ دلته په خاص ډول د زبور ذکر شايد ځکه کړې شوېدې چې زبور کښې د نبي اکرم ﷺ باره کښې داخبر ورکړې شوې وؤ چې نبي اکرم ﷺ به د پيغمبر کيدو سره د بادشاهئ اوسلطنت خاوند هم وي لکه قرآن عظيم الشان فرمائي: ﴿وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُوْرِ مِنْۢ بَعْدِ الذِّكْرِ اَنَّ الْاَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ الصّٰلِحُوْنَ﴾(٢) او په موجوده زبور کښې هم ځينې حضراتو ددې بيانيدل ثابت کړې دي. [تفسير حقاني]

امام بغوي رحمه الله پخپل تفسير کښې دلته ليکلي دي چې زبور د الله ﷻ کتاب دې چې په داؤد عليه السلام باندې نازل شويدې په دې کښې اوه نيمې شلې [١٥٠] سورتونه دي چې ټولو کښې ددعا حمد او ثناء نه سوا د حلالو حرامو فرضو او حدودو بيان نشته دې.(٣)

| قُلِ | ادْعُوا | الَّذِيْنَ | زَعَمْتُمْ | مِّنْ دُوْنِهٖ |
|---|---|---|---|---|
| اووايه | چې را اوبلئ | هغه معبودان | چې گمان پر کوئ تاسو | بغير د الله نه |
| اووايه چې تاسو د الله ﷻ نه سوا نور څومره معبودان جوړ کړي دي | | | | |

| فَلَا يَمْلِكُوْنَ | كَشْفَ الضُّرِّ | عَنْكُمْ | وَلَا تَحْوِيْلًا |
|---|---|---|---|
| نو نه لري اختيار هغوئ | دلرې کولو دنقصان | ستاسو نه | اونه دگرځولو |
| هغوئ خولې راوبلئ هغوئ نه خو ستاسو څه تکليف لرې کولې شي اونه يو مصيبت بدلولې شي | | | |

| اُولٰٓئِكَ | الَّذِيْنَ | يَدْعُوْنَ | يَبْتَغُوْنَ | اِلٰى رَبِّهِمُ | الْوَسِيْلَةَ |
|---|---|---|---|---|---|
| دا معبودان | هغه کسان دي | چې رابلئ ئې دوئ | هغوئ پخپله لټوي | رب خپل ته | وسيله دنزديکت |
| دوئ چې څوک په خدائې باندې بلې هغوئ پخپله دخان پحقله دخپل رب نزديکت لټوي | | | | | |

| اَيُّهُمْ | اَقْرَبُ | وَيَرْجُوْنَ | رَحْمَتَهٗ | وَيَخَافُوْنَ | عَذَابَهٗ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې کوم يو به دهغوئ نه | زيات نزدې شي | او اميد لري | درحمت دهغه | اوويريږي | دعذاب دهغه نه |
| چې [اوگورو] چې څوک الله ﷻ ته ډير نزدې کيږي او دهغه درحمت اميدوار دي او دهغه دعذاب نه ويريږي | | | | | |

(١) تفسير القرطبي [ج:١٠ص:٢٧٦، ٢٧٧]
(٢) ترجمه: او مونږ دلوح محفوظ نه پس په کتابونوکښې ليکلي دي چې ددې زمکې مالکان به زما بندگان وي.
(٣) تفسير البغوي [ج: ٥ص:١٠٠]

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّ | عَذَابَ | رَبِّكَ | كَانَ | مَحْذُوْرًا﴿۵۷﴾ | وَاِنْ مِّنْ قَرْيَةٍ | اِلَّا | نَحْنُ | |
| بيشكه | عذاب | درب ستا | دي | لائق ديريدلو | اونشته هيڅ يوكلي | مگر | مونږه | |
| بيشكه ستا درب عذاب نه ويره پكار ده او [دكافرانو] داسې يوكلې نشته چې كوم مونږ | | | | | | | | |
| مُهْلِكُوْهَا | قَبْلَ | يَوْمِ الْقِيٰمَةِ | اَوْ مُعَذِّبُوْهَا | عَذَابًا | | | | |
| هلاكونكي يو هغې لره | مخكښې | دورځې دقيامت نه | ياعذابونكي يو هغې لره | په عذاب | | | | |
| دقيامت نه وړاندې وړاندې هلاک نه كړو يا دهغې كلې اوسيدونكو خلقو ته سخت عذاب | | | | | | | | |
| شَدِيْدًا | كَانَ | ذٰلِكَ | فِي الْكِتٰبِ | مَسْطُوْرًا﴿۵۸﴾ | | | | |
| سخت سره | دي | د احكم | په كتاب كښې | ليكلې شوې | | | | |
| ورنكړو دا دالله ﷻ په كتاب كښې ليكلې پراته دي | | | | | | | | |

### آسان ترجمه قرآن

(كوم خلق چه د الله پاک نه سوا نور معبودان مني هغوی ته) اووايه چه : څوک چه تاسو د الله پاک نه سوا معبودان جوړ كړي دی هغوی راوبلئ، هم داسې به كيږی چه نه به هغوی تاسو نه څه تكليف لرې كړې شی او نه به هغه تبديل كړې شی. كوم څيزونه چه دا خلق رابلی، هغوی خو خپله الله پاک ته د رسيدلو وسيله ګوری چه په هغوی كښې څوک الله پاک ته زيات نزدې شی، او د هغه د رحمت اميدوار وی، او دهغه د عذاب نه ويريږی. يقيناً ستا د رب عذاب دې داسې څيز چه د هغې نه ويره پكار ده. او هيڅ يو كلې داسې نشته چه مونږ ئې د قيامت نه مخكښې هلاک نه كړو، يا هغوی ته سخت عذاب ورنكړو. دا خبره (د تقدير په) كتاب كښې ليكلې شوې ده.

### خلاصه تفسير

﴿قُلِ ادْعُوا الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ﴾ [ته] دې خلقوته [ووايه چه كوم لره تاسو دخدائ نه سوا] معبودان [مقرروئ] لكه فرښتې اوپيريان [الرږدوی لره] دخپل تكليف لرې كولودپاره [راوبلئ] نو ﴿فَلَا يَمْلِكُوْنَ كَشْفَ الضُّرِّ عَنْكُمْ وَلَا تَحْوِيْلًا﴾ پس دغه نه تاسونه دتكليف لرې كولو اختيار لری او نه ئ دبدلولو] مثلا كه تكليف بالكل لرې نه كړی نو چه لږ سپک خوئ كړی ﴿اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ﴾ [دا خلق كومولره چه مشركان] د خپلې حاجت روايئ يامشكل كشايئ دپاره [رابلی ﴿يَدْعُوْنَ يَبْتَغُوْنَ اِلٰى رَبِّهِمُ الْوَسِيْلَةَ﴾ هغوی پخپله خپل رب طرف ته] درسيدو [ذريعه لټوی ﴿اَيُّهُمْ اَقْرَبُ﴾ چه په دوی كښې كوم زيات مقرب جوړيږی يعنی دوی په خپله په طاعت اوعبادت كښې مشغوله دی چه دالله تعالى قرب ورته حاصل شی اوغواړی چه دنزديكت درجه ئ نوره زياته شی ﴿وَيَرْجُوْنَ رَحْمَتَهٗ﴾ [اوهغوی دهغه درحمت اميدوار دی ﴿وَيَخَافُوْنَ عَذَابَهٗ﴾ اودهغه دعذاب نه] دنافرمانئ په صورت كښې [اويريږی ﴿اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ كَانَ مَحْذُوْرًا﴾ واقعی ستادرب عذاب دې دويريې شي ] مطلب دادې چه كله دوی په خپله عبادت كوی نو معبودان څنګه كيدی شی اوكله چه دوی په خپله په خپلو ضرورتونو كښې اوتكليف لرې كولو كښې دالله تعالى محتاج دی نو دوی دنورو حاجت روائی اومشكل كشائی څنګه كولې شی ﴿وَاِنْ مِّنْ قَرْيَةٍ اِلَّا نَحْنُ مُهْلِكُوْهَا قَبْلَ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ﴾ [او] دكفارو

[داسې يو کلې نشته کوم لره چه مونږ دقيامت نه وړاندې هلاك نه کړو] ﴿أَوْ مُعَذِّبُوهَا عَذَابًا شَدِيدًا﴾ يادقيامت په ورځ [ددې وسيدو نكولره] ددوزخ [سخت عذاب ورنه کړو ﴿كَانَ ذَٰلِكَ﴾ داخبره ﴿فِي الْكِتَابِ مَسْطُورًا﴾ په کتاب [يعنى په لوح محفوظ [کښې ليکلې شوې ده ] پس که يو كافر دلته دهلاکيدو نه بچ شى نو دقيامت په ورځ به دلوې افت نه نه بچ کيږي اوپه طبعى مرګ سره هلاك کيدل خود کفارو سره مخصوص نه دى ټول مرى په دې وجه دکلو په هلاکيد سره دلته مراددادې چه دځه عذاب اوافت په ذريعه هلاك کړې شى نو لنډه داشوه چه په کفارو کله خوپه دنيا کښې عذاب ليږلې شى اوداخرت عذاب به ددې نه علاوه وى اوکله داسې هم کيدې شى چه په دنيا کښې ځه عذاب رانه شى نو دآخرت دعذاب نه خو بهر حال نجات نشته.

## معارف او مسائل

﴿يَبْتَغُونَ إِلَىٰ رَبِّهِمُ الْوَسِيلَةَ﴾ بل ته د رسيدو ذريعې ته وسيله وئيلې شى ، د الله ﷻ دپاره وسيله داده چې په علم او عمل دواړو کښې هر وخت د الله ﷻ د رضا خيال ساتلې شى اود شرعى حكمونو پابندى كوى ، مطلب دا دې چې دا ټول حضرات د خپلو نيكو عملونو په ذريعه د الله ﷻ د نزديكت په حاصلولو کښې اخته دى.

﴿وَيَرْجُونَ رَحْمَتَهُ وَيَخَافُونَ عَذَابَهُ﴾ سهل بن عبد الله رحمه الله فرمائيلى دى چې د الله ﷻ د رحمت اميد لرل او ترې ويريدل كله چې څوك په برابره درجه کښې لرى نو انسان په صحيح لاره روان وى اوكه دې کښې يو دبل صفت نه كم يازيات شى نو په هغې اندازه د انسان په حالاتو کښې خرابى رازى .[قرطبى].(۱)

وَمَا مَنَعْنَا

| اونۀ يومنع کړې مونږ، هيڅ څيز

او مونږ نخښې

أَنْ نُرْسِلَ بِالْآيَاتِ إِلَّا أَنْ كَذَّبَ بِهَا الْأَوَّلُونَ

له دې نه چې اوليږو | نښې | مګر دې خبرې | چې دروغ ګڼړلې وې | هغه نښې | ړومبنو خلقو

ليږل څکه منع کړې چې وړاندينو خلقو دا دروغژنې ګڼړلې وې

وَآتَيْنَا ثَمُودَ النَّاقَةَ مُبْصِرَةً فَظَلَمُوا بِهَا وَمَا

اوورکړه مونږه | ثموديانوله | اوښه | ښکاره | نو ظلم اوکړو هغوئ | په هغې باندې | اونۀ

او مونږ ثموديانو ته اوښه د [صالح دنبوت] ښکاره نخښه ورکړه نو هغوئ په دې ظلم اوکړو

نُرْسِلُ بِالْآيَاتِ إِلَّا تَخْوِيفًا ﴿٥٩﴾ وَإِذْ قُلْنَا لَكَ إِنَّ رَبَّكَ

ليږو مونږه | نښې | مګر دپاره ديرولو | اکله چې | اووئيل مونږه | تاته | بيشکه رب ستا

او مونږ خوداسې معجزې ويرولو دپاره راليږو او [ائې نبى ﷺ] هغه وخت يادکړه چې مونږ تاته اووئيل

۱) تفسير القرطبي [ ج:۱۰ص:۲۸۰]

| أَحَاطَ | بِالنَّاسِ ؕ | وَمَا جَعَلْنَا | الرُّءْيَا | الَّتِيْٓ | أَرَيْنٰكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| راګیرکړې دی | خلق | اونه ده جوړه کړې مونږه | نظاره | هغه | چې ښودلی ده مونږ تاته |

چې ستارب دټولوخلقو نه راچاپیره دي اوداموږ چې تاته کومه نظاره خودلې ده هغه مو

| إِلَّا | فِتْنَةً | لِّلنَّاسِ | وَالشَّجَرَةَ | الْمَلْعُوْنَةَ | فِي الْقُرْاٰنِ ؕ |
|---|---|---|---|---|---|
| مګر | یوه فتنه | دپاره دخلقو | اوونه | لعنت کړې شوی | په قرآن کښې |

دخلقو دپاره دآزمیښت سبب اوګرځولو اوهغه ونه هم چې قرآن پاک کښې پرې لعنت راغلې دې

| وَنُخَوِّفُهُمْ | فَمَا يَزِيْدُهُمْ | إِلَّا | طُغْيَانًا | كَبِيْرًا ۟ |
|---|---|---|---|---|
| اویروؤمونږ دي خلقولره | خونۀ زیاتوی دا یرول دوئ لره | مګر | سرکشئ | لویه |

اومونږ خو دا خلق بیابیا ویروؤ خو په هغې باندې ددوئ سرکشی نوره هم زیاتیږی

## آسان ترجمه قرآن

**او مونږ د نخښو (یعنی د کفارو د غوښتلې شوې معجزاتو) رالیږلو نه بل څه نه. بلکه دې خبرې منع کړې یو چه مخکښې خلقو د داسې نخښو تکذیب کړې دې او مونږ قوم ثمود ته اوښه ورکړې وه کومه چه د سترګو د پرانستلو دپاره کافی وه، خو هغوی هغې سره ظلم اوکړو او مونږ نخښې د ویرولو دپاره رالیږو. او (اې پیغمبره) هغه وخت یاد کړه چه کله مونږ تاته وئیلې وو چه ستا رب (په خپل علم سره) په ټولو خلقو باندې احاطه کړې ده او مونږ چه کومه نظاره تاته ښودلې ده. هغه مونږ د (کافرو) خلقو دپاره بس یو فتنه جوړه کړې ده. او هغه اونه هم په کومه باندې چه په قرآن کریم کښې لعنت راغلې دې. او مونږ خو هغوی ویروو، خو په دې سره د هغوی په سرکشۍ کښې نوره هم اضافه کیږی.**

## خلاصه تفسیر

﴿وَمَا مَنَعَنَآ أَنْ نُّرْسِلَ بِالْاٰيٰتِ إِلَّآ أَنْ كَذَّبَ بِهَا الْأَوَّلُوْنَ ؕ﴾ [اومونږ لره دخاص] فرمائشی [معجزودلیږلو نه صرف دا خبره مانعه ده چه وړاندې خلقو ددوی] هم جنسو دفرمائشی معجزو [دروغژن والې کړې دې] اومزاج اوطبعتونه دټولو کافرانو یو شان دی نو ظاهره داده چه دوی به یې هم دروغژنې کړی [او] د نمونې په طور یوه قصه هم واوره چه ﴿وَاٰتَيْنَا ثَمُوْدَ النَّاقَةَ مُبْصِرَةً فَظَلَمُوْا بِهَا ؕ﴾[مونږ قوم دثمودته ]ددوی د فرمائش مطابق دحضرت صالح عليه السلام دمعجزې په طور[ اوښه ورکړې وه]کومه چه په عجیبه طورسره پیدا شوې وه او[کومه چه ] دمعجزه کیدو په سبب فی نفسه [دپوهیدو ذریعه وه پس دغوخلقو ] ددغې نه پوهه حاصله نه کړه بلکه [ددې سره یې ظلم وکړو] چه دایې قتل کړه نو ښکاره خبره ده چه که ددې موجوده خلقودافرمائشی معجزې وښودلې شی نو دوی به هم داسې وکړی﴿وَمَا نُرْسِلُ بِالْاٰيٰتِ إِلَّا تَخْوِيْفًا ۝﴾ [اومونږ داسې معجزو لره صرف] ددې خبرې نه [دویرولو دپاره رالیږو] چه که چرې دافرمائشی معجزه ووینې او بیا هم ایمان رانه وړې نو فورا به هلاك کړې شی اوداسې شوی هم دی چه کومو خلقو ته فرمائشی معجزې ښودلې شوی دی هغوی ایمان هډو راوړې نه وو نو دامعامله ددوی دهلاکت او عام عذاب سبب جوړ شو او دالله تعالی دحکمت تقاضا داده چه داخلق اوس هلاك نه کړې شی په

دې وجه ددوی فرمائشی معجزې نه شوې ښودلې ددې تائيد ددې واقعې نه کيږی کومه چه دې خلقو ته وړاندې راپيښه شوې ده چه ذکر ئې دادې چه ﴿وَاِذْ قُلْنَا لَكَ اِنَّ رَبَّكَ﴾ [ته هغه وخت يادکړه کله چه مونږ تاته ووئيل چه ستا رب ] په خپل علم سره ﴿اَحَاطَ بِالنَّاسِ﴾ [ټول خلقو] ظاهر او باطن موجوده اوراتلونکی ټولوحالاتو [لره ګيرکړی دی ] اوپه راتلو نکو حالاتو کښې ددوی دايمان نه راوړل هم الله تعالىٰ ته معلوم دی چه يو دليل ددوی دا واقعه ده چه ﴿وَمَا جَعَلْنَا الرُّءْيَا الَّتِيْٓ اَرَيْنٰكَ اِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ﴾ په واقعه دمعراج کښې [کومه تماشا] په حالت دبيدارئ کښې [مونږه تاته ښودلې وه ﴿وَالشَّجَرَةَ الْمَلْعُوْنَةَ فِي الْقُرْاٰنِ﴾ او د کومې اونې چه په قرآن کښې بدوالې بيان شوې دی] يعنی زقوم کوم چه دکفارو خوراك دی [مونږه دې دواړو څيزونو لره ددې خلقو دپاره موجب دګمراهه کيدو کړل ] يعنی دې خلقو دا دواړه خبرې واوريدې اودروغژن ئې کړې معراج خو ئې په دې بناسره دروغژن کړو چه دشپې په لږه موده کښې شام ته تلل اوبيا اسمان ته تلل ددوی په نزد ممکن نه وو اود زقوم داونې دروغژن والې ئې په دې وجه وکړو چه ددغې په دوزخ کښې دننه کيدل وائی اوپه اور کښې اونه څنګه پاتې کيدې شی اوکه وی هم نو وبه سوزی حال دادې چه نه په يوه شپه کښې دومره اوږد سفر کيدې شی اونه اسمان ته تلل ممکن دی اوپه اور کښې دننه دا ونې وجود داخوهلووددوی په خيال کښې راڼغې حال دادې چه هيڅ محاله خبره نه ده چه ديوې اونې مزاج الله تعالىٰ داسې جوړکړی چه هغه داوبو په ځائ په اور سره پرورش مومی بيافرمائی ﴿وَنُخَوِّفُهُمْ فَمَا يَزِيْدُهُمْ اِلَّا طُغْيَانًا كَبِيْرًا﴾ [اومونږ دې خلقو لره ويروو ليکن ددوی لويه سرکشی زياتيږی ] دزقوم په اونې پورې به دې خلقو مسخرې هم کولې چه بيان ئې سره دزيات تحقيق نه په سوره صافات کښې راځی .

## معارف او مسائل

﴿وَمَا جَعَلْنَا الرُّءْيَا الَّتِيْٓ اَرَيْنٰكَ اِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ﴾ د معراج په شپه تاسو ته خودلې شوې تماشه د خلقو دپاره يو فتنه وه . عربئ کښې فتنه لفظ د ډيرو معنو دپاره مستعمل دې . ددې يوه معنی خو هغه ده چې د تفسير په خلاصه کښې اخستې شوې ده . يعنی ګمراهی . بله معنی ئې آزمينبت هم رازی ، فساد دپاره هم استعماليږی . دلته د ټولو معنو احتمال کيدې شی . عائشه صديقه رضي الله عنها ، معاويه رضي الله عنه ، حسن رحمه الله او مجاهد رحمه الله وغيره د تفسير امامانو د لته د فتنې نه مراد دغه آخری معنی اخستې ده . او فرمائيلې ئې دی چې دا فتنه د مرتد کيدو وه . ولې چې کله نبی اکرم صلى الله عليه وسلم د معراج د شپې په سحر په دغه شپه بيت المقدس ته اوبيا دهغې ځائې نه آسمانونو ته د تلو او صبا نه مخکښې د واپس راتلو بيان اوکړو نو ډير نوی مسلمانان شوی خلق دې نه منکر شو او دروغ ئې ورته اووئيل چې مرتد شو .[قرطبی].

دې واقعې نه داهم ثابت شو چې عربی کښې د رؤيا لفظ څنګه چې د خوب دليدلو دپاره مستعمل دې ، داشان د ويښې دليدلو دپاره هم استعماليږی . دلته هر کله چې رؤيا لفظ په معنی د خوب دليدلو کښې استعمال شوې نه دې څکه ددې نه د منکر کيدو په وجه خلق مرتد اوکرځولې شو ، ګنی داسې خوب خو هر څوك ليدلې شی چې دهغې نه په منکريدو سره د چا د مرتد کيدو هډو سوال نه پيدا کيږی . ددې آيت مبارك په تفسير کښې څينې

حضراتو دې لره د معراج د واقعې نه علاوه په نورو واقعاتو کښې هم چسپان کړې دې. خو په مجموعي لحاظ سره دلته سمون نه خوري. په دې وجه جمهورو دې لره د معراج په واقعه باندې چسپان کړېدې ، تفصيل يې قرطبي بيان کړې دې.(۱)

وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ

اوكله چې | او ووئيل مونږه | فرښتو ته | چې سجده اوكړئ | ادم ته | نو سجده اوكړه هغوئ | مگر اونۀ كړه

او هر كله چې مونږ فرښتو ته اووئيل چې تاسو آدم ﷺ ته سجده اوكړئ نو بغير د

اِبْلِيْسَ ط قَالَ ءَاَسْجُدُ لِمَنْ خَلَقْتَ طِيْنًا ۝ قَالَ

ابليس | وې وئيل | ايا زۀ سجده اوكړم | هغه چاته | چې پيدا كړې دې تا | دختې نه | او وئيل

ابليس نه ټولو سجده اوكړه هغه اووئيل آيا زه دۀ ته سجده اوكړم چې تا دختې نه پيدا كړې دې ابليس اووئيل

اَرَءَيْتَكَ هٰذَا الَّذِيْ كَرَّمْتَ عَلَيَّ لَئِنْ اَخَّرْتَنِ

آيا كتلي دې تا | دا هغه دې | چې فضيلت وركړوتا | په ما باندې | كه چرې | مهلت راكړو تا ماله

چې ته خو دې سړي ته لږ اوګوره چې تا په ما په باندې اوچت كړې دې كه چرې ته

اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَاَحْتَنِكَنَّ ذُرِّيَّتَهٗٓ اِلَّا قَلِيْلًا ۝

دورځې دقيامت پورې | خامخا به زۀ دبيخه رااوباسم | د اولاد دۀ | مګر نۀ | لږ

ترقيامته پورې ماله مهلت راكړې نو زه به ديو څو تنو نه بغير ددۀ ټول اولاد پخپل قابو كښې راولم

قَالَ اذْهَبْ فَمَنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ فَاِنَّ جَهَنَّمَ

اووئيل [الله] | څه | پس چاچې | پيروي اوكړه ستا | د دوئ نه | نو بيشكه | دوزخ

حكم اوشو چې څه ! څوك چې له دوئ نه ستا پيروي اوكړي نو بيشكه دوزخ ستاسو

جَزَآؤُكُمْ جَزَآءً مَّوْفُوْرًا ۝ وَاسْتَفْزِزْ مَنِ

بدله ده ستاسو | بدله | پوره | او دوكه كړه په خوږو پستو خبرو | هغه څوك

دټولو دپاره پوره پوره سزا ده او په دوئ كښې چې ستا په چا وس رسي

اسْتَطَعْتَ مِنْهُمْ بِصَوْتِكَ وَاَجْلِبْ عَلَيْهِمْ

چې طاقت رسيږي ستا | د دوئ نه | په دعوت ستاسره | او په جمع راوله | په هغوئ باند

نو هغوئ پخپل آواز سره اوغولوه او په دوئ باندې [دخپلو فوجونو]

بِخَيْلِكَ وَرَجِلِكَ وَشَارِكْهُمْ فِى الْاَمْوَالِ وَالْاَوْلَادِ

سوارۀ خپل | او پياده خپل | او شريك شه دهغوئ سره | په مالونو كښې | او په اولاد كښې

سوارۀ او پياده راوخيژه وه او هغوئ سره په مالونو او په اولاد كښې ځان له برخه اونيسه

(۱) تفسير القرطبي [ ج:۱۰ص:۲۸۴،۲۸۶]

وَعِدْهُمْ　وَمَا يَعِدُهُمُ　الشَّيْطٰنُ　اِلَّا　غُرُوْرًا ۝

اووعدې اوکړه دهغوئ سره | اووعده نه کوی دهغوئ سره | شیطان | مگر | ددوکې

او هغوئ سره وعده کوه او کومې وعدې چې شیطان هغوئ سره کوی هغه ټوله دهوکه ده

اِنَّ　عِبَادِیْ　لَیْسَ　لَكَ　عَلَیْهِمْ　سُلْطٰنٌ ط　وَكَفٰی　بِرَبِّكَ

بیشکه | بندګان زما چی دی | نشته | تالره | په هغوئ باند | څه غلبه | او کافی دې | رب ستا

بیشکه زماپه مخلصانو بندګانو به ستازور نه چلیږی اوستا رب کافی

وَكِیْلًا ۝

په حیثیت دوکیل کښی

کارساز دي

## آسان ترجمه قرآن

اوهغه وخت یاد کړه چه کله مونږ فرشتو ته وئیلي وو چه آدم علیه السلام ته سجده اوکړئ. پس هغوی سجده اوکړه، خو ابلیس اونکړه هغه اووئیل چه: ایا زه هغه چاته سجده اوکړم چه تا د خاورې نه جوړ کړې دې؟ وې وئیل: آیا دا هغه مخلوق دې کوم ته چه تا زما په مقابله کښې عزت ورکړې دې! که تا ماته د قیامته پورې مهلت را کړو نو زه به د دهٔ په اولاد کښې د لږو خلقو نه علاوه د باقي ټولو جامو ته به واګې واچوم الله پاک اوفرمائیل: لاړشه! پس په دوی کښې چه کوم ستا پیروی اوکړی نو جهنم به ستاسو د ټولو سزا وی، مکمل او پوره سزا. او په هغوی کښې چه په کوم کوم باندې ستا وس رسیږی هغوی په خپل آواز باندې ګمراه کړه، او په هغوی باندې خپلو سورو او پیاده فوجونو سره حمله اوکړه، او د هغوی په مال او اولاد کښې حصې مقرر کړه او هغوی سره ښه وعدې اوکړه او (حقیقت دا دې چه) شیطان چه هغوی سره څه وعده هم کوی، هغه د دهوکې نه سوا هیڅ نه وی. یقین اولره چه کوم زما بندګان دی، په هغوی ستا هیڅ وس نه رسیږی، او ستا رب (د هغوی د) حفاظت دپاره کافی دې.

## خلاصه تفسیر

[او] هغه وخت دیادولو قابل دې ﴿وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِیْسَ ط﴾ [کله چه مونږ فرښتوته ووئیل چه ادم ﷺ ته سجده وکړئ نو دې ټولو سجده وکړه مګر ابلیس] ونه کړه ﴿قَالَ ءَاَسْجُدُ لِمَنْ خَلَقْتَ طِیْنًا ۝﴾ [وئ ووئیل چه ایا زهٔ داسې سړی ته سجده وکړم کوم لره چه تادخاورې نه جوړ کړې دې] په دې مردود شودغه وخت ﴿قَالَ اَرَءَیْتَكَ هٰذَا الَّذِیْ كَرَّمْتَ عَلَیَّ ز﴾ [وئ ووئیل چه دې سړی لره کوم چه تاپه ماباندې ورلره لوئی ورکړې ده] اوپه دې بنا تاده ته دسجدې کولو حکم ماته کړې دې [نو ښه ده دا خووښایه چه] په دهٔ کښې څه داسې فضیلت دې چه دهغې په وجه زهٔ مردود شوم ﴿لَئِنْ اَخَّرْتَنِ اِلٰی یَوْمِ الْقِیٰمَةِ﴾ [که تا] زما درخواست مطابق [ماته دقیامت دوخته پورې] مرګ نه [مهلت راکړو ﴿لَاَحْتَنِكَنَّ ذُرِّیَّتَهٗٓ اِلَّا قَلِیْلًا ۝﴾ نوزهٔ به] هم [بغیر دلږو خلقو] [به ددهٔ ټول اولاد لره په خپل قابوکښې کړم] یعنی ګمراه به ئې کړم چه مخلصین به وی باقی ﴿قَالَ﴾ [ارشاد ورته وشو چه ﴿اذْهَبْ فَمَنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ﴾ څه] څه چه ستانه کیدې شی کوه [کوم سړې چه په دوی کښې تاسره شو ﴿فَاِنَّ جَهَنَّمَ جَزَآؤُكُمْ جَزَآءً مَّوْفُوْرًا ۝﴾ نو ستاسو د ټولو سزا

جهنم دې پوره سزا ﴿وَاسْتَفْزِزْ مَنِ اسْتَطَعْتَ مِنْهُمْ بِصَوْتِكَ﴾ اوپه دوی کښې چه په چاستا قابو چليږی په خپلو چغو سره ] یعنی په غولولو او وسو سو سره [دده قدم ] دنیغې لارې نه [ اړوه ﴿وَأَجْلِبْ عَلَيْهِمْ بِخَيْلِكَ وَرَجِلِكَ﴾ اوپه دوی خپل سوارهٔ اوپیاده راولیږه ] چه ستاټول لښکریوشی په ګمراه کولو کښې ښه زورولګوی ﴿وَشَارِكْهُمْ فِي الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ﴾ [او ددوی په مال اوپه اولاد کښې خپله حصه جوړوه ] یعنی مال او اولاد لره دګمراهئ ذریعه جوړ وه لکه چه ولیدې شو ﴿وَعِدْهُمْ﴾ اوددوی سره [دروغ] وعدې کوه چه په قیامت کښې به په ګناه باندې سزا نه وی او دا ټولې خبرې شیطان ته په طور دزجر او زورنې وئیلې شوی دی ﴿وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطَانُ إِلَّا غُرُورًا﴾ اوشیطان ددغو خلقو سره بلکل دروغ وعدې کوی ] داپه طور دجملې معترضې وه وړاندې بیا شیطان ته خطاب دې ﴿إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ﴾ [زماپه خاصو بندګانو باندې ستا قابو نه چليږی او] اې محمد ﷺ دده قابو به په مخلصانو څنګه وچليږی ﴿وَكَفَىٰ بِرَبِّكَ﴾ چه [ستارب] ددوی ﴿وَكِيلًا﴾ [پوره کارسازدې ]

## معارف اومسائل

﴿لَأَحْتَنِكَنَّ﴾ احتناك معنی د یو څیز بیخ اوښکل او فنا کول ئې ، یا په پوره ډول په هغې باندې بر کیدل [قرطبی].(١) ﴿وَاسْتَفْزِزْ﴾ د استفزاز معنی پریکول دی ، دلته ئې مراد د حق څخه پریکول دی . ﴿بِصَوْتِكَ﴾ د صوت مشهوره معنی آواز ده ، د ابن عباس رضی الله عنه د فرمائیلو مطابق د سرود ، تنګ ټکور او لوبو ټوقو آوازونه دی چې دشیطان آواز دې ، اوددې په ذریعه خلق دحق څخه پریکوی [قرطبی](٢) دې څخه معلومه شوه چې چې سرود ، تنګ ټکور کول اوسندرې وئیل وغیره حرام دی [قرطبی].

ابلیس آدم علیه السلام ته سجده اونه کړه نو دوه خبرې ئې اوکړې اوله دا چې آدم علیه السلام د خاوړې څخه پیدا کړې شوې دې او زه د اور څخه پیدا کړې شوې یم نو خاوره دې ولې د اور څخه غوره او بهتره اوګنړله . دا سوال د الله ﷻ د حکم په مقابله کښې د حکمت معلومولو باره کښې وو ، چې یو مامور او محکوم ددې حق نه لری ، د الله ﷻ د طرفه مامور ته د حکمت د غوښتلو حق نشته،ولې چې په دنیاکښې پخپله انسان خپل نوکرته دا حق نه ورکوی چې کله ورته خپل مالك دیوکار کولو اووائی او هغه ددغې کار کولو په ځائې د خپل نیك او مالك څخه ددې د حکمت تپوس کوی ، هم دغه وجه ده چې دلته ددې سوال جواب ورکول مناسب او نه ګنړلې شو. ددې ښکاره جواب خو دادې چې یو څیز لره په بل باندې غوروالې او پورته والې ورکول خالص د هغه ذات حق دې کوم چې دغه څیزونه پیدا کړی اوپالی ئې،په دې باره کښې چې هغه څه فیصله اوکړه هغه به صحیح وی غوره څیزبه هم هغه وی کوم چې هغه غوره فرمائیلې دې. بله خبره ئې دا کړې وه چې که تر قیامته پورې ماته د ژوند راکولو زما خواست منظور کړې شو نو سوا دلږو څخه به زه د آدم علیه السلام ټول اولاد ګمراه کړم ، په دې آیتونو کښې الله ﷻ ددې جواب داسې ورکړو چې زما په خالصو مخلصانو بندګانو خو به ستا څه وس نه رسیږی ، لاس دې آزاد څه چې کولې شې اوکړه که زما غیر مخلصان بندګان دې په قابو کښې راغلل نو

---

(١) تفسير القرطبي [ ج:١٠ص:٢٨٧] ولسان العرب فصل الحاء المهملة [ج:١٠ ص:٤١٦]
(٢) تفسير القرطبي [ ج:١٠ص:٢٨٤، ٢٨٨]

دهغوئ به هم ستا په شان حال وی چې ټول به جهنم کښې په عذاب کښې گرفتار کړم.

دلته ﴿وَاَجۡلِبۡ عَلَيۡهِمۡ بِخَيۡلِكَ وَرَجِلِكَ﴾ يو محاوره ده چې څه کولې شې هغه اوکړه لاس دې خلاص. دا مطلب ئې نه دې چې خامخا دې دهغه سواره او پياده لښکر وی ، او که په واقع کښې وی نو بيا هم ددې څخه انکار نشته ، ابن عباس رضي الله عنه فرمائيلی دی چې د کفر او د الله ﷻ د نافرمانئ په مرسته کښې چې څوك جنگ کوی د ې ته د شيطان دسواره او پياده لښکر وئيلې شی. پاتې شوه دا معامله چې دا څنگه معلومه شوه چې شيطان به د انسانانو په دهوکه کولو اوگمراه کولو باندې قدرت بيا مومی چې دهغې په بنا باندې ئې دا دعوی اوکړه.

ددې جواب خو دادې چې کيدې شی شيطان د انسان هغې حصو ته ئې کتلې وی کومو څخه چې د انسان بدن جوړ دې ، هغې څخه ئې دا اندازه اولگوله چې يو خو به په ده نفسانی خواهشات غالب وی چې دهوکه کول به ئې گران نه وی ، بل جواب ئې دا هم کيدې شی چې هيڅ لرې ته ده چې د شيطان دا دعوی کول په دروغه وی.

﴿وَشَارِكۡهُمۡ فِي الۡاَمۡوَالِ وَالۡاَوۡلَادِ﴾ دخلقو په مالونو او اولاد کښې د شيطان د شريکيدو مطلب ، ابن عباس رضي الله عنه دابيان کړې دې چې په ناروا او حرامو طريقو سره د مال حاصلول او په دې شان ئې لگول ، ددهٔ په کښې شريکيدل دی او په اولاد کښې ئې دشريکيدو مطلب دادې چې اولاد ئې په حرامه طريقه وی يا د اولاد نوم مشرکانه اړدی ، يا دهغه د حفاظت دپاره مشرکانه رسمونه کوی ، يا د دوئ دپالنې دپاره په نا جائزه طريقو سره مال ، سامان حاصلوی [قرطبی].[1]

| رَبُّكُمُ | الَّذِيۡ | يُزۡجِيۡ | لَكُمُ | الۡفُلۡكَ | فِي الۡبَحۡرِ |
|---|---|---|---|---|---|
| رب ستاسو | هغه ذات دې | چې چلوي | دپاره ستاسو | کشتئ | په درياب کښې |

ستاسو رب هغه ذات دې چې ستاسو دپاره ئې په سمندر کښې کشتئ چلوي

| لِتَبۡتَغُوۡا | مِنۡ فَضۡلِهٖ ؕ | اِنَّهٗ | كَانَ | بِكُمۡ | رَحِيۡمًا ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې تاسو تلاش کړئ | دفضل دهغه نه | بيشکه هغه | دې | په تاسو باندې | مهربانه |

چې تاسو دهغه فضل [روزی] اولټوئ بيشکه هغه په تاسو ډير مهربان دې

| وَاِذَا | مَسَّكُمُ | الضُّرُّ | فِي الۡبَحۡرِ | ضَلَّ | مَنۡ | تَدۡعُوۡنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوکله چې | اورسيږي تاسو ته | تکليف | په درياب کښې | ورک شي | هغه څوک | چې رابلئ ئې تاسو |

اوهرکله چې په سمندر کښې تاسو ته څه تکليف رسيږي نو دالله ﷻ نه سوا

| اِلَّاۤ اِيَّاهُ ۚ | فَلَمَّا | نَجّٰىكُمۡ | اِلَى الۡبَرِّ | اَعۡرَضۡتُمۡ ؕ | وَكَانَ |
|---|---|---|---|---|---|
| سوا دخاص هغه نه | نو هرکله چې | هغه بچ کړئ تاسو | وچې ته | نومخ واړوؤ تاسو | اودې |

کوم کوم چې تاسو بلئ هغه تاسو نه هير شي بيا هرکله چې تاسو اوچې طرفته رابچ کړي نو تاسو مخ واړوئ

| الۡاِنۡسَانُ | كَفُوۡرًا ۝ | اَفَاَمِنۡتُمۡ | اَنۡ | يَّخۡسِفَ | بِكُمۡ |
|---|---|---|---|---|---|
| انسان | ناشکره | آيا نو په امن کښې يئ تاسو | ددې نه چې | ډوب کړي | تاسو |

اوانسان ډير ناشکره دې آيا تاسو ددې خبرې نه بې غمه شوی يئ چې تاسو اوچې طرفته راولي او په زمکه کښې

[1]) تفسير القرطبي [ ج:۱۰ص:۲۸۹]

جَانِبَ الْبَرِّ اَوْ يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا ثُمَّ لَا تَجِدُوْا

په طرف دوچې | يارااوليږي | په تاسوباند | دكانړوباران | بيابه | اونهٔ مومئ تاسو

موښخ كړي يادرباندې دكانړو شګو سيلۍ راولي بيا تاسو دخپل ځان دپاره

لَكُمْ وَكِيْلًا ﴿۶۸﴾ اَمْ اَمِنْتُمْ اَنْ يُّعِيْدَكُمْ فِيْهِ

دپاره دخپل ځان | حمايتي | يابه امن كښې يئ تاسو | ددې نه چې | واپس بوځي تاسو درياب ته

څوک كارساز نه مومئ ياتاسو بې فكره شوي يئ چې هغه دوباره تاسو دې

تَارَةً اُخْرٰى فَيُرْسِلَ عَلَيْكُمْ قَاصِفًا مِّنَ الرِّيْحِ فَيُغْرِقَكُمْ

يو خل بيا | اوراوليږي | په تاسو باند | طوفان | د هوا نه | اوډوب كړي تاسولره |

درياب ته بوځي بيا په تاسو باندې دهوا سخت طوفان راوليږي بياتاسو د

بِمَا كَفَرْتُمْ ثُمَّ لَا تَجِدُوْا لَكُمْ عَلَيْنَا

په سبب دهغې | چې ناشكري اوكړه تاسو | بيا به | اونهٔ مومئ تاسو | دپاره دځان خپل په مونږ باند |

ناشكرئ په بدله كښې غرق كړي نو بيا به هيڅوک زمونږ نه دتپوس پوښتنې

بِهٖ تَبِيْعًا ﴿۶۹﴾ وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِيْٓ اٰدَمَ

ددې انجام | روستو تپوس كونكې | او په تحقيق سره | عزت وركړو مونږ | اولاد د ادم ته |

قابل هم بيا نه مومئ او بيشكه مونږ دآدم ﷺ اولاد ته عزت وركړې دې

وَحَمَلْنٰهُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَرَزَقْنٰهُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ

او سورلئ وركړې مونږ دوئ ته | په وچه كښې او په درياب كښې | اورزق وركړو مونږ دوئ ته | دپاكو څيزونو

اومونږ دوئ په اوچه او درياب دواړو كښې سوارهٔ كرځوؤ اومونږ دوئ له دپاكيزه څيزونو رزق وركړو

وَفَضَّلْنٰهُمْ عَلٰى كَثِيْرٍ مِّمَّنْ خَلَقْنَا تَفْضِيْلًا ﴿۷۰﴾

اوغوره كړل مونږه دوئ لره | په ډيرو باند | دهغه چانه | چې پيدا كړي دي مونږه | په غوره كولو سره

اوپه خپل ډير مخلوق باندې مو ورله ښكاره فضيلت وركړې دې

## آسان ترجمه قرآن

ستاسو رب هغه دې چه ستاسو دپاره ئې په سمندر كښې كشتۍ روانې كړې دی چه تاسو د هغه فضل اولټوئ. يقيناً هغه تاسو سره ډيره د رحمت معامله كونكې دې. او كله چه په سمندر كښې تاسو ته څه تكليف در اورسي نو كوم (معبودان) چه تاسو رابلئ هغه ټول غائب شي، بس صرف يوالله پاک پاتې شي. بيا چه كله الله پاک تاسو خشكۍ ته راورسوی نو تاسو مخ واړوئ. او انسان ډير ناشكره دې. نو آيا ستاسو د دې خبرې ويره نشته چه الله پاک تاسو د خشكۍ په يوه حصه كښې ښخ كړی، يا په تاسو باندې كاڼړی ورَوُنكې هوا راوليږي او بيا تاسو ته خپل هيڅوک كارساز ملاؤ نه شي؟ او آيا تاسو ددې خبرې نه

هم بې فکره شوې یئ چه هغه تاسو دوباره (هم هغه) سمندرته بوځي بیا په تاسو باندې د هوا طوفان راولیږلو سره ستاسو د ناشکرۍ په سزا کښې تاسو غرق کړي بیا به تاسو ته څوک هم ملاؤ نه شي چه په دې معامله کښې مونږ پسې راشي .او حقیقت دا دې چه مونږ د آدم علیه السلام اولاد ته عزت ورکړې دې،اوهغوی ته مو په اوچه او سمندر دواړو کښې سورلئ ورکړې دی او هغوی ته مو د پاکو څیزونو رزق ورکړې دې، او هغوی ته مو په خپل ډیر مخلوق باندې فضیلت ورکړې دې.

**خلاصه تفسیر**

په تیرو ایتونو کښې دتوحید اثبات اودشرك باطلوالې وو په دې ذکر شوو ایتونو کښې هم دغه مضمون په یو خاص انداز سره بیان شوې دې ددې نچوړدادې چه د الله تعالی بې شیمره عظیم الشانه نعمتونه کوم چه په انسانانو هروخت وریږی ددې بیان کولو سره دا ښائی چه ددې ټولو نعمتونو درکوونکې بغیر دالله تعالی نه بل څوك نه شی کیدې اوټول نعمتونه دهغه دی نو دهغه سره بل څوك شریك ګڼړل لویه ګمراهی ده ارشاد فرمائی چه ﴿رَبُّكُمُ الَّذِيْ﴾ [ستاسو رب داسې] منعم [دې ﴿يُزْجِيْ لَكُمُ الْفُلْكَ فِي الْبَحْرِ﴾ چه ستاسو د] نفع [دپاره کشتئ لره په دریاب کښې چلوی ﴿لِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ﴾ چه تاسو ددې په ذریعه رزق تلاش کړئ ] په دې کښې اشاره ده چه ددریاب سفر دتجارت دپاره په عام طورسره د لوئ نفعې سبب وی ﴿اِنَّهٗ كَانَ بِكُمْ رَحِيْمًا﴾ [بیشکه دغه ستاسو په حال لوئ مهربان دې ﴿وَاِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فِي الْبَحْرِ﴾ او هر کله چه تاسو ته په دریاب کښې څه تکلیف رسی ] مثلا ددریاب دڅپو اوهوا دطوفان نه د غرقیدو خطره ﴿ضَلَّ مَنْ تَدْعُوْنَ اِلَّآ اِيَّاهُ﴾ [نو بغیرد خدائ نه نور چه دچا چا عبادت تاسو کولو ټول غائب شی] چه نه تاسو ته په خپله دغه وخت ددوی خیال راځی اونه ئې رابلئ اوکه وې بلئ هم نو دهیڅ امداد ترې یوه ذره برابر توقع نشته داخو په خپله په عملی طور سره ستاسو دطرف دتوحید اقرار اودشرك ابطال دې ﴿فَلَمَّا نَجّٰىكُمْ اِلَى الْبَرِّ اَعْرَضْتُمْ﴾ [بیاکله چه تاسو اوچې ته بچ کړی راولی نو تاسو بیا دهغه نه مخ اړوئ ﴿وَكَانَ الْاِنْسَانُ كَفُوْرًا﴾ اوانسان دې لوئ ناشکره ] چه دومره زر د الله تعالی انعام اوخپل فریاد اوزاری هیرکړی اوتاسو چه اوچې ته ورسئ دهغه نه مخ اړوئ ﴿اَفَاَمِنْتُمْ اَنْ يَّخْسِفَ بِكُمْ جَانِبَ الْبَرِّ﴾ [ نو ایا تاسو ددې خبرې نه بې فکره شوئ چه تاسو اوچې ته دراوستو سره په مزکه کښې ننباسی ] مطلب دادې چه دالله تعالی په نزد په دریاب او اوچه کښې هیڅ فرق نشته هغه چه څنګه په دریاب کښې غرق کولې شی دغسې په مزکه کښې هم دننه کولې اوغرقولې شی ﴿اَوْ يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا﴾ [یاپه تاسو څه داسې سخته هوا راولیږی کومه چه ګټې وروی ] لکه چه عادیان دداسې هوا په طوفان سره هلاك کړې شوی وو ﴿ثُمَّ لَا تَجِدُوْا لَكُمْ وَكِيْلًا﴾ [ بیابه تاسو ځان لره خپل کارساز دخدائ نه سوا بیانه مومئ ﴿اَمْ اَمِنْتُمْ اَنْ يُّعِيْدَكُمْ فِيْهِ تَارَةً اُخْرٰى﴾ [ آیاتاسو ددې نه بې فکره شوئ چه خدائ تعالی بیاتاسو دریاب ته دوباره بوځی ﴿فَيُرْسِلَ عَلَيْكُمْ قَاصِفًا مِّنَ الرِّيْحِ﴾ بیاپه تاسو دهوا طوفان راولیږی ﴿فَيُغْرِقَكُمْ بِمَا كَفَرْتُمْ﴾ بیاتاسو لره ستا سو دکفر په سبب غرق کړی ﴿ثُمَّ لَا تَجِدُوْا لَكُمْ عَلَيْنَا بِهٖ تَبِيْعًا﴾ بیاپه دې خبره ] یعنی په غرقولو [څوك زمونږ نه تپوس کوونکې هم تاسو ته ملاؤ نه شی ] چه زمونږ نه ستاسو بدله واخلی ﴿وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِيْٓ اٰدَمَ﴾ [اومونږ اولاد دادم ﷺ لره] په خاصو صفتونو ورکولو سره [عزت ورکړې دې ﴿وَحَمَلْنٰهُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ﴾ اومونږ

دوی لره په اوچه اوپه دریاب کښې ] په ځناورو اوکشتو باندې [سوارۀ کړل ﴿وَرَزَقْنٰهُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ﴾اوپاکيزه اونفيس څيزونه مودوی لره ورکړل ﴿وَفَضَّلْنٰهُمْ عَلٰى كَثِيْرٍ مِّمَّنْ خَلَقْنَا تَفْضِيْلًا﴾ اومونږ دوی لره په خپل ډیر مخلوقات باندې فوقیت ورکړو

## معارف او مسائل

**په اکثرو مخلوقاتو باندې د بنی ادمو غورواليۍ په څه وجه دي:** آخری آیت مبارك کښې په اکثرو مخلوقاتو باندې د آدم ﷺ د اولاد د غوروالی او بهتر والی بیان دې ، په دې کښې دوه خبرې د غور کولو قابلې دی. اوله دا چې دا غوروالې د کومو صفتونو او کومو وجوهاتو په بنا دې ، بله دا چې په اکثرو مخلوقاتو باندې ددۀ د غوروالی څخه مراد دې ؟

د رومبۍ خبرې تفصیل دادې چې الله ﷻ په مختلفو حیثیتونو سره بنیادم ته داسې خصوصیات ورکړی دی چې نورو مخلوقاتو ته ئې نه دی ورکړی ، لکه ښکلې شکل وصورت ، د بدن او د مزاج برابروالې ، او د قدوقامت برابر والې ، دې څخه علاوه ورته عقل او شعور په خاص او ځانله حیثیت سره ورکړې شوې دې چې په دې سره انسان د ټولو برنو[پورته] او ښکته کائناتو څخه خپل کار اوباسی. دۀ ته الله ﷻ په دې قدرت وربخښلې دې چې د الله ﷻ د پیدا کړو څیزونونه داسې مصنوعات او مرکبات تیار کړی چې ددۀ د استوګنې نقل وحرکت او طعام لباس په مختلف شان سره پکار راځی.

د خبرو اترو او د پوهولو کومه ملکه چې الله ﷻ ده ته ورکړې دۀ هغه په بل یو حیوان کښې نشته دې. د اشارو په ذریعه دخپل زړۀ خبرې نور ته خودل ، د تحریر او خط په ذریعه خپل د زړه خبرې نورو ته رسول دا ټول د انسان یو ځانله خصوصیات دی. څینې علماء کرامو ﷭ فرمائیلی دی چې د انسان په ګوتو سره خوراك هم ددۀ یو ځانله خصوصیت دې. ددۀ څخه علاوه نور ټول ځناور هم په خوله سره څیز اخلی او خوری. د خپل خوراك څیزونه په مختلفو څیزونو سره یو ځائې کولو سره خوندناك جوړول ، او دا فائده مند جوړول هم د انسان کار دې: نور حیوانات ټول یو یو څیز خوري ، څوك کچه غوښه خوری ، څوك وابښهٔ خوری ، څوك میوې وغیره خوری یوازې انسان داسې یو مخلوق دې چې د خوراك مختلفو څیزونو په یو ځائې کولو سره ترې دخپل خوراك مرکب څیزونه تیاروی. په دې ټولو کښې زیات غوره صفت ددۀ عقل او شعور دې چې دې په دې سره خپل پروردګار پیژنی. د هغه لوئې ذات دمرضۍ کارونه کوی او چې په کوم کار باندې هغه لوئې ذات خفه کیږی دهغې څخه ډډه کوی. د عقل او شعور په لحاظ سره د مخلوقاتو تقسیم داسې دې چې په عامو ځناورو کښې شهوتونه او خواهشونه شته ، عقل او شعور په کښې نشته دې ، په فرښتو کښې عقل او شعور شته ، خواهشات اوشهوتونه په کښې نشته دې. انسان کښې دواړه څیزونه جمع دی ، عقل او شعور هم لری او شهوتونه په کښې هم شته دې. هم په دې وجه کله چې دې شهوتونو او خواهشونو لره د عقل او شعور په ذریعه مغلوب کړی او د الله ﷻ د ناخوښو څیزونو څخه ځان اوساتی نو مقام ئې د ډیرو فرښتو څخه پورته شی.

دویمه خبره داده چې بنیادمو ته په اکثرو مخلوقاتو باندې د غوروالی ورکولو مطلب څه دې ؟ په دې کښې خو د اختلاف هیڅ ګنجائش نشته دې. چې ددنیا په پورتنو او ښکتنو مخلوقاتو او په ټولو ځناورو باندې بنیادمو ته غوروالې حاصل دې. دغه شان په عقل او شعور لرونکی

مخلوقاتو پیریانو باندې هم د انسان غوروالې ټول منی . خبره صرف دومره پاتې شوه چې په بنیادمو او فرښتو کښې کوم یو مخلوق غوره دې ؟ په دې باره کښې تحقیق دادې چې عام مؤمنان ، نیکان بنیادم لکه د الله ﷺ اولیاء کرام ﷺ شو ، هغه د عامو فرښتو څخه زیات غوره دی . خو خاص فرښتې لکه جبرائیل ﷺ ، میکائیل ﷺ وغیره ددې عامو نیکانو خلقو څخه غوره دی . او خاص مؤمنان لکه پیغمبران ﷺ شو ، هغوئ ﷺ ددغې خاصو فرښتو څخه هم زیات غوره دی . پاتې شو ناکاره او کافران انسانان د فرښتو څخه نې لا څه کوې چې د څناورو څخه هم په اصل مقصد او کامیابئ او اخلاص کښې غوره نه دی . دهغوئ په باره کښې د قرآن کریم فیصله داده چې ﴿أُولَٰئِكَ كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ﴾ هغوئ د چارپایانو په شان دی بلکه د هغې څخه هم زیات گمراه دی . [تفسیر مظهری ][1] والله اعلم.

| يَوْمَ | نَدْعُوْا | كُلَّ أُنَاسٍ | بِاِمَامِهِمْ | فَمَنْ |
|---|---|---|---|---|
| اوياده كړه هغه ورځ | چې رااوبه غواړو مونږ | هره ډله دانسانانو | دپیشوا دهغوئ سره | نو هغه چاته |
| هغه ورځ رایاده کړه چې مونږ به ټول خلق دخپلو خپلو پیشوایانو سره راوغواړو نودچا | | | | |

| اُوْتِيَ | كِتٰبَهٗ | بِيَمِيْنِهٖ | فَاُولٰٓئِكَ | يَقْرَءُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| چې ورکړې شوه | عملنامه دهغه | په ښی لاس دهغه کښی | نو دغه کسان چې دی | لولی به هغوئ |
| عمل نامه چې دهغوئ ښی لاس کښې ورکړې شوه نو هغوئ به خپله عمل نامه | | | | |

| كِتٰبَهُمْ | وَلَا يُظْلَمُوْنَ | فَتِيْلًا ۝ | وَمَنْ | كَانَ |
|---|---|---|---|---|
| عملنامه خپله | او ظلم به نۀ کیږی په هغوئ باندې | په قدر د تاردخرما | اوهغه څوک | چې وی |
| لوستل شروع کړی او په هغوئ به دتار برابر هم ظلم نه کیږی اوڅوک چې پدې | | | | |

| فِيْ هٰذِهٖٓ | اَعْمٰى | فَهُوَ | فِي الْاٰخِرَةِ | اَعْمٰى | وَاَضَلُّ | سَبِيْلًا ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په دې دنیاکښی | ړوند | نوهغه به وی | په اخرت کښی هم | ړوند | اوزیات ورك كونكې به وی | لارې لره |
| دنیا کښې ړوندشو پس هغه به په آخرت کښې هم ړوند وی اودخلاصئ د لارې نه به بې لارې وی | | | | | | |

### آسان ترجمه قرآن

هغه ورځ یاده کړئ چه کله به مونږ ټول انسانان د هغوی د عمل نامو سره رابلو. بیا چه د چا عمل نامه په ښی لاس کښې ورکړې شی، نو هغوی به خپلې عمل نامې لولی، او په هغوی باندې به د ښړې برابر ظلم هم نه کیږی اوڅوک چه په دنیا کښې ړوند وو، هغه به آخرت کښې هم ړوند وی، بلکه د لارې نه به لور هم لرې وی.

### خلاصه تفسیر

دهغې ورځې یادول پکاردی ﴿يَوْمَ نَدْعُوْا كُلَّ أُنَاسٍ بِاِمَامِهِمْ﴾ [په کومه ورځ چه مونږه ټولو بنیادمو لره ددوی دعملنامو سره ] په میدان دحشر کښې [راوبلو ] اودغه عملنامې به راوالوزولې شی بیابه دچاپه ښی لاس او د چاپه کینړ او چپه لاس کښې راشی ﴿فَمَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ بِيَمِيْنِهٖ﴾

---

[1] ) تفسیر المظهری تحت هذه الآية [ج:۵ص:۴۵۹]

[بیا دچا عملنامه چه دد؛ په ښی لاس کښې ورکړې شی ] او دابه ایماندار خلق وی ﴿فَأُولَٰئِكَ يَقْرَءُونَ كِتَابَهُمْ﴾ [نو داسې خلق به خپله عملنامه ] په خوشحالئ [لولی ﴿وَلَا يُظْلَمُونَ فَتِيلًا﴾ اوددوی به یوه ذره نقصان ونه کړې شی ] یعنی دوی ته به دایمان اوعملونو پوره پوره ثواب ملاؤ شی یوه ذرهٔ به کم نه وی خواه زیاتی ورته ملاؤ شی اوعذاب نه خلاصئ به هم وی خواه په اوله کښې یادګناهونو دسزا څکولو نه پس ﴿وَمَنْ كَانَ فِي هَٰذِهِ﴾ اوکوم سړې چه په دنیا کښې ]دلارې دنجات دلیدونه﴿أَعْمَىٰ﴾ [ړوندشو ﴿فَهُوَ فِي الْآخِرَةِ﴾ نو دغه به په اخرت کښې هم ] منزل دنجات ته درسیدو نه﴿أَعْمَىٰ﴾ [ړوندوی ﴿وَأَضَلُّ سَبِيلًا﴾ او] بلکه هلته به ددنیا نه هم [زیات بې لارې به وی ] څکه چه په دنیا کښې خو دګمراهئ علاج ممکن وو هلته به داهم نه شی کیدې دابه هغه خلق وی چاته چه عملنامه ددوی په کینړ لاس کښې ورکړې شی.

## معارف او مسائل

﴿يَوْمَ نَدْعُو كُلَّ أُنَاسٍ بِإِمَامِهِمْ﴾ دلته د امام معنی کتاب ده لکه په سورة یاسین کښې دی چې: ﴿وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنَاهُ فِي إِمَامٍ مُبِينٍ﴾ په دې کښې د امام مبین نه مراد واضح کتاب دې ، او کتاب ته امام څکه وئیلې شی چې د هیرې او د اختلاف په وخت کتاب ته داسې رجوع کولې شی څنګه چې امام ته ماتې کولې شی .[قرطبی][1]

او ترمذی په روایت دابی هریره رضی الله عنه چې هغه ته ترمذی حسن غریب حدیث وئیلی دی دهغه نه هم دا معلومیږی چې د امام نه مراد کتاب دې حدیث پاک دادې:

﴿يَوْمَ نَدْعُو كُلَّ أُنَاسٍ بِإِمَامِهِمْ﴾ قال يدعى احدهم فيعطى كتابه بيمينه ﴾[2] [ترجمه] پخپله نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چې د ﴿يَوْمَ نَدْعُو كُلَّ أُنَاسٍ بِإِمَامِهِمْ﴾ په تفسیر کښې چې یو کس به راؤبللې شی او عمل نامه به ورته په ښی لاس کښې ورکړې شی .

ددې حدیث پاك ترمخه دا هم اوتاکلې شوه چې امام په معنی د کتاب دې او دا هم معلوم شو چې کتاب نه مراد عمل نامه ده څکه د تفسیر په خلاصه کښې دبیان القران نه ددې ترجمه عمل نامه کړې شوې ده .

علی رضی الله عنه او مجاهد رحمه الله وغیره مفسرینو دلته دامام معنی مقتداء او پیشواهم نقل کړې ده. مطلب دادې چې هرڅوك به د خپل خپل مقتداء او پیشوا په نومونو باندې رابللې شی چې پیغمبران د هغوئ علیهم السلام نائبان ، عالمان ، او بزرګان بهٔ وی. ګمراهانو او کافرانو ته بهٔ ددغې لین دین دمشرانو په نوم بلنه ورکولې شی .[قرطبی][3]

په دې لحاظ سره د تولې جملې معنی دا شوه چې په میدان حشر کښې به هر څوك د هغه د مقتداء او پیشوا په نوم رابللې شی او تول به یو څائې ته راجمع کولې شی . لکه د ابراهیم علیه السلام ، موسی علیه السلام او عیسی علیه السلام او دمحمد صلی الله علیه وسلم تابعداران ، بیا په دې کښې داسې هم کیدیشی چې ددې متبعینو براه راست پیشوا په نوم باندې بهٔ ئې رابللې شی . چې اول به ورته د رومبی مشر نوم اخستې شوې وی.

---

[1] ) تفسیر القرطبی [ ج:۱۰ص:۲۹۶]
[2] ) جامع الترمذی ، ابواب التفسیر، باب من سورة بنی اسرائیل [ج:۲ ص:۱۴۵، ۱۴۶]
[3] ) تفسیر القرطبی [ ج:۱۰ص:۲۹۷]

**عمل نامه:** دقرآن کریم د ګڼرو آیتونو څخه معلومیږی چې صرف کافرانو ته به په ګس لاس عمل نامه ورکولې شی لکه په یو آیت مبارك کښې فرمائی چې: ﴿انه کان لایؤمن بالله العظیم﴾ او په بل یو آیت مبارك کښې راغلی دی چې ﴿انه ظن ان لن یحور﴾ په رومبی آیت مبارك کښې په ښکاره د ایمان د نیشتوالی بیان دې . او په دې دویم کښې آخرت څخه د انکار بیان دې چې هغه هم کفر دې ، دې مقابلې ته چې اوګورو نو معلومیږی چې په ښی لاس کښې به دایمان خاوندانو ته عمل نامه ورکولې شی ، که هغه متقی اوپرهیزګار وی اوکه ګناهګار مؤمن وی ، دوئ به خپله عمل نامه په خوشحالئ خوشحالئ لولی او د خوشحالئ څخه بهٔ ئې په نورو لولی دا خوشحالی به په ایمان باندې او په دې باندې وی چې دهمیشه عذاب څخه به ئې خلاصې وی اګر چې په څینې عملونو به ورته سزا ورکولې شی .

قرآن کریم کښې د عملنامه د ورکولو څه طریقه نه ده بیان شوې لیکن په څینو احادیثو کښې د تطایر الکتب لفظ راغلې دې . [احمد رحمه الله د عائشه صدیقه رضی الله عنها څخه مرفوعا.] [1]

داشان د حدیث پاك په روایتونو کښې راغلی دی چې ټولې عمل نامې به د عرش لاندې جمع کیږی، بیابه پرې هوا راوالوځی چې څان سره به ویسی او چاته به عمل نامه په ښی لاس اوچاته په ګس لاس وررسوی [اخرجه العقیلی عن انس مرفوعا] بیان القرآن د روح المعانی څخه] [2]

| وَاِنْ كَادُوْا | لَيَفْتِنُوْنَكَ | عَنِ الَّذِيْٓ | اَوْحَيْنَآ | اِلَيْكَ |
|---|---|---|---|---|
| او بیشکه چی نزدې وو | چی په فتنه کښې واچوی تا | دهغه وحی نه | چی درلیږلې ده مونږ | تاته |

اواې نبی ﷺ! دوئ په دې خبره کښې ډیرکوشش کړې دې چې تادهغه وحی نه چې مونږدرته درلیږلې ده

| لِتَفْتَرِيَ | عَلَيْنَا | غَيْرَهٗ ۖ | وَاِذًا |
|---|---|---|---|
| دپاره ددې چی دروغ جوړکړې ته | په مونږ باند | غیر ددغه وحی نه | اوکه داسې کړې وې تانو بیا به |

ورغروی په دې شان چې ته په مونږ باندې د خانه دروغ اوتړې اوکه دغسې دی کړې وې نو

| لَّاتَّخَذُوْكَ | خَلِيْلًا ۝ | وَلَوْلَآ | اَنْ ثَبَّتْنٰكَ | لَقَدْ | كِدْتَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| خامخا نیولې وې دوئ تالره | دوست | او که نه وې | مضبوط ساتلې مونږ ته | نو بیشکه | نزدې وه |

دوئ به خپل خان سره خوږآشنا کړې وې اوکه مونږ ستا قدم کلک کړې نه وې نو داخبره بعیده نه وه

| تَرْكَنُ | اِلَيْهِمْ | شَيْـًٔا | قَلِيْلًا ۝ | اِذًا | لَّاَذَقْنٰكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چی میلان دکړې وې | دوئ ته | څه | لږ | که داسې دی کړې وې تانوبیابه | خامخاڅکولې وې مونږتاته |

چې ته ورته لږ شان مائله شوې وې په دې صورت کښې به مونږ تاله په ژوندې کښې

| ضِعْفَ | الْحَيٰوةِ | وَضِعْفَ | الْمَمَاتِ | ثُمَّ | لَا تَجِدُ | لَكَ | عَلَيْنَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| دوچند عذاب | دژوند | او دوچند عذاب | د مرګ | ابیا به | نه موندوتا | دپاره دخان | په مونږ باند |

اودمرګ نه پس دغبرګې سزا مزه څکولې وه نوبیا به تازمونږ په مقابله کښې هیڅوک مددګار

[1]) مسند احمد حدیث السیدة عائشة رضی الله تعالی عنها رقم الحدیث:[۲۳۶۴۹]
[2]) روح المعانی تحت هذه الآیة [ج: ۱۱ ص:۲۸] و ضعفاء العقیلی رقم الحدیث :[۲۱۰۱]

نَصِيْرًا۝ وَاِنْ كَادُوْا لَيَسْتَفِزُّوْنَكَ مِنَ الْاَرْضِ لِيُخْرِجُوْكَ

مددګار | او بیشکه نزدې وه | چې خامخا اوخوزوی تا | دزمکې نه | دپاره ددې چې اوشړی تا

موندلې نه ووا ونزدې وه چې دوئ کافران دې زمکې [دمکې نه] ستاقدمونه خویولې وې چې تاددې [ملک] نه بهر اوباسی

مِنْهَا وَاِذًا لَّا يَلْبَثُوْنَ خِلٰفَكَ اِلَّا قَلِيْلًا۝

ددغه ځائې نه | اوکه دوئ داسې اوکړل نوبیابه | تیرنه کړی وخت دوئ | روستوستانه | مګر | لږ

خو په دې حال کښې به هم ستادوتلو نه پس دوئ ډیر لږ دلته پاتې شی

سُنَّةَ مَنْ قَدْ اَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنْ رُّسُلِنَا وَلَا تَجِدُ

داطریقه ده | دهرهغه چاسره | چې لیږلی وو مونږ مخکښې ستانه | درسولانو زمونږ نه | او او به نه مومې ته

[دا زمونږ پخوانې دستوردې] لکه څنګه چې زمونږ دستور دهغې پیغمبرانو په حقله راغلې دې چې له تانه وړاندې مولیږلی وو او زمونږ په

لِسُنَّتِنَا تَحْوِيْلًا۝

طریقې زمونږ لره | بدلون

دستور کښې به هیڅ تبدیلی نه بیامومې

## آسان ترجمه قرآن

او (اې پیغمبره) کومه وحی چه مونږ تاته رالیږلې ده، دې (کافرو) خلقو ته په فتنه کښې اچولو سره د هغې نه اړولې، چه ته د هغې په ځائې بل څه خبره زمونږ په نوم باندې پیش کړې، او په دې صورت کښې به دوی ته ځان له ملګرې کړې وې او که مونږ ته ثابت قدم کړې نه وې نو ته به هم د دوئ طرف ته څه نه څه ښکته شوې وې. او که داسې شوې وه نو مونږ به تاته په دنیا کښې هم دوچند حذاب درکړې وې، او د مرګ نه پس هم دوچند، بیا به تاته زمونږ په مقابله کښې څوک مددګار نه ملاویدو ددې نه علاوه دا خلق په دې فکر کښې هم دی چه دې زمکې (مکې مکرمې) نه ستا قدمونه اوباسی چه تا د دې ځائې نه اوباسی، نو بیا دوی به هم ستا نه پس دلته زیات وخت ایسار نه شی. دا زمونږ هغه طریق کار دې کوم چه مونږ دخپلو هغه پیغمبرانو سره اختیار کړې وو کوم چه مونږ ستا نه مخکښې رالیږلې وو، او ته به زمونږ په طریقه کښې هیڅ تبدیلی بیا نه مومې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَاِنْ كَادُوْا لَيَفْتِنُوْنَكَ عَنِ الَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ﴾ اوداکافران خلق [دخپلوقوی تدبیرونو په ذریعه [تالره ددې شی نه په اړولو لګیدلی وو کوم چه مونږ تاته په ذریعه دوحی لیږلی دی] یعنی په دې کوشش کښې لګیدلی وو چه په تا باندې دالله تعالی دحکم نه خلاف کار وکړی او ﴿لِتَفْتَرِيَ عَلَيْنَا غَيْرَهٗ﴾ [ددې دپاره چه ته ددې] حکم الهی [نه سوا زمونږ طرف ته] عملا [دغلطې خبرې نسبت وکړې] ځکه چه دنبی کار دشریعت خلاف کیدې نه شی په دې وجه نعوذ بالله که تا نه څه کار وشی نو ددې نه به داخبره لازمه شی چه دادشریعت نه خلاف کار ګویادالله تعالی طرف ته منسوب کوې ﴿وَاِذًا لَّاتَّخَذُوْكَ خَلِيْلًا۝﴾ [او په داسې حالت کښې به دوئ تالره خالص دوست جوړ کړې ووا] ددوی داشرارت داسې سخت وو چه ﴿وَلَوْلَآ اَنْ ثَبَّتْنٰكَ﴾ [که مونږ تالره ثابت قدم نه

وی جوړ کړي ] یعنی معصوم کړي مونه وي ﴿لَقَدْ كِدتَّ تَرْكَنُ إِلَيْهِمْ شَيْئًا قَلِيلًا﴾ [نوته به ددوی طرف ته څه ناڅه مائله کیدو ته نزدې شوی وې ] او [که داسې شوی وې ] چه ستا څه میلان دوی طرف ته شوی وی ﴿إِذًا لَّأَذَقْنَاكَ ضِعْفَ الْحَيَاةِ وَضِعْفَ الْمَمَاتِ﴾ [نو مونږ به تاته] په دې وجه چه دبارګاه دمقربانو مقام ډير وچت دې [په حالت د ژوند کښې هم او پس دمرګ نه هم دوچند عذاب څکولې وو ﴿ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ عَلَيْنَا نَصِيرًا﴾ بیا به تاسو زمونږ په مقابله کښې څوك مددګار نه وو موندلې]مګر چونکه تالره مونږ معصوم اوثابت قدم جوړ کړې دې په دې وجه دوی طرف ته یوه ذره هم میلان ونه شو او ددې عذاب نه بچ شوې ﴿وَإِن كَادُوا لَيَسْتَفِزُّونَكَ مِنَ الْأَرْضِ لِيُخْرِجُوكَ مِنْهَا﴾ [اودا] کافران [خلق ددې مزکې ] مکې مکرمې یامدینې منورې نه ستا په ویستلو باندې [لګیدلی وو چه تالره ددې ځاځ نه وباسی ﴿وَإِذًا لَّا يَلْبَثُونَ خِلَافَكَ إِلَّا قَلِيلًا﴾ اوکه داسې شوې وې نو تاته پس به دوی هم ډیر کم] دلته [ پاتې شوی وو ﴿سُنَّةَ مَن قَدْ أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِن رُّسُلِنَا﴾ لکه چه دهغوپیغمبرانو] په باره کښې زمونږ قاعده پاتې شوې ده کومولره چه تاته وراندې [مونږ رسولان راليږلی وو ] چه کله ددوی قوم دوی لره دوطن نه وویستل نوبیاددغه قوم هم هلته پاتې کیدل نه دی نصیب شوی ﴿وَلَا تَجِدُ لِسُنَّتِنَا تَحْوِيلًا﴾ [اوته به زمونږ په قاعده کښې بدلون بیا نه مومې .

## معارف او مسائل

ددې آیتونو څینې رومبی درې آیتونه د یوې خاصې واقعې باره کښې دی او د واقعې تاکلو دپاره تفسیر مظهری کښې یو څو روایتونه نقل کړې شوی دی ، په دې باره کښې زیاته نزدې اوقرآن کریم په اشارو سره تائید موندونکې هغه واقعه ده چې د ابن ابی حاتم په تخریج سره په روایت د جبیر بن نفیر ئې داسې نقل کړې ده چې د مکې د قریشو یو څو سرداران درسول کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چې که تاسو ﷺ مونږ ته واقعی راليږلی شوی یئ نو د مجلس څخه دا خوار مات ګډ خلق لرې کړئی ، چا سره چې زمونږ ناسته پاسته کول زمونږ سپکاوې دې . بیا به دې هله مونږ ملګری او دوستان شو ، د دوئ دې خبرې ته درسول کریم ﷺ څه خیال هم پیدا شو چې ددوئ خبره پوره کړئ څکه چې د دوئ په دې خبرو منلو باندې کیدې شی دوئ مسلمانان شی ، څکه دا آیت مبارك نازل شو.(۱)

په دې آیت مبارك کښې رسول کریم ﷺ په دې خبره خبر کړې شو چې د دوئ داخبره فتنه ده او دوستی ئې هم فتنه ده څکه ئې خبره منل نه دی پکار ، بیا فرمائی چې که زمونږ دطرفه ستاسو ﷺ تربیت او ستاسو ﷺ د مضبوط لرلو انتظام نه وې کړې شو نو څه لرې خبره نه وه چې د دوئ دې خبرې ته ستاسو راماتیدل نزدې شوې وې .

تفسیر مظهری کښې دی چې ددې آیت مبارك څخه په ښکاره داخبره پوهې ته رازی چې د قریشو د کافرانو عبث خبرې ته د رسول کریم ﷺ راماتیدل خو د سره کیدې نه شو البته دومره کیدې شو چې د دوئ طرف ته راماتیدو [میلان کولو] ته لږ شان رانزدې شوې وې خو الله ﷻ پخپل حفاظت سره ددوئ معصوم جوړولو سره دې څخه هم بچ کړو که ژور نظر اوکړې شی نو دا آیت مبارك په دې خبره لوئې دلیل ګرځی چې پیغمبران ﷺ د ډیرې اوچتې پائې د پاکیزه خوئې اوطبیعت مالکان وو ، که پیغمبری حفاظت ئې هم نه وې نو بیا هم الله ﷻ د دوئ داسې

---

۱) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة [ج:۵ص:۴٦۱] وتفسیر ابن ابی حاتم رقم الحدیث:[۱۳۷۲۵]

طبيعت جوړ کړي وو چې د کفارو عبث خبرې ته ئې راماتيدل خو کيدې نشو ، البته څه لږ شان راماتيدل نزدې کيدې شو چې پيغمبرى حفاظت عصمت دا هم ختم کړل .[1]

﴿إِذًا لَّأَذَقْنَاكَ ضِعْفَ الْحَيَاةِ وَضِعْفَ الْمَمَاتِ﴾ بفرض محال که د دوئ غلط روش ته ستاسو ﷺ راماتيدل لږ شان رانزدې شوى هم وى نو په دنيا کښې به هم ستاسو عذاب دوچند او د مرګ څخه پس په قبر يا آخرت کښې به هم دوچند وو. څکه چې د هغې خلقو معمولى غلطى هم ډيره لويه حسابيږى څوك چې د الله ﷻ په دربار کښې نزديکان وى . دا هم هغسې مضمون دې کوم چې د ازواج مطهراتو په باره کښې قرآن کريم داسې فرمائى چې : ﴿يَا نِسَاءَ النَّبِيِّ مَن يَأْتِ مِنكُنَّ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ يُضَاعَفْ لَهَا الْعَذَابُ ضِعْفَيْنِ﴾ اڅې د پيغمبر ﷺ بيبيانو! په تاسو کښې چې چا په ښکاره د بې حيائئ کار اوکړو ورته به دوچند عذاب ورکولې شى .

﴿وَإِن كَادُوا لَيَسْتَفِزُّونَكَ﴾ د استفزاز لفظى معنى پريکول دى ، د لته ترې مراد نبى کريم ﷺ د ډيرې [اوسيدو ځائې] مکې يا مدينې څخه دهغوئ اوښکل دى ،معنى دا آيت دا شوه ، نزدې وه چې دې کافرانو تاسو دخپلې زمکې څخه اوښکلې وې ، که داسې ئې کړې وې نو دا سزا به ورکولې شوه چې هغوئ به هم زيات وخت دې ښار کښې نه وې پاتې شوې .

دا ديوې بلې واقعې بيان دې چې ددې په تاکلو کښې هم دوه روايتونه منقول دى . يوه واقعه د مدينې منورې ده چې يو ځل دمدينې منورې يهود ، درسول کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چې ائې ابوالقاسم ﷺ! که تاسو ﷺ په رښتيا د پيغمبرئى دعويدار يئ نو په شام ملك کښې ستاسو اوسيدل څکه پکار دى چې دغه زمکه د محشر او د پيغمبرئ زمکه ده . په رسول کريم ﷺ باندې ددې څخه اثر اوشو او دتبوك د غزا په سلسله کښې د شام ملك په سفر لاړل نو اراده ئې اوشوه چې شام ملك کښې خپله ډيره جوړه کړى ، په دغه دا آيت مبارك نازل شو .

﴿وَإِن كَادُوا لَيَسْتَفِزُّونَكَ﴾ او هغوئ دې ارادې څخه منع کړې شو ،[2] خو ابن کثير ددې روايت نقل کولو څخه پس ورته ناقابل اطمينان روايت وئيلې دې . ددې آيت مبارك يوه بله واقعه دا خودلې شوې ده چې په مکه مکرمه کښې داسې پيښه شوې وه چې يو ځل د قريشو کافرانو ، رسول کريم ﷺ لره دمکې مکرمې څخه د اوښکلو اراده اوکړه چې الله ﷻ پرې دا آيت مبارك نازل کړو ،هرکله چې داسورت مکې دې نودادې واقعې په صحيح کيدو باندې قوى قرينه ده.
په دې کښې د مکې کفارو ته خبردارې ورکړې شوې دې چې که هغوئ رسول کريم ﷺ لره د مکې مکرمې څخه اوښکلو نو پخپله به هم په مکه مکرمه کښې په آرام پاتې نه شى ، نو ابن کثير دا واقعه ددې آيت مبارك مصداق ګرځولې ده او ورته ئې غوره وئيلى دى . ابن کثير رحمه الله زياته کړه چې د قرآن کريم دا وعيد هم دمکې کافرانو پخپلو سترګو سره داسې اوليدو چې کله نبى کريم ﷺ دمکې مکرمې څخه هجرت اوفرمائيلو نو د مکې کافرانو يوه ورځ هم په مکه مکرمه کښې په آرام پاتې نشو ، صرف يو نيم کال پس الله ﷻ په ميدان بدر کښې رايو ځائې

---

[1] تفسير المظهرى[ج:٥ص:٤٦٢، ٤٦٣]

[2] دلائل النبوة للبيهقى كتاب جماع ابواب غزوة تبوك ، باب ما روى فى سبب خروج النبى ﷺ رقم الحديث[٢٠٠٥]

کړل چرته چې اویا سرداران ئې مړه کړې شو. زور ئې مات شو ،(۱) بیا د احد غزا په آخری نتیجه کښې پرې زیات هیبت راغلو ، او د غزوهٔ احزاب آخری جنګ خو د دوئ ملا ماته کړه . او د هجرت په اتم کال رسول کریم ﷺ توله مکه فتح کړه .

﴿سُنَّةَ مَنْ قَدْ أَرْسَلْنَا﴾ په دې آیت مبارك کښې اوخودلې شو چې وخت د سره دالله ﷻ عام سنت او قاعده دا راووانه ده چې کوم قوم خپل پیغمبر ﷺ د خپل وطن څخه اوباسی یائې په وتو مجبوره کړی نو بیا دغه قوم هم هلته ډیره په ځائې نشی پریښودې په هغې باندې دالله ﷻ عذاب رازی.

| |
|---|
| أَقِمِ الصَّلٰوةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ إِلٰى غَسَقِ الَّيْلِ |
| قائموه \| مونځ \| دزواله \| دنمر نه \| دتیارې دشپې پورې |
| ته خپل مونځ کوه دنمر راختلونه پس دشپې ترتیارې خوریدو پورې |
| وَقُرْاٰنَ الْفَجْرِ ۖ إِنَّ قُرْاٰنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُودًا ۝ |
| اوپابندی کوه دقرآن دسحر \| بیشکه \| قرآن د سحر \| وی چې حاضرېږی ورته فرښتې |
| اودې نه علاوه د سحرمونځ هم کوه بیشکه د صبا مونځ کول دفرښتو دحاضرۍ وخت دې |
| وَمِنَ الَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ ۖ عَسٰى أَنْ يَّبْعَثَكَ |
| اودشپې دیوې حصې نه \| تهجدکوه \| په دې سره \| نفل دی \| تالره \| قریبه ده \| چې اوبه رسوی تا |
| اودشپې په یوه برخه کښې د تهجدو مونځ هم کوه چې دا ستاد پاره زیاتی مونځ دې امید دې چې |
| رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُودًا ۝ وَقُلْ رَّبِّ أَدْخِلْنِیْ مُدْخَلَ |
| رب ستا \| ځائې \| ستائیلې شوی ته \| اووایه \| چې اے ربه زما \| داخل کړې ما \| په داخلیدو |
| ستارب تاله په مقام محمود کښې ځائې درکړی او اووایه چې ائې زما ربه! ما [په مدینه کښې] |
| صِدْقٍ وَّأَخْرِجْنِیْ مُخْرَجَ صِدْقٍ وَّاجْعَلْ لِّیْ مِنْ لَّدُنْكَ |
| رښتیاوو سره \| اواوباسې ما \| په ایستلو \| رښتیاو سره \| اوجوړ کړه مالره \| دطرف خپل نه |
| په ښه شان داخل کړه او [له مکې نه] ما په عزت سره اوباسه او ماله دخپل طرفنه غلبه |
| سُلْطٰنًا نَّصِيْرًا ۝ وَقُلْ جَآءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ ۖ إِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ |
| یواقتدار \| مددګار \| اووایه \| چې راغې حق \| او ختم شو باطل \| بیشکه باطل \| دی |
| اومدد راکړه او دا اعلان اوکړه چې حق [بس دادې چې] راغلو اوباطل لاړو ورک شو بیشکه باطل خو [هسې هم] |
| زَهُوْقًا ۝ وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْاٰنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ وَّرَحْمَةٌ |
| ځیزدختمیدو \| اونازلوو مونږه \| د قرآن نه \| هغه ځیز \| چې هغه شفاده \| او رحمت دی |
| د ورکیدو ځیز دې اومونږ په قرآن کښې داسې ځیزونه رالیږو چې دمومنانو دپاره شفا |

۱) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية [ج: ۵ ص:۱۰۱]

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لِّلْمُؤْمِنِيْنَ | وَلَا يَزِيْدُ | الظّٰلِمِيْنَ | اِلَّا | خَسَارًا ۝ | |
| دپاره دمومنانو | او نه زیاتوي | ظالمانو لره | مګر | خساره | |

او رحمت دي او د ظالمانو په حق کښې له دې نه هم نقصان زیاتیږي

## آسان ترجمه قرآن

(اې پیغمبره!) د نمر د راختلو د وخت نه د شپې د تیرې پورې مونځ کوه، او د صبا په وخت د قرآن لوستلو اهتمام کوه یاد ساته چه د صبا په تلاوت کښې مجمع حاضریږي او د شپې په څه حصه کښې تهجد کوه کوم چه ستا دپاره یو اضافي عبادت دې امید دې چه ستا رب به تا مقام محمود ته اورسوي. او دا دعا کوه چه: یا ربه! ما چه چرته داخلوې په نیکۍ مې داخل کړه او د کوم ځائې نه چه مې اوباسې په نیکۍ مې ترې اوباسه، او ماته خاص د خپل طرف نه داسې اقتدار راکړه کوم سره چه (ستا) امداد وي او اووایه چه حق راغلو او باطل ختم شو، او یقیناً باطل داسې څیز دې چه ختمیدو والا دې او مونږ هغه قرآن نازلوو کوم چه د مومنانو دپاره د شفاء او رحمت سامان دې، خو د ظالمانو په حصه کښې په هغې سره د نقصان نه سوا بل څیز اضافه نه کیږي.

## خلاصه تفسیر

﴿اَقِمِ الصَّلٰوةَ لِدُلُوْكِ الشَّمْسِ اِلٰى غَسَقِ الَّيْلِ﴾ [دنمرختونه د شپې دتیارې کیدو پورې مونځونه اداکوه] په دې کښې دماسپخین مازیګر ماښام ماسختن څلور مونځونه راغلل لکه چه په حدیث شریف کښې ددې اجمال تفصیل بیان شوې دې ﴿وَقُرْاٰنَ الْفَجْرِ﴾ [اودسحر مونځ هم] اداکوئ ﴿اِنَّ قُرْاٰنَ الْفَجْرِ﴾ [بیشکه دسحرمونځ] ﴿كَانَ مَشْهُوْدًا۝﴾ دفرښتو [دحاضریدو وخت دې] دسحروخت چونکه دخوب نه دبیداریدو وخت دې چه په دې کښې دسستۍ ویره وه په دې وجه ئې داجداکړو اوپه اهتمام سره ئې ددې بیان وکړو او ددۀ یو زیات فضیلت ئې هم بیان کړو چه په دې وخت کښې فرښتې جمع کیږي ددې تفصیل دحدیث نه دامعلوم شو چه انسان دحفاظت اوددۀ دعملونو لیکونکې فرښتې دورځې جدا اودشپې جدا دي دسحرپه مانځه کښې دواړه ډلې جمع کیږي دشپې فرښتې خپل کارختم کړي اود ورځې فرښتې دخپل کار سنبالولو دپاره جمع شي دغه شان دمازیګر په مانځه کښې دواړه ډلې جمع کیږي اوظاهره ده چه دفرښتو اجتماع دبرکت باعث ده ﴿وَمِنَ الَّيْلِ﴾ [اوڅه قدرې دشپې په حصه کښې هم] ﴿فَتَهَجَّدْ بِهٖ﴾ مونځ اداکوه [یعنې په دې کښې مونځ دتهجدکوه کوم چه ستادپاره] دپنځومونځونونه علاوه ﴿نَافِلَةً لَّكَ﴾ [یوزیاتي شې دې] ددې زائدنه مراد دځنو په نزد یو زیاتي فرض دی کوم چه خاص په نبی کریم ﷺ باندې فرض شوي دی اوځنو د زائدنه مراد نفل اخستي دی ﴿عَسٰى﴾ [امید] یعنې وعده ده ﴿اَنْ يَّبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُوْدًا۝﴾ [چه ستا رب به تاته په مقام محمود کښې ځائې درکړي] دمقام محمودنه مراد د شفاعت کبرٰی مقام دې کوم چه په محشر کښې به دټولو بنیادمو دپاره نبی کریم ﷺ ته ورکولې شي ﴿وَقُلْ رَّبِّ﴾ [اوته دادعاء کوه چه اے زماربه] دمکې دتلو نه پس ﴿اَدْخِلْنِيْ مُدْخَلَ صِدْقٍ﴾ [مالره] کوم ځائې ته چه بوتلل وی [په خوبئ] یعنې راحت [سره ورسوې او] کله چه دمکې نه بوتلل وی نو ﴿وَّاَخْرِجْنِيْ مُخْرَجَ صِدْقٍ﴾ [مالره په خوبئ] یعنې راحت [سره بوځې] ﴿وَّاجْعَلْ لِّيْ مِنْ لَّدُنْكَ﴾ اومالره دخپل طرف نه [په دې کفارو ﴿سُلْطٰنًا

نَصِیْرًا﴾ [داسي غلبه راکړې چه ورسره ] ستا [نصرت ] اومدد [وی] چه دغه غلبه پرې پائیداره اوترقی بذیره وی ورنه عارضی غلبه خوکله کافرانو ته هم کیدې شي مګر دهغې سره دالله تعالی نصرت نه وی په دې وجه پائیداره نه وی ﴿وَقُلْ﴾ [اووایه چه ] ﴿جَآءَ الْحَقُّ﴾ بس اوس دین [حق ] غالبیدولره [راغې ﴿وَزَهَقَ الْبَاطِلُ ؕ﴾ اوباطل لاړو ختم شو ﴿اِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوْقًا۝﴾ واقعی باطل شې هم دغسې ځی راځی ] دهجرت نه پس مکه فتح شوه نو داټولې وعدې پوره شوې ﴿وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْاٰنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ وَّرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ۙ﴾ [اومونږ داسې شې یعنی قرآن نازلوو چه دغه دایما ندارو په حق کښې خوشفا او رحمت دې ] ځکه چه دغه خلق دامنی اوبه دې عمل کوی چه په دې سره په دوی رحمت کیږی اودباطلوعقیدو اوفاسدو خیالاتو نه شفا وی ﴿وَلَا يَزِيْدُ الظّٰلِمِيْنَ اِلَّا خَسَارًا۝﴾ [اوظالمانولره په دې سره اولټه نقصان زیاتیږی] چه کله دغه خلق دانه منی نو دالله تعالی دقهر وعذاب مستحق شی.

## معارف او مسائل

**د دښمنانو د دهوکه کولو او دهغوئ د هوکې ځخه دبچ کیدلو دټولو ځخه زیات غوره علاج مونځ دې ::**
تیرو شوؤ آیتوو مبارکو کښې د اسلام د دښمنانو د مخالفت او رسول الله ﷺ لره په مختلف قسمه تکلیفونو کښې د راګیرولو تدبیرونه اودهغې جواب بیان شوې دې . دې ځخه روستو په دې اوسنو آیتونو کښې رسول کریم ﷺ ته د مونځ د قائمولو په حکم ورکولو کښې دې ته اشاره ده چې ددښمنانو د مکرونو او فریبونو اودهغوئ د تکلیفونو ځخه دخلاصیدو بهترین علاج مونځ قائمول دی . لکه د سورة حجر په آیت کښې ددې ځخه زیات په واضح الفاظو سره دا ارشاد شوې دې چې ﴿وَلَقَدْ نَعْلَمُ اَنَّكَ يَضِيْقُ صَدْرُكَ بِمَا يَقُوْلُوْنَ ۝ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَكُنْ مِّنَ السّٰجِدِيْنَ ۝﴾ [اومونږ ښه پوهیږو چې ددوئ په ویناګانو باندې ستا زړه تنګیږی | نو ته د خپل رب تعریف سره پاکی بیانوه | او سجده کونکو خلقو کښې شامل شه ] [قرطبی] .(۱)
دې آیت مبارك کښې د دښمنانو زیانونو علاج د الله ﷻ په ذکر ، حمد ، تسبیح او مونځ کښې مشغول کیدل ګرځولې دې . دالله ﷻ ذکر او مونځ بالخاصه دې ځخه دبچ کیدو علاج دې او دا هم ځه لرې خبره نه ده چې د دښمنانو د ضررنو ځخه بچ کیدل دالله ﷻ په مدد سره کیږی . د کوم د حاصلولو چې د ټولو ځخه زیات ځوره ذریعه مونځ دې لکه قرآن کریم فرمائی چې :
﴿وَاسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ؕ﴾ [مدد حاصلوئی د صبر او مونځ په ذریعه]

**دپنځه وخته مونځ حکم:**: د تفسیر جمهورو امامانو ﷭ دا آیت مبارك د پنځو مونځونو دپاره تول ارخیز حکم ګرځولې دې ، ځکه چې د دلوك لفظ اګر چې د ځرخیدو معنی ورکوی خو نمر خرخیدل د زوال دوخت ځخه شروع کیږی . او د نمر ډوبیدو ته هم وئیلې شی لیکن جمهورو صحابه کرامو ﷡ اوتابعینو ﷭ دلته لفظ د دلوك د نمر دزوال په معنی اخستې دې لکه قرطبی مظهری او ابن کثیر(۲) ئې تفصیل سره بیان کړې دې

(۱) تفسیر القرطبی [ ج:۱۰ص:۳۰۳]
(۲) تفسیر القرطبی [ ج:۱۰ص:۳۰٤]و تفسیر المظهری[ج:۵ص:٤٦٥] تفسیر ابن کثیر [ج: ۵ ص:۱۰۱]

﴿إِلَىٰ غَسَقِ اللَّيْلِ﴾ غسق د شپې مكمل تياره كيدو معنى وركوى او امام مالك رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما څخه د غسق هم دا تفسير نقل كړې دې.

په دې ﴿لِدُلُوكِ الشَّمْسِ إِلَىٰ غَسَقِ اللَّيْلِ﴾ كښې څلور د ماسپخين مازيګر ماښام او ماسختن مونځونه راغلل په دې كښې د دوؤ مونځونو ړومبې هم داسې اوخودلې شو چې دماسپخين وخت نمر ځرخيدو څخه شروع كيږى. او دماسخوتن وخت د ﴿غَسَقِ اللَّيْلِ﴾ څخه شروع كيږى. څه وخت چې د شپې تياره مكمله شى، ځكه امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله د عشاء يعنى ماسختن دشروع كيدو وخت هغه ګرځولې دې كله چې د سور شفق څخه روستو سپين شفق هم ډوب شى، دا خو تول پيژنى چې دنمر ډوبيدو سره متصل د آسمان په كناره باندې يوه سرخى راښكاره شى، وروسې د آسمان په غاړه باندې يو قسم سپينوالې راخور شى، بيا هغه سپينوالې هم ډوب شى، داښكاره خبره ده چې د شپې تياره هله مكمل كيږى چې د آسمان غاړې هغه سپينوالې هم ختم شى، ځكه دې لفظ كښې د امام اعظم ابى حنيفه رحمه الله مسلك ته اشاره موندې شى، ځينو امامانو رحمهم الله د ﴿غَسَقِ اللَّيْلِ﴾ تفسير په سوروالى ختميدو سره كړې دې او د غه ئې دماسپخين د شروع كيدو وخت ګرځولې دې.

﴿وَقُرْآنَ الْفَجْرِ﴾ دلته د قرآن لوستلو څخه مونځ كول مراد اخستې شوى دى ولې چې قرآن كريم د مونځ زياته ضرورى حصه ده، د تفسير اكثرو امامانو ابن كثير رحمه الله، قرطبى رحمه الله او مظهرى وغيره هم دا معنى ليكلې ده، [1] په دې بنا د آيت مبارك مطلب دا شو چې په ﴿لِدُلُوكِ الشَّمْسِ إِلَىٰ غَسَقِ اللَّيْلِ﴾ كښې د څلورو مونځونو بيان دې، دا دپنځم مونځ د صبا بيان دې. ددې په ځان له بيان كولو كښې ددې اهميت او غوروالى ته اشاره شوې ده.

﴿كَانَ مَشْهُودًا﴾ مشهود لفظ د شهادت څخه مشتق دې، معنى ئې حاضريدل دى، دې وخت كښې د صحيح احاديثو د ښكاره بيان په جوړ د شپې او ورځې د فرښتو دواړه ډلې سره يو ځائې كيږى او د صبا په مونځ كښې حاضرې وى ځكه ورته مشهود وئيلې شوى دى. [2] په دې آيت كښې د پنځو مونځونو حكم په اجمالى ډول سره شوې دې چې مكمل تفسير او تشريح ئې رسول كريم ﷺ په خپل قول او فعل مبارك سره كړې ده او تر څو پورې چې په دې تشريح باندې عمل اونه كړې شى، هيڅوك د سره مونځ ادا كولې نشى، نه ده معلومه چې څوك په قرآن پاك باندې بغير د حديث او د نبى كريم ﷺ د بيان څخه دپوهيدلو دعوى كوى؟ هغوئ مونځ څنګه كوى؟

دغه شان پدې آيت مبارك كښې د مونځ دننه د قرآن پاك د لوستلو اجمالى بيان هم راغلې دې. ددې تفصيل د رسول كريم ﷺ دقول او عمل مبارك څخه دا ثابت شو چې د فجر يعنى صبا په مونځ كښې دې تر خپله وسه اوږد قرات كولې شى او په ماسپخين او جمعه كښې ددې څخه كم او په مازيګر او ماسختن كښې درميانه او په ماښام كښې ډير مختصر، په ځينو روايتونو كښې چې دصبا په مونځ كښې مختصر او د ماښام په مونځ كښې اوږد قرات راغلې دې هغه عملاً پرېښودلې شوې دې.

---

[1] تفسير القرطبى [ ج:۱۰ص:۳۰٤] و تفسير المظهرى[ج:٥ص:٤٦٥] تفسير ابن كثير [ج:٥ ص:۱۰۱]

[2] صحيح البخارى كتاب الأذان، باب فضل صلاة الفجر فى جماعة [ج:۱ص:۹۰]

امام قرطبی رحمه الله د صحیح مسلم هغه روایت نقل کړې دې چې په کوم کښې چې د ماښام په مونځ کښې د سورة اعراف او مرسلات وغیره اوږدو سورتونو لوستلو بیان راغلې دې ، یا د صبا په مونځ صرف د معوذتینو لوستل راغلی دی د هغې څخه روستو ئې فرمائیلی دی چې :
﴿فمتروك بالعمل والانكار على معاذ التطويل وبأمره الائمة بالتخفيف﴾ [ چې دا عملا څکه پرینښودلې شوی دی چې رسول کریم ﷺ د معاذ اوږد مونځ ته ښه نه دی وئیلی او امامانو ته ئې د سپك او مختصر قرات کولو حکم کړې دې او پخپله ئې هم مختصر قرات وئیلې دې]. (١)

**د تهجدو د مونځ وخت او ددې حکمونه او مسائل:** ﴿وَمِنَ الَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهِ﴾ تهجد د هجود څخه مشتق دې ، دوه متضاد معنې ورکوی ، دا ضدادو څینې دې . یعنی ددې معنی اوده کیدل هم ده او بیداریدل هم ده ، دلته ددې جملې معنی داده چې دشپې په څه حصه کښې قرآن کریم سره بیدار اوسه څکه چې د به ضمیر قرآن کریم ته راجع دې . [مظهری] (٢)
قرآن کریم سره د بیداریدو مطلب مونځ ادا کول دی چې ورته د شریعت په اصطلاح کښې د تهجد مونځ وئیلې شی . ددې مفهوم عموما دا اخستې شوې دې چې د ماسختن د مونځ څخه روستو لږ شان اوده شی او بیا راپاسی او مونځ اوکړی ، دې ته د تهجد مونځ وئیلې شی . لیکن په تفسیر مظهری کښې راغلی دی چې د آیت مبارك مفهوم صرف دومره دې چې دشپې په څه حصه کښې مونځ دپاره اوده کیدل پریږدئی . ددې اطلاق په هم دې کیږی چې دماسختن د مونځ څخه پس لږ شان اوده شی او بیا راپورته شی دا مونځ اوکړی . یا بغیر اوده کیدو څخه د ماسختن د مونځ څخه روستو څه مونځ اوکړی چې دا هم په خوب روستو کولو سره مونځ اداکول دی . په دې بنا تهجد دپاره د وړاندې اوده کیدو شرط باندې قرآن کریم څه دلالت نه کوی ، بیا د څینې روایتونو دحدیث څخه هم د تهجدو په دې عامه معنی باندې دلیل نیولې شوې دې .
او امام ابن کثیر رحمه الله چې حسن بصری رحمه الله څخه د تهجد د مونځ کوم تعریف کړې دې هغه هم په دې عموم باندې ګواه دې . دهغې الفاظ دادی :
﴿قال الحسن البصري هو ما كان بعد العشاء ويحمل على ما كان بعد النوم [ابن کثیر]﴾ (٣) [ حسن بصری رحمه الله فرمائیلی دی چې د تهجد مونځ هر هغې مونځ ته وئیلې شی چې د ماسختن د مونځ څخه روستو کولې شی البته د خلقو دطریقې په جوړ دې ته وئیلې شی چې د څه قدرې خوب څخه روستو کولې شی]
حاصل ئې دادې چې د تهجد اصل مفهوم دا نه دې چې خامخا د ماسختن مونځ څخه روستو لږ شان خوب کولو څخه روستو ادا کړې شی . او دقران کریم په الفاظو کښې هم دا شرط موجود نه دې . خو عموما نبی کریم ﷺ او صحابه کرامو رضي الله عنهم د تهجد مونځ هغه وخت کړې دې چې دا مونځ بڈئې په آخر د شپې کښې د رابیداریدو څخه روستو ادا کولو څکه افضل صورت به هم دغه وی .

(١) تفسیر القرطبي [ ج:١٠ص:٣٠٦]
(٢) تفسیر المظهری [ج:٥ص:٤٦٦]
(٣) تفسیر ابن کثیر [ج: ٥ ص:١٠٣]

**د تهجد مونځ فرض دې وکه نفل:** ﴿نَافِلَةً لَّكَ﴾ دنفل او ﴿نَافِلَةً﴾ لفظي معنی زياتي ده، ځکه داسې مونځ او هغې صدقې خيرات ته نفل وئيلې شي چې د شريعت تر مخه واجب و ضروري نه وي، ددې په کولو کښې ثواب وي او په نه کولو کښې ئې نه څه خرابي وي او نه څه گناه وي. دلته په آيت مبارك کښې د ﴿نَافِلَةً﴾ لفظ نه په ظاهره دا مطلب اخستې شي چې د تهجد مونځ په خصوصيت سره نبی کريم ﷺ دپاره نفل دې، سره ددې چې په نفل کيدو کښې نبی کريم ﷺ او ټول امت شريك دې. ځکه ځينې مفسرينو حضراتو ﷭ دلته ﴿نَافِلَةً﴾ د فريضة صفت گرځولو سره معنی دا کړې ده چې په عام امت باندې خو صرف پنځه مونځونه فرض دی، مگر په نبی کريم ﷺ تهجد هم يو زياتي فرض دی. په دې بنا دلته د ﴿نَافِلَةً﴾ د زياتي فرضو معنی ورکوی، د نفلو عامه معنی نه ورکوی.

ددې معاملې صحيح تحقيق دادې چې کله سورهٔ مزمل د اسلام په شروع کښې نازل شو نو دغه وخت صرف د تهجد مونځ په ټولو فرض وو، پنځه مونځونه لا فرض شوی نه وو. ځکه په سورهٔ مزمل کښې هم بيان دغه فرضو دې چې بيا کله د معراج په شپه پنځه مونځونه فرض شوی نو د هغې څخه روستو په امت باندې د تهجد فرض والې خو په اتفاق سره منسوخ شو، البته په دې کښې اختلاف شته دې چې په نبی کريم ﷺ باندې دا فرض پاتې اوکه نه؟ نو د ﴿نَافِلَةً لَّكَ﴾ دا معنی واخستې شوه چې تهجد د نبی کريم ﷺ په ذمه زياتي فرض دی. خو په تفسير قرطبی کښې راغلی دی چې د څو وجوهاتو څخه دا صحيح نه ده.

اول دا چې فرضو ته د نفلو وئيلو هيڅ وجه نشی کيدې که څوك ورته مجاز وائی دا به داسې مجاز وی چې حقيقت نه لری.

بله دا چې په صحيح احاديثو کښې صرف پنځو تاکلو مونځونو ته فرض وئيلې شوی دی او د يو حديث پاك په آخر کښې دا بيان هم راغلې دې چې دمعراج په شپه چې اول پنځوس مونځونه فرض کړې شو وو او بيا په تحفيف کولو سره پنځه پاتې شو، اگر چې شمير خو يې کم کړې شو خو ثواب ئې هم هغسې د پنځوسو مونځونو په ځائې پرينښودې شو بيا فرمائی چې: ﴿لَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ﴾ [زما خبره بدليدونکې نه ده] په شمير مې اگرچې پنځوس مونځونه پنځه کړل خو په ثواب کښې به د پنځوسو مونځونو برابر وی. (١)

ددې روايتونو حاصل دادې چې په عام امت او پخپله په رسول کريم ﷺ باندې هم د پنځو مونځونو څخه سوا بل څه فرض مونځ نشته بله وجه دا هم ده چې که ﴿نَافِلَةً لَّكَ﴾ کښې د ﴿نَافِلَةً﴾ معنی زياتې فرض واخستې شی نو بيا خو د لك په ځائې ورسره عليك لگول پکار وو چې په فرضوالی ئې دلالت کوی ولې چې لك خو د روا والی او د اجازت دپاره استعماليږی.

دغه شان په تفسير مظهری کښې هم دې ته صحيح وئيلې شوی دی چې د تهجدو فرضوالې د نبی کريم ﷺ او دامت دواړو باره کښې منسوخ شوې دې. البته په دې صورت کښې دا سوال پيدا کيږی چې بيا د ﴿نَافِلَةً لَّكَ﴾ مطلب څه شو؟ نو ددې جواب دادې چې د امت نفل مونځونه او نور نفلی عبادات د گناهونو کفاره او په فرض مونځونو کښې د پاتې شوې کمۍ او د

---

(١) تفصيل دپاره اوگورئ:-صحيح البخاری کتاب الصلاة،باب کيف فرضت الصلاة [ج:١ص:٥٠]

کړي کوتاهئ د مکمل کولو کار ورکوی څنګه چې د صحیح احادیثو څخه ثابته شوه. خو نبی کریم ﷺ د ګناهونو څخه پاك دي، د مونځ په آدابو کښې څه کمي یا کوتاهی .ترې هم نه کیږی څکه نبی کریم ﷺ دپاره دا خالص نفلی مونځ شو چې زیات نزدیکت ئې الله ﷻ ته راولی .[قرطبی ومظهری].([1])

**دتهجدو مونځ نفل دې او که سنت مؤکده**:: دفقهاء کرامو ﷭ د عامې ضابطې په جوړ درسول کریم ﷺ هغه عمل مبارك چې همیشه ئې کړی وی او بې دڅه مجبورئی څخه ئې نه وی پریښودې ، سنت مؤکده بللې شی. داسې څه شرعی دلیل سره ثابت نشی چې دا عمل نبی کریم ﷺ دپاره مخصوص وو ، عام امت دپاره نه وو. نو ددې ضابطې تقاضا په ظاهره داده چې د تهجد مونځ هم ټولو دپاره سنت مؤکده اوګرځولې شی نو یوازې نفل ولې چې دا مونځ نبی کریم ﷺ همیشه دپاره کړې دې چې دسنت متواتره څخه ثابت دی. او د خصوصیت څه دلیل ئې نشته دې. په دې بنا عام امت دپاره هم دا مونځ سنت مؤکده کیدل پکار دی ، په تفسیر مظهری کښې ئې دا مختار او راجح یعنی غوره ګرځولې دې ، او ددې په مؤکد کیدو باندې ئې د ابن مسعود ﷺ روایت کړې هغه حدیث پاك د لیل ګرځولې دې چې په کوم کښې چې نبی کریم ﷺ دداسې یو سړی باره کښې فرمائیلی دی چې شیطان دهغه په غوږونو کښې متیازې کړی دی ،([2]) کوم به چې اول تهجد کول او بیا ئې پریښودل ، ولې چې دومره وعید زورنه او خبردارې ورکول صرف د نفل په پریښودو نه وی نو معلومه شوه چې دا سنت مؤکده دی.([3])

او کومو حضراتو ﷭ چې تهجد خالص نفل وئیلی دی نو هغوئ همیشه دپاره ادا کول ئې د نبی کریم ﷺ خصوصیت بولی ، او دا پورته بیان شوې زورنه مطلقا د تهجد په پریښودو نه ده بلکه فرمائی چې هغه د عادت جوړولو څخه روستو تهجد کول پریښودی وو. څکه چې د امت په اتفاق سره کوم نفل چې عادت اوګرځولې شی نو هغه پریښودل داسې شوه چې ګویا مخ ئې ترې واړولو څکه پرې ملامت کړې شو او زورنه ورکړې شوه ورنه چې شروع نه د چا عادت نه وی ګرځیدلې نو په پریښودو ئې هیڅ ملامتیا او زورنه نشته دې ، والله اعلم.

**دتهجد د رکعتونو تعداد**:: صحیح بخاری او مسلم کښې د عائشه صدیقه ﷺ څخه روایت دې چې نبی کریم ﷺ به په رمضان المبارك اوغیررمضان المبارك کښې دیوؤلسو رکعتونو څخه زیات چرې دشپې مونځ نه کولو([4]) دې کښې به اته رکعته د تهجدو او درې رکعته به وتر وو. د صحیح مسلم په روایت کښې دی چې عائشه صدیقه ﷺ څخه دا الفاظ هم نقل دی چې نبی کریم ﷺ به دیارلس رکعتونه کول چې په کښې وترو سره د صبا دوه رکعته سنت هم شامل کړې شوی دی. [مظهری].([5])

---

[1]) تفسیر القرطبی [ ج:۱۰ص:۳۰۹]
[2]) صحیح البخاری کتاب التهجد ،باب أذا نام ولم یصل بال الشیطان فی اذنه إلخ [ج:۱ص:۱۵۳]
[3]) تفسیر المظهری[ج:۵ص:٤٦٨]
[4]) صحیح البخاری کتاب التهجد ،باب قیام النبی ﷺ باللیل فی رمضان وغیره [ج:۱ص:۱٥٤]
[5]) صحیح مسلم کتاب صلاة المسافرین وقصرها، باب صلاة اللیل وعدد رکعات النبی ﷺ [ج:۱ص:۲۵۵]

د صبا سنت ئې د رمضان په وجه د شپې په مونځ کښې شامل کړې دی. ددې روایتونو څخه معلومه شوه چې درسول کریم ﷺ عادت مبارک دا وو چې تهجد به ئې اته رکعتونه کول. خو د عائشه صدیقه رضی الله عنها د یو روایت څخه دا هم ثابت دی چې کله کله نبی کریم ﷺ څلور یا شپږ رکعتونه هم اوکړل. څنګه چې په صحیح بخاری کښې د امنقول دی چې مسروق رحمه الله د عائشه صدیقه رضی الله عنها نه د تهجد د رکعتونو د تعداد باره کښې تپوس اوکړو نو وې فرمائیل چې اووه، نهه، او یوولس رکعتونه ئې کړی دی چې دوه رکعته په کښې د صبا سنت شامل نه دی [مظهری د بخاری څخه](۱) د احنافو رحمهم الله دقاعدې مطابق درې رکعته وتر په دې کښې شامل دی، مطلب دا چې څلور، شپږ یا یوولس رکعته تهجد ئې کړی دی.

**د تهجد د مونځ کیفیت** :: چې د عامو روایتونو د حدیث څخه ثابت دی هغه دا دی چې نبی کریم ﷺ به اول کښې دوه رکعته سپك داسې ادا کړل چې قرات به ئې په کښې کم وو، نورو رکعتونو کښې به ئې قرات هم اوږد لوستلو او رکوع او سجده به ئې هم اوږده کوله. خو دغه اوږدوالې بهٔ کله کم او کله زیات وو. [دا خلاصه د حدیث پاك دهغه روایتونو ده چې په تفسیر مظهری کښې نقل کړې شوې ده].

**مقام محمود** :: دې آیت مبارك کښې نبی کریم ﷺ سره د مقام محمود وعده کړې شوې ده کوم چې په ټولو پیغمبرانو علیهم السلام کښې هم د نبی کریم ﷺ دپاره خاص دې. ددې په تفسیر کښې ډېر اقوال موجود دی. خو صحیح هغه دې کوم چې په صحیح احادیثو کښې د نبی کریم ﷺ څخه منقول دې چې دا د شفاعت کبری مقام دې. کله به چې به میدان حشر کښې ټول بنیادم راجمع شي او د هر پیغمبر علیه السلام څخه به د شفاعت کولو خواست اوکړي، ټول پیغمبران علیهم السلام به عذر اوکړي، صرف نبی کریم ﷺ ته به دا شرف بخښلې شي چې د ټولو بنیادمو شفاعت به اوکړي،(۲) د حدیث په روایتونو کښې ددې تفصیل اوږد دې چې هم په دې مقام کښې ابن کثیر او مظهری لیکلې دې.(۳)

**د پیغمبرانو علیهم السلام او امت د نیکانو خلقو شفاعت به قبلولې شي** :: د اسلامی فرقو څینې خوارج او معتزله د پیغمبرانو علیهم السلام د شفاعت څخه منکر دی، هغوئ وائي چې لویه ګناه بهٔ د هیچا په شفاعت سره نه معاف کیږي. خو متواتر احادیث په دې باندې ګواه دی چې د پیغمبرانو علیهم السلام بلکه د امت نیکان خلق به هم دګناهګارو شفاعت کوی او دا بهٔ قبلولې شي او پدې شفاعت سره بهٔ د ګناهګارو ګناهونه معاف کولې شي.

ابن ماجه او بیهقی کښې په روایت د عثمان رضی الله عنه منقول دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې دقیامت په ورځ به اول پغمبران علیهم السلام د ګناهګارو شفاعت کوی. بیا عالمان، بیا شهیدان.(۴) او دیلمی دابن عمر رضی الله عنهما څخه روایت نقل کړې دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: عالم ته به

(۱) صحیح البخاری کتاب التهجد، باب کیف کان صلاة النبی ﷺ [ج:۱ص:۱۵۳]
(۲) صحیح البخاری کتاب الرد علی الجهمیة وغیرهم التوحید، باب قول الله تعالی (وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ الخ)[ج:۲ص:۱۱۰۵]
(۳) تفسیر المظهری[ج:۵ص:۴۷۲]
(۴) سنن ابن ماجة، ابواب الزهد، باب ذکر الشفاعة [ج:۲ ص:۳۱۹ ] و شعب الإیمان للبیهقی السابع عشر من شعب الإیمان فصل فی فضل العلم إلخ رقم الحدیث[۱۶۶۸]

اوونیلې شي چې تاسو د خپلو شاګردانو شفاعت کولې شئ اګر چې دهغوئ شمیر د آسمان د ستورو هومره وی .(۱)

او په روایت د ابی الدرداء رضي الله عنه ، ابوداؤد او ابن حبان مرفوعا نقل کړی دی چې د شهید شفاعت به د هغه دخاندان د اویا کسانو په باره کښې قبلولې شی .(۲)

مسند احمد رحمه الله ، طبرانی رحمه الله او بیهقی رحمه الله په صحیح سند سره د ابی امامه رضي الله عنه نه روایت نقل کړې دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې زما دامت د یو کس په سفارش به د ربیعه او مضر قبیلې د ټولو خلقو نه زیات خلق په جنت کښې داخلولې شی .(۳)

**یو سوال او دهغې جواب** :: د لته دا سوال پیدا کیږی چې کله به پخپله نبی کریم ﷺ شفاعت اوکړی ، او د نبی کریم ﷺ په شفاعت سره به هیڅ یو مؤمن په دوزخ کښې پاتې نشی ، نو بیا به د امت د عالمانو او نیکانو شفاعت نه دپاره او څنګه وی ؟

تفسیر مظهری لیکلی دی چې ددې صورت به غالبا دا وی چې عالمان او نیکان خلق چې د چا شفاعت کول غواړی ، هغوئ به خپل شفاعت درسول کریم ﷺ په خدمت کښې وړاندې کړی ، بیا به ئې نبی کریم ﷺ د الله ﷻ په دربار کښې شفاعت کوی.(۴)

**فائده** :: یو حدیث پاك کښې راغلی دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل : ﴿شفاعتي لاهل الکبائر من امتي﴾(۵) زما شفاعت به زما دامت هغې خلقو د پاره وی چې لوئې ګناهونه ئې کړی وی . دې نه په ظاهره دا معلومیږی چې د لویو ګناه کوؤنکو شفاعت به خاص نبی کریم ﷺ پخپله کوی ، څوك فرښته یا بل څوك امتی به د کافر او لویو ګناهګارو شفاعت نشی کولې ، بلکه د امت نیکان خلق به د هغه چا شفاعت کولې شی چې واړه ګناهونه ئې کړی وی .

**د تهجدو مونځ په مقام د شفاعت کښې خاص دخل لری** :: مجدد الف ثانی رحمه الله فرمائیلی دی چې په دې آیت مبارك کښې نبی کریم ﷺ ته اول د تهجد د مونځ حکم ورکړې شوې دې ، بیا د مقام محمود یعنی د شفاعت کبری وعده ورسره کړې شوې ده . دې نه معلومه شوه چې د تهجد مونځ دشفاعت دمقام په حاصلیدو کښې خاص دخل لری .(۶)

﴿وَقُل رَّبِّ أَدْخِلْنِي﴾ په تیرو شوؤ آیتونو کښې اول د مکې د کافرانو د زیانونو ورکولو او دهغې تدبیرونو ذکر وو چې رسول کریم ﷺ ته د تکلیف رسولو دپاره به یې کول د هغې سره دا هم بیان شو چې ددوئ دغه تدبیرونه بهٔ کامیاب نشی او د دوئ په مقابله کښې رسول کریم ﷺ ته ئې د اصل تدبیر په درجه کښې خو صرف د پنځه وخته مونځ قائمولو او د تهجدو کولو خودنه اوکړه . وروستو ئې په آخرت کښې ورته د ټولو پیغمبرانو ﷺ نه د زیات اعلی مقام یعنی مقام محمود ورکولو وعده اوفرمائیله چې په آخرت کښې به پوره کړې شی په دې آیت

---

(۱) تفسیر المظهری[ج:۵ص:۴۸۰] والفردوس بما ثور الخطاب للدیلمی رقم الحدیث:۸۸۳۹

(۲) سنن ابوداود، کتاب الجهاد ، باب فی التشهد یشفع [ج:۲ص:۳۴۱]

(۳) المعجم الکبیر للطبرانی رقم الحدیث [۷۹۸۳] و مسند احمد رقم الحدیث [۱۷۱۸۳]

(۴) تفسیر المظهری[ج:۵ص:۴۸۰، ۴۸۱]

(۵) سنن ابوداود، کتاب السنة ، باب ذکر البعث والصور والشفاعة [ج:۲ص:۶۵۲]

(۶) تفسیر المظهری[ج:۵ص: ۴۸۱]

مبارك ﴿وَقُل رَّبِّ﴾ كښې الله ﷻ هم په دې دنيا كښې ورته د كافرانو د دهوكو او زيانونو نه د خلاصولو تدبير ، مدينې منورې ته د هجرت كولو په صورت كښې اوخودلو ، دې پسې ئې ورته په ﴿وَقُلْ جَآءَ الْحَقُّ﴾ فرمائيلو سره د مكې مكرمې د فتح كيدو زيرې وركړو.

جامع ترمذی شريف كښې دعبدالله بن عباس رضی الله عنه څخه روايت دې چې نبی كريم ﷺ په مكه مكرمه كښې وو ، بيا ورته د مدينې منورې دهجرت كولو حكم وركړې شو ، په دې باندې دا آيت مبارك نازل شو: ﴿وَقُل رَّبِّ أَدْخِلْنِي مُدْخَلَ صِدْقٍ وَأَخْرِجْنِي مُخْرَجَ صِدْقٍ﴾ (۱)

په دې كښې لفظ د ﴿مُدْخَلَ﴾ او ﴿مُخْرَجَ﴾ دواړه اسم ظرف دی چې معنی ئې د ننوتو او وتو ځائې دې ، دې سره د صدق لفظ زياتول دا معنی وركوی چې ننوتل او وتل دواړه دې په خير خوبئ سره وی ، ولې چې لفظ د صدق په عربئ ژبه كښې د هر داسې كار دپاره استعماليږی چې په ظاهره او باطنه درست اوبهتر وی ، قرآن كريم كښې قدم صدق لسان صدق او مقعد صدق هم پدې معنی كښې استعمال شوی دی. د داخليدو ځائې څخه مراد مدينه منوره ده او د خارجيدو ځائې څخه مراد مكه مكرمه ده. مطلب دا شو چې يا الله په مدينه منوره كښې دې زما داخليدل په خير خيريت سره وی چې د طبيعت څخه خلاف او ناخوښه واقعه راته راپيښه نشی. او دمكې مكرمې څخه وتل زما په خير خيرت سره اوشی ، وطن او كور كلی پورې مې زړه تړلې شوې پاتې نشی. ددې آيت مبارك په تفسير كښې څه نور اقوال هم راغلی دی. خو دا تفسير حسن بصری رحمه الله او قتاده رحمه الله څخه منقول دې. ابن كثير رحمه الله ورته د ټولو څخه صحيح قول وئيلې دې.(۲) ابن جرير رحمه الله هم دا اختيار كړې دې. د ترتيب په لحاظ سره خو اول مخرج بيا مدخل فرمائيل پكار وو خو د لته په وړاندې روستو كولو كښې دې ته اشاره موندې شی چې مكې مكرمې څخه وتل پخپله څه مقصد نه وو بلكه د بيت الله شريف پرېښودل د انتهائی غم خفگان خبره وه ، البته اسلام او مسلمانانو دپاره د امن ځائې لټول مقصود وو چې مدينې منورې ته د اخليدو په ذريعه د حاصليدو اميد ئې وو ځكه اول مقصد پوره كړې شو.

**فائده : اهمو مقصدونو دپاره قبليدونكې دعا:** مدينې منورې ته د هجرت كولو په موقعه ، الله ﷻ رسول كريم ﷺ ته ددې دعا خودنه كړې وه چې مكې مكرمې څخه وتل بيا مدينې منورې ته رسيدل دواړه دې په خير خيرت سره وی ، نو ددې دعا په نتيجه كښې الله ﷻ په هر قدم باندې د وروسته تلونكو كافرانو د شر او د رالاندې كولو څخه اوساتل او په ظاهره باطنه ئې مدينه منوره ، نبی كريم ﷺ او ټولو مسلمانانو دپاره سازگاره جوړه كړه. ځكه ځينې علماء كرامو رحمهم الله فرمائيلی دی چې هر مسلمان دې دا دعا د ټولو مقصدونو په شروع كښې ياد لری او دا دعا دې كوی ، ځكه چې دا ډيره مفيده دعا ده ، ددې دعا تكمله وروستې جمله ده: ﴿وَاجْعَل لِّي مِن لَّدُنكَ سُلْطَانًا نَّصِيرًا ۝﴾.

قتاده رحمه الله فرمائيلی دی چې نبی كريم ﷺ ته دا معلومه وه چې د پيغمبرئ د منصب فرض ادا كول او ددښمنانو په چاپير [ماحول] كښې كار كول پخپل وس سره سر ته نشی رسولې كيدې ،

---

(۱) جامع الترمذی ، ابواب التفسير ، باب من سورة بنی اسرائيل [ج:۲ ص: ۱۴۶]

(۲) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۵ ص:۱۱۱]

ځکه یې د الله ﷻ څخه د غلبې او نصرت دعا اوکړه چې قبوله شوه او دهغې نښې نخښانې د ټولو مخې ته راغلې.

﴿وَقُلْ جَآءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ﴾ دا آیت مبارك د هجرت څخه روستو د فتح مکه په باره کښې نازل شو. ابن مسعود رضي الله عنه فرمائیلی دی چې د فتح مکه په ورځ ځه وخت چې نبی کریم ﷺ په مکه مکرمه باندې ور داخل شو نو دغه وخت د بیت الله شریف څخه ګیر چاپیره درې سوه شپیته بتان اودرولې شوی وو. ځینې علماء کرام ددې خاص شمیر وجه دا خودلې ده چې دمکې مشرکانو به د کال جدا جدا ورځې دپاره جدا جدا بتان ټاکل چې په هغه ورځ به ئې دهر بت عبادت کولو [قرطبی].([1])

دوئ چې کله ورته ور اورسیدل نو دا آیت مبارك ئې په ژبه وو ﴿وَقُلْ جَآءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ﴾ او خپل لرګی سره به ئې یو یو بت په سینه کښې وهلو، [بخاری ومسلم].([2])

ځینې روایتونو کښې راغلی دی چې دغې ګونټئ ته په بیخ کښې د قلعی یا اوسپنې کوکه لګیدلې وه. نبی کریم ﷺ به چې کوم بت په هغې سره په سینه اووهلو نو هغه به پرې وتلو. چې ټول بتان دغسې پریوتل نو بیا ئې دهغې د ماتولو حکم ورکړهو[ قرطبی په حواله د قاضی عیاض او قشیری].([3])

**شرك، کفر او د باطل رسمونه اونښې نښانې ورانول واجب دي:** امام قرطبی رحمه الله فرمائیلی دی چې پدې آیت مبارك کښې ددې دلیل دې چې د مشرکانو بتان او نورې مشرکانه نخښې ورانول واجب دی، او ټولې هغه باطلې آلې چې صرف د ګناه کولو په کار راوستې شی دهغې ورانول او ماتول هم ددې په حکم کښې دی، ابن منذر رحمه الله فرمائیلی دی چې کوم تصویرونه او مجسمې چې لرګی پیتلو وغیره څخه جوړولې شی هغه هم دبتانو په حکم کښې دی، نبی کریم ﷺ هغه پرده اوشلوله چې تصویرونه پرې رنګ او نقش سره جوړ کړې شوی وو. دې څخه د عامو تصویرنو حکم معلوم شو، عیسی علیه السلام به چې آخره زمانه کښې تشریف راوړی نو د صحیح حدیث په جوړ صلیب به مات کړی، خنزیر به قتل کړی.([4]) داټولې خبرې ددې دلیل دی چې د شرك کفر او باطل آلې ماتول او ضائع کول واجب دی.

﴿وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْاٰنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ﴾ زړونو دپاره د قرآن پاك شفا کیدل، شرك، کفر، رذیل اخلاقو او باطنی مرضونو څخه د نقائصو دپاره د خلاصی ذریعه جوړیدل خو ئې ښکاره معامله ده. او د ټول امت په دې اتفاق دې او د ځینې علماء کرامو رحمهم الله په نزد ځنګه چې قرآن کریم د باطنی مرضونو دپاره شفا ده، هغسې دظاهری مرضونو دپاره هم شفا ده چې د الله ﷻ آیتونه لوستل په رنځور ئې دم کول، او لیکلې تعویذ ئې غاړه کښې اچول ظاهری رنځونو دپاره هم شفاء ده، دحدیث پاك روایتونه په دې ګواه دی، د احادیثو په ټولو کتابونو کښې د ابی

---

[1]) تفسیر القرطبی [ ج:۱۰ص:۳۱٤]

[2]) صحیح البخاری کتاب المغازی ،باب این رکز النبی ﷺ الرایة یوم الفتح [ج:۲ص:٦١٣] و صحیح مسلم کتاب الجهاد والسیر، باب فتح مکه [ج:۲ص:۱۰۲]

[3]) تفسیر القرطبی [ ج:۱۰ص:۳۱٤]

[4]) صحیح مسلم کتاب الإیمان، باب نزول عیسی ابن مریم إلخ [ج:۱ص:۸۷]

سعيد خدري رضي الله عنه په روايت دا حديث موجود دې چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم يوه ډله په سفر کښې وه ، د يو کلي رئيس لړم چيچلې وو ، خلقو صحابه کرامو رضي الله عنهم څخه تپوس اوکړو چې تاسو رضي الله عنهم ددې څخه علاج کولې شئ ؟ نبي کريم ﷺ اووۀ ځل سورۀ فاتحه اولوستله او پرې ئې دم کړو ، هغه لړم چيچلې روغ شو ، بيا د رسول کريم ﷺ په وړاندې ددې يادګيرنه چې اوشوه نو د صحابه کرامو رضي الله عنهم دغه عمل ئې جائز اوبللو.([1])

دغه شان د حديثو ګڼړو روايتونو څخه پخپله په رنځور باندې د رسول کريم ﷺ معوذات دم کول ، د صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعينو نه په معوذاتو او په نورو روايتونو د نبي کريم ﷺ سره د رنځورانو علاج کول د قرآن کريم ليکلې آيتونه ، رنځور ته په غاړه کښې اچول ثابت دی ، چې هم دې آيت لاندې قرطبي رحمه الله په تفصيل سره ليکلې دی.([2])

﴿وَلَا يَزِيدُ الظَّالِمِينَ إِلَّا خَسَارًا﴾ دې څخه معلومه شوه چې کله قرآن پاك په اعتقاد او احترام سره اولوستلې شي نو ددې شفاء کيدل څنګه چې ښکاره او ثابت دی دغه شان د قرآن کريم بد ګڼړل يا بې ادبي کول ئې د زياتو آفتونو ذريعه هم ده.

| |
|---|
| وَإِذَآ أَنْعَمْنَا |
| اوکله چې \| نعمت اوکړو مونږ |
| اوهرکله چې مونږ يو |
| عَلَى الْإِنسَانِ أَعْرَضَ وَنَأَىٰ بِجَانِبِهِ ۖ وَإِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ |
| په انسان باند \| نو مخ ئې واړوۀ \| او تاؤ ئې کړو اړخ \| او کله چې اورسيد وهغه ته \| مصيبت |
| انسان له نعمتونه ورکړو انوبيازمونږ دحکمونو \| نه هغه مخ اړوی او ډډه کوی او چې لږ تکليف ورته اورسيږی |
| كَانَ يَئُوسًا ۝ قُلْ كُلٌّ يَعْمَلُ عَلَىٰ شَاكِلَتِهِ فَرَبُّكُمْ |
| نوشو \| نااميده \| ورته اووايه \| هر څوك عمل کوی \| په طريقه خپله باند \| نو رب ستاسو |
| نوزرنااميده شی اې نبي ﷺ ! دوئ ته اووايه چې هرڅوک په خپله طريقه باندې عمل کوی بيشکه ستاسورب |
| أَعْلَمُ بِمَنْ هُوَ أَهْدَىٰ سَبِيلًا ۝ |
| ښه پوهيږی \| په هغه چا \| چې هغه \| زيات صحيح روان دې \| په نيغه لار \| |
| هغه څوک ښه پيژنی کوم چې دټولو نه زيات په سمه لار باندې دی |

**آسان ترجمه قرآن**

**او کله چه موږ انسان ته څه نعمت ورکړو نو هغه مخ واړوی او اعراض اوکړی ،او که هغه ته څه تکليف اورسی نو نااميده شی. اووايه چه: هر سړې په خپله خپله طريقه باندې کار کوی اوس الله پاک ته معلومه ده چه څوک په زيات په نيغه لار روان دې.**

[1] ) صحيح البخاري كتاب فضائل القرآن ،باب فضل فاتحة الكتاب [ج:۲ص:۷٤۹] و صحيح مسلم كتاب السلام، باب جواز أخذ الأجرة على الرقية بالقرآن والأذكار [ج:۲ص:۲۲٤]

[2] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۰ص:۳۱٦، ۳۱۷]

## خلاصه تفسير

﴿وَإِذَآ أَنۡعَمۡنَا عَلَى ٱلۡإِنسَٰنِ﴾ او ځيني انسان يعنى كافران داسې وى چې كله هغه ته مونږ نعمت وركړو نو] ﴿أَعۡرَضَ وَنَـَٔا بِجَانِبِهِۦ﴾ زمونږ نه اوزمونږ دحكمونونه [مخ اړوى اوپه ډډه ګرځى ﴿وَإِذَا مَسَّهُ ٱلشَّرُّ﴾ اوهركله چه دۀ ته څه تكليف رسى نو] ﴿كَانَ يَـُٔوسٗا﴾ بالكل درحمت نه [نااميده شى] اودادواړه حالتونه دليل دې دالله تعالى نه دبې تعلقۍ او دغه بنياد دې دهركفر اوګمراهۍ ﴿قُلۡ﴾ [ته دوايه چه] مؤمنان اوكافران او اخيار اواشرار هم ﴿كُلّٞ يَعۡمَلُ عَلَىٰ شَاكِلَتِهِۦ﴾ [هر يو سړى په خپله طريقه كاركوى ]يعنى په خپل خپل عقل صحيح باندې مقيم اودعلم ياجهل په بنياد مختلف قسم كارونه كوى ﴿فَرَبُّكُمۡ أَعۡلَمُ بِمَنۡ هُوَ أَهۡدَىٰ سَبِيلٗا﴾ [نو ستاسو رب ښه پيژنى هغولره كوم چه په زياته سمه اوبرابر لاروى ] دغه شان چه كوم په سمه لاره نه وى هغوى لره هم پيژنى اوهريو لره به ددۀ دعمل موافق جزا يا سزا وركړى داسې نه ده چه دچاړه غوارى بې دڅه دليل نه ځان په سمه لاره وګنړى.

## معارف او مسائل

﴿قُلۡ كُلّٞ يَعۡمَلُ عَلَىٰ شَاكِلَتِهِۦ﴾ پخوانو امامانو نه د شاكلة په تفسير كښې مختلف اقوال منقول دى ، طبيعت ، عادت ، خمبير ، نيت ،طريقه وغيره او حاصل د ټولو دادې چې د هر يو انسان د خپل چاپير چل [ماحول] ، عادتونو او رسم و رواج په اعتبار سره يو عادت طبيعت ثانيه جوړ شى چې عمل ئې د هغې تابع پاتې كيږى [قرطبى].([1])

په دې كښې انسان په دې خبرداره كړې شوې دې چې د خراب چاپير چل ، خراب مجلس او خرابو عادتونو نه پرهيز اوكړى ، د نيكو خلقو د مجلس او ښو عادتونو سره ځان عادت كړى .[جصاص]([2])

ولې چې د خپل چاپير چل، مجلس او رسم و رواج نه د انسان يو طبيعت جوړ شى چې هر عمل ئې هم دهغې په جوړ او دهغې تابع چليږى .امام جاص رحمه الله دلته د شاكلة يوه معنى هم شكل هم كړې ده. ددې معنى په لحاظ سره به مطلب د آيت مبارك دا وى چې هر څوك د خپل مزاج بنده سره هنډيوالى او يارى كوى ، نيك د نيكانو سره او بد د بدانو سره هنډيوالى كوى ، هم د هغه په طريقه چليږى . ددې نظير د الله ﷻ دا فرمان دې ﴿ٱلۡخَبِيثَٰتُ لِلۡخَبِيثِينَ﴾ او ﴿وَٱلطَّيِّبَٰتُ لِلطَّيِّبِينَ﴾ [خبيثې ښځې د خبيثو سړو دپاره او پاكې ښځې د پاكو سړو دپاره] مراد دادې چې هر يو د خپل مزاج مطابق سړى او ښځې سره غاړه كيږى ، او ددې مطلب حاصل په دې خبره باندې خبردارې وركول دى چې انسان دپاره پكار دى چې د خراب مجلس او خراب عادت نه د ځان ساتلو بندوبست اوكړى.

| وَمَآ أُوتِيتُم | قُلِ ٱلرُّوحُ مِنۡ أَمۡرِ رَبِّي | وَيَسۡـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلرُّوحِ |
|---|---|---|
| او تپوس كوى دا خلق ستا نه په باره دروح كښې ||اووايه چې روح له حكم سره|درب زما دې||اونه دې دركړې شوې تاسو نه | | |
| اوخلق له تانه دروح په حقله تپوس كوى[دوئ ته]اووايه چې روح زما درب د حكم نه پيدادې اوتاسو ته | | |

---

([1]) تفسير القرطبي [ ج:۱۰ص:۳۲۲]

([2]) أحكام القرآن للجصاص تفسير سورة بنى اسرائيل[ج: ۷ص:۳۵۶]

مِّنَ الْعِلْمِ اِلَّا قَلِيْلًا ۝ وَلَئِنْ شِئْنَا لَنَذْهَبَنَّ بِالَّذِيْٓ

دعلم نه | مگر | لږ | اوکه چرې | اوغواړومونږ | نو وابه خلو | هغه [څيز]

خو ډېر لږ علم درکړې شوې دې اوکه چرې مونږ اوغواړو

اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ بِهٖ

چې وحی کړې دې مونږ | تاته | بيا به نه مومې ته | دپاره دخان خپل | په هغه څيز باندې

نوکومه وحی چې مو تاته درکړې ده هغه به درنه واپس کړو بيا به درته د دې پحقله زمونږ

عَلَيْنَا وَكِيْلًا ۝ اِلَّا رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ

په مقابله زمونږ کښې | څوک مددګار | مګر څه چې ملاودی تاته | په وجه درحمت دی | دطرفه درب ستانه

په مقابله کښې هيڅوک مددګار پيدا نشی خو دا په تا باندې دخپل رب ډېرې لوئې رحم دې

اِنَّ فَضْلَهٗ كَانَ عَلَيْكَ كَبِيْرًا ۝ قُلْ لَّئِنِ اجْتَمَعَتِ

حقيقت دادې چې فضل دهغه | دې | په تا باندې | ډېر لوئ | ورته اووايه | که چرې | راجمع شی

[چې تاته ئې وحی کړې ده] بيشکه په تا دهغه فضل ډېر لوئې دې [ائې نبی ﷺ] ته اووايه که ټول

الْاِنْسُ وَالْجِنُّ عَلٰٓى اَنْ يَّاْتُوْا بِمِثْلِ هٰذَا الْقُرْاٰنِ لَا يَاْتُوْنَ

ټول انسانان | اوپيريان | په دې کارباند | چې راوړې | پشان | ددې قرآن | نو رابه نوړې

بنيادم اوپيريان رايوځائې شی چې ددې قرآن پاک پشان يو بل قرآن جوړ کړی نو

بِمِثْلِهٖ وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ ظَهِيْرًا ۝ وَلَقَدْ صَرَّفْنَا

پشان ددې | اګر که وی | خينی دهغوئ | دپاره دخينو | مددګاران | او بار بار بيان کړل مونږه

هيڅرې ددې په شان جوړولې نشی اګر که دوئ ټول ديو بل مددګاروی اومونږ خلقو ته

لِلنَّاسِ فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ ۡ فَاَبٰٓى اَكْثَرُ النَّاسِ

دپاره دخلقو | په دې قرآن کښی | دهر قسم مثال نه | خوغاړه کينښوده | زياتوخلقو

په دې قرآن کښې هر قسم ښه ښه مضمونونه په رنګ رنګ بيان کړې دی خو بياهم اکثر خلق ترې نه

اِلَّا كُفُوْرًا ۝

مګر | په ناشکرئ اوانکارباندې

بغير دانکار کولونه پاتې نه شول

**آسان ترجمه قرآن**

او (اې پيغمبره) دا خلق ستا نه د روح په باره کښې تپوس کوی اووايه چه روح زما د رب په حکم سره (جوړ) دې. او تاسو ته چه کوم علم درکړې شوې دې، هغه بس لږ هان علم دې او که مونږ اوغواړو نو څه چه مونږ تاته وحی کړې ده هغه به ټوله واپس يوسو بيا به تاسره دهغې په واپس راوړلو باندې زمونږ په

مقابله کښې څوک مددګار نه وي. خو دا خو ستا درب د طرف نه یو رحمت دې (چه د وحی سلسله جاري ده) حقیقت دا دې چه ستا د رب د طرف نه چه په تا باندې کوم فضل دې، هغه ډیر عظیم دې. او وایه چه: که ټول انسانان او پیریان هم په دې کار باندې راجمع شي چه د دې قرآن کریم په شان کلام راوړي، بیا هم هغوی د دې په شان نه شي راوړلې، اګر که هغوی د یو بل هر څومره امداد اوکړي. او موږ د انسانانو د ښیګړې دپاره په دې قرآن کښې هر قسم د حکمت خبرې په هر انداز کښې بیان کړې دي بیا هم اکثر خلق د انکار نه سوا په بله خبره راضي نه دي.

## خلاصه تفسیر

﴿وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الرُّوحِ﴾ [او دا خلق ستا نه ] د امتحان په طور [د روح ] د حقیقت [تپوس کوی ته] په جواب کښې ﴿قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي﴾ [وفرمایه چه ] د [روح] متعلق پس دومره اجمالا پوهه شه چه دغه یوشې دې کوم چه [زما درب په حکم سره جوړدې او] باقي ددې دمفصل حقیقت خو ﴿وَمَا أُوتِيتُم مِّنَ الْعِلْمِ إِلَّا قَلِيلًا﴾ [تاسو ته ډیرلږ علم ] په قدرستاسو دپوهې اوضرورت [درکړې شوې دې ] اودروح حقیقت معلومول څه ضروری شې نه دې اونه ددې حقیقت په عام طور سره په پوهه کښې راځي په دې وجه قرآن ددې حقیقت نه بیانوی ﴿وَلَئِن شِئْنَا لَنَذْهَبَنَّ بِالَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ﴾ [اوکه موږ وغواړونو څومره چه موږ په تاوحی لیږلې ده] اوددې په ذریعه موتاته علم درکړې دې [ټول سلب کړو بیابه ددې ] وحی دواپس راوړو دپاره ﴿ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ بِهِ عَلَيْنَا وَكِيلًا﴾ تاته زموږ په مقابله کښې څوك حمایتي هم ملاؤ نه شي د ﴿إِلَّا رَحْمَةً مِّن رَّبِّكَ﴾ مګر [ستادرب رحمت دې ] چه داسې یې ونه کړل ﴿إِنَّ فَضْلَهُ كَانَ عَلَيْكَ كَبِيرًا﴾ [بیشکه په تادده لوئ فضل دې ] مطلب دادې چه انسان ته دروح وغیره دحقیقت علم به څه وی ده ته چه کوم لږشان علم په ذریعه دوحی دالله تعالی دطرف نه ورکړې شوې دې دغه هم دده څه جاګیر نه دې که الله تعالی وغواړي نو دروکولو نه پس یې هم سلب کولې شي مګردې په خپل رحمت سره داسې کوی نه وجه داده چه په تادالله تعالی ډیر لوئ فضل دې ﴿قُل لَّئِنِ اجْتَمَعَتِ الْإِنسُ وَالْجِنُّ عَلَىٰ أَن يَأْتُوا بِمِثْلِ هَٰذَا الْقُرْآنِ﴾ [ته ووایه چه که ټول انسانان اوپیریان په جمع ددې خبرې دپاره جمع شي چه داسې قرآن جوړکړي ﴿لَا يَأْتُونَ بِمِثْلِهِ وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ ظَهِيرًا﴾ خوبیاهم داسې به ونه کړې شي اګر چه دیوبل مددګارهم جوړشي] یعنی په دوی کښې که هریو جدا جدا کوشش کوی نو څه به کامیاب شي که ټول دیوبل په مدد سره کار وکړي هم دقران مثل نه شي جوړولې ﴿وَلَقَدْ صَرَّفْنَا لِلنَّاسِ﴾ [اوموږه دخلقو ] پوهولو [دپاره ﴿فِي هَٰذَا الْقُرْآنِ مِن كُلِّ مَثَلٍ﴾ په دې قرآن کښې هرقسم عمده مضمون په شان شان سره بیان کړې دې ﴿فَأَبَىٰ أَكْثَرُ النَّاسِ إِلَّا كُفُورًا﴾ بیاهم اکثر خلق بې دانکار نه پاتې نه شول].

## معارف او مسائل

ددې آیتونو ځینې ړومبې آیت کښې د کافرانو د طرفه د یو سوال او دالله ﷻ طرفه د روح په باره کښې هغې دجواب بیان دی. د روح لفظ په لغتونو او محاورو کښې د غه شان په قرآن کریم کښې د ډیرو معنو دپاره استعمالیږی. په عام ډ،ل مشهوره معنی داده چې ژوند پرې اړه لری. په قرآن کریم کښې دا الفاظ د جبرائیل امین علیه السلام دپاره هم استعمال شوی دی لکه

فرمائي چې ﴿نَزَلَ بِهِ الرُّوحُ الْأَمِينُ ۝ عَلَىٰ قَلْبِكَ﴾ د اشان په ډيرو آيتونو کښې عيسی ﷺ دپاره هم استعمال شوې دې . او پخپله قرآن کريم او وحی ته هم روح وئيلې شوې دې . لکه فرمائي چې: ﴿وَكَذَٰلِكَ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ رُوحًا مِّنْ أَمْرِنَا﴾

**د روح څخه مراد څه دې ؟:** دلته په دې غور کول پکار دی چې کافرانو د روح د کومې معنې په لحاظ سره سوال کړې وو ، ځينو مفسرينو چې وړاندې خبرو او روانئ ته اوکتل نو دې وئيل چې دا سوال د وحی يا قرآن عظيم الشان يا د وحی راوړونکې فرښتې جبرائيل ﷺ باره کښې وو. ولې چې ددې څخه وړاندې هم په ﴿وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ کښې د قرآن عظيم الشان بيان وو. او وروستې آيتونو کښې بيا هم د قرآن عظيم الشان بيان دې . په دې مناسبت سره د روح څخه هم وحی ، قرآن عظيم الشان يا جبرائيل مراد اخستې شی. د سوال مطلب به دا شي چې په تاسو باندې وحی په څه شان رازی څوك ئې راوړی ؟ قرآن عظيم الشان ددې جواب صرف دومره ورکړو چې وحی دالله ﷻ په حکم رازی . هغه تفصيلونه او طريقې ئې ورته بيان نه کړې د کومو باره کښې چې کافرانو تپوس کړې وو.

ليکن په صحيحو احاديثو مرفوعو کښې چې دې آيت مبارك کوم شان نزول بيان شوې دې هغه په دې باره کښې تقريبا ښکاره داسې دې چې هغوئ د روح حيوانی باره کښې دا سوال کړې وو. او د سوال مقصد ئې دا وو چې ددې روح حقيقت څه دې ؟ د انسان بدن کښې څنګه رازی ؟ او دې سره انسان څنګه ژوندې کيږی ؟

بخاری شريف او مسلم شريف کښې د عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روايت دې چې يوه ورځ څه نبی کريم ﷺ سره د مدينې منورې په يوه غير آباده علاقه کښې روان اوم. او نبی کريم ﷺ په لاس مبارك کښې د کهجورې يوه لښته وه ، د يهودو يو څوك کسانو باندې چې تيريدو نوهغوئ اوئيل چې محمد ﷺ راروان دې. د نبی کريم ﷺ څخه بهٔ د روح باره کښې تپوس اوکړو. نورو منع کړومګر سوال کوونکو بيا هم د غه سوال اوکړو. د هغې په آوريدو نبی کريم ﷺ په لرګی باندې تکيه لګولې خاموش اودريدل. دهغې څخه راته اندازه اوشوه چې وحی پرې نازليدونکې ده . څه وخت پس پرې وحی راغله نو نبی کريم ﷺ دا آيت مبارك اولوستو: ﴿وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الرُّوحِ﴾(۱) دلته د ابنکاره خبره ده چې قرآن عظيم الشان يا وحی ته روح وئيل دا د قرآن عظيم الشان يوه خاص اصطلاح ده ، ددغې خلقو په هغې باندې سوال بنا کول ډيره لرې خبره ده . البته د انسانی او حيوانی روح باره کښې د چا زړه کښې سوال پيدا کيدې شی . څکه جمهورو مفسرينو ابن کثير ﷫ ، ابن جرير ﷫ ، قرطبی ﷫ بحر محيط او روح المعانی تولو دې ته صحيح وئيلې دې چې داسوال د روح حيوانی د حقيقت باره کښې وو.(۲) پاتې شوه دا خبره چې د وړاندې څخه د قرآن عظيم الشان بيان راروان دې ، ددې ترمينځه دروح سوال وجواب بې جوړه دې. نو ددې جواب ښکاره داسې دې چې ددې څخه وړاندې تيرو شوؤ آيتونو مبارکو کښې د کافرانو او مشرکانو د مخالفت او ضد سوالونه

---

۱) صحيح البخاری کتاب الإعتصام،باب ما يکره من کثرة السؤال إلخ [ج:۲ص:۱۰۸۱] و صحيح مسلم کتاب صفات المنافقين ، باب صفة ا لقيامة إلخ [ج:۲ص:۳۷۲]

۲) تفسير القرطبي تحت هذه الأية [ ج:۱۰ص:۳۲۳، ۳۲۴]

بیان شوی دی ، چې مطلب ئې په نبی کریم ﷺ باندې د پیغمبرئی په باره کښې آزمیښت کول وو. دا سوال ددغې زنځیر یوه کړئی ده نو ځکه بې جوړه نه دې ، خصوصا دشان نزول باره کښې یو بل صحیح حدیث پاك منقول دې ، په دې کښې دا خبره په زیات وضاحت سره راغلې ده چې د سوال کوونکو مطلب د نبی کریم ﷺ د پیغمبرئی امتحان اخستل وو.

چنانچه په مسند احمد کښې د عبدالله بن عباس رضي الله عنه څخه روایت دې چې د مکې قریشو به بې خایه بې خایه سوالونه د نبی کریم ﷺ څخه کول. دهغوئ دا خیال راغلو چې هر کله یهود د علم خاوندان دی ، د پخوانو کتابونو علم هم لري ، د هغوئ څخه څه سوالونه ازده کړو چې دهغوئ امتحان پرسره واخلو ، په دې خیال ئې یهودو ته خپل سړی ور اولیږل ، یهودو ورته اووئیل چې تاسو تري د ورح باره کښې سوال اوکړئی [ابن کثیر].(١)

او هم د ابن عباس رضي الله عنه څخه ددې آیت مبارك په تفسیر کښې دا نقل کړی دی چې یهودو نبی کریم ﷺ څخه د سوال کولو د پاره ورته دا هم په ګوته کړی وو چې په روح باندې عذاب څنګه رازي ؟ تر دغې وخته پورې په نبی کریم ﷺ باندې دې باره کښې څه خبره نه وه نازله شوې. ځکه دغه وخت نبی کریم ﷺ زر جواب ورنکړو بیا جبرائیل عليه السلام دا وحی راوړله چې: ﴿قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي﴾ [ ابن کثیر ].(٢)

**دسوال کولو دا واقعه په مکه مکرمه کښې راپیښه شوه که په مدینه منوره کښې؟:** دلته یوې بلې خبرې ته هم خیال کول پکار دی چې د شان نزول په باره کښې کوم دوه حدیثونه د ابن مسعود رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنه چې پورته نقل شوی دی په هغې کښې د روایت مطابق دسوال دا واقعه په مدینه منوره کښې راپیښه شوې ده ، ځکه ځینې مفسرین وائی چې دا آیت مبارك مدنی دې. اګر چې د سورۀ بنی اسرائیل اکثره حصه مکی ده . او د ابن عباس رضي الله عنه د روایت مطابق ددې واقعې تعلق مکې مکرمې سره دې . اودهغې مطابق د ټول سورت په شان دا آیت مبارك هم مکی دې. هم دغه وجه ده چې ابن کثیر رحمه الله دې احتمال ته غوره وئیلی دی . او د ابن مسعود رضي الله عنه د روایت جواب ئې دا ورکړې دې چې کیدې شي دا آیت مبارك په دوئم ځل په مدینه منوره کښې نازل شوې وی .(٣) ځنګه چې د قرآن عظیم الشان د ډیرو آیتونو دوباره نازلیدل ټول علماء کرام منی . او تفسیر مظهری دابن مسعود رضي الله عنه روایت ته ترجیح ورکولو سره فرمائیلی ئې دی چې دا آیت مبارك مدنی دې او داواقعه هم مدنی ده . او ددې ئې دوه وجوهات خودلی دی. یو دا چې دا روایت په صحیحینو کښې دې ، او ددې سند دابن عباس رضي الله عنه د روایت څخه زیات قوی دې . بل دا چې دا واقعه پخپله صاحب واقعه ابن مسعود رضي الله عنه بیان کړې ده . په خلاف د روایت د ابن عباس رضي الله عنه څخه(٤) چې ښکاره خبره په هغې کښې داده چې ابن عباس رضي الله عنه به دا خبره د چا څخه آوریدلې وی .

١) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ٥ ص:١١٤]
٢) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ٥ ص:١١٥]
٣) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ٥ ص:١١٤]
٤) تفسیر المظهری [ج:٥ ص:٤٨٥]

**دیان شوي سوال جواب :** قرآن عظیم الشان ددې جواب داسې ورکړې دې چې ﴿قُلِ الرُّوۡحُ مِنۡ اَمۡرِ رَبِّیۡ﴾ مفسرینو ددې جواب تشریح په مختلفو کلماتو او تعبیرونو سره کړې ده. په دې کښې د ټولو څخه زیات نزدې او واضح هغه دې چې په تفسیر مظهري کښې قاضي ثناء الله پانی پتی رحمه الله اختیار کړې دې هغه دادې چې په دې جواب کښې د څومره خبرې خودل چې ضروري وو کوم چې د عامو خلقو په پوهه کښې دراتلو جوګه دې یوازې هم هغه اوخودلې شو او د روح هغه مکمل حقیقت ئې اونه خودلو د کوم چې سوال شوې وو. ولې چې هغه دعامو خلقو د پوهې څخه بهر وو. اود هغې څه ضرورت د هغې په پوهه باندې څه اړه نه لرله. دلته نبي کریم ﷺ ته دا حکم اوشو چې تاسو ﷺ ددې په جواب کښې اوفرمایئ چې روح زما د پروردګار په حکم سره دې، یعنی دا د عام مخلوق پشان نه دې چې ماده کښې دبدلون راتلو او د توالد او تناسل په ذریعه په وجود کښې رازی، بلکه دا بې واسطې د الله ﷻ د کُنۡ په حکم سره پیدا شوې څیزدې. دې جواب خو دا واضح کړل چې روح په عامو مادی څیزونو باندې نشی قیاس کولې. په دې ټولې هغه شبهې پورته شوې چې روح لره په عامو مادی څیزونو باندې د قیاس کولو په نتیجه کښې پیدا کیږی او انسان دپاره هم دومره قدرې علم د روح په باره کښې کافی دې، ددې څخه زیات علم باندې ددۀ څه دینی یا دنیاوی کار اړ نه دې. څکه ددې سوال دغه حصه عبث او بې جوړه اوګرځولې شوه. او جواب ئې ورنکړې شو، خصوصا کله چې ددې په حقیقت باندې پوهیدل عوامو دپاره خو لا څه کوې چې لویو لویو حکیمانو او عقل مندو دپاره هم آسان نه دی.

**دهر سوال ورکول ضروري نه دي د سوال کوونکي ددینی خیر لحاظ ساتل هم لازمی دی :** امام جصاص رحمه الله ددې جواب څخه دا مسئله راؤښکله چې د مفتي او عالم دا ضروري ذمه داري نه ده چې د سوال کوونکي د هر سوال او دهغې د هر شق جواب ضرور ورکړي. بلکه د دینی ښیګړې په خیال کښې لرلو سره ئې جواب ورکول پکار دی. کوم جواب چې د مخاطب د پوهې څخه زیات پورته وي یا هغه ترې په غلط فهمئ کښې غورزیږی. نو دهغې جواب نه دی ورکول پکار، دغه شان د بې ضرورته یا بې مطلبه سوالونو جواب هم نه دی ورکول پکار. البته چا ته داسې واقعه راپیښه شي چې د هغې په باره کښې هغه دپاره څه عمل کول ضروري وي او پخپله عالم نه وي نو مفتي او عالم لره د خپل علم مطابق د هغې جواب ورکول ضروري دي [جصاص].(¹)

امام بخاري رحمه الله په کتاب العلم کښې ددې مسئلې یو مستقل ترجمة الباب اینبودلو سره د اخودلی دی چې د کوم جواب څخه په غلطئ کښې د پریوتو خطره وی دهغې جواب نه دی ورکول پکار.

**د ورح په حقیقت خول خبریدې شي اوکه نه ؟ :** قرآن عظیم الشان ددې سوال جواب د مخاطب د ضرورت او پوهې مطابق ورکړو، د روح حقیقت ئې بیان نه کړو خو ددې څخه دا نه لازمیږی چې د روح په حقیقت باندې څوك د سره خبریدې نشي اودا چې پخپله رسول کریم ﷺ هم ددې په حقیقت خبر نه وو. صحیح خبره داده چې دې آیت مبارك کښې خو ددې شته والې او

---

(¹) أحكام القرآن للجصاص تفسير سورة الاسراء[ج: ۷ ص:۳۵۸]

نیشتوالي نه دې بیان شوې که یو نبي ﷺ او رسول ﷺ ته د وحی په ذریعه یا یو ولي ته د کشف او الهام په ذریعه ددې حقیقت معلوم شي نو هغه ددې آیت مبارك خلاف نه ده ، بلکه د عقل او فلسفې تر مخه هم که په دې مطلب باندې څه بحث او تحقیق اوکړې شي نو ورته به فضول او بې مطلبه خو اووئیلې شي خو ناروا به ورته نشي وئیلې ، هم دغه وجه ده چې ډیرو مخکښینو او روستنو علماء کرامو د روح باره کښې مستقل کتابونه لیکلي دي. په آخری دور کښې زمونږ استاد محترم شیخ الاسلام حضرت مولانا شبیر احمد عثماني رحمه الله په یو مختصرشان رساله کښې دامسئله په ډیر غوره انداز سره لیکلې ده . او په هغه کښې یې دومره حقیقت باندې خلق پوهه کړې دي چې کوم باندې عام انسان لره پوهیدل ممکن دي او په هغې باندې د یو تعلیمافته څه تسلي کیدې شي او د شبهو او اشکالونو ځخه بچ کیدې شي.

**فائده** : دلته امام بغوي رحمه الله د عبدالله بن عباس رضي الله عنه ځخه یو روایت په تفصیل سره دا شان نقل کړې دې چې دا آیت مبارك مکه مکرمه کښې نازل شوی دی کله چې قریشي سرداران راجمع شو او مشوره ئې اوکړه چې محمد ﷺ هم په مونږ کښې پیدا شو ، هم د لته ځوان شو ، ددوئ ﷺ په امامت ، دیانت او ریښتینوالی کښې چرې هم د چا شك نه دې راغلې ، او په نبي کریم ﷺ باندې هیچرې هم د دروغو تور چا نه دې پورې کړې ، او د دې باوجود اوس د پیغمبرئ کومه دعوی چې کوی هغه زمونږ په پوهه کښې نه راځي. داسې اوکړئ چې یو وفد د مدینې منورې ځخه د یهودو علماء ته وراولیږئ او دې باره کښې تحقیقات اوکړئ.
نو د قریشو یو وفد د یهودو علماء ته وراورسیدو د یهودو علماء ورته مشوره ورکړه چې مونږ درته درې ځیزونه ښایو ، ددغې درې واړو سوال ترې اوکړئ که هغوئ د درې واړو جواب درکړونو نبي کریم ﷺ پیغمبر نه دی ، دغه شان که درې واړو کښې ئې د یو جواب هم ورنکړو نو بیا هم پیغمبر نه دې اوکه د دوؤ جواب ئې درکړو او د یوجواب ئې درنکړو نو شوهه شئ چې نبي کریم ﷺ پیغمبر دی.(۱) هغه درې واړه سوالونه ورته دا اوخودلې شو:

① یو خو ترې دهغه خلقو د حال تپوس اوکړئ چې پخوا زمانه کښې د شرك ځخه دبچ کیدو دپاره څه کسان پټ شوی وو ځکه چې ددوئ څه عجیبه واقعه وه .

② دویم سوال ترې دا اوکړئ چې دهغه سړی باره کښې راته واقعه بیان کړه چې د زمکې د مشرق ځخه ئې تر مغرب پورې سفر اوکړو.

③ دریم ترې دا پوښتنه اوکړئ چې روح څه ځیز دې ؟

دغه وفد واپس راغلو او درې واړه سوالونه ئې نبي کریم ﷺ ته پیش کړل ، نبي کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې ددې جواب به صبا درکوم ، خو په دې کښې انشاء الله ترې هیر شو. ددې نتیجه دا شوه چې د وحی سلسله تر څه وخته پورې بنده شوه. د دولسو ، پنځلسو ځخه ئې واخله تر څلوینښتو ورځو پورې مختلف روایتونه دي چې په کښې دوحی سلسله بنده پاتې شوه. د مکې قریشو ته د پیغور ورکولو موقعه په گوتو ورغله چې صبا ئې د جواب ورکولو وعده کړې وه اونن دومره ورځې اوشوې چې جواب ئې رانکړو ، نبي کریم ﷺ هم پریشانه شو ، بیا جبرائیل علیه السلام دا آیت مبارك راوړو او نازل شو چې : ﴿وَلَا تَقُولَنَّ لِشَیْءٍ إِنِّی فَاعِلٌ ذَٰلِكَ غَدًا ۝ إِلَّآ

(۱) دا تفصیل د معالم التنزیل [ج: ٤ص:١٣٤] مطابق دي . محمد تقي عثماني.

﴿اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ﴾ په دې کښې ورته دا خودنه اوکړې شوه چې په آئنده کښې د يو کار کولو وعده اوکړې شي نو انشاء الله وئيلو سره دې اوکړې شي او وړېسې د روح باره کښې دا آيت مبارك نازل شو کوم چې پورته بيان شو. په غار کښې د پټيدونکو اصحاب کهف واقعه او د مشرق څخه تر مغرب پورې د سفر کوونکي ذی القرنين واقعه چې په سورة کهف کښې راروانه ده دهغې آيتونه نازل شو چې په کښې د اصحاب کهف او ذی القرنين واقعه په پوره تفصيل سره جواب کښې اوفرمائيلې شوه. او د روح باره کښې چې دکوم حقيقت سوال وو د هغې جواب ورنکړې شو. چې ورسره د يهودو خودلې شوې نخښه په رښتينوالی د پيغمبرئی ښکاره شوه ، دا واقعه ترمذی شريف هم لنډه بيان کړې ده ، [مظهری].(۱)

د سورهٔ حجر د يو کم ديرشم آيت مبارك : ﴿وَنَفَخْتُ فِيْهِ مِنْ رُّوْحِيْ﴾ لاندې د روح او نفس وغيره د حقيقت باره کښې يو تحقيق دتفسير مظهری په حواله رومبې تير شوې دې. چې په کښې د روح قسمونه او د هر يو حقيقت ترکافی حده پورې واضح کړې شوې دې.

﴿وَلَئِنْ شِئْنَا لَنَذْهَبَنَّ﴾ په تير شوی آيت مبارك کښې د روح په سوال باندې د ضرورت په انداز کښې جواب ورکولو سره د روح حقيقت د معلومولو د کوشش نه دې فرمائيلو سره منع کړې شوې وه چې د انسان علم که هر څومره زيات شي خو د څيزونو د ټول ارخيز حقيقتونو په اعتبار سره بيا هم کم وی څکه په غير ضرروی بحثونو او حقيقتونو کښې انښتل خپل وخت تباه کول دی ، په آيت مبارك ﴿وَلَئِنْ شِئْنَا﴾ کښې دې ته اشاره شوېده چې انسان ته که هر څومره علم حاصل دې هغه هم د هغه ذاتی جاگير نه دې ، که الله ﷻ اوغواړی نو هغه هم واپس اخستې شی. څکه هغه له پکار دی چې په موجوده علم باندې دالله ﷻ شکر ادا کړی او په فضول اوبې مطلبه تحقيقاتو کښې هغه وخت ضائع نه کړی ، خصوصا کله چې تحقيق کول هم نه وی. بلکه د امتحان اخستل يا دهغه سپکوالې مقصود وی.

که ده دغسې اوکړل نو څه لرې نه ده چې دده کوږ تگ په نتيجه کښې چې ورته څومره علم حاصل دې هغه ټول ترې واپس واخستې شی. دې آيت مبارك کښې اگر چې خطاب نبی کريم ﷺ ته دې خو په حقيقت کښې دده دې آورول امت ته دی. چې هر کله د نبی کريم ﷺ علم هم د هغه پخپل اختيار کښې نشته نو د نورو خلقو يعنی غير پيغمبرانو به څه حال وی ؟

﴿قُلْ لَّئِنِ اجْتَمَعَتِ الْاِنْسُ وَالْجِنُّ﴾ دا مضمون د قرآن پاك په څو آيتونو کښې راغلې دې چې په کښې د ټولې دنيا انسانانو ته په خطاب کولو سره دا دعوی کړې شوې ده چې که تاسو قرآن عظيم الشان لره دالله ﷻ کلام نه منئ بلکه چا انسان جوړ کړې ئې منئ نو بيا تاسو هم انسانان يئ ددې پشان تاسو هم جوړ کړې اوښايئ. په دې آيت مبارك کښې دې دعوې سره دا هم اوفرمائيلې شو چې يوازې انسانان نه بلکه پيريان هم ځان سره ملگری کړئی او بيا ټول په جمع يو سورت بلکه ددې د يو آيت مبارك پشان خو جوړ کړئی.

ددې مضمون دلته دوباره راوړل دې خودلو د پاره هم کيدې شی چې تاسو زمونږ د رسول ﷺ څخه د روح وغيره باره کښې مختلف قسم سوالونه ده. دپيغمبرئ د آزمينت دپاره کوئی ، ولې په دې فضول قيصو کښې پراته يئ پخپله قرآن عظيم الشان اوگورئی نو ستاسو به دده

---

(۱) تفسير المظهری[ج:۵ص:۴۸۶]

په پیغمبرئ کښې هیڅ قسم شك شبه نشي پاتې کېدې ، ځکه چې هر کله د ټولې دنیا پیریان او بنیادم ددې د یو معمولي شان آیت مبارك مثال جوړولو څخه عاجز دی نو ددې د کلام الهي په کیدو کښې بیا څه شك پاتې کیدې شي ؟

کله چې په دې شان سره ثابت شو چې قرآن عظیم الشان د الله کلام دې نو د نبي کریم ﷺ په پیغمبرئ کښې بیا څه قسم شك پاتې شو؟

په آخری آیت مبارك ﴿وَلَقَدْ صَرَّفْنَا﴾ کښې دا اوخودلې شو چې اګر که د قرآن عظیم الشان معجزه دومره ښکاره ده چې ددې څخه پس د هیڅ قسم سوال اوشك شبهې ګنجائش نه پاتې کیږی ، خو کیږی داسې چې خلق د الله ﷻ د نعمتونو شکر نه ادا کوی ، د قرآن عظیم الشان نعمت قدر هم نه پیژنی ځکه په ګمراهئ کښې پریوتی پاتې کیږی.

| وَقَالُوْا | لَنْ نُّؤْمِنَ | لَكَ | حَتّٰى |
|---|---|---|---|
| اووې وئيل | هرګزایمان نه راوړومونږ | په تا | ترهغې پورې |
| اودوئ وائی چې مونږ په تاهیڅرې ایمان نه راوړو (¹) ترڅو | | | |

¹) مشرکانو عجیبه غوښتنې:- حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه دَ ربیعه دواړه خامن عتبه او شیبه او ابوسفیان بن حرب او دَ بنی عبدالدار قبیلې دوه سړی اوابوالبختری بن اسد او اسودبن مطلب بن اسد او زمعه بن اسود او ولیدبن مغیره ابوجهل بن هشام عبدالله بن ابی امیه امیه بن خلف او عاص بن وائل او نبیه او منبه سهمی دَحجاج خامن دا ټول یا دَ دوی نه څه کسان دَ نمر دَ ډوبیدونه پس دَ کعبة الله نه شاته راجمع شو او وئی وئیل څوك اولیګئی او محمد ﷺ راوغواړئی او هغه ته اووائې چه نن فیصله کوو چه بیا څه عذر پاتې نه شي. قاصد لاړو او خبرئې ورکړوچه ستاسو دَ قوم شریفان خلق راجمع شوی دی اوتاسو ئې یادکړی ئی. دَ حضور ﷺ به هروخت دَ دې خلقو خیال وو نودَ حضور ﷺ په زړه کښې راغله چه ممکن ده الله تعالی هغوی ته صحیح پوهه ورکړې وی او هغوی په نیغه لار راشی نوزر ئې تشریف راوړو. قریشو چه حضور ﷺ اولیدلو نو وئې وئیل واوره نن مونږ په تاباندې حجت پوره کوودې دَ پاره چه په مونږ باندې بیاڅه قسم الزام رانه شي په دې وجه مونږ ته راوغوښتې. والله چابه هم خپل قوم په داسې مصیبت کښې نه وی اچولې کوم مصیبت چه تا په مونږ باندې راوستلې دې. ته زمونږ پلارانو نیکونوته کنځلې کوې، زمونږ دین ته بد وائې. زمونږ برزګانوته بې وقوفان وائې، زمونږ معبودانو ته بد وائې تا په مونږ کښې جدائې اچولې ده. جنګونه دې راپیداکړل. والله تامونږ ته دَ یوې بدئی نه رسولوکښې هیڅ کمې نه دې پریخې. اوس صفا صفا واوره او ښه په سوچ اوفکر سره جواب راکړه. که ستا اراده دَ دې ټولو بړونه دَ مال جمع کول دی نومونږ موجود یو او پخپله به تاته دومره مال راجمع کړو چه ستا برابر به په مونږ کښې یومالدارهم نه وی. اوکه ستا اراده دَ دې نه داوی چه ته په مونږ باندې سرداری اوکړې نومونږ دَ دې دَ پاره هم تیاریو اوستا سرداری منو او ستا تابعداری منظور کوو. که ته دَ بادشاهت غوښتنه کوې نو په خدائې چه مونږ ستا دَ بادشاهت اعلان کړو اوکه په حقیقت کښې ستا په دماغوکښې څه فرق وی کوم یوپیرې چه تا تنګوی نو مونږ موجود یو دَ زړه دَ اخلاصه به مال دولت خرچ کړو اوستا علاج به اوکړو ترهغه وخته پورې چه تاته شفا حاصله شي یا مونږ مجبوره پاتې شو.

ددې ټولو خبرو اوریدو سره دَ رسولانو سردار او شفیع پیغمبر ﷺ جواب ورکړو چه واورئی دَ الله تعالی په حکم ماته هیڅ دماغی بیماری نشته یاڅه خلل یا غوټه وغیرهٔ نه په دې خپل رسالت باندې مالدارېدل غواړم نه دَ سردارئی څه طمع لرم نه بادشاه جوړیدل غواړم..... [باقی په راروانه صفحه..

....باقي حاشيه د تيرمخ]... بلکه زه الله تعالى دَ ټولوطرف ته په حقه سره رسول جوړکړې راليګلې يم او په ماباندې ئې خپل كتاب نازل کړې دې اوماته ئې حکم راکړې چه زه تاسو ته زيرى واوروم او تاسو اوويروم. ما دَ خپل رب پيغامونه تاسوته رسولى ستاسو مې رښتونې خيرخواهى کړې كه تاسوئې قبلوئى نو په دواړه جهانه کښې به دَ نصيب خاوندان جوړشئى اوكه نه ئې منظوره وئى نو زه به صبر وکړم ترهغه وخته پورې چه الله تعالى ﷻ زما اوستاسو په مينځ کښې رښتونې فيصله اوکړى. اوكماقال). اوس دَ قوم سردارانو اووئيل محمد ﷺ كه تاته زمونږ په دې خبروکښې يوه هم منظورنه وي نواوس نور هم واوره دا خو تاته پخپله معلومه ده چه زمونږ نه زيات تنګ ښار دَ چانشته زمونږ نه دَ ډيرکم مال والا قوم نشته اوډيرزيات خيته خيته يادولوسره ډير کم رزق حاصلونکې قوم هم نشته. نو ته دَ خپل رب نه چا چه ته خپل رسول راليګلې ئې دعا اوکړه چه دا غرونه دَ دې ځاى نه اخواکړى چه زمونږ داعلاقه ارته (فراخه) شى زمونږ ښارونه كولاوشى په دې کښې نهرونه چينې دريابونه روان شى لکه چه په شام اوعراق کښې دى اودا هم دعااوکړه چه زمونږ پلاران نيکونه راژوندى شى او په هغوى کښې قصى بن كلاب خامخا وى چه په مونږ کښې يوبزرګ سړې وو مونږ به دَ هغه نه تپوس اوکړو اوچه ستا باره کښې څه اووائې زمونږ به تسلى اوشى. كه چرې تاداسې اوکړه نو زمونږ به ستا په رسالت يقين راشى اومونږ به دَ زړه نه ستا تصديق اوکړو اوستاد بزرګئى به منونکى شو.

حضور ﷺ اوفرمائيل زه دې څيزونو سره نه يم راليګلې شوې په دې کښې يوکار هم زما دَ وس نه دې زه خو دَ الله تعالى خبرې تاسو ته دَ رسولودَ پاره راغلې يم كه تاسو قبولې کړې نو په دواړه جهانه کښې به خوشحاله شئى. كه نه ئې قبلوئى نو زه به صبراوکړم اودَ الله تعالى حكم ته به په انتظار يم ترهغه وخت پورې چه پروردګار عالم تاسو او زما په مينځ کښې فيصله اوکړى غوى وئيل چه ښه ده دا هم نه سهى مونږ پخپله ستادپاره دا تجويزکوو چه ته دَ الله تعالى نه دعااوکړه چه هغه يوه فرښته تاله راوليګى چه هغه ستا دَ خبرو تصديق اوکړى ستادَ طرف نه دې مونږ له جواب راکړى او هغې ته اووايه چه هم ستا دَ پاره دې باغونه خزانې دَ سرو او سپينو زرو محلونه جوړکړى دې دپاره چه پخپله خو ستا حالات ښه شى په بازارونوکښې ګرځيدل زمونږ په شان دَ رزق لټون کښې وتلونه خو خلاص شئى. كه چرته دا هم اوشى نو مونږ به اومنو چه واقعى الله تعالى سره ستا عزت شته اوته واقعى دَ الله تعالى رسول ئى.

دَ دې په جواب کښې حضور ﷺ اوفرمائيل چه نه زه دا کوم اونه دَ خپل رب نه دا غواړم نه دې سره زه راليګلې شوې يم زه خوالله تعالى بشيراونذير جوړکړې يم بس نور هيڅ هم نه كه تاسو ئې منئى نو په دواړه جهانه کښې به خپله ښيګړه اوکړئى اوكه نه منئى نو مه ئې منئى زه ګورم چه زما پروردګار ستاسو او زما په مينځ کښې څه فيصله كوى. هغوى وئيل چه ښه ده بيامونږ وايوچه لاړشه او خپل پروردګارته اووايه چه په مونږ باندې آسمان راګذار کړه او ته خو داسې وائى هم چه كه الله غواړى نو داسې به اوکړى نواوس خو هم مونږ وايوچه نور مهلت مه راکوه.

حضور ﷺ اوفرمائيل چه دا دَ الله تعالى دَ اختيارخبره ده چه څه غواړى كوى به كه نه غواړى نو نه به كوى. مشركانو وئيل چه الله تعالى ته دا معلومه نه وه چه دې وخت کښې به مونږ تاسره كينو اوتانه به دا څيزونه غواړو اوچه كله مونږ ستا اونه منو نو هغه به مونږ سره څه كوى. واوره مونږ خو اوريدلى دى چه تاته دَ ټول هرڅه دَ يمامه يوسړې رحمان نومې ښائى په الله تعالى قسم مونږ خو په رحمان باندې ايمان نه راوړو دا ناممكن دى چه مونږ هغه اومنو مونږ تانه خلاص يو چه څه مو اوريدل او وئيل هغه مو واوريدل او تا زمونږ واجبى اودَ انصاف خبرې واونه ريدلې اوس غوږونه کولاوکړه ښه هوښيارشه واوره تا په دې حالت کښې آزاد نه شو پريخودې اوس خو به يا مونږ تا هلاك كوو يا ته مونږ تباه کړه. چا په کښې وئيل چه مونږ خودَ فرښتو عبادت كوو چه دَ الله تعالى......[باقي په راروانه صفحه...

تَفْجُرَ | لَنَا | مِنَ الْأَرْضِ | يَنْبُوعًا ۝ | أَوْ تَكُونَ | لَكَ | جَنَّةٌ
چي جاري کړې ته | دپاره زمونږ | د زمکې نه | چينه | ياوي | تالره | يو باغ
چي ته مونږ له دزمکې دتل نه يوه چينه راونه باسې يا ستا د

مِّنْ نَّخِيلٍ | وَعِنَبٍ | فَتُفَجِّرَ | الْأَنْهَارَ خِلَالَهَا | تَفْجِيرًا ۝
دکجورو | اودانګورو | او روان کړې ته | نهرونه په منځ دهغې کښې | په روانولو سره
کهجورو اوانګورو باغ وی اوته دهغې په مينځ کښې ځائې په ځائې نهرونه اوبهيوې

أَوْ تُسْقِطَ | السَّمَاءَ | كَمَا | زَعَمْتَ | عَلَيْنَا | كِسَفًا | أَوْ تَأْتِيَ
يااوغورزوې ته | آسمان | لکه څنګه چې | ګمان کوې ته | په مونږباندې | ټوټې | يااوليې ته
يا څنګه چې ته وائې چې په مونږ باندې دآسمان نه ټکړې راوغورزوې يا

بِاللَّهِ | وَالْمَلَائِكَةِ | قَبِيلًا ۝ | أَوْ يَكُونَ | لَكَ | بَيْتٌ | مِّنْ زُخْرُفٍ
الله | او فرښتې | مخامخ | يا وی | تالره | يوکور | د سروزرو
الله ﷻ او فرښتې مونږ ته مخامخ راولې يا داچې د سرو زرو يو کور وی

أَوْ تَرْقَىٰ | فِي السَّمَاءِ ۚ | وَلَنْ نُّؤْمِنَ | لِرُقِيِّكَ | حَتَّىٰ
يااوخيژې ته | په آسمان کښې | اوهرګز ايمان نه راوړومونږ | په ختلوستا | ترهغې پورې
يا دا چې ته بره آسمان ته اوخيژې او مونږ به ستا آسمان ته ختل هم نه منو

حَتَّىٰ تُنَزِّلَ | عَلَيْنَا | كِتَابًا | نَّقْرَؤُهُ ۗ | قُلْ | سُبْحَانَ | رَبِّي
چې نازل کړې ته | په مونږ باند | يو کتاب | چې اولولو مونږه هغه | ورته اووايه | پاک دی | رب زما
ترڅو چې ته په مونږ يو کتاب راونه ليږې کوم چې مونږ اولولو ته ورته اووايه چې زما رب پاک دی

هَلْ كُنْتُ | إِلَّا | بَشَرًا | رَّسُولًا ۝ | وَمَا مَنَعَ | النَّاسَ | أَنْ يُؤْمِنُوا
نه يم زۀ | مګر | يو انسان | پيغام راوړونکې يم | او منع نه کړل | خلقو لره | چې ايمان راوړی
زۀ خو صرف يو پيغام رسوونکې انسان يم اودوئ څه بلې غټې خبرې دايمان نه راوړلو نه منع نه کړه

....باقی حاشيه د تيرمخ]... لونړه دی چا ونيل چه ترکومې ته الله تعالی اوډ هغه فرښتې مونږ له ښه په ښکاره رانه ولې مونږ به ايمان نه راوړو بيا مجلس ختم کړې شو. عبدالله بن ابی، اميه بن مغيره بن عبدالله بن مخزوم چه د حضور ﷺ د ترور عاتکه رضي الله عنها بنت عبدالمطلب خوئ وو حضور ﷺ سره شو او ونی ونيل چه داخو ډيره دَ بې انصافئ خبره ده چه قوم څه اوونيل هغه هم تامنظور نه کړل بيائی چه څه اوغوښتل هغه هم تا پوره نه کړل بيا چه دَ کوم څيز نه تا هغوی ويرول هغه ئی اوغوښتل نو هغه هم تاونه کړل. اوس خو به زه دَ الله تعالی قسم په تاباندې ايمان راونړم ترکومې چه ته يوه پاوړئی اونه لګوې اودَ آسمان نه څه کتاب راونړئی او څلور فرښتې خپل ځان سره ګواه رانه ولې. حضور ﷺ په دې خبرو باندې ډير زيات خفه شو په دې شوق سره راغلې وو چه کيدې شی دَ قوم سرداران زما څه خبره اومنی خو چه کله دَ هغوی سرکشئی اودَ ايمان نه لرېوالې ئی اوليدو نوډير زيات خفه شو اوخپل کورته واپس لاړو. (الطبری:۵۵۷/۱۷)

إِذْ جَآءَهُمُ الْهُدَىٰ إِلَّآ أَنْ قَالُوٓا أَبَعَثَ اللَّهُ

کله چی | راغي هغوئ ته | هدایت | مګردې خبری | چی اووئیل هغوئ | آیا راولیږ.و | الله

څه وخت چې هدایت ورته راغلو خو بس دې خبرې چې دوئ اووئیل آیا الله ﷻ

بَشَرًا رَّسُولًا ۝ قُلْ لَّوْ كَانَ فِي الْأَرْضِ مَلَٰٓئِكَةٌ يَمْشُونَ

یوانسان | رسول | ورته اووایه | که چری وې | په زمکه کښې | فرښتې | چی ګرزیدلې

یوبنیادم پیغمبر راولیږلو؟ ته ورته اووایه چې که په زمکه باندفرښتې ګرځیدلې

مُطْمَئِنِّينَ لَنَزَّلْنَا عَلَيْهِم مِّنَ السَّمَآءِ مَلَكًا

په اطمینان سره | نوخامخابه موږنازل کړی وه | په دوئ باند | دآسمان نه | یوه فرښته

اوارام سره اوسیدلې نو موږ به ضرور فرښته رسول

رَّسُولًا ۝

په حیثیت درسول

راکوز کړې وو

### آسان ترجمه قرآن

او وائی چه : موږ به په تا باندې هغه وخته پورې ایمان رانوړو چه ترڅو تا زمکه شلولو سره زموږ دپاره یو چینه نه وی راویستلې. او یا ستا دپاره د کهجورو او انګورو یو باغ پیدا شی، او ته د هغې په مینځ کښې زمکه شلولو سره نهرونه جاری کړې. یا څنګه چه ته دعوې کوې اسمان ټکرې ټکرې کولو سره په موږ باندې راوغورزوه، او یا الله پاک او ملائک زموږ مخې ته راوله. او یا ستا دپاره د سرو زرو یو کور دِ پیدا شی، یا ته آسمان ته اوخیژې، او موږ به ستا ختل هم تر هغه وخته پورې او نه منو ترڅو چه ته په موږ داسې کتاب نازل نه کړې کوم چه موږ اولولو. (اې پیغمبره!) اووایه چه : پاکی ده الله لره، زه خو یو بشر یم چه پیغمبر رالیږلې شوې یم، د دې نه سوا هیڅ نه یم. اوکله چه دې خلقو ته د هدایت پیغام راغلو نودوئ د ایمان راوړلو نه هم دې خبرې منع کړل چه دوئ به وئیل: آیا الله پاک یو انسان رسول رالیږلې دې؟ اووایه چه : که په زمکه کښې ملائک په اطمینان سره اوسیدل نو بیشکه موږ به د اسمان نه یو فرشته رسول رالیږلې وې.

### خلاصه تفسیر

په تیرو ایتونو کښې دکفارو څو سوالونه او دهغو جوابونه ذکر وو په دې مذکوره ایتونو کښې ددوی یو څو نارامه او عنادی سوالونه او دبې سرو پښو فرمائشونو ذکر او دهغو جواب دې اخرجه ابن جریر عن ابن عباس رضی الله عنه ([1])[اوداخلق ] سره ددې چه دمعجزقرآن په ذریعه ستا دنبوت اورسالت پوره او واضح ثبوت دوی ته ملاؤشو بیا هم د نارامئ او ضد په وجه ایمان نه راوړی او دابهانه کوی چه ﴿وَقَالُوا لَن نُّؤْمِنَ لَكَ﴾ [وائی چه موږ په تاهرګز ایمان نه راوړو ﴿حَتَّىٰ تَفْجُرَ لَنَا﴾ ترڅوچه ته زموږ دپاره د]﴿مِنَ الْأَرْضِ يَنبُوعًا ۝﴾ [مزکې نه یوه چینه جاری نه کړې

---

[1]) تفسیر الطبری تحت هذه الآیة[ ج:۱۷ص:۵۵۵، ۵۵۶]

﴿أَوْ تَكُونَ لَكَ جَنَّةٌ مِّن نَّخِيلٍ وَعِنَبٍ﴾ یاخاص ستا دپاره دکجورو او انګورو یو باغ نه وی ﴿فَتُفَجِّرَ الْأَنْهَارَ خِلَالَهَا تَفْجِيرًا﴾ بیاددې باغ په مینځ مینځ کښې ځای په ځای ډیر نهرونه نه جاری کړې ﴿أَوْ تُسْقِطَ السَّمَاءَ كَمَا زَعَمْتَ عَلَيْنَا كِسَفًا﴾ یا لکه ته چه وایئ ته په مونږ داسمان ټکړې راونه غورزوې ] لکه چه دقرآن په دې ایت کښې ارشاددې ﴿إِن نَّشَأْ نَخْسِفْ بِهِمُ الْأَرْضَ أَوْ نُسْقِطْ عَلَيْهِمْ كِسَفًا مِّنَ السَّمَاءِ﴾ یعنی که مونږ وغواړونو دوی به په مزکه کښې دننه ننباسو اویاپه دوی داسمان ټکړې راوغورزوو ﴿أَوْ تَأْتِيَ بِاللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ قَبِيلًا﴾ [یاته الله تعالی لره اوفرښتولره] زمونږ [مخې ته رانه ولې] چه مونږ یې په ډاګه ووینو ﴿أَوْ يَكُونَ لَكَ بَيْتٌ مِّن زُخْرُفٍ﴾ [یاتاسره دسرو زرو جوړ شوې کورونه وی ﴿أَوْ تَرْقَىٰ فِي السَّمَاءِ﴾ یاته اسمان ته] زمونږ په وړاندې [ونه خیژې ﴿وَلَن نُّؤْمِنَ لِرُقِيِّكَ﴾ اومونږ خو به ستا] اسمان ته [په ختلو چرې هم یقین ونه کړو ﴿حَتَّىٰ تُنَزِّلَ عَلَيْنَا كِتَابًا نَّقْرَؤُهُ﴾ ترڅوچه ] دهغه ځای نه [ته مونږ ته یو کتاب رانه وړې کوم لره چه مونږ ولولوهم ] اوپه دې کښې ستااسمان ته درسیدو تصدیق په طوردرسیدلیکلې وی[ته ] ددې ټولو خرافاتو په جواب کښې ﴿قُلْ سُبْحَانَ رَبِّي هَلْ كُنتُ﴾ [وفرمایه چه پاك دې الله تعالی زۀ بغیر ددې نه چه بنیادم یم ] مګر ﴿إِلَّا بَشَرًا رَّسُولًا﴾ [پیغمبر یم بل څه یم ] چه دافرمائشو نه پوره کول زماپه قدرت کښې وی داقدرت مطلقه خوصرف دالله تعالی خاص صفت دې بشریت خو په خپله په خپل ذات کښې دعجز اوبې اختیارئ مقتضی دې پاتې شوه درسالت معامله نو هغه هم ددې مقتضی نه ده چه دالله تعالی رسول ته ددهرشی مکمل اختیار وی بلکه دنبوت اورسالت دپاره خو دومره خبره کافی ده چه درسالت څه صفا او واضح دلیل راشی داسې چه دعاقلانو پرې اعتراض نه وی او هغه دلیل دقرآن اعجاز او د نورو معجزو په صورت کښې ډیر څله پیش شوې دې په دې وجه دنبوت اورسالت دپاره ددې فرمائشونو مطالبه محض عبث ده او الله تعالی ته دهر څه قدرت شته . هغه هر څه کولې شی مګر دهغه نه چاته د مطالبې کولو حق نشته کوم څیز چې هغه د حکمت مطابق اوونیی نو ښکاره کوی ئې هم مګر دا ضروری نه ده چه ستاسوټول فرمائشو نه پوره کړی ﴿وَمَا مَنَعَ النَّاسَ أَن يُؤْمِنُوا إِذْ جَاءَهُمُ الْهُدَىٰ﴾ [اوخه وخت چه دې خلقو ته هدایت] یعنی درسالت صحیح دلیل په مثل داعجاز دقرآن [ورسیدو دغه وخت دوی سره دایمان راوړو نه بغیر ددې بله څه ] دنظرقابله [ خبره نشته منع کوونکې چه دوی ] بشریت درسالت منافی وګنړلو په دې وجه وائی ﴿إِلَّا أَن قَالُوا أَبَعَثَ اللَّهُ بَشَرًا رَّسُولًا﴾ [ آیاالله تعالی بشر لره رسول جوړوی رالیږی ]یعنی داسې نه شی کیدې ﴿قُل لَّوْ كَانَ فِي الْأَرْضِ مَلَائِكَةٌ﴾ [ته ] په جواب کښې زمونږ دطرف نه [وفرمایه چه که په مزکه فرښتې ] وسیدلې [وې ﴿يَمْشُونَ مُطْمَئِنِّينَ﴾ چه په دې ګرځیدې وسیدې ﴿لَنَزَّلْنَا عَلَيْهِم مِّنَ السَّمَاءِ مَلَكًا رَّسُولًا﴾ نو مونږ به خامخا په دوی داسمان نه فرښته رسول جوړوله رالیږله ].

## معارف او مسائل

**د فضول سوالونو پیغمبری جوابونه:** دې آیتونو کښې چې کوم سوالونه اوفرمائشونه رسول کریم ﷺ څخه د خپل ایمان راوړلو دپاره دشرط په ډول اوکړې شو هغه ټول داسې دی چې هر انسان ئې په آوریدو دې ګنړلو ته مجبوره شی ، چې دا هسې ټوقې کول او ایمان نه راوړلو دپاره سوده بهانې دی. په فطری ډول انسان ته دداسې سوالونو په جوابونو ورکولو کښې غصه ورځی او

هم په دې انداز کښې جواب هم ورکوی . خو دې ځائې کښې چې الله ﷻ د کوم جواب خودنه نبی کریم ﷺ ته کوی هغې ته فکر کول پکار دی . او ضروری ده چې دامت اصلاح کوؤنکې دې ئې تل یاد لری او خپل دستور العمل دې ئې جوړ کړی . نو په جواب ورکولو کښې نه خو د هغوئ بې قوفی ښکاره کړې شوه د ضد د ورانکارئی پیغور هم ورنکړې شو . بلکه په ساده لفظونو کښې اصل حقیقت ورته په ګوته کړې شو چې ورته اوفرمائیلې شو چې ستاسو خلقو غالبا دا خیال راغلې دې چې پیغمبر جوړ کړې شوې دې د ټول خدائی اختیاراتو مالك او په هر څیز قدرت لرونکې وی ، حالانکه دا خیال لرل غلط دی ولې چې د پیغمبر کار صرف د الله ﷻ پیغام رسول دی ، الله ﷻ د هغوئ د پیغمبرئی ثابتولو دپاره ډیرې معجزې هم لیږی مګر دا ټول هر څه دالله ﷻ په قدرت او اختیار کښې وی . نبی کریم ﷺ د خدائی اختیاراتو مالك نه دی ، نبی کریم ﷺ انسان دې ، دانسانی قوت او قدرت څخه بل څه زیات طاقت نه لری . البته الله ﷻ د نبی کریم ﷺ د امداد په غرض خپل غالب قوت ښکاره کوی .

**انسانانو دپاره بوازې انسان پیغمبر کیدې فرښتې د دوئ پیغمبر نشی کیدې** :: دعامو کافرانو او مشرکانو داخیال وو چې یو انسان د الله ﷻ پیغمبر څکه نشی کیدې چې هغه هم زمونږ په شان ټول انسانی حاجتونه لری . نو زمونږ څخه زیات په څه کښې اوچت کیدې شی چې مونږ ئې د الله ﷻ پیغمبر اوګڼړو او خپل پیشوا ئې جوړ کړو .

ددوئ دې خیال جواب د قرآن عظیم الشان په ډیرو آیتونو مبارکو کښې ورکړې شوې دې ، دلته په آیت مبارك : ﴿وَمَا مَنَعَ النَّاسَ﴾ کښې د ورکړی جواب حاصل دادې چې د الله ﷻ انسان پیغمبر هم خپلو هم جنسو انسانانو ته لیږل څکه ضروری دی چې بل هم جنس سره ئې سمون نشی راتلې چې د هدایت او لارې خودلو فائده ترې حاصله شی ، که انسانانو ته فرښته د رسول ؑ او پیغمبر ؑ په حیث لیږلې شوې نو هغه خو لوږه ، تنده ، یخنی ګرمی و جنسی خواهشات دسره نه پیژنی ، په کار محنت کولو سره نه ستومانه کیږی . نو هغوئ به دغه شان طمع به ئې د انسانانو څخه هم لرله . د انسانانو دغسې قسم مجبوری او کمزورئی به ئې نشوه محسوسولې . دغه حال به د انسانانو هم وو چې په هیڅ خبره کښې به ئې د فرښتې تابعداری نه شوه کولې دا به یې وئیله چې مونږ کښې ددوئ د نقل کولو صلاحیت نشته .

د اصلاح او هدایت کار صرف په هغه صورت کښې چلیدې شی چې انسان دې د الله ﷻ پیغمبروی ، چې پخپله هم انسانی جذبات اوطبعی خواهشات لری خوورسره د ملکیت یو شان ورته هم حاصل وی چې د عامو انسانانو او فرښتو ترمینځه د واسطې او رابطې کار ورکړې شی ، وحی راوړونکو فرښتو څخه وحی حاصل کړی او خپلو هم جنسو انسانانو ته ئې رسوی . دې بیان سره هغه شبه هم ختمه شوه چې هر کله عام انسانان د فرښتې څخه فیض نشی حاصلولې نو پیغمبر ترې څنګه دوحی فیض حاصلولې شی چې هم هغه انسان وی ؟ بلکه دا سوال او شبه هم دفع شوه چې انسان پیغمبر د پیریانو څنګه جوړې شی . چې هغوئ سره ئې هیڅ نسبت نشته دې ؟ جواب ئې دادې چې په پیغمبر کښې د ملکیت یو شان هم وی چې دهغې په وجه پیریانو سره ئې هم نسبت شته دې .

په آخری آیت مبارك کښې ارشاد فرمائی چې هر کله تاسو انسانان یئ نو ستاسو دا مطالبه د عقل سره سمون نه خوری چې تاسو ته دې فرښته پیغمبره وی که په زمکه باندې فرښتو

استوګنه لرلې او د پیغمبر لیږلو ضرورت ورته وې نو هم فرښته به مو ورته پیغمبره لیږلـه ، دلتـه د فرښتو ﴿يَمْشُونَ مُطْمَئِنِّينَ﴾ صـفت بیـانولو کـښې دا ښـکاره کـول دي چې فرښتو تـه د فرښتې پیغمبر لیږلو ضرورت به هله وو چې هغوئ هم په زمکه اوسیدلې ا و پخپله آسمان ته نه شوې تلې ،ورنه که پخپله آسمان ته د ورتلو قدرت یې لرلې نو زمکې تـه هغوئ دپـاره د رسـول ﷺ لیږلو ضرورت نه وو.

قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا ۢ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ ۭ

اووایه | کافي دي | الله | په حیثیت دګواه | په منځ زما | او په منځ ستاسو کښې

اووایه چې زما اوستاسو ترمینځه الله ﷻ دګواهۍ دپاره کافي دې

اِنَّهٗ كَانَ بِعِبَادِهٖ خَبِيْرًا ۢ بَصِيْرًا ﴿۹۶﴾ وَمَنْ يَّهْدِ

بیشکه هغه[الله] | دې | په بندګانو خپلو | خبردار | لیدونکې | او چاته چې | لاره اوښائي

الله ﷻ دخپلو بندګانو په حال ښه خبر دې هرڅه ویني ګوري څوک چې

اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ ۚ وَمَنْ يُّضْلِلْ فَلَنْ تَجِدَ

الله | نوهغه | هدایت موندونکې دې | اوڅوك چې ګمراهه کړي هغه | نوهرګزبه ته بیانه مومې

الله ﷻ په سمه لار روان کړي نوهغه سمه لار بیا مومي او څوک چې بې لارې کړي نوهیڅوک به

لَهُمْ اَوْلِيَاۗءَ مِنْ دُوْنِهٖ ۭ وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ

دپاره د هغوئ | دوستان | ماسوا دهغه نه | او راجمع به کړو مونږ هغوئ لره | په ورځ دقیامت

دالله ﷻ نه بغیر دهغوئ مددګار بیانه مومې اومونږ به دوئ دقیامت په ورځ پرمخې

عَلٰي وُجُوْهِهِمْ عُمْيًا وَّبُكْمًا وَّصُمًّا ۭ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ۭ

په مخونو دهغوئ باند | ړانده | اوګونګیان | او کانړه | ځائې دهغوئ | دوزخ دې

ړانده ، ګونګیان ، اوکانړه راپاڅوو ددوئ تیکاؤنړه جهنم ده

كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنٰهُمْ سَعِيْرًا ﴿۹۷﴾ ذٰلِكَ جَزَاۗؤُهُمْ

هرکله چې | کمې شې لمبې ددوزخ | زیات به کړو هغوئ ته مونږ | اور | دا بدله دهغوئ ده

اوهرکله چې دهغې لمبې په کمیدو راشي نو مونږ به ئې نورې زیاتې غرغرندې کړو دادهغوئ سزاده

بِاَنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِنَا وَقَالُوْٓا ءَاِذَا كُنَّا عِظَامًا

په سبب ددې چې هغوئ | انکاراوکړو | دایتونوزمونږنه | اووې وئیل | آیاهرکله چې | شومونږه | هډوکې

ځکه چې هغوئ زمونږ دآیتونو نه انکار کړې وو اودا به ئې وئیل چې هرکله مونږ هډوکې

وَّرُفَاتًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ خَلْقًا جَدِيْدًا ﴿۹۸﴾ اَوَلَمْ يَرَوْا

اوخاورې ذره ذره | آیامونږبه بیا | خامخاراپورته کړې کیږو | په پیداوښت | نوې سره | آیانه وینې دوئ

اوریزه ریزه شو نو آیا بیا به دنوې سره راپیدا کیږو آیادوئ دې خبرې ته نه ګورې

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَنَّ اللَّهَ | الَّذِي | خَلَقَ | السَّمٰوٰتِ | وَالْأَرْضَ | قَادِرٌ | عَلَىٰ | | | |
| چې بیشکه الله | هغه | چې پیدا کړي ئې دي | آسمانونه | او زمکه | قادر دی | په دې باند | | | |

چې هغه الله ﷻ ټول آسمانونه او زمکه پیدا کړي دي په دې هم قادر دې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَنْ يَخْلُقَ | مِثْلَهُمْ | وَجَعَلَ | لَهُمْ | أَجَلًا | لَا رَيْبَ | |
| چې پیدا کړي | مثل ددوئ | او هغه مقرر کړې دې | دپاره ددوئ | یو وخت | چې نشته شك | |

چې ددوئ غوندې خلق پیدا کړي هغه دوئ له یوه نیټه مقرر کړې ده چې هیڅ شک په

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِيهِ ط | فَأَبَى | الظّٰلِمُونَ | إِلَّا | كُفُورًا ﴿۹۹﴾ | قُلْ |
| په هغې کښې | نو منع اوکړه | ظالمانو | مګر منع ئې اونه کړه | دانکارنه | دوئ ته اووایه |

کښې نشته نو ظالمانو دانکار نه سوا بل هیڅ قبول نه کړل ته ورته اووایه چې که

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَوْ | أَنْتُمْ | تَمْلِكُونَ | خَزَائِنَ رَحْمَةِ | رَبِّي | إِذًا |
| که چرې | تاسو | مالکان وې | دخزانو درحمت | درب زما | نو بیابه |

تاسو زما درب درحمت دخزانو مالکان شوی وې نو بیا به تاسو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَأَمْسَكْتُمْ | خَشْيَةَ | الْإِنْفَاقِ ط | وَكَانَ | الْإِنْسَانُ | قَتُورًا ﴿۱۰۰﴾ |
| خامخا بندې کړې وې تاسو | دیرې | دخرچ کیدونه | او دې | انسان | زړه تنګې |

دهغې دختمیدو دویرې نه لاسونه نیولی وو او انسان ډیر زړه تنګې دې

**آسان ترجمه قرآن**

اووایه چه: الله پاک زما او ستاسو ترمینځه ګواه جوړیدو دپاره کافي دې. بیشکه هغه د خپلو بندګانو نه پوره طریقې سره خبردې، هرڅه وینی او چاته چه الله پاک هدایت ورکړی، هم هغه په نیغه لاره بالدې وی، او کوم خلق چه په ګمراهئ کښې اخته کړی نو دهغوی دپاره به ته د هغه نه سوا هیڅ مددګار نه مومې، او مونږ به هغوی د قیامت په ورځ پرمخې داسې راجمع کړو چه هغوی به ړاندۀ، ګونګیان او کانړۀ وی. د هغوی د استوګنې ځائې به جهنم وی. چه کله د هغې اور په مړۀ کیدو شی نو مونږ به ئې نور هم تیز کړو. دا د هغوی سزا ده، ځکه چه هغوی زمونږ د آیتونو نه انکار کړې وو، او دائې وئیلې وو چه: آیا چه کله مونږ (مړۀ کیدو سره) هډوکی هډوکی پاتې شو، او ذره ذره شو نو آیا بیا به مونږ د نوې سر نه ژوندی کولې شو؟ آیا دوئ په دومره خبره بالدې پوهه نه شو چه هغه الله پاک چا چه ټول آسمانونه او زمکې پیدا کړی دی، هغه په دې خبره بالدې قادر دې چه ددوئ په شان سرې پیدا کړی؟ او هغه یو داسې میعاد مقرر کړې دې چه (د) هغې (په راتلو) کښې هیڅ شک نشته. بیا هم دا ظالمان د انکار نه سوا په هیڅ خبره بالدې رضا نه دی. (اې پیغمبره! دې کافرو ته) اووایه چه: که زما د رب د رحمت خزانې چرته ستاسو په اختیار کښې وې نو تاسو به دخرچ کیدو د ویرې نه ضرور لاس بند کړې وې. او انسان دې هم ډیر تنګ زړه والا!

## خلاصه تفسیر

هر کله چه داخلق دنبوت اورسالت دواضحو دليلونو راتلو اود تولو شكونو لرې كيدو نه پس بياهم نه منى نو [ته] اخرى خبره ﴿قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًۢا بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ﴾ [ووايه چه الله تعالى زما او ستاسو په مينځ كښې ] داختلاف [پوره ګواه دې ] يعنى خداىٔ پوهه دې چه زۀ په واقع كښې دالله تعالى رسول يم ځكه چه ﴿اِنَّهٗ كَانَ بِعِبَادِهٖ خَبِيْرًۢا بَصِيْرًا﴾ [هغه ] حالات د [خپلو بندګانو لره ښه پيژنى ښه وينى] ستاسو ناراضى اوضد هم وينى ﴿وَمَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ﴾ [اوالله تعالى چه چالره په لارې كړى هغوى په لارې وى ﴿وَمَنْ يُّضْلِلْ فَلَنْ تَجِدَ لَهُمْ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِهٖ﴾ اوچالره چه بې لارې كړى نوخداىٔ نه سوا به ته ددوى دپاره څوك مددګار بيانه مومې ] اودكفر په وجه دوى دخداىٔ دمدد نه محرومه دى مطلب دادې چه تر څوپورې دخداىٔ تعالى دطرف نه دستګيرى نه وى نو نه هدايت كيدې شى اونه دعذاب نه نجات وى ﴿وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَلٰى وُجُوْهِهِمْ عُمْيًا وَّبُكْمًا وَّصُمًّا﴾ [ اومونږ به دقيامت په ورځ دوى لره ړانده ګونګيان اوكاڼه پرمخ روان كړو ﴿مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ﴾ ددوى ځاىٔ دوزخ دې ] چه داحال به ئې وى چه [دغه ] يعنى ددوزخ اور ﴿كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنٰهُمْ سَعِيْرًا﴾ [هر كله لږ كمزورې شى دغه وخت به ئې مونږ د دوى دپاره نورزيات تيز كړو ﴿ذٰلِكَ جَزَآؤُهُمْ بِاَنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِنَا﴾ داده ددوى سزا په دې سبب سره چه دوى زمونږ دآيتونو نه انكار كړې وو ﴿وَقَالُوْٓا ءَاِذَا كُنَّا عِظَامًا﴾ اوداسې به ئې وئيل چه آيا مونږ هډوكى او] هغه هم ﴿وَّرُفَاتًا﴾ [بالكل خس خس او ذره ذره شو ﴿ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ خَلْقًا جَدِيْدًا﴾ نو آيا مونږ به دنوى سره دوباره پيداكړى ] دقبرونونه [پورته كړې شو ﴿اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ﴾ نو ايا دې خلقو ته دومره معلومه نه ده چه كوم الله تعالى اسمانونه اومزكه پيداكړل هغه په دې خبره ] په درجه اولىٔ ﴿قَادِرٌ عَلٰٓى اَنْ يَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ﴾ [قادر دې چه هغه ددوى په شان بنيادم دوباره پيداكړى او] د انكاركوونكوبه شايد داوسوسه وى چه په زرګونو لكونو مړۀ شول مګرتراوسه خو دا وعده د دوباره ژوندى كولو اوپورته كولو پوره نه شوه نو ددې وجه داده چه ﴿وَجَعَلَ لَهُمْ اَجَلًا﴾ [ددوى د دوباره پيداكولو ﴿لَّا رَيْبَ فِيْهِ﴾ [دپاره يو ميعاد مقرر شوې دې چه په دې ميعاد] مقرر [كښې ذره هم شك نشته ﴿فَاَبَى الظّٰلِمُوْنَ اِلَّا كُفُوْرًا﴾ په دې هم ظالمان خلق بې انكاركولو پاتې نه شول ﴿قُلْ لَّوْ اَنْتُمْ تَمْلِكُوْنَ﴾ ته وفرمايه چه كه تاسو خلق زما د رب درحمت ] يعنى نبوت ﴿خَزَآئِنَ رَحْمَةِ رَبِّيْٓ﴾ [دخزانو ] [يعنى كمالاتو] اختيار مندوې چه چاته موغوښتې وركولې چاته مونه غوښتې نه مووركولې ﴿اِذًا لَّاَمْسَكْتُمْ﴾ [نو په دې صورت كښې به تاسو ] ﴿خَشْيَةَ الْاِنْفَاقِ﴾ ددې [ دخرچ كيدو دويرې نه ضرور لاسونه منع كړى وو ] چرته به موچاته نه وو وركړى حال دادې چه داخيزونه دچاپه وركړو كميږى هم نه﴿وَكَانَ الْاِنْسَانُ قَتُوْرًا﴾ [ اوبنيادم دې ډير تنګ زړې ] چه نه كميدونكې شې هم د وركولو نه منع كوى چه ددې وجه درسولانو سره دښمنى اودبخل نه علاوه شايداهم وى چه كه چالره نبى اورسول جوړكړى نو بيا به ددۀ داحكامو پابندى كول وى لكه يو قوم چه اتفاق وكړى اوڅوك خپل بادشاه جوړ كړى نو ګويا جوړكړې دوى دې ليكن هركله چه هغه بادشاه جوړ شى نو دهغه به بيا اطاعت كول وى.

## معارف او مسائل

﴿قُل لَّوْ أَنتُمْ تَمْلِكُونَ خَزَائِنَ رَحْمَةِ رَبِّي﴾ آخری آیت مبارك کښې الله ﷻ فرمائي چې که تاسو د الله ﷻ د رحمت د خزانو مالکان جوړ شئ نو ددې ویرې نه به ئې چاته په ورکولو کښې شومتوب او بخل کوئی چې ددې په ورکولو او لګولو سره به دا ختم شي اګر چې د پروردګار د رحمت خزانې ختمیدونکې نه دی خو د انسان طبیعت دادې چې زړه تنګ لری او حوصله ئې کمه وی ، په ارت مټ چاته ورکړه نه کوی .

دلته در ب د رحمت د خزانو نه عامو مفسرینو د مال، دولت ، خزانې مراد اخستې دی ، وړاندې سره ددې تړون دادې چې د مکې کافرانو ددې فرمائش کړې وو چې که تاسو ﷺ واقعی په حقه پیغمبر یئ نو تاسو دمکې په اوچه شګلنه صحرا کښې نهرونه جاری کړی او په زرغونو باغونو کښې ئې بدل کړئی څنګه چې دشام ملك زمکه ده . ددې جواب وړاندې داسې تیر شو ېدې چې تاسو خو ما لره ګویا کښې خدای ګڼرلي دې چې د خدائی اختیاراتو غوښتنه زمانه کوئی زه خو صرف یو رسول یم .خداې نه یم چې څه غواړم نو هغه اوکړم، که دا آیت هم ددې متعلق اوګرځولې شی نو مطلب به ددې دا وی چې که د مکې مکرمې زمکې لره نهری زمکې او زرخیزه جوړولو فرمائش که زما د نبوت او رسالت د امتحان دپاره دې نو ددې دپاره د قرآن پاك معجزه کافی ده ، د نورو فرمائشونو ضرورت نشته دې ، او که د قومی او ملکی ضرورتونو د پوره کولو دپاره دې نو یاد ساتئ که ستاسو دخواهش مطابق که تاسو ته د مکې د زمکې څخه هر څه درکړې شی نو او د خزانو مالکان تاسو جوړ کړئ شئ نو ددې انجام به هم د قوم او ملك د عوامو خوشحالی نه وی بلکه د انسانی عادت مطابق د چا په قبضه کښې چې دا خزانې راشی نو هغوئ به لکه د مار پرې خیته واچوی . په عوامو باندې دهغې د لګولو نه به څکه ویریږی چې هسې نه مفلسه نشو په داسې صورت کښې به سوا ددې څخه چې دمکې مکرمې یو څو غټان امیران به خوشحاله شی د عوامو به څه فائده وی ، اکثرو مفسرینو ددې آیت مبارك مفهوم هم دا ګرځولې دې .

سیدی حکیم الامت تهانوی ﷫ بیان القرآن کښې دلته د رب د رحمت نه مراد پیغمبری او د خزانو د رحمت نه مراد د پیغمبرئ کمالونه اخستی دی . ددې تفسیر په جو ددې تړون به تیرو شوؤ آیتونو سره دا وی چې تاسو د پیغمبرئ او رسالت دپاره بې سرو پښو ، او عبث مطالبې چې کوئ د هغې حاصل دادې چې زما پیغمبری منل نه غواړی نو آیا دا مو خوښه ده چې د پیغمبرئ انتظام ستاسو په لاس کښې درکړې شی ، چا لره چې تاسو غواړئی پیغمبر ئې جوړ کړئ ، که داسې اوکړې شی نو ددې نتیجه به دا راؤځی چې تاسو به هیچا ته نبوت اورسالت نه ورکوئی. د شومتوب نه به ئې ځان سره خوندی او ساتئ ، حضرت ددې تفسیر په نقل کولو سره فرمائیلی دی چې د اتفسیر د الله ﷻ د بخشیشونو ځینې دې چې مقام سره ډیر ښه لګی د لته د رحمة نه پیغمبری مراد اخستل به داسې وی څنګه چې په ﴿أهم يقسمون رحمة ربك﴾[1] کښې په اجماع سره د رحمة نه مراد هم پیغمبری وه .[2] والله سبحانه وتعالی اعلم .

[1] ) بیان القرآن تحت هذه الآیة [ ج:٦ ص:١٠٤]
[2] ) ترجمه:-آیا دا خلق ستا درب رحمت تقسیمول غواړی.

| وَلَقَدْ اٰتَيْنَا | مُوْسٰى | تِسْعَ اٰيٰتٍۢ | بَيِّنٰتٍ | فَسْـَٔلْ |
|---|---|---|---|---|
| اوور كړي وې مونږه | موسى ته | نهه نښې | ښكاره | نو تپوس اوكړه ته |

اوبيشكه مونږ موسى ﷺ ته نهه څرګنده نخښې وركړې وې نو بنى اسرائيلو نه

| بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ | اِذْ جَآءَهُمْ | فَقَالَ | لَهٗ | فِرْعَوْنُ |
|---|---|---|---|---|
| دبنى اسرءيلو نه | كله چې راغې [موسى] هغوئ ته | نواووئيل | هغه ته | فرعون |

پوښتنه اوكړه هركله چې موسى ﷺ دوئ ته راغلو نو فرعون دهٔ ته اووئيل

| اِنِّيْ | لَاَظُنُّكَ | يٰمُوْسٰى | مَسْحُوْرًا | قَالَ |
|---|---|---|---|---|
| چې بيشكه زهٔ | خامخا ګمان كوم په تا | اے موسى | چې په تاجادو شوې دې | اووئيل موسى |

اے موسى ﷺ ! زما خيال دې چې په تاباندې چا جادو كړې دې [موسى ﷺ] اووئيل

| لَقَدْ عَلِمْتَ | مَآ اَنْزَلَ | هٰٓؤُلَآءِ | اِلَّا | رَبُّ السَّمٰوٰتِ |
|---|---|---|---|---|
| معلومه ده تاته | چې نهٔ دى نازل كړى | دانښې | مګر نازلې كړې دى | رب دآسمانونو |

چې تاته ښه معلومه ده چې دآسمانونو او زمكې دپروردګار نه سوا دا نخښې بل چا نه دى نازلې كړې

| وَالْاَرْضِ | بَصَآئِرَ | وَاِنِّيْ | لَاَظُنُّكَ | يٰفِرْعَوْنُ | مَثْبُوْرًا |
|---|---|---|---|---|---|
| اودزمكې | ښكاره | نوبيشكه زهٔ | خامخا ګمان كوم په تا | اے فرعونه | دهلاك شوى |

دا [تاسودپاره] دپوهې خبرې دى او اے فرعونه بيشكه څه خيال كوم چې ته به هلاك شې

| فَاَرَادَ اَنْ | يَّسْتَفِزَّهُمْ | مِّنَ الْاَرْضِ | فَاَغْرَقْنٰهُ | وَمَنْ |
|---|---|---|---|---|
| نو اراده اوكړه فرعون | چې اوباسى دوئ | د زمكې نه | نو غرق كړو مونږ هغه | اوهغه څوك |

نو فرعون اراده اوكړه چې هغوئ دمصر دملك نه اوباسى نومونږ هغه اودهغه ټول

| مَّعَهٗ | جَمِيْعًا | وَّقُلْنَا | مِنْۢ بَعْدِهٖ لِبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ | اسْكُنُوا |
|---|---|---|---|---|
| چې دهغه سره وو | ټول | اواووئيل مونږه | روستو ددې نه بنى اسراءيلو ته | چې اوسئ تاسو |

ملګرى په يو ځائې غرق كړل اودهغه نه پس مونږ بنى اسرائيلو ته اووئيل چې په دې

| الْاَرْضَ | فَاِذَا | جَآءَ | وَعْدُ الْاٰخِرَةِ | جِئْنَا | بِكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| [په دې ] زمكه كښې | نو كله چې | راشى | وعده دآخرت | رابه ولومونږ | تاسولره |

ملك كښې اوسيږئ نوهركله چې دآخرت دوعدې وخت راشى نو مونږ به تاسو ټول

| لَفِيْفًا | وَبِالْحَقِّ | اَنْزَلْنٰهُ | وَبِالْحَقِّ | نَزَلَ | وَمَآ |
|---|---|---|---|---|---|
| په جمع | اودحق سره | نازل كړې دې موږه داقرآن | اوهم دحق سره | نازل شوې دې | اونهٔ ئې |

راغونډ كړو اومونږ داكلام په حقه نازل كړې دې اودا په حقه نازل شوې دې اومونږ

اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا مُبَشِّرًا وَّنَذِيْرًا ﴿١٠٥﴾ وَقُرْاٰنًا فَرَقْنٰهُ

ليږلي مونږته | مگر | زيري وركونكي | اويرونكي | اوداقرآن چي دي | لږلږنازل كړي دي مونږدا

ته زيري وركونكي اوويرونكي جوړ كړي راليږلي يئ اوداقرآن چي دي نوداموږ جداجدا برخي كړي دي

لِتَقْرَاَهٗ عَلَى النَّاسِ عَلٰى مُكْثٍ وَّنَزَّلْنٰهُ تَنْزِيْلًا ﴿١٠٦﴾

دپاره ددي چي اولولي ته داقرآن | په خلقوباندي | په ارام سره | اونازل كړي دي مونږداقرآن | په نازلولوسره

چي ته ئې خلقوته په قلاره قلاره اولولي اومونږ راليږلي هم لږلږ دي

قُلْ اٰمِنُوْا بِهٖۤ اَوْ لَا تُؤْمِنُوْا ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ

اووايه اے نبی | كه ايمان راوړئ تاسو | په دي قران | او كه نه راوړئ | بيشكه هغه كسان

[ائې نبی ﷺ] دي خلقوته اووايه چي كه تاسو پري ايمان راوړئ اوكه نه راوړئ بيشكه كومو خلقوله

اُوْتُوا الْعِلْمَ مِنْ قَبْلِهٖۤ اِذَا يُتْلٰى عَلَيْهِمْ

چي وركړي شوي دي | علم | مخكښې ددي نه | كله چي | لوستلي كيږي | په هغوئ باند [داقران] |

چي له دي نه وړاندي علم دكتاب وركړي شوي دي هركله چي دهغوئ په وړاندي اولوستلي شي

يَخِرُّوْنَ لِلْاَذْقَانِ سُجَّدًا ﴿١٠٧﴾ وَّيَقُوْلُوْنَ سُبْحٰنَ رَبِّنَاۤ

نوپريوزي هغوئ | په زنوباندپرمخي | سجده كونكی | اووائي هغوئ | پاك دي | رب زمونږ

نو هغوئ ورته پرمخي په سجده پريوزي اوداوائي چي زمونږ رب پاك دي

اِنْ كَانَ وَعْدُ رَبِّنَا لَمَفْعُوْلًا ﴿١٠٨﴾ وَيَخِرُّوْنَ لِلْاَذْقَانِ

بيشكه ده | وعده درب زمونږ | خامخاكيدونكي | او پريوزي هغوئ | په زنوندي پرمخي |

بيشكه زمونږ درب وعده پوره كيدونكي ده او هغوئ پرمخي پريوزي

يَبْكُوْنَ وَيَزِيْدُهُمْ خُشُوْعًا ﴿١٠٩﴾

ژاړي هغوئ | او زياتوي هغوئ ته | عاجزي |

او ددي قرآن په آوريدو دهغوئ عاجزي نوره هم زياته شي

### آسان ترجمه قرآن

او مونږ موسٰی علیه السلام ته نهه ښكاره نخښې وركړي وې. نو اوس د بنی اسرائيلو نه تپوس اوكړه چه كله هغوی هغه خلقو ته لاړل نو فرعون هغوی ته اووئيل اې موسٰی ! ستا په باره كښې خو زما دا خيال دې چه چا په تا باندې جادو كړې دې. موسٰی علیه السلام اوفرمائيل : تاته ښه معلومه ده چه دا ټولې نخښې بل چا نه، د آسمان او زمكې رب د بصيرت پيدا كولو دپاره نازل كړې دی، او اې فرعونه ! ستا په باره كښې زما دا يقين دې چه ستا بربادی راتلونكې ده. بيا فرعون دا اراده اوكړه چه دوی ټول (بنی اسرائيل) د دې زمكې نه اوباسی خو مونږ هغه او څومره خلق چه هغه سره وو، هغوی ټول غرق كړل. او د دې نه پس مو بنی اسرائيلو ته اووئيل چه تاسو په زمكه كښې اوسيږئ. پس بيا چه كله د آخرت د وعدې د پوره كيدو وخت راشی نو مونږ به تاسو ټول حاضرولو سره جمع كړو او مونږ دا قرآن د حق دپاره نازل

کړي دي، او دحق سره نازل شوي دي، او (اې پيغمبره) مونږ ته د بل څه کار دپاره نه، بلکه صرف ددې دپاره راليږلې ئې چه ته (فرمان بردارو ته) زيرې ورکړې، او (نافرمانو ته) خبرداري ورکړې. اومونږ قرآن کريم جدا جدا حصې کړو چه ته ئې دخلقو مخکښې په مزه مزه اولولې، او مونږ دا په لږه لږه نازل کړي دي. (کافرانو ته) اووايه چه که تاسو په دې باندې ايمان راوړئ، يا نه راوړئ، چه کله دا (قرآن) دهغه خلقو مخکښې لوستلې شي چاته چه ددې نه مخکښې علم ورکړې شوې وو نو هغوی په زنو باندې سجدې ته پريوځي. او وائي چه: پاک دې زمونږ رب! بيشکه زمونږ د رب وعده خو به ضرور پوره کيږي .او هغوی په ژړا ژړا په زنو باندې پريوځي، او دا (قرآن کريم) د هغوی د زړونو عاجزی نوره هم زياتوی.

## خلاصه تفسير

﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسٰى تِسْعَ اٰيٰتٍۢ بَيِّنٰتٍ﴾ [ اومونږه موسی ﷺ [ ته ښکاره نهه معجزې ورکړې] چه ذکرئ دنهمې پارې په شپږمه رکوع کښې په اولنی ايت کښې دې [کله چه دې بنی اسرائيلو ته راغلې وو ﴿فَسْـَٔلْ بَنِيْٓ اِسْرَاۗءِيْلَ اِذْ جَاۗءَهُمْ﴾ پس ته دبنی اسرائيلو نه ] که غواړې [تپوس وکړه ] اوچونکه دې فرعون طرف ته هم ليږلې شوې وو اودفرعون او د ال فرعون په ايمان نه راوړو سره عجيبه معجزې ظاهرې شوې وې په دې وجه حضرت موسی ﷺ فرعون ته دوباره دايمان راوړو دپاره ورياد کړل اوپه دغو واضحو ايتونو سره ويرولو ﴿فَقَالَ لَهٗ فِرْعَوْنُ اِنِّىْ لَاَظُنُّكَ يٰمُوْسٰى مَسْحُوْرًا﴾ [نو فرعون دهٔ ته ووئيل اے موسی زما په خيال کښې خو خامخا په تا چاجادو کړې دې ] چه په هغې سره ستاعقل خراب شوې دې اوداسې دليونو خبرې کوې ﴿قَالَ﴾ [موسی ﷺ [وفرمائيل ﴿لَقَدْ عَلِمْتَ﴾ ته] په زړهٔ کښې [ ښه پوهه يې ] اگر چه په ژبه سره دشرم په وجه اقرار نه کوې ﴿مَآ اَنْزَلَ هٰٓؤُلَاۗءِ اِلَّا رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ بَصَاۗىِٕرَ﴾ [ چه دا عجائبات خاص د اسمانونو او مزکې پروردګارراليږلی دی کومې چه دپوهيدودپاره ] کافی[ذريعې دی ﴿وَاِنِّىْ لَاَظُنُّكَ يٰفِرْعَوْنُ مَثْبُوْرًا﴾ او زما په خيال کښې خامخا ستا دکم بختئ ورځې راغلې دی ] اويا خو دفرعون داحال وو چه دحضرت موسی ﷺ په درخواست ئې هم بنی اسرائيلوته دمصرنه دتلو اجازت نه ورکولو او[بيا] داوشوه چه [دهٔ ] په دې احتمال سره چه چرته بنی اسرائيل دحضرت موسی ﷺ په اثر سره قوت ونه نيسی په خپله ئې ﴿فَاَرَادَ اَنْ يَّسْتَفِزَّهُمْ مِّنَ الْاَرْضِ﴾ [ وغوښتله چه دبنی اسرائيلو قدم ددې مزکې نه پورته کړی] يعنی دوی لره دښار نه وباسی [﴿فَاَغْرَقْنٰهُ وَمَنْ مَّعَهٗ جَمِيْعًا﴾ پس مونږه ] وراندې ددې نه چه دې کامياب شی په خپله [دهٔ لره اوکوم چه ددهٔ سره ووتول غرق کړل ﴿وَّقُلْنَا مِنْۢ بَعْدِهٖ لِبَنِيْٓ اِسْرَاۗءِيْلَ﴾ او ددوی ] دغرقيدو [نه پس مونږ بنی اسرائيلو ته ووئيل چه ] اوس ﴿اسْكُنُوا الْاَرْضَ﴾ [ تاسوپه دې مزکه ] دکوم ځائ نه چه ئې تاسو ويستلې مالکان شوئ تاسو په دې [کښې وسئ] خواه په قوت سره يابه فعل سره مگر دامالکيت ددنيا دژونده پورې دی ﴿فَاِذَا جَاۗءَ وَعْدُ الْاٰخِرَةِ جِئْنَا بِكُمْ لَفِيْفًا﴾ [ بياچه هرکله داخرت وعده راشی نو مونږ به تولو لره جمع کړو ] دقيامت په ميدان کښې به مملوکان محکومانه [ حاضرکړو] دابه په اوله کښې وی بيابه مؤ من اوکافر نيك اوبد جدا کړې شی [او ] لکه څنگه چه مونږ موسی ﷺ ته معجزې ورکړې دی دغه شان تاته هم ډيرمعجزې درکړې شوې چه په دې کښې عظيم الشانه معجزه قرآن دې چه ﴿وَبِالْحَقِّ اَنْزَلْنٰهُ وَبِالْحَقِّ نَزَلَ﴾ [ مونږه دې قرآن لره په حق سره خونازل کړو

اودغه په حق سره] په تا [نازل شو ] یعنی لکه څنګه چه دکاتب دخوانه راغلي وو هم دغه شان مکتوب الیه ته ورسیدو اوپه مینځ کښې په کښې څه تبدل اوتصرف نه دې شوې پس سراسر حق اوربښتیا دې [او] لکه څنګه چه مونږ موسی ﷺ لره پیغمبر جوړ کړې وو اوهدایت دده په اختیار کښې نه وو دغه شان ﴿وَمَآ أَرۡسَلۡنَٰكَ﴾ [مونږ تا لره ] هم [صرف ] په ایمان دثواب ﴿إِلَّا مُبَشِّرٗا﴾ خوشخبرې ورکوونکې ﴿وَنَذِيرٗا﴾ [ او] په کفر دعذاب نه [ویرونکې رالیږلې یې] که څوک ایمان نه راوړی نو غم مه کوه ﴿وَقُرۡءَانٗا﴾ [اوپه قرآن ] کښې دصفت دحقوالی سره په مقتضاء درحمت نورهم دداسې صفتونو رعایت ساتلې دې چه ددې نه هم هدایت زیات اسان شی چنانچه یوه خوداچه په دې [کښې مونږه ] دایتونو وغیره ﴿فَرَقۡنَٰهُ لِتَقۡرَأَهُۥ عَلَى ٱلنَّاسِ عَلَىٰ مُكۡثٖ﴾ [ځای په ځای فاصلې جوړې کړې چه ته يې خلقو ته لوړلې ولولې ] چه دوی پرې په ښه شان سره پوهه شی ځکه په مخه اوږد مسلسل تقریر اکثر نه یادیږی [او ] دویمه داچه ﴿وَنَزَّلۡنَٰهُ تَنزِيلٗا﴾ [مونږ دده لره په نازلولو کښې هم ] دواقعاتو مطابق [په درجه درجه نازل کړو ] چه معنی يې ښه واضحه شی اوس ددې تولو کارونو مقتضاء داوه چه دې خلقو ایمان راوړې وې لیکن که په دې هم ایمان رانه وړی نو ته څه پرواه مه کوه بلکه صفا ﴿قُلۡ ءَامِنُواْ بِهِۦٓ أَوۡ لَا تُؤۡمِنُوٓاْ﴾ [اووایه چه که تاسو په دې قرآن ایمان راوړئ اوکه نه راوړئ ] زماهیڅ پرواه نشته په دوه وجهوسره اول خودا چه ما ته څه نقصان نشته دویم داچه که تاسو ایمان نه راوړئ نومه راوړئ نور خلق به ایمان راوړی چنانچه ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ﴾ [کوم خلقوته ﴿أُوتُواْ ٱلۡعِلۡمَ مِن قَبۡلِهِۦٓ﴾ چه دقرآن ] دنزول [ نه اول ] ددین [علم ورکړې شوې دې ] یعنی منصفان عالمان داهل کتابو ﴿إِذَا يُتۡلَىٰ عَلَيۡهِمۡ يَخِرُّونَ لِلۡأَذۡقَانِ سُجَّدٗا﴾ [داقرآن چه کله ددوی په وړاندې لوستلې شی نو په زنونسکور په سجده پریوځی ﴿وَيَقُولُونَ سُبۡحَٰنَ رَبِّنَآ﴾ او وائی چه زمونږ رب ] دوعده خلافئ نه [پاك دې ﴿إِن كَانَ وَعۡدُ رَبِّنَا لَمَفۡعُولٗا﴾بیشکه زمونږ درب وعده خامخاپوره کیدونکې ده ] پس دکوم کتاب چه يې په کوم نبی دنازلولو وعده په تیرو کتابونو کښې وه هغه يې پوره کړه ﴿وَيَخِرُّونَ لِلۡأَذۡقَانِ﴾ [ اوپه زنونسکورا] چه [پریوځی ] نو ﴿يَبۡكُونَ﴾ [ژاړی ] پریوځی ﴿وَيَزِيدُهُمۡ﴾اوداقرآن ] یعنی اورېدل يې [ ددوی ] دزړهٔ ﴿خُشُوعٗا﴾ ] [خشوع نوره زیاتوی ] ځکه چه دظاهر اوباطن موافقت کیفیت ښه قوی کوی

## معارف او مسائل

﴿وَلَقَدۡ ءَاتَيۡنَا مُوسَىٰ تِسۡعَ ءَايَٰتِۭ بَيِّنَٰتٖ﴾ دې کښې موسی ﷺ ته د نهو واضحو نخښو ورکولو بیان دې د آیت لفظ په معنی د معجزې هم راځی ، او د قرآن عظیم الشان د آیت یعنی د حکم الهی په معنی هم راځی . دلته د دواړو معنو احتمال شته دې ، ځکه څینې مفسرینو دلته د آیتونو نه مراد معجزې اخستې دی ، او د نهو د شمیر نه مطلب خاص په شمیر نهه نه دی بلکه د نهو نه زیاتې هم کیدې شی ، خو دلته د نهو بیان د خاص اهمیت په بنا باندې کړې شوې دې ، عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نهه معجزې داسې شمیرلی دی :

① عصا د موسی ﷺ هغه همسا ده چې اژدها به ترې جوړیده .

② یدبیضا چې خپل لاس مبارك بهٔ ئې ګریوان کښې ورکړو او بیا به ئې راوښکلو نو هغه به ځلیدو . ③ ژبه مبارکه بهٔ ئې انښته هغه روغه کړې شوه .

④ پورې وتو دپاره ئې دریاب څیرې کړو دهغې بیلې بیلې لارې ئې جوړې کړې اولار ئې ورکړه

⑤ په فرعونيانو د مولخانو عذاب پهٔ اوچته پيمانه راؤليږلي شو.
⑥ طوفان پرې راؤليږلې شو. ⑦ د بدن په جامو كښې ئې ډيرې زياتې سپږې پيدا كړې شوې چې د هغې نه د ځان خلاصولو ورته هيڅ صورت په گوتو نه ورتلو.
⑧ د چيندخو داسې يو سخت عذاب پرې راوستې شو چې د هر خوراك څكاك په ځيز كښې بهٔ ورته چيندخې راتلې.
⑨ د وينو عذاب پرې اوليږلې شو چې هر لوښي او د خوراك څكاك په ځيز كښې به ورته وينې خامخا وې.
ديو حديث پاك د مضمون نه دا معلوميږى چې دلته د آيايت نه مراد د الله ﷻ احكام دى. دا حديث پاك ابى داؤد ، نسائى ، ترمذى او ابن ماجه كښې په صحيح سند سره د صفوان بن عسال نه منقول دې ، هغه فرمائى چې يو يهودى خپل ملگرى ته اوئيل چې مادې نبى ﷺ ته بوځهٔ ، ملگرى ورته اووئيل چې نبى ﷺ ورته مه وايه كه خبر شو نو د فخر نه به ئې څلور سترگې شى. بيا دغه دواړه كسان د نبى اكرم ﷺ په خدمت كښې حاضر شو او وې وئيل چې موسى ﷺ ته الله ﷻ كوم نهه آيات بينات وركړى وو؟
رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې: ① الله ﷻ سره شريك مه جوړوئى ② غلا مه كوئى ③ زنا مه كوئى ④ دكوم كس قتل چې الله ﷻ حرام كړې دى هغه په ناحقه مه قتل كوئى. ⑤ په يو بې گناه باندې د دروغو تور پورې كولو سره قتل او سزا دپاره مه پيش كو ⑥ جادو مه كوئى ⑦ سود مه خورئى ⑧ په پاك لمنې ښځې باندې د بدكارئ دروغ مه تړئى ⑨ دجهاد دميدان ځان خلاصولو دپاره مه تښتئ ، او وې فرمائيل چې ائې يهودو خاص تاسو دپاره داهم حكم دې چې د سبت يعنى هفتې په ورځ خاص احكام چې تاسو ته دركړې شوې دى دهغې خلاف ورزى مه كوئى.
نبى اكرم ﷺ نه ددې خبرو په آؤريدو ئې د نبى اكرم ﷺ لاسونه مبارك او پښې مباركې ښكل كړې او وې وئيل چې مونږ گواهى وركوؤ چې تاسو ﷺ د الله ﷻ پيغمبر يئ. نبى اكرم ﷺ ورتهاوفرمائيل چې هغه څه ځيز دې چې زما د تابعدارئ نه مو منع كوى؟ وې وئيل چې داؤد ﷺ د خپل رب كريم نه دا دعا كړې وه چې دهغوئ ﷺ په قوم كښې دې هميشه پيغمبران راځى. او مونږ ته خطره ده كه مونږ ستاسو تابعدارى اختياركړو نو يهود به مونږ قتل كړى.[1]
. هركله چې د اتفسير د صحيح حديث دې څكه ډيرو مفسرينو دې لره غوره كړې دې.
﴿يَبْكُونَ وَيَزِيدُهُمْ خُشُوعًا۩﴾ تفسير مظهرى كښې راغلى دى چې د قرآن عظيم الشان د تلاوت په وخت كښې ژړل مستحب دى. ابى هريره ﷺ نه روايت دې چې نبى اكرم ﷺ اوفرمائيل چې جهنم ته بهٔ نه ځى هغه څوك چې د الله ﷻ د ويرې نه اوژاړى. تر هغې پورې چې لوشلى پئ دوباره په تيونو كښې واپس واچولې شى.[2] يعنى څنگ چې دانشى كيدې، دا شان دا هم

[1] ) جامع الترمذى ، ابواب التفسير ، باب من سورة بنى اسرائيل [ج:۲ ص: ۱۴۶] و ابواب الإستئذان ، باب ماجاء فى قبلة اليد والرجل [ج:۲ ص: ۱۰۲]
[2] ) جامع الترمذى ، ابواب الجهاد باب ماجاء فى فضل الغبار فى سبيل الله [ج:۲ ص:۲۹۲]

نشي کيدې چې د الله ﷻ دويرې نه ژړيدونکې بۀ جهنم ته ګني لاړ شي . او په يو روايت کښې راغلي دي چې الله ﷻ په دوۀ سترګو باندې د جهنم اور حرام کړې دې . يو هغه چې د الله ﷻ د ويرې نه ژاړي ، بله هغه چې د اسلامی سرحداتو د حفاظت دپاره شپه رونړه کړي . [بيهقی او حاکم چې صحيح ئې ورته وئيلې دی ] (۱)

او نضر بن سعد رضی الله عنه فرمائی چې نبی اکرم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چې په کوم قوم کښې د الله ﷻ د ويرې نه څوك ژړيدنکې موجود وی نو الله ﷻ به دغې قوم ته دهغه په وجه د اور نه خلاصي ورکوی ، [روح د حکيم ترمذی نه ] (۲)

نن چې کوم يو لوئې مصيبت مسلمانانو ته راپيښ شوې دې دهغې وجه داده چې په دوئ کښې د الله ﷻ د ويرې نه ژړيدونکې ډير کم پاتې شو ، صاحب د روح المعانی په دې موقعه چې د الله ﷻ د ويرې نه د ژړيدو د فضيلتونو احاديث ئې نقل کړي دی نو د هغې نه پس ئې فرمائيلي دی چې ﴿وينبغی ان يكون ذلك حال العلماء﴾ [ پکار ده چې ددينی علماء کرامو دې دا حال وی ] ځکه چې ابن جرير رحمه الله او ابن منذر رحمه الله وغيره د عبدالاعلی تيمی رحمه الله د امقوله نقل کړې ده چې چاته صرف داسې علم ملاؤ وی چې هغه نه ژړوی نو پوهه شئ چې هغه ته نفع ورکونکې علم نه دې ملاؤ شوې . (۳)

| قُلِ | ادْعُوا | اللّٰهَ |
|---|---|---|
| اووایه | که رااوبلئ تاسو | الله |

اووايه چې که تاسو د الله ﷻ په نوم

| اَوِادْعُوا | الرَّحْمٰنَ | اَيًّا مَّا | تَدْعُوا | فَلَهُ | الْاَسْمَآءُ | الْحُسْنٰى |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يا رااوبلئ تاسو | رحمان | په کوم نوم چې | رابلئ تاسو هغه | نودی هغه لره | نومونه | ښه |

بلنه اوکړئ اوکه د رحمان په نوم بلنه اوکړئ په کوم نوم چې ئې اوبلئ نو دهغه ټول نومونه ښائسته دی

| وَلَا تَجْهَرْ | بِصَلَاتِكَ | وَلَا تُخَافِتْ | بِهَا | وَابْتَغِ |
|---|---|---|---|---|
| او ډيره اوچت اوازمه وايه | مونځ خپل | اومه ډيره رواوازسره وايه | دې مانځه لره | اولټوه |

او ته خپل مونځ ډير په اوچت اواز هم مه لوله او بالکل چپ ئې هم مه لوله بلکه ددې

| بَيْنَ ذٰلِكَ | سَبِيْلًا ۝ | وَقُلِ | الْحَمْدُ | لِلّٰهِ | الَّذِىْ | لَمْ يَتَّخِذْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په منځ ددې کښې | يوه لار | اواووايه | چې ثناه ده | الله لره | هغه الله | چې نۀ ئې دې نيولې څوك |

ترمينځه طريقه اختيار کړه او ته اووايه چې ټول تعريفونه دالله ﷻ دپاره دی کوم چې نه خو

| وَلَدًا | وَّلَمْ | يَكُنْ لَّهُ | شَرِيْكٌ | فِى الْمُلْكِ | وَلَمْ يَكُنْ | لَّهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ولد | اونشته | دهغه سره | څوك شريك | په بادشاهئ کښې | اونۀ شته | هغه لره |

څوك څوئې جوړ کړې دې او نه ددۀ په بادشاهئ کښې څوك شريك شته او نه هغه

---

(۱) شعب الإيمان للبيهقی الحادی عشر من شعب الإيمان وهو باب فی الخوف من الله رقم الحديث[۸۰۸]والمستدرك للحاكم كتاب الجهاد رقم الحديث[۲۳۸۷]

(۲) تفسير روح المعانی تحت هذه الآية [ج: ۱۱ ص:۱۳۰]

(۳) تفسير روح المعانی تحت هذه الآية [ج: ۱۱ ص:۱۳۰] ومصنف ابن ابی شيبة [ج: ۸ ص:۲۷۴]

| وَلِيٌّ | مِّنَ الذُّلِّ | وَكَبِّرْهُ | تَكْبِيرًا |
|---|---|---|---|
| څوک دوست | دوجې دعاجزۍ نه | اولوئی بیانوه دهغه | په لويې کاملې سره |
| کمزورۍ دې چې څوک ئې مددګار شي اودهغه لوئې ډېرډېره بیانوه | | | |

## آسان ترجمه قرآن

اووایه چه : که تاسو الله رابلئ، یا رحمٰن رابلئ، په هر نوم چه (الله پاک) رابلئ، (نو یو خبره ده) ځکه چه ټول بهترین نومونه هم د هغه دی . او ته خپل مونځ مه ډیر په اوچت آواز سره وایه، او مه ډیر ښکته آواز سره بلکه د دواړو ترمینځه (معتدل) لاره اختیار کړه .او اووایه چه: ټول تعریفونه د الله پاک دپاره دی چا چه نه خو څوک په ځوی ولئ نیولې دې، نه د هغه په بادشاهئ کښې څوک شریک شته، او نه هغه لره د عاجزۍ نه د بچ کولو دپاره څوک مددګار شته، او د هغه داسې لوئی بیان کړه د څنګه لوئی بیانولو چه هغه ته حق حاصل دې.

## خلاصه تفسیر

﴿ قُلِ ادْعُوا اللَّهَ أَوِ ادْعُوا الرَّحْمَٰنَ ۖ أَيًّا مَّا تَدْعُوا﴾ [ته ووایه چه خواه الله تعالی وایئ رابلئ ئې اویا رحمن وایئ رابلئ ئې په کوم نوم سره ئې چه هم رابلئ] نو غوره ده ځکه چه ﴿فَلَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ﴾ [دهغه ډیرښه نومونه دی ] او ددې دشرك سره هیڅ واسطه نشته ځکه چه دیو ذات په څو نومونو کیدو سره دهغه په توحید کښې څه فرق نه راځی ﴿وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ﴾ [ اوخپل جهری مونځ مه ډیر په زوره باندې وایه ] چه مشرکین ئې واوری او خرابې خبرې وکړی اوپه مانځه کښې زړه پریشانه شی ﴿وَلَا تُخَافِتْ بِهَا﴾ [او مه ئې بلکل په پټه وایه ] چه مونځ کوونکی مقتدیان ئې هم وانه وری ځکه چه په دې سره ددوی په تعلیم اوتربیت کښې کمې راځی ﴿وَابْتَغِ بَيْنَ ذَٰلِكَ﴾ [ اوددواړو په مینځ کښې یوه ] متوسطه ﴿سَبِيلًا﴾ [طریقه اختیارکړه ] چه مصلحت فوت نه شی اوضرورت راپیښ نه شی [او] په کفارو درد کولو دپاره علی الاعلان ﴿وَقُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي﴾ [ووایه چه ټول صفتونه خاص الله تعالی لره دی ﴿لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا﴾ چه نه اولاد لری ﴿وَلَمْ يَكُن لَّهُ شَرِيكٌ فِي الْمُلْكِ﴾ نه دده سره څوك شريك په حکومت کښې شته ﴿وَلَمْ يَكُن لَّهُ وَلِيٌّ مِّنَ الذُّلِّ﴾ اونه دکمزورۍ په وجه څوك دده مددګار شته ﴿وَكَبِّرْهُ تَكْبِيرًا﴾ او دده ښه لوئی بیانوه] .

## معارف او مسائل

﴿قُلِ ادْعُوا اللَّهَ أَوِ ادْعُوا الرَّحْمَٰنَ﴾ دا د سورة بنی اسرائیل آخری آیتونه دی ، ددې سورة په شروع کښې هم د الله ﷻ د پاکوالی او توحید بیان وو، په دې آخری آیتونو کښې هم په دې باندې ختمولې شی ،دا آیتونه د څو واقعاتو په بنا نازل شوی دی ، اول دا چې نبی اکرم ﷺ یو ځل په دعا کښې یاالله ، او یارحمان اولوستل نو مشرکانو دا اوګنړل چې ګنی دوه خدایان بلی اووئیل ئې چې مونږ خو د یو الله ﷻ نه سوا دبل خدائې د بللو نه منع کوی ، او پخپله دوه معبودان بلی ، ددې جواب په ړومبۍ حصه کښې ورکړې شوې دې چې د الله ﷻ یواځې دا دوه نومونه مبارك نه بلکه نور هم ګڼړ ښکلی اسماء مبارکه شته دې ، په کوم یو نوم ئې چې څوك بلی نو مراد ترې هغه یو ذات دې،ستاسو وهم غلط دې .

**دويمه قيصه** :: دويمه قيصه داده چې كله بهٔ نبي اكرم ﷺ په مكه مكرمه كښې په اوچت آواز سره په مونځ كښې تلاوت د قرآن عظيم الشان كولو نو مشركانو به نبي اكرم ﷺ پورې توقې كولې ، د قرآن عظيم الشان، جبرائيل عليه السلام او پخپله دالله ﷻ په شان كښې بهٔ ئې د بې ادبۍ خبرې كولې ، ددې په جواب كښې ددې آيت مبارك آخرى حصه نازله شوه چې په هغې كښې ئې ورته دجهرى او سرى قرات دميانه روۍ اختيارولو خودنه شوې ده ، ولې چې ضرورت خو په درميانه آواز راؤښكلو سره پوره كيږى . او په ډير اوچت آواز سره مشركانو ته چې د زيان رسولو موقعه ملاويده دهغې نه به هم خلاص شئ .

**دريمه قصه** :: دريمه قيصه داده چې يهودو او نصرانيانو بهٔ الله ﷻ دپاره اولاد گرځولو او عربو به بتانو ته د الله ﷻ شريكان وئيل او صابيانو او مجوسيانو به وئيل چې كه د الله ﷻ مخصوص نزديكان نه وى نو په قدر او عزت كښې ئې كمې رازى .
ددې درې واړو فرقو په جواب كښې آخرى آيت مبارك نازل شو چې په كښې درې واړه ځيزونه نفى كړې شوى دى . چې دنيا كښې د چا مخلوق ته څه قدرې قوت او طاقت رسى نو هغه ترې يا خوكشر وى لكه اولاد شو او كله ورسره برابر وى لكه شريك شو . اوكله ترې لوئې مشر وى لكه مرستيال او مددگار شو ، الله ﷻ په دې آيت مبارك كښې په ترتيب سره دغه درې واړه نفى كړل .

**مسئله** :: دې آيت مبارك كښې د تلاوت د اطريقه چې خودلې شوې ده چې نه دې ډير په زوره او نه دې ډير په رو وئيلې شي ښكاره خبره ده چې دا جهرى مونځونو سره مخصوص دى ، د ماسپخين اومازيگر مونځونو كښې خوبالكل په پټه قرات كول په سنت متواتره سره ثابت دى . جهرى مونځونه د صبا [سهار] ، ماښام او ماسختن مونځونه هم دى ، او د تهجدو مونځ هم لكه په حديثو كښې راغلى دى چې يو ځل نبى اكرم ﷺ د تهجدو د مونځ په وخت د ابوبكر صديق رضي الله عنه او عمر فاروق رضي الله عنه په خوا كښې تير شو نو صديق اكبر رضي الله عنه رو او كرار تلاوت كولو او فاروق اعظم رضي الله عنه ښه په زوره اوچت آواز سره تلاوت كولو ، نبى اكرم ﷺ صديق اكبر رضي الله عنه ته اوفرمائيل چې ولې داسې تلاوت كوئې ، هغوئ رضي الله عنه عرض اوكړو چې چاته آؤرول وو هغه ته مې واؤرول ، ولې چې الله ﷻ خو رو نه رو آواز هم آؤريدلې شى ، نبى اكرم ﷺ ورته اوفرمائيل چې څه قدرې په زوره لوله . بيائې عمر بن الخطاب رضي الله عنه ته اوفرمائيل چې تاسو دومره په اوچت آواز ولې لولئ ؟ هغوئ رضي الله عنه عرض اوكړو چې د خوب اوشيطان تښتولو دپاره داسې كوم . نبى اكرم ﷺ اوفرمائيل چې څه قدرې په رو آواز سره تلاوت كوه ، [ترمذى] [دمظهرى نه ][1]

په مونځ كښې او مونځ نه بهر د تلاوت باره كښې مسئلې په سورة اعراف كښې بيان شوى دى چې چرته به په زوره لولى او چرته به په رو . د ﴿قُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي﴾ باره كښې حديث شريف داسې بيان كړې دې چې دا د عزت آيت مبارك دې [ احمد ، طبرانى ، د معاذ الجهنى نه ، په مظهرى كښې داسې راغلى دى ][2]

---

[1]) جامع الترمذى ، ابواب الصلوة، باب ماجاء فى قراءة بالليل [ج:۱ ص:۱۰۰] و سنن ابوداوٗد، كتاب الصلوة ، باب فى رفع الصوت بالقراءة فى صلاة الليل [ج:۱ص: ۱۹۶]

[2]) مسند احمدحديث معاذ بن انس رضي الله عنه رقم الحديث:[۱۵۰۸۱]والمعجم الكبير للطبرانى رقم الحديث [۱۶۸۲۸]

دې آیت مبارك كښې داسې هم شته چې كه يو انسان هر څومره د الله ﷻ عبادت او تسبیح او تحميد كوي خو بيا هم دهٔ دپاره ضروري دي چې خپل عمل د هغه د حق په مقابله كښې ډير كم گڼړي او دخپل قصور اقرار كوي. [مظهري]

او انس رضي الله عنه فرمائيلي دي چې د عبدالمطلب په اولاد او خاندان كښې به چې كوم يو ماشوم د خبرو كولو جوگه شو نو ورته بهٔ هغوئ دا آيت مبارك خودلو:

﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَلَمْ يَكُن لَّهُ شَرِيكٌ فِي الْمُلْكِ وَلَمْ يَكُن لَّهُ وَلِيٌّ مِّنَ الذُّلِّ وَكَبِّرْهُ تَكْبِيرًا﴾ [مظهري] [1]

او ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چې يو ورځ زه نبي كريم ﷺ سره بهر اووتلم ، زما لاس دهغوئ په لاس مبارك كښې وو . په داسې يو كس ورغلو چې ډير كمزوري او مال گډ حال كښې وو. نبي اكرم ﷺ ترې نه تپوس اوكړو چې دا حال دربانديې څنگه راغلو؟ هغه عرض اوكړو چې دا حال رابانديې د بيمارئ او نيستئ په وجه راغلي دې. نبي اكرم ﷺ ورته اوفرمائيل چې درته يو څو كلمات ښايم د هغې په لوستو به دې بيماري او نيستي ختمه شي . هغه كلمات دا دي.

﴿تَوَكَّلْتُ عَلَى الْحَيِّ الَّذِي لَا يَمُوتُ﴾ ـ ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا﴾ څه موده پس هغوئ په دغه لار ورغلل ، هغه كس ئې په ښه حال كښې بيا موندو نو خوشحاله شو ، هغه كس عرض اوكړو چې كله نه دې راته دا كلمات خودلي دي نو پابندئ سره ئې وايم ، [ابويعلى ، ابن سني ، د مظهري نه]. [2]

تمت تفسير سورة بني اسرائيل بعون الله وحمده بعد العشاء العاشر جمادي الاولى ۱۳۹۰ هجري فالحمد لله اوله وآخره

**عرض حال از مؤلف:** نن په ۲۹ شعبان كال ۱۳۹۰ د خالي [يوم السبت يعنى هفتې] په ورځ الحمد لله د معارف القرآن مسوده ثاني هم مكمل شوې ده ، او الله ﷻ پخپل فضل وكرم سره د نيم قرآن كريم تفسير مكمل كړو ، او په ظاهري طور ددې څه اميد نه وو ، ځكه چې رمضان ۱۳۸۸ په آخر كښې دا عاجزه بنده داسې مختلفو مرضونو كښې راگيرشو چې تقريبا يو كال خو په بستره بانديې دمرگ او ژوند په كشمكش كښې يې تير كړل ، دې دوران كښې به د مجبورئ او معذوري په حالت به بار بار دا حسرت زړه كښې راتلو چې كاش د هغې مسودو تكميل اوشي كوم بعضې تصانيف چې تكميل ته نزدې وو ، د معارف القرآن په نوم سره چې د درس قرآن كومه سلسله چې د ډيرې مودې راسې د ريډيو پاكستان څخه نشر كيدله ، ، د ډيرو دوستانو د تقاضا مطابق په دې بانديې د نظر ثاني او ددې په مينځ كښې چې د كومو آيتونو تفسير نيمگړې پاتې شوې دې هغه مكمل شي ، هم داشان سيد حضرت حكيم الامت تهانوي قدس سره رحمه الله د قرآن پاك د دوؤ منزلونو پنځم او شپږم د احكامو په عربي ژبه دليكلو احقر ته وئيلي وو دهغې هم آخري حصه باقي پاتې وه ، د ژوند او مرگ كشمكش په دوران كښې د ناستې پاستې د معذوري په حالت كښې شايد چې د الله ﷻ په دربار كښې دا خواست قبول

[1] ) تفسير المظهري [ج:۵ص:۵۰۴]
[2] ) مسند ابي يعلى رقم الحديث [۶۵۳۱] و مجمع الزوائد رقم الحديث :[۱۱۱۴۳](بزيادة)

شوې وو چې څه او څومره هم اووائی هغه کار دې اوکړې شی او دا فکر دې اونه کړې شی چې کوم باقی پاتې شو دهغې به څه کیږی . دې خیال په ما کښې دعزم یو صورت راپیدا کړو، او په بستره په ناسته باندې مې په تفسیر باندې د نظر ثانی او د احکام القرآن د تکمیل کار شروع کړو، دا د الله ﷻ قدرت وو چې ددې بیمارئی په زمانه کښې کار څومره په تیزئی سره روان وو په صحت کښې هم ددې رفتار دومره تیز نه وو ، اوبیا شاید چې الله ﷻ ددې په برکت سره دې معذور اومجبوره ته د مرضونو څخه شفاء نصیب کړه او تر یو حده پورې راته صحت نصیب شو، نو اوس مې د دې قدر اوپیژندو او په دې کارونوباندې مې د استطاعت مطابق وخت اولګولو، دا صرف د الله ﷻ فضل او کرم وو چې د احکام القرآن دواړه منزلونه هم تکمیل ته اورسیدل او په دې دوران کښې دا دواړه جلدونه چاپ هم شو او شائع هم شو ، او تفسیر معارف القرآن دوه جلدونه تر سورة النساء پورې چاپ اوشائع شو ، دریم جلد تر سورة اعراف پورې د طباعت په مرحلو کښې دې ، او نن د نیم قرآن پاك دمسودې په تفسیرباندې د نظر ثانی کار هم مکمل شو ، [فلله الحمد اوله واخره]

دا وخت چې ددې سطور لیکل روان دی د احقر عمر ۷۵ کال پوره شو او په ۲۱ شعبان ۱۳۹۰ هجری کښې دعمر شپږ اویایم [۷۶] منزل شروع شو ، په مخلتفو مرضونو کښې او طبعی ضعف کښې راګیر یم ، او ددې څخه وړاندې د تصنیف او تالیف کار توقع ساتل هسې یو خیال دې ، خو د قرآن پاك د خدمت دپاره چې څومره هم وړوکی نه وړوکی خدمت وی هغه د لیکونکی دپاره سعادت دې ، دې خیال په دې راضی کړم چې د سورة کهف د تفسیر کار هم شروع کړم ، او باقی عمر کښې چې څومره هم کیدې شی نو هغه غنیمت ګڼړل پکار دی ، څکه چې د قرآن ختمول مقصد نه دې بلکه د قرآن کریم [په خدمت ] کښې خپل عمر او طاقت ختمول دی ، والله الموفق والمعین.

[سورة بنی اسرائیل ختم شو]

| آیاتونه | سورة الکهف مکیة وهي مائة وعشر ايات واثنا عشر رکوعات | رکوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ۱۱۰ | شروع کوم په نوم　د الله　چه ډیر مهربان　زیات رحم کونکي دي | ۱۲ |

اَلۡحَمۡدُ　لِلّٰهِ　الَّذِيۡۤ　اَنۡزَلَ　عَلٰى عَبۡدِهِ　الۡكِتٰبَ

هره ثناء | الله لره ده | هغه [الله] | چي نازل ئې کړو | په بنده خپل باندي | دا کتاب |

تول تعریفونه الله ﷻ دپاره دي چي پخپل خاص بنده ئې دا کتاب رانازل کړو

وَلَمۡ يَجۡعَلۡ　لَّهٗ　عِوَجًا ؕ　قَيِّمًا　لِّيُنۡذِرَ

او جوړني نه کړو | دي کتاب لره | کوږوالي | صحیح خبره کونکي کتاب دي | دپاره ددې چي خبردار کړي خلق

او په هغې ئې دذرې هومره کوږ والی پرې نخودو سمه نیغه لاره خودونکي کتاب

بَاۡسًا　شَدِيۡدًا　مِّنۡ لَّدُنۡهُ　وَيُبَشِّرَ　الۡمُؤۡمِنِيۡنَ　الَّذِيۡنَ

دعذاب | سخت نه | دطرفه دالله نه | اوزیري ورکړي | مومنانولره | هغه |

چي دهغې سخت عذاب نه خلق وویرې چي دالله ﷻ دطرفنه دي او هغه مومنانو له زیرور کړي

يَعۡمَلُوۡنَ　الصّٰلِحٰتِ　اَنَّ　لَهُمۡ　اَجۡرًا　حَسَنًا ۙ

چي هغوئ عمل کوي | نیک | چي بیشکه | ده هغوئ لره | بدله | ښه |

څوک چي نیک کارونه کوي چي دهغوئ دپاره ډیر ښه اجر مقرر دي

مّٰكِثِيۡنَ　فِيۡهِ　اَبَدًا ۙ　وَّيُنۡذِرَ　الَّذِيۡنَ　قَالُوا

چي اوسیدونکي به وي | په هغې کښې | همیشه | او چي اوویروي | هغه خلق | چي وائي

چي تل عمرې به په کښې اوسیږي او چي هغه کسان دالله ﷻ دنیوکې نه اوویروي چي داوائي

اتَّخَذَ اللّٰهُ　وَلَدًا ۙ　مَا لَهُمۡ　بِهٖ　مِنۡ عِلۡمٍ　وَّلَا لِاٰبَآئِهِمۡ ؕ

چي نیولي دي الله | خوئي | نشته دي دوئ لره | په دي خبره | هیڅ علم | اونه پلارانو ددوئ لره

چي الله ﷻ خان له یو خوئې جوړ کړې دي ددې خبرې نه دوئ ته علم شته او نه ددوئ پلار نیکه ته

كَبُرَتۡ　كَلِمَةً　تَخۡرُجُ　مِنۡ اَفۡوَاهِهِمۡ ؕ　اِنۡ يَّقُوۡلُوۡنَ　اِلَّا　كَذِبًا

لویه ده | هغه خبره | چي راوځي | دخلو ددوئ نه | نه وائي دوئ | مگر | دروغ

دا ډیره سخته خبره ده چي ددوئ دخلو نه اوځي یقینا داخلق سراسر دروغ وائي

فَلَعَلَّكَ　بَاخِعٌ　نَّفۡسَكَ　عَلٰۤى اٰثَارِهِمۡ　اِنۡ لَّمۡ يُؤۡمِنُوۡا

نوشاید چي ته | هلاکونکي ئې | ځان خپل لره | روستو په دوئ پسې | که ایمان رانوړي دوئ

[اې پیغمبره]! که چرې دوئ په دې کلام ایمان نه راوړي نو شاید چي ته ددوئ په

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِهٰذَا الْحَدِيْثِ | اَسَفًا۝ | اِنَّا جَعَلْنَا | مَا | عَلَى |
| په دې خبره باند | دوجې دافسوس نه | بیشکه جوړ کړی دی مونږه | هغه څه | چې په |
| غم کښې ځان هلاک کړې بیشکه څه چې په زمکه دی | | | | |
| الْاَرْضِ | زِيْنَةً | لَّهَا | لِنَبْلُوَهُمْ | اَيُّهُمْ |
| زمکه باندې دی | ښائست | دې زمکې لره | دپاره ددې چې وآزمایو مونږ دوی لره | چې کوم یو دوی لره |
| مونږ هغه دزمکې دپاره ښائست جوړ کړی دی دپاره ددې چې مونږ په هغه خلقوآزمیښت اوکړو | | | | |
| اَحْسَنُ | عَمَلًا۝ | وَاِنَّا | لَجٰعِلُوْنَ | مَا عَلَيْهَا |
| زیات بهتردې | په لحاظ دعمل سره | او بیشکه مونږه | خامخا جوړونکی یو | هغه څه لره \| چې په زمکه دی |
| چې څوک ښه عمل کوونکی دی او [هغه وخت به راشي چې] مونږ به ددې زمکې په مخ موجود ټول څیزونه | | | | |
| صَعِيْدًا | جُرُزًا۝ | | | |
| ډاګ | خالی | | | |
| په سپینه ډاګه پریږدو | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

ټول تعریفونه د الله پاک دپاره دی چا چه په خپل بنده باندې کتاب نازل کړو، او په دې کښې ئې هیڅ قسم څه خامی (نقص) نه دې پریخودلې. یو سیدها کتاب کوم چه هغه د دې دپاره نازل کړې دې چه خلق دخپل طرف نه د یوسخت عذاب نه خبر کړی او کوم مومنان چه نیک عمل کوی هغوی ته زیرې ورکړی چه هغوی ته غوره اجر ملاویدونکې دې، چه په هغې کښې به هغوئ همیشه همیشه اوسیږی. اودې دپاره چه هغه خلق خبر کړی کوم چه دا وائی چه الله پاک ځوئې نیولې دې ددې خبرې نه څۀ علمی ثبوت دوی سره شته، او نه د دوی پلار نیکۀ سره وو.. ډیره لویه خبره ده کومه چه د دوئ د خولو نه راوځی. دوی چه څه وائی هغه د دروغو نه سوا هیڅ نه دی. اوس (اې پیغمبره!) که خلق (د قرآن کریم) په دې خبره باندې ایمان رانه وړی، نو داسې ښکاری لکه چه ته به په افسوس کولو سره خپل ځان هلاک کړې. یقین اولرئ چه په زمکه باندې چه څومره څیزونه دی، دا مونږ د زمکې د ډول ذریعه ددې دپاره جوړه کړې ده چه په خلقو باندې ازمیښت اوکړو چه په هغوی کښې څوک نیک عمل کونکې دې اودا هم یقین ساته چه په زمکه باندې چه څه هم دی، یوه ورځ به مونږ دهغې نه صفا میدان جوړ کړو.

**دسورة کهف خصوصیتونه او فضیلتونه**: مسلم، ابی داؤد، ترمذی، نسائی او مسند احمد کښې د ابی الدرداء رضی الله عنه څخه روایت دې چې چا د سورة کهف لس آیات مبارکه یاد کړل هغه به د دجال د فتنې څخه محفوظ پاتې کیږی. او هم په دغې پورته ذکر شوی کتابونو کښې د ابی الدرداء رضی الله عنه څخه یو بل روایت کښې هم دغه شان مضمون د سورة کهف د لسو آخری آیتونو باره کښې نقل شوی دی.[1] او په مسند احمد کښې د سهل بن معاذ رضی الله عنه څخه روایت

[1] صحیح مسلم کتاب فضائل القرآن إلخ ،باب فضل سورة الکهف و آیة الکرسی [ج:۱ص:۲۷۱] و سنن ابوداود، کتاب الملاحم، باب خروج الدجال [ج:۲ص:۵۹۳]

دي چې نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چې څوك د سورة كهف رومبي او آخري آيتونه لولي هغه دپاره به ددهٔ د قدم څخه تر سره پورې يو نور شي او څوك چې ټول سورت لولي نو هغه دپاره د زمكې څخه تر آسمانه پورې نور شي .(۱)

او په ځينې روايتونو كښې راغلي دي چې څوك د جمعې په ورځ سورة كهف وائي نو د هغه د قدم څخه تر آسمانه پورې نور شي چې د قيامت په ورځ به رڼرا وركوي . او د سابقه جمعې څخه تر دغې جمعې پورې به ئې ټول ګناهونه معاف شي . [امام ابن كثير رحمه الله دې روايت ته موقوف وئيلې دې ](۲)

حافظ ضياء مقدسي پخپل كتاب مختاره كښې د علي رضي الله عنه روايت نقل كړېدې چې نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چې څوك دجمعې په ورځ سورهٔ كهف وائي هغه به تر اتو ورځو پورې د هر رنګه فتنې څخه په امن كښې وي . تر دې پورې چې د دجال د فتنې څخه به هم په امن كښې وي . [داټول روايات د تفسير ابن كثير څخه راخستې شوي دي ](۳)

روح المعاني كښې د ديلمي نه د انس رضي الله عنه په روايت نقل كړې دې چې نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چې ټول سورهٔ كهف په يو وخت كښې نازل شوې دې . او ددې نازليدو په وخت كښې دې سره اويا زره فرښتې نازلې شوې وې .(۴) چې دې څخه ددې عظمت معلوميږي .

**شان نزول**:ـ امام ابن جرير رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما روايت نقل كړې دې چې كله په مكه مكرمه كښې د نبي كريم ﷺ د پيغمبرئ خبر خور شو اود مكې قريش په دې پريشانه شو نو هغوئ خپل دوه كسان نضر بن حارث او عقبه بن ابي معيط د مدينې منورې يهوديانو عالمانو ته دې دپاره اوليږل چې هغوئ د پخوانو كتابونو عالمان دي ، چې د نبي كريم ﷺ د پيغمبرئ باره كښې مونږ ته معلومات راكړي . د يهودو عالمانو ورته اووئيل چې ددهٔ څخه درې تپوسونه اوكړئ كه نبي كريم ﷺ ئې جواب صحيح دركړو(۵) نو پوهه شئ چې د الله ﷻ نبي او رسول دې . اوكه جواب ئې درنكړو نو بيا د نبي كريم ﷺ دا خبر د ځانه جوړ كړې دې . او دې پيغمبر نه دې . يو تپوس د هغه ځوانانو باره كښې تپوس اوكړئ چې پخوا زمانه كښې د خپل ښار څخه وتلي وو ، هغه څه عجيبه واقعه وه ؟ بل تپوس د هغه سړي باره كښې تپوس اوكړئ چې ددنيا د مغرب څخه تر مشرق پورې اود ټولې زمكې سفر ئې كړې وو چې دا څه واقعه وه ؟ دريم تپوس ترې دا اوكړئ چې روح څه څيز دې ؟

---

(۱) مسند احمد حديث معاذ بن انس رضى الله عنه رقم الحديث:[۱۵۰۷۳]

(۲) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۵ ص:۱۳٤] و كنز العمال رقم الحديث:[۲٦۰۵]و ومسند الفردوس للديلمي رقم الحديث:[٦٨١٢]

(۳) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۵ ص:۱۳۵] و كنز العمال رقم الحديث:[۲٦۰٤]

(۴) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۵ ص:۱۹۹] و كنز العمال رقم الحديث:[۲٦۱۵]

(۵) ترجمه:-يعنې كوم جواب چې دوئ ته وركول پكار وو هغه وركړې شو(او د روح باره به كښې به ددوئ صحيح جواب به داوي چې ددې حقيقت الله تعالى ته ښه معلوم دى) نو دا روايت چې په تفسير طبرى [ج:۱۵ ص:۱۹۱]باندې منقول دې ددې روايت خلاف نه دې كوم چې روستو هم دې جلد په صحفه ٦۰۵ باندې سورة بني اسرائيل كښې آيت نمبر ۸۵ لاندې تير شوې دې.

دا دواړه قریشیان چې مکې مکرمې ته واپس راغلل او د خپل قوم خلقو ته ئې اوویل چې مونږ داسې خبره راوړې ده چې فساد پرې ختم شي. تول قصه ئې ورته بیان کړه. بیانې دغه سوالات د نبی کریم ﷺ مخکښې پیش کړل. کله چې نبی کریم ﷺ دا واوریدل نو وې فرمائیل چې ددې جواب به سبا درکوم. او ددې وینا په وخت کښې ترې ان شاء الله هیر شو. دغه خلق واپس لاړل او نبی کریم ﷺ د وحی په انتظار کښې وو. خو د نبی کریم ﷺ د وعدې مطابق سبا پورې وحی رانغله. اوپه دې حال کښې پنځلس ورځې تیرې شوې. نه جبرائیل ﷺ راغلوا و نه څه وحی نازله شوه. دمکې قریشو نبی کریم ﷺ پورې توقې کول شروع کړل چې نبی کریم ﷺ ته پرې سخت غم خفګان اورسیدو.
پنځلس ورځو تیریدو څخه روستو جبرائیل ﷺ سورة کهف ځان سره راوړو چې په کښې د وحی د راتلو د ډیل وجه دا بیان شوې ده چې وعده کولو سره مو ان شاء الله نه وو وئیلی لکه فرمائي چې ﴿وَلَا تَقُولَنَّ لِشَيْءٍ إِنِّي فَاعِلٌ ذَٰلِكَ غَدًا ۝ إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ﴾ [۱] په دیرشتم او څلریشتم آیت مبارک کښې ددې سورت راروان دې. دې کښې دا فرمائي چې د راتلونکی وخت وعدې کولو سره انشاء الله وئیل پکار دی. هم په دې سورت کښې د هغې ځوانانو واقعه هم پوره اوخودلې شوه چې ورته اصحاف کهف وئیلې شی. دغه شان مشرق او مغرب پورې سفر کولو والا یعنی د ذی القرنین واقعه په کښې هم په تفصیل سره بیان شوې ده او د روح په باره کښې د سوال جواب هم بیان اوشو. [قرطبی و مظهری په حواله د ابن جریر رحمه الله] [۲] خو د روح باره کښې د سوال جواب اجمالی ورکول د حکمت الهی تقاضا وه، هغه د سورة بنی اسرائیل په آخر کښې بیل بیان شو، هم دغه وجه ده چې سورة کهف د سورة بنی اسرائیل څخه روستو کیخودې شو. [السیوطی] [۳]

**خلاصه تفسیر**

﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَنزَلَ عَلَىٰ عَبْدِهِ﴾ [تول صفتونه هغه الله تعالی لره دی چاچه په خپل] خاص [بنده] محمد ﷺ [باندې ﴿الْكِتَابَ﴾ داکتاب نازل کړو ﴿وَلَمْ يَجْعَل﴾ اوپه دې] کتاب [کښې] دڅه قسم ﴿لَّهُ عِوَجًا ۜ﴾ [یوه ذره.هم کوږ والې نشته] نه لفظی چه دفصاحت بلاغت نه خلاف وی اونه معنوی چه څه حکم ئې دحکمت نه خلاف وي بلکه دې لره ئې ﴿قَيِّمًا﴾ [بالکل په استقامت سره موصوف جوړکړو] نازل ئې ځکه کړو ﴿لِّيُنذِرَ بَأْسًا شَدِيدًا مِّن لَّدُنْهُ﴾ [چه دغه] کتاب کافرانو لره عموما [یودسخت عذاب نه دالله تعالی دطرف نه] چه دوی لره به په اخرت کښې وی اویروی ﴿وَيُبَشِّرَ الْمُؤْمِنِينَ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ الصَّالِحَاتِ﴾ اوایماندارو لره چه نیک کارکوونکی دی داخوشخبری ورکړی ﴿أَنَّ لَهُمْ أَجْرًا حَسَنًا ۝﴾ چه دوی ته [په اخرت کښې] به ښه اجرملاوشی ﴿مَّاكِثِينَ فِيهِ أَبَدًا ۝﴾ چه دوی به په کښې همیشه وسی ﴿وَيُنذِرَ الَّذِينَ﴾ اوچه] په کفارو کښې په خاص طور [هغوخلقو لره] دعذاب نه [اویروی کوم چه ﴿قَالُوا﴾ داسې وائی چه] نعوذبالله ﴿اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا ۝﴾ [الله تعالی اولادلری] اوداولاد عقیده لرونکی کافران ئې دنورو کافرانونه ځکه جدا

[۱] ترجمه:-اوته د یو کار باره کښې دا مه وایه چې زه به دا صبا کوم خو دې سره داسې وایه که الله تعالی ته خوښه.
[۲] تفسیر القرطبي [ ج:۱۰ص:۳۴۵]
[۳] روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۵ ص:۱۹۹]

بیان کړل چه په دې باطله عقیده کښې دعربو عام خلق مشرکان یهودیان او نصاری ټول مبتلا وو ﴿مَا لَهُم بِهِ مِنْ عِلْمٍ﴾ [ نه ددې څه دلیل ددوی سره شته ﴿وَلَا لِآبَائِهِمْ﴾ اونه ددوی دپلارانو نیکونو سره وو ﴿كَبُرَتْ كَلِمَةً تَخْرُجُ مِنْ أَفْوَاهِهِمْ﴾ ډیره لویه خبره ده کومه چه ددوی دخلونه وځی ]او ﴿إِن يَقُولُونَ إِلَّا كَذِبًا﴾ [دغه خلق بالکل دروغ بکواس کوی ] کوم چه عقلا هم ناممکنه ده دیوادنی عقل والا هم ددې نه شی قائل کیدې اوته چه کوم ددې خلقو په کفر اونکاردومره غم کوې چه ﴿فَلَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ عَلَىٰ آثَارِهِمْ﴾ [ شاید چه ته په دوی پسې ﴿إِن لَّمْ يُؤْمِنُوا بِهَٰذَا الْحَدِيثِ أَسَفًا﴾ که داخلق په دې مضمون ] قرآن [ ایمان رانه وړی نو خپل روح به ورکړې ] یعنی دومره غم مه کوه چه هلاکت ته دې نزدې کړی وجه داده چه دنیادامتحان ځائ دې په دې کښې دایمان اوکفر اوخیرو شردواړو مجموعه به وی ټول نه شی مؤمنان کیدې پس ددې امتحان دپاره ﴿إِنَّا جَعَلْنَا مَا عَلَى الْأَرْضِ﴾ [مونږه په مزکه دپاسه څیزونو لره ﴿زِينَةً لَّهَا﴾ ددې ] مزکې [دپاره ښائست جوړکړې دې ﴿لِنَبْلُوَهُمْ أَيُّهُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا﴾ چه مونږه ] ددې په ذریعه [دخلقو ازمائش وکړو چه په دوی کښې زیات ښه عمل څوك كوی ] دا امتحان کول دی چه څوك ددې دنیاپه ښائست اورونق باندې مین کیږی داالله تعالی او داخرت نه غافله کیږی اوڅوك داسې نه کیږی غرض داچه دا امتحان ګاه ده تکوینا به په دې کښې څوك مؤ من وی اوڅوك به کافر وی نو بیا هم غم بې کاره دې ته خپل کارکوه او ددوی دکفر دنتیجې په دنیا کښې دظاهریدو انتظار مه کوه ځکه چه دغه زمونږ کاردی په یو مقرر وخت باندې به وی چنانچه یوه ورځ به هغه راشی چه ﴿وَإِنَّا لَجَاعِلُونَ مَا عَلَيْهَا صَعِيدًا جُرُزًا﴾ [مونږه په مزکه دپاسه ټولو څیزونو لره یوصفا میدان کړو ] چه نه به په دې څوك وسیدونکې پاتې شی نه څه اونه غراونه څه مکان او ابادی لنډه داده چه ته خپل کاردتبلیغ کوه دمنکرانو دبدانجام دومره غم مه کوه

## معارف او مسائل

﴿وَلَمْ يَجْعَل لَّهُ عِوَجًا﴾ د عوج لفظی معنی کږلیچ او کوږوالی او یو طرفته ښکته کیدل دی قرآن عظیم الشان د لفظ او معنو په لحاظ سره کامل دې ځکه ددې عیب نه پاك دې ، ددې فصاحت او بلاغت کښې لږ هم کمې یا کږلیچ نشته دې. اونه ئې په حکمت کښې.

په ﴿وَلَمْ يَجْعَل لَّهُ عِوَجًا﴾ کښې دا مفهوم دنفی یعنی نیشتوالی په انداز کښې بیان کړې دی په ﴿قَيِّمًا﴾ سره په مثبت یعنی د شته والی په انداز کښې ددې تاکید په ډاګه کړې شو ، ولې چې د ﴿قَيِّمًا﴾ معنی ﴿مستقيما﴾ ده،یعنی هغه چې هیڅ قسم کوږ والې او یو طرفته ښکته کیدل په کښې نشته دې،اودلته د قَيِّم دویمه معنی هم کیدې شی چې قرآن عظیم الشان داسې سارندوال او محافظ دې چې خلق په سمه لار باندې کلکوی ، او د بندګانو د ټولو ښیګړو حفاظت کوی ددې دواړو معنو په یوځائې کولو سره بډئې مطلب دا وی چې قرآن عظیم الشان پخپله هم کامل او مکمل دې او د الله ﷻ مخلوق لره هم کامل او مکمل جوړوی ، [ مظهری] .(۱)

﴿إِنَّا جَعَلْنَا مَا عَلَى الْأَرْضِ زِينَةً لَّهَا﴾ یعنی دزمکې دپاسه آباد ټول مخلوقات ، حیوانات ، نباتات ، جمادات اود زمکې دننه مختلف څیزونه کانونه ، دزمکې دپاره ښائست او ښکلا او رونق دی. دلته دا یو سوال راپورته کیدې شی چې د زمکې مضر څیزونه لکه

(۱) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ ص:٥](باختصار)

مار ،لړم ، وغیره څنګه دزمکې ښکلا او رونق جوړېدې شی. ددې جواب دادې چې اګر که څینې مار ، لړم ، په ظاهره مضر ښکاری لیکن په مجموعی ډول هرڅیز مفید دې ، لکه دا مار لړم واخلئ چې په زرګونو انساني ضرورتونه پرې پوره کیږی. او ډیر انسانی علاجونه اودارو ګانو کښې پکار راځي لکه چا څه ښه وئیلی دی چې :

نہیں ہی چیز نکمی کوئی زمانے میں کوئی برا نہیں قدرت کی کارخانے میں

ترجمه: په زمانه کې هیڅ څیز سپك (بې فائدې) نشته، د قدرت په کارخانه (کائناتو) کې هیڅ بد (فضول) څیز نشته.

اَمْ حَسِبْتَ اَنَّ اَصْحٰبَ الْكَهْفِ

| آیا ګمان کوې ته | چې بیشکه | ملګری دغار |

آیا ستا دا خیال دې چې دغار اودلیکلي تختئ خاوندان

وَالرَّقِيْمِ ۙ كَانُوْا مِنْ اٰيٰتِنَا عَجَبًا ۝۹ اِذْ اَوَى

او دلیکلی شوی تختئ | وو | دنښو زمونږ نه | ډیرعجیبه | کله چی | پناه واغستله

زمونږ [دقدرت] په نخښو کښې یوه ډیره عجیبه نخښه وو؟ څه وخت چې دغې

الْفِتْيَةُ اِلَى الْكَهْفِ فَقَالُوْا رَبَّنَآ اٰتِنَا مِنْ لَّدُنْكَ

یو څوخوانانو | غارته | نو وې وئیل | اے ربه زمونږه | راکړه مونږ ته | دطرفه خپل نه

خلمو په غار کښې پناه واخسته نو وې وئیل چې ائې زمونږ ربه! مونږ ته دخپل طرفنه

رَحْمَةً وَّهَيِّئْ لَنَا مِنْ اَمْرِنَا رَشَدًا ۝۱۰ فَضَرَبْنَا عَلٰٓى

رحمت | او تیار کړه | مونږ لره | دکار زمونږ نه | صحیح والي | نوکیښوده مونږه | په

رحمت راکړه اوزمونږ دې کار له دسمون خوړوسامان راپیدا کړه نومونږ دهغوئ په غوږونو باندې

اٰذَانِهِمْ فِى الْكَهْفِ سِنِيْنَ عَدَدًا ۝۱۱ ثُمَّ بَعَثْنٰهُمْ

غوږونو دهغوئ باندې دخوب پرده | په غار کښې | څوکلونه | په شمار | بیا | راپورته کړل مونږ هغوئ

په دغه غار کښې ډیرو کلونو پورې دخوب پرده واچوله بیامو راپاځول

لِنَعْلَمَ اَىُّ الْحِزْبَيْنِ اَحْصٰى لِمَا

چی معلوم کړو مونږه | چی کومه یوه ددوو ډلو نه | ښه حساب کونکی ده | هغه

چې په دغه دواړو ډلو کښې کوم یو ډلې په دې حالت کښې دپاتې کیدو

لَبِثُوْٓا اَمَدًا ۝۱۲

چی تیره کړه هغوئ | موده | سره

دمودې نه زیات واقف دې

## آسان ترجمه قرآن

آیا ستاسو دا خیال دې چه غار او رقیم والا خلق زمونږ په نخښو کښې (زیات) عجیبه څیز وو؟ دا دهغه وخت خبره ده چه کله هغه ځوانانو په غار کښې پناه اخستلې وه، او (د الله پاک نه ئې دعا کوله او) وئیلې ئې وو چه: اې زمونږ ربه! په مونږ باندې خاص د خپل طرف نه رحمت نازل کړه، او زمونږ په دې صورت حال کښې زمونږ دپاره د خیر لاره آسان کړه پس مونږ هغوی په غوږونو باندې تېرلوسره څو کلونه اوده اوساتل. بیا مونږ هغوی راپاسول، چه دا اوګورو چه دهغوی په دواړه ډلو کښې کومه ډله دخپلو اوده کیدو وخت زیات صحیح شمیر کوی.

**د څینو ټکو معنی:** ۵: کهف، ددې معنی ده ارت ، غرئیز غار ته وئیلې شی . او تنګ غار ته غار وئیلې شی . د رقیم معنی مرقوم لیکلې شوې څیز ده ، دلته ترې مفسرینو مختلفې معنې اخستې دی ، ضحاک رحمه الله ، سدی رحمه الله او ابن جبیر رحمه الله د ابن عباس رضی الله عنه روایت نقل کوی چې ددې معنی لیکلې شوې تختئ ده . کومه چې د هغې وخت بادشاه په دغې غار باندې لګولې وه چې په هغې ئې د اصحاب کهف نومونه هم لیکلی وو. او هم په دغه وجه اصحاف کهف ته اصحاب الرقیم هم وئیلې شی . د قتاده رحمه الله ، عطیه رحمه الله ، عوفی رحمه الله او مجاهد رحمه الله قول دې چې رقیم دهغې غر لاندې د یوې کندې نوم دې چې په کوم غر کښې د اصحاف کهف غار دې. څینو وئیلی دی چې دا پخپله ددې غر نوم دې. عکرمه رضی الله عنه فرمائیلی دی چې ما د ابن عباس رضی الله عنه څخه داسې آوریدلی دی چې هغوئ به فرمائیل : ماته معلومه نه ده چې رقیم د یوې لیکلې شوې تختئ نوم یا د یوې ودانئ او علاقې نوم دې ، کعب احبار رحمه الله ، وهب بن منبه رحمه الله د ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت نقل کړې دې چې رقیم د روم ملك داسې یو ښار دې چې ایله سره نزدې واقع دې. فتیة د فتی جمع ده ، معنی ئې ځوان ده.

﴿فَضَرَبْنَا عَلَىٰ آذَانِهِمْ﴾ ددې لفظی معنی غوږونه بندول دی ، د غفلت د خوب بیان هم دې الفاظو سره کولې شی. ولې چې د خوب په وخت د ټولو څخه وړاندې سترګې پټیږی خو غوږونه خپل کار داسې کوی چې آواز آوری او کله چې خوب مکمل او غالب شی نو غوږونه هم خپل کار پریږدی. په بیداریدو سره اول غوږونه خپل کار شروع کړی ، هغې څخه روستو پوره راویښ شی.

## خلاصه تفسیر

﴿أَمْ حَسِبْتَ أَنَّ أَصْحَابَ الْكَهْفِ وَالرَّقِيمِ﴾ [ ایا ته داخیال کوې چه غار والا اوغرة والا ] دادواړه نومونه دیو جماعت دی ﴿كَانُوا مِنْ آيَاتِنَا عَجَبًا﴾ [زمونږ دعجائباتو] دقدرت [نه څه دتعجب شې وو] لکه چه یهودو وئیلی وو چه ددوی واقعه عجیبه ده یا په خپله سوال کوونکو قریشو کافرانو داعجیبه اوګڼرله اوسوال ئې وکړو په دې کښې ئې نبی کریم صلی الله علیه وسلم مخاطب کړې دې اورول ئې نوروته مقصود دی چه دا وقعه هم اګرچه عجیبه خامخاده مګر دالله تعالی دنورو عجائباتو دقدرت په مقابله کښې دومره دتعجب قابله نه ده لکه چه دې خلقو ګنړلې ده ځکه چه دمزکې او آسمان اونمر سپوږمۍ اوټول کائنات دمزکې او اسمانونو دعدم نه وجودته راوړل اصل عجائبات دی دیوڅو ځوانانو داوږدې زمانې پورې اوده کیدل بیا بیداریدل ددې په مقابله کښې څه عجیبه نه ده ددې ابتدائی بیان نه پس د اصحاب کهف قصه داسې بیان

فرمائيلي ده ﴿إِذْ أَوَى الْفِتْيَةُ﴾ [هغه وخت ديادولو قابل دې هركله چه دې ځوانانو ] ديوبې دين بادشاه دګرفت نه تيښته وكړه ﴿إِلَى الْكَهْفِ﴾ [په دې غاركښې ] چه قصه ئې وړاندې راغلې [الارل پناه ئې واخسته بيا] دالله تعالى نه ئې داسې دعا وغوښتله چه ﴿فَقَالُوا رَبَّنَا آتِنَا مِن لَّدُنكَ رَحْمَةً﴾ [دوئ ووئيل اے زمونږ پروردګاره مونږ ته دخپل طرف نه درحمت سامان راكړې ﴿وَهَيِّئْ لَنَا مِنْ أَمْرِنَا رَشَدًا﴾ او زمونږ په ] دې [ كاركښې د برابر كيدو سامان تيار كړې ] غالبا درحمت نه مراد مقصدحاصليدل دی اودسامان دبرابريدونه مرادهغه اسباب اومقدمات دی كوم چه دمقصد حاصليدو دپاره عادتا ضروری دی الله تعالى ددوی دعاقبوله كړه او د دوی دحفاظت اودټولو پريشانتونه دنجات وركولو صورت داسې بيان فرمائی ﴿فَضَرَبْنَا عَلَىٰ آذَانِهِمْ فِي الْكَهْفِ سِنِينَ عَدَدًا﴾ [مونږ ددوی په غوږونو په دې غار كښې دكلونو پورې دخوب پرده وغورزوله ﴿ثُمَّ بَعَثْنَاهُمْ﴾بيامونږ دوی لره] دخوب نه [ پورته كړل چه مونږ] په ظاهری طورهم ﴿لِنَعْلَمَ﴾ [ معلومه كړو چه] غاركښې دپاتې كيدو په موده كښې په بحث اواختلاف كوونكو كښې ﴿أَيُّ الْحِزْبَيْنِ أَحْصَىٰ لِمَا لَبِثُوا أَمَدًا﴾ [ كومه ډله ددوی دپاتې كيدو دمودې نه زياته خبره ده] دخوب نه دبيداريدو نه پس په دوی كښې ديوې ډلې قول خو داؤو چه مونږ پوره ورځ ياځه حصه ديوې ورځې اوده شوی يو دويمې ډلې ووئيل چه الله تعالى پوهه دې چه تاسوڅومره ورځې اوده وئ په ايت كښې اشاره دې طرف ته ده چه دا [وَزِدْنَاهُمْ هُدًى]دويمه ډله زياته حقيقت پيژندونكې ده كومې چه دمودې تعين الله تعالى ته حواله كړو ځكه چه ددې هيڅ دليل نه وو.

## معارف او مسائل

**د اصحاب كهف او رقيم قصه:**: دې قصه كښې څو بحثونه دی، اول دا چې اصحاب كهف اواصحاب رقيم د يو ډلې دوه نومونه دی اوكه دجدا جدا ډلو نومونه دی ، اګرچې په احاديثو كښې ددې څه وضاحت نشته دې مګر امام بخاری رحمه الله په خپل كتاب صحيح بخاری كښې اصحاب كهف او اصحاب رقيم دوه جدا جدا ډلې په ګوته كړی دی. اصحاب رقيم ئې هغه بللی دی چې په غار كښې پناه اخستونكو دريو كسانو پسې په يو ګټ او غټ كانړئ بندشوې غار ورته په دعا ګانو سره بيرته شوې وو ، چې د احاديثو په ټولو كتابونو كښې ئې تفصيل سره بيان راغلې دې. چې د غار په بنديدو سره دغې دريو كسانو دخپلو خپلو نيكو عملونو په واسطه د الله ﷻ څخه ددې د بيرته كيدو سوال كړې وو. او داسې دعا ئې كړې وه چې كه دغه نيكی مونږ خالص ستا د رضا دپاره كړې وی نو مونږ ته په خپل فضل سره زمونږ بيرته[خلاصه] كړه. د ړومبی كس په دعا سره هغه كانړئ لږ شان بيرته شو او په غار كښې رڼرا شوه. د دويم كس په دعا سره هغه كانړئ هم څه بيرته شو او د دريم كس په دعا سره لاره بالكل پرانستې شوه.

ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله په شرح بخاری كښې دا واضح كړی دی چې د حديث د څه روايت تر مخه ددې څه ښكاره دليل نشته دې چې اصحاب رقيم ددغه دري كسانو نوم دې ، صرف دومره خبره ده چې د غار دواقعې د يو راوی نعمان بن بشير رضي الله عنه په روايت كښې ځينې راويانو دا زياتوالې نقل كړې دې چې نعمان بن بشير رضي الله عنه اوفرمائيل : ما نبی كريم ﷺ څخه واوريدل چې د رقيم د بيان كولو په وخت ئې په غار كښې د بند پاتې كيدونكو د غو دريو كسانو واقعه

اوروله ، هم دا زياتوالې په فتح الباري كښې د بزار او طبراني په روايت([1]) سره نقل كړې شو بدې. خو اول دا چې ددې حديث پاك د عامو راويانو روايتونه په صحاح سته او د حديث په نورو كتابونو كښې په تفصيل سره موجود دی ، خو په هغوئ كښې چا هم د نعمان بن بشير ﷛ دا جمله نه ده نقل كړې ، پخپله د بخاري شريف په روايت كښې دغه جمله نشته دې ، بيا په دې جمله كښې دا هم نشته دې چې نبي كريم ﷺ په ښكاره باندې اصحاب رقيم هغې درېو كسانو ته فرمائيلي دي چې د غار خله ورپسې بنده شوې وه ، صرف دومره قدرې الفاظ دي چې نبي كريم ﷺ د اصحاب رقيم ذكر كولو چې دهغې په ترڅ كښې ئې د دغې كسانو ذكر اوكړو.

د صحابه كرامو ﷛ تابعينو او عامو مفسرينو د اقوالو كوم اختلاف چې پورته بيان شوې دې هغه پخپله ددې دليل دې چې نبي كريم ﷺ نه د رقيم د مراد ټاكلو باره كښې دحديث څه روايت نه وو كنى نو دا به څنګه كيدې شو چې د نبي كريم ﷺ د مراد ټاكلو نه پس به صحابه كرامو ﷛ ، تابعينو ﷭ او نورو مفسرينو د هغې خلاف څه بل قول اختيار كړې وې ؟

هم دغه وجه ده چې د بخاري يو شارح حافظ ابن حجر ﷫ دې نه انكار كړې دې چې اصحاب كهف او اصحاب رقيم دى جدا جدا ډلې وې. بلكه صحيح ئې دې ته وئيلى دی چې دا هم د يوې ډلې دوه نومونه د ی. كه يو وخت رسول كريم ﷺ د رقيم د بيان سره دهغې درېو كسانو بيان هم فرمائيلې وی كومو پسې چې غار بند شوې وو نو هغې نه دا لازميږي چې هم دغه درې كسان اصحاب رقيم وو.

حافظ ابن حجر ﷫ دلته دا هم واضح كړل چې په قرآن عظيم الشان كښې دا صحاب كهف د بيان شوې قيصې د روانئ څخه هم معلوميږي چې دا هم يوه ډله ده([2]) څكه خو جمهورو مفسرينو او محدثينو هم ددې په يو يوالى باندې اتفاق كړې دې.

دويمه مسئله دلته پخپله ددې قيصې د تفصيلاتو ده ، چې دهغې دوه حصې دی ، يوه هغه ده چې ددې قيصې روح او اوصل مقصود دې چې د يهودو د سوال جواب هم جوړيږي .او د مسلمانانو دپاره هدايتونه او نصيحتونه هم دی ، دويمه حصه هغه ده چې تعلق ئې ددې قيصې صرف تاريخي او جغرافيائي حيثيت سره دې ، دمقصود په بيانولو كښې څه خاص دخل نه لرى. لكه دا قيصه په كومه زمانه ، په كوم ښار او آبادئى كښې راپيښه شوې وه ، هغه بادشاه څوك وو كوم څخه چې دوئ په تيښته راغلل او په غار كښې ئې پناه واخسته ، ددغې څه خيالات اوعقيدې وې ، دغې بادشاه بيا دغې راتښتيدلو خلقو سره څه اوكړل ، دغه كسان په څومره شمير كښې راتښتيدلى وو ، د دوئ د اوده پاتې كيدو اوږده زمانه څومره وه . بيا داخلق تر اوسه پورې ژوندى دی او كه مړی دی ؟

قرآن عظيم الشان د خپلو حكيمانه اصولو او دخاص طرز لاندې په ټول قرآن عظيم الشان كښې د يوسف ﷵ د قصې نه سوا بله هيڅ قيصه په پوره تفصيل سره او ترتيب سره نه ده بيان كړې كومه چې د عامو تاريخي كتابونو طريقه ده ، بلكه صرف هغه حصې ئې موقعه په موقعه

---

[1]) المعجم الأوسط للطبرانى رقم الحديث [۲۳۹۸]

[2]) صحيح البخارى مع فتح البارى كتاب احاديث الأنبياء ،باب ام حسبت ان اصحاب الكهف والرقيم [ج:۱۰ص:۲٦٦، ۲٦۷]

بیان کړی دی چې ورسره دا نساني هدایاتو او تعلیماتو تعلق وو ، [ د یوسف ﷺ ټوله قیصه چې قرآن عظیم الشان بیان کړې ده دهغې وجه دسورة یوسف په تفسیر کښې تیره شوې ده ].
د اصحاب کهف په قیصه کښې هم دغه طریقه داشان اختیار کړې شوې ده چې صرف ددې اصلی مقصودی حصې بیان شوې دې . د هغې حصو دسره بیان نه دې شوې چې خالص تاریخ یا جغرافئې سره ئې تعلق لرلو . د اصحاب کهف د شمیر او اودهٔ پاتې کیدود زماني سوالونه خو بیان شو او جواب ته ئې هم اشاره اوکړې شوه خو ورسره ئې دا هم هدایت اوکړو چې په داسې مسئلو کښې زیات غور ، فکر او بحث و تکرار کول مناسب نه دی ، صرف الله ﷻ ته ئې حواله کول پکار دی.
هم دغه وجه ده چې نبی کریم ﷺ چې فرض منصبی ئې قرآنی معنې بیانول دی ، د نبی کریم ﷺ په یو حدیث پاك کښې ددې قیصې حصې بیانول نه دی راغلی او لویو صحابه کرامو ﷺ اوتابعینو ﷺ ددې قرآنی طرز په بنا داسې معامله کښې دکار کولو ضابطه داسې بیان کړې ده :
﴿ابهموا ما ابهمه الله﴾ [ کوم غیر ضروری څیز چې الله ﷻ مبهم اولرلو نو تاسو ئې هم دغسې مبهم پریږدئی ] [ په دې کښې د بحث تحقیق کولو هیڅ فائده نشته دې ].
د لویو او مشرانو صحابه کرامو ﷺ او تابعینو ﷺ ددې طرز عمل تقاضا داده چې په دې تفسیر کښې هم د قیصې هغه حصې بیانول پریښودې شی کومې چې قرآن کریم او حدیث پاك پریښودی دی . لیکن دا زمانه هغه ده چې تاریخ او جغرافیا په کښې لوئې کمال گڼړلې شی . خکه متاخرینو علماء کرام ﷺ هغه حصې ددې قیصې بیان کړی دی چې کومې تاریخ او جغرافئې سره تعلق لری .
پدې وجه زیر نظر تفسیر کښې به دهغې حصو بیان د قرآنی آیتونو تفسیر لاندې راشی کومې چې په خپله په قرآن عظیم الشان کښې بیان شوې دې . پاتې جغرافیائی او تاریخی حصې به ئې د ضرورت په اندازه کښې بیانولې شی او د بیانولو نه پس هم آخری نتیجه به هم دا راوځی چې په دې معامله کښې څه قطعی او یقینی فیصله کول ناممکن ځکه دی چې په دې معاملو کښې عیسائی تاریخونو کښې ددې باره کښې دومره څه لیکلې شوی دی چې د هغې ترمینځه اختلاف او ټکر موجود دې چې که یو منصف د خپل تحقیق اورائې تر مخه د مقدماتو اوقرینو په مدد سره یو څیز اوټاکی نو بل یو په دغسې شان بل صورتو لره غوره بولی .

**ددین د حفاظت دپاره په غار کښې د پناه اخستولکو واقعات په مختلفو ښارونو او زمکو کښې ګڼړ تیر شوی دی ::** دتاریخ پوهانو ترمینځه د اختلافاتو یوه غټه وجه دا هم ده چې د عیسی ﷺ په دین کښې د ټولو څخه لوئې کار رهبانیت گڼړلې شوې دې ځکه په هر ملك کښې او هره علاقه کښې داسې ګڼړ واقعات مخې ته راغلی دی چې څه خلقو دالله ﷻ دعبادت کولو په غرض په غارونو کښې پناه نیولې ده هم هلته ئې عمرونه تیر کړی دی اوس چرته چرته چې دغسې څه واقعه راپیښه شوې ده نو په هغې د تاریخ دپوهانو داګمان راتلل څه لرې خبره نه ده چې دغه واقعه د اصحاب کهف ده.

**داصحاب کهف ځائې او دهغې زمانه ::** د تفسیر امام قرطبی اندلسی ﷫ پخپل تفسیر کښې دلته څو آوریدلی ، اولیدلی ، کتلی واقعات داسې نقل کړی دی چې مختلفو ښارونو سره تعلق لری

امام قرطبی رحمه الله خو رومبی دضحاك په روايت دا نقل كړی دی چې رقيم د روم د يو ښار نوم دې چې دغلته په يو غار كښې يو ويشت بنيادم ملاست دی چې داسې معلوميږی چې اوده دی، بيا د تفسير يو بل امام ابن عطيه رحمه الله څخه ئې دا نقل كړی دی چې ما د ډيرو خلقو څخه آوريدلی دی چې د شام ملك په يو غار كښې د مړو څو كالبوتونه [جسدونه] پراته دی ، د هغې دمنجورانو د وينا مطابق دا خلق اصحاب كهف دی . ددغې غار خوا كښې يو مسجد او يو مكان آباد شوې چې رقيم ورته وئيلې شی . ددغې مړو كالبوتونو سره د مړ سپی د هډو يوه پنجره هم پرته ده .

دويمه واقعه ئې د اندلس د غرناطې نقل كړې ده ، ابن عطيه رحمه الله وئيلی دی چې د غرناطې د لوشه نومې يو كلی ته نزدې په يو غار كښې د مړو كالبوتونه دی چې ورسره د يو مړ سپی د هډوكو پنجره هم موجوده ده ، په دې كښې په اكثرو كالبوتونو باندې غوښه نه ده پاتې شوې خو په څينو باندې تر اوسه غوښه او څرمن هم موجوده ده. په دې باندې سوؤنه كالونه تير شو خو صحيح سند سره ددوئ څه حال معلوم نه دې ، څه خلق هم دې ته اصحاب كهف وائی، ابن عطيه رحمه الله وائی چې زۀ پخپله هم په كال ۵۰۴ هجرئی كښې هلته ورغلم نو واقعی چې دغه كالبونه مې هم په دغه حالت كښې اوليدل چې نزدې ورسره يو جمات هم شته دې او د رومی زمانې يو تعمير هم چې رقيم بللې شی . داسې معلوميږی چې پخوا زمانه كښې به څه عالی شان محل وو تر دغې وخته پورې څينې ديوالونه هم وو چې يو ښاره دشته كښې پراته دی .

اووې فرمائيل چې د غرناطې په برنئ حصه كښې د يو زوړ ښار نخښې نښانې بيا مونده شی ، چې د روميانو په طرز دی ، ددغې ښار نوم رقيوس ياديږی . مونږ ددغې ځائې په كنډرونو كښې ډير عجيبه عجيبه څيزونه او قبرونه ليدلی دی . قرطبی رحمه الله اګر چې د اندلس اوسيدونكې دې خو ددې واقعات ذكر كولو څخه روستو بيا هم نشی تاكلې چې اصحاب كهف كوم يو دی ؟ دغه شان ابن عطيه رحمه الله هم سره د ليدلو كتلو په يقين سره چاته اصحاب كهف نشی وئيلې ، عامه مشهورتيا خالص د نقل ده مګر يو بل اندلسی مفسر ابو حيان رحمه الله چې په اومې صدئی كال ۶۵۴ هجرئی كښې خاص په غرناطه كښې پيدا شوې ، هلته اوسيدلې اوآباد شوې دې ، هغه هم پخپل تفسير بحر محيط كښې د غرناطې ددغې غار بيان په هغه شان كوی ، څنګه چې قرطبی رحمه الله كړې دې ، او ابن عطيه رحمه الله چې د خپلو ليدلو كتلو بيان اوكړو نو وروسې ليكی چې مونږ قاهرې ته منتقل كيدو څخه وړاندې كله چې په اندلس كښې وو نو ډير خلق به ددغې غار زيارت دپاره تلل او وئيل به ئې چې اګر كه دغه كالبوتونه تر اوسه پورې هلته موجود دی او زيارت كوؤنكيدهغوئ شمير هم كوی مګر په شمير كښې هميشه غلطی كوی ، بيا فرمائی چې ابن عطيه رحمه الله د كوم ښار رقيوس بيان چې كړې دې چې د غرناطې د قبلې طرفته واقع.دې نو ددغې ښار څخه بې شميره څل زه هم تير شوې يم او په دې كښې ډير زيات غټ غټ كانړی مې ليدلی دی ، بيا وروسې فرمائی چې :

﴿ويترجح كون اهل الكهف بالاندلس لكثرة دين النصاری بها حتی هی بلاد مملكتهم العظمی﴾ [تفسير بحر محيط][1] په اندلس كښې د اصحاب كهف د موجودګئ د اهم يوه نخښه دا چې هلته نصرانيت غالب دې ، تر دې پورې چې هم دا زمكه ددغې ټولو نه لوئې مذهبی مملكت

---

[1]) تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۴۱۹]

دي ، داخبره په دې باره کښې واضحه ده چې د ابی حیان رحمه الله په نزد په اصحاب کهف هم په اندلس کښې دی او دا ورته غوره ښکاري [تفسير قرطبی] [1]

د تفسير امام ابن جرير رحمه الله او ابن ابی حاتم په روایت د عوفی د ابن عباس رضی الله عنه څخه دا نقل کړې دی چې رقیم د يوې کندې نوم دې کومه چې فلسطين څخه لاندې ايله سره نزدې ده ، او ابن جرير رحمه الله او ابن ابی حاتم او څو نورو محدثينو د ابن عباس رضی الله عنه څخه دا نقل کړې دی چې هغوئ اوفرمائيل چې زه نه يم خبر چې رقيم څه څيز دې؟ ليکن ما د کعب احبار څخه تپوس اوکړو نو هغه اوفرمائيل چې رقيم د هغې آبادئ نوم دې چرته چې اصحاب کهف په غار کښې د ورننوتو نه وړاندې ديره وو ، [روح المعانی]. [2]

ابن ابی شيبه ، ابن المنذر ، ابن ابی حاتم د ابن عباس رضی الله عنه څخه روايت کړې دې چې هغه اوفرمائيل چې مونږ معاويه رضی الله عنه سره د روميانو په مقابله کښې يو جهاد اوکړو چې ورته غزوة المضيق وئيلې شی ، په دغې موقعه مونږ دهغې غار خوا کښې تيريدو چرته چې اصحاب کهف موجود دی ، او الله جل جلاله ئې په قرآن عظيم الشان کښې بيان کړې دې . معاويه رضی الله عنه غار ته دننوتلو اراده اوکړه چې د اصحاب کهف کالبوتونه په خپلو سترګو باندې اوګوری ، خو ابن عباس رضی الله عنه او فرمائيل چې داسې نه دی کول پکار ځکه چې الله جل جلاله ددوئ د کتلو څخه هغه هستی هم منع کړې ده چې ستاسو نه بهتر وو يعنی نبی کريم صلی الله عليه وسلم چې الله جل جلاله پخپله قرآن عظيم الشان کښې فرمائی : ﴿لَوِ اطَّلَعْتَ عَلَيْهِمْ لَوَلَّيْتَ مِنْهُمْ فِرَارًا وَّلَمُلِئْتَ مِنْهُمْ رُعْبًا﴾ [که تاسو دوئ اوليدل نوترې اوبه تښتئ او ددوئ رعب او هيبت به درباندې غالب شی] . مګر معاويه رضی الله عنه د ابن عباس رضی الله عنه دا خبره په دې وجه نه ده قبوله کړې ځکه چې قرآن پاك چې ددې کوم حالت بيان کړې دې دا هغه [حالت] وو کوم چې ددوئ په ژوند کښې وو ، ولې دا څه ضروری خبره ده چې اوس به هم هغه حالت وی ، ځکه ئې يو څو کسان د هغوئ د کتلو دپاره وراوليږل ، هغوئ غار ته اورسيدل خو چې کله غار کښې دننه داخليدل نو الله جل جلاله پرې سخته هوا راوالوليږله چې د غار نه ئې ټول واپس کړل [ روح المعانی]. [3]

ددې بيان شوؤ روايتونو او قيصو څخه دومره خبره خو ثابته شوه چې د مفسرينو حضراتو څينې کومو مفسرينو چې د اصحاب کهف د غار د ځائې پته ورکړې ده هغه درې ځايونه دی ، يو د خليج فارس د ساحل عقبه يعنی ايله سره نزدې څنګه چې د ابن عباس رضی الله عنه زيات روايتونه هم ددې تائيد کوی او بيان ئې اوس پورته تير شو.

د ابن عطيه رحمه الله د ليدلو او د ابی حيان رحمه الله د تائيد څخه دا غوره معلوميږی چې دا غار په غرناطه اندلس کښې دې ، ددې دواړو ځايونو په عقبه کښې د يو ښار يا د يو خاص عمارت نوم رقيم هم خودلې شوې دې ، دغه شان په غرناطه کښې غار سره متصل د عظيم الشان مات ګډ عمارت نوم هم رقيم خودلې شولې دې . په دې دواړو قسمو روايتونو کښې چا هم يقينی او پريکړې فيصله نه ده کړې چې دا د اصحاب کهف غار دې . بلکه د د واړو قسمو روايتونو بنياد په مقامی مشهورتيا او په آوريدلی شوی روايتونو باندې ايښودې شوې دې . او تقريبا

[1] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۰ص:۳۵۶، ۳۵۷]
[2] ) روح المعانی تحت هذه الآية [ج: ۱۱ ص:۱۵۷]
[3] ) روح المعانی تحت هذه الآية [ج: ۱۱ ص:۱۸۲] و تفسير ابن ابی حاتم رقم الحديث :[۱۳۷۷۳]

د ټولو تفسیرونو [قرطبی رحمه الله ، ابی حیان رحمه الله ، ابن جریر رحمه الله وغیره] په روایتونو کښې د هغې ښار پښوانې او زوړ نوم افسوس او اسلامی نوم ئې طرسوس خودلې شوې دې په کوم کښې چې اصحاب کهف اوسیدل. د تاریخ د پوهانو په نزد د اخبره منلې شوې ده چې دا ښار د ایشیاء کوچك په مغربی غاړه واقع دې ، لهذا معلومیږی داسې چې دا غار هم په ایشیاء کوچك کښې دې ، په دې وجه په دې کښې یو ته یقینی اوقطعی او نورو ته غلط وئیل هیڅ دلیل باندې اړه نه لری. احتمال د درې واړوو ځایونو کیدې شی بلکه دا احتمال هم څوك نشی ردکولې چې ددې غارونو واقعات صحیح کیدو باوجود دا غار د اصحاب کهف هغه غار نه وی د کوم بیان چې قرآن عظیم الشان راغلې دې بلکه دا چرته بل ځائې کښې وی ، او دا هم ضروری نه ده چې رقیم دې د یو ښار یا عمارت نوم وی ، بلکه دا احتمال هم څوك نشی رد کولې چې رقیم څخه مراد هغه تختئ او بوردونه وی چې د اصحاب کهف نومونه پرې لیکلې یا کنستې شوی ، د غار په خله چا بادشاه لګولی وی.

**د تاریخ د نوؤ پوهانو خیرنه** :: د موجوده زمانې څنې تاریخ پوهانو او عالمانو د مسیحی او یورپیانو د تاریخو په مدد سره د اصحاب کهف د زمانې او ځائې ټاکلو په غرض کافی بحث او تحقیق کړې دې.

مولاناابوالکلام آزاد رحمه الله ایله یعنی عقبه سره نزدې موجوده ښار ټپرا چې عرب تاریخ پوهان ورته بطرا وائی هغه ښار بللې دې چې دکوم نوم چې رقیم وو. اوډ موجوده تاریخونو ته ئې دې سره نزدې یو غر کښې ددې نښې هم خودلی دی، چې ورسره د یو مسجد نخښې هم خودلې شوی دی. ددې په ګواهئ کښې یې لیکلی دی چې دبائیبل په کتاب یشوع [باب ۱۸ آیت ۲۷] کښې کوم ځائې ته چې راقم یا رقم وئیلې شوې دې داهم هغه مقام دې چې اوس ورته ټپرا وئیلې شی. خو پدې باندې دا شبه کړې شوې ده چې کتاب یشوع کښې د راقم یا رقم بیان د بنی یمین د میراث باره کښې شوې دې په دې وجه دا علاقه د اردن د سیند او د بحر لوط په مغربی طرف کښې واقع وو. چرته چې د ټپرا د ښار د موجودګئ هیڅ امکان نشته ، نو ددې زمانې آثار قدیمه تحقیق کوؤنکو ددې خبرې په منلو کښې سخت سوچ اخستې دی چې ټپرا ، او راقم ګنی یو څیز دې. [ انسائیکلو پیډیا ، برټانیکا چاپ کال ۱۹۴۶ جلد ۱۷ ص:۶۵۸].

او عامو مفسرینو د اصحاب کهف ځائې د افسوس ښار ګرځولې دې چې ایشیائې کوچك مغربئ طرفته د رومیانو د ټولو څخه لوئې ښار وو چې کنډرونه ئې اوس هم دموجوده ترکی د ښار ازمیر سمرنا څخه شل یا پنځویشت میله په سوئیلی طرف کښې موندې شی.

مولانا سید سلیمان ندوی صاحب رحمه الله په ارض القرآن کښې د ټپرا د یادګیرنې په موقعه رقیم په بریکټونو کښې بندل لیکلې دې. خو ددې ئې هیڅ ګواهی نه ده پیش کړې دې چې د ټپرا ښار نوم رقیم وو.

مولانا حفظ الرحمان سیوهاوری رحمه الله په خپل کتاب قصص القرآن کښې هم دغه خبره غوره کړې ده او ددې په ګواهئ کښې ئې د تورات سفر عدد او د صحیفه سعیاء په حواله د ټپرا ښار نوم راقمه بیان کړې دې. [ از دائرة المعارف عرب].

د اردني حکومت دارالخلافه عمان سره نژدې په یو شاړه [سپیره] دشته کښې یو غار ښکاره شو نو د حکومت د محکمه آثار قدیمه خلقو په کال ۱۹۶۳ کښې ددې ځائې کنستل [غارول] شروع کړل چې ښاؤره او کانړی دغه ځائې څخه لرې کړې شو نو د هډوکو او کانړو څخه ډك شپږ تابوتونه او دوه قبرونه هلته راؤختل ، د غار سوئیلیز طرفته په کانړو باندې څه نقشونه هم دغلته راښکاره شو چې په بزنطینی ژبه کښې دی . ددغه ځائې د خلقو خیال دادې چې هم دا ځائې رقیم دې چې ورسره د اصحاب کهف دغه غار دې [ والله سبحانه وتعالى اعلم].

سیدی حکیم الامت تهانوی رحمه الله په بیان القرآن کښې د تفسیر حقانی په حواله د اصحاب کهف د ځائې او مقام تاریخی تحقیق دا نقل کړې دې چې دکوم ظالم بادشاه د ویرې څخه چې اصحاب کهف په تیښته شو او په غار کښې ئې پناه واخسته نو دا زمانه کال ۲۵۰ عیسوی وه ، درې سوه کاله پورې دغه خلق اوده وو نو ټول ۵۵۰ عیسوی او رسول کریم ﷺ په کال ۵۷۰ عیسوی کښې دنیا ته تشریف راوړې دی . په دې بنا د نبی کریم ﷺ د تشریف راوړو څخه شل کاله وړاندې اصحاب کهف رابیدار شوی وو . او تفسیر حقانی کښې هم د غه مقام ته افسوس یا طرسو وئیلې شوې دې چې په ایشیائې کوچك کښې وو اوس ئې هلته کنډرونه هم شته[1] [ والله اعلم بحقیقة الحال].

ټول تاریخی اوجغرافیائی تفصیلات دی چې د پخوانو مفسرینو د روایتونو او بیا د نوؤ تاریخ پوهانو د بیانولو څخه پیش کړې شوی دی . احقر د ړومبې څخه دا عرض کړې وو چې نه خو د قرآن عظیم الشان په یو آیت مبارك باندې پوهیدل ، په دې باندې څه اړه لری او نه ددې مقصد څه ضروری حصه دې سره تړون لری کوم دپاره چې قرآن عظیم الشان دا قیصه بیان کړې ده . بیا روایتونه قیصې او د هغې نخښې او قرینې تر دې حده پورې مختلفې دی چې د ټول تحقیق او خوارئې کولو څخه روستو هم ددې څه یقینی فیصله کول امکان نه لری. صرف ترجیحات او رجحاناتو نه په کښې کار اخستې شوې دې خو هر کله چې موجوده تعلیمیافته خلق د تاریخ تحقیقونو ډیر شوق لری ، صرف د دوئ د تسلئ دپاره دغه تفصیلونه رانقل کړې شو چې په تقریبی او تخمینی ډول ، دومره معلومیږی چې دا واقعه د مسیح علیه السلام څخه روستو د قرآن عظیم الشان زمانې ته نزدې شوې وه ، او زیات روایتونه په دې باندې متفق دی چې داد افسوس یا طرسوس ښارته نژدې راپیښه شوې وه [والله سبحانه وتعالى اعلم] او حقیقت دادې چې ددغې ټولو تحقیقونو څخه روستو هم مونږ په هغه ځائې ولاړ یو چرته چې وړاندې وو ځنګه چې مونږ وئیلی وو چې ددې مقام ټاکلو خو نه ضرورت شته او نه ئې دغه ټاکل په څه یقینی ذریعې سره کیدې شی ، د تفسیر او حدیث امام ابن کثیر ددې باره کښې هم داشان بیان کړې دې فرمائی چې :

﴿قد أخبرنا الله تعالى بذلك وارادمنا فهمه وتدبره ولم يخبرنا بمكان هذا الكهف في اي البلاد من الارض اذ لا فائدة لنا فيه ولا قصد شرعي﴾[2]

[ الله ﷻ مونږه د اصحاب کهف په هغې حالاتو خبر کړو چې بیان ئې په قرآن عظیم الشان کښې راغلې دې دې دپاره پرې چې مونږ پوهه شو او په ې کښې غور وفکر اوکړو او مونږ ئې

---

[1] ) تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:٦ ص:١١٧]

[2] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٥ ص:١٤٣]

په دې باندې خبر کړی نه یو چې دغه کهف او غار په کوم ښار او په کومه علاقه کښې دې ځکه چې په دې کښې زمونږ څه فائده نشته دې او نه ورپورې څه شرعی مقصد تړلې شوې دې ] [ابن کثیر جلد: ۳ ص: ۷۵].

**په کومه زمانه کښې د اصحاب کهف دغه واقعه شوې ده او په غار کښې د دوئ د پناه اخستو څه وجوهات وو؟** :: د قیصې دا حصه هم هغسې ده چې دې باندې قرآن عظیم الشان د یو آیت مبارك په مطلب پوهیدل څه اړه نه لری اونه د قیصې په مقصد باندې ددې څه خاص اثر شته او نه په قرآن عظیم الشان او سنت کښې ددې څه بیان شته ، صرف تاریخی قیصې دی ځکه خو ابوحیان رحمه الله په تفسیر بحر محیط ی فرمائیلی دی چې :

﴿والرواة مختلفون فی قصصهم وکیف کان اجتماعهم وخروجهم ولم یأت فی الحدیث الصحیح کیفیة ذالك ولا فی القرآن﴾[1] [د اصحاب کهف په قیصه کښې روایت کوؤنکی سخت اختلاف لری او په دې کښې هم چې په دې پروګرام باندې ددوئ څنګه اتفاق راغلو او څنګه راؤوتل نه خو په څه صحیح حدیث پاك کښې ددې کیفیت بیان شوې دې او نه په قرآن پاك کښې ] [بحر محیط ص: ۱۰۱ ج: ۴] البته د موجوده طبیعتونو د دلچسپئ دپاره څنګه چې بره [پورته] مو د اصحاب کهف دمقام په باره کښې څه معلومات لیکلی دی دغسې به اوس دلته هم په دې باره کښې مختصر معلومات د تفسیری او تاریخی روایتونه وړاندې کوؤ چې دا واقعه په کومه زمانه کښې راپیښه شوه او ددې وجوهات څه وو ، دا قیصه په پوره تفصیل سره ټول په ټوله قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله په تفسیر مظهری کښې د مختلفو روایتونو ځنځه نقل کړې ده ،[2] خو دلته صرف هغه مختصر واقعه لیکلې شی چې ابن کثیر رحمه الله د وړاندینو او روستنو ډیرو مفسرینو په حواله سره پیش کړې[3] ده هغوئ فرمائیلی دی چې :

اصحاب کهف شهزادګان او دخپل قوم سرداران وو ، د دوئ قوم به دبتانو عبادت کولو ، یوه ورځ د دوئ قوم د خپلې مذهبی میلې دپاره ښار ځنځه بهر لاړل چرته چې به دهغوئ کلیزه غونډه کیدله . هلته به ئې دخپلو بتانو عبادت کولو او هغې بتانو ته به ئې د ځاروؤ قربانی پیش کوله . د دوئ د بادشاه نوم دقیانوس وو ، ډیر زیاتی کوؤنکې او ظالم وو ، دغه قوم به ئې د بتانو په عبادت باندې مجبوره کولو ، په دغه کال باندې دغسې میله کښې چې ټول قوم دغلته راجمع شو نو اصحاب کهف خوانان هم وراورسیدل ، دوئ چې د خپل قوم حرکتونه اولیدل چې په خپل لاس جوړ کړی بتان خپل خدایان ګڼړی ، د هغې عبادت کوی ا وقربانیانې ورته پیش کوی . د غه وخت الله ﷻ ورته دا عقل سلیم وراوبخښلو چې قوم د بیوقوفئ د کارونو نه ئې نفرت پیدا شو او عقل نه ئې کار واخستو په دې پوهه شو چې عبادت خو صرف هغې ذات لره ښائی چې کوم زمکه ، آسمان او ټول مخلوقات پیدا کړی دی ، دا خیال په یو وخت کښې ددغې څو خوانانو په زړه کښې راغلو ، د هر یو په زړه کښې ځان ځان له دا تکل پیدا شو چې دغې ځائې ځخه یو طرفته لاړ شی . د ټولو ځخه اول یو خوان ددغې ډلې ځخه لاړو او دغه ځائې ځخه لرې یو ونې لاندې کیناستو . وروسې بل کس هم د غه ځائې ته ورغلو

---

[1] تفسیر البحرالمحیط تحت هذه الآیة [ج:۷ ص:۴۱۹]
[2] تفسیر المظهری تحت هذه الآیة [ ج:۶ ص:۹ تا ۱۸]
[3] تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ۵ ص:۱۴۰، ۱۴۱]

او ونې لاندې کيناستو ، ورپسې دريم ، څلورم او داسې نور يو يو راغلل او هغه ونې لاندې کيناستل خو سره ددې ئې خپل مينځ کښې يو بل نه پيژندل او نه ورته دا څه معلومات وو چې دغه نور دلته څه دپاره راغلي دي ، صرف د قدرت کار وو چې دلته ئې راجمع کړل او د دوئ په زړونو کښې ئې ايمان پيدا کړو.

**د يو قوم او يو دلې کيدلو اصل بنياد:** ابن کثير رحمه الله ددې د نقل کولو څخه روستو اوفرمائيل چې دا خلق خو د رايوځائې کيدو وجه دا بيانوی چې ديو قوم او جنس خلق وی هله به رايوځائې کيدې شی . مګر حقيقت هغه دې کوم چې امام بخاری رحمه الله پخپل صحيح کښې د يو حديث پاك تر مخه داسې پيش کړې دې ، حقيقت دادې چې رايوځائې کيدل او جدا کيدل اول په روحونو کښې پيدا کيږی ،(١) دهغې اثر ددې جهان په بدنونو باندې پريوزی ، د کومو روحونو تر مينځه چې د ازل څخه مناسبت او اتفاق پيدا شی هغه دلته هم پخپل مينځ کښې مربوط وی ، د يوې دلې شکل اختيار کړی او که ازلی مناسبت او يو ځائيکت ئې ترمينځه نه وی بلکه خپل مينځ کښې ئې بيلتون وی نو د لته به هم سره بيل پاتې کيږی . نو ددې واقعې په مثال باندې غور اوکړی چې کله د هر يو کس په زړه کښې بيل بيل ځان ځانله هم دغه يو خيال پيدا شو نو په لاشعوری ډول ټول دغې يو ځائې کښې سره جمع شو.

خلاصه دا چې دغه څوکسان يو ځايې نه راجمع شوی خو دا راجمع شوی کسان خپل مينځ کښې د خپلې عقيدې حال څکه نه وائی چې هسې نه بادشاه پرې خبر کړی اومونږ ته سزا رانکړی.

څه وخت پس د چپ پاتې کيدو نه پس يو سړی په کښې اووئيل چې د خپل قوم نه د راتښتيدو سبب خو ضرور شته ، مناسب دی چې مونږ يو بل ته د هغې حال اووايو.

يو سړی په کښې اووئيل چې زما قوم په خپل کوم دين ، مذهب او عبادت کښې چې اخته دې نو دهغې په باطل کيدو مې يقين داسې راغلو چې دعبادت زيات خو يوازې هغه ذات کيدې شی چې د کائناتو او ټول مخلوقاتو په پيدا کولو کښې ورسره څوك شريك نشته دې . هغه نور هم زړه ور شو او هر يو خپل خپل هم دغه خيال ښکاره کړو. ددې په برکت سره دغه ټول خپل مينځ کښې ملګری او دوستان شو ، او ځان له ئې د خپل عبادت دپاره يو جدا ځائې جوړ کړو او په هغې کښې به ئې د يو الله ﷻ عبادت کولو.

په مزه مزه داخبره په ښار کښې مشهوره شوه او څه خلقو دا خبر بادشاه ته هم اورسولو. بادشاه دا ټول راوبلل او دوئ څخه ئې تپوس اوکړو چې ستاسو عقيده څه ده ؟ الله ﷻ دوئ ته همت ورکړو او د څه ويرې بغير ئې ورته خپله عقيده د توحيد بيان کړه . اوبادشاه ته ئې هم ددې دعوت ورکړو، قرآن عظيم الشان کښې ددې بيان داسې راغلې دې چې : ﴿وَرَبَطْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ إِذْ قَامُوا فَقَالُوا رَبُّنَا رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ لَن نَّدْعُوَ مِن دُونِهِ إِلَٰهًا لَّقَدْ قُلْنَا إِذًا شَطَطًا﴾ تر ﴿كَذِبًا﴾ پورې ،(٢)

---

(١) صحيح البخاری کتاب الأنبياء باب الأرواح جنود مجندة [ج:١ص:٤٦٩]

(٢) ترجمه: او مونږ ددوئ زړونه مضبوط کړل ،او د مضبوط کيدو نه پس يئ اووئيل چې زمونږ رب خو هغه ذات دې چې د آسمانونواو زمکو رب دې، مونږ به هيڅ کله هم هغه نه سوا دبل چا عبادت اونه کړو. ځکه چې په دې صورت کښې مونږ ډيره غلطه خبره اوکړه . دې زمونږ قوم الله تعالی پريښودې دې او نور معبودان يئ جوړ کړی دی . دا خلق ددې معبودانو بحقله چې څه ښکاره دليل نه راوړی نو دهغه کس نه به زيات غضب کولو والا وی چې په الله تعالې پورې دروغ تړی.

کله چې دوئ په ښه زړورتيا سره بادشاه ته د ايمان بلنه ورکړه نو بادشاه ترې انکار اوکړو، دوئ
ئې اوېرول ، دهمکۍ ئې ورکړه ، ددغې شهزادګانو د بدنونو څخه ئې د شاهي لباس دکوزولو
حکم اوکړو. او دوئ ته ئې څو ورځې مهلت ورکړو. او دا دې دپاره چې دوئ غور اوکړي او فکر
څخه کار واخلي . او ددغې صحيح عقيدې څخه منع شي . او ورته ئې اووئيل چې مهلت ځکه
درکوم چې تاسو ځوانان يئ ، سمدستي مو وژل نه غواړم ، که دخپل قوم دين موواپس قبول
کړو نو خلاص به شئ کنې تاسو به وژنم .
دا مهلت ورکول يو قسم د الله ﷻ مهرباني وه چې د تيښتې لار ئې ورته اوخودله . هلته نه
اوتښتيدل او په يو غار کښې پټ شو ، د مفسرينو عام روايتونه په دې اتفاق لري چې دا خلق
د عيسى ﷺ په دين باندې وو. څنګه چې ابن کثير رحمه الله او نور مفسرينو دابيان کړي دي . اګر
چې ابن کثير رحمه الله داځکه قبول نه کړل چې که دغه خلق په مسيحي دين باندې وې نو د مدينې
منورې يهودو به دوئ سره د دښمنۍ په بنا د دوئ د واقعې تپوس کول نه تجويز کول او دې
پسې به ئې دومره مخه نه اوړه ، خو دا يو داسې بنياد نشي کيدې چې ټول روايتونه پرې رد
کړې شي ، دمدينې منورې يهودو خو درسول کريم ﷺ نه ددې باره کښې د سوال کولو تجويز
ځکه وړاندې کړو چې عجيبه واقعه وه څنګه چې د ذى القرنين په باره کښې ئې هم په دې بنا د
سوال کولو تجويز وړاندې کړې وو. او داسې سوالو کښې د يهوديت او نصرانيت تعصب تر
مينځه نه جوړيدل ښکاره خبره ده .
په تفسير مظهري کښې د ابن اسحاق په روايت د اخلق په هغو کښې شميرلې شوي دي چې
په مسيحي دين کښې خال خال حق پرست موحدان پاتې شوي وو، کله چې مسيحي دين په
خلقو کښې پاتې نشو نو صرف دا خلق په صحيح مسيحي دين او توحيد باندې کلك پاتې شوي
وو. د ابن اسحاق په روايت کښې ددغې ظالم بادشاه نوم دقيانوس خودلې شوې دې . او په غار
کښې د پټيدو څخه وړاندې چې په کوم ښار کښې دوئ څه وخت پاتې شوي وو دهغې نوم
افسوس خودلې شوې دې . د عبدالله بن عباس رضي الله عنه په روايت کښې هم دا واقعه داشان بيان
شوې ده . او د بادشاه نوم ئې دقيانوس خودلې دې . د ابن اسحاق په روايت کښې دا هم دي چې
د اصحاب کهف دبيداريدو په وخت په ملك باندې دداسې خلقو قبضه شوې وه چې د عيسى
ﷺ ددين پابند وو او د بادشاه نوم ئې بيدوسيس وو.
ټول روايات چې راجمع کړې شي نو په غالب ګمان سره ترې دا خبره ثابتيږي چې اصحاب کهف
د عيسى ﷺ په صحيح دين باندې وو. او ددوئ زمانه د عيسى ﷺ د زمانې څخه روستو ده .
اودهغه بادشاه نوم دقيانوس وو او دې مشرك وو. د کوم نه چې دوئ ترې راتښتيدلي وو ،
درې سوه نهه کاله پس دوئ څه وخت رابيدار شو نو دغه وخت د يو نيك مؤمن بادشاه حکومت
وو ، د ابن اسحاق د روايت مطابق د هغه نوم بيدوسيس وو ، دې سره چې د موجوده زمانې
تاريخونه رايو ځائې کړې شي نو تخمينًا او تقريبًا د دوئ زمانه متعين کيدلې شي . دې څخه
زيات د ټاکلو نه څو ضرورت نشته او نه ددې د علم اسباب موجود دي .

**آيا اصحاب کهف اوس هم ژوندي دي ؟:** په دې معامله کښې صحيح اوظاهره خبره هم داده چې دوئ
وفات شوي دي . په تفسير مظهري کښې د ابن اسحاق يو تفصيلي روايت داسې دې چې کله
اصحاب کهف رابيدار شو په ښار کښې د دوئ عجيبه واقعه مشهوره شوه ، دوئ د هغې

زماني بادشاه بيدوسيس سره ملاقات اوكړو ، بيا ئې ترې اجازت و اخستو او د رخصتئ د سلام سره ئې هغه دپاره دعا اوكړه ، بادشاه لا پخپل ځائې ناست وو چې دوئ د خپلو ځملاستو ځايونو ته واپس ورغلل ، او همدغه وخت الله ﷻ وفات كړل .([1])

اود عبد الله بن سلام رضي الله عنه د اروايت ابن جرير رحمه الله ، ابن كثير رحمه الله تولو مفسرينو نقل كړې دې چې : ﴿قال قتادة غزا ابن عباس مع حبيب بن مسلمة فمروا بكهف في بلاد الروم فرؤا فيه عظاما فقال قائل هذا عظام اهل كهف فقال ابن عباس لقد بليت عظامهم من اكثر من ثلث مائة سنة [ابن كثير]﴾([2])

قتاده رحمه الله فرمائيلى دى چې ابن عباس رضي الله عنه د حبيب بن مسلمه په ملګرتيا كښې يو جهاد اوكړو نو د روم په علاقه كښې په يو غار باندې ورغلل چې په كښې د مړو بنيادمو هډوكى وو چا اووئيل چې دا د اصحاب كهف هډوكى دى ، نو ابن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل چې د هغوئ هډوكى خو د نن نه درې سوا كاله وړاندې ښاؤرې شوى دى .

دا ټولې حصې د هغې تاريخى قيصې وى چې نه خو قرآن پاك بيان كړى دى او نه د نبى كريم ﷺ حديث اونه ددې واقعې څه خاص مقصد يا په يو آيت مبارك باندې پوهيدل په دې باندې څه منحصردى . او نه د تاريخى روايتونو په بنياد ددې څيزونو څه يقينى فيصله كولې شى، پاتې شوې د قيصې هغه حصې چې پخپله قرآن عظيم الشان بيان كړى دى د هغې تفصيل هم ددې آيتونو لاندې راځى، تردې پورې چې ددې قيصې اجمالى بيان وواوس تفصيلى بيان دې .

| نَقُصُّ | عَلَيْكَ | نَبَاَهُمْ | بِالْحَقِّ ط |
|---|---|---|---|
| مونږه | بيانوؤ | په تاباندې | قيصه دهغوئ / په حقه سره |
| مونږ تاته ددوئ حالت صحيح صحيح بيانوؤ | | | |

| اِنَّهُمْ | فِتْيَةٌ | اٰمَنُوْا | بِرَبِّهِمْ | وَزِدْنٰهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| بيشكه هغوئ | يو څوځوانان وو | چې ايمان ئې راوړې وو | په رب خپل باند | اوزيات كړى وو مونږ هغوئ |
| بيشكه دا يو څو ځوانان وو چې په خپل رب باندې ئې ايمان راوړې وو او مونږ دوئ ته | | | | |

| هُدًى ۝ | وَّرَبَطْنَا | عَلٰى قُلُوْبِهِمْ | اِذْ | قَامُوْا | فَقَالُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| په لحاظ دهدايت سره | اومضبوط كړل مونږه | اززونه دهغوئ | اكله چې | اراپاسيدل هغوئ | نووې وئيل |
| نورزيات هدايت وركړې ووا و مونږ ددوئ زړونه (په صبر) سره مضبوط كړى وو څه وخت چې دوئ تيار شواو وې وئيل | | | | | |

| رَبُّنَا | رَبُّ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | لَنْ نَّدْعُوَا | مِنْ دُوْنِهٖ |
|---|---|---|---|---|
| رب زمونږه | رب د آسمانونو | اودزمكې دې | هرګزبه آوازنهٔ كړومونږ | ماسوادهغه نه |
| چې زمونږ رب د آسمانونو او زمكې رب دې مونږ به هيڅكله بې دهغه نه سوا بل څوك | | | | |

---

[1] ) تفسير المظهرى [ج:٦ ص:١٧]
[2] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٥ ص:١٤٧]

إِلَهًا | لَّقَدْ قُلْنَآ | إِذًا | شَطَطًا۝ | هَٰٓؤُلَآءِ | قَوْمُنَا

بل معبودته | نو ویلی به وی مونږ | بیا | بې ځایه خبره | داخلق | چې قوم زمونږ دې |

په معبود کیدو نه بلو ګنی دیره بې ځایه خبره به مو کړې وی دې خلقو زمونږ خپل قوم

ٱتَّخَذُوا۟ | مِن دُونِهِۦٓ ءَالِهَةًۭ ۖ | لَّوْلَا يَأْتُونَ | عَلَيْهِم

نیولی دی دوئ | ماسوا دالله نه نورخدایان | ولې نه راوړی دوئ | په معبودیت دهغوئ باند |

دالله ﷻ نه سوا نورخلق ځان له معبودان نیولی دی دوئ په دغه فرضی معبودانو باندې ولې

بِسُلْطَٰنٍۭ بَيِّنٍ ۖ | فَمَنْ | أَظْلَمُ | مِمَّنِ | ٱفْتَرَىٰ | عَلَى ٱللَّهِ | كَذِبًا۝

یو دلیل | ښکاره | نو څوک دې | دیر ظالم | دهغه چانه | چې تړی | په الله پورې | دروغ |

یو ځرګند دلیل نه وړاندې کوی او دهغه چا نه زیات ظالم څوک کیدیشی چې په الله ﷻ باندې د دروغو تهمت لګوی

وَإِذِ | ٱعْتَزَلْتُمُوهُمْ | وَمَا | يَعْبُدُونَ

او اوس چې کله | تعلق ختم کړو تاسو دهغوئ سره | او دهغه معبودانو سره | چې عبادت ئې کوی دوئ

او هر کله چې تاسو هغوئ [مشرکان] او د کومو چې هغوئ دالله ﷻ نه سوا

إِلَّا ٱللَّهَ | فَأْوُۥٓا۟ | إِلَى ٱلْكَهْفِ | يَنشُرْ لَكُمْ | رَبُّكُم

بې دالله نه | نو پناه واخلئ | غار | ته | راخوبه کړی تاسو لره | رب ستاسو |

عبادت کوی پریخو دل نو په غار کښې پناه واخلئ ستاسو رب به تاسو دپاره

مِّن رَّحْمَتِهِۦ | وَيُهَيِّئْ | لَكُم | مِّنْ أَمْرِكُم | مِّرْفَقًا۝

د رحمت خپل نه | او پیدا به کړی | دپاره ستاسو | دکار ستاسو نه | اسباب دګزران |

خپل رحمت خور کړی او ستاسو کارونو کښې به د آسانئ [سامان] پیدا کړی

## آسان ترجمه قرآن

مونږ ستا مخکښې د هغوی واقعه صحیح صحیح بیانوو. دا یو څو ځوانان وو چه په خپل رب باندې ئې ایمان راوړې وو. او مونږ هغوی ته په هدایت کښې هم ښه ترقی ورکړې وه او مونږ دهغوی زړونه مضبوط کړی وو دا د هغه وخت ذکر دې چه کله هغوی پاسیدل. او هغوی او وئیل چه زمونږ رب هغه دې چه دټولو اسمانانو او زمکې مالک دې. مونږ به د هغه نه سوا بل څوک معبود جوړولو سره نه رابلو. که مونږ داسې اوکړل نو انتهائی لغوه خبره به مو کړې وی. دا زمونږ د قوم خلق دی چا چه الله پاک لره پریخودلو سره نور معبودان جوړ کړی دی (که دهغوی عقیده صحیح وی نو) هغوی دخپلو معبودانو په ثبوت کښې څه واضح دلیل ولې نه پیش کوی؟ نو دهغه چا نه زیات ظالم څوک دې چه په الله پاک دروغ اوتړی؟ او (اې ملګرو) هر کله چه تاسو د دې خلقو نه بیلتون اختیار کړې دې، او دهغه چا نه هم چه دوی ئې د الله پاک نه سوا عبادت کوی، نو راځئ اوس دې غار کښې پناه واخلئ ستاسو رب به ستاسو دپاره دخپل رحمت لمن خوره کړی، او ستاسو پخه رکښې به د آسانئ اسباب برابر کړی.

## خلاصه تفسیر

﴿نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ نَبَأَهُمْ بِالْحَقِّ﴾ [ مونږ دا واقعه تاته ټیك بیانوو ] په دې کښې ئې اشاره وکړه چه ددې خلاف هرڅه په دنیا کښې مشهور دی هغه ټیک نه دی ﴿إِنَّهُمْ﴾ [هغه خلق] اصحاب کهف ﴿فِتْيَةٌ﴾ [یو څوځوانان وو ﴿آمَنُوا بِرَبِّهِمْ﴾ کومو چه په خپل رب] دهغې زمانې ددین عیسوی علیه السلام مطابق [ایمان راوړې وو ﴿وَزِدْنَاهُمْ هُدًى﴾ اومونږ ددوی په هدایت کښې نوره ترقی وکړه] چه دایمان صفتونه ثابت قدمی په بلاګانو صبر ددنیا نه مخ اړول داخرت فکر وغیره مو ورله هم ورکړو دایمان اوهدایت په دې صفتونو کښې یوه خبره داوه چه ﴿وَرَبَطْنَا عَلَى قُلُوبِهِمْ﴾ [ مونږ ددوی زړونه مضبوط کړل ﴿إِذْ قَامُوا﴾ هرکله چه دوی کلك شول] په خپل مینځ کښې یا د مخالف بادشاه په وړاند ﴿فَقَالُوا رَبُّنَا رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ [نووې وئیل چه زمونږ رب خو هغه دې کوم چه داسمانونو اومزکې رب دې ﴿لَنْ نَدْعُوَ مِنْ دُونِهِ إِلَهًا﴾ مونږ هغه نه پریږدو دبل معبود عبادت نه کوو] ځکه چه که خدائ مه کړه مونږ داسې وکړل ﴿لَقَدْ قُلْنَا إِذًا شَطَطًا﴾ [نو په دې صورت کښې به مونږ یقینا ډیره بې ځایه خبره وکړو ﴿هَؤُلَاءِ قَوْمُنَا اتَّخَذُوا مِنْ دُونِهِ آلِهَةً﴾ اوداچه کوم زمونږ قوم دې دوی دخدائ پریښودې دې اونور معبودان ئې مقرر کړې دی ] ځکه چه ددوی قوم اوددغې وخت بادشاه ټول بت پرست وو پس ﴿لَوْلَا يَأْتُونَ عَلَيْهِمْ﴾ [ داخلق دخپلو معبودانو] په معبود کیدو[بانـدې ﴿بِسُلْطَانٍ بَيِّنٍ﴾ ښکاره دلیل ولې نه راوړی] لکه چه موحدین په توحیدباندې واضح اویقینې دلیل لری ﴿فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَى عَلَى اللَّهِ كَذِبًا﴾ [ ددۀ نه زیات به څوك ظالم وی کوم چه په الله تعالی دروغ تهمت لګوی] چه ددۀ څوك ملګرې اوشراکتی هم شته [ اوبیا] په خپل مینځ کښې ئې ووئیل چه ﴿وَإِذِ اعْتَزَلْتُمُوهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ﴾ [ هرکله تاسو ددې خلقو نه په عقیده کښې جدا شوئ اوددوی د معبودانو] د عبادت [ نه هم ] جداشوئ ﴿إِلَّا اللَّهَ﴾ [مګر دالله تعالی نه] نه یئ جداشوی بلکه د دۀ په وجه مونږ ټول پریښودی دی [نواوس ] مصلحت دادې چه ﴿فَأْوُوا إِلَى الْكَهْفِ﴾ [ تاسو په ] فلانی [غارکښې ] کوم چه په مشوره سره مقرر شوې وو [لاړشی پټ شئ] چه په امن اوپه بې فکرئ سره دالله تعالی عبادت وکړې شئ ﴿يَنْشُرْ لَكُمْ رَبُّكُمْ مِنْ رَحْمَتِهِ﴾ [په تاسو به ستاسو رب خپل رحمت راخور کړی ﴿وَيُهَيِّئْ لَكُمْ مِنْ أَمْرِكُمْ مِرْفَقًا﴾ اوستاسو دپاره به په دې کار کښې دکامیابئ سامان برابر کړی] دالله تعالی نه په دې امید اوتوقع غارته دتلو په وخت کښې دوی دتلو نه اول دادعا وکړه چه [ربنا آتنا من لدنك رحمة وهیئ لنا من امرنا رشدا ۞]

## معارف او مسائل

﴿إِنَّهُمْ فِتْيَةٌ﴾ ، ﴿فِتْيَةٌ﴾ د فتی جمع ده ، معنی ئې ځوان ده ، د تفسیر علماء کرامو فرمائیلی دی چې په دې لفظ کښې اشاره موندې شی چې د عملونو اخلاقو سمولو او د نیکئ او د هدایت د لار موندلو زمانه هم د ځوانئ ځکه کیدې شی چې د بوډا والی په عمر کښې هغه کړی عملونه او عادتونه په کښې داسې پاخه شو یوی چې که هر څومره د هغې په خلاف ورته حق واضح هم شی خو دهغې نه اوړیدل او پریښودل ئې ډیر ګران وی ، صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په بلنه باندې ایمان راوړونکی خلق اکثر ځوانان و . [ ابن کثیر ابوحیان] ([1])

[1] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ۵ ص: ۱۴۰] و تفسیر البحر المحیط تحت هذه الآیة [ج: ۷ ص: ۴۲۰]

﴿وَرَبَطْنَا عَلٰى قُلُوْبِهِمْ﴾ د ابن کثیر رحمه الله په حواله کوم صورت چې اوس بیان شو ، هغې نه معلومه شوه چې ددغې ځلمو زړونه هغه وخت الله ﷻ مضبوط کړل.

کله چې هغه ظالم بت پرست بادشاه خپل دربار ته راؤبلل نو تپوسونه ئې ترې اوکړل ، وې رټل ، غصې ئې پرې اوکړې ، دوئ سره د خپل مرګ ویره شوه خو سره د هغې الله ﷻ د هغوئ په زړونو باندې خپله مینه او هیبت او لوئي داسې ورننویستله چې د هغې په مقابله کښې د خپل قتل ، مرګ ، او مصیبت برداشت کولو ته هم تیار وو. او د خپلې عقیدې صفا صفا ښکاره کول ئې اوکړل. چې دوئ د الله تعالى نه سوا د بل چا عبادت نه کوی. اودې نه پس بۀ ئې هم اونه کړی. کوم خلق چې الله ﷻ دپاره د یو کار کولو پوخ قصد اوکړی نو الله ﷻ دهغوئ هم دغسې مدد کوی.

﴿فَأْوٗٓا اِلَى الْكَهْفِ﴾ ابن کثیر رحمه الله اوفرمائیل چې اصحاب کهف چې کوم صورت اختیار کړو ، یعنې هغه ښار ئې پریخودو چرته چې د الله ﷻ عبادت نه شو کیدلې او په غار کښې ئې پناه واخستله نو هم دا د ټولو پیغمبرانو ﷺ سنت دی چې هغه ځائې پریږدی چرته چې د الله ﷻ عبادت نشی کیدې، اوهغه ځائې ته لاړشی چې په داده زړه په کښې د الله ﷻ عبادت کولې شی.[1]

| وَتَرَى | الشَّمْسَ | إِذَا | طَلَعَتْ | تَّزٰوَرُ | عَنْ كَهْفِهِمْ | ذَاتَ الْيَمِيْنِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوتۀ به وینې | نمر | کله چې | راخیژی | نو یچ بچ راخیژی | دغار دهغوئ نه | ښی طرفته |
| اوچې نمر راخیژی نو ته بۀ ئې ګورې چې دهغوئ غار نه ښی اړخ ته بچ کیږی | | | | | | |

| وَإِذَا غَرَبَتْ | تَّقْرِضُهُمْ | ذَاتَ الشِّمَالِ | وَهُمْ | فِيْ فَجْوَةٍ |
|---|---|---|---|---|
| اوکله چې پریوزی | نو یچ بچ پریوزی دهغوئ نه | ګس طرفته | اوهغوئ | په فراخه ځائې کښې دی |
| او چې ډوبیږی نو دهغوئ نه ګس اړخ ته ډډه کوی او هغوئ د غار په ارت بیرت ځائې کښې | | | | |

| مِّنْهُ ۗ | ذٰلِكَ | مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ ۗ | مَنْ | يَّهْدِ اللّٰهُ | فَهُوَ | الْمُهْتَدِ ۚ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ددغه غار | دا | دنښو د الله | نه | چاته چې | لاره اوښودله الله | نو هغه | لارمندونکې دې |
| وو دا دالله ﷻ دنخښو نه یوه نخښۀ ده څوك چې الله ﷻ په سمه لار واچوی نو هغه په سمه لار روان شی | | | | | | |

| وَمَنْ يُّضْلِلْ | فَلَنْ تَجِدَ | لَهٗ | وَلِيًّا | مُّرْشِدًا ﴿۱۷﴾ |
|---|---|---|---|---|
| او چالره چې الله ﷻ بې لارې کړی | نوهرګز به ته اونۀ مومې | دپاره دهغه | څوك دوست | لارښودونکې |
| او څوك بې لارې کړی نو هیڅوك دهغه مدګار لاره خودونکې بیا نه مومې | | | | |

| وَتَحْسَبُهُمْ | أَيْقَاظًا | وَّهُمْ | رُقُوْدٌ ۖ | وَّنُقَلِّبُهُمْ | ذَاتَ الْيَمِيْنِ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوتۀ به ګمان کوې په هغوئ | دویخو | حال دا چې هغوئ | اوده دی | اواړوو مونږ هغوئ | ښی طرفته |
| او[ائې مخاطبه] تابه خیال کولو چې دوئ ویښ دی حال دادې چې دوئ اوده دی او مونږ دوئ ښی | | | | | |

[1] تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ۵ ص:۱۴۱]

| وَذَاتَ الشِّمَالِ ۖ | وَكَلْبُهُمْ | بَاسِطٌ | ذِرَاعَيْهِ | بِالْوَصِيدِ ۚ |
|---|---|---|---|---|
| اوکس طرفته | اوسپي دهغوئ | غورونكي ووُ | دځنګلوخپلو | په خله دغار کښې |

اوکس طرفته اړوو را اړوو اوددوئ سپي په درشل باندې خورې څنګلې ناست وو

| لَوِ اطَّلَعْتَ | عَلَيْهِمْ | لَوَلَّيْتَ | مِنْهُمْ | فِرَارًا | وَلَمُلِئْتَ |
|---|---|---|---|---|---|
| كه تاسرور ښکاره کړو | هغوئ ته | نومخ به اوګرزوې ته | دهغوئ نه | په تيښته | اوخامخا به ډك شې ته |

كه تاورته (هيله غوندې) سرور ښکاره کړې وې نو پسته به ترې نه تښتيدلې وې اودهغوئ

| مِنْهُمْ | رُعْبًا ⑱ |
|---|---|
| دهغوئ نه | په يره سره |

رعب به درباندې خور شوې وو

## آسان ترجمه قرآن

او(هغه غار داسې وو چه) كه تا د نمر د راختلو په وخت كتل نو هغه د هغوی د غار نه ښی طرف ته وتلو، او كله چه به پرېوتلو نو د هغوی نه به ګس طرف ته تللو . او هغوی د دې غار په يو فراخه حصه کښې (اوده) وو. دا د الله پاک د نښو نه يوه نښه ده چاته چه الله پاک هدايت وركړي، هم هغه هدايت بيا مومی. او څوک چه هغه ګمراه کړی د هغه تاته څوک هم مددګار نه شي ملاويدې چه هغه په لاره باندې روان کړی. نه به د هغوی په (ليدو باندې) ګمان کولو چه هغوی ويښ دی. حال دا چه هغوی اوده وو. او موږ به هغوی په ښې او ګسه دوه پاندې اړوول. او د هغوی سپې په درشل باندې خپل دواړه لاسونه خواره کړې (ناست) وو. كه تا هغوی ليدلې وې نو د هغوی نه به مخ په شا تختيدلې وې او په تا کښې به د هغوی ويره خوره شوی وې.

## خلاصه تفسير

[ او اے مخاطبه] هغه غار په داسې وضع باندې شوي دې چه ﴿وَتَرَى الشَّمْسَ إِذَا طَلَعَتْ تَّزَاوَرُ عَنْ كَهْفِهِمْ ذَاتَ الْيَمِينِ﴾ [هركله نمر راخيژی نوته به هغه لره وينې چه دغار نه ښی طرف ته بچ كيږی ] يعنی دغار ددروازې نه ښی طرف ته اوړی ﴿وَإِذَا غَرَبَتْ﴾ [ او هر كله چه پريوځی نو] ﴿تَّقْرِضُهُمْ ذَاتَ الشِّمَالِ﴾ دغار [كينږ طرف ته په څنګ كيږی ] يعنی دغه وخت هم غارته دننه نمر نه ځی ددې دپاره چه دوی ته دنمر دتاؤ نه تكليف ونه رسيږی ﴿وَهُمْ فِي فَجْوَةٍ مِّنْهُ﴾ [اوهغه خلق ددې غار په يوفراخه ځائې کښې وُو] يعنی په داسې غارونو کښې کوم چه عادتا څه ځائ کښې تنګ اوڅه ځائ کښې ارت وی نو دوی ددی غار په داسې ځائ باندې وو کوم چه ارت وو چه هوا ورته هم رسيږی او دځائ دتنګوالی نه يې زړه هم نه ويريږی ﴿ذَٰلِكَ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ﴾ [ دا دالله تعالی دنښونه ده] چه دظاهری اسباب نه خلاف يې ددوی دپاره دارام سامان تيار كړو پس معلومه شوه چه ﴿مَن يَهْدِ اللَّهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ﴾ [ چاته الله تعالی هدايت وكړی هغه هدايت مومی ﴿وَمَن يُضْلِلْ فَلَن تَجِدَ لَهُ وَلِيًّا مُّرْشِدًا﴾ اوچالره چه هغه ګمراه كړی نو ته به ددهٔ دپاره څوك مددګار لار ښودونكې بيانه مومې ] دغار كوم حالت چه ښودلې شوې دې چه په دې كښې نه دنمر ختلو په وخت كښې سحر غرمه او ګرمی دننه ځی نه مابنام د پريوتو په وخت كښې داپه داسې صورت كښې كيدې

شي چه غار شمالا جنوبا وي څکه چه که ښي کينړ جانب ته په غار کښي د داخليدونکي مراد وي نو دغار مخ به شمال طرف ته وي اوکه ښي کينړ جانب ته دغار نه د وتونکي مراد وي نو دغار مخ به جنوب طرف ته وي [ او اے مخاطب] ته که دغه وخت کوم وخت چه دوی غارته لاړل اوموني پرې خوب مسلط کړو دوی لره ليدې نو ﴿وَتَحْسَبُهُمْ أَيْقَاظًا وَهُمْ رُقُودٌ﴾ [په دوی به دې گمان دوېښو کولو حال دادې چه دوی اوده وو] څکه چه دالله تعالى قدرت دوی دخوب د اثر اوښونه محفوظ کړی وو لکه دساه اخستو تغير دبدن سست والې سترگې که ئې بندې هم وی خو دخوب علامت پرې نه وو ﴿وَنُقَلِّبُهُمْ﴾ [ اوددې خوب په اوږده زمانه ] کښي [ موني دوی لره] کله ﴿ذَاتَ الْيَمِينِ﴾ [ښي طرف ته او] کله ﴿وَذَاتَ الشِّمَالِ﴾ [کينړ طرف ته په اړخ اړول] اوپه دې حالت کښي ﴿وَكَلْبُهُمْ﴾ [ددوی سپی ] کوم چه په څه وجه ددوی سره راغلې وو ﴿بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ بِالْوَصِيدِ﴾ دغار [ په درشل خپل دواړه لاسونه خواره کړی ] ناست [وو] اودوی ته [د] خدائ وركړی رعب اوهيبت داحالت ووچه ﴿لَوِ اطَّلَعْتَ عَلَيْهِمْ لَوَلَّيْتَ مِنْهُمْ فِرَارًا﴾ [ که چرې ] اے مخاطبه [ تادوی ته کتلی وی نو په شابه ترې تښتيدلې وې ﴿وَلَمُلِئْتَ مِنْهُمْ رُعْبًا﴾ اوپه تابه ئې رعب او هيبت غالب شوې وو] په دې ايت کښي عامو مخاطبوته خطاب دې په دې ايت سره دنبی کريم ﷺ مرعوب کيدل نه لازميږی او دا ټول سامان الله تعالى ددې خلقو دحفاظت دپاره جمع کړې وو څکه چه په ويښ سړی باندې حمله کول اسان نه وی او دخوب په اوږده زمانه کښي که ئې ډډه نه بدليدې نو خاوړو به ئې يوه ډډه خوړلې وه او دغار په خوله باندې دسپی کښيناستل هم دحفاظت دسامانونو ښکاره خبره ده

## معارف او مسائل

دې آيتونو کښي د اصحاب کهف درې حالتونه خودلی شوی دی چې ټول عجيبه دی او د عادت خلاف د دوئ د کرامت په ډول ښکاره شوی دی.

اول دا چې ډيره موده ئې په مخه خوبولی[بيده] اولړل چې په دومره اوږده زمانه کښي ئې هم لوږه ، تنده پرې رانه وستله او ژوندی پاتې شو. دا د ټولو څخه لوی کرامت دې ، ددې تفصيل به په راتلونکو آيتونو کښي راشی. دلته ددې اوږد خوب په حال کښي د دوئ يو حال ئې دا خودلې دې چې په غار کښي دننه ئې داسې محفوظ ساتلی وو چې صبا بيگاه به ئې غارمه په گرمی دوب ته نزدې تيريدله او په غار کښي دننه به ددوئ په بدنونو نه پريوتل ، نو ورسره نزدې د غرمو تيريدل دا فائده لرله چې د ژوند اثرات پرې باندې ولاړ وو هوا ، يخنی او گرمی پرې په درميانه حال کښي وه ، په بدنونو باندې ئې د غرمو نه پريوتلو سره د دوئ بدنونه او لباس محفوظ لرل وو.

گرمی چې په غار دننه نه لگيدو نو ددې يو خاص ساخت داسې کيدې شی چې د غار خله شمال يا جنوب طرفته په داسې شان وی چې په طبعی ډول او د عادت تر مخه دغلته نمر لگيدو ته نه پريږدی. ابن قتيبه رحمه الله ددې د خاص شان تاکلو په غرض دومره خواری کړې ده چې د رياضی د أصولو او قواعدو له مخه ئې ددغې خائې طول بلد ، عرض بلد او د غار مخه تاکلې ده [مظهری][1] خو ددې په عکس زجاج دا وئيلی دی چې د دوئ د کرامت په وجه به پرې

[1]) تفسير المظهرى[ج:٦ص:٢٠]

نمر نه لګیدو ، د غار ساخت وغیره په دې کښې هیڅ دخل نه لرلو.
ددې آیت مبارك په آخر کښې ﴿ذٰلِكَ مِنْ اٰيٰتِ اللهِ﴾ فرمائیل هم په ظاهره ددې خبرې دلیل دې چې د غرمو نه د ساتلو انتظام خالص د الله ﷻ د قدرت کامله یو نخښه وه ، په یو خاص شان سره د غار ساخت په دې کښې څه دخل نه لرلو. [قرطبی].([1])
صفا خبر ده چې دا ټول انتظامات الله ﷻ دې دپاره کړې وو چې د دوئ په بدنونو باندې نمر نه لګی ، که ددې وجه د غار ساخت او سمون وی ، یا دنمر لګیدل ئې په وریځ وغیره بند کړې وی ، یا همداسې پخپل قدرت سره ئې د نمر پلوشې پریوتل په دوئ باندې بند کړې وی ، په آیت مبارك کښې د اټول احتمالونه شته ، په یو باندې د زور ورکولو څه ضرورت نشته.

**اصحاب کهف اوږده زمانه کښې خوبولي [بیده] پاتې شوی وو ، خو په دغه حال کښې به هم لیدونکی دوئ لره بیدار ښکارل** :: دویم حال ئې دا خودلې دې چې دومره اوږده زمانه خوبولې وو خو بیا هم پرې د خوب څه اثر نه ښکاریدو ، بلکه لیدونکو به دوئ لره ویښ اوبیدار محسوسول ، عام مفسرین فرمائی چې سترګې به ئې غړیدلې ، بدنونه به ئې داسې سست نه وو څنګه چې د خوبولو [بیدو] بند ګانو وی. په ساه کښې ئې هم څه بدلون نه وو راغلې څنګه چې د خوبولو [بیدو] په ساه ګانو کښې رازی ، دا هم په ښکاره باندې د دوئ کرامت وو چې حکمت ئې دا ښکاره دې چې خلقو به ویښ ګڼړل څکه به پرې نه ورتلل او نه به ئې ددوئ د څه سامان غلا کوله. ددوئ د طرفونو بدلولو هم یو حکمت دا وو او بل حکمت ئې دا وو چې بدنونه ئې خاوړې او نه خوری چې دا ټول څیزونه د دوئ کرامت وو.

**د اصحاب کهف سپې** :: دلته یو سوال دا پیدا کیږی چې په یو صحیح حدیث شریف کښې داسې راغلی دی چې په کوم کور کښې سپې یا تصویر وی هلته فرښتې نه راځی .([2]) او د صحیح بخاری په حدیث پاك کښې د ابن عمر ﷺ په روایت راغلی دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې څوك د ښکاری سپې یا د څاروو د څوکیدارئ سپی نه بغیر بل قسم سپې ساتی نو هره ورځ دهغه د اجر څخه دوه قیراطه کمیږی([3])
[ قیراط د یو ورکوټی وزن نوم دې] او د ابی هریره ﷺ په روایت کښې د دریم قسم سپی استثناء هم راغلې ده کوم چې د فصل د څوکیدارئی دپاره ساتلې شوې وی.([4])
ددې احادیثو نه څخه سوال راولاړیږی چې دې خدائی بزرګانو سپې ولې ځان سره کړې وو؟
ددې یو جواب خو دا کیدې شی چې د سپی د ساتلو څخه ممانعت په محمدی شریعت کښې دی ، کیدې شی چې د عیسی ﷺ په دین کښې ددې منع نه وی. بله منلو ته نزدې خبره دا هم کیدې شی چې دغه اصحاب کهف د جائیداد د څاروو خاوندان وی او دې دپاره ئې ځان سره سپې ساتلې وی ، په دې وجه کیدېشی چې دغه سپې هم دوئ سره راروان شوې وو څنګه چې د سپی وفاداری مشهوره ده.

---

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:۱۰ص:۳۲۹]
[2]) صحيح مسلم كتاب اللباس الزينة، باب تحريم تصوير صورة الحيوان إلخ [ج:۲ص:۱۹۹]
[3]) صحيح البخاري كتاب الذبائح والصيد ،باب من اقتنى كلب [ج:۲ص:۸۲۴]
[4]) صحيح مسلم كتاب المساقاة، باب الأمر بقتل الكلاب إلخ [ج:۲ص:۲۰]

**دنیکانو خلقو دمجلس په برکت دغه سپی ته هم الله ﷻ عزت ورکړو:** ابن عطیه رحمه الله فرمائیلی دی چې زما والد صاحب اوفرمائیل چې ما د ابی الفضل جوهری یو وعظ په کال ۴۶۹ هجری کښې د مصر په جامع مسجد کښې واؤریدو هغه په منبردپاسه فرمائیل چې څوك د نیکانو خلقو سره مینه کوی دهغوئ د نیکئ حصه هغه ته هم ملاویږی ، ګورئ د اصحاب کهف سپی چې دوئ سره مینه اوکړه او ورسره شونو الله ﷻ په قرآن عظیم الشان کښې دهغه بیان اوکړو.

امام قرطبی رحمه الله پخپل تفسیر کښې د ابن عطیه رحمه الله د روایت نقل کولو څخه روستو اوفرمائیل چې هر کله یو سپې د نیکانو او ولیانو په مجلس کښې او ملګرتیا سره دامقام موندې شی نو تاسو قیاس اوکړئ چې مؤمنان مؤحدان چې دالله ﷻ ولیانو او نیکانو سره مینه لری دهغه مقام او مرتبه به څومره لوړه وی ؟ بلکه دې واقعه کښې هغه مسلمانانو ته تسلی ارزیږې دې چې عملونو کښې ترې کوتاهي کیږی لیکن نبی کریم ﷺ سره ئې پوره مینه وی .([1])

صحیح بخاری کښې انس رضی الله عنه څخه روایت دې فرمائی چې څه یو څل نبی کریم ﷺ سره یوه ورځ د مسجد څخه اووتلم ، د مسجد په دروازه کښې یو سړې ملاؤ شو ، دا سوال ئې اوکړو چې یا رسول الله ﷺ ! قیامت په کله وی ؟ نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې د قیامت دپاره دې څه تیاری کړې ده ؟ ددې خبرې په آوریدو دغه سړې په زړه کښې شرمنده شو خو بیا ئې اووئیل چې ما دقیامت دپاره ډیر مونځونه او روژې او خیراتونه راجمع کړی نه دی خو زه الله ﷻ او دهغه رسول ﷺ سره مینه لرم . نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې که داشان وی نو تاسو به هغه چا سره یئ چې چا سره مو مینه لرله . انس رضی الله عنه فرمائی چې ددې جملې مبارکې په آوریدو مونږ دومره خوشحاله شو چې دومره د اسلام راوړلو څخه روستو په بله خبره باندې نه وو خوشحاله شوی . وریسې انس رضی الله عنه اوفرمائیل چې زه د الله ﷻ دهغه د رسول ﷺ ابی بکر رضی الله عنه او عمر فاروق رضی الله عنه سره مینه لرم څکه امید لرم چې دوئ سره به یم . [قرطبی].([2])

**اصحاب کهف ته الله ﷻ داسې رعب داب ورکړې وو چې چا به اولیدل نو د هیبت څخه به تښتیدل:** ﴿لَوِ اطَّلَعْتَ عَلَيْهِمْ﴾ په ښکاره خو خطاب عام خلقو ته دی څکه ددې نه دا نه لازمیږی چې د اصحاب کهف رعب په رسول کریم ﷺ راتلو ، عامو مخاطبینو ته فرمائیلې شوی دی چې که تاسو دوئ ته د کتو په غرض تیټ شئ نو دهیبت نه به ئې اوتښتئ . اورعب به ئې درباندې راشی .

دا رعب او هیبت په کومه بنا او کومو اسبابو په وجه وو ، په دې کښې بحث کول او د وجې پوښتنه کول څکه عبث دی چې قرآن و حدیث ئې بیان نه دې کړې حقیقت دادې چې دا انتظام الله ﷻ د دوئ د حفاظت دپاره کړې وو چې په بدن ئې غارمه نه راځی . کتونکی ئې بیدار ګنړئ او په کتونکو طبعی هیبت راشی چې هغه ورته په زیر زیر اونه کتې شی ، دا حالات د خاص طبعی اسبابو له وجې هم کیدې شی او د کرامت په وجه یو ناآشنا طریقې سره هم کیدې شی کله چې ئې قرآن عظیم الشان او حدیث څه خاص وجه نه ده په ګوته کړې نو صرف په قیاسونو سره په دې کښې بحث کول بې کاره دی ، په تفسیر مظهری کښې هم دې ته غوره وئیلې شوی دی . او تائید ئې د ابن ابی شیبة ، ابن المنذر او ابن ابی حاتم په سند سره د ابن عباس رضی الله عنهما دا

---

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:۱۰ص:۳۷۲]

[2]) صحيح البخاری كتاب المناقب ،باب مناقب عمر بن الخطاب رضى الله عنه [ج:۱ص:۵۲۱] وكتاب الأحكام ، باب القضاء والفتيا فى الطريق[ج: ۲ص:۱۰۵۹]

واقعه نقل كړې ده ، چې ابن عباس ﷛ فرمائيلي دي مونږ د روم په مقابله كښې معاويه سره په جهاد كښې ملګرى وو ، چې د غزوة المضيق په نوم مشهور دې ، په دې دوران كښې دغې غار باندې چې ورغلو كوم كښې چې اصحاب كهف دى ، معاويه ﷛ دا اراده اوكړه چې د اصحاب كهف د تحقيق اوليدلو كتلو دپاره غار ته دننه ورشي . ابن عباس ﷛ منع كړو او وې فرمائيل چې الله ﷻ ستاسو څخه غوره او اوچت ذات نبى كريم ﷺ ، ددوئ د كتلو څخه منع كړې دې . او دا آيت مبارك ئې اولوستلو ﴿لَوِاطَّلَعۡتَ عَلَيۡهِمۡ﴾ دې څخه معلومه شوه چې د ابن عباس ﷛ په نزد په ﴿لَوِاطَّلَعۡتَ﴾ كښې خطاب نبى كريم ﷺ ته وو ، بيا هم معاويه د ابن عباس ﷛ رائې قبوله نه كړه [غالبا ددې وجه به دا وى چې هغوئ د آيت مخاطب نبى كريم ﷺ نه دې اخستې بلكه عام مخاطبين يې ددې مخاطب اخستې دى ، يا دا چې قرآن ددوئ دا حالت په هغه وخت كښې بيان كړې دې چې كله اصحاب كهف ژوندى وو او اودهٔ وو ، اوس خو دهغوئ د وفات ډيره موده تيره شوې ده ضرورى نه ده چې اوس هم هغه رعب او هيبيت او كيفيت موجود وى بهر حال] معاويه ﷛ د ابن عباس ﷛ خبره قبوله نه كړه او څو كسان ئې د تحقيق اوكتلو دپاره ورواوليږل كله چې په غار باندې هغوئ ورننوتل نو الله ﷻ پرې يوه سخته ګرمه هوا راؤليږله چې دهغې د وجې ئې هيڅ او نه ليدلې شو [مظهرى].(١)

| وَكَذَٰلِكَ | بَعَثۡنَٰهُمۡ | لِيَتَسَآءَلُواْ |
|---|---|---|
| او همدارنګې | راپاسول موږه هغوئ | دپاره ددې چې تپوس اوكړى ديو بل نه |

اودغه شان مونږ دوئ راويښ كړل

| بَيۡنَهُمۡۚ | قَالَ | قَآئِلٞ | مِّنۡهُمۡ | كَمۡ لَبِثۡتُمۡۖ | قَالُواْ |
|---|---|---|---|---|---|
| په خپل منځ كښې | اووئيل | يوويونكى | دهغوئ نه | څومره وخت تيركړو تاسو | اووئيل هغوئ |

چې په خپل مينځ كښې ديوبل نه تپوس اوكړى نو يوتن په كښې اووئيل چې تاسو به څومره موده دلته تيره كړې وى دوئ اووئيل

| لَبِثۡنَا | يَوۡمًا | أَوۡ بَعۡضَ يَوۡمٖۚ | قَالُواْ | رَبُّكُمۡ | أَعۡلَمُ |
|---|---|---|---|---|---|
| وخت تيركړو مونږه | يوه ورځ | يا يوه حصه دورځې | اووئيل هغوئ | رب ستاسو | ښه عالم دې |

چې مونږ يوهٔ ورځ يا ديوې ورځې يوه حصه تيره كړه پس دوئ اووئيل چې ستاسو رب ښه پوهه دې

| بِمَا | لَبِثۡتُمۡ | فَٱبۡعَثُوٓاْ | أَحَدَكُم | بِوَرِقِكُمۡ | هَٰذِهِۦٓ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغه وخت | چې تاسوتيركړو | نو اوليږئ | يو تن له تاسو نه | دسپنو زرو خپلو سره | چې دادى |

چې تاسو څومره موده تيره كړې ده نو دا بحث پريږدئ خوهٔ يوتن ديوې روپئ سره

| إِلَى ٱلۡمَدِينَةِ | فَلۡيَنظُرۡ | أَيُّهَآ | أَزۡكَىٰ | طَعَامٗا |
|---|---|---|---|---|
| دې ښارته | پس اودې ګورى هغه | چې كوم يو خائې ددغه ښار نه | زيات پاكيزه دې | په لحاظ دطعام سره |

ښار طرفته اوليږئ نو اودې ګورى چې دكوم خوراك پاكيزه دې نو دهغې نه دې

(١) قدر مر تخريجه و تفسير المظهرى تحت هذه الآية [ج:٦ ص:٢١]

فَلْيَأْتِكُمْ بِرِزْقٍ مِّنْهُ وَلْيَتَلَطَّفْ

نو راديِ وړی تاسوته | خوراك | دهغه ځايي نه | اوپه كار دی چی هغه دهوښيارتيانه كار واخلی |

څه لږ ډير خوراک تاسو له راوړی او خلقو سره دې خوږې پستې خبرې کوی

وَلَا يُشْعِرَنَّ بِكُمْ أَحَدًا ﴿۱۹﴾ إِنَّهُمْ إِنْ يَظْهَرُوا عَلَيْكُمْ

او خبردی نه کړی هرگز | په تاسو باند هيڅوك | بيشكه هغوئ | که غالب شو | په تاسوباندې |

اوستاسو حال دې چاته نه وائی که هغوئ درباندې خبر شو

يَرْجُمُوكُمْ أَوْ يُعِيدُوكُمْ فِي مِلَّتِهِمْ وَلَنْ تُفْلِحُوا

نوسنگساربه کړی تاسو | يابه واپس راوړی تاسو | ملت خپل ته | اوهرگز به كامياب نشئ تاسو |

نو سنگسار به موکړی خپل مذهب ته به مو بيا واپس کړی او که چرې داسې اوشو نو تاسو

إِذًا أَبَدًا ﴿۲۰﴾

بيا | هيڅكله |

به چرې هم كامياب نه شئ

## آسان ترجمه قرآن

او (څنګه چه مونږ هغوی اوده کړي وو) هم هغه شان مو هغوی دوباره راپاسول چه هغوی خپل مينځ کښې ديو بل نه تپوس اوکړی. په هغوی کښې يو ويونکی اووئيل تاسو په دې حالت کښې څومره اوسيدلی يئ؟ څه کسانو اووئيل مونږ د يوې ورځې يا دهغې نه لږکم (اوده شوي) پاتې شوې يو. نورو اووئيل: ستاسو رب ته ښه علم دې چه تاسو څومره موده په دې حالت پاتې شوی يئ. اوس خپلو کښې يو تن د سپينو زرو په دې روپئ سره ښهر طرف ته اوليږئ هغه دې هلته تلو سره اوګوری چه په کومه علاقه کښې زيات پاک خوراک (ملاويدې) شی نوتاسو ته دِ دَ هغه ځائې نه دخوراک دپاره څه راوړی، او هغه له پکار دی چه په هوښيارتيا سره کار کوی، او ستاسو دحال نه دې څوک هم نه خبروی ځکه چه که (د) دې (ښهر) خلقو ته ستاسو خبر اوشو نو هغوی به تاسو په کاڼو باندې هلاک کړی، يا به تاسوخپل دين ته په واپس کولو باندې مجبور کړی، اوکه داسې اوشوه نو تاسو ته به کله هم کاميابي ملاؤ نه شی.

## خلاصه تفسير

[ او] څنګه چه مونږه په خپل قدرت کامله سره دوی لره تر دومره اوږدې زمانې پورې اوده کړل ﴿كَذَٰلِكَ﴾ [ دغه شان ] ددې اوږد خوب نه پس ﴿بَعَثْنَاهُمْ لِيَتَسَاءَلُوا بَيْنَهُمْ﴾ [مونږ دوی لره راويخ کړل چه دوی په خپل مينځ کښې تپوس وکړی ] چه ديو بل سره دسوال جواب نه پس دوی ته دالله تعالی قدرت ښکاره شی چنانچه ﴿قَالَ قَائِلٌ مِّنْهُمْ﴾ [ په دوی کښې يو ويونکی ووئيل چه] ددې خوب په حالت کښې ﴿كَمْ لَبِثْتُمْ﴾ [تاسو څومره پاتې شوی يئ ] په جواب کښې ﴿قَالُوا﴾ [ څنو ووئيل چه] غالبا ﴿لَبِثْنَا يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ﴾ [يوه ورځ يا دروځې نه هم څه کم پاتې شوی يو ﴿قَالُوا﴾ نورو ووئيل چه ] ددې تفتيش څه ضرورت دې ﴿رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَا لَبِثْتُمْ﴾ [ددې خو] ټيک ټيک [ستاسو رب ته خبردې چه تاسو څومره ] اوده [پاتې شوی يئی اوس ] دافضول بحث

پریږدئ ضروری کارکول غواړی هغه داچه ﴿فَابْعَثُوا أَحَدَكُم بِوَرِقِكُمْ هَٰذِهِ إِلَى الْمَدِينَةِ﴾ [په خپلو کښې یوتن له دا روپئ ] کومې چه دویونکی سره وی ځکه چه دوی دتلو په وخت کښې دځان سره څه روپئ هم وړې وې غرض چاله دا روپئ [ورکړئ ښارته ئ ولیږی بیا] چه دې هلته لاړشی ﴿فَلْيَنظُرْ أَيُّهَا أَزْكَىٰ طَعَامًا﴾ [تحقیق دوکړی چه کوم خوراك حلال دې ] دلته دلفظ د ازکی تفسیر په روایت دابن جریر دحضرت سعیدبن جبیر رضي الله عنه نه دانقل دی چه مراد ددې نه حلال خوراك دې (۱)اوددې ضرورت ځکه راپیښ شو چه ددوی بت پرست قوم به اکثر دبتانو په نوم ذبح کوله اوپه بازار کښې به زیاته دغه حرامه غوښه خرڅیده ﴿فَلْيَأْتِكُم بِرِزْقٍ مِّنْهُ وَلْيَتَلَطَّفْ﴾ [نو هغه دې ددغې نه ستاسو دپاره څه خوراك راوړی اوکار دې په ښه تدبیر سره کوی ] چه په داسې طریقه لاړ شی ﴿وَلَا يُشْعِرَنَّ بِكُمْ أَحَدًا﴾ چه څوك ئ ونه پیژنی او دخوراك په تحقیق کښې دهم دانه ښکاره کوی چه ګوند دې دبت دنوم ذبحه حرامه ګنړی [ اوهغه خلق چه دوی په خپل خیال کښې دخپلې زمانې مشرکان ګنړل ﴿إِنَّهُمْ إِن يَظْهَرُوا عَلَيْكُمْ يَرْجُمُوكُمْ أَوْ يُعِيدُوكُمْ فِي مِلَّتِهِمْ﴾ که[ تاسونه خبرشی نو تاسو به یا په ګټو ولی او مړهٔ به موکړی یا ] جبرا [به تاسو لره په خپل مذهب کښې بیا داخل کړی ﴿وَلَن تُفْلِحُوا إِذًا أَبَدًا﴾ اوکه داسې اوشوه نو تاسو به چرې فلاح بیا نه مومئ ]

## معارف او مسائل

﴿كَذَٰلِكَ﴾ دا لفظ تشبیه او تمثیل دپاره دې ، دلته ترې مراد د دوؤ واقعو ترمینځه یو شان والې بیانول دی. یوه واقعه د ډیر زیات اوږد خوب کولو ده چې په : ﴿فَضَرَبْنَا عَلَىٰ آذَانِهِمْ فِي الْكَهْفِ سِنِينَ عَدَدًا﴾ سره په اول د قیصې کښې بیان شوېده او بله واقعه داده چې دومره موده د اوده پاتې کیدو نه پس رابیدار شو خو خوراك څکاك ئې په ټوله زمانه کښې نه وو کړې ، دا دواړه واقعې د الله ﷻ د قدرت نخښې په کیدلو یو شان دی. ځکه په دې آیت مبارك کښې ئې د دوئ د بیداریدو بیان اوکړو نو په : ﴿كَذَٰلِكَ﴾ سره ئې ورته اشاره اوکړه چې څنګه د دوئ خوب لکه دعامو انسانانو عادتی خوب پشان نه وو ، دغه شان ددوئ بیداری هم دعامو عادتی طبعی بیداری نه په ځانګړی شان وه. وروسې ﴿لِيَتَسَاءَلُوا﴾ کښې ئې اوفرمائیل. دا ددوئ د بیداریدو علت نه دې بلکه په عادتی ډول د یوې راپیښې شوې واقعې بیان دې ، ځکه ئې دې لام ته د عاقبت یاد لام صیرورت نوم ورکړې دې [ ابوحیان ،قرطبی](۲)

خلاصه داده چې څنګه د دوئ دغه زیات اوږد خوب یوه نخښهٔ وه دغه شان سوؤنه کاله پس بغیر د څه خوراك څکاك نه ، قوی او روغ جوړ رابیداریدل هم د کامل قدرت نخښه وه . هر کله چې قدرت ته داهم منظوره وه چې پخپله دوئ ته هم دغه حقیقت ښکاره شی چې په سوؤنو کالونو دوئ اودهٔ پاتې شوی دی ، ځکه ددې شروع پخپل مینځ کښې یو بل نه تپوس کولو سره اوشو ه او ختمه په دې واقعه شوه کومه چې : ﴿وَكَذَٰلِكَ أَعْثَرْنَا﴾ کښې راروانه ده چې د ښار په خلقو هم ددوئ راز ښکاره شو ، او د مودې په تعیین کښې داختلاف باوجود تر ډیرې زمانې پورې د دوئ په غار کښې اودهٔ پاتې کیدلو ټولو ته یقین اوشو.

---

(۱) تفسیر الطبر لابن جریر رحمة الله علیه تحت هذه الآیة [ج: ۱۷ ص:۶۳۸]

(۲) تفسیر البحرالمحیط تحت هذه الآیة [ج:۷ ص:۴۳۰] و تفسیر القرطبی [ ج:۱۰ص:۳۷۴]

﴿قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ﴾ د قيصې په شروع کښې په اجمالي طور سره يوه خبره داسې شوې وه چې په دې کښې هر کله چې د رائې اختلاف راولاړ شو چې غار کښې مو څومره موده تيره کړيده ؟ څومره موده اوده پاتې شوی يو ، په دې کښې د يو ډلې خبره صحيح وه ، دا دهغې تفصيل دې چې يو کس په کښې سوال راپورته کړو چې تاسو څومره موده اوده پاتې شوی يئ ، نو ځينو اووئيل چې يوه ورځ يا د ورځې څه حصه اوده پاتې شوی يو ، ځکه چې دوئ غار ته د صبا په وخت کښې دننه شوی وو او کله چې راېيدار شو نو د ماښام وخت وو ، په دې وجه ئې دا خيال راغلو چې کنی دا هم د هغې ورځې ماښام دې ، دکومې په صبا کښې چې مونږ په دې غار راننوتی وو ، خو ځينو په کښې دا محسوسه کړه چې داد هغې ورځې ماښام نه دې البته دا معلومه نه ده چې دې مينځ کښې څومره ورځې تيرې شوی دی. ځکه ئې ددې علم الله ﷻ ته اوسپارلو لکه قرآن عظيم الشان فرمائي چې :﴿رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَا لَبِثْتُمْ﴾ او دا بحث کول ئې ضروري او نه ګڼړل او اصل کارته ئې داسې مخه کړه چې د ښار نه خوراکه راؤړلو دپاره څوك اوليږلې شي.

﴿إِلَى الْمَدِينَةِ﴾ دې لفظ نه دومره خو معلومه شوه چې دغې غار ته نزدې يو لوئې ښار چرته وو چې دغه خلق اوسيدل ، ابو حيان پخپل تفسير بحر محيط کښې ددغه ښارونو متعلق ليکلی دی چې هر کله دوئ ددغې ښار نه وتل نو دغه وخت ئې افسوس نوم وو او اوس ئې طرسوس نوم دې .[1] امام قرطبي رحمه الله پخپل تفسير کښې ليکلی دی چې د جاهليت دزمانې د بت پرستو کافرانو چې په دې ښار باندې غلبه وه نو افسوس ئې نوم وو. خو چې ددغې زمانې مسلمانان پرې غالب شو نو ددغې ښار نوم ئې طرسوس کيخودو.[2]

﴿بِوَرِقِكُمْ﴾ نه معلوم شو چې غار ته د راتلو په وخت اصحاب کهف ځان سره څه پيسې راوړې وې. دې نه معلومه شوه چې خپل ضروری خرچ دپاره څه انتظام کول د زهد او توکل نه خلاف نه دی. [بحر محيط][3]

﴿أَيُّهَا أَزْكَىٰ طَعَامًا﴾ دازکی لفظی معنی پاك اوصفا ده چې د ابن جبير رضي الله عنه د تفسير مطابق دې نه مراد حلاله خوراکه ده ، ددې ضرورت ئې ځکه اوګڼړلو چې ددغې ښار نه د دوئ د راوتو په وخت به دغلته د بتانو په نوم د ځاروو حلاله کولې شوه او هم هغه به بازار کښې خرڅيدله. ځکه ئې خپل ملګری ته دحلالې خوراکې د راوړو تاکيد اوکړو.

**مسئله**:: دې نه معلومه شوه چې چرته په يو ښار ،بازار کښې د حرامې خوراکې رواج وی نو هلته د يو هوټل نه بې تحقيقه خوراکه کول جائز نه دی.

﴿أَوْ يُعِيدُوكُمْ﴾ د رجم معنی په کاڼړو ويشتل دی ، ولې چې دوئ کله غار ته لا نه وو راغلی نو بادشاه دهمکی ورکړې وه چې که دغه دين نه منع نشوئ نو تاسو به اووژلې شئ. ددې نه دا هم معلومه شوه چې دهغوئ ددين نه داوړيدو سزا به ئې په کاڼړو ويشتلو سره ورکوله چې ټول خلق پرې په شريکه زړه يخ کړې شي.

---

[1] تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۴۳۰]

[2] تفسير القرطبي [ ج:۱۰ص:۳۷۵]

[3] تفسير البحر المحيط [ ج:۱۰ص:۳۷۵]

داسلامي شريعت تر مخه د يو ځل وادهٔ شوي بنده د زنا په كانړو ويشتلو سره ئې وژل ځكه مقرر كړي دي چې په دهٔ باندې ټول مسلمانان په شريكه خپل زړونه يخ كړي ولې چې ده د خپلې بې حيايئ په وجه د مسلمانانو اجتماعي بې عزتي كړې وه. چې داسې سزا وركولو سره تري دغسې بې حيا خلق عبرت واخلي او ددې بې حيايئ لار بنده شي.

﴿فَابْعَثُوٓا اَحَدَكُمْ﴾ د خوراكې راوړلو دپاره دوئ خپل يو كس اوټاكلو او پيسې ئې وركړې، قرطبي رحمه الله په حواله د ابن خويز منداد اوفرمائيل چې دې نه څو فقهي مسئلې حاصلې شوې.

**يو څو مسئلې:**

① اول دا چې په مال كښې شريكېدل روا دي، ځنګه چې د دوئ دغه مال هم شريك وو.

② دويم دا چې په مال كښې څوك وكيل جوړ كړي روا دي، چې دغه كس په اجازت د مؤكل باندې يا مؤكلينو سره تصرف په دې مشترك مال كښې كولې شي.

③ دريم دا چې په خوراكه كښې څو ملګرې شريكېدل جائز دي اګرچې څوك په كښې كم او څوك په كښې زيات خوراك د عادت تر مخه كوي.[1]

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَكَذٰلِكَ | اَعْثَرْنَا | عَلَيْهِمْ | لِيَعْلَمُوْٓا |
| او په دې طريقه | خبر كړل مونږه | په هغوئ باند | دپاره ددې چې معلومه شي خلقوته |
| او دغه شان مونږ خلق دهغوئ په حال خبر كړل چې په دې پوهه شي | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَنَّ | وَعْدَ | اللّٰهِ | حَقٌّ | وَّاَنَّ | السَّاعَةَ | لَارَيْبَ |
| چې بيشكه | وعده | دالله | رښتينې ده | او بيشكه | قيامت چې دې | نشته شك |
| چې دالله ﷻ وعده رښتوني ده و دا چې دقيامت په راتلو كښې هيڅ شك | | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِيْهَا ۚ | اِذْ | يَتَنَازَعُوْنَ | بَيْنَهُمْ | اَمْرَهُمْ |
| په راتلو دهغې كښې | كله چې | هغوئ جګړې كولې | په خپل منځ كښې | په دې كار خپل كښې |
| نشته هركله چې (دهغې زمانې خلقو) ددوئ په حقله په خپل مينځ كښې جګړه كوله | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالُوا | ابْنُوْا | عَلَيْهِمْ | بُنْيَانًا ۖ | رَبُّهُمْ | اَعْلَمُ |
| نو اووئيل څه خلقو | چې جوړ كړئ | په دوئ باند | يو ديوال | رب ددوئ | ښه عالم دې |
| نو دوئ اووئيل چې په دوئ باندې يو عمارت جوړ كړئ دهغوئ رب ته دهغوئ حال ښه | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِهِمْ ۖ | قَالَ | الَّذِيْنَ | غَلَبُوْا | عَلٰٓى اَمْرِهِمْ |
| په حال ددوئ باند | اووئيل | هغه كسانو | چې غالب وو | په معاملاتو دهغوئ باند |
| معلوم دې نو څوك چې په خپل كار باندې غالب وو هغوئ اووئيل چې مونږ خو به | | | | |

| | | |
|---|---|---|
| لَنَتَّخِذَنَّ | عَلَيْهِمْ | مَّسْجِدًا ﴿۲۱﴾ |
| خامخا به جوړ وو مونږه | په دوئ باند | يوه عبادت خانه |
| دلته يوه عبادت خانه جوړوو | | |

[1] تفسير القرطبي [ج:۱۰ص:۳۷۷]

## آسان ترجمه قرآن

او دغه شان مونږ دهغوی خبر خلقو ته اورسولو چه هغوی په پوهه شي چه د الله پاک وعده رشتینې ده، بله دا چه د قیامت وعده راتلونکې ده په هغې کښې هیڅ شک نشته. (بیا هغه وخت هم رایاد کړئ) چه خلقو د هغوی په باره کښې خپل مینځ کښې جهګړې کولې پس څه خلقو اووئیل چه په هغوی باندې یو آبادی جوړه کړئ. د هغوی رب د هغوی په معامله باندې ښه عالم دې (آخر دا چه) کومو خلقو ته چه په دې معاملاتو باندې غلبه حاصله وه هغوی اووئیل چه: مونږ خو به د دوی دپاسه یو مسجد ضرور جوړوو.

## خلاصه تفسیر

[او] مونږه لکه څنګه چه په خپل قدرت سره دوی لره اوده کړل اوویښ کړل ﴿وَكَذٰلِكَ﴾ [دغه شان مونږه ] په خپل قدرت اوحکمت سره ﴿أَعْثَرْنَا عَلَيْهِمْ لِيَعْلَمُوٓا﴾ ددغې زمانې [خلقو لره] په حال [ددوی باندې خبرکړل ددې دپاره چه ] منجمله دنورو فائدونه یوه فائده په کښې داشوه چه [دغه خلق ] په دې واقعه سره دلیل ونیسی [په دې خبره یقین ] یازیات یقین [وکړی﴿أَنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ﴾ چه دالله تعالی وعده ربښتونې ده ﴿وَأَنَّ السَّاعَةَ لَا رَيْبَ فِيهَآ﴾ او بل داچه په قیامت کښې هیڅ شك نشته ] دې خلقو که دوړاند نه په قیامت کښې په ژوندی کیدو ایمان لرلونو په دې واقعه سره ئې یقین زیات شو اوکه دقیامت نه منکر وو نو اوس ورته یقین حاصل شو دا واقعه خو داصحاب کهف په ژوندی کیدو کښې راپیښه شوه بیا دغې صاحبانو دغه ځای په غارکښې وفات بیا موندو[وفات شوه] نو ددوی په باره کښې دغه وخت په خلقو کښې اختلاف پیداشو چه وړاندې بیانوی چه ﴿إِذْ يَتَنَٰزَعُونَ بَيْنَهُمْ أَمْرَهُمْ﴾ [هغه وخت هم دیادولو قابل دې کله چه ددغې زمانې خلقو په خپل مینځ کښې جګړه کوله ] او دغه معامله ددغې غار خله بندول وو چه ددوی لاشونه محفوظ پاتې شي یا ددوی یاد ګار قائمول وو﴿فَقَالُوا﴾ [پس دغو خلقو ووئیل ﴿ابْنُوا عَلَيْهِم بُنْيَٰنًا﴾ چه ددوی ] دغار [په خواکښې یوه ابادی جوړه کړئ] بیا اختلاف جوړ شو چه دغه ابادی دڅه وی ؟ په دوی کښې رائ مختلفې شوې نو داختلاف په وخت کښې ﴿رَّبُّهُمْ﴾ [ددوی رب ] ﴿أَعْلَمُ بِهِمْ﴾ مختلفوحالاتود [ دوی لره ښه پیژندل ] اخر ﴿قَالَ الَّذِينَ غَلَبُوا عَلَىٰٓ أَمْرِهِمْ﴾ [کوم خلق چه په کار غالب وو ] یعنی دحکومت خاوندان کوم چه دغه وخت په حق دین باندې وو [دوی ووئیل ﴿لَنَتَّخِذَنَّ عَلَيْهِم مَّسْجِدًا﴾ چه مونږ خو ددوی په خوا کښې یو جماعت جوړ وو] ددې دپاره چه جماعت ددې خبرې هم نښه وی چه دا خلق په خپله عابدان وو معبودان نه وو اوپه نورو ابادو کښې دا احتمال وو چه وړاند راتلونکی خلق د ددوی نه معبودان جوړ نه کړی .

## معارف او مسائل

﴿وَكَذٰلِكَ أَعْثَرْنَا عَلَيْهِمْ﴾ په دې آیت مبارك کښې الله ﷻ د اصحاب کهف دا راز ا و حکمت ئې او عقیده د آخرت اوقیامت ددغې ښار خلقو ته ښکاره کول وو چې تول مړی به دوباره ژوندی کیږی ، په دې باندې ئې ایمان او یقین حاصلیدل بیان کړی دی . په تفسیر قرطبی کښې ددې مختصره قیصه داشان بیان شوې ده چې :

**د اصحاب کهف حالات ددغې ښار خلقو ته ښکاره کیدل ::** د اصحاب کهف د وتلو دوخت ددغې ښار مشرك او ظالم بادشاه دقیانوس مړ شوڅو صدئی پرې تیرې شوې تر دې چې په دغې حکومت

باندې د موحدانو او حق پرستو خلقو قبضه شوې وه. او ددغه ملك بادشاه يو نيك او صالح سړې وو.(۱) په دغې زمانه کښې ناګاهانه د قيامت او په دې کښې د دوباره ژوندي کيدو په باره کښې څه اختلافات پيدا شو ، يوه فرقه دې نه منکره شوه چې د مرګ څخه روستو انسان ذره ذره شي او دغه ټولې ذرې ئې په ټول جهان کښې خورې ورې شي نو هغه به بيا څنګه راژوندې کولې شي ؟ بيډوسيس بادشاه سره فکر شو چې ددوئ دا شك به څنګه ختم کړي.

هرکله چې په دې هيڅ صورت باندې کامياب نشو نو پخپله ئې د ټاټ جامې واچولې او د ايرو په يو ډيرى باندې کيناستو اوالله ﷻ ته ډير په زارئى شو اودعاء اوکړه چې يا الله ﷻ ! ددې خلقو د عقيدې داصلاح څه صورت راؤباسه .او دا خلق په لار شي. يو طرفته دا بادشاه په زارئى اومنت کولو کښې مصروف وو ، بل طرفته الله ﷻ ددهٔ دا دعا قبوله کړه او اصحاب كهف بيدار شؤ. او خپل يو سړې ئې دخوراکې اخستلو دپاره دغې بازار ته اوليږلو ، ددې سړي نوم تمليخا وو. هلته چې ئې کله درې سوه کاله وړاندينۍ روپۍ دخوراکې په قيمت کښې پيش کړې نو دوکاندار حيران شو او وې وئيل چې دا دکوم ځائې روپۍ دى او د کومې زمانې دى ؟ نورو دوکاندارانو ته ئې هم اوخودلې .هغوئ ورته اووئيل چې دې سړي ته چرته زړهٔ خزانه په ګوتو ورغلې ده . اودهغې څخه ئې دا نمونه راوړې ده. دې سړي ورته اووئيل چې نه خو راته خزانه په ګوتوراغلې ده او نه مې دا روپۍ چرته د بل ځايه راوړې ده. د اخما خپله روپۍ ده.

د بازار خلقو لاس نيولې خپل بادشاه ته بوتلو. دغه نيك بادشاه ددغې حکومت په زړه خزانه کښې د آثار قديمه په ډول پرته هغه تختۍ هم ليدلې وه په کومه باندې چې د اصحاب كهف نومونه او د دوئ د تښتيدو واقعه ليکلې شوې وه. د ځينې پوهانو په نزد دا تختۍ دقيانوس بادشاه پخپله په چا ليکلې وه . او دوئ ئې اشتهارى مجرمان ګرځولي وو. او ددوئ نومونه او پتې ئې هم محفوظ کړې وې چې د چا پرې هم لاس بر شي نو چې دوئ ګرفتار کړي. څوك وائي چې دا تختۍ د بادشاهى دفتر مؤمنانو کارکنانو دياد ګار په ډول ليکلې وې او محفوظ ئې ساتلې وې چې چا بت پرستى بده ګڼړله او اصحاب كهف ئې په حقه ګڼړل. خو ددې د ښکاره کولو همت په کښې نه وو. ددې تختۍ نوم رقيم وو او هم ددې په وجه اصحاب كهف ته اصحاب رقيم وئيلې شي.

بادشاه مطمئن شو او په دې ډير خوشحاله شو چې دا خو هم هغه کسان دى چې الله ﷻ ورسره زما ملاقات اوکړو کوم دپاره چې ما دعا کوله . او دا اميدې ئې پيدا شو چې ددې څخه بهٔ ماته د دوباره ژوندى کيدلو دليل په ګوتو راشي. څکه ئې تمليخا ته اووئيل چې ما ځان سره خپلو ملګرو ته بوځه.

بادشاه سره نور خلق هم هلته تلو دپاره تيار شو چې دغار خلې ته اورسيدل نو تمليخا اووئيل چې تاسو دلته ايسار شئ چې زه خپلو ملګرو ته حال اووايم اوپه دې ئې خبر کړم چې ددغې ښار موجوده بادشاه مؤحد مسلمان دې او قوم ئې هم مسلمان دې اوورته اووايم چې دوئ ملاقات دپاره راغلى دى ، ستاسو د ناګاهانه ورتلو په وجه به هسې نه چې زما د ملګرو دا خيال راشي چې ګنى ظالم بت پرست بادشاه راباندې راغلو.

---

(۱) تفسير المظهرى[ج:٦ص:١٣]

هغوئ دغار څخه بهر ایسار شو چې تملیخا خپل ملګري په دې پوهه کړل نوهغوئ هم ډیر خوشحاله شو اوډیرپه تعظیم دبادشاه د استقبال دپاره بهرراؤوتل، بیاخپل غارته وردننه شول. په ا کثرو روایتونو کښې دی چې تملیخا کله خپلو ملګرو ته د بادشاه د راتلو خبر ورکړو نو هغوئ ټول مړۀ شو او بادشاه سره ئې ملاقات اونه شو.[1] بحر محیط ابو حیان دلته دا روایت نقل کړې دې چې ملاقات نه پس اصحاب کهف بادشاه او نورو ډېبار خلقو ته اووئیل چې اوس مونږ تاسو څخه رخصتیږو او غار ته دننه ورغلل ، دغه وخت الله ﷻ دغه ټول مړۀ کړل.[2]

بهر حال اوس ددغې ډېبار دخلقو مخې ته دغه عجیبه واقعه ډېۀ په ډېکاره راغله چې په دې سره د ټولو په دې یقین اوشو چې کوم یو ذات درې سوؤ کالو پورې ژوندی انسانان بغیر د څه خوراك څكاك نه ژوندی لرلې شي اودومره زمانه ئې خوبولی لرلو نه پس صحیح سالم ، روغ جوړ او قوی رابیدارکړی. هغه لوئ ذات دپاره څه ګرانه نه ده چې د مرګ څخه روستو بیا دا بدنونه راژوندی کړی. په دې واقعې سره د هغوئ د انکار وجه لرې شوه. چې هغوئ بۀ د جسمونو راپورته کیدل د قدرت څخه لرې او بهر ګڼړل. اوس معلوم شو چې د مالك الملكوت قدرت په انسانی قدرت باندې قیاس کول پخپله جهالت دې.

هم ددې طرفته په آیت مبارك کښې اشاره ده چې: ﴿لِيَعْلَمُوٓا۟ أَنَّ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقٌّ وَأَنَّ ٱلسَّاعَةَ لَا رَيْبَ فِيهَآ﴾ [مونږ اصحاب کهف تر ډیرې مودې پورې د اوده کیدو څخه روستو راویښ کړل د پاره ددې چې خلق پوهه شي چې دالله ﷻ دا وعده چې په قیامت کښې به مړی ژوندی کوی رښتیا ده او د قیامت په راتلو کښې څه شك نشته دې].

**د اصحاب کهف د وفات کیدو نه پس دخلقو ترمینځه درائې اختلاف:** داصحاب کهف دبزرګئ او پاکیزګئ خو ټولو اقرار کولو ، چې وفات شو نو د ټولو خیال دا شو چې دغار خوا کښې څه عمارت د یادګار په ډول جوړ کړې شي. خو په دې اختلاف راغلو چې عمارت بۀ کوم قسم وی؟ دې ډېبار کښې اوس هم ډیر بت پرست خلق اوسیدل چې د اصحاب کهف زیارت کولو له بۀ راتلل. د عمارت باره کښې هغوئ دا رائې ورکړه چې داسې عمارت دې تیارکړې شي چې عامو خلقو ته ترې فائده رسی. خو د حکومت خلق او بادشاه چې مسلمان وو دهغوئ رائې دا شوه چې دلته مسجد جوړ کړې شي چې یادګار هم وی او په آئنده کښې دبت پرستئ نه دبچ کولو سبب هم جوړیږی ددې اختلاف رائې د بیانولو په مینځ کښې قرآن کریم دا جمله راوړله: ﴿رَّبُّهُمْ أَعْلَمُ بِهِمْ﴾ [ددوئ رب د دوئ په حالاتو باندې پوره خبردې].

تفسیر بحر محیط کښې ددې جملې په معنی کښې دوه احتمالات بیان شوی دی. یو احتمال دادې چې دا خبره هم دډېبار د خلقو ده څکه چې د اصحاب کهف د وفات نه پس کله چې د دوئ د یادګار جوړولو په باره کښې خبرې اترې اوشوې نو څنګه چې عموما په یادګاری تعمیرونو کښې د هغې خلقو نومونو او خالص حالاتو بورډ لګولې شي نو ددوئ د نسب او حالاتو باره کښې مختلفې خبرې اترې اوکړې شوې چې هیڅ نتیجه ئې ظاهر نشوه ، نو پخپله هم دغه خلق عاجزه شو او وې وئیل چې: ﴿رَّبُّهُمْ أَعْلَمُ بِهِمْ﴾ او په دې وئیلو سره په اصل کار کښې اخته شو ،

---

[1] تفسیر القرطبي [ ج:۱۰ص:۳۷۹]

[2] تفسیر البحرالمحیط تحت هذه الآیة [ج:۷ ص:۴۳۲]

کوم خلق چې غالب وو دهغوئ رائې د مسجد جوړولو غوټه کړې شوه.

بل احتمال دادې چې داکلام د نبي کريم ﷺ د طرفه وی ، په دې سره ددغې زماني اختلاف کوونکو ته خبرداري ورکړې شوې وی چې کله تاسو د حقيقت علم نه لرئ او ددې علم ذريعې هم تاسو سره نشته ، نوولې پدې بحث کښې وخت ضائع کوئی ؟

دا هم کيدې شی چې د نبي کريم ﷺ د زمانې يهودو ته په دې باندې زورنه ورکول مقصود وی کومو به چې ددې واقعې په باره کښې بې بنياده خبرې او بحثونه کول ،[1] والله سبحانه وتعالى اعلم.

**مسئله** :: دې واقعې نه د ومره معلومه شوه چې د نيکانو او بزرگانو د قبرونو خوا کښې مونځ دپاره د مسجد جوړولو څه گناه نشته دې او په کومو احاديثو کښې چې د پيغمبرانو ﷺ د قبرونو نه په مسجد جوړونکو باندې د لعنت الفاظ راغلی دی د هغې نه مراد په قبرونو د پيغمبرانو ﷺ باندې سجدې لګول دی. چې په اتفاق سره شرک کوم او حرام دی .[مظهری].[2]

سَيَقُوْلُوْنَ ثَلٰثَةٌ

وائی به څه خلق | چې هغوئ درې وو |

اوس خوک چې وائی چې هغوئ درې تنه وو

رَّابِعُهُمْ كَلْبُهُمْ ۚ وَيَقُوْلُوْنَ خَمْسَةٌ سَادِسُهُمْ كَلْبُهُمْ

څلورم دهغوئ | سپې دهغوئ وو | اوخوک به وائی | چې پنځه وو | او شپږم دهغوئ | سپې دهغوئ وو

او څلورم ئې سپې وو اوخوک چې وائی چې پنځه تنه وو او شپږم ئې سپې وو

رَجْمًا بِالْغَيْبِ ۚ وَيَقُوْلُوْنَ سَبْعَةٌ وَّثَامِنُهُمْ كَلْبُهُمْ ؕ

دا ويشتل دی | په غيبو سره | اووائی به څينې نورخلق | چې اوه وو | اواتم دهغوئ | سپې دهغوئ وو

داټولې بې تحقيقه خبرې دی اوخوک به وائی چې اوۀ تنه وو او اتم ددوئ سپې وو

قُلْ رَّبِّيْٓ اَعْلَمُ بِعِدَّتِهِمْ مَّا يَعْلَمُهُمْ اِلَّا

ورته اووايه | چې رب زما | ښه عالم دې | په شماره دهغوئ | نه دې معلوم دوئ ته | مګر |

[اې پيغمبره] ته ورته اووايه چې زما رب ته دهغوئ شميرښه معلوم دې په دوئ صرف لږ غوندې

قَلِيْلٌ ۫ فَلَا تُمَارِ فِيْهِمْ اِلَّا مِرَآءً ظَاهِرًا ۪

ډيرولږوخلقوته | پس جګړه مه کوه ته | په باره دهغوئ کښې | مګربحث | سرسرى |

خلق پوهه دی پس ته دسر سری بحث نه سوا ددوئ په باره کښې زيات تحقيق مه کوه

وَّلَا تَسْتَفْتِ فِيْهِمْ مِّنْهُمْ اَحَدًا ﴿۲۲﴾

او تپوس مه کوه ته | په باره دهغوئ کښې | په دوئ کښې | دهيچانه |

او ددوئ په حقله په دې خلقو کښې دهيچا نه تپوس مه کوه

[1] ) تفسير البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۴۳۳،۴۳۲]

[2] ) تفسير المظهری[ج:٦ص:۲۳، ۲٤]

## آسان ترجمه قرآن

څه خلق به وائي چه هغوي درې سړي وو، او څلورم د هغوي سپې وو، او څه به وائي چه هغوي پنځه وو او شپږم د هغوي سپې وو. دا ټولې اټكل خبرې دي. او څه به وائي چه هغوي اووه وو، او اتم د هغوي سپې وو او وايه چه: زما رب د هغوي په صحيح تعداد ښانده پوهيدي. د لږو خلقو نه علاوه چاته هم د هغوي پوره علم نشته لهٰذا د هغوي په باره كښې د سرسري خبرو نه وړاندې هيڅ بحث مه كوه. او مه د هغوي په باره كښې د چا نه څه تپوس كوه.

## خلاصه تفسير

څه وخت چه داصحاب كهف قصه بيانوي نو ﴿سَيَقُولُونَ ثَلٰثَةٌ رَّابِعُهُمْ كَلْبُهُمْ﴾ [ څنې خلق به ووائي چه هغه درې دی څلورم يې سپې دې ﴿وَيَقُولُونَ خَمْسَةٌ سَادِسُهُمْ كَلْبُهُمْ﴾ او څنې به ووائي چه هغه پنځه دی شپږم يې سپې دې ] ﴿رَجْمًا بِالْغَيْبِ﴾ او [ دا خلق بې تحقيقه خبرې لره چلوی ﴿وَيَقُولُونَ سَبْعَةٌ وَّثَامِنُهُمْ كَلْبُهُمْ﴾ او څنې به ووائي چه هغه اووه دی اتم يې سپې دې ﴿قُلْ رَّبِّيْٓ اَعْلَمُ بِعِدَّتِهِمْ﴾ ته] ﷺ ددې اختلاف كوونكو ته [ ووايه چه زما رب ته ددوی شمير ښه ] صحيح صحيح [معلوم دې ] چه په دې مختلفو خبرو كښې څه خبره صحيح هم ده كه ټولې غلطې دی ﴿مَّا يَعْلَمُهُمْ اِلَّا قَلِيْلٌ﴾ د [دوی] شمير [لره ] صحيح صحيح [ ډيركم خلق پيژنی ] اوچونكه په تعداد متعين كولو كښې څه خاص فائده نه وه په دې وجه يې په ايت كښې څه واضحه فيصله ونه فرمائيله ليكن په روايتونو كښې دحضرت ابن عباس ﷺ او ابن مسعود ﷺ نه نقل دی چه دوی فرمائی [انا من القليل كانوا سبعة] يعنی زه هم په هغو لږو خلقو كښې داخل يم دكومو په باره كښې چه قرآن فرمائی چه لږ خلق پوهيږی هغوی اووه وو[1] لكه چه دارنگه په درمنثور كښې دی دابن ابی حاتم وغيره نه او په ايت كښې هم ددې قول دصحت اشاره موندې شی څكه چه ددې قول دنقل كولو نه پس يې ددې رد نه دې كړې په خلاف د اولنو دوارو قولونو نه چه ددوی په ترديد كښې رَجْمًا بِالْغَيْبِ فرمائيلې دې والله اعلم [پس] په دې باندې هم كه دغه خلق داختلاف نه واپس نه شو نو ﴿فَلَا تُمَارِ فِيْهِمْ اِلَّا مِرَآءً ظَاهِرًا﴾ [ته] ﷺ [ددوی په معامله كښې بغير دسرسری بحث نه زيات بحث مه كوه] يعنی لنډه طريقه سره خو ددوی دخيالاتو رد په قرآنی ايتونو كښې راغلې دې كوم چه په رَجْمًا بِالْغَيْبِ او قُلْ رَّبِّيْٓ اَعْلَمُ سره بيان شوې دې پس سرسری بحث دادې چه په دې باندې اكتفاء كوه ددوی داعتراضونو په جواب كښې ددې نه زيات مشغوليدل او دخپلې دعوې په اثبات كښې زيات كوشش كول مناسب نه دی چه په دې بحث كښې څه خاص فائده نشته ﴿وَّلَا تَسْتَفْتِ فِيْهِمْ مِّنْهُمْ اَحَدًا﴾ [او ته ددې] اصحاب كهف [ په باره كښې په دې خلقو كښې دچانه هم تپوس مه كوه] لكه څنگه چه ته ددوی په اعتراض اوجواب كښې دزيات كاوش[توجه وركولو] نه منع كړې شوې يې دغه شان ددې نه هم منع فرمائی چه اوس ددې معاملې متعلق دچانه سوال يا تحقيق وكړې څكه چه څومره خبره ضروری وه هغه په وحی كښې راغله غير ضروری سوالو نه اوتحقيقونه دنبوت دشان نه خلاف دی .

---

[1] الدرالمنثور [ج: ٦ص:٣٥٢] وتفسير ابن ابی حاتم رقم الحديث:[١٣٨٠٨]

## معارف او مسائل

**اختلافي بحثونو كښې د خبرو اترو كولو آداب** :: ﴿سَيَقُولُونَ﴾ [ دغه خلق به وائي] ددې ويونكو باره كښې دوه احتمالونه كيدې شي . يو دا چې ترمراد هغه خلق دي چې د اصحاب كهف د زمانې وو او دهغوئ د نومونو ، نسبونو وغيره باره كښې ئې اختلاف پخپل مينځ كښې كړې وو. څنګه چې په رومبي آيت كريمه كښې ئې بيان راغلې دې . هم ددغې خلقو څينې څه خلقو د هغوئ د شمير باره كښې رومبې ، څه په كښې دويم ، او څه په كښې دريم قول اختيار كړې دې . [ البحر كښې د ماوردي نه ](1)

او بل احتمال دادې چې د ﴿سَيَقُولُونَ﴾ ضمير د نجران نصاراؤ ته راجع وي كومو چې د اصحاب كهف د شمير باره كښې نبي اكرم ﷺ سره مناظره كړې وه . دڅغې نصاراؤ درې فرقې وې ، ملكانيه فرقې ، د هغوئ د شمير باره كښې رومبې قول اوكړو يعنى دهغوئ شمير ئې درې بيان كړو . يعقوبيه فرقې دويم قول اوكړويعنى دهغوئ شمير ئې پنځه بيان كړو . نسطوريه فرقې دريم قول اوكړو يعنى شمير ئې اوه بيان كړو ، څينو فرمائيلي دي چې دا دريم قول د مسلمانانو وو اوآخر دا چې د نبي اكرم ﷺ د خبر او د قرآن عظيم الشان د ارشاد نه معلوم شو چې دريم قول صحيح دې [بحر محيط](2) .

﴿وَثَامِنُهُمْ كَلْبُهُمْ﴾ دلته په دې نكته باندې غور كول پكار دى چې په اولو دوؤ اقوالو كښې د عطف واؤ نه دې راؤړې شوې او په دريم قول كښې د عطف واؤ راؤړې شويدې لكه چې فرمائي :﴿ثَلَاثَةٌ رَّابِعُهُمْ كَلْبُهُمْ﴾ ، ﴿خَمْسَةٌ سَادِسُهُمْ كَلْبُهُمْ﴾ ، ﴿سَبْعَةٌ وَثَامِنُهُمْ كَلْبُهُمْ﴾

مفسرينو حضراتو ددې وجه دا ليكلې ده چې د عربو په نزد به د شمير رومبئ غوټه اوه وه ، او د اوو نه پس به چې كوم عدد راغلو هغه به جدا حساب شروع كيدو ، څنګه چې اوس د نهه هندسه او عدد ددې قائمقام دې چې تر نهو پورې اكائي ده ، دلس څخه دهائي شروع كيږي ، او دا يو جدا عدد وي. په دې بنا به عربو د دريونه تر اووؤ پورې د دوؤ شميرونو تر مينځه واؤ د عطف نه راؤړلو او د اوؤ نه پس به ئې كه يو عدد وئيلو نو واؤ عاطفه سره به يې جدا وئيلو او په دې وجه دې واؤ ته واؤثمان لقب وركولې شو .[مظهري وغيره](3).

**د اصحاب كهف نومونه** :: اصل خبره داده چې صحيح حديث پاك نه د اصحاب كهف نومونه صحيح صحيح ثابت نه دى ، په تفسير اوتاريخي روايتونو كښې ئې نومونه مختلف بيان كړې شوې دې ، په دې كښې زيات نزدې هغه روايت دې چې طبراني په معجم اوسط كښې په صحيح سند سره د عبدالله بن عباس ﷺ نه نقل كړې دې . په هغې كښې ئې نومونه څه داسې دى : ① مكسلمينا ② تمليخا ③ مرطونس ④ سنونس ⑤ سارينوتس ⑥ ذونواس ⑦ كعسطيونس (4)

---

(1) تفسير البحرالمحيط [ج:۷ ص: ۴۳۳]

(2) تفسير البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج:۷ ص: ۴۳۳]

(3) تفسير المظهري[ج:۶ص: ۲۴]

(4) المعجم الأوسط للطبراني (بأختلاف الأسماء) رقم الحديث:[۶۲۹۲] و تفسير الدالمنثور[ج:۶ ص:۳۵۲]

﴿فَلَا تُمَارِ فِيهِمْ إِلَّا مِرَاءً ظَاهِرًا ۖ وَلَا تَسْتَفْتِ فِيهِم مِّنْهُمْ أَحَدًا﴾ تاسو د اصحاب كهف د شمير وغيره باره كښې دوئ سره بحث مباحثه كښې ډيره خوارى مه كوئى ، بلكه سرسرى بحث كوئى او دې خلقو نه تاسو پخپله هم په دې باره كښې څه تپوس مه كوئى .

**په اختلافى معاملو كښې د اوږدو بحثونو ډډه كول پكار دى :** په دې دواړو جملو كښې نبى كريم ﷺ ته خودلى شوى څيزونه په حقيقت كښې د امت د عالمانو دپاره اهم رهنما اصول دى چې كله په يوه مسئله كښې اختلاف راپيدا شى نو په هغې كښې دضرورت مطابق واضحه خبره كول پكار دى كه بيا هم غلط مباحثو كښې څوك اخته كيږى نو ورسره سرسرى وينا كولو سره بحث ختمول پكار دى ، په ډير زور او خوارئى سره دې د خپلې خبرې ثابتولو اود مقابل د خبرې د رد كولو څخه ډډه كولې شى ولې چې ددې څه فائده نشته دې اوپه زيات بحث مباحثې كولو سره وخت هم ضائع كيږى ، او تاؤ تريخوالئ هم ورسره پيدا كيږى .

دويم هدايت په دويمه جمله كښې داوركړې شو چې د وحى الهى په ذريعه درته د اصحاب كهف د قيصې باره كښې څومره معلومات دركړې شوى دى هم په هغې صبر اوكړئى څكه چې هغه بالكل كافى دى ، د زياتى څيزونو په تحقيقاتو او دخلقو نه په تپوسونو كولو مه گرځئ . نورو نه د تپوسونو كولو يو بل مطلب دا هم كيدې شى چې د هغوئ جهالت ناپوهى او بې خبرى ښكاره كول او شرمول ئې دى . دا هم د پيغمبرانو ﷺ د خويونو نه خلاف دى. څكه دواړه قسمه تپوسونه كول بند كړې شو ، يعنى كه زياتى تحقيق كول ئې مراد وى هم. او كه دمخاطب ناپوهى او جهالت ثابتول او شرمول ئې مطلب وى هم.

وَلَا تَقُولَنَّ لِشَيْءٍ | إِنِّي | فَاعِلٌ | ذَٰلِكَ | غَدًا ۝ | إِلَّا | أَن يَشَاءَ اللَّهُ

او مه وايه ته هرگز دهيڅ څيز په حقله | چې بيشكه زه | كونكې يم | ددغه كار | صباله | مگر وايه | چې اوغواړى الله

اودهيڅ څيز په حقله دامه وايه چې زه به ئې صباله كوم سوا ددې نه چې الله ﷻ ئې غواړى

وَاذْكُر | رَّبَّكَ | إِذَا | نَسِيتَ | وَقُلْ | عَسَىٰ | أَن يَهْدِيَنِ | رَبِّي

اويادكړه | رب خپل | كله چې | هيرشى ستا | اووايه | اميد دې | چې اوښائى ماته | رب زما

اوخپل رب يادوه هركله چې خبره درنه هيره شى اووايه چې اميد دې چې زما رب ماته داسې لار اوښائى

لِأَقْرَبَ | مِنْ هَٰذَا | رَشَدًا ۝ | وَلَبِثُوا | فِي كَهْفِهِمْ

زياته نزدې [خبره] | ددې نه | صحيح والى ته | اووخت تير كړو هغوئ | په غار خپل كښې

چې ددې نه ډيره نزدې خبره راته سمه كړى اودغه خلق په خپل غار كښې نهه كاله دپاسه

ثَلَاثَ | مِائَةٍ | سِنِينَ | وَازْدَادُوا | تِسْعًا ۝ | قُلِ اللَّهُ | أَعْلَمُ | بِمَا

درې | سوه | كلونه | او زيات كړل دغه خلقو | نهه كاله | اووايه چې الله | ښه عالم دې | په هغه موده

درې سوه كاله [اوده] پاتې شول ته اووايه چې الله ﷻ ته ښه معلوم دى چې څومره موده

لَبِثُوا | لَهُ | غَيْبُ السَّمَاوَاتِ | وَالْأَرْضِ ۖ | أَبْصِرْ بِهِ

چې هغوئ تير كړو | هغه ته معلوم دى | پټ حالونه دآسمانونو | اودزمكې | څنگه ښه ليدونكې دې هغه

پاتې شوى وو هغه ته دآسمانونو اوزمكې تولې غيبى خبرې معلوم دى هغه هرڅه ليدونكې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَأَسْمِعْ | مَا لَهُم | مِّن دُونِهِ | مِن وَلِيٍّ | وَلَا يُشْرِكُ |
| او ښه اوريدونكي دي | نشته دوئ لره | ماسوا د هغه نه | څوك دوست | اونه شريكوى هغه |
| اوهرڅه اوريدونكي دي الله ﷻ نه سوا بل ملګري نشته او نه هغه په خپل حكم كښي | | | | |
| فِي حُكْمِهِ | أَحَدًا ۞ | | | |
| په حكومت خپل كښي | هيڅوك | | | |
| بل څوک شريكوى | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او (اې پيغمبره) د يو كار په باره كښې هم دا مه وايه چه زه به دا كار صبا له اوكړم. او (داسې وايه چه) كه الله پاک اوغواړي نو (او به ئې كړم). او كله چه درنه هير شي نو خپل رب ياد كړه، او او وايه: زما اميد دې چه زما رب به د يو داسې خبرې طرف ته زما رهنمائي اوفرمائي كومه چه به په هدايت كښې د دې نه هم زياته نژدې وي او هغوى (اصحاب كهف) په خپل غار كښې نهه دپاسه درې سوه كاله (اوده) پراته وو. (كه څوک په دې كښې بحث اوكړى نو) او وايه چه الله پاک ته معلومه ده چه هغوى څومره موده (اوده) پراته وو د آسمانونو او زمكو ټول رازونه هم د هغه په علم كښې دى هغه څه ښه ليدونكي دى، او څه ښه اوريدونكي دې! د الله پاک نه سوا د هغوى هيڅوک مددګار نشته، او هغه په خپل حكومت كښې څوک هم نه شريكوى.

## خلاصه تفسير

او كه خلق ستاسو نه دداسې خبرې تپوس وكړي چه دهغې جواب وركول غواړې او ته دجواب وركولو وعده كوې نو ددې سره انشاء الله تعالى يا ددې هم معنى څه لفظ خامخا يو ځائ كوه بلكه دوعدې هم تخصيص نشته په هركار كښې ددې لحاظ ساته چه ﴿وَلَا تَقُولَنَّ لِشَيْءٍ﴾ [ ته دڅه كار په نسبت داسې مه وايه چه ﴿إِنِّي فَاعِلٌ ذَٰلِكَ غَدًا﴾ زه به دې لره ] مثلا [ صباكوم ﴿إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ﴾ مګركه خدائ وغواړي ] ددې سره [يوځائ كوه ] يعنى انشاء الله تعالى وغيره هم ورسره وايه اوچه اننده داسې ونه شى لكه په دې واقعه كښې چه وشوه چه تا نه خلقو دروح او اصحاب كهف او ذوالقرنين متعلق تپوسو نه وكړل تابغير دانشاء الله تعالى وئيلو نه ددوى سره وعده وكړه چه صبا به جواب دركړم بيا ترپنځلسو ورځو پورې وحى نازله نه شوه او ته ډير غمژن شوې ددې هدايت سره ددغو خلقو دسوال جواب هم نازل شو لكه چه داسې په لباب كښې دى دابن عباس ﷺ نه[1] ﴿وَاذْكُر رَّبَّكَ إِذَا نَسِيتَ﴾ [اوهركله چه ستانه ] اتفاقا انشاء الله تعالى وئيل ] هيرشى ] او بيا د چرته ياد شى [ نو] دغه وخت انشاء الله تعالى ووايه ﴿وَقُلْ عَسَىٰ أَن يَهْدِيَنِ رَبِّي﴾ [ دخپل رب ذكر وكړه او] دې خلقو ته داهم [ووايه چه زما اميددې چه زما رب ماته ] دنبوت ددليل جوړيدو په اعتبار سره ﴿لِأَقْرَبَ مِنْ هَٰذَا رَشَدًا﴾ [ددې ] قصې [ نه هم زياته نژدې خبره وښائى] مطلب دادې چه تاسو زما دنبوت دامتحان اخستو دپاره د اصحاب كهف وغيره دقصې تپوس وكړو كوم چه الله تعالى د وحى په ذريعه ماته وښودله او ستاسو اطمنان ئې وكړو

---

[1] هكذا فى التفسير القرطبي [ ج:۱۰ص:۳۸۵]

مگر اصل خبره داده چه ددې قصو سوال جواب دنبوت داثبات دپاره څه لوئ دليل نه شي كيدې داكار خو څوك غيرنبي هم چه ددنيا دتاريخ نه خبروى هغه ئې هم كولې شي مگر ماته خو الله تعالى زما دنبوت دثابتيدو دپاره ددې نه هم لوئ قطعي دليلونه او معجزې راكړې دى چه په دې كښې دټولو نه زيات لويه معجزه په خپله قرآن دې چه ددۀ ديومثل راوړلو نه هم ټوله دنيا عاجزه شوه ددې نه علاوه دحضرت ادم ﷺ نه واخله ترقيامته پورې هغه واقعات دوحى په ذريعه ماته ښودلې شوى دى كوم چه دزمانې په اعتبار سره هم په نسبت دواقعې داصحاب كهف او ذوالقرنين نه زيات لرې دى او ددغو علم هم چاته بغير دوحى نه نه شي ممكن كيدې لنډه داده چه تاسو داصحاب كهف او ذوالقرنين واقعات دټولونه زيات عجيبه گنړئ او دادنبوت دامتحان دپاره تاسو په سوال كښې پيش كړو مگر الله تعالى ماته ددې نه هم زيات دعجيبه عجيبه څيزونو علمونه راكړې دې [او] لكه څنگه چه ددې خلقو داصحاب كهف په شمير كښې اختلاف دې دغه شان ددوى داوده كيدو په موده كښې هم ډير اختلاف دې مونږ په دې كښې صحيح خبره ښايو چه ﴿وَلَبِثُوا فِي كَهْفِهِمْ﴾ [دغه خلق په خپل غار كښې ] دخوب په حالت ﴿ثَلٰثَ مِائَةٍ سِنِينَ وَازْدَادُوا تِسْعًا﴾ [ درې سوه ۳۰۰ كاله پاتې شول اونهه كاله پرې دپاسه نور دى ] اوكه ددې صحيح خبرې د اورېدونه پس هم دغه خلق اختلاف كوى نو ﴿قُلِ اللّٰهُ أَعْلَمُ﴾ [ته ووايه چه خدائ تعالى ﴿بِمَا لَبِثُوا﴾ ددوى د] اوده [ پاتې كيدو مودې لره ] ستاسونه [ زيات پيژني ] په دې وجه چه هغه څه وښودل نو هغه صحيح دى او ددې واقعې څه تخصيص دې د هغه شان خو دادې چه ﴿لَهُ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ۖ أَبْصِرْ بِهِ وَأَسْمِعْ﴾ [ دټولو اسمانونو اومزكې دغيبو علم هغه ته دې څنگه ښه ليدونكې څنگه ښه اوريدونكې دې ﴿مَا لَهُمْ مِنْ دُونِهِ مِنْ وَلِيٍّ﴾ ددوى دخدائ تعالى نه سوا هيڅوك مددگار نشته ﴿وَلَا يُشْرِكُ فِي حُكْمِهِ أَحَدًا﴾ اونه الله تعالى چالره په خپل حكم كښې شريكوى ] لنډه داده چه نه ددۀ څوك مزاحم شته نه شريك دداسې عظيم ذات دمخالفت نه ډيره ويره پكارده

## معارف او مسائل

دې اوسنو څلورو آيتونو باندې د اصحاب كهف قيصه ختميږى ، ددې څينې ړومبو دوؤ آيتونو كښې د نبى كريم ﷺ او د نبى كريم ﷺ امت ته تعليم وركړې شوې دې چې په راتلونكې زمانه كښې كه د څۀ كار كولو وعده يا اقرار كول وى نو د ان شاء الله كلمه ورسره ضرور وائې . ولې چې راتلونكې حال هيچا ته نه دې معلوم چې ژوندې به هم پاتې كيږى اوكه نه ؟ كه ژوندې هم پاتې شي نو بيا به دغه كار كولې شي اوكه نه ؟ څكه خو مؤمن ته پكار دى چې په الله ﷻ باندې په زړه كښې تكيه لرى او په ژبه دې ئې هم ددې اقرار كوى چې په راتلونكې وخت كښې دڅۀ كار كولو دپاره دې داسې وائى چې كه الله ﷻ اوغوښتل نو دغه كار به اوكړې شم ، او هم دامعنى د انشاء الله ده .

دريم آيت مبارك كښې د هغه اختلافي بحث فيصله كړې شوې ده په كوم كښې چې د اصحاب كهف د زمانې خلقو هم مختلفې رائې لرلې او د موجوده زمانې د يهودو او نصاراؤ اقوال هم مختلف وو چې اصحاب كهف څومره موده په غار كښې اوده پاتې شوى وو ، په دې كښې اوخودلې شو چې دغه موده درې سوه نهه كاله وه ، گواياً دا دهغې اجمال بيان دې چې د قيصې

په شروع کښې داسې راغلې وو چې: ﴿فَضَرَبْنَا عَلَىٰ آذَانِهِمْ فِي الْكَهْفِ سِنِينَ عَدَدًا﴾ [1]
دې پسې په څلورم آيت مبارك کښې بيا دې سره اختلاف کوونکو ته خبردارې ورکړې دې چې دحال په حقيقت باندې تاسو خبر نه يئ، په دې باندې يوازې هغه ذات پوهيږي چې د آسمانونو او زمکې په ټولو څيزونو باندې پوهه، آوريدونکې او ليدونکې دی. هغه چې کومه موده درې سوه نهه کاله اوخودله په کار دی چې په هغې باندې ستاسو تسلي اوشي.

**راتلونکې زمانه کښې په کار کولو باندې انشاء الله وئيل:** په لباب کښې د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه د رومبو دوؤ آيتونو د شان نزول په باره کښې دا نقل شوی دی چې کله د مکې مکرمې خلقو د يهودو په خودنې باندې نبي کريم ﷺ نه داصحاب کهف وغيره باره کښې سوال اوکړو نو نبي کريم ﷺ ورسره دا وعده اوکړه چې صبا به ددې جواب درکوم. مګر انشاء الله وئيل ئې ورسره يو ځائې نه کړل. څوك چې الله ﷻ ته نزدې وی نو په معمولي کوتاهئ کولو باندې هغه ته خبردارې ورکوی. په دې بنا پنځلسو ورځو پورې وحی رانغله. نبي کريم ﷺ ډير خفه وو. د مکې مکرمې مشرکانوته د خنداګانو او ټوقو موقعه په ګوتو ورغله، پنځلس ورځې پس چې دسوالونو جوابونه نازل شو نو دې سره دا دوه آيتونه هم دا دې هدايت ورکولو دپاره نازل شو چې په آئنده کښې د څه کار کولو وعدې سره انشاء الله يو ځائې کوه چې مطلب ئې هر يو کار کول د الله ﷻ رضا ته سپارل دی او په دې دوارو آيتونو باندې د اصحاب کهف قيصه ختمه شوه.

**مسئله:** دې آيت مبارك نه خودا معلومه شوه چې په داسې صورت کښې انشاء الله وئيل مستحب دی، بله دا ترې معلومه شوه چې که په هيره دا کلمه وئيل پاتې شي نو په رايادېدو سمدستي اووائې، داحکم ددغې خاص معاملې دپاره دې دکومو باره کښې چې دا آيتونه مبارك نازل شوی دی، يعنی داکلمه وئيل خالص د تبرك او د بندګئ اقرار کولو د پاره مقصود دی. ددې مطلب څه تړون کول او شرط لګول نه دی، دې نه دا نه لازميږی چې د اخستلو خرڅولو په معاملو يا په لوظونو کولو کښې چې کوم شرطونه لګولې شي او په دغې شرطونو باندې لوظ کول اړه لري. که چرې په دې کښې هم دلوظ کولو په وخت څه شرط لګول چا نه هير شي نو چې کله ورته راياد شي بيا د خپلې خوښې شرط لګولې شي. په دې مسئله کښې دځينې فقهاء کرامو اختلاف هم شته دې چې تفصيل ئې د فقهې په کتابونو کښې موجود دې.

دريم آيت چې په غار کښې د اصحاب کهف او د اوده پاتې کيدو موده درې سوه نهه کاله اوخودل د قرآن کريم د روا نئ نه داسې معلوميږی چې دا موده الله ﷻ بيان کړې ده. ابن کثير رحمه الله دې لره د جمهورو مفسرينو وړاندينو او روستنو قول ګرځولې دې، [2] ابوحيان رحمه الله او قرطبي رحمه الله دې لره اختيار کړې دې، [3] مګر د قتاده رحمه الله وغيره نه ئې دويم قول داهم نقل کړې دې چې د درې سوه نهه کالو قول هم ددې اختلاف نکول د ځينې قول دې [4] او دا الله ﷻ قول هغه دې چې ورپسې داسې فرمائي: ﴿اللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا لَبِثُوا﴾ ددې وجه دا ښائی چې که د درې سوه نهه

---

[1] ترجمه:- پس نومونږ په دې غار کښې تر ګلونوګلونو پورې ددوئ په غوږونو د خوب پرده واچوله.
[2] تفسير ابن کثير [ج: ۵ ص:۱۵۰]
[3] تفسير القرطبي [ج:۱۰ص:۳۸۷]
[4] تفصيل دپاره اوګورئ:- تفسير البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۴۳۸]

کالو تاکلو قول دالله ﷻ کلام وي نو وروستي ﴿اللهُ أَعْلَمُ الخ﴾ فرمائيلو څه مطلب لرلو؟ مګر جمهورو مفسرينو اوفرمائيل چې دواړه کلمې د الله ﷻ د کلام دي. په ړومبئ کښې د واقعي حقيقت بيان شوې دې او په بله کښې اختلاف کوونکو ته خبرداري ورکړې شوې دې چې هر کله دالله ﷻ د طرفه موده بيان شوه نو اوس ئې منل ضروري شو هم هغه پيژوندکې دې، صرف په رائې او تخمينو سره دهغې نه مخالف کول بې عقلي ده.

دلته يو سوال دا پيدا کيږي چې قرآن عظيم الشان اول د اصحاب کهف د خوب موده درې سوه نهه کاله اوخودله بيا ئې نهه دبره درې سوه کاله اوخودله. ددې څه وجه کيدې شي؟ مفسرينو ددې جواب دا ليکلې دې چې ړومبئ موده صرف درې سوه کاله د يهودو نصاراؤ په شمسي حساب سره خودلې شوې ده اوبيا د اسلامي قمري په حساب څکه نهه دبره درې سوه کاله اوخودلې شوه چې په قمري حساب باندې هرو سلو کالو پسې درې کاله زياتيږي، نو ددې بيلتون ښکاره کولو دپاره ئې څکه دغسې اوفرمائيل.

بل سوال دلته دا پيدا کيږي چې د اصحاب کهف په باره کښې پخپله هم ددوئ په زمانه کښې د يهودو او نصاراؤ تر مينځه دوؤ خبرو کښې اختلاف وو، يوه خبره ددوئ د شمير وه او بله خبره په غار کښې د دوئ د اوده پاتې کيدو موده وه، قرآن عظيم الشان اګر چې د دواړو خبرو بيان اوکړو خو د شمير بيان ئې تاکلې او پريکړې اونه کړو بلکه د اشارې په طور يې اوکړو چې په دې باره کښې د صحيح قول ترديد ئې اونه کړو او په اشاره سره ئې د دوئ شمير اوخودلو او د مودې تاکل ئې ښکاره الفاظو سره داسې اوکړل:

﴿وَلَبِثُوا فِي كَهْفِهِمْ ثَلٰثَ مِائَةٍ سِنِيْنَ وَازْدَادُوا تِسْعًا﴾ وجه داده چې قرآن عظيم الشان پخپل دې طرز سره دې طرفته اشاره اوکړه چې د دوئ په شمير کښې بحث کول بالکل عبث دي څکه چې د ديني يا دنيوي هيڅ مسئله ورسره تړون نه لري البته تر ډيرې مودې پورې د انسان اوده پاتې کيدل چې بيا هم بغير د څۀ خوراک څکاک کولو نه روغ جوړ او قوي پاتې شوي وو نو دا يو قسم د حشر او نشر نظير او مثال شو چې پدې سره د قيامت او آخرت په راتلو دليل نيولې شي څکه ئې ددې بيان ښکاره اوکړو.

کوم خلق چې د معجزو او د خلاف عادت څيزونو منکر دي ياد يهودو نصاراؤ د رعب لاندې راتلو سره په هغې کښې د تاويلونو کولو عادت شوي دي هغوئ په دې آيت مبارک کښې هم د قتاده رحمه الله د تفسير په ډاډه باندې د درې سوره نهه که موده هم ددغې خلقو قول ګڼرلې او رد کول ئې غوښتلي دي خو په دې ئې غور نه دې کړې چې د قرآن عظيم الشان په ابتدائي جمله کښې ﴿سِنِيْنَ عَدَدًا﴾ سوا دالله ﷻ نه دبل چا قول نشي وئيلې کيدې، د کرامت او خلاف عادت کيدو دپاره ثبوت خو دومره هم کافي دي چې په کلونو کلونو د اوده پاتې کيدو نه پس هم بيا په راپورته کيدوسره ژوندي روغ جوړ او قوي وو، والله اعلم.

| وَاتْلُ | مَآ | اُوْحِيَ | اِلَيْكَ | مِنْ كِتٰبِ |
|---|---|---|---|---|
| اواوږوه | هغه | چې وحي شوی ده | تاته | دکتاب |

اوته اولوله کومه وحي چې درته دخپل رب دکتاب په ذريعه

رَبِّكَ ۚ لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِهٖ ۚ وَلَنْ تَجِدَ مِنْ دُوْنِهٖ

درب ستانه |نشته هیڅوك بدلونكي| حكمونودهغه لره| اوهرگزبه ته بیانه مومې| ماسوادهغه نه

راغلې ده دغه خبرولره هیڅوك بدلونكى پیداكیدې نشي اودهغه نه بغير به هېچرې ته

مُلْتَحَدًا ۝ وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ

خائې دپناه |اوصبركړه |نفس خپل |دهغه كسانوسره| چې رابلي هغوئ| رب خپل|

پناه بيا نه مومې[ائې پيغمبره] ته خپل ځان په هغه چا پورې ترلې ساته

بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ وَلَا تَعْدُ عَيْنٰكَ

په صبا كښې| اوپه بيگاه كښې |چې غواړي هغه |رضا دهغه |اومۀ اړوه ته |ستركې خپلې|

چې سحر ماښام خپل پروردگار يادوى او دهغه رضا مندى غواړي او خپلې ستركې دهغوئ نه

عَنْهُمْ ۚ تُرِيْدُ زِيْنَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَلَا تُطِعْ مَنْ اَغْفَلْنَا

دهغوئ نه| چې غواړې ته| ښائيست دژوند ددنيا| او اطاعت مۀ كوه| دهغه چاچې غافله كړې دې مونږه

مه اړوه چې ددنيا دژوند دښائست طلب گار شې اودهغه چا خبره مه منه چې دهغه زړه مونږ دخپل

قَلْبَهٗ عَنْ ذِكْرِنَا وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ وَكَانَ اَمْرُهٗ

زړۀ دهغه | دياد زمونږ نه او پيروى ئې كړې ده | خواهشاتو خپلو | او دې | كار دهغه |

ذكر نه غافله كړې دې اوهغه دخپل خواهش پيروى اوكړه اودهغه كار د حد نه تير

فُرُطًا ۝ وَقُلِ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكُمْ ۗ فَمَنْ شَآءَ

اوړيدل دحق نه |اوورته اووايه |چې داحق دې | دطرفه درب ستاسو نه | نو هغه څوك | چې غواړي

شوې دې اودا اووايه چې داقرآن پاك ستاسو درب دطرفنه برحق دې نو څوك چې غواړي

فَلْيُؤْمِنْ وَّمَنْ شَآءَ فَلْيَكْفُرْ ۚ اِنَّآ اَعْتَدْنَا

نو ايمان دې راوړي | او هغه څوك |چې غواړي| نوانكارداوكړي| بيشكه مونږه | تياركړې دي|

ايمان دې راوړي او څوك چې غواړي كفر دې اوكړي مونږ ظالمانوله داسې

لِلظّٰلِمِيْنَ نَارًا ۙ اَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا ۭ وَاِنْ يَّسْتَغِيْثُوْا

دپاره دظالمانو| وور |چې چاپيره شوى دى |دهغوئ نه |پردې دهغې وور|اوكه فريادا وكړي هغوئ|

اورتياركړې دې چې دهغې پردې به ترې نه دهرې غاړې چاپيره وى اوكه چرې هغوئ[دتندې به وجه]فرياد كوى

يُغَاثُوْا بِمَآءٍ كَالْمُهْلِ يَشْوِي

نو جواب دفرياد به وركړې شي | په داسې اوبو سره| چې وى به پشان دتيلو دويخ دخيرى| چې وريتوى به

نو دويلې شوې تانبې په شان ويشيدلې اوبه ورته ملاويږي چې مخونه به وريت كړي

| الْوُجُوْهَ ؕ | بِئْسَ الشَّرَابُ ؕ | وَسَآءَتْ | مُرْتَفَقًا ۝ | اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا |
|---|---|---|---|---|
| مخونه | ډیربدڅیزدي دڅکلو | او ډیر بددي | ځائي دآرام | بیشکه هغه کسان چې ایمان راوړي |

څومره خراب څښل به وي او څومره خراب ځائي به وي بیشکه چا چې ایمان راوړي دي

| وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ | اِنَّا | لَا نُضِيْعُ | اَجْرَ | مَنْ | اَحْسَنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| او عمل او کړي نیك | نو بیشکه مونږه | نه ضائع کوؤ | بدله | دهغه چا | چې ډیر نیك وي |

او نیك کارونه ئې کړي دي نو مونږ دهغه چا اجر هیڅکله نه ضائع کوؤ چې نیك

| عَمَلًا ۝ | اُولٰٓئِكَ | لَهُمْ | جَنّٰتُ | عَدْنٍ | تَجْرِيْ |
|---|---|---|---|---|---|
| په لحاظ دعمل سره | داکسان چې دي | دي ددوئ دپاره | جنتونه | دهمیشه سپرلي | چې بهیږي به |

کارونه کوي داهغه خلق دي چې دوئ له همیشه سمسورپاتې کیدونکې باغونه دي

| مِنْ تَحْتِهِمُ | الْاَنْهٰرُ | يُحَلَّوْنَ | فِيْهَا | مِنْ اَسَاوِرَ | مِنْ ذَهَبٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| لاندې دباغونو ددوئ نه | نهرونه | اچولي کیږي به دوئ ته | په هغې کښې | بنګړي | دسرو زرو |

چې لاندې به ترې ولې بهیږي دسروزرو بنګړي به ورته په لاسونو کښې اچولې شي

| وَيَلْبَسُوْنَ | ثِيَابًا خُضْرًا | مِّنْ سُنْدُسٍ | وَّاِسْتَبْرَقٍ | مُّتَّكِـِٔيْنَ |
|---|---|---|---|---|
| او اغوندي به \| جامې \| شنې | دباریکوریښمو | اودغټوریښمو | تکیه وهونکي به وي | |

اوشنې نرئ اوغټې ریښیمو جامې به اغوندي په تختونو به ئې

| فِيْهَا | عَلَى الْاَرَآئِكِ ؕ | نِعْمَ الثَّوَابُ ؕ | وَحَسُنَتْ | مُرْتَفَقًا ۝ |
|---|---|---|---|---|
| په هغې کښې | په تختونوباند | ډیره ښه بدله ده | اوډیرښه دي | ځائي دآرام |

تکیه لګولي وي څنګه ښه بدله ده او څنګه ښه ځائي دي

## آسان ترجمه قرآن

او (اې پیغمبره) په تا باندې چه ستا د رب د طرف نه کومه وحی رالیږلې شوې ده هغه خلقو ته واوروه. هیڅوک لشته چه دهغه خبرې بدلې کړي. او هغه لره پریخودلو سره تاته هرګز د پناه څه ځائې نه شي ملاویدې. او خپل ځان په استقامت سره د هغه خلقو سره ساته کوم چه سحر ماښام خپل رب په دې وجه رابلي چه هغوی د هغه د رضا طلب ګار دی. او ستا سترګې دې د دنیا د ژوند په تلاش کښې د داسې خلقو نه والوړي او ډیو داسې سړی خبره مه منه چه د هغه زړه مونږ د خپل یاد نه غافل کړې دې، او کوم چه په خپلو خواهشاتو پسې لګیدلې دې او دچا معامله چه د حد نه تیره شوې ده. او اووایه چه : حق خو ستاسو د رب د طرف نه راغلې دې. اوس که څوک غواړی نو ایمان دې راوړی، اوڅوک چه غواړی کفر دې اختیار کړی مونږ بیشکه (داسې) ظالمانو دپاره اور تیار کړې دې چه د هغې دیوالونه به هغوی راګیر کړی، او که هغوی فریاد اوکړی نو د هغوی د فریاد جواب به په داسې اوبو سره اوکړې شي چه د تیلو د خدړی په شان به وی (او) مخونه به وراته کړی. څومره بدترینې اوبه دی، او څومره بدترین آرام ګاه

دا بیشکه چه کومو خلقو ایمان راوړې دې، اوهغوی نیک عملونه اوکړل، نو یقیناً مونږ د نیکانو خلقو اجرونه ضائع کوو دا هغه خلق دی چه د هغوی دپاره د همیشه اوسیدلو باغونه دی، د هغې لاندې به نهرونه بهیږی. هغوی به هلته د سرو زرو په کړو ځائسته کړې شي. هغوی به په اوچتو تختونو باندې تکیه لګولو سره د ګرو او پیرو ریښمو جامې اغوستلې وی. څومره بهترین اجر، او څه ښکلې آرام ګاه دا.

**خلاصه تفسير**

[او] ستا کارصرف دومره قدرې دې چه ﴿وَاتْلُ مَآ اُوْحِيَ اِلَيْكَ مِنْ كِتٰبِ رَبِّكَ﴾ [تاته چه کوم ستاد رب کتاب دوحی په ذریعه راغی دغه] خلقو ته [اوروه] ددې نه زیات په دې فکر کښې مه پریوځه چه ددنیا لوې خلق که داسلام مخالفت کوی نو دین به ترقی څنګه وکړی ځکه چه ددې الله تعالی په خپله وعده فرمائیلې ده ﴿لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِهٖ﴾ او[دده خبرولره] یعنی وعدو لره [ څوك نه شی بدلولې ] یعنی ټوله مخالفه دنیا که یوهم شی الله تعالی دوعدې پوره کولونه نه شی منع کولې او الله تعالی په خپله اګر چه تبدیلئ باندې قدرت لری مګر هغه به ئې بدله نه کړی [او] که تا ددې لویو خلقو زړه ساتنه داسې شان سره وکړه چه په دې سره دالله تعالی حکمونه پاتې شی نو بیا ﴿وَلَنْ تَجِدَ مِنْ دُوْنِهٖ مُلْتَحَدًا﴾ [ته به دخدائ نه سوا هیڅ پناه بیا نه مومې ] اګر چه د الله تعالی دحکمونو پریښودل دنبی کریم ﷺ نه په شرعی دلیلونو سره محال دی دلته دمبالغې او تاکید دپاره په فرض محال دا ونیلې شوی دی [او] لکه څنګه چه دکفارو درئیسانو او امیرانو نه تاته دځان بې پرواه کولو حکم درکړې شوي دې دغه شان دفقیرانو مسلمانانو په حال تاته دزیاتې توجه حکم دې پس ﴿وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِيْنَ﴾ [ته ځان دهغو سره ] په کښیناستو کښې [ بند ساته کوم چه﴿يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ﴾ سحر مابنام ]یعنی همیشه [دخپل رب عبادت محض دهغه د رضا حاصلولو دپاره کوی ] څه ددنیا غرض ئې په کښې نه وی ﴿وَلَا تَعْدُ عَيْنٰكَ عَنْهُمْ ۚ تُرِيْدُ زِيْنَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾ [ او ددنیا دژوند ښائست په خیال سره ته سترګې ] یعنی توجهات [ ددوی نه وانهړوې ] ددنیا دښائست نه مراد دادې چه رئیسان خلق مسلمانان شی نو داسلام رونق به زیات شی په دې ایت کښې ئې دا وښودله چه داسلام رونق په مال متاع سره نه دې بلکه په اخلاص او اطاعت سره دې دغه که په غریبانو اوفقیرانو خلقو کښې وی نو هم داسلام رونق زیاتیږی ﴿وَلَا تُطِعْ مَنْ﴾ [ او د داسې سړی خبره ] غریبانو لره دمجلس نه دلرې کولو متعلق [ ونه منې ﴿اَغْفَلْنَا قَلْبَهٗ عَنْ ذِكْرِنَا﴾ دکوم زړه لره چه مونږ دده د عناد په سزا کښې دخپل یا د نه غافله پریښودی دی ﴿وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ وَكَانَ اَمْرُهٗ فُرُطًا﴾ او هغه د خپل نفس په خواهش باندې چلیږی او دده داحال ] یعنی دخواهش تابعداری [ دحد نه زیاته شوې ده ﴿وَقُلِ﴾ او ته ] دکفارو دې رئیسانو ته صفا [ ووایه چه ] دادین ﴿الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكُمْ﴾ [حق ستاسو درب د طرف نه ] راغلې[دې ﴿فَمَنْ شَآءَ فَلْيُؤْمِنْ﴾ پس دچا زړه چه غواړی ایمان د راوړی ﴿وَّمَنْ شَآءَ فَلْيَكْفُرْ﴾ او دچا زړه چه غواړی کافر د پاتې شی ] زمونږ هیڅ نفع نقصان نشته په خپله د ده دې چه بیان ئې دادې چه ﴿اِنَّآ اَعْتَدْنَا لِلظّٰلِمِيْنَ نَارًا ۙ اَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا﴾ [بیشکه مونږ دداسې ظالمانو دپاره ] ددوزخ [ اور تیار کړې دې چه ددغه اور لمبویه دوی راګیر کړی وی ] چه دغه د اور لمبې به ددوی نه تاؤ وی لکه چه په حدیث کښې دی چه داخلق به ددغه ګیرې نه نه شی وتلې ﴿وَاِنْ يَّسْتَغِيْثُوْا﴾ [او که چرې ] دتندې نه فریاد وکړی ﴿يُغَاثُوْا بِمَآءٍ﴾ [نو په داسې اوبو سره به ددوی

فریاد رسی کولې شی کوم چه ] په بدصورتۍ کښې ﴿كَالْمُهْلِ﴾ [ به دتیلو دبیخ دخیرې په شان وی ] او دومره تیزې ګرمې به وی [چه ] خلې ته وروړو سره به ﴿يَشْوِي الْوُجُوهَ﴾ [ ددوی مخونه وریته کباب کړی ] تردې چه دمخونونه به یې غرمن وغی ارتاوه به شی او لرې به شی ترې لکه چه په حدیث کښې دی ﴿بِئْسَ الشَّرَابُ ۖ وَسَاءَتْ مُرْتَفَقًا﴾ [ څه ناکاره اوبه به وی اودغه دوزخ به څنګه ناکاره ځای وی ] داخو دایمان نه راوړ ضرر شو او دایمان راوړو فائده داده چه ﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ إِنَّا لَا نُضِيعُ أَجْرَ مَنْ أَحْسَنَ عَمَلًا﴾ [بیشکه کوم خلق چه ایمان راوړی او هغوئ نیک کار وکړی نو مونږ دداسې خلقو اجر نه ضائع کوو کوم چه نیک کار وکړی ﴿أُولَٰئِكَ لَهُمْ جَنَّاتُ عَدْنٍ﴾ دداسې خلقو دپاره دهمیشه اوسیدو باغونه دی ﴿تَجْرِي مِنْ تَحْتِهِمُ الْأَنْهَارُ﴾ ددوی داوسیدو دخایونو لاندې به ] نهرونه بهیږئ ﴿يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ﴾ دوی ته به هلته دسرو زرو کنګنړو [باؤګان] اچولې شي ﴿وَيَلْبَسُونَ ثِيَابًا خُضْرًا مِنْ سُنْدُسٍ﴾ [ وَإِسْتَبْرَقٍ ﴾ اوشین رنګې کپړې دباریکو اوغټو ریښمو به اغوندی ] او ﴿مُتَّكِئِينَ فِيهَا عَلَى الْأَرَائِكِ﴾ [ هلته به په تختونو تکیه لګولی ناست وی ﴿نِعْمَ الثَّوَابُ﴾ څه ښه بدله ده ﴿وَحَسُنَتْ مُرْتَفَقًا﴾ او] جنت [ څه ښه ځای دې ] یاالله زمونږ یې نصیب کړې امین.

## معارف او مسائل

**د دعوت تبلیغ خاص آداب ::** ﴿وَاصْبِرْ نَفْسَكَ﴾ ددې آیت مُبارك په شان نزول کښې څو واقعات بیان شوی دی کیدې شی چې دغه ټول واقعات هم دې ارشاد سبب جوړ شوې وی ، بغوی ﷫ نقل کړی دی چې عنیبه بن حسن فزاری د مکې رئیس د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، نبی کریم ﷺ سره سلمان فارسی ؓ ناست ووچې په فقیرانو صحابه کرامو ؓ کښې حسابیدو. د هغوئ جامې او شکل وصورت د فقیران وو. نور هم څه فقیرانو او غریبان په دغه مجلس کښې ناست وو. عینیه اووئیل چې دا خلق تاسو سره وی نو مونږ ستاسو ﷺ خواته نشو راتلې چې زمونږ کیناستل داسې خوارو خلقو سره نشی کیدې ، تاسو ﷺ خو یا داسې خلق د خپل مجلس نه لرې کړئی یا کم از کم د دوئ بیله ډله او زمونږ جدا ډله جوړه کړئی .([1])

ابن مردویه ابن عباس ؓ څخه روایت کوی چې امیه بن خلف جمحی نبی کریم ﷺ ته دا مشوره ورکړه چې خوران ، غریبانان مسکینان مسلمانان د دخپلې خوا نه لرې کړه او دوئ څانته مه پریږدئی . دمکې اود قریشو سردارانو سره ناسته کوئی که دا خلق ستاسو دین قبول کړی نو دین به مخ په ترقئ شی .

په داشان واقعاتو باندې دالله ﷻ دا ارشاد اوشو چې په کښې د دوئ دمشورې قبلولو څخه په سختئ سره منع کړې شوې ده . صرف داسې نه چې دوئ ؓ د خپل مجلس نه مه لرې کوئی بلکه دا حکم ورکړې شو چې ﴿وَاصْبِرْ نَفْسَكَ﴾ تاسو خپل ځان هم دوئ سره اوتړئی . ددې دا مطلب نه دې چې هیڅ وخت ترې مه جدا کیږئی بلکه مراد دادې چې تعلقات او توجهات ټول هم دوئ ؓ ته لرې په معاملاتو کښې هم دوئ سره مشوره کوئی ، هم د دوئ ؓ په مدد او ملګرتیا سره کارکوئی او ددې وجه او حکمت ئې په دې الفاظو سره اوخودلو چې دا خلق صبا

[1]) تفسیر البغوی [ج:۵ ص:۱٦٦]

، بیګاه یعنی هر وخت الله ﷻ یادوی او هم دهغه ذکر کوی. دهغه چې کوم عمل دې ، هغه خالص دالله ﷻ د رضا په خاطر دې او دا ټول حالات هغه دی چې دالله ﷻ نصرت او ځان ته راکاږی او دالله ﷻ مدد هم دداسې خلقو دپاره راځی. د څو ورځو بې آسرې نه مه ویرېږئ ، په آخر انجام کښې بۀ فتح او کامیابی د دوئ ﷺ وی. دغه شان دسردارانو د قریشو د مشورې نه قبلولو وجه ئې هم په آخر د آیتونو کښې دا اوخودله چې د دوئ زړونه دالله ﷻ د یاد څخه غافله دی ، د دئ ټول کارونه د دوئ د نفسانی خواهشاتو تابع دی ، او دا حالات د الله ﷻ د رحمت نه لرې کونکی دی.

دلته دا سوال پیدا کیږی چې ددې کافرانو په دې مشوره قبلولو کښې خو څه ممانعت او قباحت نه ښکاریدو چې د مسلمانانو اوکافرانو مجلسونه جدا جدا کړې شوې وې چې په دې شان به ورته د ا سلام بلنه هم په ښه شان وررسیده چې دهغې په قبلولو کښې به دغې سردارانوته آسانی هم وه خو هر کله چې په دې شان سره سرکش مالدارو ته یو خاص عزت ورکول وو چې ورسره به د غریبانانوزړونه یا حوصله ماتیدله ځکه الله ﷻ دا نه غوښتل او ددعوت او تبلیغ اصول یې هم دغه کیخودل چې په دې کښې دې هیڅ قسم جدائی یا فرق نه وی ، والله اعلم.

**د جنتیانو کالی**:: ﴿يُحَلَّوْنَ فِيْهَا﴾ په دې آیت مبارك کښې دابیان دې چې جنتیانو سړو ته به هم د سرو زرو بنګړی اچولې شی ، د لته دا سوال پیدا کیږی چې کالی اغوستل خو سړو سره نه ښائی او نه ددوئ ښائست په دې راتلې شی بلکه بنګړی ورپه لاس کول بۀ ورسره بد ښکاری.

جواب دادې چې ښائست جوړول په عرف پسې ځی په یو ملك کښې یا علاقه کښې چې څه څیز زینت او جمال ګڼړلې شی په نورو ملکونو او علاقو کښې اکثر هغې نه نفرت کیږی ، او ددې خلاف صورت هم جوړیدې شی.. دغه شان په یو ه زمانه کښې د یو څیز زینت او ښائست وی او په بله زمانه کښې هغه عیب شی. په جنت کښې بۀ سړو دپاره هم کالی [زیورات] او د ریښمو جامې زینت او ښکلا اوګرځولې شی نو څوك به ئې بد نه ګڼړی ، دا صرف ددنیا قانون دې چې دلته چا نارینه دپاره دسرو زرو څه کالې ، ترې دې پورې چې ګوتمه او د ګړئی چین او زنځیر هم استعمالولو ناروا دی ، دغه شان په دنیا کښې د ریښمو جامې هم نارینو دپاره روا نه دی ، د جنت به دا قانون نه وی ، هغه ددې ټول جهان نه یو بیل قسم جهان دې، ځکه په دنیا باندې آخرت په هیڅ څیز کښې به هیڅ شان سره قیاس کولې شی.

| وَاضْرِبْ | لَهُمْ | مَّثَلًا | رَّجُلَيْنِ | جَعَلْنَا | لِاَحَدِهِمَا | جَنَّتَيْنِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوبیان کړه | دوئ ته | یومثال | ددوو سړو | چې ورکړل مونږه | یو ددې دواړوته | دوه باغونه |

او [اثې پیغمبره] ته دوئ ته دهغه دوه کسانو حال واوره چې مونږ په کښې یو تن له د انګورو دوه

| مِنْ اَعْنَابٍ | وَّحَفَفْنٰهُمَا | بِنَخْلٍ | وَّجَعَلْنَا | بَيْنَهُمَا |
|---|---|---|---|---|
| دانګورونه | اوچاپیره شپول اولګوؤ مونږه ددواړونه | دکجورو | اوپیدا کړو مونږه | په منځ ددواړو کښې |

باغونه ورکړی وو اوهغه مو دکهجورو په ونو کښې راګیر کړی وو او دهغه باغونو ترمینځه مو

زَرۡعًا ۝ كِلۡتَا الۡجَنَّتَيۡنِ اٰتَتۡ اُكُلَهَا وَلَمۡ تَظۡلِمۡ مِّنۡهُ شَيۡـًٔا

فصل | دواړو باغونو | ورکړي | میوي خپلي | او کم ئې نه کړو | د بارنیولو نه | هیڅ څیز |

شنه زرغونه پټي جوړ کړي وو دواړو باغونو به خپلي پوره پوره میوي ورکولي او دواړو نه به هیڅ قسم له کمي نه راتلو

وَّفَجَّرۡنَا خِلٰلَهُمَا نَهَرًا ۝ وَّكَانَ لَهٗ ثَمَرٌ

او جاري کړو مونږه | په منځ د دواړو باغونو کښې | یو نهر | او وه | هغه لره | ډیره میوه |

او مونږ د دغې دواړو باغونو ترمینځه دا یو یو لښتي بهیولي وو او ددې سړي نوره هم میوه وغیره وه

فَقَالَ لِصَاحِبِهٖ وَهُوَ يُحَاوِرُهٗٓ اَنَا اَكۡثَرُ مِنۡكَ

نو اوونیل هغه | ملګري خپل ته | او هغه | خبري کولي د هغه سره | زه | زیات یم | ستانه

نو هغه خپل ملګری ته په خبرو خبرو کښې اوونیل چې زه ستانه په مال کښې هم

مَالًا وَّاَعَزُّ نَفَرًا ۝ وَدَخَلَ جَنَّتَهٗ وَهُوَ ظَالِمٌ

په لحاظ د مال سره | او ډیر طاقتور یم | په لحاظ د سړو سره | او ننوتو | باغ خپل ته | او هغه | ظالم وو

زیات یم او په متو کښې هم د ربانديٍ غالب یم او هغه خپل باغ ته ورننوتو او هغه په خپل

لِّنَفۡسِهٖ قَالَ مَآ اَظُنُّ اَنۡ تَبِيۡدَ هٰذِهٖٓ اَبَدًا ۝

د پاره د ځان خپل | اوونیل هغه | نه کوم ګمان زه | چې هلاك به شي | دا باغ هیڅکله

ځان زیاتي کولو وې وئیل چې زه خیال نه کوم چې دا باغ به برباد شي

وَّمَآ اَظُنُّ السَّاعَةَ قَآئِمَةً وَّلَئِنۡ رُّدِدۡتُّ اِلٰى رَبِّيۡ

او نه کوم ګمان زه | په قیامت | د قائیمیدلو | او که چرې واپس کړې شوم زه | رب خپل ته |

او نه زما دا خیال دې چې قیامت به راشي او که زه خپل رب ته واپس کړې شوم

لَاَجِدَنَّ خَيۡرًا مِّنۡهَا مُنۡقَلَبًا ۝ قَالَ لَهٗ صَاحِبُهٗ

نو زه به بیا پیدا کم | بهتر | د دغې نه | ځائې د روتلو | اوونیل | هغه ته | ملګري د هغه

نو ددې باغ نه به هم بهتر ځائې بیاموم په دې باندې هغه ملګري ورته اوونیل چې کوم

وَهُوَ يُحَاوِرُهٗٓ اَكَفَرۡتَ بِالَّذِيۡ خَلَقَكَ مِنۡ تُرَابٍ

او هغه | خبري کولي د هغه سره | آیا تا کفر او کړو | د هغه ذات سره | چې پیدا ئې کړې ته | د خاورې نه

ورسره خبرې کولې چې آیا ته د هغه ذات نه انکار کوې چې کوم ته د خاورې نه پیدا کړې؟

ثُمَّ مِنۡ نُّطۡفَةٍ ثُمَّ سَوّٰىكَ رَجُلًا ۝ لٰكِنَّا۟ هُوَ اللّٰهُ رَبِّيۡ

بیا د نطفې نه | بیا ئې برابر کړې ته | سړې | لیکن | هم دغه الله | رب زما دې |

بیائې د څاڅکې اوبو نه روغ کړې او بیا ئې سم د م سړې جوړ کړې لیکن زه خو دا وایم چې هم الله ﷻ زما رب دې

وَلَآ اُشۡرِكُ بِرَبِّيۡٓ اَحَدًا ۝ وَلَوۡلَآ اِذۡ دَخَلۡتَ جَنَّتَكَ

او نه شریکوم زه | د رب خپل سره | هیڅوك | او ولې نه | کله چې | ننوتې ته | باغ خپل ته

او زه خپل رب سره څوک نه شریکوم او هر کله چې ته خپل باغ ته ورننوتې

قُلْتَ مَا شَآءَ اللّٰهُ ۙ لَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ ۚ اِنْ تَرَنِ

ونیل تا | هغه کیږي چې اوغواړي الله | نشته دې قوت | مګر | په توفیق دالله | که وینې ته مالره |

نوتا داسې ولې اونه وئیل چې الله ﷻ څه غواړي نو هغه کیږي دالله ﷻ دمدد نه بغیر هیڅ طاقت نشته که چرې ته

اَنَا اَقَلَّ مِنْكَ مَالًا وَّوَلَدًا ﴿۳۹﴾ فَعَسٰى رَبِّىٓ اَنْ يُّؤْتِيَنِ

چې زۀ لږ یم | ستانه | په لحاظ دمال او اولاد سره | نو امید دې | چې رب زما | راکړي ماته |

ماپه مال او اولاد کښې خپل خان نه کم ګورې نو نزدې ده چې زما رب ماته ددې نه

خَيْرًا مِّنْ جَنَّتِكَ وَيُرْسِلَ عَلَيْهَا حُسْبَانًا مِّنَ السَّمَآءِ فَتُصْبِحَ

بهتره | دباغ ستانه | او رالولیږي | په دغه باندې | آفت | دآسمان نه | او شي باغ ستا

ښه باغ راکړي او په دې باغ باندې دبره نه یوغیبي آفت رالولي اودا باغ اوار

صَعِيْدًا زَلَقًا ﴿۴۰﴾ اَوْ يُصْبِحَ مَآؤُهَا غَوْرًا فَلَنْ تَسْتَطِيْعَ

میدان | خوئینده | یا | شي | اوبه دهغې | وچې | نو هرګزته بیاطاقت نه شې لرلې

خوئینده میدان پاتې شي یاددې باغ اوبه په کوزه لاړې شي اوبیا ئې ته دراخیژولو

لَهٗ طَلَبًا ﴿۴۱﴾ وَاُحِيْطَ بِثَمَرِهٖ فَاَصْبَحَ

دغه اوبولره | په طلب کولو سره | اوچاپیره کړې شوعذاب | په میوؤ دهغه سره | نوشوهغه

هیڅ کوشش اونه کړې شې نو دهغه میوؤ نه عذاب راچاپیره شو نوهغه په هغه سرمایه

يُقَلِّبُ كَفَّيْهِ عَلٰى مَآ اَنْفَقَ فِيْهَا

چې مروړل ئې | دواړه لاسونه خپل | په هغه مال باند | چې خرچ کړې ئې وؤ | په هغه باغ کښې

لاسونه اومروړل کومه چې هغه په هغې کښې لګولې وه اودهغه باغ ټول

وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوْشِهَا وَيَقُوْلُ يٰلَيْتَنِيْ

اوهغه باغ | پاستر پریوتې وؤ | په سپرونوخپلو یاند | اووئیل ئې | اے افسوس دې مالره |

څپرونه راپریوتی وو اودا به ئې وئیل چې اِئې کاش ما دخپل رب سره

لَمْ اُشْرِكْ بِرَبِّىٓ اَحَدًا ﴿۴۲﴾ وَلَمْ تَكُنْ لَّهٗ فِئَةٌ

چې مانه وې شریک کړې | درب خپل سره | هیڅوک | اونه شوه | دۀ لره | یوه ډله |

هیڅوک شریک کړې نه وې اوهیڅ یو داسې ټولې ورسره ملګرې نه شو چې

يَّنْصُرُوْنَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَمَا كَانَ مُنْتَصِرًا ﴿۴۳﴾ؕ

چې امدادئې کړې وې دهغه سره | ماسوادالله نه | اونه وؤ هغه | مددګاردخان خپل |

دالله ﷻ په مقابله کښې دهغه مدد کړې وې اونه ئې زمونږ نه بدله اخستې شوه

هُنَالِكَ الْوَلَايَةُ لِلّٰهِ الْحَقِّ ؕ هُوَ خَيْرٌ

په دې وخت کښې | دکارونوسمولواختیار | الله لره دې | چې حق دې | هغه بهتر دې |

په داسې وخت کښې کارونه سمول دبرحق الله ﷻ کار دې هم هغه بهتر ثواب

| ثَوَابًا | وَّخَيْرٌ | عُقْبًا ۝ |
|---|---|---|
| په لحاظ دثواب سره | او بهتر دي | په لحاظ دورکولو دښه انجام سره |
| ورکوونکې اوغوره بدله ورکوونکې دي | | |

## آسان ترجمه قرآن

او (اې پيغمبره!) د دې خلقو مخکښې د هغه دوو کسانو مثال پيش کړه چه په هغوی کښې يو ته مونږ د انګورو دوه باغونه ورکړي وو، او هغه مو د کهجورو په اونو باندې ګير کړې وو، او د هغه دوه باغونو ترمينځه مو فصل پيدا کړې وو دواړو باغونو به پوره پوره ميوه ورکوله، او هيڅ باغ به په ميوه ورکولو کښې څه کمې نه پريخودلو، او د دې دواړو ترمينځه مونږ يو نهر جاری کړې وو. او هغه سړي ته ښه ډير دولت حاصل شو نو هغه خپل ملګری ته په خبرو کولو کښې اووئيل چه: زما مال هم ستا نه زيات دې، او زما نفری هم ستا نه مضبوطه ده. او هغه په خپل ځان باندې ظلم کولکې باغ ته داخل شو او وې وئيل: زما دا خيال نشته چه دا باغ به چرته تباه شی. او زما دا خيال دې چه قيامت به کله هم رانشی. او که زه چرته خپل رب ته واپس هم اوليږلې شوم، نوبيا هم زما يقين دې چه ما ته به ددې نه ښه ځائې ملاويږی. د هغهٔ ملګری هغه ته په خبرو کولو کښې اووئيل: آيا ته د هغه ذات سره د کفر معامله کوې چا چه ته د خاورې نه، بيا د نطفې نه پيدا کړې، بيا ئې ستا نه يو برابر سړې جوړ کړو؟ هرچه زما تعلق دې، زه خو دا عقيده لرم چه الله پاک زما رب دې، او زه د الله پاک سره څوک هم نه شريکوم او کله چه ته خپل باغ ته داخليدلې، هغه وخت تا دا ولې او نه وئيل چه ماشاء الله لا قوة الا بالله! (څه چه الله پاک غواړي هم هغه کيږی د الله پاک د توفيق نه بغير په چا کښې هم طاقت نشته) که تا ته دا په نظر راځی چه زما دولت اومال ستا نه کم دې نو زما د رب نه هيڅ لرې نه ده چه هغه ما ته ستا د باغ نه غوره څيز راکړی، او ستا په دې باغ باندې څه آسمانې آفت راوليږی چه په هغې سره هغه په يو صفا ميدان کښې بدل شی. يا د هغې اوبه ښکته لاړې شی، بيا به ئې ته لټولې هم نه شې. او (بيا داسې اوشوه چه) د هغه ټول دولت په عذاب کښې راګير شو، او چه صبا شو نو په داسې حالت کښې چه د هغه په باغ باندې چه هغه څه خرچ کړې وو په هغې باندې ئې لاسونه مږوړل، اوهغه باغ په څهرونو باندې نسکور پروت وو او هغه وئيل: کاش! چه ما د خپل رب سره هيڅوک نه وې شريک کړې. او هغه ته يو داسې ډله هم ملاؤ نه شوه چه الله پاک نه سوائې د هغه امداد کړې وې، او نه خپله هغه د دې قابل وو چه خپله دفاع اوکړې شی. په داسې موقع باندې (انسان ته پته لګی چه) د مدد ټول اختيار رشيتنی الله پاک ته حاصل دې. هم هغه دې چه غوره ثواب ورکوی او غوره انجام ښائی.

## خلاصه تفسير

[اوته] ددنيا بې ثباتی او د اخرت پائيداری ښکاره کولو دپاره ﴿وَاضْرِبْ لَهُمْ مَّثَلًا رَّجُلَيْنِ﴾ [ددوه سړو حال] دکومو چه يوبل سره دوستی يا خپلولی وه [بيان کړه] چه دکفارو خيال باطل شی او دمسلمانانو تسلی وشی ﴿جَعَلْنَا لِأَحَدِهِمَا﴾ [په دې دوو سړو کښې يو لره] کوم چه بې دينه وو ﴿جَنَّتَيْنِ مِنْ أَعْنَابٍ﴾ [ مونږ دوه باغونه دانګورو ورکړي وو ] ﴿وَّحَفَفْنٰهُمَا بِنَخْلٍ﴾ او ددواړو ]

باغونو [نه دکجورو شپول تاو وو ﴿وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمَا زَرْعًا﴾ او ددې دواړو ] باغونه [ په مينځ کښې فصل هم شوي وو ] او ﴿كِلْتَا الْجَنَّتَيْنِ آتَتْ أُكُلَهَا وَلَمْ تَظْلِم مِّنْهُ شَيْئًا﴾ [دې دواړو باغونو به خپله ميوه پوره ورکوله او ديوپه ميوه کښې به ذرة هم کمی نه راتلله ] په خلاف دعامو باغونو چه کله په يوه اونه کښې اوکله په ټول باغ کښې ميوه کمه شي ﴿وَفَجَّرْنَا خِلَالَهُمَا نَهَرًا ۝ وَكَانَ لَهُ ثَمَرٌ﴾ [ او ددې دواړو ] باغونو[ په مينځ کښې نهر بهيدو او دې سړي سره نورهم د مالدارئ سامان وو ﴿فَقَالَ لِصَاحِبِهِ وَهُوَ يُحَاوِرُهُ أَنَا أَكْثَرُ مِنكَ مَالًا وَأَعَزُّ نَفَرًا﴾ پس ] يوه ورځ [ د خپل دې ] دويم ملګری سره اخوا ديخوا [خبرې کولې وئ وئيل چه زة تانه په مال کښې هم زيات يم اوجمع هم زما زبردسته ده ] مطلب ئې دا وو چه ته زما طريقې ته باطله او دالله تعالی په نزد ناخوښه وائې نو اوس ته وګوره چه څوك ښه دې که ستا دعوی صحيح وې نو معامله به برعکس وه څکه چه ددښمن پالنه څوك نه کوی او دوست ته څوك نقصان نه رسوی ﴿وَدَخَلَ جَنَّتَهُ وَهُوَ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ﴾ [ او هغه ] خپل دا ملګرې دځان سره کړو [ په خپل ځان دجرم ] کفر [ثابتوونکې خپل باغ ته ورسيدل ] او﴿قَالَ مَا أَظُنُّ﴾ [وې وئيل چه زما خو خيال نه دې چه دا باغ ] زما په ژوند کښې ﴿أَن تَبِيدَ هَٰذِهِ أَبَدًا﴾ [چرته هم برباد شی ] ددې نه معلومه شوه چه دغه دخدائ دوجود او په هر شی ددة دقدرت قائل نه وو بس دحفاظت ظاهری سامان ئې وليدو او داخبرې ې وکړې ﴿وَمَا أَظُنُّ السَّاعَةَ قَائِمَةً﴾ [او] دغه شان [زة خيال نه کوم چه قيامت به راشی اوکه چرې]به فرض محال قيامت را هم شی او﴿وَلَئِن رُّدِدتُّ إِلَىٰ رَبِّي لَأَجِدَنَّ﴾ [زة خپل رب ته ورسولې شم ] لکه چه ستا عقيده ده ﴿خَيْرًا مِّنْهَا مُنقَلَبًا﴾ [ نو خامخا ددې باغ نه به هم ډير زيات ښه ځائ ماته ملاؤ شی ] څکه چه دجنت دځايونو ددنيا نه دښه والی خو ته هم اقرار کوې اوداهم ته منې چه جنت به دخدائ تعالی مقبولو بندګانو ته ملاويږی او زما دمقبوليت نښې نښانې خو په دنيا کښې ليدې شی که زة دالله تعالی په نزد مقبول نه وی نو داباغونه به ولې راته ملاويدل په دې وجه ستا داقرار او تسليم مطابق به ماته هلته ددې نه هم ښه باغونه ملاويږی دده داخبرې چه واوريدې نو دة ته ﴿ ﴿قَالَ لَهُ صَاحِبُهُ وَهُوَ يُحَاوِرُهُ﴾ ددة دې ملاقاتی ] کوم چه غريب او ديندراه سړې وو [ په جواب کښې ووئيل چه ﴿أَكَفَرْتَ بِالَّذِي﴾ ايا ته ] دتوحيداو قيامت نه انکار کوې [ دهغې ] پاك [ ذات سره کفر کوې ﴿خَلَقَكَ مِن تُرَابٍ﴾ چاچه ته ] اول [ دخاوړې نه ] کومه چه ستالرې ماده ده په ذريعه دحضرت ادم ﷺ سره [پيدا کړې ﴿ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ﴾ بيائ ] تالره [دنطفې نه ] کومه چه ستا نزدې ماده ده په رحم دمور کښې جوړ کړو ﴿ثُمَّ سَوَّاكَ رَجُلًا﴾ [بيائ ته صحيح سالم جوړ کړې ] ددې باوجودته دتوحيد او قيامت نه انکار کوې اوکفر کوې نو کوه ﴿لَّٰكِنَّا﴾ ] لیکن زة خو دا عقيده لرم چه ﴿هُوَ اللَّهُ رَبِّي﴾ هغه] يعنی[الله تعالی زما رب ] حقيقی[دې ﴿وَلَا أُشْرِكُ بِرَبِّي أَحَدًا﴾ او زة دهغه سره هيڅوا لره نه شريکوم ] او هرکله چه الله تعالی توحيد او قدرت مطلقه په هر څه باندې ثابت دې او ددې په نتيجه کښې څه لرې نه ده چه ستا دباغ دترقئ او حفاظت ستا ټول اسباب او سامان څه وخت هم بې کاره اومعطل شي اوباغ برباد شی په دې وجه په تاباندې لازمه وه چه په مسبب الاسباب دنظرساتلې ﴿وَلَوْلَا إِذْ دَخَلْتَ جَنَّتَكَ قُلْتَ مَا شَاءَ اللَّهُ﴾ [نو ته چه څه وخت خپل باغ ته اورسيدې نو تاداسې ولې نه وئيل چه څه الله تعالی ته منظور وی هغه کيږی ] او [ بغير د خدائ پاك دمدد نه ] په چاکښې ﴿لَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ﴾ [ هيڅ قوت نشته]

ترخو پورې چه الله تعالی غواړی داباغ به قائم وی اوکله چه غواړی نو وران به شی ﴿إِن تَرَنِ أَنَا أَقَلَّ مِنكَ مَالًا وَوَلَدًا﴾ [ که ته مالره په مال او په اولاد کښې کمتر ګنړې ] او په دې سره تاته خان مقبول ښکاری ﴿فَعَسَىٰ رَبِّي أَن يُؤْتِيَنِ خَيْرًا مِّن جَنَّتِكَ﴾ [نوماته هغه وخت نزدې معلومیږی چه زما رب مالره ستا دباغ نه ښه باغ راکړی ] خواه په دنیا کښې یاپه اخرت کښې ﴿وَيُرْسِلَ عَلَيْهَا حُسْبَانًا مِّنَ السَّمَاءِ﴾ اوپه دې [ ستاپه باغ] څه تقدیری آفت دآسمان نه [یعني بې دڅه طبعی اسبابونه] راولیږی ﴿فَتُصْبِحَ﴾ چه په دې سره دغه باغ په یو آن کښې ﴿صَعِيدًا زَلَقًا﴾ یو صفا ] خالي [میدان پاتې شی ﴿أَوْ يُصْبِحَ مَاؤُهَا﴾ یا دده نه دده اوبه ] کومې چه په نهرکښې جاری دی ﴿غَوْرًا﴾ [ بالکل دننه ] په مزکه کښې [ننباسی] اوچې ئې کړی ﴿فَلَن تَسْتَطِيعَ لَهُ طَلَبًا﴾ [ بیا خو به ته ] دوباره [ ددغو ] د راویستو [ ګوشش هم ونه کړې شی ] دلته دغه دینداره ملګری ددغه بې دینه دباغ جواب خو ورکړو مګر د اولاد متعلق څه جواب ئې ورنه کړو شاید وجه داوی چه د اولاد ډیر والې هله ښه معلومیږی کله چه ددوی دپرورش دپاره مال موجود وی ورنه دغه خو التبه وبال جان جوړیږی نچوړددې خبرې دا شو چه ستا دبدعقیده کیدو سبب دا وو چه تاله په دنیا کښې الله تعالی دولت درکړو نو دغه تا دخپل مقبولیت نښه وګنړله او ماسره دولت نشته نو زهٔ دغیر مقبول وګنړلم نو ددنیا دولت او مالداری دالله تعالی په نزد دمقبولیت مدارګنړل لویه دوکه او غلطی ده ددنیا نعمتونه خو رب العلمین مارانو لړمانو شرمخانو او بدکارانو تولو له ورکوی اصل مدار دمقبولیت داخرت په نعمتونو دې ګوم چه همیشه باقی پاتې کیدونکی او ددنیا نعمتونه ټول زوال پذیر[ختمیدونکی]دی [ او] ددې خبرو نه پس واقعه داسې پیښه شوه چه ﴿وَأُحِيطَ بِثَمَرِهِ﴾ [ددې سړی ټول سامان لره خو افت راګیر کړو ﴿فَأَصْبَحَ يُقَلِّبُ كَفَّيْهِ عَلَىٰ مَا أَنفَقَ فِيهَا﴾ پس ده چه څه په باغ خرڅ کړی وو په هغوپسې ئې لاسونه مروړل ﴿وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا﴾ او هغه باغ په خپلو چتونو پریوتې وو ﴿وَيَقُولُ يَا لَيْتَنِي لَمْ أُشْرِكْ بِرَبِّي أَحَدًا﴾ او وئ وئيل څه به ښه وې که ما دخپل رب سره څوك نه وې شریك کړې ] ددې نه معلومه شوه چه باغ والا دآفت راتلو نه پدې پوهه شو چه دا وبال دکفر او شرك په سبب سره راغلې دې که کفرمې نه وې کړې نو اول خو بهردافت شاید څه هم نه وو راغلې اوکه راغلې هم وې نو بدله بې ئې راته په اخرت کښې ملاوٌ شوې وه اوس خو په دنیا او اخرت دواړو کښې تاوان دې مګر صرف په دومره حسرت او افسوس سره دده ایمان نه شو ثابتیدې څکه چه داحسرت او پښیمانتیا خو ددنیا دنقصان په وجه سره وشوه وړاندې دالله تعالی دتوحید او قیامت اقرار ترخو پورې چه ثابت نه وی ده ته موٴ من نه شی وئیلې ﴿وَلَمْ تَكُن لَّهُ فِئَةٌ يَنصُرُونَهُ مِن دُونِ اللَّهِ﴾ [ او دده سره څه داسې مجمع نه وه کوم چه دخدایٔ نه سوا دده مددئ کړې وې ] دده په خپل مجمع او اولاد باندې ناز وو هغه هم ختم شو ﴿وَمَا كَانَ مُنتَصِرًا﴾ [او نه هغه په خپله] زمونږ په بدلهٔ واخستې شوه ﴿هُنَالِكَ الْوَلَايَةُ لِلَّهِ الْحَقِّ﴾ [په داسې موقع باندې مدد کول خو دالله تعالی برحق کاردې ] او په اخرت کښې هم ﴿هُوَ خَيْرٌ ثَوَابًا﴾ [ددې ثواب دټولو نه ښه دې او ] ﴿وَخَيْرٌ عُقْبًا﴾ په دنیا کښې هم [ددې نتیجه دټولو نه غوره ده ] یعنی دمقبولینو که څه نقصان کیږی نو په دواړو جهانونو کښې د دې میوه نیکه ملاویږی په خلاف دکافرانو نه چه بلکل په خساره کښې پاتې شو.

## معارف او مسائل

﴿وَكَانَ لَهُ ثَمَرٌ﴾ دثمر دوه معنې دی. يوه معنی ئې د ونو ميوه او بله معنی يې مال ، دولت ده، د ابن عباس رضي الله عنه ، مجاهد رحمه الله او قتاده رضي الله عنه نه هم دا دويمه معنی نقل ده. [ ابن كثير](١)

قاموس كښې راغلی دی چې ددې معنی د ونو ميوه او مال و دولت ده.(٢) په دې بنا معلومه شوه چې دغه سړی سره د باغونو او نورو فصلونو او پټو نه علاوه سره ، سپين زر او د عيش وعشرت نورسامان هم موجود وو. ځنګه چې قرآن عظيم الشان هم ددۀ په الفاظو كښې داسې نقل كړی دی چې : ﴿أَنَا أَكْثَرُ مِنكَ مَالًا﴾ [ابن كثير ].(٣)

﴿مَا شَاءَ اللَّهُ لَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ﴾ شعب الايمان كښې د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چې نبی اكرم ﷺ اوفرمائيل چې چا يو خوښ ځيز اوليدو اودا كلمه ئې اووئيله چې ﴿مَا شَاءَ اللَّهُ لَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ﴾ نو هيڅ بـه ورتـه نقصان نه رسوی.(٤) او پـه ځينې روايتونو كښې راغلی دی چې د خوښې د ځيز په ليدو سره چې دا كلمه اووائی نو هغې ځيز باندې بد نظر اثر نشی كولې.(٥)

﴿حُسْبَانًا﴾ ددې لفظ تفسير قتاده رضي الله عنه په مطلق عذاب سره كړې دې.

د ﴿وَأُحِيطَ بِثَمَرِهِ﴾ نه دا ښكاره شو چې ددۀ په باغونو ، پـه ټول مال دولت او عيش عشرت په سامان څه لوئې آفت راپريوتو او دغه ټول هر څه ئې تباه كړل ،قرآن عظيم الشان يو خاص آفت ذكر نه كړو ، داسې ښكاری چې څه آسمانی اوور راغلو چې دغه ټول هر څه ئې اوسيزل، ځنګه چې د لفظ حسبان په تفسير كښې د ابن عباس رضي الله عنه نه هم دا اوور منقول دی .[والله اعلم]

| وَاضْرِبْ | لَهُم مَّثَلَ | الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا | كَمَآءٍ | أَنزَلْنَٰهُ | مِنَ السَّمَآءِ |
|---|---|---|---|---|---|
| او بيان كړه | دوی ته مثال | دژوند د دنيا | پشان داوبودې | چې نازلې كړې مونږه هغه | د آسمان نه |

او [ائې نبی ﷺ] ته دوی ته ددنياد ژوندمثال بيان كړه [هغه داسې دې ] چې اوبه كومې چې مونږ د آسمان نه راوورولې

| فَاخْتَلَطَ | بِهِۦ | نَبَاتُ الْأَرْضِ | فَأَصْبَحَ | هَشِيمًا | تَذْرُوهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| نوګنړزرغون شو | په هغه اوبو سره | بوټی د زمكې | ابياشی | وچه ذرې ذرې | چې الوزوی هغې لره |

بيا دهغې په وجه ښه ګورشينكې راووتو كيږی اوبيا هغه ذرې ذرې شی چې بادونه ئې اخواديخوا

| الرِّيَٰحُ | وَكَانَ اللَّهُ | عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ | مُّقْتَدِرًا | الْمَالُ وَالْبَنُونَ | زِينَةُ |
|---|---|---|---|---|---|
| هواګانې | او دې الله | په هر ځيزباندې | قدرت لرونكې | مال او ځامن | ښائيست |

الوزوی او الله ﷻ په هرځيز پوره پوره قدرت لری مال او اولاد خو تش ددنيا د

---

١) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٥ ص:١٥٧]

٢) القاموس المحيط [ج: ١ص:٣٦٥]

٣) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٥ ص:١٥٧]

٤) شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث[٤٢٠٠]الثالث والثلاثون من شعب الإيمان إلخ.

٥) تفسير القرطبي [ ج:١٠ص:٤٠٧] و كنز العمال رقم الحديث:[١٧٦٧٠]

الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا　وَالْبٰقِيٰتُ　الصّٰلِحٰتُ　خَيْرٌ　عِنْدَ رَبِّكَ

دژوند د دنيادي | اوباقي پاتې کيدونکې | نيکياني | بهتر دي | په نزد رب ستا |

ژوندون ښائست دې اوباقي پاتې کيدونکې نيک عملونه چې دي نوهغه ستا درب سره

ثَوَابًا　وَّخَيْرٌ　اَمَلًا ۝　وَيَوْمَ　نُسَيِّرُ

په لحاظ دثواب سره | اوبهتر دي | په لحاظ داميد سره | اوپه کومه ورځ | چې روان کړو مونږه |

دثواب په حقله ښه دي او داميد ساتلو په حقله هم ښه دي اوپه کومه ورځ چې مونږ غرونه

الْجِبَالَ　وَتَرَى　الْاَرْضَ　بَارِزَةً　وَّحَشَرْنٰهُمْ　فَلَمْ نُغَادِرْ

غرونه | اوته اووينې | زمکه | لغړه | اوراجمع به کړو مونږه داخلق | چې پرې به نه ږدو مونږه |

لرې کړو او ته به اووينې چې توله زمکه يو هوار ميدان پاتې شوې دې او مونږ به خلق جمع کړو نوهيڅوک به په کښې

مِنْهُمْ　اَحَدًا ۝　وَعُرِضُوْا　عَلٰى رَبِّكَ　صَفًّا　لَقَدْ جِئْتُمُوْنَا

ددوئ نه | هيڅوک | اووړاندبه کړې شي | رب ستاته | په قطارونوکښې | په تحقيق راغلئ تاسومونږته

پاتې پرې نه ږدو اوټول به ستادرب په وړاندې په قطارونو کښې ولاړ پيش کولې شي [او ورته وئيلې شي] څنګه چې مونږ

كَمَا　خَلَقْنٰكُمْ　اَوَّلَ مَرَّةٍ　بَلْ زَعَمْتُمْ

لکه څنګه چې | پيداکړې وئ مونږ تاسو | په اول | ځل | بلکه ګمان کوئ تاسو |

تاسو په اول ځل پيداکړې وې هغه شان نن تاسو زمونږ مخې ته راغلي يئ ليکن ستاسو خوداخيال وو

اَلَّنْ نَّجْعَلَ　لَكُمْ　مَّوْعِدًا ۝　وَوُضِعَ　الْكِتٰبُ

چې هډو به مقرر کوؤ نه دې مونږ | ستاسو دپاره | وخت دوعدې | اوکيښه خودلې شي | کتاب

چې مونږ به درباندې دامقرر وخت نه راولو او عمل نامه به کيخودلې شي

فَتَرَى　الْمُجْرِمِيْنَ　مُشْفِقِيْنَ　مِمَّا　فِيْهِ　وَيَقُوْلُوْنَ

نوته به اووينې مجرمان خلق | يريدونکې | دهغې نه | چې په هغې کښې وې | اووائي به |

نوته به مجرمان اووينې چې دهغې دليک نه ويرېږي او دابه وائي چې

يٰوَيْلَتَنَا　مَالِ هٰذَا الْكِتٰبِ　لَا يُغَادِرُ　صَغِيْرَةً　وَّلَا

اے افسوس دې مونږلره | څه شوي دي دې کتاب لره | چې نه پرېږدي | وړه | اونه

هائې زمونږ بده نصيبه ددې عمل نامې خو عجيبه حال دې چې هيڅ يو ګناه نه وړه او نه

كَبِيْرَةً　اِلَّا　اَحْصٰهَا　وَوَجَدُوْا　مَا　عَمِلُوْا　حَاضِرًا

لويه | مګر | حساب کړې ئې دی هغه ټول | او بيا به مومي هغوئ | هغه څه | چې کړې وې هغوئ | حاضر

لويه باقي پرېخودې ده خو هره يوه ليکلې ده اوکوم عملونه چې ئې کړې دی هغه به موجود بيامومي

وَلَا يَظْلِمُ　رَبُّكَ　اَحَدًا ۝

اونه کوی ظلم | رب ستا | په هيچا |

او ستارب په هيچا زياتې نه کوی

## آسان ترجمه قرآن

او دې خلقو ته د دنيا د ژوند مثال هم بيان کړه چه هغه داسې دې لکه چه مونږ د اسمان نه اوبه راورولې نو په هغې سره د زمکې شينکې ښه ګڼړه شوه، بيا هغه داسې ذره ذره شوه چه هوا ئې يوسي او الله پاک په هر څيز باندې مکمل قدرت لري. مال او اولاد د دنيا د ژوند ډول دې، او کومې نيکئ چه باقي پاتې کيدونکې دی، هغه ستا د رب په نزد د ثواب په اعتبار سره هم غوره دی، او د اميد ترلو دپاره هم غوره دی. او (هغه ورځ ياده ساتئ) چه کله به مونږ غرونه بوځو، او ته به زمکه وينې چه هغه صفا پرته ده، او مونږ به ټول ګيدولو سره يوځائې کړو، او په هغوی کښې به څوک هم نه پريږدو او ټول به ستا د رب مخکښې صفونه ترلو سره پيش کولې شي. آخر تاسو مونږ ته هم هغه شان راغلئ څنګه چه مونږ تاسو په اول کرت پيدا کړی وئ. د دې برعکس ستاسو دعوی دا وه چه مونږ به ستاسو دپاره (دا) مقرر وخت چرته هم نه راولو او (د اعمالو) کتاب به مخامخ کيخودلې شي، پس ته به مجرمان وينې چه هغوی به د هغې د ليکلو نه په ويره کښې وی او وائی به چه: افسوس مونږ برباد شوا دا څنګه کتاب دې چه زمونږ هيڅ وړوکې او لوئې عمل ئې نه دې پريخودلې چه د هغې پوره احاطه ئې نه وی کړې. او هغوی به خپل ټول اعمال خپلې مخې ته موجود بيا مومي. او ستا رب به په چا باندې هم ظلم نه کوی.

## خلاصه تفسير

ددې نه وړاندې ددنيا دژوند او ددې دسامان دناپائيدارئ بيان ديوشخصي او جزوی مثال په ذريعه سره بيان کړې وو اوس دا مضمون په يو عام اوکلی مثال سره واضحه کولې شی ﴿وَاضْرِبْ لَهُمْ مَّثَلَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَآءٍ اَنْزَلْنٰهُ مِنَ السَّمَآءِ﴾ [او ته ﷺ دې خلقوته ددنيا دژوندحالات بيان کړه چه هغه داسې دې لکه مونږ چه داسمان نه اوبه اوور وو ﴿فَاخْتَلَطَ بِهٖ نَبَاتُ الْاَرْضِ﴾ بيا په دې] اوبو [سره دمزکې شينکې ښه ګڼړ راوچت شی بيا دغه ] پس ددې نه چه تروتازه وی اوچه شی ﴿فَاَصْبَحَ هَشِيْمًا تَذْرُوْهُ الرِّيٰحُ﴾ [پس هغه خس خس شی چه هوائ اولوځوی ] داحال ددنيا دې چه نن تروتازه په نظر راځی صبا ددې نوم نښه هم پاتې نه شی ﴿وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ مُّقْتَدِرًا﴾ [ او الله تعالی په هر څيز باندې پوره قدرت لرونکې دې] کله چه غواړی پيدائ کړی او ترقي ورکړی اوکله چه غواړی فنائ کړی او هرکله چه ددنيا دژوند دا حال دې او ﴿اَلْمَالُ وَالْبَنُوْنَ زِيْنَةُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾ [ مال او اولاد ددنيا دژونديو رونق دې ] نو بيا مال او اولاد خو په خپله هم ډير زر زائله کيدونکی دی ﴿وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ﴾ [اوکوم نيك عملونه ] چه هميشه هميشه[ باقی پاتې کيدونکی دی ﴿خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا﴾ دغه ستا درب په نزد ] يعنی په اخرت کښې ددې دنيا نه ] دثواب په اعتبارسره هم ] په هزار درجو[غوره دې ﴿وَّخَيْرٌ اَمَلًا﴾ اوداميدپه اعتبار سره هم ] په زرګونو درجو [غوره دې ] يعنی دنيکو عملونو سره چه کوم اميدونه ترلې شوی وی هغه به په اخرت کښې خامخا پوره کيږی او ددې په اميد سره به هم زيات ثواب ملاويږی په خلاف ددنيا دسامان نه چه په دې سره په دنيا کښې هم انسانی اميدونه نه پوره کيږی او په اخرت کښې خو ئې څه احتمال نشته ﴿وَيَوْمَ نُسَيِّرُ الْجِبَالَ﴾ [ او هغه ورځ يادول پکار دی په کومه ورځ چه مونږ غرونه ] دخپل ځائ نه [ پورته کړو] دابه په اول کښې وی بيابه دغه خس خس کړې شی ﴿وَتَرَى الْاَرْضَ بَارِزَةً﴾ [ او ته به مزکه وويني چه يو ډاګ ميدان پروت دې ] ځکه چه غرونه اونې

مکانونه هیڅ به باقي پاتې نه شي ﴿وَحَشَرۡنَٰهُمۡ﴾ [ او مونږ به دوی ټولولره ] دقبرونونه پورته کړو په میدان دحساب کښې به يې [جمع کړو ﴿فَلَمۡ نُغَادِرۡ مِنۡهُمۡ أَحَدٗا﴾ اوددوی نه په هیڅ لره هم پاتې نه کړو ] چه هلته به رانه وستلې شي ﴿وَعُرِضُواْ عَلَىٰ رَبِّكَ صَفّٗا﴾ [ او ټول به ستا رب په وړاندې ] یعنی په موقف دحساب کښې[ برابر ودرولې شي پیش به کړې شي ] دا احتمال به نه وی چه ګوندې څوك په څه پناه ګاه کښې پټ شوي دي او په دوی کښې چه کومو دقیامت نه انکار کولو دوی ته به ووئیلې شي چه ﴿لَّقَدۡ جِئۡتُمُونَا﴾ [وګورئ چه اخر تاسو مونږ ته ] دوباره پیداشوی [راغلئ هم ﴿كَمَا خَلَقۡنَٰكُمۡ أَوَّلَ مَرَّةِۭ﴾لکه چه څنګه تاسولره په اول وار ] یعنی په دنیا کښې [پیداکړی وئ ] مګر تاسو داولنی پیداکولو لیدلو باوجود ددې دویم پیدائش قائل نه شوئ ﴿بَلۡ زَعَمۡتُمۡ أَلَّن نَّجۡعَلَ لَكُم مَّوۡعِدٗا﴾ [بلکه تاسو داګنړله چه مونږ به ستاسو] ددوباره پیداکولو [دپاره څه وعده شوی وخت رانه ولو ﴿وَوُضِعَ ٱلۡكِتَٰبُ﴾ او عملنامي به ] خواه په ښی لاس یاپه کیڼ لاس کښې ورکړی ددوی په وړاندې ښکاره [کیښودې شی ] لکه چه په نو روایتونو کښې دی [ونخرج له یوم القیٰمة کتبا یلقٰه منشورا] ﴿فَتَرَى ٱلۡمُجۡرِمِينَ مُشۡفِقِينَ مِمَّا فِيهِ﴾ [نو ته به مجرمانو لره ووینې چه په دې کښې څه] لیکلی [وی] هغه به ووینی ﴿ ﴾ [ددې نه ] یعنی دسزانه يې [به ویریږی ﴿وَيَقُولُونَ يَٰوَيۡلَتَنَا مَالِ هَٰذَا ٱلۡكِتَٰبِ﴾ اووائی به چه هائ زمونږ کم بختئ ددې عملنامې خو عجیبه حالت دې ﴿لَا يُغَادِرُ صَغِيرَةٗ وَلَا كَبِيرَةً إِلَّآ أَحۡصَىٰهَا﴾ چه بې دلیکلونه خو په کښې نه وړوکې ګناه پاتې ده اونه لویه ﴿ ﴿وَوَجَدُواْ مَا عَمِلُواْ حَاضِرٗا﴾ او څه چه دوی ] په دنیاکښې [کړی وو هغه به ټول ] لیکلی [موجودبیا مومی ﴿وَلَا يَظۡلِمُ رَبُّكَ أَحَدٗا﴾ او ستا رب به په هیچا ظلم نه کوی ] چه نه کړې ګناه به ولیکی یاکړې نیکی چه په شرطونو سره پوره وی هغه ونه لیکی

## معارف او مسائل

﴿وَٱلۡبَٰقِيَٰتُ ٱلصَّٰلِحَٰتُ﴾ مسند احمد ، ابن حیان او حاکم د ابی سعید خدری رضی الله عنه څخه نقل کړی دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې زیات نه زیات باقیات جمع کوئی ، عرض اوکړې شو چې هغه څه دی ؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ﴿سبحان الله لا اله الا الله الحمد لله الله اکبر ولا حول ولا قوة الا بالله﴾ وئیل دی . حاکم دې حدیث پاك ته صحیح وئیلی دی .([1]) او عقیلی د نعمان بن بشیر رضی الله عنه څخه نقل کړی دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل : ﴿سبحان والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر﴾ داهم باقیات صالحات دی ،([2]) هم دا مضمون طبرانی د سعید بن عباده رضی الله عنه څخه هم نقل کړې دې او صحیح مسلم اوفرمائیل چې دا کلمه ﴿سبحان والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر﴾ ماته دهغې ټولو څیزنو څخه زیاته خوښه ده([3]) په کومو چې د نمر رڼا پریوزی .

او جابر رضی الله عنه اوفرمائیل چې ﴿لاحول ولاقوة الا بالله﴾ ډیر وائې ځکه چې دا یو کم سل بابونه د بیمارئ اوتکلیف لرې کوی چې په کښې دټولو څخه کمه درجه دتکلیف هم یعنی غم اوفکردې([4])

---

[1]) مسند احمد رقم الحديث:[۱۱۲۸۸] والمستدرك للحاكم رقم الحديث [۱۸۴۳] كتاب الدعاء والتكبير.
[2]) مسند احمد رقم الحديث:[۱۷۶۳۰]
[3]) صحيح مسلم كتاب الذكر والدعاء، باب فضل التهليل إلخ [ج:۲ص:۳۴۴] و جامع الترمذى ابواب الدعوات باب (قبيل ابواب المناقب) [ج: ۲ ص:۲۰۰]
[4]) المعجم الأوسط للطبرانى رقم الحديث:[۳۶۷۶]

هم په دې بنا په آيت کښې د باقيات صالحات تفسير ابن عباس رضي الله عنه عکرمه رحمه الله او مجاهد رحمه الله دا کړې دې چې مراد ددې څخه هم دغه کلمات لوستل دی او سعيد بن جبير رحمه الله ، مسروق رحمه الله ، ابراهيم رحمه الله او فرمائيل چې باقيات صالحات څخه مراد پنځه مونځونه دی.
او د ابن عباس رضي الله عنه څخه په يو بل روايت کښې داسې راغلی دی چې په آيت کښې د باقيات صالحات څخه مراد مطلب نيک عملونه دی چې په کښې دغه بيان شوی کلمات هم داخل دی ، پنځه مونځونه هم او ټول نيک عملونه هم ، قتاده رحمه الله څخه هم دا تفسير منقول دې. [مظهری]. ([1])
الفاظ د قرآن کريم سره هم دا تفسير ځکه جوړښت خوری چې د الله ﷻ په نزد ټول نيک عملونه باقي او قائم دی او ابن جرير رحمه الله طبری رحمه الله دا تفسير غوره ګرځولې دې. ([2])
علی رضي الله عنه د فصل دوه قسمونه خودلی دی ، يو قسم ددنيا فصل چې مال او اولاد دې او بل د آخرت فصل چې باقيات صالحات دی نو حسن بصری رحمه الله او فرمائيل چې باقيات صالحات د انسان نيت او اراده دی چې دنيکو عملونو قبليدل په دې باندې اړه لري.
او عبيد بن عمر او فرمائيل چې باقيات صالحات نيکې جينکۍ دی چې د خپلو والدينو دپاره دټولو څخه زياته دثواب ذخيرې دی ، په دې باندې د عائشه صديقه رضي الله عنها يو روايت دلالت کوی په کوم کښې چې نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی چې :
ما د خپل امت داسې يو کس اوليدو چې جهنم ته ئې د بوتلو حکم شوې وو . د هغه کس نيکې لونړه ورپورې وانښتې او ژړا ئې شروع کړه او الله ﷻ ته ئې فرياد اوکړو چې ائې الله ﷻ ! ده په دنيا کښې په مونږ باندې لوئې احسان کړې وو او زمونږ په پالنه کښې ئې ډيره خواری کړې وه . نو الله ﷻ په دغه سړی رحم اوکړو او بخښنه ئې ورته اوکړه . [قرطبی]. ([3])
﴿لَقَدْ جِئْتُمُوْنَا كَمَا خَلَقْنٰكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ﴾ د قيامت په ورځ به ټولو ته داسې خطاب اوشی چې نن تاسو ماته تش لاس بغير د څه سامان څخه راغلی يئ څنګه چې مې په اول سر کښې پيدا کړی وئ.
بخاری ، مسلم او ترمذی کښې د ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دې چې يو ځل نبی کريم ﷺ په خطبه کښې داسې اوفرمائيل : ائې خلقو ! تاسو به دقيامت په ورځ دخپل رب په وړاندې بربنډې پښې ، بربنډ بدن او پياده راشئ او د ټولو څخه اول به چې چاته جامې ورکولې شی هغه به ابراهيم عليه السلام وی . ددې په آوريدو سره عائشه صديقه رضي الله عنها سوال اوکړو چې يارسول الله ﷺ ! آيا ټول نر ښځې به بربنډ وی او يو بل ته به ګوری ؟ نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې په دغه ورځ به هر څوک پخپل غم کښې او فکر کښې داسې راګير وی چې هيڅوک به بل ته د کتلو جوګه نه وی . ([4]) ټولو به سترګې پورته نيولې وی . قرطبی اوفرمائيل چې په يو حديث پاک کښې چې داسې وئيلې شوی دی چې مړی به په برزخ کښې يو بل سره پداسې شان ملاقات کوی چې خپل کفنونه به ئې اغوستی وی . نو ددې حديث پاک سره بې سمون نه دې ، ځکه په

---

[1] ) تفسير المظهری [ج:٦ص:٣٨]
[2] ) تفسير الطبری تحت هذه الآية [ ج:١٨ص:٣٥] و تفسير القرطبی [ ج:١٠ص:٤١٤]
[3] ) تفسير القرطبی تحت هذه الآية [ ج:١٠ص:٤١٦]
[4] ) صحيح البخاری كتاب الرقاق ،باب كيف الحشر [ج:٢ص:٩٢٥]، و صحيح مسلم كتاب الجنة إلخ، باب فناء الدنيا وبيان الحشر يوم القيامة (بإختلاف) [ج:٢ص:٣٨٣]

دا معامله د قبر او برزخ ده او هغه معامله د میدان حشر ده . او ځینې روایاتو د حدیث پاك کښې چې منقول دی چې مړې به په میدان حشر کښې په هغه جامو کښې راپورته کیږی په کومو کښې چې ښخ کړې شوې وی. فاروق اعظیم رضی الله عنه او فرمائیل چې خپلو مړو ته ښه کفنونه ورکوئی ولې چې د قیامت په ورځ به هم پدغې کفنونو کښې راپورته کیږی ، ځینې مفسرین فرمائی چې دا حالت بهٔ د شهیدانو وی ، او ځینې فرمائی چې کیدې شی چې محشر کښې بهٔ ځینې خلق په جامو پټ او ځینې بربنډ راپورته کیږی ، چې په دې شان د دواړو روایتونو جمع کیدل راځی ، [مظهری].[1]

**جزا به خپل عمل وی** :: ﴿وَوَجَدُوْامَاعَمِلُوْاحَاضِرًا﴾ [ټول اهل محشر به خپل کړی عملونه حاضر بیا مومی] مفسرین حضرات ددې مطلب عمومی طور دا بیانوی چې دخپلو کړو عملونو جزا ا وسزا به حاضره او موجوده بیا مومی . زمونږ استاذ مولانا محمد انور شاه کشمیری رحمه الله به فرمائیل چې ددې تاویل کولو څه ضرورت نشته چې بې شمیره احادیث په دې ګواه دی چې هم دا عملونه ددنیا به دآخرت د جزا او سزا صورت داسې اختیار کړی چې نیك عملونه بهٔ د جنت د نعمتونو په شکل شی او ناکاره عملونه به د جهنم د مارانو ، لړمانانو او اور وغیره په شکل شی .

یو حدیث پاك کښې راغلی دی چې د زکوة نه ورکوونکو مال بهٔ ورته په قبر کښې د یو لوئې مار په شکل کښې راشی هغه به چیچی او ورته بهٔ وائی چې ﴿انا مالك﴾ زه ستا مال یم،[2] نیك عملونه به د یو ښکلی انسان په شکل کښې راشی چې د قبر د تنهائی ویره به ترې لرې کوی .[3] د قربانۍ څاروی بهٔ د پل صراط سورلی جوړیږی ،[4] دانسان ګناهونه بهٔ په محشر کښې د هغه د سر پیټی جوړیږی .

قرآن کریم کښې د یتیمانو د مال باره کښې چې څوك ئې په نا جائزه مال خوری داسې راغلی دی ﴿اِنَّمَا يَاْكُلُوْنَ فِيْ بُطُوْنِهِمْ نَارًا﴾ دا خلق پخپلو خیټو کښې اور اچوی . داسې قسم ټول آیتونو او روایاتو څخه عمومی طور مجازی معنی مراد اخستې شی خو که تحقیق اوکړې شی نو د مجاز ضرورت نشته دې ، ټولو څخه حقیقی معنی مراد اخستل پکار دی .

قرآن عظیم الشان د یتیم مال په نا جائزه رالاندې کولو او اخستلو ته اور اوفرمائیل ، حقیقت دادې چې دا په دنیا کښې هم اور دې خو محسوسولو دپاره ئې ددنیا څخه تیریدل او بل جهان ته تلل شرط دی لکه چې د تیلو ډبی ته اور په دې معنی سره وئیلې شی چې په ډبی باندې تیلې راښکل دده دپاره شرط دی یا لکه پیټرولو ته اور په دې وجه وئیل صحیح دی چې اور ته ئې مخامخ کیدل شرط دی .

ددې حاصل دا شو چې انسان کوم نیك یا بدعمل په دنیا کښې کوی نو هم دا عم به په آخرت کښې د جزا او سزا شکل اختیار کړی ي ، په وخت کښې به دده آثار او علامات جدا نور شی ، والله اعلم.

---

[1] ) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة [ج:٦ص:٤٠]
[2] ) صحیح البخاری کتاب الزکوة ،باب إثم مانع الزکوة [ج:١ص:١٨٨]
[3] ) مسند احمد رقم الحدیث:[١٧٨٠٣] حدیث البراء بن عازب رضی الله عنه.
[4] ) کنز العمال رقم الحدیث:[١٢١٧٧]

| وَاِذْ | قُلْنَا | لِلْمَلٰٓئِكَةِ |
|---|---|---|
| اوکله چې | اووئیل مونږه | فرښتوته |

اوهرکله چې مونږ فرښتو ته حکم اوکړو چې تاسو

| اسْجُدُوْا | لِاٰدَمَ | فَسَجَدُوْٓا | اِلَّآ | اِبْلِيْسَ | كَانَ | مِنَ الْجِنِّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې سجده اوکړئ | آدم ته | نو سجده اوکړه هغوئ | مګراونه کړه | ابليس | وو هغه | دپيريانونه |

آدم ﷺ ته سجده اوکړئ نو ټولو سجده اوکړه خو ابليس اونه کړه هغه پيرې وو

| فَفَسَقَ | عَنْ اَمْرِ رَبِّهٖ | اَفَتَتَّخِذُوْنَهٗ | وَذُرِّيَّتَهٗٓ | اَوْلِيَآءَ |
|---|---|---|---|---|
| اونافرماني اوکړه هغه | دحکم درب خپل نه | آيانوتاسو جوړوئ هغه لره | اواولاد دهغه لره | دوستان |

نودخپل در ب حکم نافرمانی ئې اوکړه نو اوس تاسو هغه او دهغه اولاد زما په مقابله کښې

| مِنْ دُوْنِيْ | وَهُمْ | لَكُمْ | عَدُوٌّ | بِئْسَ | لِلظّٰلِمِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| غير زمانه | حالانکه هغوئ | ستاسو دپاره | دشمنان دي | ډيرخراب دي | دپاره دظالمانو |

په دوستئ نيسئ حال دا چې هغوئ خوستاسو ښرګند دښمنان دي ظالمانو له څومره خرابه

| بَدَلًا۝ | مَآ اَشْهَدْتُّهُمْ | خَلْقَ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | وَلَا |
|---|---|---|---|---|---|
| په لحاظ دبدل سره | نۀ وو حاضرکړي ماهغوئ | پيداکولو | دآسمانونو | اودزمکې ته | اونۀ |

بدله ورکړې شوه ما نه خو دوئ دآسمانونو او دزمکې دپيدا وخت په وخت کښې رابللي وو

| خَلْقَ | اَنْفُسِهِمْ | وَمَا كُنْتُ | مُتَّخِذَ | الْمُضِلِّيْنَ | عَضُدًا۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| پيداکولو | دځانونودوئ ته | اونۀ يم زۀ | جوړونکې | ګمراهه کونکوخلقولره | مضبوطيادمتوخپلو |

او نه ددوئ دخپل پيدا وخت په وخت کښې اوزه داسې [عاجزه] نه وم چې ګمراه کوونکي به مې خپل مددګاران جوړول

| وَيَوْمَ | يَقُوْلُ | نَادُوْا | شُرَكَآءِيَ الَّذِيْنَ | زَعَمْتُمْ |
|---|---|---|---|---|
| اوپه کومه ورځ چې اووائي الله | چې آوازاوکړئ | شريکانوزماته | هغه | چې ګمان کړې وو تاسو په هغوئ دخدايئ |

او په کومه ورځ چې الله ﷻ اوفرمائي چې زما هغه شريکان راوغواړئ په کومو چې تاسو [دمعبودانو] خيال کولو

| فَدَعَوْ | هُمْ | فَلَمْ يَسْتَجِيْبُوْا | لَهُمْ | وَجَعَلْنَا |
|---|---|---|---|---|
| نو آواز به اوکړي | دوی هغوئ ته | نو جواب به ورنۀ کړي هغوئ | دوئ لره | او شريك به کړو مونږ |

نودوئ به راوبلی هغوئ خوهغوئ به هډو جواب ورنه کړي اومونږ به ددوئ [اومعبودانو]

| بَيْنَهُمْ | مَّوْبِقًا۝ | وَرَاَ | الْمُجْرِمُوْنَ | النَّارَ | فَظَنُّوْٓا |
|---|---|---|---|---|---|
| په منځ ددوئ کښې | ځائې دهلاکت | اوابه وينې | مجرمان خلق | وور | اويقين به ئې راشي |

ترمينځه يوه پرده اودروۀ اومجرمان به [پخپلو سترګو] دوزخ اووينې اودا يقين

| اَنَّهُمْ | مُّوَاقِعُوْهَا | وَلَمْ يَجِدُوْا | عَنْهَا | مَصْرِفًا۝ |
|---|---|---|---|---|
| چې بيشکه دوئ | واقع کيدونکې دی په هغې کښې | اوبه نۀ مومي دوی | دهغه وورنه | ځائې دبچ کيدو |

به ئې راشي چې دوئ په کښې ورغوزيدونکې دی اودهغې نه دبچ کيدو به هيڅ لار نه مومي

وَلَقَدْ صَرَّفْنَا فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ لِلنَّاسِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ ط

او په تحقيق سره | باربار بيان كړل مونږه | په دې قران كښې | دپاره دخلقو | دهر قسم مثال نه

اومونږ په دې قران پاک كښې دخلقو [دپوهولو] دپاره رنګ رنګ مثالونه بيان كړل

وَكَانَ الْاِنْسَانُ اَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلًا ﴿۵۴﴾ وَمَا مَنَعَ النَّاسَ

اودې | انسان | زيات دهرڅيزنه | په لحاظ دجګړې سره | اومنع نكړل | داخلق |

خوانسان په جګړه كولو كښې دهرڅا نه سوا دې اودا خلق دهدايت راتلونه پس

اَنْ يُّؤْمِنُوْٓا اِذْ جَآءَهُمُ الْهُدٰى وَيَسْتَغْفِرُوْا رَبَّهُمْ اِلَّآ

چې ايمان راوړي |كله چې | راغې دوی ته | هدايت | او چې ښنانه اوغواړي | درب خپل نه | مګر

نور څه څيز دايمان راوړلونه او دخپل رب دبخښنې غوښتلو منع كړي دي خو بس

اَنْ تَاْتِيَهُمْ سُنَّةُ الْاَوَّلِيْنَ اَوْ يَاْتِيَهُمُ الْعَذَابُ قُبُلًا ﴿۵۵﴾ وَمَا نُرْسِلُ

چې راشي دوئ ته |طريقه داولنو خلقو | ياراشي دوئ ته | عذاب | مخامخ | اونه ليږو مونږه

داچې [دوئ انتظار كوي] چې دپخوانو خلقوغوندې معامله دې ورسره اوشي ياد وربانديې مخامخ عذاب راشي

الْمُرْسَلِيْنَ اِلَّا مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ ج وَيُجَادِلُ الَّذِيْنَ

رسولان | مګر | زيرې وركونكي| او يرونكي | اوجګړه كوي | هغه كسان |

اومونږ پيغمبران صرف په دې وجه راليږوچې خلقو ته زيرې واوروي اوعذاب نه ئې اوويروي او كوم

كَفَرُوْا بِالْبَاطِلِ لِيُدْحِضُوْا بِهِ الْحَقَّ

چې كفر ئې كړې دې | په ذريعه دباطل |دپاره ددې چې ښكته كړي | په هغې سره | حق

خلق چې منكر دی په ناحقه جګړې كوي چې حق پرې بې اثره كړي

وَاتَّخَذُوْٓا اٰيٰتِيْ وَمَآ اُنْذِرُوْا هُزُوًا ﴿۵۶﴾ وَمَنْ

او نيولې ئې دی | آيتونه زما |او هغه خبر |چې دوئ ترې يرولې شوی دی | په توقوسره | اوڅوک دې

اوهغوئ خو زما د[قدرت] نخښې اودكوم څيز نه چې ويرولې شوی [هغه ټول] ټوقې مسخرې ګڼړې

اَظْلَمُ مِمَّنْ ذُكِّرَ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ فَاَعْرَضَ

ديرظالم |دهغه چانه|چې نصيحت اوكړې شی هغه ته|په ذريعه دآيتونو|درب خپل |نوهغه مخ واړوؤ

اودهغه چا نه غټ ظالم څوک كيديشی چې دخپل رب دقدرت دنخښو په ذريعه ورته نصيحت اوكړې

عَنْهَا وَنَسِيَ مَا قَدَّمَتْ يَدٰهُ ط اِنَّا

دهغې نه | اوهير شوترې| هغه انجام |چې مخكښې ليږلې دې | لاسونو دهغه | بيشكه مونږه

شی نو هغوئ ترې نه مخ واړوی اوخپل دګناه كارونه هير كړې او مونږ

جَعَلْنَا عَلٰى قُلُوْبِهِمْ اَكِنَّةً اَنْ يَّفْقَهُوْهُ وَفِيْٓ اٰذَانِهِمْ

اچولی دی | په زړونو دهغوئ باند | پردې | چې پوهه نشي په هغې | او په غوږونو دهغوئ كښې

ددوئ په زړونو باندې پردې راغوړولې دی چې ګنې په دې [قران] دې پوهه شی اود دوئ غوږونه مو

وَقْرًاؕ　وَاِنْ　تَدْعُهُمْ　اِلَى الْهُدٰى　فَلَنْ يَّهْتَدُوْٓا

درون والي دي | اوكه چرى | ته رااوبلې هغوئ | هدايت ته | نوهرگز به هدايت اونهٔ مومى

درانه كړى دى او كه ته ئې هرڅومره سمې لارې ته راوبلې نودوئ به هيچرې سمې

اِذًا　اَبَدًا۝　وَرَبُّكَ　الْغَفُوْرُ　ذُو الرَّحْمَةِؕ　لَوْ

په دې حالت كښې | هميشه | او رب ستا | ببښونكې دې | خاوند درحمت دې | كه چرى

لارې ته رانشى او ستارب بخښوونكې ډير رحم كوونكې دې كه

يُؤَاخِذُهُمْ　بِمَا　كَسَبُوْا　لَعَجَّلَ　لَهُمُ

الله نيولې هغوئ لره | په سبب دهغه عمل | چې كوى ئې هغوئ | نو زربه ئې راالیږلې وو | هغوئ ته

الله ﷻ ددوئ په عملونو باندې ددوئ نيول كولې نو سمدستى به ئې پرې

الْعَذَابَؕ　بَلْ　لَّهُمْ　مَّوْعِدٌ　لَّنْ يَّجِدُوْا　مِنْ دُوْنِهٖ

عذاب | بلكه مقرردې | دپاره دهغوئ | وخت دوعدې | چې هرگزبه اونهٔ مومى هغوئ | ماسوادهغې نه

عذاب راوستې ووخو دوئ له داسې نيټه مقرر كړې ده چې دهغې نه په هيڅ ځائې كښې

مَوْئِلًا۝　وَتِلْكَ الْقُرٰٓى　اَهْلَكْنٰهُمْ　لَمَّا　ظَلَمُوْا

لار دتيښتې | او دغه | كلى | هلاك كړل دوئ مونږه هغوئ | هر كله چې | ظلم اوكړو هغوئ

پناه موندلې نشى او دغه كلى هركله چې ظلم اوكړو مونږتباه كړل

وَجَعَلْنَا　لِمَهْلِكِهِمْ　مَّوْعِدًا۝ع

او مقرر كړى وه مونږ | دپاره دهلاكت دهغوئ | يوه وعده |

اومونږ ددوئ دتباهۍ دپاره يووخت مقرر كړې وو

## آسان ترجمه قرآن

اوهغه وخت ياد كړه چه كله مونږ ملائكو ته وئيلې وو چه: آدم عليه السلام ته سجده اوكړئ. پس ټولو سجده اوكړه سوا د ابليس نه هغه د پيريانو نه وو، پس هغه د خپل رب د حكم نه نافرماني اوكړه. آيا بيا هم تاسو هغه او د هغه اولاد زما نه سوا دوستان جوړوئ، حال دا چه هغوى ټول ستاسو دشمنان دى؟ (د الله پاک) څومره بد متبادل دې چه ظالمانو ته ملاؤ شوې دې ما هغوى نه د آسمانونو او د زمكې د پيدائش په وخت حاضر كړې وو او نه مې پخپله دهغوى د تخليق په وخت او زه داسې نه يم چه گمراه كونكى خپل مددگاران جوړ كړم. اوهغه ورځ ياده ساتئ چه كله الله پاک (دې مشركانو ته) اووائى چه لږ راوبلئ هغه شيزونه كوم چه تاسو زما په خدائۍ كښې شريک كړې ووا پس هغوى به آوازونه اوكړى، خو هغوى به دوى ته هيڅ جواب ورنكړى، اومونږبه دهغوى ترمينځه يو هلاكونكې پرده حائل كړو. او چه مجرمان خلق اور اووينى نو پوهه به شى چه هم هغې ته به غورځيږى، او دهغې نه دبچ كيدلو به هيڅ لاره بيا نه مومى. او مونږ ددې خلقو د فائدې دپاره په دې قرآن كريم كښې هر قسم مضامين بيان كړى دى، او انسان دې چه په جهگړه كولو كښې د هر څه نه زيات شوئ دې اوكله چه خلقو ته هدايت راغلو نو اوس

هغوی د ایمان راوړلو او د خپل رب نه د معافۍ غوښتلو نه د دې (مطالبې) نه سوا بل هیڅ څیز منع نه کړل چه هغوی ته هم د مخکښې خلقو په شان واقعات پیښې شي، یا عذاب د هغوی بالکل مخې ته اودرېږي او مونږ پیغمبران صرف د دې دپاره لیږو چه هغوئ (مومنانو ته) زیرې ورکړي، او (کافرانو په عذاب سره) خبردار کړي او کومو خلقو چه کفر خپل کړې دې، هغوی په باطل باندې جهګړه کوی، چه د هغې په ذریعه حق مغلوب کړي، اوهغوی زما آیتونه اوهغوی ته چه کوم خبردارې ورکړې شوې دې، هغې نه ټوقې جوړې کړې دی. او د هغه سړی نه څوک زیات ظالم دې چاته چه د هغه د رب د آیتونو په حوالې سره نصیحت اوکړې شی، نو هغه د هغې نه مخ واړوی، او دخپل لاس عملونه هیر کړی؟ حقیقت دا دې چه مونږ (ددې خلقو دعملونو د وجې نه) دهغوی په زړونو باندې پرده اچولې ده چه دهغې په وجه باندې هغوی په دې (قرآن) باندې نه پوهیږی، او دهغوی په غوږونو کښې مو درونډ والې اچولې دې. اوکه ته هغوی د هدایت طرف ته راوبلې نو بیا به هم هغوی نیغې لارې طرف ته هر ګز رانشی. او ستا رب ډیر بخښنه کونکې دې، او ډیر رحمت والا دې، کوم عملونه چه هغوی کړې دی که هغه د هغې د وجې نه د هغوی په نیولو راغلو نو هغوی ته به زر عذاب ورکړی، خو د هغوی دپاره یو وخت مقرر دې، چه د هغې نه د بچ کیدلو دپاره به هغوی ته هیڅ پناه ملاؤ نه شی. دا ټول کلی (ستاسو مخکښې) دی، چه کله هغوی ظلم اختیار کړو نو مونږ هغوی هلاک کړل، او د هغوی د هلاکت دپاره (هم) مونږ یو وخت مقرر کړې وو.

## خلاصه تفسیر

﴿وَاِذْقُلْنَا لِلْمَلٰٓىِٕكَةِ﴾ [ او] هغه وخت هم دیادولو دې [ کله چه مونږ ملائکوته حکم ] وکړو چه ﴿اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ﴾ ادم ﷺ [ته سجده وکړئ ﴿فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِيْسَ ؕ﴾ ټولوسجده وکړه سوا دابلیس نه ﴿كَانَ مِنَ الْجِنِّ﴾ چه دې دپیریانو نه وو ﴿فَفَسَقَ عَنْ اَمْرِ رَبِّهٖ ؕ﴾ دهٔ دخپل رب دحکم نه تجاوز وکړو] ځکه چه غالب عنصر دپیریانو دکوم نه چه پیداشوی دی اور دې او د اور خاصیت دادې چه پابندی نه خوښوی مګر ددې پیدائشی خاصیت په وجه به ابلیس نه شی ګنړلې ځکه چه ددې پیدائشی خاصیت تقاضه دخدایٔ په ویره سره مغلوبه کیدې شوه ﴿اَفَتَتَّخِذُوْنَهٗ وَذُرِّيَّتَهٗٓ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِيْ﴾ [ نو ایا بیا هم تاسو دهٔ لره او ددهٔ اولاد ] او تابعدارانو [ لره دوستان جوړوئ او ما پریږدئ] یعنی زما اطاعت پریږدئ او دهغه په وینا چلیږئی حالانکه ﴿وَهُمْ لَكُمْ عَدُوٌّ ؕ بِئْسَ لِلظّٰلِمِيْنَ بَدَلًا﴾ هغه یعنی ابلیس او دهغه جماعت ستاسو دښمن دې چې هر وخت تاسوته دضرر رسولو په فکر کښې وی [دا] ابلیس او ددهٔ ډلې دوستی [ دظالمانو دپاره ډیره ناکاره بدله ده ] بدله ئې ورته ځکه وئیله چه دوست جوړول خو مالره پکار وو لیکن دوی زما په بدله کښې شیطان لره دوست جوړکړو یوازې دوست هم نه بلکه په خدایئ کښې شریك هم ومنلو حال دادې چه ﴿مَآ اَشْهَدْتُّهُمْ خَلْقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ ما هغوئ لره نه دآسمان او زمکې دپیدا کولو په وخت دخپل مدد یا مشورې دپاره رابللی وو ﴿وَلَا خَلْقَ اَنْفُسِهِمْ ۪﴾ [اونه په خپله ددوی دپیداکولو په وخت کښې] راوبللو یعنی دیوبل دپیداکولو په وخت کښې مې بل لره نه دې رابللې ﴿وَمَا كُنْتُ مُتَّخِذَ الْمُضِلِّيْنَ عَضُدًا﴾ [او زهٔ داسې ] عاجز [ نه وم چه ] چالره بیا خاصکر [ګمراه کوونکو لره ] یعنی شیطانانو لره [ خپل ] لاس او [ متې جوړوم ] یعنی دمدد ضرورت خو هغه ته وی کوم چه په خپله قادر نه وی [ او ] تاسو دلته دهٔ لره په خدایئ کښې شریك ګنړئ په قیامت کښې به

حقیقت معلوم شی ﴿وَيَوْمَ﴾ [هغه ورځ یاده کړئ ﴿يَقُولُ نَادُوا شُرَكَآءِيَ الَّذِينَ زَعَمْتُمْ﴾ چه حق تعالی]
مشرکانو ته [ وفرمائی چه کومولره تاسو ماسره شریك جوړول هغه ] دخپل امداد دپاره [
راوبلئ ﴿فَدَعَوْهُمْ﴾ نو دوی به ئې راوبلی ﴿فَلَمْ يَسْتَجِيبُوا لَهُمْ﴾ نو هغوی به دوی لره جواب ورنه کړی
﴿وَجَعَلْنَا بَيْنَهُم مَّوْبِقًا﴾ او مونږ به ددوی په مینځ کښې یوه پرده وکړو ] چه په دې سره به دوی
بلکل مایوسه شی ورنه بغیر دپردې کولو نه هم ددوی مدد کول ممکن نه وو ﴿وَرَأَى الْمُجْرِمُونَ النَّارَ
فَظَنُّوا أَنَّهُم مُّوَاقِعُوهَا﴾ [اومجرمان به دوزخ لره ووینی بیابه یقین وکړی چه دوی په دې کښې
پریوتونکی دی ﴿وَلَمْ يَجِدُوا عَنْهَا مَصْرِفًا﴾ او ددې نه دبچ کیدو هیڅ لار به بیا نه مومی ﴿وَلَقَدْ صَرَّفْنَا
فِي هَٰذَا الْقُرْآنِ لِلنَّاسِ مِن كُلِّ مَثَلٍ﴾ او مونږه په دې قرآن کښې دخلقو] دهدایت [دپاره هرقسم
عمده مضامین په قسم قسم سره بیان کړی دی ﴿وَكَانَ الْإِنسَانُ أَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلًا﴾ او ] په دې دپاسه
هم منکران ] بنیادم په جګړه کښې دټولو نه زیات دی ] په پیریانو اوحیواناتو کښې اګرچه
شعور او ادراك شته مګر هغوی داسې جنګ جګړه نه شی کولې ﴿وَمَا مَنَعَ النَّاسَ أَن يُؤْمِنُوا إِذْ
جَاءَهُمُ الْهُدَىٰ﴾ [ اوخلقو ته پس ددې چه هدایت ورسیدو ] چه تقاضای داوه چه ایمان ئې راوړې
وې [دایمان راوړو نه او دخپل پروردګارنه ] په کفر او نافرمانئ ﴿وَيَسْتَغْفِرُوا رَبَّهُمْ﴾ [دبخښنې
غوښتو نه بل هیڅ کار مانع نه دې ﴿إِلَّا أَن تَأْتِيَهُمْ سُنَّةُ الْأَوَّلِينَ﴾ بغیر ددې نه چه دوی ددې انتظار
کوی چه د وړاندې خلقو په شان معامله ] دهلاکت او عذاب [دوی ته هم راپیښه شی ﴿أَوْ يَأْتِيَهُمُ
الْعَذَابُ قُبُلًا﴾ یا داچه عذاب دوی ته مخامخ راشی ودریږی ] مطلب دادې چه ددې حالاتو نه
دامعلومیږی چه دوی دعذاب انتظار کوی ورنه نور ټول حجتونه خو تمام شوی دی ﴿وَمَا نُرْسِلُ
الْمُرْسَلِينَ إِلَّا مُبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ﴾ [ اورسولانو لره خومونږ صرف خو شخبری ورکوونکی او
اوویرونکی رالیږو ] چه ددې دپاره دمعجزاتو وغیره په ذریعه کافی دلیلونه ددوی سره کولې
شی ددې نه سوا نور فرمائشونه ددوی نه غوښتل جهالت دې ﴿وَيُجَادِلُ الَّذِينَ كَفَرُوا بِالْبَاطِلِ﴾ [
اوکافران خلق ناحقه خبرې نیسی جګړې جوړوی ﴿لِيُدْحِضُوا بِهِ الْحَقَّ﴾ چه ددې په ذریعه حقه خبره
ورانه کړی ﴿وَاتَّخَذُوا آيَاتِي﴾ او دوی زما ایتونو لره ﴿وَمَا أُنذِرُوا هُزُوًا﴾ او دکوم ] عذاب [ نه چه دوی
ویرولې شوی وو خندائې ترې جوړه کړې ده ﴿وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن ذُكِّرَ بِآيَاتِ رَبِّهِ﴾ او دهغه نه به زیات
ظالم څوك وی کوم ته چه ددهٔ د رب په ایتونو سره نصیحت وکړې شی ﴿فَأَعْرَضَ عَنْهَا وَنَسِيَ مَا
قَدَّمَتْ يَدَاهُ﴾ بیا هغه ددې نه مخ واړوی او څه چه ئې خپلو لاسونو ] ګناهونه [کړی وی نتیجه د[
هغوی لره هیر کړی ﴿إِنَّا جَعَلْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَن يَفْقَهُوهُ﴾ مونږ په دې ] حقه خبره [ دپوهیدونه ددوی
په زړونو پردې غورزولې دی ] او ددې داوریدونه ﴿وَفِي آذَانِهِمْ وَقْرًا﴾ [ددوی په غوږونو کښې
درونډ والې دې ] په دې وجه ددوی حال دادې چه ﴿وَإِن تَدْعُهُمْ إِلَى الْهُدَىٰ﴾ [ که ته دوی لره
نیغې لارې ته راوبلې ﴿فَلَن يَهْتَدُوا إِذًا أَبَدًا﴾ نو هر ګز هم په لاره نه راځی ] ځکه چه په غوږونو
سره دحق دعوت نه اوری په زړونو باندې پرې نه پوهیږی په دې وجه ته غم مه کوه [او]
دعذاب د وروستو کیدو په وجه سره کوم چه ددوی داخیال راغلې دې چه عذاب دسره راځی نه
نو ددې وجه داده چه ﴿وَرَبُّكَ الْغَفُورُ ذُو الرَّحْمَةِ﴾ [ستا رب لوئې مغفرت کوونکې لوئې رحمت والادې]
په دې وجه ئې مهلت ورکړې دې چه که اوس هم دوی پوهه شی او ایمان راوړی نو ددوی مغفرت به
وشی ورنه ددوی عملونه خو داسې دی چه ﴿لَوْ يُؤَاخِذُهُم بِمَا كَسَبُوا لَعَجَّلَ لَهُمُ الْعَذَابَ﴾ [که ددوی

دعملونو په وجه ددوی نیول وکړی نو فورا به عذاب واقع کړی] مگر داسې نه کوی ﴿بَلْ لَّهُمْ مَّوْعِدٌ﴾ [ددوی د] عذاب د [پاره یو معین وخت] مقرر شوی [دې] یعنی دقیامت ورځ [چه دهغې نه دې خوا] یعنی اول ﴿لَّنْ يَّجِدُوْا مِنْ دُوْنِهٖ مَوْىِٕلًا﴾ [بلکه هیڅ دپناه ځایٔ نه شی موندې] یعنی چه ددغه وخت دراتلو نه وړاندې چرته دپناه ځایٔ ته لاړ شی او محفوظ شی تړې [او] داسې کارد وړاندې کفارو سره شوې دې چنانچه ﴿وَتِلْكَ الْقُرٰٓى﴾ دا [کلی] دکومو چه قصې مشهورې او ذکر دی ﴿اَهْلَكْنٰهُمْ لَمَّا ظَلَمُوْا﴾ [هرکله چه دوی] یعنی ددوی اوسیدونکو [شرارت وکړو نو مونږ دوی لره هلاك کړل ﴿وَجَعَلْنَا لِمَهْلِكِهِمْ مَّوْعِدًا﴾ اومونږ ددوی دهلاکیدو دپاره وخت معین کړې وو] دغه شان ددې موجوده خلقو دپاره هم وخت معین دې.

## معارف او مسائل

﴿ذُرِّيَّتَهٗ﴾ ددې لفظ څخه داسې معلومیږی چې دابلیس اولاد او ذریت هم شته، او ځینې حضراتو فرمائیلی دی چې دلته د ذریت نه مراد مدد کوونکی دی، دا ضروری نه ده چې دشیطان نسبی اولاد هم وی، مگر د یو صحیح حدیث پاك تر مخه چې حمیدی په کتاب الجمع بین الصحیحین کنبې د سلمان فارسی رضی الله عنه نه روایت کړې دې دغې حدیث پاك کنبې راغلی دی چې نبی اکرم ﷺ هغوئ رضی الله عنه ته دا نصیحت اوکړو چې تاسو په هغې خلقو کنبې مه شاملیږئ چې تولو نه ړومبی بازار ته رازی یا د تولو نه آخر کنبې بازار نه راوزی ځکه چې بازار داسې یو ځائې دې چې شیطان هلته هګئ او بچی اچولې دی. [1]

دې نه معلومیږی چې د شیطان ذریت دهغه دهګو نه خوریږی. قرطبی رحمه الله ددې روایت نه پس نقل کړی دی چې د شیطان لښکر مدد کوونکی کیدل خو د قطعی دلیلونو نه ثابت دی، یو صحیح حدیث وړاندې تیر شوې دې چې هغې نه دشیطان د نسبی اولاد کیدل هم ثابتیږی. [2] [والله اعلم].

﴿وَكَانَ الْاِنْسَانُ اَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلًا﴾ [په تول مخلوق کنبې د تولو نه زیات جګړمار انسان واقع شوې دې] په دې باندې یو حدیث پاك گواه دې. انس رضی الله عنه نه روایت دې چې نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چې د قیامت په ورځ به یو کس د کافرانو نه پیش کړې شی. هغه نه به تپوس اوشی چې مونږ کوم پیغمبران ﷺ درلیږلی وو د هغې باره کنبې ستا څه عمل پاتې شوې وو؟ هغه به وائی چې ائې زما پروردگاره ما خو په تا باندې هم ایمان راوړې وو او ستا په رسول باندې هم او په عمل کنبې مې دهغه تابعداری اوکړه. الله ﷻ به اوفرمائی چې داده عمل نامه دې مخې ته پرته ده، په دې کنبې خو د دې خبرو نه یوه خبره نشته دې. دغه کس به اووائی چې زه خو دا عمل نامه نه منم. الله ﷻ به اوفرمائی چې زمونږ فرښتو ستا څارنه کړې ده، هغوئ ستا په خلاف گواهی ورکوی. هغه به اووائی چې زه خو دا گواهی هم نه منم، زه خو دوئ نه پیژنم، نه ما دوئ د خپل عمل کولو دپاره په وخت لیدلی دی. الله ﷻ به ورته اوفرمائی چې: دادې لوح محفوظ دې مخې ته دې په دې کنبې هم ستا دغه حال دې. هغه به وائی چې ائې زما پروردگاره تا راته د ظلم نه پناه راکړې ده اوکه نه؟ الله ﷻ به ورته اوفرمائی

---

[1] الجمع بین الصحیحین رقم الحدیث:[۲۸۴۰]

[2] تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة[ ج:۱۰،ص:۴۲۱]

چې بیشکه د ظلم نه ته زمونږ په پناه کښې یئ. نو اوس به هغه وائی چې ایې پروردګاره زه داسې غیبي ګواهي څنګه اومنم چې لیدلې کتلې مې نه وی .زه خو داسې ګواهي منلې شم چې زما دځان د طرفنه وی. دغه وخت به د هغه په خوله مهر اولګولې شي ، اودهغه لاسونه ، پښې ، به د هغه په کفر او شرك باندې ګواهي ورکوی ، دې نه پس به هغه آزاد کړې شي. او په جهنم کښې به ورغوزار کړې شي. [ددې حدیث پاك مضمون په صحیح مسلم کښې د انس رضی الله عنه نه منقول دې] [قرطبي]([1])

وَإِذْ　قَالَ　مُوسَىٰ

| او کله چې | اوونیل | موسی

اوهرکله چې موسی علیه السلام خپل

لِفَتَاهُ　لَا أَبْرَحُ　حَتَّىٰ　أَبْلُغَ　مَجْمَعَ

خوان خادم خپل ته | نه واپس کیږم زه | تر هغې | چې اورسم زه | ځاني دجمع کیدو

شاګرد ته اووئیل چې زه به روان یم تردې چې زه دوبندئ یعنی دریابونو ته

الْبَحْرَيْنِ　أَوْ أَمْضِيَ　حُقُبًا ۝　فَلَمَّا　بَلَغَا　مَجْمَعَ

ددوو دریابو ته | یابه ځم زه ° | ډیره موده | نو هرکله چې | اورسیدل دواړه | ځاني دجمع کیدو

اورسم ګنی په کلونو کلونو به دغسې مزل کوم نوهرکله چې دواړه تنه هغې دوبندئی ته اورسیدل

بَيْنِهِمَا　نَسِيَا　حُوتَهُمَا　فَاتَّخَذَ　سَبِيلَهُ　فِي الْبَحْرِ

ددواړو دریابونوته | هیر کړو دواړو | مهې خپل | نو اونیوله هغه مهی | لاره خپله | په دریاب کښې

نو خپل مهې ترې هیر شو نو هغه په دریاب کښې(ځان له) لار اونیوله چې یو

سَرَبًا ۝　فَلَمَّا　جَاوَزَا　قَالَ　لِفَتَاهُ　آتِنَا

پشان دسرنګ | نوهرکله چې|وړاندلاړل دواړه|نواووئیل موسی|خلمی خادم خپل ته|راوړه مونږ ته

سر نګ ئې جوړولو نوهرکله چې دواړه وړاندې تیرشول نو موسی علیه السلام خپل شاګرد ته اووئیل

غَدَاءَنَا　لَقَدْ لَقِينَا　مِنْ سَفَرِنَا　هَٰذَا نَصَبًا ۝

دصباخوراك زمونږه | بیشکه پیښه شوه مونږ ته | ددې سفرزمونږ نه | دا ستومانی |

چې ناشته راوړه مونږ خو په دې ننني مزل باندې ډیر ستړی شو

قَالَ　أَرَأَيْتَ　إِذْ　أَوَيْنَا　إِلَى الصَّخْرَةِ　فَإِنِّي نَسِيتُ

خادم اووئیل| آیااولیدل تا | کله چې| پناه واغسته مونږه| هغه ګټ ته | نوبیشکه هیرشوزما|

هغه ورته اووئیل چې آیا تا اونه لیدل چې هرکله مونږ دهغه ګټ خواته ناست وو نو زما نه

[1] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱ ص:۵] وصحيح مسلم كتاب الزهد، باب فى بيان الأعضاء منطقة شاهدة يوم القيامة [ج:۲ص:۴۰۹]

الْحُوتَ وَمَآ أَنْسٰنِيْهُ إِلَّا الشَّيْطٰنُ أَنْ أَذْكُرَهٗ وَاتَّخَذَ

هغه مهي |او هیر نه کړو زمانه هغه | مګر شیطان | چي یادکړم هغه تاته | اواونیوله هغه مهي

کب [هم هلته] هیر شو اوزمانه [تاته] دهغې ذکر کول شیطان هیر کړل او کب په

سَبِيْلَهٗ فِي الْبَحْرِ عَجَبًا ﴿٦٣﴾ قَالَ ذٰلِكَ مَا كُنَّا

لاره خپله| په دریاب کښې| په عجیبه طریقې سره | اووئیل موسی| دغه هغه ځاي وو | چي وو مونږ

دریاب کښې ځان له په عجیبه شان لار جوړوله موسی ؑ اووئیل چي هم دا خو هغه ځاي

نَبْغِ فَارْتَدَّا عَلٰٓى اٰثَارِهِمَا قَصَصًا ﴿٦٤﴾

چي طلب کوو مونږه| نو واپس راواوګرزیدل دواړه | په قدمونو خپلو |تلاش کونکی ښاپونو دخپلو لره

ووچي مونږ لټولو نودواړه په خپلو قدمونو پسي اړلو روان شو

فَوَجَدَا عَبْدًا مِّنْ عِبَادِنَآ اٰتَيْنٰهُ رَحْمَةً مِّنْ عِنْدِنَا

نو بیا موندو دواړو |یوبنده | دبندګانوزمونږنه | چي ورکړي وو مونږهغه ته | رحمت | دطرفه زمونږنه

نوهغوئ زمونږ په بندیانو کښي یو بنده بیاموندو چې مونږ ورباندې خپل فضل کړي وو اودخپل

وَعَلَّمْنٰهُ مِنْ لَّدُنَّا عِلْمًا ﴿٦٥﴾ قَالَ لَهٗ مُوْسٰى

اوښودلي وو مونږهغه ته| دطرفه زمونږ نه | [خاص] علم | اووئیل | هغه ته | موسی |

طرفنه مو ورته یو خاص علم خودلي وو موسی ؑ هغه ته اووئیل

هَلْ أَتَّبِعُكَ عَلٰٓى أَنْ تُعَلِّمَنِ مِمَّا عُلِّمْتَ

آیا زه تابع شم ستا | په دې شرط چي ته تعلیم راکړي ماته | دهغې نه | چي ښودلي شوي ده تاته

چي آیا زه تاسره لاړشم په دې شرط چي ته ماته دښیګړې هغه خبرې اوښائې کوم چي تاته خودلي شوي دي

رُشْدًا ﴿٦٦﴾ قَالَ إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا ﴿٦٧﴾

کومه پوهه |اووئیل هغه بنده |بیشکه ته |هرګزطاقت نشی لرلي|زماسره | دصبرکولو|

[خضر ؑ] اووئیل چي ته ماسره په پاتي کیدو به صبر اونه کړي شي

وَكَيْفَ تَصْبِرُ عَلٰى مَا لَمْ تُحِطْ بِهٖ خُبْرًا ﴿٦٨﴾ قَالَ

اوڅرنګي| به صبراوکړي ته| په هغه کارباند| چي احاطه نه وی ستا| په هغې باند| دخبر| اووئیل

اودکومي خبرې چي تاته خبر نشته نو ته په هغې څنګه صبر کولې شي موسی ؑ اووئیل

سَتَجِدُنِيْٓ إِنْ شَآءَ اللّٰهُ صَابِرًا وَّلَآ أَعْصِيْ لَكَ

ته به بیامومې مالره | که اوغواړی الله | صبرکونکي| اونه به کوم نافرمانی زه| ستا

که الله ﷻ اوغواړی نو ته ماصابره بیاموندي شې او څه به هیڅ کار ستا د مرضئ نه خلاف نه کوم

أَمْرًا ﴿٦٩﴾ قَالَ فَإِنِ اتَّبَعْتَنِيْ فَلَا تَسْئَلْنِيْ عَنْ شَيْءٍ

په هیڅ کارکښې| اووئیل بنده| نوکه ته پیروی کوي زما| نونه به کوي تپوس زمانه| په باره دڅه څیزکښې

[خضر ؑ] اووئیل چي ښه که ته ماسره پاتي کیدل غواړي نوځما نه د هیڅ څیز په حقله تپوس مه کوه

| حَتّٰٓى | أُحْدِثَ | لَكَ | مِنْهُ ذِكْرًا ۝ |
|---|---|---|---|
| ترهغې پورې | چې زه بیان کړم | تاته | په باره دهغې کښې ذکر |
| ترڅو چې څه په خپله د هغې ذکر تاته اونه کړم | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او(د هغه وخت ذکر واوره) چه کله موسٰی علیه السلام خپل ځوان (شاګرد) ته وئیلې وو چه: زه به تر هغه وخته پورې خپل سفر جاري ساتم ترڅو پورې چه د دوؤ دریابونو د یو ځائې کیدلو مقام ته اونه رسم، ګینې په کلونو به روان یم.پس چه کله هغوی د دوه دریابونو د یو ځائې کیدو ځائې ته اورسیدل نو خپل مهې ترې نه هیر شو، او هغه په سمندر کښې د یو سرنګ په شان لاره جوړه کړه .بیا چه کله دواړه وړاندې لاړل، نو موسٰی علیه السلام خپل ځوان ته اووئیل چه: زمونږ صبائارې راوړه، رشتیا خبره دا ده چه مونږ ته په دې سفر کښې ډیر ستړې والې راورسیدلو. هغه اووئیل چه: خبر خو نهٔ ئې (عجیبه واقعه اوشوه) چه کله مونږ هغه ګټ سره دَمه کوله نو ما نه د مَهی (تاسو ته ذکر کول) هیر شو. او د شیطان نه سوا هیڅوک نشته چه ما نه ئې د هغه تذکره هیره کړې وی.او (هغه مهی) خو ډیر په عجیبه طریقه باندې په دریاب کښې خپله لاره نیولې وه. موسٰی علیه السلام اوفرمائیل: هم د دې خبرې خو مونږ په لټون کښې وو . پس دواړه د خپلو قدمونو په نخښو باندې راتلو سره واپس شو.بیا هغوی ته زمونږ د بندګانو نه یو بنده ملاؤ شو چاته چه مونږ خپل خصوصی رحمت ورکړې وو، او خاص د خپل طرف نه مو ورته یو علم ورکړې وو موسٰی علیه السلام هغه ته اوفرمائیل: آیا زه تاسو سره په دې غرض پاتې کیدې شم چه تاته چه کوم د خیر علم درکړې شوې دې د هغې څه حصه ماته هم اوښایئ؟ هغه اوفرمائیل: زما یقین دې چه ته به ما سره په اوسیدو باندې صبر اونکړې شې. او د کومو خبرو چه تا ته پوره خبرنه وی،په هغې باندې به تاته صبر څنګه اوکړې شی؟ موسٰی علیه السلام اوفرمائیل: ان شاء الله تاته به ما صابر بیا مومې، او زه به ستا د هیڅ حکم خلاف ورزی نه کوم. هغه اوفرمائیل: که ما سره ځې نو ترڅو چه درته ما د څه خبرې تذکره نه وی شروع کړې، ته به زمانه د هیڅ څیز په باره کښې تپوس نه کوې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِفَتٰىهُ﴾ [او هغه وخت یاد کړه کله چه موسی ﷺ [خپل خادم ته] چه نوم ئې یوشع وو رواه البخاری [وفرمائیل ﴿لَآ اَبْرَحُ﴾ چه زهٔ ] په دې سفر کښې [به په مخه ځم ﴿حَتّٰٓى اَبْلُغَ مَجْمَعَ الْبَحْرَيْنِ﴾ تردې چه هغه موقعې ته اورسم کوم ځائ چه دوه دریابونه دیو بل سره ملاؤ دی ﴿اَوْ اَمْضِيَ حُقُبًا﴾ اویا به هم دغسې تر ډیرې زمانې پورې روان یم ] او وجه ددې سفر داشوې وه چه یو ځل حضرت موسی ﷺ بنی اسرائیلو ته وعظ کولو نو چاترې تپوس وکړو چه دوخت په بنیادمو کښې دټولو نه لوې عالم کوم سړې دې ؟ ده وفرمائیل زهٔ مطلب ئې دا وو چه په هغو علمونو کښې کوم چه الله تعالی ته نزدې کوونکی دی زما برابر په کښې څوک نشته او دا فرمائیل ددوی ﷺ صحیح وو په دې وجه چه دوی نبي اولوالعزم وو ددوی هو مره داعلم نوروته نه وو لیکن په ظاهره لفظ مطلق وو په دې وجه دا الله تعالی ته منظور شوه چه دوی ﷺ ته په خبرو کولو کښې داحتیاط کولو تعلیم ورکړې شی نو ارشاد ورته وشو چه زمونږ یو بنده

په مجمع البحرين كښې ستانه زيات علم لرى مطلب داؤ چه په ځنو علمونو كښې هغه زيات دې اګر چه دغو علمونو لره دالله تعالى په نزديكت كښې دخل نه وى لكه چه ډيره زر به واضحه شى ليكن په دې بنا باندې تالره نه وو پكار چه ځان ته د اعلم وونيل غرض داچه دحضرت موسى ﷺ شوق پيداشو چه دهٔ لره اووينى نو تپوس يې وكړو چه دهٔ ته درسيدو به څه طريقه وى؟ نو ارشاد ورته وشو چه يو مړمهې دځان سره واخله سفر كوه كوم ځاى چه هغه مهې ورك شو دغه سرې به هلته وى ، دغه وخت حضرت موسى ﷺ حضرت يوشع ﷺ دځان سره كړو او داخبره يې وفرمائيله ﴿فَلَمَّا بَلَغَا مَجْمَعَ بَيْنِهِمَا ﴾[پس هركله چه ] په تلو تلو كښې [ ددوه دريابونو د جمع كيدو ځاى ته ورسيدل ] هلته ديوې ګټې خوا ته كښيناستل اودهٔ شول او دغه مهې د الله تعالى په حكم سره ژوندې لاړو په درياب باندې ورننوتلو حضرت يوشع ﷺ چه بيدار شو نو مهې يې بيانه موندو اراده يې وكړه چه حضرت موسى ﷺ ويښ شى نو دهٔ ته به يې ذكر اوكړم مګر ددهٔ بلكل ياد نه شو شائد داهل وعيال او دوطن دياديدو خيالات به پرې زور شوى وو ځكه يې ياد نه شو ګنى داسې عجيبه خبره هيريدل خو ډير كم وى ليكن كوم سړې چه هر وخت معجزې وينى دهغه د ذهن نه دادنى درجې خبره وتل دځه خيال په غلبه سره عجيبه نه ده او دحضرت موسى ﷺ نه يې تپوس كولو خيال ونه شو په دې شان سره ﴿نَسِيَا حُوتَهُمَا﴾ [دې خپل مهى لره دواړو هيركړو اومهى ] ددې نه وړاندې ژوندې شو ﴿فَاتَّخَذَ سَبِيلَهُ فِي الْبَحْرِ سَرَبًا﴾ [ درياب كښې يې خپله لار ونيوه لاړو﴿فَلَمَّا جَاوَزَا﴾ بيا چه كله دواړه ] ددغه ځاى نه [ وړاندې لاړل ] اولرې ووتل﴿قَالَ لِفَتَاهُ﴾ [نو موسى ] ﷺ [خپل خادم ته وفرمائيل ﴿آتِنَا غَدَاءَنَا﴾ چه زما ناشته راوړه ﴿لَقَدْ لَقِينَا مِنْ سَفَرِنَا هَذَا نَصَبًا﴾ مونږ ته خو په دې سفر] يعنى په دې ننني مزل [ لوې تكليف ورسيدو] او ددې نه په وړاند مزلو نو خونه وو ستړې شوى چه ددې په ظاهره داوجه وه چه دوى دمقصودى ځاى نه وړاندې تلى وو ﴿قَالَ أَرَأَيْتَ﴾ [خادم ونيل چه واخله وګوره ] عجيبه خبره وشوه ﴿إِذْ أَوَيْنَا إِلَى الصَّخْرَةِ﴾ [ هركله چه مونږ دهغې ګټې خواته ناست وو] او اودهٔ شوى وو هغه وخت دهغې مهى خو يوه عجيبه قصه شوې ده او زما تاته د ذكر كولو اراده وشوه ليكن زهٔ په څه بل خيال كښې شوم ﴿فَإِنِّي نَسِيتُ الْحُوتَ﴾ [ پس مادهغې مهى ] ذكر كول [هير كړل ﴿وَمَا أَنْسَانِيهُ إِلَّا الشَّيْطَانُ﴾ اوشيطان زمانه هير كړل ﴿أَنْ أَذْكُرَهُ﴾ چه مادهغې ذكر كړې وې او ] هغه قصه داسې وشوه چه [ دغه مهى ] دژوندى كيدونه پس ﴿وَاتَّخَذَ سَبِيلَهُ فِي الْبَحْرِ عَجَبًا﴾ [په درياب كښې په عجيبه طور سره خپله لاره اونيوه ] يو خو په عجيبه طور ددهٔ په خپله ژوندى كيدل دى دويم په عجيبه طور داچه هغه مهى په درياب كښې به كوم ځاى چه تير شوې وو هلته اوبه په طوردخرق عادت داسې سرنګ په طور شوې وې غالبا بيا به ملاؤ شوى وى [موسى ] ﷺ چه داقصه واؤ ريده ﴿قَالَ ذَلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِ﴾ [وفرمائيل چه هم دا هغه موقع ده دكومې چه مونږ كوشش كولو] هلته واپس كيدل پكار دى ﴿فَارْتَدَّا عَلَى آثَارِهِمَا قَصَصًا﴾ [پس دواړه دخپلو پښو دنښو په ليدو واپس شول ] غالبا دغه لار دسړك نه وه په دې وجه يې دپښو نښې لټولې [ پس ] هلته ورسيدل ﴿فَوَجَدَا عَبْدًا مِنْ عِبَادِنَا﴾ [ دوى زمونږ په بندګانو كښې يو بنده ] يعنى حضرت خضر ﷺ [لره وموندو ﴿آتَيْنَاهُ رَحْمَةً مِنْ عِنْدِنَا﴾كوم ته چه مونږ خاص رحمت [ يعنى مقبوليت وركړې وو او دمقبوليت په معنى كښې د ولايت او نبوت دواړو احتمال دې ﴿وَعَلَّمْنَاهُ مِنْ لَدُنَّا عِلْمًا﴾ [ اومونږ دهٔ ته دخپل طرف نه ] يعنى بې واسطې دكسب كولو داسبابونه

[خاص طوریو علم ښودلې وو ] مراد ددې نه علم د اسرار کونیه دې لکه چه د راتلونکو واقعاتو نه به معلومه شي او ددې علم دالله تعالى په نزديکت حاصلولو کښې هيڅ دخل نشته کوم علم لره چه دالله تعالى سره نزديکت کښې دخل دې هغه علم داسرار الهيه دې په کوم کښې چه موسى ﷺ لوئ وو غرض [موسى] ﷺ ده ته سلام وکړو ﴿قَالَ لَهُ مُوسَىٰ هَلْ أَتَّبِعُكَ﴾ اوده ته ئې [وفرمائيل چه زه تاسره پاتې کيدل غواړم ] يعنى ماته دخان سره دپاتې کيدو اجازت راکړه ﴿عَلَىٰ أَن تُعَلِّمَنِ مِمَّا عُلِّمْتَ رُشْدًا﴾ [ په دې شرط چه کوم مفيد علم تاته ] الله تعالى دطرف نه [ښودلې شوې دې په دې کښې ته ماته هم وښايه ﴿قَالَ إِنَّكَ لَن تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا﴾ دغې بزرګ جواب ورکړو ته که ماسره پاتې شې ] نو زما په کارونو [به صبرونه کړې شې ] يعنى ماته به خما په کارونو زورونه راکوې اواستاذ ته چه دتعليم متعلق شاګرد تل زوروونه ورکوی نو ملکرتيا ئې ګرانه وی [ او په داسې کارونو به ] د زورنې نه﴿وَكَيْفَ تَصْبِرُ عَلَىٰ مَا لَمْ تُحِطْ بِهِ خُبْرًا﴾ [ته څنګه صبروکړې کوم چه ستا دپوهې داحاطې نه بهر دی ] يعنى په ظاهر کښې به دغه کارونه چه منشاء ئې تاته معلومه نه وی خلاف شرع به درته ښکاری او ته به په خلاف شرع کارونو څنګه چپ پاتې شې؟ ﴿قَالَ سَتَجِدُنِي إِن شَاءَ اللَّهُ صَابِرًا﴾ موسى ﷺ [ وفرمائيل چه ] داسې نه ده [ انشاء الله ته به ماصبر کوونکې ] يعنى ضابط [ بيامومې ﴿وَلَا أَعْصِي لَكَ أَمْرًا﴾او زه به په هيڅ خبره کښې ستا دحکم نه خلاف نه کوم ] يعنى که د زورنې درکولو نه مې منع کوې نو زه به تا نه منع کوم او دغه شان به په بله خبره کښې هم خلاف نه کوم ﴿قَالَ﴾ [ دې بزرګ وفرمائيل چه ] ښه ده ﴿فَإِنِ اتَّبَعْتَنِي﴾ [ که ماسره پاتې کيدل غواړې نو ] دومره خيال کوه چه ﴿فَلَا تَسْأَلْنِي عَن شَيْءٍ﴾ [ زمانه دڅه خبرې په نسبت به هيڅ تپوس نه کوې ﴿حَتَّىٰ أُحْدِثَ لَكَ مِنْهُ ذِكْرًا﴾ترڅو چه دهغې متعلق زه په خپله اول ذکر ونه کړم ] .

## معارف او مسائل

﴿وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِفَتَاهُ﴾ دلته دې واقعه کښې د موسى ﷺ څخه مراد موسى ﷺ خوئې دعمران دې ، نوفل بکالی چې بل يو موسى ته ددې واقعې نسبت کړې دې ، په صحيح بخاری کښې په هغې باندې د ابن عباس رضي الله عنه د طرفه سخت رد کړې شوې دې .([1])

د فتی معنی ځلمې دې چې دا الفاظ يو خاص بنده ته منسوب کړې شی نو د هغه خادم ترې مراد اخستې شی ولې چې خدمت دپاره خلق عموما قوی ځلمی ساتی چې هر کار کولې شی نوکر خادم ته ځلمې وئيل داسلام ښکلې ادب دې چې غلامانو ، نوکرانو ته هم په سپکو نومونو سره مه وايئ بلکه په ښه لقب سره ئې يادوئ دلته هر کله چې فتی موسى ﷺ ته منسوب دې څکه ترې مراد د موسى ﷺ خادم دې . او د حديث پاك په روايانو کښې راغلی دی چې دا خادم يوشع بن نون بن افرائيم بن يوسف ﷺ وو ، ځينې روايانو کښې راځی چې دا د موسى ﷺ خوريئ وو ، خو دې باره کښې څه واضحه فيصله نشی کيدلې ، په صحيح روايانو کښې خو ثابت دی چې نوم ئې يوشع بن نون وو د نورو حالتونو اوصفاتو ثبوت ئې نشته دې [ قرطبى ].([2])

---

[1]) تفصيل دپاره اوګورئ:صحيح البخاری کتاب العلم ،باب ما يستحب للعالم إذا سئل.... إلخ [ج:۱ص:۲۳]

[2]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۱ص:۹]

د مجمع بحرين لفظي معنى هر هغه ځائې چرته چې دوه دريابونه يو ځائې كيږي ، اودا ښكاره خبره ده چې دغسې قسم ځايونه په دنيا كښې بې شميره دي اوس دلته تري كوم ځائې مراد دې؟ هر كله چې قرآن عظيم الشان او حديث پاك كښې دا ځائې نه دې ټاكلي شوې پدې وجه د نخښو او قرينوله مخې د مفسرينو اقوال په دې كښې مختلف دي ، قتاده رحمه الله فرمائيلي دي چې دا د بحر فارس او بحيرهٔ روم د يو ځائې كيدو ځائې دې . ابن عطيه رحمه الله فرمائيلي دي چې دا آذربائيجان سره نزدې يو ځائې دې . ځينې وائي چې دا بحر اردن او بحر قلزم د يو ځائې كيدو ځائې دې . ځينې وائي چې دا په مقام طنجه كښې واقع دې . ابي بن كعب رضي الله عنه فرمائيلي دي چې دا ځائې په افريقه كښې دې . سدي رحمه الله فرمائيلي دي چې په آرمينيا كښې دې ، ځينو وئيلي دي چې دا هغه ځائې دې چرته چې بحر اندلس ، بحر محيط سره يو ځائې كيږي ، والله اعلم.

بهر حال دومره خبره ښكاره ده چې الله جل جلاله موسى عليه السلام ته دامقام خودلې وو كوم طرفته چې دهغوئ سفر واقع شوې وو [قرطبي].([1])

**د موسى عليه السلام او خضر عليه السلام واقعه** :: داواقعه په صحيح بخاري او صحيح مسلم كښې د ابي بن كعب رضي الله عنه څخه په تفصيل سره روايت كړې شوې ده . فرمائي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل : يو ځل موسى عليه السلام خپل قوم بني اسرائيلو ته خطبې وركولو دپاره ولاړ وو ،خلقو ته ترې دغه وخت تپوس اوكړو چې په دې وخت كښې په ټولو بنيادمو كښې د ټولو څخه زيات علم والا څوك دې ؟ موسى عليه السلام اوفرمائيل چې زه د ټولو څخه زيات علم والا يم .[الله جل جلاله خپل مقرب بارګاه انبياء ته خاص تربيت وركوي، يعنى دا ورته وائي چې الله جل جلاله ته معلوم دي چې په ټول مخلوق كښې اعلم څوك دې؟] موسى عليه السلام ته په دې خبره باندې زورنه وركول شوه. ځكه ورته الله جل جلاله وحي اوليږله چې زمونږ يو بنده په مجمع البحرين باندې دې ، هغوئ تاسو څخه زيات علم والا دى. موسى عليه السلام عرض اوكړو چې يا الله جل جلاله ! ماته د هغوئ نخښه اوښايه ، الله جل جلاله ورته اوفرمائيل چې يو كب پخپل شخلى [ټوكرى] كښې كيږده ، او مجمع البحرين ته په سفر روان شه. چرته چې د كب ورك شى نو هم دغه ځائې كښې زما دا بنده اوسيږي . موسى عليه السلام ځان سره په شخلى[ټوكرى] كښې يو كب كيښودو او په دغې سفر باندې روان شو. ورسره ئې خادم يوشع بن نون هم وو د سفرپه دوران كښې يو ګټې ته اورسيدل او په هغې ئې سر كيخودو او څملاستو . دغه ځائې كښې ناګاهانه هغه كب په حركت كښې راغلو او زنبيل نه په راوتو په درياب كښې ورګډ شو . او په درياب كښې دكومو ځايونو څخه چې به دغه كب تيريدو نو هغه ځاې كښې به اوبه د بهيدلو څخه بند شوې او په دغه ځائې كښې به يو سرنګ اوشو. يوشع ابن نون دا واقعه ليدله او موسى عليه السلام اوده وو. هركله چې موسى عليه السلام رابيدار شونو ددې واقعې ذكر كول ورته د يوشع ابن نون څخه هير شو. بيا ئې سفر شروع كړو او چې كله ئې يو شواروز سفر اوكړو او صبا شو نو موسى عليه السلام نوكر ته اووئيل ناشته راوړه ، په دې سفر خو ډير زيات ستړى شو.

نبي كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې دالله جل جلاله په حكم موسى عليه السلام پدې سفر كښې ددې پړاؤ څخه مخكې په بل پړاؤ نه وو ستړې شوې . تر دې چې دهغې ځائې څخه هم ورتير شو. كوم چې ورته ټاكلې شوې وو ، كله چې موسى عليه السلام ناشته اوغوښتله نو يوشع بن نون ته د كب واقعه راياده

([1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۱ص:۹]

شوه او عذر ئې پيش کړې چې زما څخه هير شوى وو. او دا راڅخه شيطان هير کړې وو. بيا ئې ورته اووئيل چې دغه کب ژوندې شو او په درياب کښې په يوه عجيبه طريقه روان شو. نو موسى ﷺ اوفرمائيل چې زمونږ اصل مقصد هم دغه ځائې دې.

بهر حال واپس په هغه لار راروان شو په کومه چې راغلي وو. هغه ګټ [کاڼړى] ته چې اورسيدل نو وې ليدل چې هغې سره يو سړې په خوا کښې ملاست وو ، سر ، پښې يې په څادر کښې انغښتې وې او ځان ئې پټ کړې وو. موسى ﷺ ورته سلام اوکړو نو خضر ﷺ اووئيل چې پدې غير آباد ځنګل کښې سلام څنګه راپيښ شو. موسى ﷺ اوفرمائيل چې زه موسى ﷺ يم. خضر ﷺ اوفرمائيل چې د بنى اسرائيلو موسى ﷺ. موسى ﷺ جواب ورکړو چې آو دبنى اسرائيلو موسى ﷺ يم. څه په دې غرض راغلې يم چې تاسو راته هغه خاص علم را اوښائې کوم چې درته الله ﷻ درکړې دې. خضر ﷺ اوفرمائيل چې تاسو به ماسره صبر اونه کړئى شئ. ائې موسى ﷺ ما سره يو علم دې چې الله ﷻ راکړې دې چې هغه ستاسو سره نشته او تاته يو علم درکړې دې چې زه ئې نه پيژنم. موسى ﷺ ورته اوفرمائيل چې انشاء الله تاسو به ما صبر کوؤنکې بيا مومئ او زه به ستاسو په هيڅ کار کښې مخالفت نه کوؤم. خضر ﷺ ورته اوفرمائيل چې که تاسو ماسره ځئې نو هيڅ باره کښې به تپوس نه کوئ تر څو چې درته څه هغه ځيز ښکاره نه کړم.

ددې خبرو اترو څخه روستو دواړه د درياب په غاړه روان شو ، ناګاهانه يوه کشتئ راغله نو دکشتئ خاوندانو سره ئې په کشتئ کښې د سوريدو خبره اوکړه. دغې خلقو خضر ﷺ اوپيژندو او دغه ټول خلق ئې بغير د معاوضې څخه په کشتئ کښې سوارۀ کړل. هر کله چې په کشتئ کښې سوارۀ شو نو خضر ﷺ پخپل تبر سره د کشتئ يوه تخته ماته کړه. موسى ﷺ صبر نشو او خضر ﷺ ته ئې اوفرمائيل چې دې خلقو مونږ په کشتئ کښې بغير د معاوضې څخه سوارۀ کړو او تاسو دې خلقو له کشتئ ماته کړه ، دا مو ډير خراب کار اوکړو.

خضر ﷺ اوفرمائيل چې ما تاسو ته د وړاندې څخه وئيلى وو چې تاسو به صبر اونه کړئى شئ ، نو په دې باندې موسى ﷺ عذر اوکړو چې زما څخه خپله وعده هيره شوې وه. پدې خبره باندې ماسره سختى مه کوئى.

نبى کريم ﷺ ددې واقعې ذکر کولو څخه روستو اوفرمائيل چې د موسى ﷺ په خضر ﷺ باندې په ړومبى ځل اعتراض کول د هيرې په وجه شوى وو. دويم ځل د شرط په وجه او دريم ځل په قصد سره. په دې دوان کښې يوه مرغئ را غله او د درياب څخه ئې په مښوکه کښې اوبه راواخستې. خضر ﷺ موسى ﷺ ته اوئيل چې زما علم او ستا علم چې دواړه رايوځائې کړې نو بيا هم د الله ﷻ د علم په مقابله کښې دومره حيثيت نه لرى څومره چې دې مرغئ په مښوکه کښې اوبه راواخستې.

بيا دکشتئ څخه کوز شو او د درياب په غاړه روان شو ، ناګاهانه خضر ﷺ يو هلك اوليدو چې د نورو هلکانو سره ئې لوبې کولې. خضر ﷺ پخپل لاس سره د هغه سر د بدن څخه جدا کړو ، په دې شان هغه هلك مړ شو. موسى ﷺ اوفرمائيل چې تاسو يو بې ګناه هلك بغير د څه جرم څخه قتل کړو. دا خو تاسو لويه ګناه اوکړه. خضر ﷺ اوفرمائيل چې ما تاسو ته ړومبې څخه وئيلى وو چې تاسو به ماسره صبر او نه کړئى شئ.

موسی ﷺ چې دا اوليدو چې دا معامله د ړومبئ څخه زياته سخته ده ، ځکه ئې اوفرمائيل چې که دې څخه روستو ما ستاسو څخه د څه خبرې تپوس اوکړو نو تاسو مې د خپل ځان څخه جدا کړئی تاسو زما د طرفه د عذر حد ته رسيدلی يئ .
بيا روان شو ، په يو کلي ورداخل شو ، هغوئ ﷺ د کلی خلقو ته سوال اوکړو چې مونږ ځان سره ميلمانه کړئی . هغوئ انکار اوکړو. هم دې کلي کښې ئې يو ديوال اوليدو چې هغه پريوتلو والا وو. نو خضر ﷺ پخپل لاس سره هغه صحيح کړو . موسی ﷺ ورته په تعجب سره اووئيل چې دې خلقو مونږ ته ميلمستيا رانکړه او تاسو ددوئ دپاره دومره غټ کار اوکړو. که تاسو غوښتلې نو داکار مو ورله په اجرت سره کولې شو.
خضر ﷺ اوفرمائيل چې : ﴿قَالَ هٰذَا فِرَاقُ بَيْنِيْ وَبَيْنِكَ﴾ [يعنی اوس شرط پوره شو په دې وجه دا زما او ستا په مينځ کښې د جدائي موقع ده]
دې څخه روستو خضر ﷺ د درې دواړو واقعات حقيقت موسی ﷺ ته بيان کړو او وې فرمائيل چې :
﴿ذٰلِكَ تَأْوِيْلُ مَا لَمْ تَسْطِعْ عَّلَيْهِ صَبْرًا﴾ [يعنی دا د هغه واقعاتو حقيقت وو د کومو په برداشت کولو چه تا صبر نشو کولې] نبی کريم ﷺ چې دا واقعه پوره بيان کړه نو وې فرمائيل چې زړه مې غواړی چې که موسی ﷺ نور هم صبر کړې وې نو ددې دواړو په څه نورې خبر هم راته معلوم شوی وی. [انتهی] .([1])
صحيح بخاری کښې او مسلم کښې دا اوږد حديث پاك په دې شان راغلی د چې موسی ﷺ هم هغه د بنی اسرائيلو مشهور پيغمبر موسی ﷺ وو ، ځلمی ملگرې ئې يوشع بن نون وو. موسی ﷺ چې د کوم بنده دپاره ليږلی شوې وو دهغه نوم خضر و ، دا ټول په صفا ټکو کښې بيان شوی دی . اوس ورپسې د قرآن کريم د آيتونو معنی او مطلب او تفسير اوکورئی :
**دسفر آداب او دپيغمبری عزم يوه نمونه** : ﴿لَآ اَبْرَحُ حَتّٰٓى اَبْلُغَ مَجْمَعَ الْبَحْرَيْنِ اَوْ اَمْضِيَ حُقُبًا﴾ دا جمله موسی ﷺ خپل ملگری يوشع بن نون سره کړې وه چې مطلب ئې خپل ملگری ته دسفر رخ او منزل مقصود خودل وو ، په دې يوسفر کښې يوه ښه طريقه دا اوخودلې شوه چې د سفر ضروری خبرو څخه دې خپل ملگرې او خادم خبرې کړې شی . لوئې متکبر خلق نه خو خپلو ملگرو ته او نه خپلو خادمانو ته خطاب کول غواړی او داشان د سفر باره کښې هم دوئ ته څه نه ښائی.
﴿حُقُبًا﴾ د حقبة جمع ده ، اهل لغت وئيلی دی چې حقبة دااتياؤ کالو مودې ته وئيلې شی ځينو دې څخه زياتو ته حقبة وئيلې دی ، خو صحيح خبره داده چې اوږدې مودې ته حقبه وئيلې شی. ددې څه حد خودل او ټاکل نه دی شوی.
موسی ﷺ د سفر خپل ملگری ته اوفرمائيل چې مجمع البحرين ته خامخا زمونږ رسيدل دی چرته چې مونږ تګ غواړو او دا راته الله ﷻ خودلې دې . او دا مې پخه اراده چې دا سفر که په هرخومره موده کښې وی خو جاری به ئې ساتم او منزل مقصود ته به ځان رسوم. د الله ﷻ په حکم باندې دعمل کولو پيغمبری شان هم دا وو.

---

[1]) صحيح البخاری کتاب العلم ،باب ما يستحب للعالم إذا سئل ای الناس اعلم [ج:۱ص:۲۳] و صحيح مسلم کتاب الفضائل، باب من فضائل الخضر عليه السلام[ج:۲ص:۲۶۹]

**موسی ﷤ د خضر ﷤ څخه زيات غوره وو د موسی ﷤ خاص تربيت اود هغوئ معجزي** : ﴿فَلَمَّا بَلَغَا مَجْمَعَ بَيْنِهِمَا نَسِيَا حُوتَهُمَا فَاتَّخَذَ سَبِيلَهُ فِي الْبَحْرِ سَرَبًا﴾ قرآن عظيم الشان او سنت په ښکاره ارشاداتو سره دا واضحه شوې ده چې موسی ﷤ د پيغمبرانو ﷺ په تولی کښې هم يو خاص ځانګړې شان لرلو. د هغوئ ﷤ يو مخصوص غوروالې داهم دې چې الله ﷻ سره د کلام کولو يو خاص شرف ورته حاصل وو. بل طرفته د خضر ﷤ په پيغمبرئ کښې هم اختلاف دې که پيغمبر او نبی او منلې شی نو رسول او مرسل بيا هم نه دې. نه ئې څه خاص کتاب شته دې او نه ئې څه امت شته دې. بهر حال موسی ﷤ د خضر ﷤ نه په ډيرو درجو غوره دې. خو الله ﷻ دخپلو مقربو بندګانو اصلاح کوی. د دوئ ﷺ د تربيت په غرض د دوئ ﷺ په معمولی کوتاهئ هم ورته سخته زورنه ورکولې شی. او ددې کمئ او کوتاهئ راسرکول ترې هم په دغې پيمانه سره کولې شی. دا ټوله قيصه ددې خاص انداز د تربيت ننداره ده. دموسی ﷤ دخلې مبارکې څخه چې دومره خبره اوختله چې زه د ټولو څخه زيات د علم خاوند يم نو دا خبره دالله ﷻ خوښه نه شوه. موسی ﷤ ته د خبردارئې ورکولو دپاره ئې ورته دداسې يو بنده معلومات ورکړل چې هغه سره دالله ﷻ ورکړې يو خاص علم وو. سره ددې چې دموسی ﷤ علم دهغوئ د علم ﷤ څخه په ډيرو درجو زيات غوره وو. بهر حال هغه علم موسی ﷤ ته حاصل نه وو، بل خوا الله ﷻ موسی ﷤ ته د علم د طلب کولو داسې يوه جذبه ورکړې وه چې چيرته بل ځائې علم هم شته کوم چې ماته حاصل وی د علم په درك لګيدو سره د طالب علمئ سفر دپاره تيار شو او د الله ﷻ نه يې ددغه بنده [خضر ﷤] پته اوپوښتله. اوس دا خبره قابل غور ده چې که الله ﷻ غوښتلې نو هم دغه ځائې کښې به د موسی ﷤ ملاقات خضر ﷤ سره کړې وو. اوکه په موسی ﷤ باندې ئې خامخا سفر کول غوښتل نو نخښنه به ئې ورته خودلې وې چې هلته په تلو کښې ورته پريشانی نه وې. داسې مبهمه پته ئې ورته اوخودله چې هغه داسې ځائې ته تاسو اورسئ چې کوم مړ ماهئ دې هغه ژوندی او ورك شی هلته به زمونږ بنده وی.

دصحيح بخاری د حديث پاك څخه دا ثابته شوه چې ځان سره په شخلی کښې د مړ کب د اينبودلو حکم ورته الله ﷻ کړې وو، دې څخه زيات څه معلوم شوی نه دی چې دا کب به ئې د خوړلو دپاره ځان سره د دالله ﷻ په حکم اخستې وو اوکه هسې ئې اخستې وو؟ بهر حال دې کښې دواړه احتمالونه شته دې، ځکه د مفسرينونه ځينو خو داسې اوفرمائيل چې دغه سور کړې کب ئې ځان سره د خوراك دپاره اخستې وو. او دغې دواړو ملګرو ترې ددغې سفر په دوران کښې څه خوړلو به هم چې داشان نيم ترې خوړلې شوې وو، بيا. هم سور کړې کب د معجزې په ډول ژوندې شو او په درياب کښې ورداخل شو.

ابن عطيه او ځينې نورو خلقو داهم بيان کړی دی چې دغه کب د معجزې په ډول په دنيا کښې پاتې هم وو او ډير ليدونکو ليدلې هم دې چې د هغه يوه ډډه وه او بله ډډه ئې نه وه کومه چې خوړلې شوې وه. ابن عطيه ﷫ هم پخپله ددې خپل ليدل بيان کړې دی [قرطبی].(۱)

ځينې مفسرينو فرمائيلی دی چې د خوراك د ناشتې څخه علاوه په يو بيل شخلی [ټوکری] کښې د کب اينبو حکم شوې وو چې دهغې په جوړ په کښې اينبودې شوې وو. په دې کښې

---

۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۱ص:۱٤]

دومرن خبره خو ثاكلې شوې ده چې كب مړ وو چې هغه ژوندې شو او په درياب كښې ورداخل شو ، داهم يوه معجزه ده .

بهر حال د خضر ﷺ پته داسې مبهمه اوثاكلې شوه چې په آسانه ئې د ځائې درك نه لګيدو. ښكاره خبره ده چې داهم د موسى ﷺ يو قسم آزميښت وو بيا د زياتې امتحان صورت دا پيدا شو چې هغې خاص موقعې ته ور اورسيدل نو كب ترې هير شو ، او دقرآن كريم په آيت مبارك كښې دغه هيره موسى ﷺ او ملګرى دواړو ته منسوب كړې شوېده . لكه فرمائي چې : ﴿نَسِيَا حُوتَهُمَا﴾ ليكن د بخارى شريف د حديث پاك څخه دامعلوميږي چې كله د ژوندى كيدو او په درياب د ورننوتو وخت راغلو نو موسى ﷺ اوده وو ، صرف يو شع بن نون دغه عجيبه واقعه اوليده. او اراده ئې اوكړه چې كله موسى ﷺ رابيدار شي نو ددې حال به ورته بيان كړم. خو كله چې موسى ﷺ رابيدار شو نو يوشع بن نون څخه دا واقعه هيره شوه. پدې بنا دواړو ته د هيرې نسبت به داسې وي لكه قرآن عظيم الشان كښې راځي چې : ﴿يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ﴾[1] [تريخ اوخوږ سمندر دواړو څخه ملغلرې او مرجان راوځي]. حالانكه دا تريخ سمندر څخه راوځي . مګر محاوراتو كښې تغليبًا داسې ليكل يوه عامه خبره ده . او دا هم كيدې شي چې ددغه ځائې څخه د سفر كولو په دوران كښې دواړو څخه كب هير شوې وي. ځكه هيره دواړو ته منسوب شوه .

بهر حال دا يو دريم آزميښت وو چې د كب په ژوندى كيدو سره دوئ ﷺ منزل مقصود بيا موندې شو خو الله ﷻ پرې نور آزميښت كول هم غوښتل ځكه په دواړو ئې هيره راوسته . پوره شواروز پس ښه اوږى او سترى شو نو دا دريم امتحان وو ، ولې چې د عادت تر مخه لوږه او ستوماني ورته ددې څخه وړاندې محسوسيدل پكار وو ، كه هلته ورته كب راياد شوې وې نو د دومره اوږد سفر تكليف به ورته نه رسيدو. خو الله ﷻ ته دا منظوره وه چې څه نور تكليف هم پرې راوستې شي ، د اوږد سفر غوځولو نه پس لوږه او ستوماني ئې محسوسول هلته ورته كب رايادېدل ، او دا ورته معلوميدل چې مونږ د منزل مقصود نه وړاندې ډير لرې راغلى يو ، بيا دخپلو پښو په چابونو واپس منزل مقصود ته راتلل تول آزميښتونه وو.

په درياب كښې د كب ورتللو بيان روميې د ﴿سَرَبًا﴾ په لفظ سره راغلې دې ، د سرب معنى ده سرنګ يا سورې چې په غرونو د لارې جوړولو دپاره كنستلې كيږي يا په ښارونو كښې چې زمكه كښې دننه سرنګ ويستلې كيږي، نو ددې څخه معلومه شوه چې كله دغه مهى اوكب درياب ته داخل شو نو چې كوم طرفته به تللو په اوبو كښې به يو سرنګ شان جوړيدو ، او دده د تلو لاره په اوبو كښې ښكاره پريښودلې شوه. لكه څنګه چې صحيح بخارى كښې د روايت څخه واضح شو ، په دويم ځل چې كله يوشع ابن نون موسى ﷺ ته ددې واقعې ذكر د اوږد سفر څخه وروستو اوكړو نو هلته : ﴿وَاتَّخَذَ سَبِيلَهُ فِي الْبَحْرِ عَجَبًا﴾ الفاظو سره يې دا واقعه بيان كړې ده ، دې دواړو كښې هيڅ تضاد نشته دې ځكه چې اوبو كښې دننه يو سرنګ جوړيدل پخپله يوه عجيبه واقعه او خرق عادت كار وو.

---

[1]) ترجمه:- ددې دواړو نه مرغلره او مرجان راوځي.

**د خضر ﷺ سره ملاقات اودهغوئ ديغمبرئ مسئله ::** قرآن عظيم الشان كښې اگر چې ددې واقعې د صاحب نوم نه دې اخستې شوې بلكه ﴿عبدمن عبادنا﴾ فرمائيلې شوى دى. مگر دصحيح بخارى شريف په حديث پاك كښې د هغوئ نوم خضر ﷺ خودلې شوې دې. د خضر معنى شين زرغون ده. عامو مفسرينو ددې وجه تسيمه دا خودلې ده چې خضر ﷺ به چرته كيناستو كه هغه به هرځنگه زمكه وه نو هغه به شنه زرغونه شوه. هلته به واښه راټوكيدل. زمكه به تروتازه شوه. قرآن عظيم الشان دا هم واضح نه كړل چې خضر ﷺ پيغمبر وو او كه ولى الله وو. خو د جمهورو علماء كرامو په نزد دده پيغمبر كيدل د هغې واقعاتو څخه ثابتيږى كوم چې د دوئ باره كښې بيان شوى دى ولې چې دې سفر كښې څومره واقعات چې ثابت شوى دى په دې كښې ځينې خو په يقينى ډول د شريعت څخه خلاف دى او دشريعت د حكم څخه استثناء بغير د وحى الهى څخه هيچرې نشى كيدې كومه چې نبى او پيغمبر سره خصوصيت لرى، ولى ته هم په كشف او الهام سره څه ځيزونه خو معلوميدې شى خو هغه حجت نه وى او دهغې په بنا باندې دشريعت ښكاره حكم بدلولې نشى ځكه دا ټاكلې خبره جوړيږى چې خضر ﷺ د الله ﷻ نبى او پيغمبر وو، دوئ ﷺ ته د وحى الهى په ذريعه ځينې خاص هغه حكمونه وركړې شوې وو چې د شريعت د ظاهر څخه خلاف وو، هغوئ ﷺ چې څه اوكړل ددې استثنائى حكم د لاندې ئې اوكړل. پخپله ددوئ دطرفنه ددې ښكاره كول هم د قرآن عظيم الشان په دې جملې سره اوشو چې: ﴿وَمَا فَعَلْتُهُ عَنْ أَمْرِي ۚ﴾ [دا ټول هر څه ما د خپله ځانه نه دى كړى] بلكه دالله ﷻ په حكم سره مې كړى دى.

خلاصه داده چې د جمهورامت په نزد خضر ﷺ يو نبى او پيغمبر دې، مگر څه تكوينى خدمتونه ورته الله ﷻ سپارلى وو چې دهغې علم وركړې شوې وو، او موسى ﷺ په هغې باندې خبر نه وو، ځكه ئې په خضر ﷺ باندې اعتراض كولو، په تفسير قرطبى، بحر محيط ابو حيان او اكثرو تفسيرونو كښې دا مضمون په مختلفو عنواناتو سره بيان شوې دې.(١)

**يو ولى لره دشريعت د ظاهرى حكم څخه خلاف كول حلال او روا نه دى ::** دلته دا خبره هم معلومه شوه چې ډير جاهلان او غلط كاره صوفيان، تصوف لره په دې شان بد ناموى وائى چې شريعت بيل ځيزدې او طريقت جدا ځيز دې، ډير ځيزونه په شريعت كښې حرام وى او په طريقت كښې روا وى، په دې بنا تش په نوم ولى لره په گناه كښې اخته وينى او اعتراض پرې نشى كولې. دا ښكاره بې دينى زنديقيت او باطل كار دې، په خضر ﷺ باندې ددنيا څوك ولى نشى قياس كولې او نه د ظاهرد شريعت څخه خلاف دهغه څه عمل ته روا وئيلې شى.

**شاگردانو باندې د استاذ تابعدارى كول لازم دى ::** ﴿هَلْ أَتَّبِعُكَ عَلَىٰ أَن تُعَلِّمَنِ مِمَّا عُلِّمْتَ رُشْدًا﴾ موسى ﷺ اگر چې نبى او رسول وو او اولوالعزم پيغمبر وو خو بيا هم خضر ﷺ څخه ئې په ډير آدب او عزت سره خواست اوكړو چې زه دعلم زده كولو دپاره تاسو سره روانيږم. دې څخه معلومه شوه چې د علم حاصلولو آدب دادې چې شاگرد د خپل استاذ تعظيم و تكريم او تابعدارى كوى اگر چې د خپل استاذ څخه اعلى او زيات غوره هم وى [ قرطبى مظهرى ].(٢)

١) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:١١ص:٢٨]
٢) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:١١ص:١٧] و تفسير المظهري[ج:٦ص:٥٠، ٥١]

**د شریعت عالم لره جائز نه دی چې په خلاف شرع خبره باندې صبر شوی:** ﴿إِنَّكَ لَن تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا ۝ وَكَيْفَ تَصْبِرُ عَلَىٰ مَا لَمْ تُحِطْ بِهِ خُبْرًا ۝﴾ خضر ﷺ موسی ﷺ ته اوفرمائیل چې تاسو بهٔ ماسره صبر اونه کړئی شئ اوځنګه به صبر اوکړئی شئ چې په حقیقت باندې خبر هم نه يئ ، مطلب ئې دا وو چې زما او ستاسو دعلم په نوعیت کښې فرق دې ، ځکه به زما کارونه به تاسو ته قابل أعتراض ښکاری . ترڅو دې چې په حقیقت پوهه نه کړم ستاسو ته به دخپل فرض منصبی په بناء په دغسې څیزونو باندې اعتراض کول وی .

موسی ﷺ ته د پروردګار د طرفه هر کله چې د خضر ﷺ څخه د علم ازده کولو حکم شوې وو ځکه ئې تسلی وه چې د هغوئ ﷺ څه کار به په حقیقت کښې د شریعت نه خلاف نه وی . اګر چې په ښکاره ورته زما دماغ نه رسی ځکه ئې د صبر کولو وعده اوکړه کنی دغسې وعده کول هم يو عالم دين لره جائز نه دی . خو بيا د شريعت باره کښې ددينی غيرت جذبه پرې غالبه شوه او دهغې په وجه دغه کړې وعده ترې هيره شوه .

اوله واقعه خو زياته غټه نه وه صرف د کشتئ خاوندانو ته د مالی نقصان ياد غرقيدو خطره وه چې پس ته هغه هم ختمه شوه ، ليکن ورپسې واقعاتو کښې موسی ﷺ داوعده هم نه وه کړې چې زه به اعتراض نه کوم . او دهلك د قتل د واقعې په ليدلو ئې په سختئ سره اعتراض اوکړو او په دې خپل اعتراض ئې څه عذر هم پيش نکړو . صرف دومره ئې اووئيل چې که بيا مې اعتراض اوکړو نو تاسو ته به حق حاصل وی چې نور مې دځان سره مه ملګرئی کوئی . ولې چې يو پيغمبر دا نشی زغملې چې په خلاف شرع کار ليدلو باندې صبر اوکړی . البته بل طرفته هم هر کله چې پيغمبر وو ځکه په آخر کښې حقيقت ورته داسې ښکاره شو چې دا جزئی واقعات خضر ﷺ دپاره د عامو شرعی قواعدو څخه مستثنی کړی شوی وو هغوئ چې څه کړی وو نو په وحی الهی سره ئې کړی وو [ مظهری ].[1]

**دموسی ﷺ او خضر ﷺ د علمونو ترمينځه يو بنيادی فرق او د دواړو ترمينځه د ظاهری بې سمونئ حل:**

دلته طبعی طور سره يو سوال پيدا کيږی چې اګر که د خضر ﷺ او د موسی ﷺ د علم ترمينځه بيلتون وو ځنګه چې خضر ﷺ هم دا خبره ښکاره کړې وه خو بيا هم هر کله چې دا دواړه قسمه علوم الله ﷻ ورکړی وو نو په دې کښې اختلاف او بې سمونی ولې وه ؟ ددې چې کوم تحقيق قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله پخپل تفسير مظهری کښې ليکلې دې هغه حق ته نژدې دې او زړه پرې اوبه ځکی ، ځکه دهغې مطلب او خلاصه په داسې شان بيانوم ځنګه چې زه پرې پوهه شوې يم .

قاضی صاحب رحمه الله ليکی: الله ﷻ د وحی او پيغمبرئ ذمه داری داسې بزرګانوته ورکوی چې د خلقو خدمت کول ورته حواله شوی وی . په هغوئ باندې کتاب او شريعت نازل شوې وی او په هغې کښې دالله ﷻ د مخلوق دهدايت او اصلاح دپاره اصول او ضوابط وی ، قرآن کريم کښې چې کوم په ښکاره پيغمبران او رسولان بيان کړې شوی دی دهغوئ ټولو هم دغه شان وو

[1]) تفسير المظهری تحت هذه الآية [ج:٦ص: ٥١، ٥٢]

چاته چې شرعي او اصلاحي خدمتونه سپارلې شوي وو ، هغوئ بانديې راتلونكي وحي به هم دغه قسمه وه خو بل طرفته د الله ﷻ د مخلوق تكويني خدمتونو كولو دپاره عام طور د الله ﷻ فرښتې مقررې دي . او ځينې انسانان پيغمبران ﷺ ئې هم دې دپاره مخصوص كړي دي . لكه خضر ﷺ شو خو تكويني خدمتونه جزئي او خاص واقعاتو سره تعلق ساتي لكه داسې چې فلانې خاص بنده دې د ډوبيدو ځخه اوساتلې شي يا فلانې دې هلاك كړې شي فلاني ته دې عزت وركړې شي او فلانې دې ذليل او رسوا كړې شي، داسې قسم معاملې او احكام عامو خلقو سره تعلق نه لري ، په دغې جزئي او خاص واقعاتو كښې داسې صورتونه هم راپيښيږي چې د يو بنده هلاكول د شرعي قوانينو خلاف وي مگر په تكويني قانون كښې ترې دا خاص واقعه مستثنى كړې شوې وي چې هغه داسې بنده دپاره جزئي گرځولې شوې وي كوم چې په دغه تكويني خدمتونو بانديې مقرر وي ، په د اسې حالاتو كښې د شرعي قوانينو عالمان ددغې استثنائي حكم نه خلاف واقف نه وي او هغوئ مجبوره وي چې دې ته حرام اووائي ، خو تكويني كارونو بانديې مقرر بنده دپاره هغه جائز وي .

خلاصه ئې دا شوه چې د تشريعي او تكويني كارونو ترمينځه اگر چې په ښكاره بې سموني ليدلې او محسوسولې شي خو په حقيقت كښې بې سموني نه بلكه يو استثنائي صورت وي .

ابو حيان په بحرمحيط كښې فرمائي چې :

﴿الجمهورعلى ان الخضرنبي وكان علمه معرفة بواطن قد اوحيت اليه وعلم موسى الاحكام والفتيا بالظاهر﴾ [بحر محيط] (۱)

په دې وجه دا هم ضروري دي چې دا استثناء د نبوت د وحي په ذريعه وي. د يو ولي كشف او الهام دداسې استثناء دپاره بالكل كافي نه دي . په دې بنا د خضر ﷺ دپاره اگر چې ديو ماشوم وژل په ظاهره ناحق قتل كول په ظاهرشريعت كښې حرام وو. خو په تكويني ډول هغوئ ددغې قانون شرعي ځخه مستثنى كړې شوي وو ، په دې بانديې د غير پيغمبر كشف او الهام قياس كول او دهغې په وجه يو حرام لره حلال گڼل ځنگه چې دا خبره په ځينو جاهلو صوفيانو كښې مشهوره ده . د ابالكل بې ديني او د اسلام ځخه بغاوت دې.

ابن ابى شيبه رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما داواقعه نقل كړې ده چې نجده حروري [خارجي] ابن عباس رضي الله عنهما ته خط اوليكلو چې خضر ﷺ يو نابالغ هلك ځنگه وژلې وو حالانكه رسول كريم ﷺ دنابالغ بنده وژل منع كړي دي ؟ ابن عباس رضي الله عنهما ورته په جواب كښې اوليكل چې كه تاته د يو ماشوم باره كښې هغه شان علم اوشي كوم چې د موسى ﷺ عالم يعنى خضر ﷺ ته حاصل شوي وو نو تا دپاره به هم د نابالغ وژل جائز شي .(۲)

---

(۱) تفسير البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج: ۷ ص:٤٧٤]

(۲) صحيح مسلم كتاب الجهاد والسير، باب النساء الغازيات إلخ [ج:۲ص:۱۱۷]ومصنف ابن ابى شيبة [ج: ۷ص:٦٥٦]

مطلب دا چې خضر ﷺ ته د پیغمبرئ د وحی په ذریعه علم حاصل شوې وو چې اوس چاته څکه نشی کیدې چې پیغمبری ختمه شوې ده ، څکه چې د رسول ﷺ څخه روستو بل هیڅ کس پیغمبر نشی راتلې چې ورته د دداسې واقعاتو متعلق د الله ﷻ دحکم يو خاص كس ته د مستثناء کولو علم اوشی. [مظهری ][1]

دې واقعې څخه دا حقیقت هم ښکاره شو چې سو ا دپیغمبر څخه بل هیڅوك دا حق نه لری چې دشرعی حکم څخه څوك مستثنی اوكرځوی.

| |
|---|
| فَانْطَلَقَا حَتّٰى |
| بیا روان شو دواړه \| تر هغې پورې |
| نو دواړه روان شو تر دې چې |
| اِذَا رَكِبَا فِي السَّفِيْنَةِ خَرَقَهَا قَالَ اَخَرَقْتَهَا |
| کله چی \| سواره شو دواړه \| په کشتئ كښې \| نوسورئ ئې کړه هغه \| اووئیل موسی \| آیا تاسورئ کړه دا |
| په یوه کشتئ كښې سوارۀ شونو [خضر ﷺ] په کښې سورې اوکړو موسی ﷺ ورته اووئیل چې |
| لِتُغْرِقَ اَهْلَهَا لَقَدْ جِئْتَ شَيْـًٔا اِمْرًا |
| دپاره ددې چې ته ډوب کړې \| خلق دهغې \| په تحقیق سره راغلې ته \| یو کار \| ناکاره ته \| |
| تاپه دې کښې سورې اوکړو چې په دې کښې سوارۀ خلق ډوب کړې داخو تا عجیبه کار اوکړو |
| قَالَ اَلَمْ اَقُلْ اِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا |
| اووئیل هغه \| آیا مانه وو وئیلی \| چې بیشکه ته \| هرګز طاقت نشی لرلې \| زما سره \| دصبر کولو |
| [خضر ﷺ] اووئیل چې ما نه وئیل چې ته بۀ ماسره په پاتې كيدو صبر اونه کړې شې |
| قَالَ لَا تُؤَاخِذْنِيْ بِمَا نَسِيْتُ وَلَا تُرْهِقْنِيْ |
| اووئیل موسی \| چې مۀ نیسه مالره \| په هغه کار \| چې هیر شو زما \| او مۀ راچوه په ما |
| موسی ﷺ اووئیل چې زما په هیره مامه نیسه او زما په دې معامله کښې |
| مِنْ اَمْرِيْ عُسْرًا فَانْطَلَقَا حَتّٰى اِذَا لَقِيَا غُلٰمًا |
| ددې کارزمانه \| سختی \| نوروان شودواړه \| ترهغې پورې \| کله چې \| مخامخ شو دواړه \| دیوهلك سره |
| ماسره سختی مه کوه نوبیا دواړه روان شو تر دې چې یو هلک سره ملاؤ شو |
| فَقَتَلَهٗ قَالَ اَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةً بِغَيْرِ نَفْسٍ |
| نوقتل ئې کړو هغه \| اووئیل موسی \| آیا تا قتل کړو \| یو نفس \| پاك \| بې دبدل دبل نفس نه |
| نوخضر ﷺ هغه قتل کړو موسی ﷺ اووئیل چې ښه تایوبې ګناه روح بغیر دبدل نه اووژلو |

[1] تفسير المظهری تحت هذه الآية [ج:٦ص: ٥٨]

| لَقَدْ جِئْتَ | شَيْئًا | نُكْرًا۝ |
|---|---|---|
| په تحقيق سرا راغلې ته | يو كار | ناكاره ته |
| داخو دې ډېر خراب كار اوكړو | | |

## آسان ترجمه قرآن

نو دواړه روان شو، تردې چه كله دواړه په يو كشتۍ كښې سوارهٔ شو نو هغه كشتۍ ماته كړه. موسیٰ عليه السلام اوفرمائيل: آيا تا دا كشتۍ ماته كړه چه د كشتۍ والا ټول غرق كړې؟ دا خو تا ډېر ويرونكې كار اوكړو. هغه اوفرمائيل : آيا ما نه وو وئيلې چه ته ما سره صبر نه شې كولې؟ موسیٰ عليه السلام اوفرمائيل : زما نه چه كومه هيره اوشوه، په هغې باندې ما مه راڼيسه. او زما كار ډېر مه گرانوه. هغه دواړه بيا روان شو، تردې چه د هغوى ملاقات د يو هلک سره اوشو نو هغه صاحب هغه مړ كړو موسیٰ عليه السلام ورته اووئيل : آيا تا يو بې گناه نفس قتل كړو، په داسې حال كښې چه هغه د چا نفس نه وو اخستلې چه د هغې بدله ترې نه واخستلې شي. دا خو تا سو ډېر بد كار اوكړو.

## خلاصه تفسير

غرض د دواړو په مينځ كښې قول اقرار وشو ﴿فَانْطَلَقَا﴾ [بيادواړه] يو طرف ته [روان شول] غالبا ددوى سره يوشع ﷺ به هم وو مگر دې دحضرت موسیﷺ تابع وو په دې وجه يې ذكر ددوو وكړو [ تردې چه ] په تلوتلو كښې څه داسې مقام ته ورسيدل كوم ځاى چه په كشتۍ كښې سوريدو ته ضرورت وو ﴿حَتّٰٓى اِذَا رَكِبَا فِى السَّفِيْنَةِ خَرَقَهَا﴾ [ كله چه دواړه په كشتۍ كښې سوارهٔ شول نو دې بزرگ ددې كشتۍ ] يوه تخته وويستله اودې [ لره يې خيرې كړه ﴿قَالَ اَخَرَقْتَهَا لِتُغْرِقَ اَهْلَهَا﴾ موسى ] ﷺ [اوفرمائيل ايا تادې كشتۍ لره څكه خيرې كړه چه په دې كښې ناستو خلقو لره غرق كړې ﴿لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا اِمْرًا۝﴾ تا ډيره لويه ] دخطرې [خبره وكړه ﴿قَالَ اَلَمْ اَقُلْ﴾دې بزرگ ووئيل ايا مانه وو وئيلى ﴿اِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيْعَ مَعِىَ صَبْرًا۝﴾ چه ته ماسره صبرنه شې كولې ] اخر هم هغه وشوه ته په خپل قول باندې ټينگ پاتې نه شوې﴿قَالَ ﴾ [ موسى ] ﷺ وفرمائيل چه ] زما هيرشوې وو ﴿لَا تُؤَاخِذْنِىْ بِمَا نَسِيْتُ﴾ [ ته زما په هيريدو باندې مامه نيسه ﴿وَلَا تُرْهِقْنِىْ مِنْ اَمْرِىْ عُسْرًا۝ ﴾ او زما په دې معامله ] دمتابعت [ كښې په مازياته تنگى مه اچوه ] چه زما هيره هم نه معاف كوې خبر لاړه راغله ﴿فَانْطَلَقَا﴾ [ بيا دواړه ] كشتۍ نه كوز شول وړاندې [ روان شول ﴿حَتّٰٓى اِذَا لَقِيَا غُلٰمًا﴾تردې چه كله ديو ] وړكى [هلك سره ملاو شول ﴿فَقَتَلَهٗ﴾ نو دې بزرگ هغه مړكړو موسى ] ﷺ ويريدو﴿قَالَ اَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةً بِغَيْرِ نَفْسٍ﴾ [اوفرمائيل تايو بې گناه روح هلاك كړو ] او هغه هم [بغير دبدلې ديوروح نه ﴿لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا نُكْرًا۝﴾ بيشكه تالوئ بې خايه حركت وكړو ] چه اول خو داد نابالغ قتل دې دكوم چه په قصاص كښې هم قتل كول جائز نه دى بيا دهٔ خو څوك قتل كړې هم نه دې دا كارد وړاندې كارنه هم ډير سخت دې څكه چه په هغې كښې يقينى نقصان خو صرف دمال وو دناستو خلقو دغرقيدو خطره اگر چه هم په كښې وه مگر ددې انسداد وشو بيا نابالغ هلك خو د هرې گناه برى وو.

## معارف او مسائل

﴿قَالَ أَخَرَقْتَهَا لِتُغْرِقَ أَهْلَهَا﴾ د صحيحينو په حديث كښې راغلى دى چې خضر عليه السلام په تبر د كشتئ يو تخته اوښكله[1] چې اوبو نه ډكه شوه او د غرقيدو خطره ئې پيدا شوه. نو موسى عليه السلام په خضر عليه السلام باندې اعتراض اوكړو. خو په تاريخى روايتونو كښې راغلى دى چې اوبه كشتئ ته نه دې ورغلې، ددې يو وجه دا كيدې شى چې پخپله خضر عليه السلام د هغې مرمت كړې وى لكه بغوى يو روايت نقل كړې دې چې ددغې تختې په ځائې خضر عليه السلام يوه شيشه لګولې وه، ياد معجزې په ډول په كشتئ كښې اوبه رانغلې،[2] دومره خبره خو پخپله د قرآن عظيم الشان د روانئ نه هم معلوميږى چې دا كشتئ چرې غرقه شوې نه وه چې ددغې روايتونو تائيد كوى.

﴿حَتَّىٰ إِذَا لَقِيَا غُلَامًا﴾ لفظ د غلام د عربى ژبې په اعتبار سره نابالغ هلك ته وئيلې شى، دا هلك چې خضر عليه السلام اووژلو، ددۀ په باره كښې ابن عباس رضي الله عنهما او اكثرو مفسرينو د اوئيلى دى چې هغه نابالغ هلك وو، نو د ﴿نَفْسًا زَكِيَّةً﴾ نه هم ددې تائيد كيږى، چې هغه نابالغ وو، ولې چې ﴿زَكِيَّةً﴾ د ګناهونو نه پاك ته وئيلې شى.او دا صفت يا خود پيغمبر كيدې شى يا د نابالغ ماشوم كيدې شى. چې عملونو او كارونو باندې ئې هيڅ قسم ګرفت نه وى، دده په عمل نامه كښې څه ګناه نشى ليكلې.

[الحمدلله پاره نمبر ۱۵ ختمه شوه]

---

[1] ) صحيح البخارى كتاب الأنبياء باب حديث الخضر مع موسى عليهما السلام [ج:۱ص:۴۸۱]

[2] ) تفسير البغوى تحت هذه الآية [ج: ۵ص:۱۹۰] و فى صحيح البخارى كتاب التفسير ،باب قول فلما بلغا مجمع الخ [ج:۲ص:۶۸۹] وفى صحيح مسلم كتاب الفضائل، باب من فضائل الخضر عليه السلام [ج:۲ص:۲۷۱ ](بإختصار)